جماعت اشاعت التوحید والسنہ کے علماء کرام

کی تصانیف کو سکین کر کے PDF فارمیٹ

میں علماء طلباء اور عوام کو پیش کرنا ہمارا مشن

اور محنت ہے۔ مطالعہ کرتے وقت ہمیں

دعاؤں میں یاد رکھیں

نوٹ

کتاب میں لکھے گئے مسائل کے ساتھ متفق ہونا

ضروری نہیں ہمارا کام کتاب کو سکین کرنا ہے




مولانا عبدالکریم، مولانا اکرام گل، مفتی ابوحیان فضل الرحمن صاحب

0314_9958550

محقق جدید ایډیشن

# معارف القرآن

جلد ⑦ — پښتو

تالیف

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمه الله علیه

مع

# آسان ترجمه قرآن

حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظله

مترجم

حضرت مولانا شاه فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امدادالعلوم وجامعه اسلامیه چارسده

**خصوصیات مع تسهیلات واضافات**

① هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول ② آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله ③ تکی په تکی او روانه ترجمه ④ د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه لیکل ⑤ په حاشیه کښې د غیر تفسیر شوه آیاتونو تفسیر ⑥ د عربۍ او فارسۍ د اشعارو په پښتو کښې ترجمه ⑦ د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل

فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنګی قصه خوانی بازار پیښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دکتاب نوم : معــارف القــرآن پښتو محقــق ايډيــشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتي محمد شفيع صاحب رحمة الله عليه
مفتي اعظم پاکستان

خورونکي : فيصل کتب خانه محله جنګي

موبائيل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

## د ملاويدو پتې :- د فيصل کتب خانې نه سوا

- مکتبه روغانيول جلال آباد
- مکتبه رحيمي خوست
- نعمت کتب خانه کابل
- صداقت کتب خانه قندهار وکابل
- علي کتب خانه ګرديز
- مکتبه علميه اکوړه ختک
- ديني کتب خانه تيمرګره
- شيخ الهند کتب خانه خوست
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- مکتبه فريديه خوست
- ديوبند کتب خانه خوست
- جديد رشيديه کتب خانه کابل
- مکتبه خواجه عبدالله انصاري غزني
- مکتبه نعمانيه غزني
- مکتبه رحمانيه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوی کتب خانه جلال آباد

# فهرست مضامين

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## پاره نمبر [۱۶]

## پاره نمبر [۱۷]

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## پاره نمبر [۱۸]

....

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا۝

هغه اووئیل آیا ما نه وو وئیلی ا تاته ا چه بیشکه ته ا هرګز طاقت نشې لرلی ا ما سره ا دصبر کولو ا

خضر ورته اووئیل چه ما درته [وړاندې] وئیلی نه وو چه ستا آشنا زما سره ګزاره نشی کیدې

قَالَ اِنْ سَاَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍۭ بَعْدَهَا فَلَا تُصٰحِبْنِيْ ۚ

اووئیل موسی اکه تپوس اوکړو ما ستا نه اپه باره دیو څیز کښې اپس ددې نه ا نو بیا مه ملګرې کوه ما

[موسی ]اوفرمائیل[بنه] که د دې نه پس ما ستا نه د څه څیز په باره کښې تپوس اوکړونو بیا ما خان سره مه

قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّيْ عُذْرًا۝ فَانْطَلَقَا ۔۔ حَتّٰۤى اِذَاۤ اَتَيَاۤ

[اوس خو] اورسیدو تاته ا دطرفه زما نه عذر انوبیا روان شو دواړه ا تردې پورې اچه کله ورغلل دواړه

ملګرې کوه بیشکه زما په باره کښې به ته معذوره ئې ا بیا دواړه روان شول تردې چه یو کلی ته راغلل

اَهْلَ قَرْيَةِ اِسْتَطْعَمَاۤ اَهْلَهَا فَاَبَوْا

ا خلقو دیوکلی ته ا نوخوراک اوغوښتو دواړو ا داوسیدونکو دهغه کلی نه ا خوهغوئ انکار اوکړو

[دوی ورې شوی وو] نو د هغوی نه ئې روټئ اوغوښتله [چه مونږ مسافر یو میلمستیا راکړئ] خو هغوی

اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا

اچه میلمستیا ورکړی هغوئ دغه دواړوته انوبیاموندو دې دواړو ا په دغه کلی کښې ا یودیوال

د دوی د میلمستیا نه انکار اوکړو [خو د دې نه پس ] دې دواړو په هغه کلی کښې یو دیوال بیاموندلو

يُّرِيْدُ اَنْ يَّنْقَضَّ فَاَقَامَهٗ ؕ قَالَ لَوْ شِئْتَ

انزدې ووچه | چه راپریوزی| نوهغه اودرولوهغه دیوال| اووئیل موسی| که اراده کړې وې تا

چه غورزیدو ته ورنزدې وو نو [خضر علیه السلام ] هغه [دیوال] نیغ کړو| نو موسی اوفرمائیل که تا

لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ اَجْرًا۝ قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِيْ

ا نوخامخا اخستې شوه تا په دې کار مزدوری ا اووئیل[خضر] ا دا جدائی ده ا په مینځ زما کښې

غوښتې وې نو په دې [دیوال نیغولو] به دې لږ ډیراجر اخستې وې | خضر اوفرمائیل دا زما او ستا په

وَبَيْنِكَ ۚ سَاُنَبِّئُكَ بِتَاْوِيْلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ

او په مینځ ستا کښې اا و خبر به درکړم څه تاته ا په حقیقت ا دهغې کارونو ا چه طاقت اونه لرلې شو تا ا

مینځ کښې دجدائې موقع ده | اوس زه تا د هغه واقعاتو په حقیقت باندې خبروم|چه تا د هغې د برداشت

عَلَيْهِ صَبْرًا۝

په هغې باندې ا دصبر کولو

کولو صبر نه لرلو|

**آسان ترجمه قرآن**

هغه اوفرمائیل: آیا ما تاسوته نه وو وئیل چه ته ماسره په اوسیدو باندې صبر نه شې کولې؟ موسی علیه السلام اوفرمائیل: که زه اوس ستا نه څۀ خبره اوتپوسم نو تاسو ما دځان سره مه ساته. یقیناً ته زما د

طرف نه د عذر حد ته اورسيدي پس هغوی دواړه بيا روان شو. تر دې چه يو کلي ته اورسيدل نو دهغه ځائې د اوسيدونکو نه ئې خوراک اوغوښتلو نو هغوی د دوی د ميلمستيا نه انکار اوکړو. بيا هغوی يو ديوال بيا موندلو چه راغورځيدلو، نو خضر عليه السلام هغه برابر کړو موسیٰ عليه السلام اوفرمائيل : که تا غوښتلي نو په دې کار باندې به دې څۀ اجرت اخستلې وې هغه اوفرمائيل : پس زما او ستا ترمينځه د بيلتون وخت راغلو. اوس زۀ تا ته د هغه خبرو حقيقت بيانوم چه په هغې باندې تا نه صبر اونه شو.

## خلاصه تفسير

﴿ قَالَ أَلَمْ أَقُلْ لَكَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴾ [دې بزرګ اوفرمائيل چه ايا ما تاته نه وو وئيلي چه ته به ماسره صبر ونه کړې شې ﴿ قَالَ ﴾ موسی ] ﷺ [اوفرمائيل ] چه خير داخل بيا معافي وکړه ليکن ﴿ إِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصَاحِبْنِي ﴾ [که ددې خل نه پس ماستا نه دڅه خبرې متعلق تپوس وکړو نو ته بيا مادخان سره مه ساته ﴿ قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَدُنِّي ﴾ بيشکه ته به زما دطرف نه ] انتهاد ﴿ عُذْرًا ﴾ [عذرته رسيدلي يئې] په دې خل حضرت موسی ﷺ دهير عذر پيش نه کړو ددې نه معلوميږی چه دا سوال دوی قصدا دخپل پيغمبرانه حيثيت مطابق کړې وو ﴿ فَانْطَلَقَا ﴾ [ بيا دواړه ] وړاندې ﴿ حَتَّىٰ إِذَا أَتَيَا أَهْلَ قَرْيَةٍ اسْتَطْعَمَا أَهْلَهَا ﴾ [تردې چه د يو کلي خلقو ته راغلل نو ددغې کلي دخلقو نه يې خوراك وغوښتلو ] چه مونږ ميلمانه يو ﴿ فَأَبَوْا أَنْ يُضَيِّفُوهُمَا ﴾ [نو هغوی ددوی دميلمستيا کولو نه انکار وکړو ﴿ فَوَجَدَا فِيهَا جِدَارًا يُرِيدُ أَنْ يَنْقَضَّ فَأَقَامَهُ ﴾ په دې کښې دوی هلته يو دوال وليدو کوم چه غورځيدو ﴿ قَالَ ﴾ نو دې بزرګ هغه ] دلاس په اشاره سره په طور دخرق عادت ] نيغ کړو [موسی] ﷺ وفرمائيل چه ﴿ لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا ﴾ که تاغوښتلې نو په دې ] کار [به داجرت اخستې وو ] چه دا وخت به پرې زمونږ کار هم شوې وو او ددوی دبد خويۍ صلاح به هم شوې وه ﴿ قَالَ هَٰذَا فِرَاقُ بَيْنِي وَبَيْنِكَ ﴾ [ دې بزرګ ووئيل اوس زما اوستا دجدا کيدو وخت دې ] لکه چه تا په خپله دا شرط ايښودی وو ﴿ سَأُنَبِّئُكَ بِتَأْوِيلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ عَلَيْهِ صَبْرًا ﴾ [ اوس زۀ ددې خيزونو حقيقت تاته ښايم چه تاته صبر اونه شو ] لکه چه په راتلونکو ايتونو کښې ددې بيان راروان دې.

## معارف او مسائل

﴿أَهْلَ قَرْيَةٍ﴾ په کوم کلي چې دا دواړه بزرګان يعنی موسی ﷺ او خضر ﷺ تير شوی وو او هغوئ ئې د ميلمستيا کولو نه منع کړې وو دا کلې د ابن عباس رضی الله عنه د روايت مطابق انطاکيه او د ابن سيرين رحمه الله د روايت مطابق ايکة وو،د ابوهريره رضی الله عنه نه منقول دی چې داد اندلس يو کلې وو[مظهری][1] والله اعلم.

---

[1]) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٥٥] و تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١١ص:٢٤]

أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسٰكِينَ يَعْمَلُونَ

ا هرچه هغه کشتئ وه ا نو وه هغه ا دیو څو غریبانانو کسانو ا چه کار به کوؤ هغوئ ا

ا هغه بیړه [کومه چه ما ماته کړه] د څه غریبانانو وه چه هغوی به په هغې په دریاب

فِي الْبَحْرِ فَأَرَدْتُّ أَنْ أَعِيبَهَا وَكَانَ وَرَآءَهُمْ مَّلِكٌ

په دریاب کښې ا نو اراده اوکړه ما ا چه څۀ عیب ژنه کړم هغه ا او وؤ ا وراندې د هغوئ ا یو بادشاه

کښې کار کولونو ما د دې وجې د هغې د خرابولو اراده اوکړه چه د هغوی نه وړاندې یو بادشاه

يَّأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ غَصْبًا۝ وَأَمَّا الْغُلٰمُ فَكَانَ أَبَوٰهُ مُؤْمِنَيْنِ

ا چه اخستله به ئې ا هره کشتئ ا په زور ا او هر چه وو هغه هلک ا نو وؤ ا مور پلار د هغه ا مومنان

وو هغه به هره روغه بیړئ په زور سره اخستله [او هغه هلک [کوم چه ما قتل کړو] د هغه مور پلار مومنان

يَّأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ غَصْبًا۝ وَأَمَّا الْغُلٰمُ فَكَانَ أَبَوٰهُ مُؤْمِنَيْنِ

اچه اخستله به ئې ا هره کشتئ ا په زور ا او هر چه وو هغه هلک ا نو وؤ ا مور پلار د هغه ا مومنان

وو هغه به هره یو بیړئ په زور سره اخستله | او هغه هلک [کوم چه ما قتل کړو] د هغه مور پلار مومنان

فَخَشِينَآ أَنْ يُّرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا وَّكُفْرًا۝

ا نو ویریدو مونږ چه تنگ به کړی هغوئ لره ا په سرکشئ خپلې سره ا او په کفر خپل سره

وو نو مونږ ته معلومه شوه چه په دغه دواړه مور پلار به دغه هلک د سرکشئ او کفر اثر اوکړی

فَأَرَدْنَآ أَنْ يُّبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ زَكٰوةً وَّأَقْرَبَ

نو اراده اوکړه مونږ ا چه بدل ورکړی هغوئ ته ا رب د هغوئ ا بهتر ا په پاکئ کښې ا او زیات نزدې

نو مونږ اراده اوکړه چه د ده په ځائې به ورته الله تعالی داسې اولاد ورکړی چه زیات پاکان او زیات

رُحْمًا۝ وَأَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلٰمَيْنِ يَتِيمَيْنِ

په لحاظ د صله رحمئ سره ا او هر چه وو هغه دیوال ا نو وؤ هغه ا د دوؤ هلکانو ا یتیمانو

مینه ناک به وی | او باقی پاتې شو هغه دیوال [کوم چه مونږ نیغ کړو] نو هغه په ښار کښې د دوو

فِي الْمَدِينَةِ وَكَانَ تَحْتَهُ كَنْزٌ لَّهُمَا وَكَانَ أَبُوهُمَا

په دغه ښار کښې ا او وه لاندې د هغې دیوال نه ا خزانه ا د دغه دواړو ا او وؤ ا پلار د هغوئ

یتیمانو هلکانو وو | او د هغې د لاندې د دغه دواړو خزانه وه [چه د هغوی پلار خښه کړې وه] او د هغوی

صَالِحًا فَأَرَادَ رَبُّكَ أَنْ يَّبْلُغَآ أَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا كَنْزَهُمَا

نیک سړی ا نو اراده اوکړه ا رب ستا ا چه اورسیږی دواړه ا قوت خپل ته ا او راوباسی دواړه ا خزانه خپله

دواړو پلار نیک وو | نو ستا رب دا اراده اوکړه چه دواړه بالغان شی نو دغه خزانه به راوباسی

رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ۚ وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِي ۗ ذٰلِكَ تَأْوِيلُ

داکار رحمت وو | د طرفه درب ستا | اونه دي کړي ماداکار | په اختیار خپل سره | دادي | حقیقت

دا هرڅه ستا د رب په مهربانۍ کیدل | او دا کارونه ما په خپل حکم نه دی کړی | دا د دغه واقعاتو حقیقت

مَا لَمْ تَسْطِعْ عَّلَيْهِ صَبْرًا ۝

| دغه کار | چه طاقت اونشو ستا | په دغې باندې |

وو د کومو په برداشت کولو چه تا صبر نشو کولې |

**آسان ترجمه قرآن**

هر چه د کشتۍ خبره ده، هغه د څه غریبانانو خلقو وه چه په دریاب کښې ئې مزدوری کوله. نو ما اراده اوکړه چه په هغې کښې یو عیب پیدا کړم. (ځکه) چه دهغوی نه وړاندې یو بادشاه وو چا چه په هره (مزېداره) کشتۍ په زبردستۍ خپله قبضه کښې اخستله. او د هلک معامله دا وه چه د هغه مور پلار مومنان وو، او مونږ ته دا ویره وه چه دا هلک هغوی دواړه په سرکشۍ او کفر کښې اخته نه کړي. پس مونږ دا اوغوښتله چه د هغوی رب هغوی ته د دې هلک په بدل کښې داسې اولاد ورکړي کوم چه په پاکوالی کښې هم د ټولو نه غوره وي، او په ښه سلوک کښې هم د هغهٔ نه زیات وي. پاتې شو دا دیوال، نو هغه په دې ښهر کښې د اوسیدونکو دوو یتیمانو هلکانو وو، او دهغې نه لاندې دهغوی خزانه ښخه وه او دهغوی پلار یو نیک سړې وو. په دې وجه ستا رب اوغوښتله چه دا دواړه هلکان خپلې ځوانۍ ته اورسیږي، او خپله خزانه راوباسي. دا هر څه ستا د رب د رحمت په وجه باندې هوې دي، او ما هیڅ کار په خپله رائې باندې نه دې کړې دا وو مقصد د هغه خبرو په کوم باندې چه تا صبر اونکړې شو.

**خلاصه تفسیر**

﴿ أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسٰكِينَ ﴾ [هغه کومه کشتۍ وه چه پس دیو څو غریبو سړو وه] چه ددې په ذریعه به یې ﴿ يَعْمَلُونَ فِي الْبَحْرِ ﴾ [ په دریاب کښې محنت مزدوری کوله] اوبه دې یې گذاره روانه وه ﴿ فَأَرَدْتُّ أَنْ أَعِيبَهَا ﴾ [پس ما غوښتل چه دا عیبناکه کړم او] وجه ددې داوه چه [ نیوله ] که ما په ظاهره کشتۍ بې عیبه کړې نه وې ﴿ وَكَانَ وَرَآءَهُمْ مَّلِكٌ يَّأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ غَصْبًا ۝ ﴾ وړاندې طرف ددوئ یو [ظالم] بادشاه وو چر هره روغه کشتۍ یې زوره نو داکشتۍ به یې تړې هم اخستې وه او ددې غریبانو دمزدورۍ اسره به ختمه شوې وه په دې وجه په ماتولو کښې یې دا مصلحت وو ﴿ وَأَمَّا الْغُلٰمُ فَكَانَ أَبَوٰهُ مُؤْمِنَيْنِ ﴾ [ اوپاتې شو هغه هلك پس دده مور اوپلار ایماندار وو ] اوکه دې لوئ شوې وې نو کافر ظالم به وو او دمور اوپلار ده سره ډیر محبت وو ﴿ فَخَشِينَآ أَنْ يُّرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ۝ ﴾ [ پس مونږ سره ویره پیداشوه چه دې په دوی دواړو دسرکشۍ اوکفر اثر وانه چوی ] یعنی دخوئ په محبت کښې دوی هم په بې دینۍ کښې دده سره نه شي ﴿ فَأَرَدْنَآ ﴾ [ پس مونږ ته دامنظوره شوه چه ] دده خبره ختمه کړې شي بیا ﴿ أَنْ يُّبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا ﴾ [ دده په بدله کښې ددوی پروردګار دوی له داسې او لاد ورکړی ] خواه هلك وي اوکه جینۍ ﴿ مِّنْهُ زَكٰوةً ﴾ [ کوم چه په پاکیزګۍ ] یعنی دین [ کښې دده نه غوره وی ﴿ وَأَقْرَبَ رُحْمًا ۝ ﴾ او] اومورا و پلار سره [په محبت

کولو کښې دده نه زيات وی ﴿وَأَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَامَيْنِ يَتِيمَيْنِ فِي الْمَدِينَةِ ﴾ او پاتې شو ديوال پس هغه د دوؤ يتيمانو هلكانو وو كوم چه په دې ښار كښې دی ﴿وَكَانَ تَحْتَهُ كَنزٌ لَّهُمَا ﴾ او ددې ديوال لاند ددوی خه مال ښخ وو ] كوم چه دوی ته دپلار نه په ميراث كښې رسيدلې دې ﴿وَكَانَ أَبُوهُمَا﴾[ او ددوی پلار] كوم چه مړ شوي دې هغه﴿صَالِحًا﴾[نو نيك سړې وو ] دده دنيكۍ په بركت سره دده د اولاد مال الله تعالى محفوظ ساتل وغوښتل كه دا ديوال اوس راغورزيدلې وې نو خلقو به دامال لوټ كړې وو او غالبا چه كوم سړې ددې يتيمانو سرپرست وو هغه ته به ددې خزانې علم وو خو دلته به موجود نه وو چه انتظام ئې كړې وې ﴿فَأَرَادَ رَبُّكَ أَن يَبْلُغَا أَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا كَنزَهُمَا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ﴾[ په دې وجه ستا رب په خپله مهربانۍ سره وغوښتل چه دغه دواړه دخپلې خوانۍ عمرته اورسيږی او خپله ښخه خزانه راوباسی او ] داټول كارونه ما دالله تعالى په حكم سره كړی دی په دې كښې ﴿وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِي ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا﴾ [هيڅ كار ما په خپله رائې نه دې كړې دادې حقيقت دهغو خبرو په كومو چه ستا نه صبر ونه شو] اومادرته دوعدې مطابق وښودلې نوحضرت موسى عليه السلام دحضرت خضر عليه السلام نه رخصت شو.

## معارف او مسائل

﴿أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِينَ﴾ دكعب احبار رحمه الله نه روايت دې چې دغه كشتۍ د لسو مسكينانو رونړو وه چې پنځه په كښې شل ګډ وواو پنځه دغه مزدور كار وو چې د ټولو د خرڅ انتظام به ئې كولو، مزدوری ئې همدغه د كشتۍ ماڼرګی توب وو چې كشتۍ به يې چلوله او ددې كرايه به يې حاصلوله.

**د مسكين تعريف** :: ځينې حضراتو مسكين هغه چاته وئيلی دی چې بالكل ورسره هيڅ نه وی ، خو ددې آيت نه معلوم شو چې د مسكين صحيح تعريف دادې چې د ضرورت اصلی نه زيات مال ورسره د نصاب په اندازه نه وی، او چې ددې ځخه كم مال وی نو هغه هم د مسكين په تعريف كښې داخل دی ولې چې ددې خلقو كم از كم معلومه مال خو كشتۍ وه چې قيمت به ئې د نصاب نه كم نه جوړيدو ، خو په هغې باندې ددوئ صرف ضروری حاجتونه پوره كيدې شو ځكه ورته الله جل جلاله مسكينان اوفرمائيل ، [مظهری] [1]

﴿مَلِكٌ يَأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ غَصْبًا﴾ بغوی رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت نقل كړېدې چې دا كشتۍ په كوم طرف چې روانه وه هلته به يوظالم بادشاه د خلقونه كشتۍ په زور اخستې، [2] ځكه په كښې خضر عليه السلام دغه نقص راوستو چې ددې مسكينانو د روزۍ دغه ذريعه هم د دوئ په لاس كښې پاتې شی دانائې روم ډير ښه فرمائيلی دی چې :

گر خضر در بحر كشتی راشكست صد درستی درشكست خضر هست

[كه حضرت خضر په درياب كښې كشتۍ ماته كړه نو سل درستګۍ د خضر په ماتولو كښې وې]

﴿وَأَمَّا الْغُلَامُ﴾ خضر عليه السلام چې كوم ماشوم وژلې وو، د هغې حقيقت ئې دا بيان كړو چې ددغه هلك په طبيعت كښې كفر او د والدينو نه خلاف سركشی وه،والدين ئې نيكان او ښه خلق وو، خضر عليه السلام اوفرمائيل چې كه د اهلك لوئې شی نو دغه نيكان والدين به په تكليف كښې واچوی او

[1] ) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٥٦]
[2] ) تفسير البغوی تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:١٩٤]

پریشانه کوی به ئې ، په کفر کښې اخته کیدو سره به والدین هم په فتنه کښې واچوی چې دهغوئ ایمان به هم ځکه په خطره کښې شی چې ځوئې سره ډیره مینه لری .

﴿فَأَرَدْنَا أَن يُبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ زَكَوٰةً وَأَقْرَبَ رُحْمًا﴾ یعنی ځکه مونږ اراده اوکړه چې الله ﷻ ددې هلك په بدل کښې ددۀ مور پلار ته زیات غوره اولاد ورکړی چې په عملونواواخلاقو کښې پاك هم وی او د مور پلار حقوق هم پوره کوی .

دلته خشینا او اردنا دواړه د جمعي متکلم صیغې استعمال شوې دی . ددې یوه وجه داده چې ددې نسبت خضر ﷺ اوالله ﷻ دواړوته شوې وواوداهم کیدې شی چې یواځې خضر ﷺ خپل ځان ته منسوب کړې وې چې مراد ترې د خضر ﷺ دعاکول وی ، ولې چې د اولاد ورکولو معامله خو خالصه د الله ﷻ سره تعلق لری ، چې ورسره په کښې بل هیڅوك نشی شریکیدې .

او دلته دا شبه کول صحیح نه دی چې که دالله ﷻ په علم کښې د اخبره وه چې دا هلك به کافر وی او مور پلار به گمراه کړی ، نو بیا دا واقعه دالله ﷻ د علم مطابق هم داسې واقع کیدل ضروری وو ، ځکه چې دالله ﷻ د علم څخه خلاف هیڅ یو کار نشی کیدې .

جواب دادې چې د الله ﷻ په علم کښې په دې تعلیق او شرط سره وه چې دې کله بالغ شی نو کافر به وی ، او د نورو مسلمانانو دپاره به هم خطره وی . بیا چونکه دې د بلوغت څخه وړاندې قتل کړې شونو کومه واقعه چې اوشوه هغه د الله ﷻ دعلم څخه خلاف نه ده . [مظهری] (۱)

ابن ابی شیبه رحمه الله ، ابن المنذر رحمه الله او ابن ابی حاتم رحمه الله په روایت د عطیه رحمه الله نقل کړی دی چې د مقتول هلك مور پلار ته الله ﷻ دهغه په بدل کښې یوه جینئ ورکړه چې هغې نه یو پیغمبر پیدا شو . (۲) او د ابن عباس رضی الله عنهما د روایت مطابق ډوه پیغمبران ترې پیداشول . ځینې روایاتو کښې راغلی دی چې دهغې نه پیدا کیدونکی پیغمبر په ذریعه باندې الله ﷻ یو لوئې امت ته هدایت اوکړو . (۳)

﴿وَكَانَ تَحْتَهُ كَنزٌ لَّهُمَا﴾ دیوال لاندې دغه ښخه خزانه د ابی الدرداء رضی الله عنه د روایت مطابق نبی کریم ﷺ دسرو سپینو زروذخیره خودلې ده [ ترمذی ، حاکم ورته صحیح وئیلی دی ، مظهری] . (۴)

د ابن عباس رضی الله عنهما د روایت مطابق دا دسرو زرو یوه تختئ وه چې په دې باندې دا لاندې د نصیحت کلمې لیکلې شوې وې . دا روایت عثمان بن عفان رضی الله عنه مرفوعا د نبی کریم ﷺ نه هم نقل کړې دې . [قرطبی] .

① بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

② تعجب په هغه چا دې چې په تقدیر ایمان لری بیا ولې نور غمونه کوی .

③ تعجب په هغه چا دې چې پدې خبره ایمان لری چې د روزئ ذمه دار الله ﷻ دې بیا دضرورت نه زیات مشقت او په عبث کوشش کښې ولې اخته کیږی .

④ تعجب په هغه چا دې چې په مرگ ایمان لری نو بیا ولې د خندا خوشحالئ او مستئ ژوند تیروی؟ ⑤ تعجب په هغه چا دې چې دآخرت د حساب ایمان لری بیا دغفلت او بې پرواهئ نه

(۱) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٦ ص: ٥٩]
(۲) تفسير ابن ابی حاتم رقم الحديث: [١٣٩٨٤ ، ج:٩ ، ص:٢٢٧]
(۳) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:١١ ص:٣٧] والكشاف [ج: ١ ص:٧٢٠]
(۴) جامع الترمذی ابواب التفسير ، باب تفسير سورة الكهف [ج: ٢ ص:١٤٨]

ژوند خنګه تیروي.

④ تعجب په هغه چا دې چې دنیا اوددې انقلاب پیژنی بیا ولې ددې نه په تسلئ کېښینی.

⑤ لا اله الا الله محمد رسول الله[1])

**د مورپلار دنيكئ فائده اولاد ته په پيړو پيړو رسي** :: ﴿وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا﴾ دې کښې اشاره ده چې د یتیمانو ماشومانو دپاره د ښخې خزانې دحفاظت اتنظام د خضر ﷺ په ذریعه ځکه اوکړې شو چې ددغې ماشومانو پلار ، ځوك نیك سړې او د الله ﷻ په نزد یومقبول بنده وو. ځکه الله ﷻ دهغه د مراد پوره کولو او اولاد ته ئې دفائدې رسولو انتظام اوکړو.

محمد بن منکدر رحمه الله فرمائی چې الله ﷻ د یو بنده د نیکئ اوصلاحیت په وجه دهغه د اولاد دهغه د خاندان اود خواؤشا کورونو حفاظت کوی .[ مظهری] .([2])

د قرطبی رحمه الله په حواله شبلی رحمه الله به فرمائیل چې زه ددې ښاراو پوره علاقې دپاره امان یم. کله چې هغوئ وفات شو نو د دفن کیدې نه سمدستی روستو د دیلم کافران ددجلې نه راپورې وتل او په بغداد ئې قبضه اوکړه. خلقو به وئیل چې په مونږ باندې دوه مصیبتونه راغلل ، یو د شبلی رحمه الله وفات او بل د دیلمیانو قبضه [ مظهری ص/۲۹ ج/۱۱].

تفسیر مظهری کښې راغلی دی چې په دې آیت مبارك کښې دې خبرې ته هم اشاره ده چې خلق دې هم د علماء کرامو ،صالحانو د اولاد لحاظ ساتی ، په هغوئ دې شفقت کوی ،تر څو چې په کفر اوناکاره کارونو کښې اخته شوی نه وی .([3])

﴿أَنْ يَبْلُغَا أَشُدَّهُمَا﴾ لفظ د ﴿أَشُدَّ﴾ د شدة جمع ده ، چې مراد ترې قوت دې. په کوم عمر کښې چې انسان په خپل پوره قوت اود ښهٔ او بد پیژندو قادر شی ، د امام ابی حنیفه رحمه الله په نزد داد پنځویشتو کالو عمر دې. د ځینو په نزد د څلویښتو کالو عمر دې .لکه قرآن کریم فرمائی چې :﴿حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُ وَبَلَغَ أَرْبَعِينَ سَنَةً﴾([4])[مظهری] .([5])

**پغمبری بلاغت ، او دادب د لحاظ ساتلو يومثال** :: دې مثال باندې د پوهیدو دپاره اول په دې خبره پوهیدل پکار دی چې په دنیا کښې هیڅ ښه یا خراب کار د الله ﷻ د خوښې او ارادې نه بغیر نشی کیدې . خیر او شر ټول الله ﷻ پیدا کړې دی او دهغه د رضا او ارادې تابع دی . شر یا خراب څیزونه اګر چې خاص کسانو دپاره ضرر شر او خراب بللې شی خود ټول جهان د مزاج دپاره ټول ضروری او د الله ﷻ د پیداوښت په اعتبار سره ټول خیر وی ، او ټول په حکمت باندې بنا وی.

## کوئی برا نہیں قدرت کے کارخانے میں

[ د الله ﷻ دقدرت په کارخانه کښې هیڅ یو څیز خراب نشته دې]

خلاصه داده چې کوم آفت یا حادثه ،دنیا کښې راپیښیږی هغه د الله ﷻ د خوښې او ارادې نه

---

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۱ص:۳۸]وكنز العمال رقم الحديث:[٤٤٨٩] ومجمع الزوائد (بإختصار) رقم الحديث [١١١٥١]

[2] ) تفسير المظهرى تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٦٠]

[3] ) تفسير المظهرى تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٦٠]

[4] ) ترجمه:-تر دې چې کله ځوانئ ته اورسی اور دڅلویښتوکالو شی.

[5] ) تفسير المظهرى تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٦٠]

بغیر نشي کیدي. هم دغه وجه ده چې د هر خیر او شر نسبت الله ﷻ ته کیږي ،خو حقیقت دادې چې د الله ﷻ د پیداوښت په لحاظ سره هیڅ یو شر ،شرنه وي. په دې نسبت د ادب تقاضا داده چې د شر نسبت الله ﷻ ته اونه کړې شی لکه قرآن عظیم الشان د ابراهیم ﷺ کلمات داسې نقل کوی چې: ﴿وَالَّذِيْ هُوَ يُطْعِمُنِيْ وَيَسْقِيْنِ ۙ وَاِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِيْنِ ۙ﴾ دې کلماتو کښې د ادب دا سبق ورکړې شوې دې چې خوړولو ،څکولو اودشفاء ورکولونسبت ئې الله ﷻ ته کړې دې او په مینځ کښې د رنځور کیدونسبت ئې خپل ځان ته کړې دې. ﴿وَاِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِيْنِ ۙ﴾ او کله چې زه بیمار شم نو الله ﷻ مې جوړوی او صحت راکوی. داسې ئې او نه فرمائیل چې الله ﷻ مې ناجوړه کړی نو شفاء هم هغه راکوی.

اوس د خضر ﷺ په کلام باندې غور اوکړئی ،هغوئ کله چې د کشتئ ماتولو اراده اوکړه نو هر کله چې دهغې ښکاره صورت د خرابئ وو ځکه ئې دهغې نسبت خپل ځان ته اوکړو او وې فرمایل چې: ﴿فَاَرَدْتُّ اَنْ اَعِيْبَهَا﴾ بیا د هلك د وژلو او ددې هلك د وژلو په بدله کښې ئې دغې نه د زیات غوره اولاد ورکولو بیان اوکړو ، نو په دې کښې وژل په ظاهره خراب کار ښکاریدو اوپه بدل کښې ئې اولاد ورکول یوه ښیګړه او ښه کار وو نو داسې مشترك کار ئې د جمع متکلم په صیغې سره بیان کړو لکه فرمائي چې: ﴿فَاَرَدْنَآ اَنْ يُّبْدِلَهُمَا﴾ په دې شان ئې دظاهری شر نسبت خپل طرفته او د خیر نسبت ئې الله ﷻ ته اوکړو. په دریمه واقعه کښې هر کله چې سراسری خیر او ښیګړه وه کوم چې د یتیمانو مال محفوظ کول وو نود هغې سراسری نسبت ئې هم الله ﷻ ته داسې اوکړو چې: ﴿فَاَرَادَ رَبُّكَ﴾ [ستاسو رب اراده اوکړه].

**خضر ﷺ ژوندي دې اوکه وفات شوې دې** :: قرآن عظیم الشان کښې کومه واقعه چې د خضر ﷺ بیان شوې ده هغه دې سره هیڅ تعلق نه لری چې ددې واقعې نه پس خضر ﷺ ژوندي پاتې شو او که وفات شو، ځکه قرآن عظیم الشان او سنت کښې دې باره ښکاره خبره نه ده کړې. ځینې روایاتو او آثارو نه د خضر ﷺ ژوندي پاتې کیدل معلومیږی ، ځینې روایاتو کښې ددې بر عکس دی. پدې بنا د عالمانو رائې همیشه په دې کښې مختلفې دی. د خضر ﷺ ژوندي پاتې کیدو منونکی په هغې روایت سره دلیل نیسی چې حاکم په مستدرك کښې د انس ﷺ نه نقل کړې دې چې کله نبی کریم ﷺ وفات شو نو د تورې ، سپینې ، ږیرې خاوند یو سړې په دغې جمع کښې د خلقو مینځ ته دننه راغلو او په ژړا شو ، بیا صحابه کرامو ﷺ ته ئې اوفرمائیل چې:

**﴿ان فى الله عزاء من كل مصيبة وعوضا من كل فائت وخلفا من كل هالك فالى الله فانيبوا واليه فارغبوا ونظره اليكم فى البلاء فانظروا فانما المصاب من لم يجبر﴾.**

[د الله تعالی په دربار کښې په هر مصیبت سره صبر کول دی او د هر تلونکی څیز بدله ده او هم هغه قائمقام د هر هلاکیدونکی څیز دې ځکه هم هغه ته ماتې[رجوع] کوئ او هم د هغه طرفته شوق لرئ ځکه چې بې نصیبه هم هغه څوک دې چې د مصیبت د ثواب نه محروم پاتې شی]

دې نه پس دغه کس ددغې مجلس نه چې رخصت شو نو ابوبکر صدیق ﷺ او علی ﷺ اوفرمائیل چې دا خضر ﷺ دې.(۱) دا روایت امام جزری ﷺ په حصن حصین کښې هم نقل

(۱) المستدرك للحاكم رقم الحديث :[٤٣٦٥]و دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث[٣٢٥٣]

کړي دي چې صرف صحيح السند روايتونه ئې په کښې درج کول شرط کړی دی.
د صحيح مسلم په يو حديث پاك کښې راغلی دی چې دجال به د مدينې منورې نزدې يو ځائې ته راؤرسی نومدينې منورې نه به داسې يو سړې دهغه مقابلې ته راؤځی چې ددغې زمانې په تولو انسانانو کښې به زيات غوره وی يا د زيات غورو خلقو کښې به وی. ابو اسحاق رضي الله عنه اوفرمائيل چې دغه بنده به خضر عليه السلام وی. [قرطبی]. ([1])
او ابن ابی الدنيا په کتاب الهواتف کښې سند سره نقل کړی دی چې علی عليه السلام، خضر عليه السلام سره ملاقات اوکړو، خضر عليه السلام ورته داسې يو دعا اوخودله چې دهر مونځ نه پس ئې لولی نو لوئې ثواب به ئې کيږی. او بخښنه او رحمت به ددۀ دپاره وی. دعا داده:
**﴿يامن لا يشغله سمع عن سمع ويامن لا تغلطه المسائل ويامن لا يبرم من الحاح الملحين اذقني برد عفوك وحلاوة مغفرتك﴾** ([2]) [اې هغه ذاته! چې د يو کلام آؤريدل ئې د بل کلام د آؤريدو نه نه منع کوی او ائې هغه ذاته! چې په يو وخت سوالونو کښې ورته څه غلطی نه لگی او اې هغه ذاته! چې د زارئی په سوال کولو او په بيابيا وئيلو سره ته نه تنگيږې ما ته د خپلې عفوې او کوم مزه راؤڅکې او د خپلې بخښنې خوږوالې راته نصيب کړې]
او بيا هم په دغه کتاب کښې، هم دا واقعه او هم دا دعا او د خضر عليه السلام سره د ملاقات واقعه ئې د فاروق اعظم رضي الله عنه سره هم نقل کړې ده. [قرطبی]. ([3])
دغه شان د امت په داولياء کرامو کښې د خضر عليه السلام بې شميره واقعات منقول دی.
څوک چې د خضر عليه السلام ژوندی پاتې کيدل نه منی، د هغوئ لوئې دليل هغه حديث پاك دې چې د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه په صحيح مسلم کښې منقول دې. هغوئ رضي الله عنه فرمائی چې يو ځل نبی کريم صلی الله عليه وسلم د خپل ژوند په آخر کښې مونږ ته دماسخن دمونځ جمع راکړه. د سلام گرځولو نه پس اودريدل او داکلمات ئې اوفرمائيل چې:
**﴿ارءيتكم ليلتكم هذه فان على راس مائة سنة منها لا يبقى ممن هو على ظهر الارض احد﴾**
[آيا تاسو خپله داشپه وينی چې ددې نه د سلو کالو تيريدو نه پس به هيڅوک په هغوئ کښې ژوندې پاتې نشی کوم چې نن په زمکه دی]
ابن عمر رضي الله عنه ددې روايت په نقل کولو سره اوفرمائيل چې ددې روايت په باره کښې خلق مختلفې خبرې کوی، خود نبی کريم صلی الله عليه وسلم مراد داوو چې په سلو کالو تيريدو سره نسل ختم شی. مسلم شريف کښې هم دا روايت تقريبا هم په دې الفاظو سره منقول دې، ([4]) ليکن علامه قرطبی رحمه الله ددې روايت د نقل کولونه پس اوفرمائيل چې په دې کښې هغې خلقو دپاره څه دليل نشته چې د خضر عليه السلام ژوند نه باطل وائی. ولې چې ددې روايت کښې بنيادمو دپاره دعموم الفاظ راغلی دی چې تاکيد ئې هم شوې دې خو بيا هم دې باره کښې نص ښکاره نه دې چې عموما تولو ته شامل وی، ځکه چې په بنيادمو کښې خو عيسی عليه السلام هم داخل دی چې وفات شوې يا وژلې شوې نه دې، په دې بنا ښکاره خبره داده چې په علی الارض کښې الف

---

[1] ) صحيح مسلم كتاب الفتن، باب ذكر الدجال [ج:۲ص:۴۰۲] و تفسير القرطبی [ ج:۱۱ص:۴۳]
[2] ) تفسير القرطبی [ ج:۱۱ص:۴۳] والهواتف لابن ابی الدنيا [ج:۱ص:۲۱]
[3] ) تفسير القرطبی [ ج:۱۱ص:۴۳] والهواتف لابن ابی الدنيا [ج:۱ص:۲٤]
[4] ) صحيح مسلم كتاب الفضائل، باب معنى قوله صلى الله عليه وسلم رأس مائة سنة إلخ [ج:۲ص:۳۱۰]

لام عهدي دې او د الارض نه مراد د عربو زمکه ده ، ټوله زمکه ترې مراد نه ده چې د ياجوج ماجوج زمکه مشرقي علاقې او جزيرې په کښې شاملې نه دی د کومو نومونه چې عربو آؤريدلي هم نه دی، دا تحقيق دعلامه قرطبي دې.(١)

داشان څينې حضراتو دختم نبوت مسئله دخضر عليه السلام دژوندی پاتې کيدو سره بې جوړه ګنړلې ده،ددې جواب بالکل ښکاره داسې دې چې څنګه د عيسی عليه السلام ژوندی پاتې کيدل ختم نبوت سره بې جوړه نه دی دغسې د خضر عليه السلام ژوندې پاتې کيدل هم ختم نبوت سره بې سمونه نه دی.

څينې حضراتو د خضر عليه السلام په ژوندی پاتې کيدو باندې دا شبه کړې ده چې که هغوئ عليه السلام د نبی کريم ﷺ په زمانه مبارکه کښې وې نو د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې به د خضر عليه السلام حاضريدل ضروري وو چې د نبی کريم ﷺ په تابعدارئ کښې ئې اسلامي خدمتونه شروع کړې وې ،څکه چې په حديث پاك کښې راغلي دي چې : ﴿لو كان موسى حيا لما وسعه الا اتباعي﴾(٢) يعنی که موسی عليه السلام ژوندې وې نو هغوئ عليه السلام بهٔ هم زما تابعداری کوله. څکه چې کله زه پيغمبر شوم نو د موسی عليه السلام دين منسوخ شو. خو دا څه لرې خبره نه ده چې د خضر عليه السلام ژوند او پيغمبری دعامو پيغمبرانو د شريعت نه مختلفه وی دوئ ته چونکه د الله ﷻ د طرفنه تکويني خدمتونه سپارلې شوی دی ، او د عامو پيغمبرانو دکار نه بيل د مخلوق په خدمت باندې مقرر دی ، اوس دا څه لرې خبره نه ده چې د نبی کريم ﷺ د پيغمبر کيدو نه پس ئې په شريعت محمدی ﷺ باندې عمل کول شروع کړې وی .[ والله اعلم].

ابو حيان رحمه الله په تفسير بحير محيط کښې د ډيرو بزرګانو واقعات داسې نقل کړی دې چې هغوئ عليه السلام خضر عليه السلام سره ملاقاتونه کړی دی ، خو ورسره ئې دا هم فرمائيلی دی چې :

﴿والجمهور على انه مات [بحر محيط ﴾(٣) اوجمهور علماء کرام دا موقف لری چې خضر عليه السلام وفات شوې دې.

تفسير مظهری کښې قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله فرمائيلی دی چې د ټولو اشکالو حل پدې کښې دې څنګه چې سيد احمد سرهندی مجدد الف ثانی رحمه الله فرمائيلی دی چې ما پخپله خضر عليه السلام نه دا معامله دکشف په حالت کښې معلومه کړه ، خضر عليه السلام اوفرمائيل چې زه او الياس عليه السلام دواړه ژوندی يو ، ليکن الله ﷻ مونږ ته دا قدرت راکړې دې چې د ژوندو په شکل کښې د خلقو مدد په مختلفو صورتونو کښې کوؤ .(٤)[ والله سبحانه وتعلی أعلم].

دا خبره مې ړومبې هم ليکلې ده چې د خضر عليه السلام په ژوند يا وفات باندې زمونږ څه اعتقاد يا عملی مسئله تعلق نه لری څنګه چې قرآن عظيم الشان اوسنت کښې ددې وضاحت او نه کړې شو او هم په دې وجه په دې کښې د زيات بحث او تحقيق کولو ضرورت هم نشته ، مونږ دپاره د يو طرفنه يقين لرل هم ضروري نه دی ،خو هر کله چې مسئله په عوامو کښې روانه ده څکه څه دغه څينې څيزونه مې بيان کړل .

---

(١) تفسير القرطبي [ ج:١١ص:٤١، ٤٢]
(٢) مصنف ابن ابي شيبة (إلا بإختلاف يسير في الألفاظ) [ج:٦ص:٢٦٨] و كنز العمال رقم الحديث:[١٠١٠]
(٣) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:٧ ص:٤٧٤]
(٤) تفسير المظهری تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٦٢]

وَيَسْـَٔلُوْنَكَ

ا او تپوس کوی دا خلق ستا نه

| او دوی ستا نه د ذوالقرنين په باره

عَنْ ذِي الْقَرْنَيْنِ ؕ قُلْ سَاَتْلُوْا عَلَيْكُمْ مِّنْهُ ذِكْرًا ؕ اِنَّا

په باره دذوالقرنين کښې اورته اووايه ا زر به واورم ا تاسوته ا په باره دهغه کښې اڅه حال ا بيشکه مونږ

کښې تپوس کوی | ته [ورته] اووايه چه زه به تاسوته د هغه [د ژوند] څه حالات بيان کړم | مونږ هغه ته

مَكَّنَّا لَهٗ فِي الْاَرْضِ وَاٰتَيْنٰهُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا ۙ

طاقت ورکړې وو ا هغه ته ا په زمکه کښې ا او ورکړې وو مونږ هغه ته ا دهرڅيز نه ا وسائل

په زمکه کښې بادشاهي ورکړې وه | او هغه ته مو د هر [هغه] څيز نه سامان ورکړې وو | چه ضرورت ورته پيښيدې

فَاَتْبَعَ سَبَبًا ۞ حَتّٰى اِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ

نو روان شو [مغرب ته] ا په يولار ا ترديې پورې ا چه کله ا اورسيدو هغه ا ځائې د ډوبيدو دنمرته

نو هغه [مغرب طرف ته ] روان شو | ترديې چه هغه ځائې ته اورسيدو چرته چه نمر ډوبيدلو

وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِيْ عَيْنٍ حَمِئَةٍ وَّوَجَدَ عِنْدَهَا

نو بيا ئې موندو هغه نمر ا چه ډوبيږى ا په چينه کښې ا دتورو ختو اووې موندو ا هلته دهغه چينې سره

څه گورى چه هغه نمر د تورو ختو په يوه چينه کښې ډوبيږى | او دهغې [چينې] سره ئې څه خلق بيا مندل

قَوْمًا ؕ قُلْنَا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ اِمَّآ اَنْ تُعَذِّبَ وَاِمَّآ اَنْ تَتَّخِذَ فِيْهِمْ

يو قوم ا اووئيل مونږ ذوالقرنين ا يا خو به ته عذاب ورکوې [دوی ته] ا او يا به اختياروې ته ا په دوی کښې

[دهغه خلقو به پاره کښې] مونږ ورته اووئيل يا خو ته [دوی ته ] عذاب ورکړه او يا دوی سره ښه سلوک

حُسْنًا ۞ قَالَ اَمَّا مَنْ ظَلَمَ فَسَوْفَ

ښه طريقه ا اووئيل هغه ا هرچه وى ا هغه څوک ا چه ظلم ئې کړې وى ا نو زر ده چه

اوکړه | هغه [ذوالقرنين ] اووئيل چا چه [په شرک کولو سره په خپل ځان] ظلم اوکړو | نو زر ده چه

نُعَذِّبُهٗ ثُمَّ يُرَدُّ اِلٰى رَبِّهٖ فَيُعَذِّبُهٗ

اعذاب به ورکړو مونږ هغه ته ا بيا به واپس کړې شى ا رب خپل ته ا نو هغه به عذاب ورکړى هغه ته

مونږ به ورته عذاب ورکړو | او بيا به خپل رب ته واپس شى | نو هغه به ورته [د هغه د عمل مطابق]

عَذَابًا نُّكْرًا ۞ وَاَمَّا مَنْ اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهٗ جَزَآءَ ۨالْحُسْنٰى ۚ

عذاب سختا و هرچه وى هغه څوک ا چه ايمان ئې راوړو او عمل ئې اوکړو نيک ا نو هغه لره جزاء نيکه ده

سخت عذاب ورکړى | اوچا چه ايمان راوړلو او نيک عمل ئې اوکړو | نو دهغه دپاره ښکلې بدله ده

وَسَنَقُوْلُ لَهٗ مِنْ اَمْرِنَا يُسْرًا ؕ

اووايو به مونږ ا هغه ته ا په کار خپل کښې ا آسان [کار] ا

او مونږ به هغه ته په خپلو کارونو کښې د آسان کار اووايو |

## آسان ترجمه قرآن

او دا خلق ستا نه د ذوالقرنين په باره کښې تپوس کوي. او وايه چه: زه د هغه لږ شان حال تاسو ته بيانوم. واقعه دا ده چه مونږ هغه ته په زمکه کښې اقتدار ورکړې وو، او هغه ته مو د هر کار وسائل ورکړي وو. چه دهغې په نتيجه کښې هغه په يو لاره باندې روان شو. تردې چه کله د نمر د ډوبيدلو ځائې ته اورسيدلو، نو هغهٔ ته ښکاره شوه چه هغه د يو دلدل په شان په (توري) چينې کښې ډوبيږي او هلته هغوی ته يو قوم ملاؤ شو (مونږ (هغوی ته) او وئيل: اې ذوالقرنينه! (تاسره دوه لارې دی) يا خو دې خلقو ته سزا ورکړه. او يا د دې خلقو په معامله کښې نرمي اختيار کړه هغه او وئيل: په دوی کښې چه څوک د ظلم لاره اختيار کړی، هغه ته خو به مونږ سزا ورکوو، بيا به هغه خپل رب ته اورسولې شي او هغه به ده ته سخت عذاب ورکړی. البته څوک چه ايمان راوړی، او نيک عمل کوی، نو هغه به د بدلې په طور د ښه انجام مستحق وی، او مونږ به هم هغه ته د خپل حکم ورکولو په وخت د آسانۍ خبره کوو.

## خلاصه تفسير

**د ذوالقرنين وړومبې سفر:** ﴿وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنْ ذِي الْقَرْنَيْنِ﴾ [او دا خلق تا نه دذوالقرنين دحال تپوس کوی] ددې تپوس وجه ئ دا ليکلي ده چه ددهٔ تاريخ قريب قريب ورك وو او په دې وجه ددې قصې چه کوم کارونه په قرآن کښې ذکر نه دی چه هغه داصل قصې نه زياتی وو ددې کارونو متعلق تر ننه پورې په تاريخ والؤ کښې سخت اختلاف دې په دې وجه دمکې قريشو د مدينې منورې ديهودو په مشوره ددې قصې دتپوس انتخاب کړې وو په دې وجه ددې قصې تفصيلات کوم چه په قرآن کښې ذکر دی دغه د نبی کريم ﷺ دنبوت واضح دليل دې ﴿قُلْ سَاَتْلُوْا عَلَيْكُمْ مِّنْهُ ذِكْرًا﴾ [ته ووايه چه زهٔ به ددې ذکر اوس ستاسو په وړاندې بيان کړم] وړاندې دالله تعالی دطرف نه ددې قصې شروع وشوه چه ذوالقرنين يو داسې جليل القدر بادشاه تير شوې دې چه ﴿اِنَّا مَكَّنَّا لَهٗ فِي الْاَرْضِ وَاٰتَيْنٰهُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا﴾ [مونږ ده ته په مخ د زمکې حکومت ورکړې وو او مونږ ده ته دهر قسم سامان] پوره [ورکړې وو] چه په دې سره دې خپلې شاهی منصوبې پوره کړې شی [چنانچه هغه] په اراده دفتحود مغرب ملك ته ﴿فَاَتْبَعَ سَبَبًا﴾ [په يوه لاره روان شو] اوسفر ئ شروع کړو ﴿حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ﴾ [تردې پورې چه کله] په مخه روان وو فتح ئ کولې [دنمر پريوتو موقع] يعنی په مغرب کښې دابادو انتهائی سر [ته اورسيدو ﴿وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِيْ عَيْنٍ حَمِئَةٍ﴾ نو نمر دهٔ ته په تورو اوبو کښې پريوتونکې ښکاره شو] مراد ددې نه غالبا سمندردې چه ددې اوبه اکثرو ځايونو کښې تورې په نظر راځی او نمر اگر چه حقيقت کښې په سمندر کښې نه پريوځی مگر د سمندر نه وړاندې نظر نه ځی نو په سمندر کښې [پريوتونکې معلوميږی ﴿وَّوَجَدَ عِنْدَهَا قَوْمًا﴾ او په دې موقع يوقوم دوی وليدو] چه ددوی په کافر کيدو راتلونکې ايت [امامن ظلم] دلالت کوی [مونږه] په صورت دالهام يا دهغې زمانې دپيغمبر په واسطه سره ﴿قُلْنَا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ﴾ [دا ووئيل چه اے ذوالقرنينه] ددې قوم په باره کښې تاته دوه اختياره دی [خواه] دوی ته د اول نه دقتل وغيره په ذريعه ﴿اِمَّآ اَنْ تُعَذِّبَ وَاِمَّآ اَنْ تَتَّخِذَ فِيْهِمْ حُسْنًا﴾ [که غوارې سزا ورکړه او که غوارې ددوی په باره کښې دنرمۍ معامله اختيار کړه] يعنی دوی ته د ايمان دعوت ورکړه بياکه ونه منی نو قتل ئ کړه بغير

دتبليغ او دعوت وركولو نه يئ اول دقتل كولو اختيار شايد خكه وركړې وو چه دوی ته به ددی نه وړاندې په څه ذريعه سره دايمان دعوت رسيدلې وی ليكن دبل صورت يعنی اول دعوت بيا دقتل غوره والې يئ په اشاره بيان كړو چه دا دويم صورت يئ په اتخاذ حسن كولو سره تعبيركړو ﴿قَالَ﴾ [ ذوالقرنين عرض وكړو چه ] زه دويم صورت اختيارووم اول دوی ته دايمان دعوت وركوم [ ليكن ] دايمان د دعوت نه پس ﴿أَمَّا مَنْ ظَلَمَ﴾ [ چه كوم ظالمان ] يعنی كافران [ پاتې شي ﴿فَسَوْفَ نُعَذِّبُهُ ثُمَّ يُرَدُّ إِلَىٰ رَبِّهِ﴾ پس دوی ته به مونږ ] [ د قتل وغيره ] سزا وركوؤ او دا به د دنيا سزا وی ، بيا به هغه [ پس د مرګ نه ] خپل حقيقی [ مالك ته ورسولې شي ﴿فَيُعَذِّبُهُ عَذَابًا نُّكْرًا﴾ بيا به هغه دده له ] ددوزخ [ سخته سزا وركړی ﴿وَأَمَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُ﴾ اوكوم سړې ] چه دايمان ددعوت نه پس [ ايمان راوړی اونيك عمل وكړی نو دده دپاره به ] په اخرت كښې هم ﴿جَزَاءً الْحُسْنَىٰ﴾ [ په بدله كښې ښيګړه وی چه به ورته ملاوْ شي ﴿وَسَنَقُولُ لَهُ مِنْ أَمْرِنَا يُسْرًا﴾ او مونږ به هم ] په دنيا كښې [ په خپل سلوك كولو كښې دده ته اسانه ] اونرمه [ خبره وايو ] يعنی په دوی به څه عملی سختی خو څه كوې زبانی او قولی سختی به پرې هم نه شی كولې ]

## معارف او مسائل

﴿يَسْأَلُونَكَ﴾ [ دغه خلق تاسو ﷺ نه سوال كوی ] د روايتونو نه معلوميږی چې دغه سوال كوؤنكی خلق د مكې مكرمې قريش وو. دوئ ته يهودو دا درې سوالات په دې غرض خودلی وو چې د نبی كريم ﷺ پيغمبری او په حقه كيدل په دې سره معلوم كړی يعنی نبی كريم ﷺ نه امتحان واخلی. هغه درې سوالونه دا وو ، يو د روح باره كښې ، دويم د اصحاب كهف باره كښې ، دريم د ذی القرنين باره كښې . د اول سوال جواب د تير شوی سورت په آخر كښې وركړې شوې دې . داصحاب كهف قيصه اوس اوس تيره شوه . او د دريم سوال دا وو چې ذی القرنين څوك وو او څه حالات ورته رامخې ته شو؟ [بحر محيط]. (۱)

**ذوالقرنين څوك وو؟ په كومه زمانه كښې او كوم ملك كښې وو؟ ذوالقرنين بې ورته ولې وئيلې دي :: د**

ذوالقرنين نوم ذوالقرنين ولې دې ، په دې كښې بې شميره اقوال او سخت اختلافات دی. ځينې د ذی القرنين ددې نوم وجه دا ښائی چې دوه زلفې به ئې وې ، ځينې وائی چې د مشرق او مغرب ملكونوباندې حكمران وو ،ځينې وائی چې په سر باندې ئې داسې دوه ښنبې وې لكه چې ښكرونه وی ، ځينې روايتونو كښې راځی چې د سره په دواړو طرفونو ئې د ګذار ښنبې وې او داسې نور هم اقوال شته دې .[ والله اعلم]

دلته دومره تپاكلې شوې ده چې قرآن عظيم الشان د هغه نوم ذوالقرنين نه دې ايښې بلكه دا نوم د يهودو خودلې شوې دې ولې چې دغلته په دغې نوم باندې مشهور وو، د ذوالقرنين صرف دومره قدرې بيان راغلې دې چې : هغه يونيك انصافداره بادشاه وو چې مشرق اومغرب ته رسيدلې وو او ددې ترمينځه ملكونه ئې فتح كړی وو. په دغې ملكونو باندې ئې د انصاف بادشاهی كړې وه. دخپلومقصدونو پوره كولو دپاره ورته الله ﷻ هر قسم سامان وركړې وو. دوئ درې اطرافو ته سفر كړې وو او علاقې ئې فتحې كړې وې. د مشرق ، مغرب

---

(۱) قدر مر تخريجه.

تر آخره پورې ، او شمال جنوب پورې د لوړو غرونو سفرونه ئې کړي وو. دغه ځائې کښې دوئ د دوو غرونو مابين والا لاره د يو مضبوطې اوسپنې نه جوړ ديوال په ذريعه بنده کړې شوې وه چې د هغې په وجه ددغې علاقې خلق د ياجوج ماجوج د تباهئ جوړولو نه حفاظت کښې شول. د يهودو په دې جواب تسلي اوشوه او نور سوالونه ئې په کښې راپورته نه کړل ځکه چې پخپله يهودو د هغې ضرورت محسوس نه کړو. بل طرفته قرآن عظيم الشان دتاريخونو او قيصو صرف هغه اړخ بيانوی چې ددين يا ددنيا څه فائده ورپورې تړلې وی يا په ضروری څيز باندې پوهيدل پرې څه موقوف وې.

يعنی نه خويهودو ددې سوالونو راپورته کول څه ضروری اوګڼړل چې ذوالقرنين نوم ئې ولې وو، په کومه زمانه اوکوم ملك کښې وو؟ اونه قرآن عظيم الشان دا څيزونه اوخودل او نه چرته په صحيح حديث کښې ددې تفصيلونه بيان کړې شوی دی. داسې هم نه ده چې ګنې د قرآن عظيم الشان په يو آيت مبارك باندې پوهيدل چرته ددې څيزونو په علم باندې موقوف وې ، ځکه خو پخوانو بزرګانو صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعينو هم دې پسې څه خاص مخه نه ده کړې. اوس معامله صرف د تاريخی رواياتو اود موجوده تورات ، انجيل پاتې ده ، دغه خبره ښکاره ده چې موجوده تورات او انجيل دمسلسل ردوبدل او تحريف په وجه ددې حيثيت د يو آسمانی کتاب نه دې پريخودې شوې، بلکه ددې حشيثيت زيات نه نه زيات د يو تاريخ کيدې شی. نو د پخوانئ زمانې تاريخی روايتونه خو اکثر په اسرائيلی بې سنده قصو باندې مشتمل دی. هيڅ زمانه کښې په دې باندې د عقل خاوندانو او هوښيارانو خلقو اعتماد نه دې پاتې شوې. دې باره د کښې د مفسرينو ليکل هم ددغې تاريخی روايتونو مجموعه دی چې په کښې بې شميره اختلافات موجود دی. د يورپ خلقو په دې زمانه کښې ،تاريخ ته لوئې اهميت ورکړې دې ، ددې په تحقيق او لټنه کښې بيشکه چې د ډيرې خوارئې کار اخلی ، د زړو نخښو معلومولو دپاره ئې کنستل اوکړل ، ددغې ځايونو نه ئې زاړهٔ ليکونه راجمع کړل. د هغې په ذريعه ئې دپخوانو واقعاتو حقيقت ته په رسيدو سره هغه کارونه سرته او رسول چې په تيره شوې زمانه کښې چرته هم نه ووشوی. بيا ددغې حاصل کړې شوؤ نخښو او ليکلو په مدد خو د څه واقعه تائيد حاصليدې شی خو دهغې په مدد سره پوره واقعه نه شی لوستلې کيدې .په دې وجه خو ددې دپاره تاريخی روايات بنياد جوړ کړې شوی دی او په دغه معاملاتو کښې د پخوانی تاريخ حالت اوس ذکر کړې شو چې د يو قصې نه زيات حيثيت نه لری. د تفسير قديم او جديد عالمانو هم پخپلو کتابونو کښې دغسې روايتونه ، په تاريخی حيثيت سره نقل کړی دی. چې په صحيح کيدو باندې ئې څه قرآنی مقصد موقوف نه دی. اوس دلته هم په دغې حيثيت سره د ضرورت په اندازه ليکلې شي ، ددې واقعې پوره تحقيق او لټون مولاناحفظ الرحمان صاحب په خپل کتاب قصص القرآن کښې ليکلې دې. د تاريخ شوقين صاحبان ئې هلته کتلې شی.

څينې روايتونو کښې راغلی دی چې په دنيا څلور بادشاهان داسې تير شوی دی چې په توله دنيا ئې بادشاهی کړې ده. په هغوئ کښې دوه مؤمنان دی ، سليمان عليه السلام او ذوالقرنين او دوه کافران نمرود اوبخت نصردی خوعجيبه خبره داده چې د ذوالقرنين په نوم ددنيا ګڼړکسان مشهور شوی دی اوبله عجيبه خبره داده چې د هرې زمانې ذی القرنين سره د سکندر لقب هم شامل دې.

د عيسى عليه السلام نه تقريبا درې سوه کاله آګاهو رومبې يوبادشاه داسې تير شوې دې چې د سکندر په نوم مشهور وو. هغه د سکندر يوناني او مقدوني او رومي په لقبونو سره يادېږي .دهغه وزيرارسطو وؤ او دارا سره ئې جنګ شوې وو. هغه ئې وژلې وو او د هغه ملك ئې فتح کړې وو. د سکندر په نوم مشهور شوې دا آخري سړې وو او په دنيا کښې ئې زياتې قيصې مشهورې دي . او ځينې خلقو ده ته هم هغه ذوالقرنين وئيلى دى د چا چې بيان قرآن عظيم الشان کښې راغلې دې . خو دا بالکل غلط ځکه دی چې دغه کس آتش پرست او مشرك وو. او قرآن عظيم الشان کښې بيان شوی ذوالقرنين باره کښې ټول په دې متفق دی چې دا مؤمن نيك سړې وو. ځنګه چې د قرآن عظيم الشان ښکاره بيانونه هم په دې باندې ګواه دی اګر چې دې باره کښې د علماء کرامو اختلاف دې چې دې پيغمبر وو او که نه وو؟

حافظ ابن کثر رحمه الله په البدايه والنهايه کښې د ابن عساکر رحمه الله په حواله دده پوره نسب نامه ليکلې ده چې په آخر کښې ابراهيم عليه السلام سره يو ځائې کيږي او وې فرمائيل چې دا هم هغه سکندر دې چې د يوناني مصري مقدوني په نومونو سره مشهور وؤ او پخپل نوم ئې اسکندريه ښار هم آباد کړې وو . او د روم تاريخ هم دده دزمانې نه راروان دې،دې د سکندر ذی القرنين اول نه ډيره زمانه پس تير شوې دې چې دوؤ زرو کلونو نه زياته بللې شی ، دارا لره ئې وژلې وو ، د فارس په بادشاهانو ئې فتح بيا موندې وه ، خو دا سړې مشرك وو ، او دا سخته غلطی ده چې څوك ورته هغه ذوالقرنين وائی کوم چې په قرآن عظيم الشان کښې بيان شوې دې ، د ابن کثير الفاظ دادی :

فاما ذوالقرنين الثاني فهواسكندربن فيلبس بن مصريم بن برس بن سبطون بن رومي بن نعطى بن يونان بن يافث بن يونه بن شرخون بن رومه بن شرخط بن توفيل بن رومي بن الاصفربن يقز بن العيص بن اسحاق بن ابراهيم الخليل عليه السلام كذانسبه الحافظ ابن عساكر في تاريخه المقدوني اليوناني المصري باني الاسكندرية الذين يؤرخ بايامه الرومتاخرا عن الاول بدهرطويل وكان هذاقبل المسيح بنحو من ثلثمائة سنة وكان ارسطاطاليس الفيلسوف وزيره وهوالذي قتل دارا وذل ملوك الفرس واوطاء ارضهم وانما نبهمنا عليه لان كثيرا من الناس يعتقد انهما واحد وان المذكور في القران هوالذي كان ارسطاطاليس وزيره فيقع بسبب ذالك خطأ كبير وفساد عريض طويل فان الاول كان عبدا مؤمنا صالحا وملكا عادلا وكان وزيره الخضروانه كان نبيا على ماقررناه قبل هذا واما الثاني فكان مشركا وزيره فيلسوفا وقد كان بين زمانيهما ازيد من الفي سنة فاين هذامن هذا لايستويان ولايشتبهان الاعلى غبي لايعرف حقائق الامور[البداية والنهاية ص:۱۰۶ج:۲].

دحديث پاك او تاريخ دامام ابن کثير رحمه الله ددې تحقيق نه يوخو دا مغالطه ختمه شوه چې دا سکندر ،کوم چې د مسيح عليه السلام نه درې سوه کاله وړاندې تير شو دې ، داراو دفارس بادشاهانو سره ئې جنګونه شوی دی او اسکندريه ښار ئې آباد کړې دې . دا هغه ذوالقرنين نه دې چې په قرآن عظيم الشان کښې ئې ذکر راغلې دې . د غلطی ځينې لويو ومفسرينو هم کړې ده. ابوحيان په بحر محيط کښې او علامه آلوسی رحمه الله په روح المعاني کښې هم دۀ ته هغه ذوالقرنين وئيلى دی چې بيان ئې په قرآن عظيم الشان کښې راغلې دې .[1]

[1] ) نور تفصيل دپاره اوګورئ:- تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:٤٨٧]و روح المعانی تحت هذه الآية [ج:۱۱ ص:۳۸۹،۳۹۰]

بله خبره داده چې د ﴿وَإِنَّهُ كَانَ نَبِيًّا﴾ نه معلومیږي چې د ابن کثیر رحمه الله په نزد ددهٔ پیغمبر کیدل غوره ښکاري ، اګر چې دجمهورو په نزد غوره قول هغه دي چې پخپله ابن کثیر رحمه الله په روایت د ابی الطفل د علی رضی الله عنه نه نقل کړې دې چې نه خو هغه نبي وو اونه فرشته وو بلکه نیک اودینداره مسلمان وو. هم دغه وجې نه بعضو علماؤ دا توجیه کړې ده چې ﴿وَإِنَّهُ كَانَ نَبِيًّا﴾ کښې ضمیر ذی القرنین ته نه بلکه خضر عليه السلام ته راجع دې ، او هم دا حق ته نزدې خبره ده.

اوس مسئله داده چې په قرآن عظیم الشان کښې بیان شوې ذوالقرنین څوک دې اوپه کومه زمانه کښې تیر شوې دی . ددې باره کښې دعلماء کرامو اقوال ډیر مختلف دی . د ابن کثیر رحمه الله په نزد ددهٔ زمانه د اسکندریه یوناني ، مقدوني نه دوه زره کاله د ابراهیم عليه السلام زمانه ده چې وزیر ئې خضر عليه السلام وو. ابن کثیر رحمه الله په البدایه والنهایه نومې کتاب کښې دپخوانو بزرګانو دا روایت هم نقل کړې دې چې ذوالقرنین کله حج ته پیاده راؤرسیدو نو ابراهیم عليه السلام ئې استقبال دپاره دمکې مکرمې نه بهر راوؤتلو. دعائې هم ورته اوکړه او څه وصیتونه او نصیحتونه ئې ورته کړې وو. [البدایه والنهایه ص/۱۰۸ج/۲]. او په تفسیر ابن کثیر کښې د ازرقی په حواله نقل شوی دی چې هغوئ ابراهیم عليه السلام سره یوځائې طواف کړې وو او وبیائې قربانی کړې وه.[۱]

او ابو ریحان البیرونی پخپل کتاب الاثار الباقیة عن القرون الخالیة کښې لیکلی دی چې قرآن عظیم الشان کښې دابیان شوې ذو القرنین ابوبکر بن سمی بن عمر بن افریقیس حمیری دې چې د زمکې مشارق او مغارب ئې فتح کړې وه اوتبع حمیری یمنی په خپلو اشعارو کښې پرې داسې فخر کړې دې چې:

| | |
|---|---|
| قدكان ذوالقرنين جدى مسلماً | ملكا علا في الارض غير مبعد |
| بلغ المشارق والمغارب يبتغى | اسباب ملك من كريم سيد |

**ترجمه:** بیشکه زما نیکهٔ ذوالقرنین مسلمان وو بادشاه وو په زمکه کښې یې اوچت مقام حاصل کړې وو او څه لرې نه دې د هغوی د سلطنت حدود مشرق او مغرب ته رسیدلی وو د سلطنت اسباب ئې د هغه ذات څخه غوستل چې کریم دې اودې پخپله سردار وو.

دا روایت بحرمحیط کښې ابوحیان نقل کړې دې ،[۲] ابن کثیر رحمه الله هم په البدایه والنهایه کښې ددې د نقل کولو نه پس فرمائیلی دی چې دا د یمن د تبع خاندان څینې رومبې تبع دې .اودا هم هغه سړې دې چې د بیر سبع باره کښې ئې د ابراهیم عليه السلام په حق کښې فیصله ورکړې وه. [البدایه والنهایه ص/۱۰۵ج/۲]. دې ټولو روایتونو کښې د ذوالقرنین د شخصیت ، نوم او نسب باره کښې اګر که اختلاف شته دې خو زمانه ئې د ابراهیم عليه السلام زمانه خودلې شوې ده.

مولانا حفظ الرحمان رحمه الله هم پخپل کتاب قصص القران کښې چې د ذوالقرنین متعلق په پوره تفصیل سره بحث کړې دې دهغې خلاصه داده چې قرآن پاک کښې ذکر شوې . ذوالقرنین دفارس هغه بادشاه دې چې یهودیان ورته خورس، یونانیان ورته سائرس، او فارسیان[فارس والا] ورته ګورش، او عرب ورته کیخسرو وائی . زمانه ئې د ابراهیم عليه السلام نه ډیره روستو دبنی

[۱]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ۵ ص:۱۸۹]
[۲]) تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۴۸۶]و روح المعانی تحت هذه الآية [ج: ۱۱ ص:۳۸۶]

اسرائیلو دپیغمبرانو ځینی دانیال ﷺ زمانه خودلې شوېده . او دا د سکندر مقدونی زمانې سره نژدې ده . کوم چې دارا لره وژلې وو. خو د ابن کثیر رحمه الله پشان مولانا موصوف رحمه الله هم ښه په سخته ددې انکار کړې دې چې ذوالقرنین هغه سکندر مقدونی نشی کیدې چې دکوم وزیر ارسطو وو، ولې چې هغه مشرك آتش پرست وو. اودې مؤمن صالح وو.

د مولانا موصوف رحمه الله د تحقیق خلاصه داده چې په سورة بنی اسرائیلو کښې دبنی اسرائیلو د دوه کرته غټ شر او فساد راولاړولو بیان چې کړې شوې دې نود اول ځل بیان ﴿بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَّنَا أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ فَجَاسُوا خِلَالَ الدِّيَارِ﴾ ستاسو د فساد په سزا کښې به درباندې مونږ خپل څه داسې بندګان مسلط کړو چې د ډیر طاقت او رعب داب مالکان به وی هغوئ به ستاسو په کورنو داخل شی. ددې نه مراد بخت نصر او دهغه مدد کوونکی دی ، چا چې په بیت المقدس کښې ځلوېښت زره او په ځینو روایتونو کښې اویا زره بنی اسرائیل اووژل . او د یو لاکونه زیات بنی اسرائیل ئې د ګډو چیلو پشان ځان سره بابل ته بوتلل . او وروستو قرآن عظیم الشان فرمائی چې : ﴿ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ﴾[بیا واپس کړل مونږ ستاسو غلبه کیدل په هغوئ باندې]

دا واقعه دکیخسرو او خورس بادشاه دلاسه شوې وه چې نیك مؤمن وو. دهٔ د بخت نصر مقابله اوکړه دهغه قید کړی بنی اسرائیل ئې دهغه د قبضې نه راخلاص کړل .او دوباره ئې فلسطین کښې آباد کړل. دهغه وران کړې بیت المقدس ئې دوباره آباد کړو ، دبیت المقدس نه اوړلې ضروری سامان ئې دوباره د بنی اسرائیلو په قبضه کښې ورکړو ، هم دا کس بنی اسرائیلو ته خلاصې ورکوونکې ثابت شو.

داخبره قیاس ته نژدې ده چې دمدینې منورې یهودیانو چې کوم سوالونه دپیغمبرئ د آزمیښت په غرض د مکې قریشو دپاره ټاکلی وو، په دې کښې ذوالقرنین ته داخصوصیت هم حاصل وو چې یهودو به دهٔ لره خپل نجات ورکوونکې منلو او ددهٔ عزت به ئې کولو.

مولانا حفظ الرحمان رحمه الله پخپل دې تحقیق باندې دموجوده تورات په حواله دبنی اسرائیلو د پیشنګویانو او تاریخی روایتونو نه په دې باندې کافی دلیلونه پیش کړې دی . څوك چې زیات تحقیق کول غواړی نو هغوئ دې ددغې کتاب مطالعه اوکړی . ددې ټولو روایتونو ذکر کولو نه زمونږ مقصد صرف دا وو چې د ذوالقرنین د شخصیت او ددهٔ دزمانې په باره کښې د امت دعالمانو اود تاریخ او تفسیر د امامانو اقوال مخې ته راشی . زما مقصد پدې کښې غوره قول ټاکل نه دی،ولې چې قرآن عظیم الشان او احادیث مبارکه چې یو څیز نه وی ټاکلې نود. هغې ټاکل زمونږ ذمه داری نه ده ،په دې کښې چې کوم یوقول غوره او صحیح اوګرځولې شی نود قرآن عظیم الشان مقصد په هر حال کښې حاصل دې . [والله سبحانه وتعالی اعلم]

اوس ددې آیتونو تفسیر ملاحظه کړئ :

﴿قُلْ سَأَتْلُوا عَلَيْكُمْ مِّنْهُ ذِكْرًا﴾ دغه خبره دغور قابله ده چې قران پاك دلته کښې د ﴿ذِكْرًا﴾ د مختصر او یو لفظ په ځائې ﴿مِّنْهُ ذِكْرًا﴾ دوه الفاظ اختیار کړل که سوچ اوکړی نو دې ته اشاره ده چې قرآن عظیم الشان د ذوالقرنین د ټولې قیصې او ددې دتاریخ بیانولو وعده نه ده کړې بلکه ددې دڅه حصې بیانول ئې اوفرمائیل چې حرف- من په منه کښې او د ذکرا تنوین دعربیت دقاعدو تر مخې ګواه دی . مونږ چې د ذوالقرنین دنوم نسب او زمانې وغیره په باره

کښې چې کوم بحث نقل کړې دې قرآن مجید هغې لره غیر ضروری اوګڼړلو اودهغې پرېښودل ئې روښې ښکاره کړل.

﴿وَآتَيْنَاهُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا﴾ عربي لغت کښې هر هغه څیز ته سبب وئیلې شی چې په هغې سره په مقصد حاصلولو کښې مدد اخستې شی، په دې کښې آلات او مادی وسائل هم شامل دی، او علم بصیرت او تجربه وغیره هم. [بحر محیط] (۱) د ﴿مِنْ كُلِّ شَيْءٍ﴾ نه مراد هغه ټول څیزونه دی چې دحکومت دانتظامی ضرورت دپاره د یوبادشاه او حکمران پکارېږی، مراد دادې چې الله ﷻ ذوالقرنین ته ټول هغه انتظامات اوڅیزونه برابر کړی وو چې د انصاف خورولو، ددنیا دامن اود ملکونو د فتح کولو دپاره ئې چې ضرورت وو.

﴿فَأَتْبَعَ سَبَبًا﴾ مراد دادې نه دوئ ته خو هر یو سامان ددنیا هرې علاقې ته د رسیدو ورکړې شوې وو لیکن هغوئ دټولو نه روښې چې مغرب ته دسفر د سامان نه کار واخستلو.

﴿حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ﴾ مطلب دادې چې د جانب مغرب داسې یومقام ته اورسیدو چې وروستو نوره آبادی نه وه.

﴿فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ﴾ د ﴿حَمِئَةٍ﴾ لغوی معنی توره بوښته [تور دلدل] یاختې دی، مراد ترې هغه اوبه دی چې ورلاندې توره خټه وی اودهغې په وجه داوبو رنګ هم تور ښکاری. اوپه دې کښې د نمر ډوبیدو مطلب دادې چې ګویا کښې هم په دې کښې ډوبېږی، ځکه چې دغه ځائې نه وړاندې بله څه داسې آبادی نه وه چې ورسره د اصلی حقیقت معلومات وې.

﴿وَجَدَ عِندَهَا قَوْمًا﴾ [دغې تورې چینې سره ئې یو قوم اولیدو] د آیت مبارك د راتلونکې برخې نه معلومېږی چې دغه قوم کافر وو ځکه په وروستو آیتونو کښې الله ﷻ ذوالقرنین ته دا اختیار ورکړو چې دوئ ته د کفر سزا هم ورکولې شی او که غواړې نوښیګړه هم ورسره کولې شې چې روښې دبلنې او تبلیغ او وعظ و نصیحت په ذریعه اسلام او ایمان قبلولو ته ئې تیار کړې بیان منونکو ته ئې جزا او انکار کوونکو ته ئې سزا ورکړې، ددې په جواب کښې ذوالقرنین هم دویم صورت تجویز کړو چې اول به ئې صراط مستقیم ته د راتلو کوشش کوی ،بیا به په کفر باندې قائم پاتې کیدونکو ته سزا ورکوو، ایمان راوړونکو اونیك عمل کوونکو ته به ښه بدله ورکوو.

﴿قُلْنَا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ﴾ دې نه معلومېږی چې دا ذوالقرنین ته الله ﷻ پخپله خطاب کړې دې. که ذوالقرنین پیغمبر اومنلې شی نو بیا خو په دې کښې هیڅ اشکال نشته چې دا خطاب به ورته د وحی په ذریعه شوې وی. که دهغوئ نبوت وو او نه منلی شی نو بیا به د خطاب د قلنا او یا ذاالقرنین صورت دا وی چې دخپلې زمانې دپیغمبر په ذریعه به ورته شوې وی. ځکه چې په روایتونو کښې راغلی دی چې خضر ﷺ به دوئ سره وو، دې نه علاوه دا مطلب ئې هم کیدې شی چې دا لغوی وحی وی. وحی د رسالت او نبوت نه وې لکه ځنګه چې د موسی ﷺ مور بی بی دپاره قرآن پاك کښې د اوحينا الفاظ راغلی دی حالانکه د هغوئ د نبی یا رسول کیدلو هیڅ احتمال نشته.

۱) تفسیر البحر المحیط ج:۷ ص:۱۸۷

ليكن ابوحيان رحمه الله په تفسير بحير محيط كښې فرمائيلي دي چې ذوالقرنين ته ددغې قوم د وژلو حكم بغير دوحي نبوت نه نشي كيدې ، بنا په دې خبره به داسې جوړيږي چې ياخو پخپله ذوالقرنين پيغمبر اومنلې شي يا د خپلې زمانې دپيغمبر په ذريعه ورته دغه حكم كول اومنلې شي(١) [ والله اعلم].

| | | |
|---|---|---|
| سَبَبًا ﴿٨٩﴾ | أَتْبَعَ | ثُمَّ |
| ا بيا ا روان شو [مشرق ته] په بله لار | | |
| [بيا ذوالقرنين په يوه بله لار روان شو | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَطْلُعُ | وَجَدَهَا | مَطْلِعَ الشَّمْسِ | بَلَغَ | إِذَا | حَتَّىٰ |
| تردې پورې ا چه كله ا اورسيدو هغه ا ځائې د راختلو دنمر ته ابيا موندو هغه نمر ا چه راخيژي | | | | | |
| تردې چه د مشرق آخري حد ته اورسيدو نو څه گورى نمر په داسې خلقو راخيژى چه د هغوى اونمر په | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| سِتْرًا ﴿٩٠﴾ | مِّن دُونِهَا | لَّهُم | لَّمْ نَجْعَل / عَلَىٰ قَوْمٍ |
| ا په يو داسې قوم باندې ا چه نه وه جوړه كړې مونږ ا دپاره دهغوئ ا لاندې دهغې [نمرنه] ا خه پرده | | | |
| مينځ كښې مونږ هډو څه پرده نه وه گرځولې [بلكه نمر به په هغوى باندې مخامخ لگيدلو] | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| خُبْرًا ﴿٩١﴾ | لَدَيْهِ | بِمَا | وَقَدْ أَحَطْنَا / كَذَٰلِكَ |
| دارنگې حال وو [دهغوئ] ا اواحاطه كړې وه مونږ ا په هغه څه ا چه وو دهغوئ سره ا په حيثيت دخبردارئى | | | |
| هم دغه شان وه او د هغه [ذوالقرنين] سره چه [د حكومت د ضروورياتو كوم] څيزونه وو هغه مونږ ته معلوم وو | | | |

## آسان ترجمه قرآن

**د دې نه پس هغه په يو بله لاره پسې روان شو. تردې چه كله د نمر د راختلو ځائې ته اورسيدلو نو هغهٔ اوكتل چه هغه په يو داسې قوم پاندې راخيژي چا ته چه مونږ د هغه (د گرمئ) نه د بچ كيدو دپاره څه پرده نه وه وركړې اقصه هم داسې اوشوه. او ذوالقرنين سره چه څه (سازوسامان) وو د هغې مونږ ته خبر وو.**

## خلاصه تفسير

[بيا] چه مغربي ملكونه ئې فتح كړل نودمشرقي ملكونو دفتح كولو په اراده سره مشرق طرف ته ﴿ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا﴾ [ په يوه لاره روان شو ﴿حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ﴾ تردې چه نمر ختو موقعې ته ] يعنې دمشرق انتهائى اباديوته [ اورسيدو ﴿وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلَىٰ قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَل لَّهُم مِّن دُونِهَا سِتْرًا﴾ نو نمر ئې په يو داسې قوم ختونكې وليدو دكومو دپاره چه مونږ د نمر نه ديخوا څه پرده نه وه ايخودې ] يعنې دلته يو داسې قوم اباد وو كوم چه دغر مونه دځان بچ كولو دپاره دخيمې وغيره جوړولو سره عادت نه وو بلكه چه شايد كپړې به ئې هم نه اغوستې د ښاروو په شان به په داگه ميدان كښې اوسيدل ﴿كَذَٰلِكَ وَقَدْ أَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا﴾ [ دا قصه دغه شان ده او دذوالقرنين سره چه څه ] سامان وغيره [ وو مونږ ته دهغې پوره خبر دې ] په دې كښې دنبوت دامتحان دپاره د ذوالقرنين متعلق سوال كوونكو ته په دې باندې خبر دارې دې چه دا مونږ چه څه بنايو

(١) تفصيل دپاره اوگورئ :-تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:٧ ص:٤٨٨]

دا ددغه علم او خبر په بنیاد دی دعامو تاریخي قصو په شان نه دی ددې دپاره چه دنبوت محمدی ﷺ حقوالې واضح شي .

## معارف او مسائل

ذوالقرنین چې مشرق طرفته یو آباد شوې قوم اولیدو نو دهغوئ حال قرآن عظیم الشان داسې بیانوی چې دنمر دغرمونو نه ئې د ځان ساتلو دپاره څه سامان ،مکان ، خیمه او لباس وغیره نه لرلو. خو ددوئ د مذهب عملونو وغیره څه بیان ئې او نه کړو. دابیان ئې هم اونه کړو چې ذوالقرنین دوئ سره څه اوکړل ؟

ښکاره خبره داده چې ذوالقرنین دوئ سره هم هغسې عمل اوکړو کوم چې ئې مغرب طرف والو خلقو سره کړې وو ، ددې دبیانولو ضرورت ځکه اونشو ګڼړلې چې په تیره واقعه باندې قیاس کولو سره ئې ددې علم هم کیدې شي [بحرمحیط دابن عطیه رحمه الله نه] (۱)

| |
|---|
| ثُمَّ　اَتْبَعَ　سَبَبًا۝　حَتّٰٓى　اِذَا　بَلَغَ بَيْنَ　السَّدَّيْنِ |
| بیا ا روان شو[غرونوته] په بله لار اتردې پورې ا چه کله ا اورسیدو هغه ا مینځ د دوؤ غرونو ته |
| بیا هغه په بله لار روان شو تردې چه هغه د دوو غرونو مینځ کښې ځائې ته اورسیدو [چه دره ورته وائي] |
| وَجَدَ　مِنْ دُوْنِهِمَا　قَوْمًا　لَّا يَكَادُوْنَ　يَفْقَهُوْنَ　قَوْلًا۝ |
| نوبیاموندو هغه ا اخواه ددغه دواړو غرونونه ا څه خلق ا چه نزدې نه وو ا چه پوهه شي ا په څه خبره ا |
| نو دهغې نه اخوا ئې داسې خلق بیا موندلو چه قریب نه وو چه په څه خبره باندې پوهه شوی وو |
| قَالُوْا　يٰذَا الْقَرْنَيْنِ　اِنَّ يَاْجُوْجَ　وَمَاْجُوْجَ　مُفْسِدُوْنَ　فِي الْاَرْضِ |
| اووئیل هغوئ ا ائې ذوالقرنین ا بیشکه یاجوج ا اوماجوج ا فسادکونکی دی ا په زمکه کښې |
| هغوی اووئیل اې ذالقرنین!یاجوج اوماجوج په دې زمکه کښې ډیر خرابي کوی [اومونږ دهغوی د مقابلې وس نه لرو] |
| فَهَلْ نَجْعَلُ　لَكَ　خَرْجًا　عَلٰٓى اَنْ　تَجْعَلَ　بَيْنَنَا |
| ا نوآیا مقرر کړو مونږ ا تالره ا ټکس [محصول] ا په دې کار ا چه ته جوړ کړې ا په مینځ زمونږ |
| نوآیا مونږ ستا دپاره څه چنده راجمع کړو چه ته زمونږ او د هغوی په مینځ کښې څه بند جوړ کړې |
| وَبَيْنَهُمْ　سَدًّا۝　قَالَ　مَا　مَكَّنِّيْ　فِيْهِ |
| اوپه مینځ دهغوئ کښې ا یوبند ا اووئیل هغه ا هغه څه ا چه اختیار را کړې دې ماته ا په هغې کښې |
| ذو القرنین اووئیل الله تعالی چه ماته کوم مال دولت راکړې دې هغه ډیر ښه دې |
| رَبِّيْ　خَيْرٌ　فَاَعِيْنُوْنِيْ　بِقُوَّةٍ　اَجْعَلْ　بَيْنَكُمْ |
| رب زما ا [هغه] کافی دې ا پس امداد اوکړې زما ا په محنت سره ا چې جوړکرم زهٔ ا په مینځ ستاسو |
| [زما ستاسو چندې ته څه ضرورت نشته البته ] ما سره د متو په زور سره مدد اوکړئ نو زه به ستاسو |

(۱) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۴۹۰]

وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ﴿٩٥﴾ اٰتُوْنِىْ زُبَرَ الْحَدِيْدِ ط حَتّٰى اِذَا

او په مینځ دهغوئ کښې ا یو دیوال [بند] ا راوړئی ماته ا تختې د اوسپنې ا تردې پورې ا چه کله

او د هغوی په مینځ کښې یو دیوال اووهم بس ماته د اوسپنې تکړې راکوئ [هغوی ورکول شروع کړل]

سَاوٰى بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ قَالَ انْفُخُوْا ط حَتّٰى اِذَا

ا هغه برابر کړو ا مینځ د دواړو غرونو ا نو اووئیل هغه ا چه اوپوکئ اور ا تردې پورې ا کله چه

تردې چه د دواړو غرونو په مینځ کښې ئې برابر کړونو هغه حکم اوکړو چه پوک په اووهئ تردې چه

جَعَلَهٗ نَارًا لا قَالَ اٰتُوْنِىْٓ اُفْرِغْ عَلَيْهِ

هغه اوګرځوی [داوسپنې دیوال] ا پشان د اور ا اووئیل ذوالقرنین ا راوړئی ماته ا چه واړوم څه ا په دې باندې

ئې د اور غوندې سور کړلو [د دې نه پس ذوالقرنین ] اووئیل چه [اوس ] وټیلې شوې تانبه راوړئ چه زه

قِطْرًا ﴿٩٦﴾ فَمَا اسْطَاعُوْٓا اَنْ يَّظْهَرُوْهُ

ا ویلې کړې شوې تانبا ا نو نه طاقت لری یاجوج ماجوج ا چه وراوخیژی په هغې باندې

د دې دپاسه واچوم ا نو هغوی [یاجوج ماموج] به د دې طاقت نه لری چه د دې دپاسه راوُخیژی

وَمَا اسْتَطَاعُوْا لَهٗ نَقْبًا ﴿٩٧﴾ قَالَ هٰذَا رَحْمَةٌ

ا او نه طاقت لری [هغوئ] ا په هغې کښې ا دسوری کولو ا اووئیل [ذوالقرنین] ا دا ا رحمت دې

او نه به دا طاقت لرلی شی چه په دې کښې سورې اوکړی [د دې تکمیل نه ] پس هغه اووئیل دا [جوړول]

مِّنْ رَّبِّىْ ج فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّىْ جَعَلَهٗ دَكَّآءَ ج وَكَانَ

ا د طرفه د رب زما ا نو هر کله ا چه راشی ا وعده د رب زما ا کړې به دې لره ا ذرې ذرې ا او ده

زما د رب مهربانی ده [اخو] کله چه زما د رب وعده [ چه قیامت دې] راشی نو دا [دیوال] به ذرې ذرې کړی

وَعْدُ رَبِّىْ حَقًّا ﴿٩٨﴾ ط

وعده د رب زما ا حقه ا

او زما د رب وعده [د قیامت] رشتینې ده

## آسان ترجمه قرآن

د دې نه پس په یو بله لار روان شو. تردې چه کله هغه د دوه غرونو ترمینځه اورسیدلو نو د هغه غرونو نه مخکښې څه خلق ملاؤ شو چه د هغوی په باره کښې داسې معلومیده چه هغوی به هیڅ خبره پاندې نه پوهیږی هغوی اووئیل : اې ذوالقرنینه ! یاجوج او ماجوج په دې زمکه کښې فساد کونکی خلق دی. نو آیا مونږ تاته څه مال درکولې شو. چه د هغې په بدل کښې تاسو زمونږ او د هغوی ترمینځه یو دیوال جوړ کړئ؟ ذوالقرنین اووئیل: الله چه ماته کوم اقتدار را کړې دې همدا (زما دپاره) بهتر دې. لهٰذا تاسو (د لاسونو خپو) په طاقت سره زما مدد اوکړئ. نو زه به ستاسو او ددوی په مینځ کښې یو مضبوط دیوال جوړ کړم. ماله د اوسپنې څادرې راوړئ. تردې چه کله هغوی (د مینځ خالی ځائې پټ کړو) د دواړو غرونو سرونه ئې یو بل سره ملاو کړل نو وې وئیل چه: اوس اور ګرم کړئ. تردې چه کله ئې دا (دیوال) سور

انکار کړو نو وې وئیل چه: ویلې شوې تانبه راوړئ، اوس به ئې په دې باندې واړوم. پس (دغه دیوال داسې جوړشو چه) یأجوج مأجوج نه په هغې باندې دختلو طاقت لرلو او نه ئې په هغې کښې سورې جوړولې شو، ذوالقرنین اووئیل: دا زما د رب رحمت دې (چه هغه د داسې دیوال جوړولو توفیق را کړو) بیا چه زما رب د کوم وخت وعده کړې ده چه کله هغه وخت راشی نو هغه به دا (دیوال) راغورځولو باندې زمکې سره برابر کړی او زما د رب وعده بالکل رښتیا ده.

## خلاصه تفسیر

[بیا مشرق اومغرب یې فتح کړل ﴿ثُمَّ اَتۡبَعَ سَبَبًا﴾ [په یوه بله لار روان شول ] په قرآن کښې ددې طرف نوم نه دې اخستې شوې مګر زیاته ابادی شمال طرف ته ده په دې وجه تفسیر لیکونکو داسفر دشمال ملکونو سفر وګڼړلو تاریخی شهادتونه هم ددې تائید کوی ﴿حَتّٰۤی اِذَا بَلَغَ بَیۡنَ السَّدَّیۡنِ وَجَدَ مِنۡ دُوۡنِهِمَا قَوۡمًا﴾ [ تردې چه کله داسې قوم ته کوم چه ددوه غرونو په مینځ کښې وو اورسیدو نو ددې غرونو نه یې دې طرف ته یو قوم ولیدو کوم چه ] دژبې او لغت نه ناخبره د وحشیانه ژوند په وجه سره ﴿لَّا یَکَادُوۡنَ یَفۡقَهُوۡنَ قَوۡلًا﴾ [ په څه خبره باندې پوهیدو ته نزدې هم نه رسیدل ] ددې الفاظونه دامعلومیږی چه صرف د ژبې نه ناخبره نه وو ځکه چه څه پوه او عقل په کښې وی نو دغیر اهل زبانو په خبرو هم څه په اشارو کنایو سره پوهیدې شی بلکه وحشیانه ژوند دپوهې او عقل نه هم لرې ساتلی وو مګر بیا هم شاید چه دچا ترجمان په واسطه سره ﴿قَالُوۡا یٰذَا الۡقَرۡنَیۡنِ اِنَّ یَاۡجُوۡجَ وَمَاۡجُوۡجَ﴾ [ دوی عرض وکړو اے ذوالقرنینه دیا جوج ما جوج قوم ] کوم چه ددې کنډاؤ نه اخوا اوسی زمونږ [ په دې زمکه ] کله کله راشی ﴿مُفۡسِدُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ﴾ [ لوې فسادکوی ] یعنی قتلونه او لوټ مارکوی او په مونږ کښې ددوی د مقابلې طاقت نشته ﴿فَهَلۡ نَجۡعَلُ لَکَ خَرۡجًا عَلٰۤی اَنۡ تَجۡعَلَ بَیۡنَنَا وَبَیۡنَهُمۡ سَدًّا﴾ [ ایا مونږ خلق تاله چنده وکړو او څه رقم جمع کړو په دې شرط چه ته زمونږ او ددوی په مینځ کښې څه بند واچوې ] چه دوی بیا دې طرف ته نه شی راتلې ﴿قَالَ مَا مَکَّنِّیۡ فِیۡهِ رَبِّیۡ﴾ [ ذوالقرنین جواب ورکړو چه په کوم مال کښې زما رب ماته ] دتصرف کولو [ اختیار راکړې دې ﴿خَیۡرٌ فَاَعِیۡنُوۡنِیۡ بِقُوَّةٍ﴾ هغه ډیر څه دی ] په دې وجه دچندې جمع کولو او مال راکولو ضرورت نشته البته [ دلاسو پښو په طاقت ] یعنی محنت مزدورئ [سره زما مدد وکړئ ﴿اَجۡعَلۡ بَیۡنَکُمۡ وَبَیۡنَهُمۡ رَدۡمًا﴾ نو زۀ به ستاسو او ددوی په مینځ کښې ښه مضبوط دیوال جوړ کړم ] ښه نو ﴿اٰتُوۡنِیۡ زُبَرَ الۡحَدِیۡدِ﴾ [تاسو خلق ماله د اوسپنې ځادرونه[چادرونه] راوړئ چه] قیمت به یې مونږ ورکړو ظاهره داده چه ددې اوسپنې ددیوال جوړولو دپاره به یې نور هم دضرورت څیزونه راغوښتلی وی مګر دلته په دې وحشی ملك کښې دتولونه زیات کمیاب شې د اوسپنې ځادرونه وو په دې وجه ددې په ذکر کولو یې بس وکړو چه ټول سامان جمع شو نو ددواړو غرونو په مینځ کښې داوسپنې ددیوال جوړلو کار شروع شو ﴿حَتّٰۤی اِذَا﴾ [ تردې چه هرکله ] ددیوال ردې [تختې] یې په یوې بلې دپاسه اینښودې [ ددې ] دواړو غرونو ﴿سَاوٰی بَیۡنَ الصَّدَفَیۡنِ﴾ [ دسرونو مینځ ] خلا [ ته ] دغرونو په [ برابرشو ﴿قَالَ انۡفُخُوۡا﴾ نو حکم یې وکړو چه پوکې ورکړی ] پوکی ورکول شروع شول ﴿حَتّٰۤی اِذَا﴾ [ تردې چه کله یې ] په پوکو ورکولو سره [ دغه دیوال ] د اوسپنې ﴿جَعَلَهٗ نَارًا﴾ [له سره سور انګار کړو ﴿قَالَ اٰتُوۡنِیۡۤ اُفۡرِغۡ عَلَیۡهِ قِطۡرًا﴾ نو حکم یې وکړو چه اوس ماته ویلې کړې تانبه راوړې ] چه د وړاندې نه به یې تیاره

کړې وه [ چه په دې ئې واچوم ] نو دغه ويلې شوې تانبه راوړې شوه او دپاسه ئې پرې ورواړله چه دديوال په تولو درزونو کښې دننه لاړه شی او ټول ديوال يوه تخته شی ددې اوږد والې او پلنوالې خدائ ته معلوم دې [نو ] ددې د دنګوالی[جګوالی] او ښوئې‌والی په وجه ﴿فَمَا اسْطَاعُوْا أَنْ يَظْهَرُوْهُ وَمَا اسْتَطَاعُوْا لَهٗ نَقْبًا﴾[ نه يا جوج ماجوج په دې شی اونه په دې کښې ] د ډير سختوالی په سبب څه [ سورې کولې شی ذوالقرنين ] هرکله چه داديوال تيار وليدو چه ددې تيارول څه اسان کارنه وو نو په طور دشکرئ ﴿قَالَ هٰذَا رَحْمَةٌ مِّنْ رَّبِّيْ﴾[ وونيل چه دا زما د رب يو رحمت دې ] په ماهم چه زما په لاسو داکار وشو او ددې قوم دپاره هم کومو لره چه يا جوج ماجوج ازارول ﴿فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّيْ﴾[ بيا څه وخت چه د رب څه وعده راشی ] يعنی ددې دفنا کيدو وخت راشي ﴿جَعَلَهٗ دَكَّاءَ﴾ [ نو دې لره به وغورزوی ] د زمکې سره به برابر به ئې کړې ﴿وَكَانَ وَعْدُ رَبِّيْ حَقًّا﴾[ او زما د رب وعده حقه ده ] او په خپل وخت به خامخا واقع کيږی .

## معارف او مسائل

**دقرانو لفظونو معنې:** [بَيْنَ السَّدَّيْنِ] په عربئ کښې هرهغه څيزته وئيلې کيږی چې بنديز جوړيږی. که هغه ديوال وی او که غر وی قدرتی وی اوکه د مخلوق جوړ کړې شوې وی ، دلته د سدين څخه مراد دوه غرونه دی چې د ياجوج ماجوج په لاره کښې رکاوټ وو ، خو بيا هم ددغې دواړو مينځ کښې درې وې چې په هغې به يې حملې کولې چې هغه لره ذو القرنين بنده کړه .

[زُبَرَ الْحَدِيْدِ] زبر د زبرة جمع ده ، چې معنی يې تختې يا څادر ده ، دلته ترې مراد د اوسپنې ټکړې دی چې ددغې درې دبندولو دپاره په ديوال کښې دخښتو او کاڼو په ځائې استعمالول وو .

[الصَّدَفَيْنِ] د دوؤ غرونو دواړه طرفونه چې يو تر بله سره مخامخ وی .

[قِطْرًا] د اکثرو مفسرينو په نزد د دې معنی ويلې شوې تانبه ده ، ځينې مفسرينو ددې معنی ويلې کړې اوسپنه يا قلعی کړې ده [قرطبی].[1]

[دَكَّاءَ] په ذره ذره کيدو سره زمکې سره زمکه کيدل.

ياجوج ماجوج څوك دی او کوم ځايې دی ؟ سد ذی القرنين چرته دې ؟ په اسرائيلی روايتونو او تاريخی قصو کښې ددې متعلق ډيرې هوائی او عجيبه خبرې مشهورې دی ، چې ځينې مفسرينو حضراتو هم په تاريخی حيثيت سره نقل کړی دی . خو هغه پخپله ددوئ په نزد هم اعتباری نه دی ، قرآن پاك ددې لنډ شان حال په اجمالی ډول بيان کړې دې او رسول کريم ﷺ د ضرورت په مطابق د تفصيلاتو څخه هم خپل امت خبر کړو ، ايمان راوړلو او عقيدې لرې کولو دپاره څو څيز کافی دې. څومره څيز کافی دې څومره چې حالات چې مفسرينو او تاريخ دانو بيان کړی دی هغه صحيح او قرينو ، قياسونو باندې بنا دی . ددې د صحيحوالی يا غلطوالی هيڅ اثر په قرآنی ارشاد باندې نه پريوزی.

زه اول هغه حديث پاك نقل کوم چې په دې باره کښې د محدثينو په نزد صحيح يا قابل اعتماد دی بيا وروسې د ضرورت مطابق تاريخی روايات هم ليکلی شی .

[1] ) تفسير قرطبي ج:۱۱ ص:۶۲

**د یاجوج ماجوج باره کښې د احادیثو روایات** دقران و سنت د تصریحاتو څخه دومره خبره خوبې شبهې ثابته ده چې یاجوج ماجوج هم د انسانانو قومونه دي ، دعامو انسانانو پشان د نوح ﷺ په اولاد کښې دي ولې چې قرآن پاك په ښکاره لفظونو سره فرمائي چې [وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُ هُمُ الْبَاقِينَ] [یعنی د نوح ﷺ د طوفان څخه وروستو څومره انسانان چې په زمکه باندې پاتې دي هغه ټول دنوح ﷺ په اولاد کښې دي ، دتاریخي روایتونو په دې اتفاق دې چې یاجوج ماجوج د یافث په اولاد کښې دي ،[1] دیو ضعیف حدیث څخه هم ددې تائید کیږي. ددوئ نور حالات د سمعان بن نواس ﷺ د حدیث مبارك څخه کیږي چې په دې باره کښې ټولو څخه زیات تفصیلي او صحیح دې. په صحیح مسلم او د حدیث په ټولو مستند کتابونو کښې نقل کړې شوې دې ، او محدثینو ورته صحیح وئیلی دی ،پدې باره کښې د دجال ښکاره کیدل ، د عیسی ﷺ نازلیدل او د یاجوج ماجوج وغیره پوره تفصیل راغلې دې ددغې پوره حدیث ترجمه داشان ده .

نواس بن سمعان ﷺ فرمائیلي دي چې رسول کریم ﷺ یو ځل د صبا په وخت ددجال یادګیرنه اوکړه چې دهغه سپکوالې او ذلیلوالې ترې معلومیږي ، [مثلا داچې کانړې دې] او څینې خبرې یې داسې اوفرمائیلې چې دا ترې معلومیدل چې دهغه فتنه سخته او لویه ده ، مثلا دا چې ورسره به جنت او دوزخ هم وي ، او نور خلاف عادت څیزونه به ترې صادریږي . په دغه بیان سره [په مونږ داسې ویره راغله چې] ګویا چې دجال اوس د کهجورو په پنړغالی کښې دې ، رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې : ستاسو په باره کښې چې زه څومره ویریږم په هغې کښې ددجال د فتنې په نسبت نورو فتنو نه زیاته ویره ده ځکه پکار ده چې که دجال زما په موجودګی کښې ښکاره شو نو زه به پخپله دهغه مقابله کوم اوکه زما څخه وروستو ښکاره شو نو هر څوك به د خپل طاقت په جوړ د هغه د مغلوب کولو کوشش کوي. زما په غیر موجودګئ کښې به الله ﷻ د هر مسلمان ناصر او مددګار وي. [د هغه نخښه داده چې]ځلمې نوجوان به وي چې ویښته به یې الوزي ، یوه سترګه به یې بروته راوتلی وي و او بله سترګه به یې کانړې وي ، ځکه چې په نورو روایتونو کښې دي ، اوکه زه په بدشکلی کښې د هغه پشان څوك ښودلې شم نو هغه عبدالعزی بن قطن دې ، [دجاهلیت په زمانه کښې د دبنی خزاعه یو بدشکله سړې وو] اوکه په تاسو کښې په چا مسلمان باندې دجال پیښ شي نو پکار دي چې هغه دسورة کهف ړومبی سره اووائی [په دې به ددجال فتنې څخه محفوظ شي] دجال به د عراق اوشام مینځ کښې راښکاره کیږي او دهر طرفنه به فساد راولاړوي ، ایې دالله ﷻ بندګانو ! دهغه په مقابله کښې کلك اوسي.

مونږ عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! هغه به په زمکه کښې څومره موده پاتې کیږي ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې :

څلویښت ورځې به پاتې کیږي ، خو ړومبی ورځ به د یو کال برابره وي ، دویمه ورځ به دیوې میاشتې برابره وي ، دریمه ورځ به دیوې هفتې هومره وي او نورې به د عامو ورځو په برابر وي مونږ عرض اوکړو اې د الله رسوله کومه ورځ چې به د یو کال برابر وي نو آیا مونږ به په

[1] ) مجمع الزوائد رقم الحديث :[۹۳۲ ] كتاب العلم باب فى علم النسب ، و كنزالعمال رقم الحديث :[۳۴۳۹]

هغې کښې صرف د يوې ورځې مونځونه کوو؟ نبي کريم ﷺ اوفرمائيل نه : بلکه په اندازه سره به د يو کال پوره مونځونه کوئ. بيا مونږ عرض اوکړو چې يارسول الله ﷺ! هغه به د زمکې سفر په څومره تيزئې سره کوي؟ وې فرمائيل چې دهغې وريځې پشان به تيز روان وي چې وروسته موافقه هوا لګيدلې وي. نو دجال به په يو داسې قوم راشي چې د خپلو باطلو عقيدو بلنه به ورته کوي، هغوئ به پرې ايمان راؤړي، بيا به هغه وريځو ته حکم اوکړي نو هغه به پرې باران راووروي، او زمکې ته به حکم ورکړي نو هغه به شنه، زرغونه او بسيرازه شي. اومابنام چې کورونو ته دغه څاروي واپس راځي نو دهغې قبونه به دهغې څخه ډير لوړ وي، او غلانځې به يې د پيئو څخه ډکې وي. تشې به يې ډک وي، بيا به دجال په بل قوم ورشي چې د کفر او گمراهئ بلنه به ورکوي. ليکن هغوئ به يې خبره او نه مني، دې به ترې نااميده واپس شي، په دغې قوم به قحط راشي، خوار به شي، شارې صحراګانو باندې به دجال تيريږي. نو دغه زمکې ته به وائي چې خپلې خزانې راؤباسه، او دجال پسې به داسې روانې وي لکه څنګه چې د شاتو مچئ خپل بادشاه پسې روانې وي. بيا به دجال داسې کس راؤبلي چې بنه ځوان به وي. هغه به په تورې سره دوه ټکړې کړي، دغه دوه ټکړې به په دومره فاصله کښې يو بل څخه پريوزي چې څومره غشي ويشتونکې د خپلې نخښې نه لرې وي. چې دجال يې راؤبلي نو هغه به ددجال په دغه کار باندې خاندي، ده ته به راشي، په دې دوران کښې به الله ﷻ عيسیٰ عليه السلام په دې شان نازل کړي چې دوه رنګدار څادرونه به يې په بدن مبارک باندې وي، د دمشق د مشرق طرفته په سپينه مناره به داسې راکوزيږي چې دواړه لاسونه به يې د فرښتو په وزرو باندې ايښودي وي، چې سر ښکته کړي نو د اوبو څاڅکي به ترې راوتوې شي. چې سر مبارک پورته کړي نو بيا به هم د سپينو ملغلرو پشان د اوبو څاڅکي ترې راتوئيږي، کوم کافر ته چې د ساه، هوا رسي نو هم په ځائې به مړې کيږي، د هغوئ عليه السلام د ساه هوا به دومره لرې پورې رفتار کوي څومره يې چې نظر لرې ځي. عيسیٰ عليه السلام به د جال تلاش کوي، په ،،باب اللد،، کښې به يې راايسار کړي، هم دغه ځاې کښې به يې اووژني، بيا به عيسیٰ عليه السلام خلقو ته راشي او د شفقت په وجه به دهغوئ په مخونو باندې لاس مبارک راکاږي او ورته به د جنت د اعلیٰ درجو زيرې آؤروي. هم په دې دوران کښې به الله ﷻ حکم اوکړي چې زه د خپلو بندګانو څينې داسې خلق بهر ته راؤباسم چې هيڅوک به يې د مقابلې طاقت نه لري، تاسو مسلمانان راجمع کړئ او کوه طور ته ورسره لاړ شئ. عيسیٰ عليه السلام به هم دا شان اوکړي. او الله ﷻ به ياجوج ماجوج راخلاص کړي هغوئ به د زيات تلو په وجه دهرې لوړې نه رابنوئيدونکې بنکاري، ددوئ رومبۍ ډله به د بحيرۀ طبر نه تيريږي، ددې تولې او به به داسې په څکلو سره خلاصې کړي چې هغه به ليدونکو ته داسې بنکاري چې ګويا چې دغه ځاې کښې هډو اوبه نه وې.

عيسیٰ عليه السلام به سره دخپلو ملګرو په کوه طور باندې پناه واخلي او نور مسلمانان به په خپلو قلعه ګانو کښې او محفوظ ځايونو کښې پناه واخلي. د خوراك څکاك سامان به ورسره وي خو چې کم شي نود غوايه يو سر به خلقو ته دسلو دينارو څخه زيات غوره بنکاري، عيسیٰ عليه السلام او نور مسلمانان به د تکليف لرې کولو دپاره د الله ﷻ نه سوالونه اوکړي، الله ﷻ به يې دعاګانې قبولې کړي، په ياجوج ماجوج به د وباء په شکل کښې څه رنځ، بيماري راولي او

یاجوج ماجوج به ټول په ټوله په لږساعت کښې مړهٔ شی ، بیا به عیسی ﷺ سره دملګرو د کوه طور نه راکوز شی نو یو لیشت زمکه به هم د یاجوج ماجوج د کالبوتونو [نعشونو] نه خالی وی ، سخته بد بوئی به تری خوره شوی وی . بیا به عیسی ﷺ او ددوئ ملګری ددې مصیبت لرې کولو دپاره د الله ﷻ څخه دعا اوکړی ، الله ﷻ به غټ غټ مارغان راؤلیږی چې څټونه به یې لکه د اوښانو پشان وی ، څینې روایتونو کښې راځی چې سمندر کښې به یې وراورغوځوی . بیا به الله ﷻ باران اووروی ، هیڅ یو ښار او ځنګل به داسې نه وی چرته چې به باران نه وی شوې ، ټوله زمکه به اووینځلې شی او د شیشې پشان به صفا شی ، بیا به الله ﷻ زمکې ته حکم اوکړی چې د خپلې خیټې نه ګلونه او میوې راؤټوکوه ، اوبیا خپل برکتونه ښکاره کړه ، نو یو انار به د یوې ډلې د خوراك دپاره کافی کیږی ، او خلق به څان بان‍دې د سوری کولو دپاره ددې پوستکی . د چتری په څائې استعمالوی ، پئ به هم دومره برکتی شی چې دیوې اوښې پئ به د یو ډیر لوئې ډلې دپاره کافی کیږی او د یوې غوا پئ به د یوې قبیلې د ټولو خلقو دپاره کافی کیږی . دیوې چیلئ پئ به ټولې رورولئ دپاره کافی کیږی . دغه وخت به الله ﷻ یوه ښکلې هوا اوچلوی ، د هغې په وجه به د ټولو مسلمانانو د ترخونو لاندې یوه خاصه بیماری ښکاره شی چې ټول به دهغې نه وفات شی . صرف داسې ورانکاری کافران به په مخ د زمکې پاتې شی لکه د څناورو به ښه په ډاګه حرامکاری [زنا] کوی . په دغې خلقو به قیامت راشی ، . د حضرت عبد الرحمان بن یزید په روایت کښې د یاجوج ماجوج د قیصې زیات تفصیل داسې راغلې دې .

چې کله د بحیرهٔ طبریه نه پورې اووځی نو د بیت المقدس په غرباندې به یاجوج او ماجوج ور اوخیژی اووائی به چې مونږ په مخ د زمکې باندې ټول خلق وژولی دی ، ګوریږی اوس د آسمان مخلوق هم ختموؤ ، چنانچه خپل غشی به آسمان طرفته وروليی ، هغه به د الله ﷻ په حکم په وینو سرهٔ دوئ ته واپس راشی ، دا بې قوفه مخلوق به خوشحاله شی چې ګنی آسمانی مخلوق هم مونږ ختم کړو .

دغه شان ددجال په قبضه کښې د ابی سعید خدری ﷺ په روایت کښې دا اضافه هم شته چې دجال به د مدینې منورې نه لرې پاتې کیږی چې د مدینې منورې په لارو به یې راتلل هم ممکن نه وی ، هغه به مدینې منورې ته نزدې یوې ښوره زمکې ته راشی ، دغه وخت به یو سړې دجال ته راشی چې هغه به ددغې وخت زیات ښه سړې وی ، هغه به دجال ته داسې اووائی چې زما یقین دې چې ته هغه دجال یې د کوم چې راته رسول کریم ﷺ خبر راکړې وو . ددې په آؤریدو به اووائی چې ایې خلقو ! راته اووایې چې که زه دا سړې اووژنم او بیا یې ژوندې کړم نو زما په خدایې کښې به تاسو بیا شك کوئی؟ هغوئ به اووائی چې نه . نو دې به هغه سړې اووژنی او بیا به ئې راژوندې کړی ، هغه به دجال ته اووائی چې اوس مې ستا په دجالی باندې یقین زیات شو ، دې دجال به یې بیا د وژولو اراده کوی خو داسې به نشی کولې [صحیح مسلم] (۱)

په صحیح بخاری او مسلم کښې د ابی سعید خدری ﷺ څخه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د قیامت په ورځ به الله ﷻ آدم ﷺ ته فرمائی چې تاسو د خپل ذریت یعنی اولاد څینې بعث النار یعنی جهنمی خلق راپورته کړی ، هغوئ به عرض اوکړی چې اې ربه ! هغه

(۱) صحیح مسلم کتاب الفتن، باب ذکر الدجال [ج:۲ص:۴۰۰، ۴۰۲]

څوك دى ؟ نو حكم به اوشي ې په يو زر كښې يو كم زر جهنميان دى . صرف يو په كښي جنتي دي ، صحابه كرامو عرض اوكړو چې اې دالله رسوله! په مونږ كښې به هغه جنتي څوك وى ؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې غم مه كوئى ، څكه چې دا يو كم زر به په تاسو كښې يو ، او په ياجوج ماجوج كښې د زرو په نسبت وى[۱] اوپه مستدرك د حاكم كښې د عبد الله بن عمر رضي الله عنه په روايت كښې رسول كريم ﷺ فرمائيلى دى چې الله ﷻ ټول انسانان لس حصې اوګرځول په دوئ كښې نهه حصې د ياجوج ماجوج دى ، او په پاتې يوه حصه كښې د ټولې دنيا انسانان دى [روح المعانى][۲]

ابن كثير په البدايه والنهايه كښې ددې روايتونو د بيانولو نه پس ليكلى دى چې دې نه معلومه شوه چې د ياجوج ماجوج شمير د ټولې انسانى آبادى نه بې حده زيات دې .

په مسند احمد او ابوداؤد كښې په صحيح اسنادو سره د ابوهريره رضي الله عنه په روايت رسول كريم ﷺ فرمائيلى دى چې عيسى عليه السلام به د خپلو رانازليدو نه تر څلويښتو كالو پورې په زمكه باندې پاتې كيږى ،[۳] د مسلم په روايت كښې دغه زمانه اووه كاله ښودلې شوې ده ، خو حافظ په فتح البارى كښې دې ته مؤول يا مرجوح وئيلې دى اد څلويښت كاله زمانه يې صحيح ګرځولې ده ،[۴] اود احاديثو د تصريح په جوړ دغه ټوله زمانه د امن وامان او د بركتونو د ښكاره كيدو بللې ده ، ولې چې د انسانانو خپل مينځ كښې به هيڅ بغض او دښمنى بالكل نه وى ، دوه انسانان به خپل مينځ كښې جنګ يا دښمنى نه كوى . [مسلم و احمد][۵]

په حواله د بخارى رحمه الله د ابى سعيد خدرى رضي الله عنه په روايت كښې رسول كريم ﷺ فرمائيلى دى چې د بيت الله شريف حج او عمره به د ياجوج ماجوج د ښكاره كيدو نه پس هم جارى وى . [تفسير مظهرى][۶]

بخارى او مسلم د ام المؤمنين زينب بنت جحش رضي الله عنها څخه روايت كړې دې چې رسول كريم ﷺ [يوه ورځ] د خوب څخه رابيدار شو په داسې حالت كښې چې مخ مبارك يې سور كيدلو او خلې مباركې نه يې دا جملې راختلې :

[لا اله الا الله للعرب من شر قد اقترب فتح اليوم من ردم ياجوج ماجوج مثل هذه وحلق تسعين] [دالله ﷻ نه بغير بل هيڅوك د عبادت لائق نشته دې ، خرابى ده د عربو دپاره د هغې شر نه چې نزدې راغلې دې نن ورځ د ياجوج ماجوج په ردم يعنى ديوال كښې دومره سورې شوې دې او ګوتې مباركې يې د لس كم سلو په شمير غټه كړې قتې او مسواكې ګوتې يوځائې كولو نه يې كړئ [حلقه] جوړه كړه]

---

[۱] ) صحيح البخارى كتاب الأنبياء باب قصة ياج وماجوج [ج:۱ص:۴۷۲]و صحيح مسلم كتاب الإيمان، باب بيان كون هذه الأمة نصف أهل الجنة[ج:۱ص:۱۱۷، ۱۱۸]

[۲] ) روح المعانى تحت هذه الآية [ج: ۱۱ ص:۴۱۵] والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[۸۶۴۴] كتاب الفتن والملاحم باب واما حديث ابى عوانة

[۳] ) سنن ابوداود، كتاب الملاحم ، باب خروج الدجال [ج:۲ص:۵۹۳ ]و مسند احمد رقم الحديث:[۲۳۳۲۷]

[۴] ) تفصيل دپاره اوګورئ : فتح البارى ج:۱۰ص:۲۴۹، كتاب الأنبياء باب نزول عيسى ابن مريم.

[۵] ) صحيح مسلم كتاب الفتن، باب ذكر الدجال [ج:۲ص: ۴۰۳]

[۶] ) صحيح البخارى كتاب الماسك ،باب قول الله تعالى جعل الله الكعبة إلخ [ج:۱۰ص:۲۱۶]

ام المؤمنين رضي الله عنها فرمائيلي دی چې په دې ارشاد باندې مونږ عرض اوکړو چې يا رسول ﷺ ! آيا مونږ په داسې حال کښې هلاکيدې شو ، کله چې به په مونږ کښې نيکان خلق موجود وی ؟ نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې آو ، هلاکيدئ شئ ، کله چې خبث يعنی شر زيات شی ، هم داشان په صحيحينو کښې هم د ابوهريره رضي الله عنه څخه نقل دی لکه چې په بدايه والنهايه د ابن کثير کښې راغلی دی ،([1]) او د ياجوج ماجوج کښې د کړی دوؤ ګوتو مبارکو هومره سورې کيدل خپلې حقيقی معنی کښې هم کيدې شی ، او مجازی هم ، ذی القرنين د جوړ کړی بنديز د کمزوری کيدو په معنی کښې هم کيدې شی [ابن کثير ابوحيان]

مسند احمد ، ترمذی او ابن ماجه کښې دابوهريره رضي الله عنه په روايت نقل شوی دی چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې ياجوج ماجوج هره ورځ د ذی القرنين هغه بند کنی تر دې پورې چې کله يې دومره اوکنی چې دبلې غاړې رڼا په کښې ښکاره شی نو دوئ اووائی چې دا به صباله پوره کړو ، او دا به سورې کړو ، خو صبا چې راشی نو د الله ﷻ په حکم بيا هغه سورې مکمل بند شوې وی ، او ديوال بيا خپل اصلی حالت ته راغلې وی داسې به تر هغې وخت پورې کيږی چې الله ﷻ ته تر څو پورې د ياجوج ماجوج ايسارول منظور وی اوکله يې چې الله ﷻ دغه ځائې نه دخلاصولو اراده اوفرمائی نو آخری حده پورې کنستلو نه پس به وائی چې که الله ﷻ اوغوښتل نو صباله به ترې اووځو . دالله ﷻ د نوم په برکت به صباله دوئ دغه سورې مکمل آزاد کړی او په دغې لار به ترې راپورې اووځی .([2])

ترمذی دا روايت د ابوعوانه ، هغه د قتاده څخه ، هغه د ابورافع څخه ، هغه د ابوهريره رضي الله عنه څخه نقل کولو سره فرمائيلی دی چې [غريب لانعرفه الامن هذا الوجه]([3]) [يعنی دا حديث صرف په دې سند سره پيژنو] ابن کثير رحمه الله پخپل تفسير کښې ددې روايت د نقل کولو څخه وروستو فرمائيلی دی چې : د[اسناده جيد قوی ولکن فی رفعه نکارة]([4]) [ اسناد يې جيد او قوی دې ليکن د رسول کريم ﷺ نه ددې په مرفوع کولو کښې يا رسول کريم ﷺ ته يې په منسوب کولو کښې يو قسم اجنبيت معلوميږی]

او ابن کثير په البداية والنهاية کښې ددې حديث پاك باره کښې فرمائيلی دی چې که دا خبره صحيح اومنلې شی چې دا حديث پاك مرفوع نه دې بلکه د کعب احبار روايت دې ، نو بيا خو خبره صفا شوه چې دا څه اعتباری څيز نه دې اوکه دا روايت د رسول کريم ﷺ ارشاد اوګرځولې شی اود راوی وهم څخه محفوظ اوګرځولې شی نو بيا به ددې مطلب داوی چې ياجوج ماجوج د سد يعنی بند د کنستلو داعمل به هغه وخت شروع کيږی چې ددوئ د راوتلو وخت نزدې راشی ، او د قرآن پاك دا ارشاد چې په دې ديوال کښې سورې نشی کيدې ، داد هغه وخت حال دې چې کله د ذوالقرنين دا تعمير کړې وو ځکه څه تعارض او بې سمونی پاتې نشوه ، دارنګ وئيلې شی چې د نقب نه مراد د ديوال هغه کنداؤ او سورې دې چې پورې

[1] ) صحيح البخاری کتاب الفتن باب ياج وماجوج [ج:۲ص:۱۰۵۶] و صحيح مسلم کتاب الفتن واشراط الساعة [ج:۲ص: ۳۸۸]

[2] ) مسند احمد رقم الحديث:[۱۰۲۲۲]و سنن ابن ماجة، ابواب الفتن،باب فتنة الدجال إلخ [ج:۲ ص:۲۹۹ ]

[3] ) جامع الترمذی ابواب التفسير ، باب و من سورة الکهف ( بإختلاف يسير فی الألفاظ ) [ج: ۲ ص:۱۴۸]

[4] ) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية [ج: ۵ ص:۱۹۸]

راپورې اووځی ، او په دې روایت کښې دا خبره ښکاره شوې ده چې داسورې پورې راپورې نه اووځی [بداية ص/۱۲ ج/۲]

حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې داحدیث پاك د عبد بن حمید او د ابن حبان په حواله هم نقل کړې دې او فرمائیلی یې دی چې ددې ټولو روایت د قتاده رضي الله عنه څخه دې او په دې کښې د بعضو دسند ، رجال د صحیح بخاری دی ، او په دې یې هم څه شبه نه ده کړې چې دا حدیث پاك مرفوع دې ، او په حواله د ابن عربی یې بیان کړې چل په دې حدیث پاك کښې درې اهلی آیتونه ، یعنی معجزې دی ، اوله دا چې الله ﷻ ددوئ د ذهنونو مخه دې خوا راوانه ړوله چې شپه ورځ ، په مخه باندې د کنستو کار جاری اوساتی ګنی داسې لویې قوم دپاره څه مشکل وو چې دشپې ورځې خواری کول یې جدا جدا تاکلې وې ، دویمه دا چې ددوئ ذهنونه یې دې نه واړول چې دې باندې د پورته ختلو کوشش اوکړې او دې دپاره د آلاتو څخه مددواخلی ، څکه چې د وهب بن منبه د روایت څخه هم معلومیږی چې داخلق کرونده ګر او کاریګر دی ، د هر قسم آلاتو خاوندان دی ، ددوئ په زمکو کښې مختلف قسم ونې دی ، دوئ دپاره دا څه ګران نه وو چې دې ته د پورته ختلو ذریعې او وسیلې یې برابرې کړې وې ، دریمه دا چې توله موده ددوئ په ژړونو کښې دا خبره رانشی چې انشاء الله اووائی اودا کلمه به هغه وخت ددوئ په خله راځی کله چې ددوئ د راوتلو تاکلې وخت راشی .[1]

ابن عربی رحمه الله فرمائیلی دی چې ددې حدیث پاك څخه دا هم معلومیږی چې په یاجوج ماجوج کښې څه خلق داسې هم دی چې د الله ﷻ وجود او دهغه خوښه او اراده منی ، او دا هم کیدې شی چې بې د څه عقیدې نه ددوی په ژبه باندې الله ﷻ دا کلمه جاری کړی اودهغې په برکت سره یې کار روان شی. [اشراط الساعة د سید محمد ص/۱۵۴] خو ښکاره خبره داده چې دوئ ته هم د پیغمبرانو علیهم السلام بلنه رسیدلې ده ګنی د قرآنی نص تر مخه دوئ لره دجهنم عذاب ورکول به نه وو لکه قران کریم فرمائی چې [وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا ] [2] معلومه شوه چې د ایمان بلنه دوئ ته هم رسیدلې ده خو دوئ په کفر باندې کلك وو ، پدوئ کښې به څینې خلق داسې هم وو چې دالله ﷻ د شته والی او دهغه د ارادې او خوښې منونکی به وو ، اګر چې صرف دومره عقیده ، ایمان دپاره کافی نه ده ، تر څو چې په پیغمبرئ او آخرت باندې ایمان نه وی ، په هر حال د انشاء الله کلمه وئیل د کفر څخه هم لرې خبره نه ده .

**هغه نتائج کوم چې د احادیثو او روایاتو څخه حاصل شوې دی** :: په بیان شوؤ احادیثو کښې د یاجوج ماجوج په باره کښې چې کومې خبرې درسول کریم ﷺ دبیان څخه ثابتې شوې د هغې بیان دا دې: ① یاجوج ماجوج د عامو انسانانو پشان انسانان دی چې د نوح عليه السلام په اولاد کښې دی، جمهور محدثینو اوتاریخ دانانو دوئ لره د یافث بن نوح عليه السلام په اولاد کښې بولی او داهم ښکاره ده چې د یافث بن نوح عليه السلام اولاد د نوح عليه السلام د زمانې نه د ذی القرنین تر زمانې پورې تر لرې لرې په مختلفو قبیلو ، مختلفو قومونو او مختلفو آبادیانو کښې خور شوې وو ، کوم قومونه چې یاجوج ماجوج بللې شی ضروری نه ده چې هغه ټول په توله ذی القرنین د دیوال نه اخوا ګیر

[1]) فتح الباری کتاب الفتن باب ماجوج وماجوج [ج: ۲۰ص:۱۴۸]

[2]) ترجمه:-او مونږ سزا نه ورکوؤ تر کومې چې یو رسول اونه لیږو.

پاتې شوي وي، دهغې څه قبلې اوقومونه د ذی القرنین د دیوال څخه دې غاړې ته هم پاتې وي، البته په دوئ کښې هغه کسان دديوال نه اخواګير کړې شو کوم چې فساديان او د خلقو وژونکي وو. تاريخ دانان دغې خلقو ته عام طور ترك، مغل يا منګول وائي خو په دوئ کښې ياجوج ماجوج صرف دهغې خلقو نوم دې چې ځنګليان ، بې سرې توبه ، او وينې څکونې ظالمان خلق دی ، کوم چې د انساني ژوند تيرولو عادت نه شو ، هم ددغې برادرۍ مغل ، ترك يا منګوليان چې د انساني ژوند تيرولو عادت شو هغوئ ددغې نوم څخه خارج دی .

۲ د حديث نمبر ۲ په حواله د ياجوج ماجوج شمير د دنيا د ټولو انسانانو د شمير څخه څو چنده زيات دې ، کم نا کم لس چنده د انسانانو نه زيات دی .

۳ د حديث نمبر ۱ په حواله د ياجوج ماجوج کوم قومونه او قبيلې چې د سد ذی القرنين نه اخوا ګير او بند ساتلې شوي دی ، هغوئ به بالکل قيامت نزدې پورې هلته وی ، د مهدی ﷺ د د راتلو ، د دجال د راوتلو او د عيسی ﷺ د نازليدو نه پس کله چې هغوئ ﷺ دجال اووژنی نو بيا به ياجوج ماجوج راوځی .

۴ د ياجوج ماجوج د راخلاصيدو په وخت به د ذی القرنين جوړ کړې شوې بند او ديوال تباه شي ا وزمکې سره بهٔ زمکه شي ،لکه قرآن کريم فرمائي چې [جَعَلَهُ دَكَّآءَ] دغه وخت به د ياجوج ماجوج بې پناه قومونه په يو وخت د غرونو سرونو څخه په داسې تيزۍ سره راکوزيږی او خلقو ته به داسې ښکاری چې ګويا دوئ په خويه زمکه راروان دی ، دغه بې شميره وحشي انسانان به په عامه انساني آباديانو او په ټوله زمکه داسې ورخوارهٔ شي چې څوك به يې د مقابلې دپاره طاقت نشي لرلې ، دغه وخت به عيسی ﷺ سره دخپلو ملګرو په کوه طور باندې پناه واخلي ، د نورې دنيا عام خلق به په قلعه ګانو کښې يا محفوظ ځايونو کښې پناه واخلي چرته چې دغسې ځايونه دی ، چې د خوراك څکاك سامان دغې خلقو سره ختم شي نو دژوند ضروريات به ډير زيات ګران شي نورې ټولې انساناني آبادۍ به دغه وحشي قومونه ختم کړی او دريابونه به هم په څکلو سره اوچ کړی [بحواله حديث نمبر ۱]

۵ حديث نمبر ۱: په حواله دحديث نمبر ۱ د عيسی ﷺ اودوئ د ملګرو په دعا سره به د مولخانو پشان دغه بې شميره قومونه په يو وخت هلاك کړې شي ، د هغوئ مرو څخه به ټوله زمکه ډکه شي، دهغوئ د بدبوئی نه به په زمکه باندې د انسانانو اوسيدل ډير زيات ګران شي

۶ حديث نمبر ۱: دحديث نمبر ۱ په حواله د عيسی ﷺ او دهغوئ د ملګرو په دعاسره به دغه مړی په سمندر کښې لاهو ياغائب کړې شي ، او په دنيا کښې به ښه زيات باران اوشي چې ټوله زمکه بهٔ اووينځي او صفا به شي .

۷ دې څخه وروستو به تقريبا څلويښت کاله د امن دور وی ، زمکه به خپل برکتونه رابرسيره کړی ، هيڅوك به غريب او محتاج پاتې نشي ، هيڅ څوك به بل ته څه تکليف نه ورکوی سکون ،آرم او راحت به عام شي [بحواله حديث نمبر ۳]

۸ حديث نمبر ۴: دحديث نمبر ۴ په حواله بهٔ دامن په زمانه کښې د بيت الله شريف حج او عمره جاری پاتې کيږی .

⑨ په مسلم کښې د ابوهریره ﷺ د نقل شوی روایت مطابق به عیسی ﷺ دحج یا عمرې په غرض د حجاز په سفر تشریف اوړې وی او څنګه چې د نورو روایتونو د حدیث څخه ثابته ده، هغوئ به بیا په مدینه منوره کښې وفات شی ، او په روضهٔ اقدس کښې به دفن کړې شی.

⑩ رسول کریم ﷺ ته د هغوئ په آخره زمانه کښې د وحی په ذریعه خوب کښې اوښودلې شو چې په سد ذی القرنین کښې یو سورې شوې دې چې هغې لره یې عربو دپاره دشر او فتنې زمانه نخښه اوګرځوله په دغه دیوال کښې دسورې کیدل ځینې محدثینو هم په حقیقت باندې محمول کړی دی او ځینوې ترې د استعارې او مجاز په حیثیت دا مطلب اخستې دی چې اوس سدی ذی القرنین کمزورې شوې دې د یاجوج ماجوج د راوتلو وخت نزدې شوې دې ، دهغې نخښې به دا وی چې عرب قوم بهٔ دتنزل او کمزورۍ په طرف روان وی ، والله اعلم.

⑪ د عیسی ﷺ د نازلیدو څخه وروستو به په زمکه باندې هغوئ څلویښت کاله ایسار وی.

**حدیث نمبر ۳** . دې څخه مخکښې د مهدی ﷺ زمانه به هم څلویښت کاله وی په څه زمانه کښې به دا دواړه په یو ځائې او په جمع سره شریك کار کوی ، سید شریف برزنجی په خپل کتاب اشراط الساعة ص/۱۴۵ کښې لیکلی دی چې عیسی ﷺ به د د جال د وژلو اود امن قائمیدو څخه وروستو نور هم ژوندې وی چې ټول دغه ایساریدل به یې پنځه څلویښت کاله جوړیږی او په صفحه ۱۱۲ کښې یې لیکلی دی چې مهدی ﷺ به د عیسی ﷺ نه څه دپاسه دیرش کاله مخکښې ځرګندیږی او ټوله زمانه د ایساریدو به یې څلویښت کاله جوړیږی ، په دې شان ددې دواړو یوځائ کار کول به پنځه یااووهٔ کاله وی ، ددغې دواړو زمانو خصوصیت به داوی چې په ټوله زمکه به د عدل او انصاف حکومت وی ، زمکه به خپل برکتونه او خزانې رابرسیره کړی ، هیڅوك به فقیر او حاجت مند پاتې نشی ، دخلقو مینځ کښې به بالکل بغض او دښمنی نه وی ، البته د مهدی ﷺ په آخری زمانه کښې به د لوې دجال لویه فتنه سوا د مکې او مدینې او بیت المقدس او کوه طور څخه په ټوله دنیا کښې خوره شی د دجال قیام او فساد به صرف څلویښت ورځې وی ، رومبۍ ورځ به د یو کال ، دویمه د یوې میاشتې ، دریمه د یوې هفتې په شان هومره پاتې وی او پاتې نورې ورځې به دعامو ورځو پشان وی .دغې اوږدوالی شان به دا وی چې په حقیقت کښې به دغه ورځې اوږدولې شی ولې چې په آخرزمانه کښې به تقریبا ټول واقعات د عادت نه خلاف او معجزې وی او داسې هم کیدې شی چې شپه او ورځ خو په د خپل معمول مطابق وی خو دا د حدیث څخه ثابته ده چې دجال به لوئې ساحر او جادو وی په دې وجه کیدې شی چې د هغه د سحر د اثر د وجې به دعام مخلوق په نظر کښې د شپې او ورځې دا بدلیدل نه ښکاره کیږی هغوی به دا هم یوه ورځ وینی اوګنړی په حدیث کښې چې راغلی دی چې په دغه ورځ به د عامو ورځو اندازه لګوی اومونځونه به کوی په دې سره هم د دې تائید کیږی چې په حقیقت کښې به د شپو ورځو بدلیدل واقع کیږی البته خلقو ته به ددې بدلیدل نه محسوسیږی که داسې نه وې بلکه حقیقت کښې هم یوه ورځ وې نو دشرعی قاعدو مطابق په دې کښې به صرف پنځه مونځونه کل راتلل او د کال مونځونه کول به په کښې نه راتلل ، خلاصه داده چې د دجال ټوله زمانه به په دې شان څلویښت ورځې وی.

دې پسې بهٔ عیسی ﷺ نازل شی او دجال به اوو ژنی ، او په دې شان به دا فتنه ختمه شی ، خو زر تر زره به وروسې یاجوج ماجوج راوځی چې ټوله دنیا کښې به فساد ، قتل او لوټ مار شروع

کړي ، خو ددوئ زمانه به هم ځو ورځې وي بیا به د عیسی ﷺ د ملګرو په دعا سره په یو وخت ټول هلاك کړي .
غرض دا چې د مهدی ﷺ د زمانې په آخره کښې او د عیسی ﷺ د زمانې په شروع کښې به دغه فتنې د دجال او یاجوج ماجوج وی ، چې د ټولې زمکې خلق به منتشر کړی ، ددغې څو ورځو د فتنې نه مخکښې او وروستو به په ټوله دنیا کښې د عدل او انصاف او امن او آرام زمانه وی ، د عیسی ﷺ په زمانه کښې به د اسلام څخه سوا بل څه کلمه او مذهب په زمکه باندې پاتې نشی ، زمکه به خپلې خزانې رابهر کړی ، هیڅوك به په دنیا کښې حاجت مند او فقیر پاتې نشی . درندګان اوزهر جن ځناور به هم چاته تکلیف نه ورکوی .
د یاجوج ماجوج د سد ذی القرنین په باره کښې دا هغه معلومات دی چې قرآن پاك او احادیثو کښې راغلی دی ، په دې باندې عقیده لرل ضروری او مخالفت یې کول جائز نه دی ،باقی پاتې جغرافیائی یا تاریخی بحث کول چې سد ذو القرنین په کوم ځائې کښې واقع دې او قوم د یاجوج ماجوج کوم یو قوم دې او په دې وخت کښې هغوی په کوم ځائې کښې اوسیږی اګرچې په دې باندې نه خو څو اسلامی عقیده موقوف ده او نه د قرآن د څه آیت مطلب باندې پوهیدل په دې باندې موقوف دی خو د مخالفینود اعتراضونو جواب اود نور بصیرت دپاره دامت عالمانو د دې بحث چیړلې دې د دې څه حصه نقل کولې شی.
امام قرطبی رحمه الله پخپل تفسیر کښې د سدی په حواله نقل کړی دی چې د یاجوج ماجوج یوویشت قبیلې د ذی القرنین د دیوال څخه هغه بل طرفته دې سره ایسار کړې شو ، یوه قبیله ترې صرف دې طرفته پاتې شوه ، وریسې قرطبی رحمه الله فرمائیلی دی چې د ترکو په باره کښې د رسول کریم ﷺ کړې خبرې یاجوج ماجوج سره ملاویږی ، او په آخری زمانه کښې د مسلمانانو سره ددوئ جنګ راتلل د صحیح مسلم په حدیث پاك کښې دی ، بیا یې فرمائیلی دی چې په دې زمانه کښې د ترکو زیات ګڼړ شمیر خلق دمسلمانانو مقابلې ته راوتلی دی چې صحیح شمیر یې یوازې الله ﷻ ته معلوم دې ، هم هغه یې ددوئ د شر څخه خلاصولې شی ، داسې ښکاری چې یا خو پخپله هم دوئ یاجوج ماجوج دی یا کم از کم ددوئ پیشرو دی کنه [قرطبی ص/۵۸ ، ج/۱۱]
د امام قرطبی رحمه الله زمانه شپږمې صدئ هجری ده په کومه کښې چې د تاتاریانو فتنه پیدا شوې وه ، او اسلامی خلافت یې تباه وبرباد کړې وو ، په تاریخ اسلام کښې دافتنه مشهوره اولویه فتنه ده او داشان مشهوره ده چې تاتاریان د مغول ترکو دنسل څه دی ، خو امام قرطبی رحمه الله دوئ لره د یاجوج ماجوج پشان او دهغوئ پیشرو بللی دی ، ددوئ فتنه یې د یاجوج ماجوج دراتلو فتنه نه ده ښودلې ، کومه چې د قیامت لویه نخښنه ده ، ځکه چې د صحیح مسلم په تیر شوی حدیث پاك کښې دا په ښکاره بیان شوی دی چې ددوئ راوتل به د عیسی ﷺ د نازلیدو څخه وروستو هم ددوئ ﷺ په زمانه کښې وی .
هم دغه وجه ده چې علامه آلوسی رحمه الله پخپل تفسیر روح المعانی کښې په هغه خلقو باندې سخت رد کړې دی کومو چې تاتاریانو ته یاجوج ماجوج وئیلی دی بلکه داسې یې فرمائیلی دی چې داسې خیال کول ښکاره ګمراهی ده اوحدیث پاك د نصونو مخالفت کول دی، البته دوئ هم فرمائیلی دی چې د تاتاریانو فتنه د یاجوج ماجوج د فتنې پشان ضرورده [روح ص/۴۴، ج/۱٦]

دې څخه ثابته شوه چې د موجوده زمانې ځينې تاريخ دانان روس يا چين دواړو خلقو ته ياجوج ماجوج وائي نو دا څکه غلطه خبره او ګمراهي او ښکاره دحديثونو څخه صفا انکار دې چې د ياجوج ماجوج خبر ، قرآن وحديث کښې دقيامت د يو داسې نخښې په ډول بيان شوې دې چې دوئ به د حضرت عيسى ﷺ د نازليدو نه پس راوځي. البته د روسيانو او چينيانو فتنه د ياجوج ماجوج پشان ګرځول به څه غلط نه وي.

د اووم اقليم په نهمه حصه کښې مغرب طرفته د ترکو هغه قبيلې هم شته دي چې قنجاق او چرکس ورته وائي ، او ومشرق طرفته د ياجوج ماجوج آباديانې دي چې ددې دواړو مينځ کښې کوه قاف د بيلتون کولو کار ورکوي د کوم بيان چې اوس اوس په دې کتاب کښې داسې شوېدې چې هغه د بحر محيط څخه شروع کيږي کوم چې د څلورم اقليم مشرق کښې واقع دې، او دې سره د قطب طرفته د اقليم تر آخره پورې رسيدلې دې ، بيا د بحر محيط څخه په جدا کيدو دقطبي مغرب په خواکښې د مغرب طرفته کوږشوې دسموئيل څخه قطبي مغرب طرفته تلې دې ، او د غر ددې لړئي په مينځ کښې سدسکندري واقع دې چې د اووم اقليم د نهمې حصې په مينځ کښې رازې د کوم بيان چې مونږ هم اوس اوکړو ، او قرآن کريم يې هم خبره کړې ده.

او عبدالله ، خردازيه په خپل کتاب د جغرافې کښې د عباسي خليفه واثق بالله هغه خوب نقل کړې دې په کوم کښې چې هغه د سد سکندري پرانستل ليدلى وو ، هغه زر راويښ شو او د حال معلومات دپاره يې د سلام ترجمان اوليږلو ، هغه په واپسۍ کښې ددغې سد حالات او صفتونه بيان کړې ، [مقدمه ابن خلدون ص/۷۹]

د عباسي خليفه واثق بالله د سد ذى القرنين د تحقيق باره کښې د يو ډلې ليږلې د تحقيق کولو نه پس د هغې راتلل ، ابن کثير ﷫ هم په البداية والنهاية کښې بيان کړې دى ، او د ايې بيان کړې دى چې دغه ديوال د اوسپنې جوړ دې ، پدې کښې لوې لوې دروازې هم شته چې ورته جندرې لګيدلى دى ، اودا شمال مشرق طرفته واقع دې ، او تفسير کبير او طبري چې دا واقعه بيان کړه نو داسې يې هم ورسره ليکلى دى چې څوک ددې ديوال معائنه اوکړي او واپس ترې راتلل غواړي نو لار ښودونکى يې داسې صحرائى ميدانونو ته اورسوي چې د سمر قند په برابرئ کښې دى [تفسير کبير ج/۵ص/۵۱۳]

حضرت الاستاذ حجة الاسلام سيدي مولانا انور شاه کشميري قدس سره ﷫ په خپل کتاب عقيدة الاسلام فى حياة عيسى ﷺ کښې اګر چې د ياجوج ماجوج او سد ذى القرنين حال په ضمنى ډول بيان کړې دې خو دغه بيان يې د تحقيق او روايت په اعلى پيمانه باندې پوره دې ، هغوئ ليکلى دى چې د فساديانو او ځنګلي انسانانو د لوټ مار او وژلو نه د بچ کولو دپاره په زمکه باندې ډير سدونه جوړ کړې شوي دى کوم چې مختلفو بادشاهانو ، په مختلفو زمانو کښې په مختلفو مقاماتو باندې جوړ کړى دى ، په دې لار کښې د ټولو څخه زيات لوې او زيات مشهور د چين ديوال دې چې ابوحيان اندلسى ﷫ ددې اوږدوالې دولس سوه ميله خودلې دې اودائې خودلى دى چې ددې جوړونکې د چين بادشاه فغفور دې او دائې هم خودلى دى چې ددې د جوړولو تاريخ د آدم ﷺ د راکوزيدو څخه درې زره څلور سوه او شپته [۳۴۶۰] پس دې ، او دې ته مغل خلق اتکووه د ترکو خلق بورقوقه ، وائي ، اوفرمائيلى يې

دي چې داشان نور هم ګڼې ديوالونه او سدونه په مختلفو مقاماتو باندې موندې شي.
زمونږ خواجه مولانا حفظ الرحمن سيوهاروري پخپل كتاب قصص القرآن كښې د حضرت شيخ ددې بيان تاريخي وضاحت په ډير تفصيل او تحقيق سره ليكلې دې چې خلاصه يې داده:
دياجوج ماجوج لوټ مار او دشر فساد دائره دومره لويه وه چې يو طرفته د كاكيشيا څخه ښكته اوسيدونكي دهغوئ د زور او ظلم څخه تنګ وو اوبل طرفته د تبت او چين خلق به هم هر وخت دهغوئ نه ډير تنګ وو ، هم ددغې ياجوج ماجوج د شراو فساد د بچ كيدو دپاره په مختلفو زمانو كښې په مختلفو مقاماتو باندې ګڼ بندونه جوړ كړې شوي دي ، پدې كښې د ټولو څخه لويې بند د چين ديوال دې چې بيان يې اوس اوشو.
بل دويم سد په وسط ايشيا كښې بخارا كښې او ترمذ ته نزدې واقع دې ، چې د هغې د واقع كيدو ځائې نوم دربند دې ، دا بند د مشهور مغل بادشاه تيمور لنګ په زمانه كښې موجود وو او د روم د بادشاه خاص درباري سيلا برجر جرمنى هم ددې بيان پخپل كتاب كښې كړې دې او د اندلس د بادشاه د كستيل ريبار كلا فچوي هم پخپلې سفرنامه كښې ددې ذكر كړې دې ، دې په كال ۱۴۰۳ كښې چې د خپل بادشاه د سفير په ډول د تيمور په خدمت كښې حاضر شو نو هغه په دې ځائې تير شوې وو ، هغه ليكي چې:
د باب الحديد سد د موصل په هغه لار كښې دې چې د سمرقند او هندوستان مينځ كښې دې [تفسير جواهر القرآن طنطاوي ، جلد/۹ ص/۱۹۸]
دريم د روس په علاقه داغستان كښې واقع دې ، دا هم د دربند او باب الابواب ، په نوم سره مشهور دې ، ياقوت حموي په معجم البلدان كښې ادريسي په جغرافيه كښې او بستاني په دائرة المعارف كښې ددې حالات په ډير مشكل سره ليكلي دي د هغې خلاصه داده:
په داغستان كښې دربند يو روسي ښار دې او دا ښار د بحر خزر [كاسپين] په مغرب طرفته دې ، ددې عرض البلد ۳- ۴۳ قطبي طرفته او طول البلد ۱۵-۴۸ مشرق طرفته دې ، او دې ته د انوشيروان دربند هم وئيلې شي ، او د باب الابواب په نوم زيات مشهور دې.
څلورم سد هم ددې باب الابواب نه مغرب طرفته ته دكاكيشيا په ډيرو اوچتو حصو كښې دې ، كوم ځايې كښې چې د دوؤ غرونو په مينځ كښې يوه دره ده چې د دره داريال په نوم مشهوره ده ، په دې ځائې كښې د اڅلورم سد چې دې ته د قفقاز يا جبل قوقا يا دكوه قاف سد وئيلې كيږي ، بستاني ددې متعلق ليكلي دي چې:
او هم دې [سد باب الابواب] ته نزدې يو بل سد دې ، چې د مغرب طرفته تللې دې ، غالبا چې دا به اهل فارس د شمالي بربرانو څخه د حفاظت دپاره جوړ كړې وي ، څكه چې ددې د باني صحيح حال معلوم نشو ، څينو ددې نسبت سكندر ته كړې دې ، او څينو كسرى او نوشيروان طرفته ، او ياقوت وائي چې تانبه ويلې كړې شوې ده او ددې تعمير كړې شوې دې ، [دائرة المعارف جلد-۷، ص-۶۵۱ ، معجم البلدان جلد-۸ ص-۹]
دا ټول ديوالونه هم په شمال كښې دي ، او تقريبا هم د يو ضرورت دپاره جوړ شوي دي ، نو په دې كښې سد ذوالقرنين كوم يو دې ، ددې په متعين كولو كښې اشكال واقع كيږي ، او ټولو څخه لوې اختلاط ددې دوارو سدونو په معامله كښې راپيښ شوې دې ، څكه چې د دوارو مقاماتو نوم دربند دې ، او دوارو ځايونو د سد هم موجود دي ، مذكور الصدر څلورو سدونو

کښي چې دیوار چین د ټولو څخه زیات لوی او قدیم دی ، ددې مطابق د ذوالقرنین خو هډو څوك قائل هم نه دی ، او دا خو د شمال په څائې په مشرق اقصی کښې دی ، او قرآن کریم اشاره کړې ده چې دا په شمال کښې دی .

اوس معامله د دریو دیوالونو پاتې شوه ، چې هم په شمال کښې دی . په دې باندې عام طور سره مؤرخین مسعودی ، اصطخری ، حموی وغیره دې دیوال ته سد ذوالقرنین وائی . اودا داغستان یا د کاکیشیا په علاقه دباب الابواب په دربند کښې په بحرخزر باندې واقع ده ، د بخارا او ترمذی دربند ته چې کومو مؤرخینو سد ذالقرنین وئیلی دی هغه غالبا لفظ د دربند د اشتراك په وجه سره په دې کښې اختلاط شوې دې ، اوس تقریبا ددې محل وقوع متعین شوې دې چې د علاقه داغستان کاکیشیا په دربند باب الابواب کښې یا ددې څخه هم پورته په جبل قفقاز یا کوه قاف باندې اوچته علاقه ده ، او په دې دواړو ځایونو کښې د سد کیدل د مؤرخینو په نزد ثابت دی .

په دې دواړو کښې حضرت الاستاذ مولانا سید انور شاه کشمیری رحمه الله قدس سره په عقیدة الاسلام کښې دکوه قاف قفقاز سد ته ترجیح ورکړې ده چې دا سد ذوالقرنین جوړ کړې وو [عقیدة الاسلام ص/۲۹۷]

**سد ذوالقرنین تر دې وخته پورې موجود دې؟ او که ترقیامته پورې به وي؟ . یا که هغه مات شوې دې** :: ننني دور کښې د یورپ د تاریخ او جغرافیه ماهرین دا خبره نه مني چې په دې وخت کښې شمالی دیوار کښې څوك موجود هم شته . اونه دا مني چې کنې اوس هم د یاجوج وماجوج لاره بند ده . په دې وجه ځینې اهل اسلام مؤرخینو هم دا وئیل شروع کړی دی چې د یاجوج وماجوج راوتلو وخت کوم چې په قرآن پاك کښې ذکر دې هغه شوې دې ، ځینو په شپږمې صدئی هجری کښې چې کوم طوفان د تاتار قوم په وجه راالوتې وو د هغې مصداق دوی ګرځولی دی.

ځینو خو تر دې پورې وئیلی دی چې دا یاجوج وماجوج قوم روس ، چین او اهل یورپ دی ، او دې سره یې دا معامله ختمه کړې ده ، مګر پورته د روح المعانی حوالې سره بیان شوی دی چې دابالکل غلط دی ، د صحیح احادیثو د انکار څخه بغیرهیڅوك دا نشی وئیلې چې د یاجوج وماجوج کوم خروج ته چې قرآن پاك د قیامت نخښه وئیلې ده ، او د کومې متعلق چې د صحیح مسلم حدیث نواس بن سمعان وغیره کښې دې په هغې کښې ددې تصریح شوې ده چې دا واقعه د دجال د خروج او د عیسی علیه السلام د راکوزیدو او د دجال قتل نه پس ده چې راپیښیږی به هغه تیره شویده، څکه چې خروج د دجال اودعیسی علیه السلام راکوزیدل تراوسه پورې نه دی شوی.

دحضرت الاستاذ حجة الاسلام علامه کشمیری رحمه الله تحقیق دې باره کښې دادې چې د اهل یورپ داوینا هډو څه حیثیت نه لری چې مونږ ټولـه دنیا تلاش کړه ،مونږ ته ددې دیوال معلومات نشته دې ، څکه چې اول خو پخپله ددې خلقو دا تصریحات موجود دی چې سیاحت او تحقیق کښې د ډیرې ترقی باوجود نن هم ډیر داسې ځنګلونه او دریابونه او جزیرې شته دې چې دهغې مونږ ته علم نشته دې . دا هم د احتمال څخه څه لرې خبره نه ده چې اوس هم هغه دیوال موجود دې خو د غرونو غورزیدو او خپلو یو بل سره د ملاویدو په وجه ددې څخه یو غر جوړ شوې وی ، لیکن قطعی نص ددې خلاف نشته دې چې د قیامت څخه وړاندې دا سد مات شی ، یا څه په بله لرې لار باندې یاجوج اوماجوج دې طرفته راشی .

په دې سد ذوالقرنين باندې تر قيامته پورې د باقي پاتې كيدو خو د تولو څخه لوې دليل د قرآن دا الفاظ دی چې [فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّى جَعَلَهُۥ دَكَّآءَ] يعنى د ذوالقرنين دا قول چې كله زما د رب وعده راشي [يعنى د ياجوج ماجوج د راوتلووخت راشي] نو الله ﷻ به دا ديوال ذره ذره كړى او زمكې سره به يې برابر كړى . دې آيت مبارك كښې د [وَعْدُ رَبِّى] مفهوم لره دې حضراتو قيامت گرځولې دې ، حالانكه د قرآن پاك الفاظ دې باره كښې بالكل قطعى نه دی ، ځكه چې د [وَعْدُ رَبِّى] واضح مفهوم دادې چې د ياجوج وماج د بندساتلو دپاره چې كومه لار ذوالقرنين بنده كړې ده ، داځه ضرورى نه دی چې هميشه به داشان وی ، كله چې الله ﷻ اوغواړی نو ددوئ لاره به خلاصه كړی او دا ديوال به اوغورزيږی ، ددې دپاره دا ضرورى نه دی چې دا دې گنی قيامت ته نزدې وی ، چنانچه مفسرينو د [وَعْدُ رَبِّى] مفهوم كښې دواړه احتمالونه ذكر كړی دی ، تفسير بحر محيط كښې دی چې [والوعد يحتمل ان يراد به يوم القيامة وان يراد به وقت خروج ياجوج وماجوج] (١)

ددې تحقيق داهم كيدې شي چې ديوال وران شوې وی او لاره خالي شوی وی ، او د ياجوج وماجوج د حملو آغاز شوې وی ، كه دا آغاز د شپږمې صدمئ د تاتارى فتنې څخه اوگڼلې شي يا د اهل يورپ او روس او چين په غلبې سره ، خو ښكاره خبره دا ده چې ددې سرمايه دارو ملكونو خروج او فساد ته هغه فساد نه شي وئيلې ځكه دا د آئين اوقانون په دائره كښې كيږی . او ددې باره كښې خو قرآن اوحديث كښې ذكر دی چې دا قتل او فساد به داشان وی چې دې سره ټوله انسانى آبادی تباه شي ، بلكه بيا به ددې حاصل داشي چې ددې مفسدو يعنى ياجوج اوماجوج څه قومونه سرمايه دارجوړشو ، اسلامى ملكونو دپاره بيشكه دا يوه عظيمه فتنه ده ، اوس هم ددوئ حيوانانى قومونه د قتل و فساد څخه سوا بل څه نه پيژنى ، هغوئ تقديرى طور سره دې طرفته رانغلل ، اوددوئ گنړ شمير به قيامت ته نزدې راښكاره شي .

دويم استدلال د ترمذى او مسند احمد ددې حديث څخه كيږی چې كوم كښې دا ذكر شوی دی چې ياجوج او ماجوج روزانه دا ديوال راكنى ، اول خو ابن كثير دې حديث پاك ته معلول وئيلی دی ، بله په دې كښې څه داسې وضاحت نشته دې چې په كومه ورځ به ياجوج اوماجوج دانشاء الله په بركت سره دا كنى نو دابه قيامت ته نزدې زمانه وی . او ددې هم په دې حديث پاك كښې څه دليل نشته دې چې ټول ياجوج ماجوج به ددې ديوال شاته ولاړ وی ، كه ددوئ څه جماعتونه يا قومونه په بله لرې لاره باندې دې طرفته راشي ، لكه څنگه چې نن سبا دطاقتور بحرى جهازونو په ذريعه داشان كيدل څه لرې نه دی ، او ځينو مؤرخينو ليكلى دی چې ياجوج ماجوج ته د اوږد بحرى سفر كولو څخه پس دې طرفته د راتلو لاره ملاؤ شوه . نو پدې حديث پاك كښې ددې هم څه نفى نشته دې .

خلاصه داده چې قرآن اوسنت كښې څه داسې صريح او قطعى دليل نشته دې چې دهغې څخه دا ثابت وی چې سد ذوالقرنين به قيامت پورې باقي وی . يا ددوئ ابتدائى او معمولى حملې به د قيامت څخه مخكښې ددې طرف په انسانانو باندې نه وی . البته هغه خطرناكه او خرابه حمله چې هغې سره به پوره انسانى آبادی تباه شي ، ددې وخت به بالكل قيامت ته نزدې وی . د

(١) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج: ٧ص:٤٩٤] ترجمه:-د وعدې نه د قيامت ورځ هم مراد اخستې شي، او د ياجوج وماجوج د راوتلو وخت هم مراد اخستې شي.

كومې ذكر چې بار بار راغلې دې ، حاصل دادې چې د قرآن او سنت د نصوصو په بناء باندې قطعي فيصله نشي كولې چې سد ياجوج وماجوج مات شوې دې ، او لاره خالي شوې ده ، او نه دا وئيلې شي چې د قرآن او سنت ترمخه ددې تر قيامته پورې قائم پاتې كيدل ضروري دي ، احتمال دواړو كنبې دې ، والله سبحانه و تعالى اعلم ،

| |
|---|
| وَعْدُ رَبِّيْ حَقًّا ⑱ وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَّمُوْجُ |
| وعده د رب زما ا حقه ا او پرې به ږدو مونږ ا بعضې دهغوئ نه ا په دغه ورځ ا چه دسمندر دڅپو پشان به ننوځي |
| او زما د رب وعده [د قيامت] رشتينې ده \| او مونږ به هغه ورځ هغوی د يو بل سره ګډوډ كړو |
| فِيْ بَعْضٍ وَّنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَجَمَعْنٰهُمْ |
| په بعضې نورو كنبې ا او پوكې به اووهلې شي ا په شپيلئ كنبې ا نو راجمع به كړو مونږ هغوئ لره ا |
| او [په دغه ورځ به] په شپيلئ كنبې پوک وهلې شي نو مونږ به [دوی ټول] په جمع كولو سره راجمع كړو |
| جَمْعًا ۙ⑲ وَّعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِّلْكٰفِرِيْنَ عَرْضًا ۙ⑳ الَّذِيْنَ |
| ټول او مخې ته به راولو مونږ ا دوزخ ا په دغه ورځ ا دپاره دكافرانو ا په وړاندې كولو سره ا هغه كافران |
| ....... او مونږ به د قيامت په ورځ جهنم كافرانو ته مخامخ كړو \| هغه كافران [چه په دنيا كنبې] |
| كَانَتْ اَعْيُنُهُمْ فِيْ غِطَاۗءٍ عَنْ ذِكْرِيْ وَكَانُوْا لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ |
| چه وې ا سترګې دهغوئ ا په پرده كنبې ا دياد زمانه ا اووو هغوئ ا چه طاقت ئې نه لرلو ا |
| دهغوی سترګې زما د ياد [توحيد] نه په پرده كنبې وې \| او د [خپلو ګناهونو په وجه ئې] د اورېدو طاقت |
| سَمْعًا ﴿٢١﴾ |
| داودريدو ا |
| نه لرلو [ځكه چه اورېدو استعداد ئې تباه كړې وو] |

## آسان ترجمه قرآن

او په هغه ورځ به مونږ دهغوی داسې حالت كړو چه هغوی به د څپو په شان يو بل سره جنګيږی او شپیلئ به پوک وهلې شی نو مونږ ټول به يوځائې جمع كړو. او هغه ورځ به مونږ دوزخ هغه كافرانو ته ښكاره مخامخ كړو. د چا په سترګو باندې چه (په دنيا كښې) زما د نصيحت د طرف نه پرده پرته وه، او چه د اورېدلو صلاحيت ئې نه لرلو.

## خلاصه تفسير

﴿وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَّمُوْجُ فِيْ بَعْضٍ﴾ [ او مونږ به په دغه ورځ ] يعنى كله چه ددې ديوال دنړيدو وعده شوې ورځ راشي او ياجوج ماجوج راوځی نو په دغه ورځ به مونږ [ ددوی داحالت كړو چه يو بل كنبې به ګډ وډ شی ] ځكه چه دوی به ډير زيات وی او په يو وخت به راوځي او ديو بل نه به د وړاند كيدو فكر كوی [ او] دابه قيامت ته په نزدې زمانه كنبې وی بيا به څه موده پس دقيامت سامان شروع شی يو وار به اولنئ شپيلئ ووهلې شی چه په هغې به ټول عالم فنا شی بيا به ﴿وَّنُفِخَ فِي الصُّوْرِ﴾ [ شپيلئ [ دوباره [ پوك وهلې شی ] چه ټول به پرې ژوندی شی ﴿فَجَمَعْنٰهُمْ جَمْعًا﴾ [ بيا به مونږ ټولو لره يو ځا] په ميدان دحشر كنبې [ جمع كړو ﴿وَّعَرَضْنَا جَهَنَّمَ

يَوْمَئِذٍ لِّلْكٰفِرِيْنَ عَرْضًا ﴿ او دوزخ لره به په دغه ورځ كافرانو ته مخامخ پيش كړو ﴿ اَلَّذِيْنَ كَانَتْ اَعْيُنُهُمْ ﴾ د كومو په ستر ګو چه ] په دنيا كښې ﴿ فِيْ غِطَآءٍ عَنْ ذِكْرِيْ ﴾ [ زمونږ دياد ونه ] يعنى دحق دين ليدلو نه [پردې پرتې وې او ] لكه څنګه چه دوى حق نه ليدو دغه شان دې لره ﴿ وَكَانُوْا لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَمْعًا ﴾ [ دغو اوريدو هم نه ] يعنى دحق معلومولو ذريعې دليدو اوريدو تولې لارې ئې بندې كړې وې.

## معارف او مسائل

﴿ بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَّمُوْجُ فِيْ بَعْضٍ ﴾ ښكاره خبره داده چې د ﴿ بَعْضَهُمْ ﴾ ضمير ياجوجو ماجوج ته راجع دې، خپل مينځ كښې د ګډوډ كيدو د دوئ حال چې بيان شوې دې ، ددې ښكاره مطلب دادې چې كله ورته لار خلاصه شي او دغرونو نه زمكې ته په تادئ راروان وى او راكوزيږى به نو د ګنړې په وجه به يو بل كښې ورننوتى شان بريښى ، مفسرينو نور احتمالات هم ليكلى دى.

﴿ فَجَمَعْنٰهُمْ ﴾ دلته د ﴿ هُمْ ﴾ ضمير عام مخلوق پيريانو او بنيادمو ته راجع دې ، مراد ئې دادې چې په ميدان حشر كښې به ټول مكلف مخلوق پيريان او بنيادم راجمع كړې شي.

سَمْعًا ۝ اَفَحَسِبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنْ يَّتَّخِذُوْا عِبَادِيْ

داوريدو ا آيا ګمان كوى ا هغه كسان ا چه كفر ئې كړې دې ا چه جوړ كړى هغوئ ا بندګان زما

نه لرلو [ځكه چه اوريدو استعداد ئې تباه كړې وو] آيا كافران ددې نه پس هم دا ګمان كوى چه زما

مِنْ دُوْنِيْٓ اَوْلِيَآءَ ۭ اِنَّآ اَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكٰفِرِيْنَ نُزُلًا ۝

ا ماسوا زمانه ا دوستان ا بيشكه مونږ ا تيار كړې دې ا دوزخ ا دپاره دكافرانو ا ميلمستيا

عبادت پريږدى اوزما بندګان د خپلو ځانونو دپاره كارساز جوړ كړى مونږ د كافرانو د ميلمستيا دپاره

قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْاَخْسَرِيْنَ اَعْمَالًا ۝ؕ

ورته اووايه آيا مونږ خبر دركړو تاسو ته ا په زيات نقصان موندونكو خلقو باندې ا په لحاظ دعمل سره

جهنم تيار كړې دې ته ورته اووايه آيا زه تاسو ته دهغه چا خبر دركړم چه په خپل عمل كښې زيات تاوانيان دى

اَلَّذِيْنَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَهُمْ

ا داهغه خلق دى ا چه ضائع دى ا كوششونه دهغوئ ا په ژوند ددنيا كښې ا اوهغوئ

دا هغه خلق دى چه د دوى كوششونه په دنياوى ژوند كښې ضائع شول او دوى [اوس هم] په خپلو اعمالو

يَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ يُحْسِنُوْنَ صُنْعًا ۝ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

ګمان كوى ا چه بيشكه هغوئ ا [ښه] تيک تيک كوى ا هركار ا دا هغه كسان دى ا چه انكار ئې اوكړو

د نيكو ګمان كوى ا چه دوى ښه كارونه كوى ا ...................... دا هغه خلق دى چه د خپل رب

بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ وَلِقَآئِهٖ فَحَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيْمُ

ا دآيتونو درب خپل نه ا اود ملاقات دهغه نه ا نو ضائع شول ا عملونه دهغوئ ا پس نه به ودروؤ مونږ

د آياتونو اود هغه د ملاقات نه ئې انكار كړې دې ا نو د دوى [نيک] عملونه ضائع شول ا او مونږ به

لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَزْنًا ۞ ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوْا

هغوئ دپاره ا په ورځ دقيامت ا څه وزن ا دا بدله دد وی دوزخ دي ا په سبب دهغې ا چه كفراوكړو دوئ

د قيامت په ورځ د هغې د تول دپاره تله نه لګوو ا دا جهنم د دوی د كفر په وجه د دوی سزا ده

وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ وَرُسُلِيْ هُزُوًا ۞ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

ا او اونيول دوی ا آيتونه زما ا اورسولان زما ا په ټوقو سره ا بيشكه هغه كسان ا چه ايمان ئې راوړو

اوپه دې چه زما په آياتونو او په پيغمبرانو پورې به ئې ټوقې كولې ا بيشكه كومو كسانو چه ايمان راوړې دې

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنّٰتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا ۞ خٰلِدِيْنَ

اوعمل ئې اوكړو نيک ا وی به ا دپاره دهغوئ ا باغونه دفردوس ا ميلمستيا ا هميشه به وی ا

اونيک عملونه ئې كړی دی ا د دوی د ميلمستيا دپاره د فردوس باغونه دی ا دوی به په هغې كښې

فِيْهَا لَا يَبْغُوْنَ عَنْهَا حِوَلًا ۞

په هغې كښې ا انه به طلب كوی ا دهغې نه ا وتل ا بل خائې ته ] ا

هميشه دپاره وی ا د هغې نه د وتلو خواهش به نه كوی ا

## آسان ترجمه قرآن

كومو خلقو چه كفر خوښ كړې دې آيا هغوی بيا هم دا ګنړی چه زما نه علاوه زما د بندګانو نه خپل مددګاران جوړ كړی؟ يقين ساتئ چه مونږ د داسې كافرانو دپاره د جهنم ميلمستيا تياره كړې ده. اووايه چه: آيا مونږ تاسو ته اوښايو چه كوم خلق دی چه په خپلو اعمالو كښې ډير زيات ناكام دی؟ دا هغه خلق دی چه په دنياوی ژوند كښې دهغوی كوششونه د نيغې لارې نه خطا شوی دی او هغوی دا ګنړله چه هغوی ډير ښه كار كوی. دا هم هغه خلق دی چا چه دخپل مالک د آيتونو او هغه ته د پيش كيدو نه انكار اوكړو، په دې وجه د هغوی ټول اعمال برباد شو، پس د قيامت په ورځ بانديې به مونږ دهغوی هيڅ وزن نه شمار كوو. دا ده د جهنم په شكل كښې دهغوی سزا، ځكه چه هغوی كفر اختيار كړې وو، او زما د آيتونو او پيغمبرانو نه ئې ټوقه جوړه كړې وه. (بل طرف ته) كومو خلقو چه ايمان راوړلو، او چا چه نيک عملونه اوكړل د هغوی د ميلمستيا دپاره به بيشكه د فردوس باغونه وی. چه په هغې كښې به هغوی هميشه اوسيږی (او) هغوی به دهغه ځائې نه بل ځائې ته تلل نه غواړی.

## خلاصه تفسير

﴿اَفَحَسِبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا﴾ [ ايا بياهم دا كافران خيال كوی چه ] ماپريږدی او ﴿اَنْ يَّتَّخِذُوْا عِبَادِيْ مِنْ دُوْنِيْٓ اَوْلِيَآءَ﴾ [ زمابندګانو لره ] يعنی كوم چه زما مملوك او محكوم دی په اختيار يااضطرار سره هغوئ لره خپل كارساز [يعنی معبود او حاجت روا جوړكړی چې ښكاره شرك او كفر دې ﴿اِنَّآ اَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكٰفِرِيْنَ نُزُلًا ۞﴾ [ مونږ دكافرانو دميلمستيا دپاره دوزخ تيار كړې دې ] ميلمستيا ئې ورته به طور دسپكوالي او حقارت ووئيله [ اوكه چرې ] دوی په خپلو هغو عملونو نازيږی كوم چه دوی نيك او غوره ګنړی او دهغوی په سبب سره دوی خپل ځانونه دعذاب نه ازاد او محفوظ ګنړی [ ته ] دوی ته ﴿قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْاَخْسَرِيْنَ اَعْمَالًا ۞﴾ [ ووايه چه

ایا مونږ تاسو ته داسې خلق وښايو کوم چه دعملونو په اعتبار سره بلکل په تاوان کښې دی ﴿الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا﴾ دا هغه خلق دی دکومو چه په دنیا کښې کړې محنت ] کوم چه نیك کارونه ئې کړی وو [ ټول عبث شول او دغه ] په وجه دناپوهئ ﴿وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا﴾[ دې خیال کښې دی چه دوی ښه کارونه کړی دی ] وړاند ددغو خلقو مصداق په داسې عنوان سره ښائی په کوم سره چه ددوی دمحنت ضائع کیدو وجه هم معلومیږی او بیا ددې عملونو دحبطه کیدو وضاحت هم طور دتفریع فرمائی یعنی ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ﴾[ دا هغه خلق دی کومو چه دخپل رب د ایتونو او دهٔ سره دملاویدو نه ] یعنی د قیامت نه [ انکار کړې دې پس ] په دې وجه [ددوی ټول ] نیك ﴿فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ﴾[عملونه عبث شول﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾ نو دقیامت په ورځ به مونږ ددوی ] دنیکو عملونو [ دپاره یوه ذره وزن هم قائم نه کړو ] بلکه ﴿ذَٰلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنَّمُ﴾ [ ددوی سزا به هغه وی ] کومه چه بره ذکرشوه [ یعنی دوزخ ﴿بِمَا كَفَرُوا﴾ ځکه چه دوی کفر کړې وو او] ددې کفر یو شاخ دا وو چه﴿وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا﴾ [زما دایتونو اوپیغمبرانو نه مسخرې جوړې کړې وې] وړاند ددوی په مقابله کښې د مؤمنانو حال بیانوی چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا﴾[ بیشکه کوم خلق چه ایمان راوړی او هغوی نیك کار وکړی ددوی دمیلمستیا دپاره به دفردوس] یعنی جنت [باغونه وی ﴿خَالِدِينَ فِيهَا﴾چه دوی به په کښې همیشه او سیږی ] نه به ترې دوی لره څوك ویستونکې وی ﴿لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا﴾[ اونه به دوی ددغه ځائ نه چرته بل ځائ ته تلل وغواړی]

## معارف او مسائل

﴿أَفَحَسِبَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنْ يَتَّخِذُوا عِبَادِي مِنْ دُونِي أَوْلِيَاءَ﴾ تفسیر بحر محیط کښې راغلی دی چې دلته په عبارت کښې حذف دې یعنی ﴿فيجدیهم نفعا و ينتفعون بذالك الاتخاذ﴾(۱) او مطلب ئې دادې چې آیا دا کفر کوؤنکی ځا چې زما په ځائې زما بندګان خپل معبودان اوکارساز جوړ کړی دی دا ګنړی چې دوئ لره معبودان او کارساز جوړول به ورته څه نفع ورکړی او دوئ به ددې نه څ فائده پورته کړی . او دا استفهام انکاری دی ، حاصل ئې دادې چې داسې ګنړل غلط دی او جهالت دې .

دلته د ﴿عِبَادِي﴾ نه مراد فرښتې او هغه پیغمبران دی د کومو چې خلقو په دنیا کښې عبادت کړې دې . اوهغوئ ئې د الله ﷻ شریکان ګرځولی وو لکه عزیز ﷺ او مسیح ﷺ ، د فرښتو عبادت کوؤنکی ځینې عرب خلق وو ،عزیر ﷺ لره یهودیانو او مسیح ﷺ نصرانیانو په خدائې کښې شریك ګرځولې وو ، ځکه په دې آیت مبارك کښې د ﴿الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ نه د کافرانو هم دا فرقې مراد دی.اوکومو ځینې مفسرینو چې د﴿عِبَادِي﴾ نه مرادشیطان اخستې دی نود﴿الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ نه به مراد هغه کافران وی چې دپیریانو او شیطان عبادت کوی ، ځینې مفسرینو دلته د ﴿عِبَادِي﴾ نه مراد عام مخلوق اومملوك اخستې دی چې په کښې ټول باطل معبودان بتان او ستوری وغیره هم شامل دی . دتفسیر په خلاصه کښې محکوم او مملوك لفظ نه هم دې طرفته

---

۱) تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآية [ج:٤ ص:٤٩٥]

اشاره ده اوپه بحر محيط وغيره كښې هم ړومبې تفسير غوره ګرځولې شوې دې[1] والله اعلم
﴿أَوْلِيَآءَ﴾ دا د ولي جمع ده ، په عربۍ كښې ډيرو معنو دپاره استعماليږي ، دلته ددې نه مراد كارساز اوحاجت روا دې چې د معبود برحق خاص صفت دې ، مقصود ترې دوئ لره معبودان ګرځول دي .
﴿بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا﴾ دلته ړومبي دوه آيتونه د خپل عام مفهوم په اعتبار سره هر هغه كس يا ډلې ته شامليږي چې څه عملونه په نيك ګنړلو سره په هغې كښې خوارې او كوشش كوي خو د الله ﷻ په نزد دهغوئ خوارې برباده او عمل ئې بيكاره وي . قرطبي رحمه الله فرمائيلي دي چې دا صورت د دوؤ څيزونونه پيدا كيږي . يو دا چې عقيده ئې خرابه وي او بل دا چې په عمل كښې ئې رياكارې وي ،[2] مطلب دا شو چې د چا عقيده خرابه وي او ايمان ئې صحيح نه وي كه هغه هرڅومره نيك عملونه كوي اوخوارې په كښې هم كوي خو په آخرت كښې به بيكاره او برباد وي . دغه شان كوم نيك عمل چې د مخلوق د خوشحالولو او هغوئ ته د خودلو په غرض كولې شي نو هغه هم دعمل د ثواب نه بې نصيبه دي ، ددې عام مفهوم په اعتبار سره څينې صحابه كرامو رضي الله عنهم دې نه مراد خوارج او څينې مفسرينو ترې معتزله او روافض وغيره اخستې دي . خو دې پسې آيت مبارك كښې د ښكاره كړې شوې دي چې دلته ترې مراد هغه كافران دي چې د الله ﷻ د آيتونو او د قيامت او آخرت نه منكر وي .
﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ﴾ په دې وجه قرطبي رحمه الله ابی حيان او مظهري وغيره كښې دا غوره ګنړلې شوې دي چې اصل مراد دلته هغه كافران دي چې د الله ﷻ د قيامت او د حساب كتاب نه منكر وي ، خو د صورت په لحاظ هغه خلق هم ترې مراد اخستل څه لرې خبره نه ده چې دهغوئ عملونه د هغوئ خرابو عقيدو برباد كړې وي او د هغوئ خوارې برباد شوې دي . نو څينې صحابه كرامو رضي الله عنهم على رضي الله عنه او سعد رضي الله عنه نه چې هم دغسې اقوال نقل كړې شوې دي نو د هغه هم دغه مطلب دې [قرطبي].[3]
﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾ يعنې د دوئ عملونه چې په ښكاره خو به لوئې معلوميږي خو د حساب په ميزان كښې به د هغې هيڅ وزن نه وي ولې چې د دوئ كفر او شرك كولو دې لره بې كاره اوبې وزنه كړې دي .
صحيح بخاري او صحيح مسلم كښې د ابوهريره رضي الله عنه د روايت تر مخه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې د قيامت په ورځ به يو كس لوړ دنګ او څورب [چاغ] راشي چې د الله ﷻ په نزد به په تول كښې د ماشي د وزر هومره هم نه وي ، او وې فرمائيل چې ددې خبرې تصديق كولو دپاره تاسو د قرآن عظيم الشان دا آيت مبارك اولولئ ﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾[4].

---

[1]) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:٤ ص:٤٩٥] و تفسير القرطبي [ ج:١١ص:٦٥] و روح المعاني [ج: ١١ ص:٤١٩]
[2]) تفسير القرطبي [ ج:١١ص:٦٥]
[3]) تفسير القرطبي [ ج:١١ص:٦٦] و تفسير المظهري[ج:٦ ص:٧٣].
[4]) صحيح البخاري كتاب التفسير ،باب سورة الكهف قول الله تعالى اولئك الذين كفروا الآية إلخ [ج:٢ص:٦٩١] و صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين ، باب صفة القيامة إلخ [ج:٢ص:٣٧٠]

او ابو سعید خدری رضي الله عنه فرمائیلی دی چې د قیامت په ورځ به داسې عملونه راوړې شي چې د جوڅې په اعتبار سره به د تهامه د غرونو هومره وي خو په میزان عدل کښې به دهغې هیڅ وزن نه وي. [قرطبی].(۱)

﴿جَنّٰتُ الْفِرْدَوْسِ﴾ د فردوس معنی شین، زرغن خیرازه باغ ده، اختلاف په دې کښې دې چې دا الفاظ عربی دي او که عجمی؟ څوك چې ورته عجمی وائی نو هغې کښې هم بل اختلاف داسې دې چې څوك ئې فارسی څوك ئې رومی او څوك ئې سریانی ګڼړی.

د صحیح بخاری او مسلم په حدیث پاك کښې راغلی دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې کله تاسو د الله ﷻ نه غواړئ نو جنت الفردوس ترې غواړئ، ولې چې دا په جنت کښې دټولو نه اعلی او زیاته غوره درجه ده. ددې دپاسه د رحمن عرش دې او هم دې نه د جنت ټول نهرونه راوځی .[قرطبی ].(۲)

﴿لَا يَبْغُوْنَ عَنْهَا حِوَلًا﴾ مقصد ئې دا خودل دی چې دجنت دا مقام دوئ دپاره نه ختمیدونکې د همیشه نعمت دې، ولې چې د الله ﷻ دحکم مطابق جنت ته ورننوتی خلق به تر هیچرې نشی اوښکلې .مګر دلته یو خطره د انسانی فطرت مطابق داسې دچا په زړه کښې راتلې شوه چې خاص په یو ځائ کښې پاتې کیدو او استوګنې کولو سره خلق تنګیږی او دغه ځائې نه څه بل ځائې ته د تلو خواهش لری، که د جنت نه دبهر وتلو دپاره ورته اجازت ورنکړې شي نو ځان به په قید او بند کښې محسوسوی، څکه په دې آیت مبارك کښې جواب ورکړې شو چې په نورو خایونو باندې جنت قیاس کول جهالت دې. ولې چې هر کله څوك جنت ته ورشی نو ددنیا لیدلی کتلی او استعمال کړی اعلی نعمتونه به ورته هم عبث او بې کاره معلوم شی. او دا خیال به ئې هیڅکله هم نه رازی چې دغه ځائې نه بل خوا لاړ شي؟.

فِيْهَا لَا يَبْغُوْنَ عَنْهَا حِوَلًا ۝ قُلْ لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ

په هغې کښې | انه به طلب کوی | دهغې نه | وتل [بل ځائې ته] | ورته اووایه | که چرې شي | دریاب |

همیشه دپاره وی | د هغې نه د وتلو خواهش به نه کوی | ته ورته اووایه که چرته د سمندر اوبه

مِدَادًا لِّكَلِمٰتِ رَبِّيْ لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ اَنْ تَنْفَدَ

سیاهی | دپاره دصفتونو لیکلو | درب زما | نوختم به شي دریاب | مخکښې ددې نه | چه ختم شي

زما د رب د صفتونو لیکلو دپاره سیاهی شي | نو د سمندر اوبه به زما د رب د صفتونو لیکلو نه

كَلِمٰتُ رَبِّيْ وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهٖ مَدَدًا ۝ قُلْ

صفتونه | درب زما | اواګر که راوړو موږ | په شان دهغې دریاب | سیاهی [نوره] | ورته اووایه |

وراندې ختمې شي |اګر چه موږ [د نورو صفتونو لیکلو دپاره ] د دې پشان نوره سیاهی راوړو | ته اووایه

اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحٰٓى اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰـهُكُمْ اِلٰهٌ

بیشکه | چه زه انسان یم | په شان ستاسو | چه وحی کیږی | ماته | اچې بیشکه | معبود ستاسو | معبود

بیشکه زه ستاسو پشان یو انسان یم | [خو] ماته وحی کولې شي چه ستاسو د عبادت مستحق صرف

(۱) تفسیر القرطبی [ ج:۱۱ص:۶۶، ۶۷]

(۲) صحیح البخاری كتاب الجهاد ،باب درجات المجاهدین في سبیل الله [ج:۱ص:۳۹۱]

| عَمَلًا صَالِحًا | فَلْيَعْمَلْ | رَبِّهٖ | لِقَآءَ | يَرْجُوْا | كَانَ | فَمَنْ | وَّاحِدٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عمل نیک | نو هغه دې عمل کوی | درب خپل | دملاقات | چه امید لری | چه وی | نو هغه څوک | یو دې |

یو الله دې | نو څوک چه د خپل رب د ملاقات یقین ساتی | هغه دې نیک عمل کوی

| اَحَدًا | رَبِّهٖٓ | بِعِبَادَةِ | وَّلَا يُشْرِكْ |
|---|---|---|---|
| هیڅوک | درب خپل کښې | په عبادت | اونه دې شریکوی |

اود خپل رب په عبادت کښې دې [ورسره] هیڅوک نه شریکوی

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره! خلقو ته) اووایه چه: که زما د رب د خبرو د لیکلو دپاره سمندر سیاهي شي، نو زما د رب خبرې به ختمې شوې نه وی چه دهغې نه مخکښې به سمندر ختم شي، اګر که د هغه سمندر د کمی پوره کولو دپاره هم دغه شان یو بل سمندر ولې راناوړلې شي. اووایه چه: زه هم ستاسو په شان انسان یم، (خو) په ما باندې دا وحی راځي چه ستاسو د ټولو معبود یو دې، لهٰذا د چا چه خپل مالک سره د ملاویدو امید وی، هغه له پکار دی چه هغه نیک عمل اوکړی، او د خپل مالک په عبادت کښې څوک هم شریک نه کړی.

## خلاصه تفسیر

﴿قُلْ لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمٰتِ رَبِّيْ﴾ [ته خلقو ته ووایه چه که زما د رب د خبرو] یعنی هغه کلمې او عبارتونه کوم چه د الله تعالی په صفتونو اوکمالونو دلالت کوی او په دې سره د الله تعالی دکمالونو او صفتونو څوک بیانول غواړی نو داسې کلمو لره [ دلیکلو دپاره ] د[سمندر ] اوبه [ سیاهي شی ] او په دې سره لیکل شروع کړی ﴿لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ اَنْ تَنْفَدَ كَلِمٰتُ رَبِّيْ﴾ [نو زما درب دخبرو ختمیدونه وړاندې به سمندر ختم شی ] اوټولې خبرې به ونه لیکلې شی ﴿وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهٖ مَدَدًا﴾ [ اګر که ددې سمندر په شان یو بل سمندر ] ددې [ مدد دپاره مونږ راولو] نوبیا به هم دغه خبرې ختمې نه شی او دویم سمندر به هم ختم شی معلومه شوه چه د الله تعالی کلمې غیر متناهی دی دده نه سوا چه کومو څیزونو لره کافرانو دالله تعالی شریك منلی دی په دغو کښې یو هم داسې نه شته په دې وجه خدائی او رب والې د ده د ذات سره مخصوص دې په دې وجه دې خلقو ته [ ته ] داهم ﴿قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾ [ ووایه چه زه خو ستاسو په شان بشریم ] نه دخدایئ دعویدار یم نه دفرښته والی البته [ماته] دالله تعالی دطرف نه ﴿يُوْحٰٓى اِلَيَّ﴾ [ وحی راځی ]چې ﴿اَنَّمَآ اِلٰـهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ﴾ [ ستاسو معبود برحق یو معبود دې ﴿فَمَنْ كَانَ يَرْجُوْا لِقَآءَ رَبِّهٖ﴾ نو کوم سړې چه دخپل رب سره دملاویدو ارزو لری ] او دهغه محبوب جوړیدل غواړی [نو ] مالره د رسول ومنی زما دشریعت موافق [﴿فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَّلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهٖٓ اَحَدًا﴾ نیک کارد کوی او دخپل رب په عبادت کښې دڅوك نه شریکوی ]

## معارف او مسائل

د سورة کهف په آخری آیت مبارك کښې د ﴿وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهٖٓ اَحَدًا﴾ شان نزول کم چې په روایتونو کښې دحدیث راغلې دې دهغې نه دا معلومیږی چې دلته دشرك نه مراد شرك خفی یعنی ریائ ده.

امام حاكم په مستدرك كښې د عبدالله بن عباس ﷺ نه دا روايت نقل كړېدې او ورته ئې په شرط د شيخينو صحيح فرمائيلى دى ، روايت دادې چې د مسلمانانو څينې يو سړى به د الله ﷻ په لار كښې جهاد كولو. دې سره سره د هغه دا خواهش هم وو چې پخلقو كښې دهغه بهادرى او غازى توب ښكاره شى ، د هغه باره كښې دا آيت مبارك نازل شو .[1]

اوحلية د ابن ابى حاتم او ابن ابى الدنيا په كتاب الاخلاص كښې د طاؤس نه نقل كړى دى چې يو صحابى ﷺ نبى كريم ﷺ ته دا خبره اوكړه چې زۀ څه وخت كښې د يو نيك كار يا عبادت كولو دپاره اودريږم ، په دې سره خو مې نيت د الله ﷻ رضا حاصلول وى خو ورسره مې زړه دا غواړى چې زما عمل دې خلق هم اووينى ، نبى كريم ﷺ په دې آوريدو باندې خاموش پاتې شو تر هغې چې دا آيت مبارك نازل شو .[2]

او په ابى نعيم اوتاريخ ابن عساكر كښې په روايت د ابن عباس ﷺ نقل كړې شوې دې چې كله به جندب بن زهير صحابى ﷺ مونځ كولو يا به ئې روژه نيوله يا به ئې خيرات كولو نو كتل بۀ ئې كه چا به ئې تعريف كولو نو دغه صحابى ﷺ به په هغې خوشحاليدو او دغه نيك عمل بۀ ئې نور هم زيات كولو ، په دې باندې دا آيت مبارك نازل شو .[3] خلاصه ددې ټولو روايتونو دا ده چې په دې آيت مبارك كښې د كوم شرك نه منع كړې شوې ده هغه دريا كارئ شرك خفى دې ،بلكه دا چې يونيك عمل كول اګر چې د الله ﷻ د رضا حاصلولو په نيت وى نو ورسره څه ذاتى او نفسانى خواهش هم وى او شهرت حاصلول غواړى نو دا هم يوقسم شرك خفى دې چې د انسان عمل لره برباد بلكه ضرر رسوؤنكې جوړوى .

د ابو هريره ﷺ نه روايت دې چې هغوئ ﷺ د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې عرض اوكړو چې څه څه وخت پخپل كور كښې مونځ يعنى نفل مونځ كوم نو ناڅاپه يو سړى راباندې راشى ، نو څه خوشحاله شم چې ښۀ شوه چې څه ئې په دې حال باندې اوليدم ، [نو آيا دا رياء شوه]؟. نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې ائې ابا هريره ﷺ ! الله ﷻ دې درباندې رحمت اوكړى ستا دغه وخت دوه اجرونه شى ، يو د پټ عمل كولو چې روميې نه دې كولو بل د ښكاره عمل، چې ددغه سړى په راتلوتو سره هغه ته ښكاره شو .[4]

او په صحيح مسلم كښې د ابى ذر غفارى ﷺ نه روايت دې چې نبى كريم ﷺ نه تپوس اوشو چې دداسې كس باره كښې راته اوفرمايئ چې نيك عمل كوى بيا د خلقو نه په هغې باندې خپل تعريف اوصفت كول واؤرى ؟

نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې ﴿تلك عاجل بشرى المؤمن﴾ [ دا خو مؤمن دپاره نقد زيرې دى ] يعنى الله ﷻ ته ددۀ نيك عمل قبول شو او ددغې نيك عمل كولو په بركت ئې دخلقو په خلوباندې ددۀ تعريف كول جارى كړل .[5]

---

[1] ) المستدرك للحاكم رق م الحديث:[۳۳۶۱]
[2] ) تفسير ابن ابى حاتم رقم الحديث :[۱٤۰۶۹]
[3] ) معرفة الصحابة لأبي نعيم رقم الحديث :[۱٤۹٤] باب الجيم
[4] ) جامع الترمذى ، ابواب الزهد باب عمل السر [ج:۲ ص:٦٤]
[5] ) صحيح مسلم كتاب البر إلخ، باب إذا أثنى على الصالح إلخ [ج:۲ص:۳۳۲]

تفسیر مظهری کښې ددې دواړو قسمو ظاهری اختلافاتو جوړښت داسې راوستې شوې دې چې د ړومبو روایتونو باره کښې چې آیت مبارك نازل شوې دې د هغې صورت دادې چې الله ﷻ د رضا حاصلولو د نیت سره ئې دخپلې مشهورتیا او د بندګانو دخوشحالولو نیت هم ورسره شریك کړی تر دې چې تعریف ئې خلق اوکړی نو دغې نیك عمل کښې نوره هم اضافه اوکړی نو دایقینا ریاده چې شرك خفی ورته وئیلې شی .(۱)

خو وروستو روایتونه دترمذی اومسلم د هغې صورت باره کښې دی چې دخپلې مشهورتیا او تعریف کولونیت ئې نه وی ، ناګهانه په داسې یو کار الله ﷻ برابر کړی چې خلق ئې تعریف اوکړی نودغه صورت دریا نه بلکه دمؤمن دپاره نقد زیرې دې.

**دریا شاړې خرابې نتیجې او په دې باندې د حدیث پاك سخت وعید:** دمحمود بن لبید ﷛ د روایت مطابق نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ستاسو په باره کښې زما سخته ویره د شرك اصغر نه ده . صحابه کرامو ﷢ عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! شرك اصغر څه څیز دې ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ریا ده . [ احمد په خپل مسند کښې ] .(۲)

او بیهقی په شعب الایمان کښې ددې حدیث پاك د نقل کولونه پس پدې کښې دا زیاتوالې هم نقل کړې دې چې د قیامت په ورځ کله چې به الله ﷻ د بندګانو د عملونو جزا ورکوی نو ریا کارو خلقو ته به وائی چې تاسو د خپلو عملونو دجزا اخستلو دپاره هغې خلقوته ورشئ دچا د خودلو دپاره چې تاسودا عمل کړې وو. بیا اوګورئ چې هغوئ سره تاسو دپاره څه جزا شته دې اوکه نه؟ د ابی هریره ﷛ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زه په شریکانو کښې د شریکیدو نه زیات بې پروا او زیات پورته یم. څوك چې څه عمل کوی بیا په هغې کښې ما سره څوك بل هم شریکوی . نوزه هغه ټول عمل هم دغه شریك ته پرېږدم.

او یو روایت کښې دی چې زه ددغې عمل نه ویزاره یم ، زه خودغه عمل خالص هم هغه چا ته سپارم څوك چې ماسره شریك کرځولې وو. [مسلم] .(۳)

عبدالله بن عمر ﷛ نه روایت دې چې هغوئ د نبی کریم ﷺ نه دا واؤریدل چې څوك نیك عمل په خلقو کښې د شهرت حاصلولو دپاره کوی نو الله ﷻ ورسره هم دغسې کوی چې په خلقو کښې ئې ذلیل او سپك کړی . [ احمد ،بیهقی شعب الایمان ، د تفسیر مظهری نه ] .(۴)

تفسیر مظهری کښې راغلی دی چې حسن بصری ﷫ نه د اخلاص او ریا باره کښې سوال اوکړې شو نو هغوئ ﷫ اوفرمائیل چې د اخلاص تقاضا داده چې ستاسوخپل نیك اوښۀ عملونه پټ پاتې کیدل خوښ وی اود خرابو عملونو پټ پاتې کیدل مو خوښ نه وی ، بیا که الله ﷻ ستاسو عملونه خلقو ته ښکاره کړل نو تاسو دا وایئ چې یا الله ﷻ ! دا ټول ستا فضل او احسان دې . زما دکوشش او عمل په کښې څه دخل نشته .(۵)

---

(۱) تفسیر المظهری[ج:٦ص:٧٦، ٧٧]

(۲) مسند احمد رقم الحدیث:[۲۳۵۲۳]

(۳) صحیح مسلم کتاب الزهد، باب تحریم الریاء [ج:۲ص:٤١١]

(۴) مسند احمد، مسند عبدالله بن عمرو رضی الله عنه رقم الحدیث:[٦٢٢٠] و شعب الإیمان للبیهقی الخامس والأربعون من شعب الإیمان رقم الحدیث[٦٥٥٣]

(۵) تفسیر القرطبی تحت هذه الآیة[ ج:١١ص:٧١]

او حکیم ترمذی دصدیق اکبر ﷺ نه روایت کړې دې چې یو ځل نبی کریم ﷺ دشرك بیان داسې اوفرمائیل چې: ﴿هو فيكم اخفى من دبيب النمل﴾ [ شرك په تاسو کښې داسې غلې داخلیږی څنګه چې د میږی راتلل بې آوازه وی] او وې فرمائیل چې زهٔ تاسو ته یو داسې کار اوښایم چې تاسو هغه کار اوکړئ نو د شرك اصغر او شرك اكبر نه به محفوظ پاتې شئ. هغه داچې تاسو روزانه دا دعا درې ځل وائې: ﴿اللهم انى اعوذبك من ان اشرك بك وانا اعلم واستغفرك لما لا اعلم﴾[1]

**دسورة کهف څینې فضیلتونه او خاصیتونه**: ابو الدرداء ﷺ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې چا د سورة کهف ړومبی لس آیتونه یاد اولرل نو هغه به د دجال د فتنې نه محفوظ پاتې کیږی. [ مسلم، احمد، ابوداود، نسائی][2]

او د انس ﷺ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې چا د سورة کهف دشروع او د آخر آیتونه اولوستل نو هغه دپاره به یونور شی، د هغه د قدم نه واخله تر سره پورې او چا چې پوره سورة اولوستلو نو هغه دپاره به د زمکې نه تر آسمانه پورې نور شی. [ ابن السنی و احمد پخپل مسند کښې ][3]

او د ابی سعید ﷺ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې چا چې د جمعې په ورځ تول سورة کهف اولوستلو نو تر بلې جمعې پورې به هغه دپاره نور شی [ حاکم روایت کړو صحیح ئې ورته اووئیل او بیهقی په دعوات کښې روایت کړو] [مظهری].[4]

او عبدالله بن عباس ﷺ ته یو کس اووئیل چې په زړهٔ کښې مې اراده وی چې په آخره شپه کښې رابیدار شم او مونځ اوکړم، خو خوب راباندې غلبه اوکړی. ابن عباس ﷺ ورته اوفرمائیل چې کله تاسو اودهٔ کیدو دپاره بسترې ته ورشئ نو د سورة کهف آخری آیتونه لولئ: ﴿قُل لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا﴾ نه تر آخر دسورة پورې، نوڅه وخت چې دبیداریدو اراده کوې هم هغه وخت به بیداریږې. [ رواه الثعلبی][5]

او مسند دارمی کښې راغلی دی چې زر بن حبیش ﷺ، حضرت عبده ته اوخودل چې څوك د سورة کهف داآخری آیتونه اولولی او اودهٔ شی نو څه وخت چې د بیداریدو نیت کوی هغه وخت به بیدار یږی، عبده وائی چې ما بیا بیا تجربه اوکړه واقعی هم دغسې کیږی.[6]

**یو ډیر ضروری نصیحت**: ابن عربی فرمائیلی دی چې زمونږ شیخ طرطوشی ﷺ به فرمائیل چې ستاسو د عزیز عمر وختونه دخپلې زمانې د خلقو سره په مقابله کښې اوخپلو دوستانو سره هم په ملاقاتونو کښې تیر نشی، ګورئی الله ﷻ خپل بیان په دې آیت مبارك باندې ختم کړې

---

[1] ) مجمع الزوائد رقم الحديث:[۱۷۶۷۰] و و كنز العمال رقم الحديث:[۷۵۲۲]. ترجمه:- اې الله جل شانهٔ زه تاسره پناه غواړم ددې نه چې زه تاالره شريك جوړكړم كه هغه ماته معلوم وی او چې كوم شرك زما په خطا كښې اوشی زه دهغې هم ستا نه بخښنه غواړم.

[2] ) صحيح مسلم كتاب فضائل القرآن إلخ،باب فضل سورة الكهف و آية الكرسى [ج:۱ص:۲۷۱] و سنن ابوداود، كتاب الملاحم، باب خروج الدجال [ج:۲ص:۵۹۳ ]

[3] ) مسند احمد رقم الحديث:[۱۵۰۷۳] حديث معاذ بن انس رضى الله عنه.

[4] ) المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳۳۴۹] و تفسير المظهرى[ج:۶ص:۷۹]

[5] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۱ص:۷۲]

[6] ) سنن الدارمی رقم الحديث [۳۴۶۹] كتاب فضائل القرآن، باب فى فضل سورة الكهف.

دي چي: ﴿فَمَنْ كَانَ يَرْجُوا لِقَآءَ رَبِّهٖ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَّلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهٖٓ اَحَدًا﴾ [څوک چه د خپل رب د ملاقات يقين ساتی | هغه دې نيک عمل کوی اود خپل رب په عبادت کښې دې [ورسره] هيڅوک نه شريکوی] [قرطبی] .(۱)

الحمد لله حمدا كثيرا طيبا مباركه فيه ، نن په اتمه ذيقعده ۱۳۹۰ د زيارت يعنی زيارت په ورځ د ځابنت په وخت کښې د سورة کهف دا تفسير مکمل شو. او دا د الله ﷻ فضل او کرم دې چې په دې کښې د قرآن پاك د نيم څخه زيات پوره شو. او د عمر شپږ اويايم [۷۶] کال روان دې . او بدنی کمزوری سره سره د دوؤ کالو راسې مختلفو مرضونو هم را ګير کړې يم ، او خيالات هم ډير زيات دی ، دا الله ﷻ ته څه ګران نه دی چې دهغه په فضل سره د قرآن پاك باقی حصه هم مکمل شی ، وما ذلك علی بعزيز

| آياتونه | | | سورة مريم مكية وهي ثمان وتسعون اية وست ركوعات | | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ | | | |
| ۹۸ | | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | | ۶ |

كٓهٰيٰعٓصٓ ۞ ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا ۞ اِذْ

ك ه ی ع ص | دا ذکر دې | د نعمت | درب ستا | په بنده خپل | زکريا باندې | کله چې

كاف ،ها، يا ،عين ،ص ، دا ستا د رب د هغه احسان ذکر دې کوم چه هغه په خپل بنده حضرت زکريا باندې کړې وو.

نَادٰى رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا ۞ قَالَ رَبِّ اِنِّيْ

اواز اوکړو هغه | رب خپل ته | آواز | پټ | اووئيل هغه | اې ربه زما | بيشکه زۀ چې يم |

څه وخت چه هغه خپل رب ته پټ آواز اوکړو اوعرض ئې اوکړو چه اې زما ربه زما د بدن هډوکی

وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّيْ وَاشْتَعَلَ الرَّاْسُ شَيْبًا

کمزوری شو | هډوکی | زما | او سپينه شعله شوه | ويخته دسر [زما] | دوجې دبوډاوالی نه |

ضعيف شوی دی او د سر ويخته مې د بوډاوتوب په وجه سپين شوی دی

وَّلَمْ اَكُنْۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ۞ وَاِنِّيْ

او نه يم زۀ [پاتې شوې] | په غوښتلو ددعا سره ستا نه | اے ربه زما | نامرداه | او بيشکه زۀ

اې ربه زه کله هم ستانه په دعا غوستلو کښې نامراده شوې هم نه يم | اوزه د خپل مرګ نه پس د خپلو

خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِنْ وَّرَآءِيْ وَكَانَتِ امْرَاَتِيْ عَاقِرًا فَهَبْ لِيْ

يريږم [دبد عملئ] | دخپلو رونړو عزيزانو نه ورستوزما | او ده | ښځه زما | شنډه | نو راکړه | ماته

وارثانو نه يريږم | او زما بی بی شنډه ده | نو ماته د خپل طرفه يو وارث راکړه چه [په نبوت کښې]

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۱ص:۷۲] و احكام القرآن لابن العربي (بإختلاف اسم الشيخ) [ج:۵ ص:۳۴۰]

مِنْ لَّدُنْكَ | وَلِيًّا ۙ | يَّرِثُنِيْ | وَيَرِثُ مِنْ اٰلِ يَعْقُوْبَ ۖ | وَاجْعَلْهُ

دطرفه ستانه | يو وارث | چې وارث شي زما | او وارث شي داولاد ديعقوب | او جوړ كړه هغه

زما او د يعقوب ؑ [دعلومو] وارث وي | او زما ربه هغه خپل بهترين بنده اوګرځوه |

رَبِّ | رَضِيًّا ۝ | يٰزَكَرِيَّآ | اِنَّا نُبَشِّرُكَ | بِغُلٰمِ

اے ربه زما | غوره انسان | اې زكريا | بيشكه مونږه زيري دركوو تاله | ديو هلك |

[الله اوفرمائيل] اې زكريا مونږ تاته ديو هلك زيري دركوو | چه د هغه نوم به يحيى وي

اسْمُهٗ يَحْيٰى ۙ | لَمْ نَجْعَلْ | لَّهٗ | مِنْ قَبْلُ | سَمِيًّا ۝

چې نوم دهغه به يحيى وي | نۀ دي ګرځولي مونږ | دۀ لره | مخكښې ددي نه | په نوم كښې شريك څوك

موږ د هغه نه وړاندې د هغه هم نام هيڅوک نه دي پيدا كړي

قَالَ | رَبِّ | اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ | غُلٰمٌ | وَّكَانَتِ | امْرَاَتِيْ | عَاقِرًا

اووئيل هغه | اې ربه زما | څرنګ به شي | زما | هلك | اوده | ښځه زما | شنډه

زكريا اووئيل اې زما ربه، زما خوئي به څنګه پيدا شي حال دا دي چه زما بي بي شنډه ده

وَّقَدْ بَلَغْتُ | مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا ۝ | قَالَ | كَذٰلِكَ ۚ | قَالَ

اورسيدلي يم زۀ | دزوړوالي نه وچ والي ته | اووئيل فرښتي | هم دارنګې به كيږي | وئيلي دي

| او د بوډاتوب آخري مرحلې عمر ته رسيدلي يم | فرشتي اووئيل | هم دغه شان به كيږي | ستا رب

رَبُّكَ | هُوَ | عَلَيَّ هَيِّنٌ | وَّقَدْ خَلَقْتُكَ | مِنْ قَبْلُ | وَلَمْ تَكُ

رب ستا | چې دا كار | په ما باند آسان دي | او بيشكه پيدا كړي ئې ماتۀ | مخكښې ددې نه | او نۀ وې تۀ

فرمائيلي دي چه دا كار ماته څه ګران نه دي | او [ته ګوري نه] | د دي نه وړاندې ماتۀ هم پيدا كړي وې |

شَيْـًٔا ۝ | قَالَ | رَبِّ | اجْعَلْ لِّيْٓ | اٰيَةً ۭ | قَالَ | اٰيَتُكَ

هيڅ څيز | اووئيل زكريا | اې ربه زما | مقرر كړه مالره | يوه نښه | اووئيل الله | چې نښه ستا [داده] |

حال دا چه ته هډو موجود نه وې | زكريا اووئيل زما د پاره څه نښه اوګرځوه | الله اوفرمائيل ستا نښه دا ده

اَلَّا تُكَلِّمَ | النَّاسَ | ثَلٰثَ لَيَالٍ | سَوِيًّا ۝ | فَخَرَجَ

چې تۀ به خبرې نشې كولې | خلقو سره | درې شپې ورځې | پرله پسې | نو راووتو هغه

چه درې شپې ورځې به د خلقو سره خبرې نشې كولې | او روغ رمټ به ئې | نو هغه د عبادت خانې نه

عَلٰى قَوْمِهٖ | مِنَ الْمِحْرَابِ | فَاَوْحٰى | اِلَيْهِمْ | اَنْ سَبِّحُوْا | بُكْرَةً

په قوم خپل باندې | دعبادت خانې نه | نو اشاره ئې اوكړه | هغوئ ته | چې تسبيح وايئ | سحر

اووتلو او خپل قوم ته ورغلو | نو هغه ته ئې په اشاره سره اووئيل چه صبا او بيګاه [ دالله تعالى ]

وَّعَشِيًّا ۝ | يٰيَحْيٰى | خُذِ | الْكِتٰبَ | بِقُوَّةٍ ۭ | وَاٰتَيْنٰهُ الْحُكْمَ

او مابنام | اې يحيى | اونيسه | دا كتاب | مضبوط | او وركړو مونږ هغه ته حكم

تسبيح وائي | [بيا ورته مونږ اووئيل] اې يحيى، دا كتاب كلك اونيسه | او مونږ هغه ته په ماشوموالي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| صَبِيًّا ﴿١٢﴾ | وَحَنَانًا | مِّنْ لَّدُنَّا | وَزَكٰوةً | وَكَانَ | تَقِيًّا ﴿١٣﴾ | وَّبَرًّا |
| په وړوکوالي کښې | او نرموالي دزړه | دخپل طرفه | او پاکي | اووؤ هغه | پرهيزګاره | او نيک وؤ |
| کښې پوهه ورکړې وه \| اود خپل طرفه مو ورته زړه خوږي او پاکي ورکړې وه \| او هغه ډير تقوی دار وو \| | | | | | | |
| بِوَالِدَيْهِ | وَلَمْ يَكُنْ | جَبَّارًا | عَصِيًّا ﴿١٤﴾ | وَسَلٰمٌ | عَلَيْهِ | يَوْمَ |
| د مور او پلار خپل دپاره | او نه وؤ هغه | سرکشه | نافرمانه | او سلام وو | په هغه باند | په کومه ورځ |
| اود خپل مورپلار په حق کښې ډيرنيک وو او سرکش اونافرمانه نه وو او په هغه دې سلام وی په کومه | | | | | | |
| وُلِدَ | وَيَوْمَ | يَمُوْتُ | وَيَوْمَ | يُبْعَثُ | | |
| چې پيدا کړې شو هغه | او په کومه ورځ | چې به مری هغه | او په کومه ورځ | چې به راپاسولې شي | | |
| ورځ چې پيداشو اوپه کومه ورځ چې به مری او په کومه ورځ چې به دوباره ژوندې راپاخولې شي | | | | | | |
| حَيًّا ﴿١٥﴾ | | | | | | |
| ژوندې \| | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

كٓهٰيٰعٓصٓ دا تذکره ده د هغه رحمت کوم چه ستا رب په خپل بنده زکريا عليه السلام باندې کړې وو. دا دهغه وخت خبره ده چه کله هغه خپل رب په ورو اواز سره راوبللو. هغه وئيلې وو چه : اې زما ربه! زما هډوکي کمزوري شوی دی، او سر مې د بوډا والی نه سپين شوې دې، او پرق وهي او زما ربه! زه ستا نه په غوښتلو باندې چرته هم نامراده نه يم پاتې شوې او زما د خپل ځان نه روستو د خپلو ترېورانو نه ويره ده، او زما ښځه شنډه ده، لهٰذا ته خاص د خپل طرف نه ماته يو داسې وارث راکړه. چه زما هم وارث وی، او د يعقوب (عليه السلام) ميراث هم يوسی . او اې ربه! هغه داسې کړه چه (خپله تاته) غوره وی. (آواز راغلو چه) اې زکريا! مونږ تاته د يو داسې هلک زيرې درکوو چه د هغه نوم به يحيٰی وی. د دې نه مخکښې مونږ د دې نوم يو سړې هم نه دې پيدا کړې زکريا اووئيل : زما ربه! زما به څوئې څنګه کيږی په داسې حال کښې چه زما ښځه شنډه ده، او زه د بوډا والی دې حال ته راسيدلې يم چه زما بدن تپ شوي دې وې وئيل : هم دغه شان به کيږی. ستا رب فرمائيلې دی چه دا خو زما دپاره معمولی خبره ده. او د دې نه مخکښې ما ته پيدا کړې وې چه ته هيڅ هم نه وې. زکريا عليه السلام عرض اوکړو اې زما ربه ! زما دپاره څه نخښه مقرر کړه . الله پاک اوفرمائيل : ستا دپاره نخښه دا ده چه ته به د صحت مند کيدو باوجود درې شپې د خلقو سره خبرې نه شې کولې. پس هغه د عبادت ګاه نه د خپل قوم مخې ته راغلو، او هغوی ته ئې په اشارې سره هدايت اوکړو چه تاسو سحر ماښام د الله پاک تسبيح کوئ. (بيا چه يحيٰی پيدا کيدو نه پس لوئې شو نو مونږ هغه ته اووئيل) اې يحيٰی! کتاب په مضبوطيا سره اونيسه . او مونږ په وړوکوالی کښې هغه ته پوهه هم ورکړې وه اوخاص دخپل طرف نه د زړه نرمی او پاکيزګی هم، اوهغه ډير پرهيزګار وو. او دخپل مور پلار خدمت کونکې، نه سرکش وو نه نافرمان. او (د الله پاک د طرف نه) سلام دې په هغه باندې په هغه ورځ هم په کومه ورځ باندې چه هغه پيدا شو اوپه هغه ورځ هم په

کومه ورځ چه به په هغه پاندې مرګ راشي. او په هغه ورځ هم په کومه ورځ چه به هغه دوباره او چتولي شي.

## خلاصه تفسير

﴿كٓهٰيٰعٓصٓ ۟ۚ﴾ [ کهيعص ] ددې معنى خو الله تعالى ته معلومه ده دا ړاروانه قصه چه ده ﴿ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا ۟ۖ﴾ [دا تذکره ده د مهربانۍ فرمائيلو ستا رب په خپل ] مقبول [ بنده ] حضرت [ زكريا ] عليه السلام په حال [ باندې ﴿اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا ۟﴾ کله چه دوی خپل پروردګار ته په پټه بانـد اواز وکړو ] چه په دې کښې دا ﴿قَالَ رَبِّ اِنِّيْ وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّيْ﴾ [عرض ئې وکړو چه اے زما پروردګاره زما هډوکی [په وجه دبوډا والی] کمزوری شوی دی او زما ﴿وَاشْتَعَلَ الرَّاْسُ شَيْبًا﴾ [ دسر په ويښتو سپينوالې خپور شوې دې ] يعنى ټول ويښته مې سپين شوی دی او ددې حالت مقتضا داده چه زۀ په دې حالت کښې د اولاد درخواست ونه کړم مګر چونکه ستا قدرت او رحمت لوې کامل دې [ او ] زۀ ددې قدرت او رحمت دظهور سره عادت شوې يم چنانچه ددې نه وړاند چرې هم ﴿وَّلَمْ اَكُنْۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ۟﴾ [ ستانه دڅه شی په غوښتو کښې اې زما ربه ناکامه شوې نه يم ] په دې بنا دلرې نه لرې مقصود دطلب کول هم څه باك نه لری [ او ] ددې طلب کولو مرجح خاص دې چه ﴿وَاِنِّيْ خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِنْ وَّرَآءِيْ﴾ [ زۀ دخپل ځان ] دمرګ [ نه پس ] دخپلو [ رشته دارانو ] دطرف [ نه ] دا [ ويره لرم ] چه زما دمرضۍ مطابق به دشريعت او دين خدمت په ځاۍ رانه وړی ددې کارد پاره د اولاد طلب ضروری شوې دې چه په دۀ کښې خاص خاص صفتونه وموندې شی په کومو سره چه ترې ددين دخدمت توقع کيدې شی [ او ] چونکه زما دبوډا کيدو سره ﴿وَكَانَتِ امْرَاَتِيْ عَاقِرًا﴾ [ زما ښځه ] هم [شنډه ده ] دکومې چه سره دروغ والی اولاد نه دې شوې په دې عادتی اسباب د اولاد کيدو هم نشته [پس ] په دې صورت کښې ﴿فَهَبْ لِيْ مِنْ لَّدُنْكَ﴾ [ تـه مـالره خاص دخپـل طرف نه ] يعنى بې د واسطې دعادتی اسبابو نه ﴿وَلِيًّا ۟ۙ﴾ [ يو داسې وارث ] يعنى ځوئ [ راکړې چه هغه ] زما په علمونو کښې ﴿يَّرِثُنِيْ﴾ [ زما وارث جوړشی ﴿وَيَرِثُ مِنْ اٰلِ يَعْقُوْبَ ۗ﴾ او ] زما دنيکه [ يعقوب ] عليه السلام [ دخاندان ] په ميراثی علمونو کښې هغوی [ وارث جوړشی ] يعنى تير او وروستی ټول علمونه هغه ته حاصل وی [ او ] په وجه دبا عمله کيدو ﴿وَاجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا ۟﴾ ده [لره اے زما ربه ] خپل [ غوره ] او مقبول [ بنده جوړکړې ] يعنى چه عالم هم وی او عمل کوونکې هم دالله تعالى ارشاد ورته په واسطه دملائکو اوشو چه ﴿يٰزَكَرِيَّآ﴾ [ اے زكريا ] عليه السلام ﴿اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمِ ِۨاسْمُهٗ يَحْيٰى ۙ﴾ [ مونږ تاته د يوځوئی خو شخبرې درکوو چه نوم به ئې يحيى وی چه ددې نه وړاندې ] په خاصو صفتونو کښې [ به ﴿لَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ سَمِيًّا ۟﴾ مونږ چالره د دۀ هم صفت نه وی جوړکړې ] يعنى دکوم علم او عمل چه ته دعا کوې هغه به ددې ځوئی ته خامخا ورکړو او په دې دپاسه به ورته څه نور خاص صفتونه هم ورکړو مثلا دالله تعالى دويرې نه په خاص درجه سره دزړۀ نرميدل وغيره چونکه ددعا په دې قبليدو کښې څه خاص کيفيت ئې دبچی کيدونه وو ښودلې په دې وجه ددې دتپوس دپاره [ زكريا ] عليه السلام ﴿قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ﴾ [ عرض وکړو چه اے زما ربه اولاد به څنګه وشی ﴿وَّكَانَتِ امْرَاَتِيْ عَاقِرًا﴾ حال دادې چه زما بی بی شنډه ده او ] دې خوا ﴿وَّقَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا ۟﴾ [ زۀ دزوړ والی انتهائی درجې ته رسيدلې يم ] پس معلومه نه ده چه مونږ به ځوانان شو يا به مالره بله نکاح کول وی او يا به په موجوده حالت کښې اولاد وشی ﴿قَالَ كَذٰلِكَ ۚ﴾ [ ارشاد ورته وشو چه

حالت ] موجوده [ به هم دغه شان وی ] او بیا به اولاد اوشی اے زکریا ﷺ ﴿قَالَ رَبُّكَ﴾ [ ستا درب وینا ده چه ﴿هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ﴾ دا ] کار [ ماته ډیر اسان دې او ] داځکه کوم ددې نه لوئ کار مې کړې دې مثلا ﴿وَقَدْ خَلَقْتُكَ مِنْ قَبْلُ﴾ [ ماتاله پیدا کړو حال دادې چه ] دپیدائش نه وړاند ﴿وَلَمْ تَكُ شَيْئًا﴾ [ ته هیڅ هم نه وې ] دغه شان دعادتی اسبابو نه هم څه شې نه وو هر کله چه ورك لره موجود کول اسان دی نو ډیر موجود نه بل موجود کول څه مشکل دی ؟ دا ټول ارشاد دامید قوی کولو دپاره وو نه چه دشك لرې کولو دپاره ځکه چه د زکریا ﷺ هیڅ شك نه ووکله چه د ﴿قَالَ﴾ [ زکریا ] ﷺ قوی امید پیداشو نو دوی [ عرض وکړو ﴿رَبِّ﴾ چه اے زما ربه ] په وعده خو مې اطمنان وشو اوس ددې وعدې نزدې کیدل دحمل کیدو هم ﴿اجْعَلْ لِّي آيَةً﴾ [ څه نښه زما دپاره مقرر کړئ ] چه زیات شکر وکړم اوبه خپله هم وقوع په ظاهری احساساتو سره وی ﴿قَالَ﴾ [ ارشاد ورته وشو چه ﴿آيَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلَاثَ لَيَالٍ سَوِيًّا﴾ ستا ] هغه [ نښه داده چه ته به درې شپې ] او درې ورځې [ دخلقو سره خبرې ] اترې [ نه شې کولې حال دادې چه روغ جوړبه یې ] څه بیماری وغیره به دربانده نه وی اوبه دې وجه سره به دالله تعالی په ذکر سره قدرت وی نو دالله تعالی په اذن سره دزکریا ﷺ بی بی حامله شوه او دالله تعالی دخبرمطابق دزکریا ﷺ ژبه وتړلې شوه

﴿فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِ مِنَ الْمِحْرَابِ﴾ [ پس دحجرې نه خپل قوم ته راغلو ﴿فَأَوْحَىٰ إِلَيْهِمْ﴾ او دوی ته ئې په اشاره ووئیل ] ځکه چه په ژبه خو ئې خبرې نه شوې کولې ﴿أَنْ سَبِّحُوا بُكْرَةً وَعَشِيًّا﴾ [ چه تاسو خلق سحراو ماښام داخدئ پاکی بیانوئ ] دا تسبیح او امر په تسبیح سره خو یا دمعمول مطابق وو همیشه به ئې تذکیرا په ژبه سره کولو نن ئې په اشاره سره ووئیل یائ ددې نوی نعمت په شکریه کښې په خپله هم تسبیح زیاته وفرمائیله او نوروته ئې هم په دې طور سره امر وفرمائیلو غرض بیا یحیی ﷺ پیداشو او دپوهې عمر ته اورسیدو نو دۀ ته حکم وشو چه ﴿يَا يَحْيَىٰ﴾ [ اے یحیی ] ﷺ ﴿خُذِ الْكِتَابَ بِقُوَّةٍ﴾ کتاب لره چه په هغه وخت کښې هم دغه کتاب شریعت وو او د انجیل نزول وروسته شوی وو [ مضبوط ونیسه ] یعنی په خاص کوشش سره پرې عمل کوه ﴿وَآتَيْنَاهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا﴾ [ اومونږ ده لره ] دۀ [ په وړوکوالی کښې ] ددین ﴿وَحَنَانًا مِّن لَّدُنَّا وَزَكَاةً﴾ [ پوهه اوخاص دخپل طرف نه دزړۀ دنرمیدو ] صفت [ اوپاکیزګی ] داخلاقو [ ورکړې وه ] په حکم کښې علم طرف ته او په حنان او په زکوات کښې داخلاقو طرف ته اشاره وشوه [ او ] وړاند د ظاهری اعمالو طرف ته اشاره فرمائی چه ﴿وَكَانَ تَقِيًّا وَبَرًّا بِوَالِدَيْهِ﴾ [ هغه ډیر پرهیزګار او دخپل مور اوپلار خدمت ګذار وو ] په دې کښې دحقوق الله او حقوق العباد دواړو طرف ته اشاره وشوه [ او هغه ] دخلقو سره ﴿وَلَمْ يَكُن جَبَّارًا عَصِيًّا﴾ [ سر کشی کوونکی ] یادالله تعالی نافرمانی کوونکې [ نه وو او ] دالله تعالی داسې لوئ مرتبې والا او عزتمند وو چه دۀ په حق کښې د الله تعالی دطرف نه دا ارشاد کیږی چه ﴿وَسَلَامٌ عَلَيْهِ﴾ [ ده ته د ] دالله تعالی ] سلام ورسیږی ﴿يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا﴾ په کومه ورځ چه دې پیداشو او په کومه ورځ چه دې وفات کیږی او په کومه ورځ چه ] په قیامت کښې [ ژوندې پورته کیږی ]

## معارف او مسائل

دسورة كهف نه پس سوة مريم ايخودل شايد په دې وجه وي چې ځنگه سورة كهف په ډېرو عجيبه واقعاتو باندې مشتمل وو هغسې په سورة مريم كښې هم ناآشنا واقعات بيان شوي دي. [روح المعاني] [1] ﴿كٓهٰيٰعٓصٓ﴾ د احروف مقطعات او د متشابهاتو ځيني دي ،چې سوا د الله نه يې بل هيڅوك هم علم نه لري ځكه ئې لټون پسې لګيدل هم ښه خبره نه ده. ﷻ

﴿نِدَآءً خَفِيًّا﴾ دې نه معلومه شوه چې دعا په غلي آواز كښې په پټه كول زيات غوره دي د سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه په روايت نبى كريم ﷺ فرمائيلي دي چې : ﴿ان خيرالذكر الخفي وخير الرزق مايكفي﴾ [زيات غوره ذكر په رو آواز سر كول دي او زيات غوره رزق هغه دې چې كار پرې روان وي] [قرطبى] [2] ﴿إِنِّي وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّي وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا﴾ د هډوكو د كمزورتيا بيان ئې ځكه اوكړو چې هم په دې باندې بدن اډانړه وي او ددې كمزوري كيدل د بدن كمزوري كيدل دي ، د اشتعال لفظي معني لمبه كيدل دي ، دلته د لمبه كيدو نه مراد سپين ويښته اخستې شوي دي چې په ټول سر باندې سپينوالي خور شوې دې.

**په دعا كښې خپله حاجت مندي ښكاره كول مستحب دي** :: دلته ددعا كولو نه مخكښې زكريا ﷺ خپله كمزوري او ضعيفي بيان كړه يوه وجه خو ئې هغه ده چې د تفسير په خلاصه كښې ورته داسې اشاره ده چې د حالاتو تقاضا خو دا وه چې د اولاد خواهش او نه لرم. امام قرطبي په خپل تفسير كښې دويمه وجه داهم بيان كړې شوې ده چې ددعا غوښتو په وخت د خپلې ضعيفۍ ، بدحالۍ اوته حاجت مندئ بيان كول ددعا قبليدو دپاره ډيره نزدې خبره ده. په دې وجه علماء كرامو فرمائيلي دي چې انسان لره ددعا كولو نه وړاندې د الله ﷻ دنعمتونو او دخپلې حاجت مندئ بيان كول پكار دي. [3]

﴿الْمَوَالِيَ﴾ دمولى جمع ده ، په عربي ژبه كښې دا لفظ د ډېرو معنو دپاره استعماليږي ، په هغې كښې يوه معنى ئې تربوران اوخپل عصبه ذي او دلته ترې هم دغه مراد دي.

**د پيغمبرانو ﷺ په مال كښې ميراث نه چليږي** :: ﴿يَرِثُنِي وَيَرِثُ مِنْ آلِ يَعْقُوبَ﴾ د جمهورو علماء كرامو په اتفاق سره دلته ترې مالي ميراث مراد ځكه نه دې چې اول خو دا ثابته نه ده چې ګنې زكريا ﷺ دډير مال دولت خاوند وو چې دهغې فكر به ګنې ورسره وو ، بله دا چې دغسې فكرونه كول د پيغمبر دشان سره نښائيږي. دې نه علاوه يو صحيح حديث پاك داسې دې په كوم كښې چې د صحابه كرامو رضي الله عنهم اجماع ثابته ده. هغې كښې داسې بيان راغلي دي.

| ان العلماء ورثة الانبياء وان الانبياء لم يورثوا دينارا ولا درهما انما ورثوا العلم فمن اخذه اخذ بحظ وافر [رواه احمد وابوداؤد وابن ماجه والترمذي] [4] | بيشكه علماء وارثان دي د انبياء كرامو ځكه چې انبياء كرامو ﷺ د دينارونو او درهمونو وراثت نه پريږدي بلكه دهغوئ وراثت علم دې ، چا چې علم حاصل كړو هغه ډير لوئې دولت حاصل كړو. |
|---|---|

[1] ) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:٥٧]
[2] ) مجمع الزوائد رقم الحديث :[١٦٧٩٥]و تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١١ص:٧٦]
[3] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١١ص:٧٧]
[4] ) (١) مسنداحمد ، باقي احاديث ابي الدرداء رضي الله عنه رقم الحديث:[٢٢٣٤٧]، و سنن ابوداود، كتاب العلم ، باب فضل العلم [ج:٢ص:١٥٧ ]و جامع الترمذي ، كتاب العلم باب ماجاء في فضل الفقة على العبادة [ج:٢ ص:٩٧. ٩٨]

داحديث پاك دشيعه ګانو په كتابونو ، كافي ، كليني وغيره كښې هم موجود دي . او په صحيح بخاري كښې د عائشه صديقه ﷞ نه روايت دې چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې:
﴿لا نورث وما تركنا صدقة﴾(۱)[مونږ [پيغمبران] مالي ميراث نه پريږدو بلكه زمونږ نه پاتې مال ټول صدقه وي]
پخپله هم په دې آيت مبارك كښې د ﴿يَرِثُنِي﴾ نه پس ﴿وَيَرِثُ مِنْ آلِ يَعْقُوبَ﴾ راوړل ددې دليل دې چې مالي ميراث ترې مراد نه دې ځكه چې كوم هلك د پيدائش دعا كيږي د هغه آل يعقوب دپاره مالي وارث جوړيدل په ظاهره ممكن نه دى ځكه چې د آل يعقوب وارثان ددوئ قريبي عصبات وى. او هم دا موالي دى د كوم ذكر چې په دې آيت مبارك كښې راغلې دې ، هغه بيشكه په قرابت او عصوبت كښې حضرت يحيى ﷺ ته نزدې ده .چې كله اقرب موجود وى او وراثت بل ته ملاويږى نو دا دوراثت د اصولو ځخه خلاف دى.
نو روح المعاني كښې د شيعاګانو دكتابونو په حواله داهم نقل شوى دى :﴿روى الكليني في الكافي عن ابي البختري عن ابي عبدالله قال ان سليمان ورث داود و ان محمدا ﷺ ورث سليمان﴾(۲)
داښكاره خبره ده چې دا احتمال او امكان هيچرې نه شو كيدې چې ګنى محمد ﷺ به د سليمان ﷺ مالي وارث جوړ شي .بلكه دې نه د پيغمبرئ د علمونو وارث كيدل مراد دى.
دې نه دا هم معلومه شوه چې ﴿ورث سليمان داود﴾(۳) كښې هم مالي ميراث وړل مراد نه دى.
﴿لَمْ نَجْعَلْ لَّهُ مِنْ قَبْلُ سَمِيًّا﴾ دسمى معنى د يو نوم خاوند كيدل اود چا په پشان كيدل دى ، دلته كه ړومبئ معنى ترې واخستې شي نو مطلب ئې واضح داسې دې چې په يحيى نوم باندې بل څوك نه دې تير شوې.
د نوم دې ځانګړې توب كښې د هغوئ ځينې خاص صفتونو كښې ځانګړى توب ته هم اشاره ده ځكه ئې په دې خاص صفت سره اوبللو .
اوكه دويمه معنى ئې مراد واخستې شي نو مطلب به ئې دا راوځي چې د دوئ ﷺ ځينې خاص صفتونه او حالات داسې دى چې په پخوانو انبياء كرامو كښې په دغې صفتونو سره موصوف بل نبى نه وو. يعنى په دې ځينې خاص صفتونو كښې بې مثله وو ، لكه حصور ، وغيره وو ، په دې بنا ددې ځخه دا نه معلوميږى چې يحيى ﷺ ګنى د ټولو پيغمبرانو ﷺ نه مطلقا زيات غوره وو ځكه چې د خليل الله ﷺ او كليم الله ﷺ د هغوئ نه زيات غوره كيدل مشهوره اومنلې شوې خبره ده . [مظهرى](۴)
﴿عِتِيًّا﴾ داد عتو ځخه مشتق دې چې ددې اصلى معنى اثر قبلول دى ، ددې ځخه مراد هډوكو اوچيدل دى.
[سَوِيًّا]معنى ئې روغ جوړ ده ، دا لفظ په دې وجه زيات كړې شو چې د زكريا ﷺ چا سره خبرې نه كول د څه رنځ بيمارئ په وجه نه وو بلكه د معجزې په طور د بى بى دحامله كيدو يوه

(۱) صحيح البخاري كتاب المغازي ،باب حديث بني نظير [ج:۲ص:۵۷۵]
(۲) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۶ ص:٦٤]
(۳) ترجمه:-او داؤد د سليمان قائمقام جوړ شو.
(۴) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:۸٤، ۸٥]

نخښنه وه، نو دالله ﷻ ذکر او عبادت باندې دغه درې واړه ورځې د هغوئ ؑ ژبه مبارکه چليده.
«حَنَانًا» ددې لفظي معنی زړه نرميدل او رحمت او شفقت کول دي کوم چې يحيی ؑ ته په امتيازي او خصوصي ډول ورکړې شوې وو.

حَيًّا ⑮ وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مَرْيَمَ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا

ژوندي | او بيان کړه | په دې کتاب کښې | [واقعه د] مريم | کله چې هغه يو طرفته لاړه | د اهل خپل نه

[ائې نبي] کتاب [يعني قرآن] کښې د مريم هم ذکر اوکړه څه وخت چې د کور د خلقو نه جدا شو

مَكَانًا شَرْقِيًّا ⑯ فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُوْنِهِمْ حِجَابًا فَأَرْسَلْنَآ

يو ځائې ته | چې نمر خاته طرف وو | او جوړه ئې کړه | طرفه د دوئ ته | يوه پرده | نو اوليږو مونږه

دنمر خاته اړخ يو مکان ته لاړه نو د خلقو دمخې نه ئې پرده اوکړه نو مونږ ورته خپله خاص فرښته اوليږله

إِلَيْهَا رُوْحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ⑰ قَالَتْ

هغې ته | روح خپل | نو شکل جوړ کړو هغه فرښتې | هغې [مريم] ته | انسان | پوره | اووئيل مريم

چې دهغې په وړاندې د سم دم بنيادم په شان ښکاره شوه هغې اووئيل چې

إِنِّيْٓ أَعُوْذُ بِالرَّحْمٰنِ مِنْكَ إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا ⑱

چې بيشکه زۀ | پناه غواړم | په رحمن سره | ستا نه | که ئې ته | يريدونکې د الله نه |

زه تا نه د رحمان [په نامه] پناه غواړم که ته د الله ﷻ نه ويريږې

قَالَ إِنَّمَآ أَنَا رَسُوْلُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلٰمًا زَكِيًّا ⑲

اووې هغه فرښتې | بيشکه | زۀ | استازې يم | درب ستا | چې درکړم | تاته | هلك | پاك [صالح] |

فرښتې اووئيل چې زه ستا درب رااليږلې شوې فرښته يم چې زه تاته يو پاکيزه هلک درکړم

قَالَتْ أَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ

اووئيل مريم | څنګه به پيدا شي | زما | هلك | حال دا چې ګوتې نۀ دې راوړې ماته | هيڅ يو انسان

هغې اووئيل چې زما لا څنګه هلک کيديشي حال دادې چې نه راله بنيادم لاس راوړې دې

وَّلَمْ أَكُ بَغِيًّا ⑳ قَالَ كَذٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ هُوَ

اونه يم زۀ | زناکاره [ښځه] | اووئيل فرښتې | هم دغسې به کيږي | فرمائيلي دي رب ستا | دا کار

اونه زه بدکاره يم فرښتې اووئيل چې دغسې به کيږي ستارب فرمائيلي دي داکار

عَلَيَّ هَيِّنٌ وَلِنَجْعَلَهٗٓ اٰيَةً لِّلنَّاسِ

په ما باند | اسان دي | او کوؤ دا کار دپاره ددې چې اوګرځوو هغه هلك | يوه نښه | دپاره دخلقو

........ماته ډير اسان دي او دا ځکه چې مونږ ........ داخلقو دپاره يو نخښه او [ذريعه د]

وَرَحْمَةً مِّنَّا وَكَانَ أَمْرًا مَّقْضِيًّا ㉑

او رحمت | دخپل طرفنه | او دي دا کار | خامخا کيدونکې |

رحمت جوړ کړو او دا يوه فيصله شوې خبره ده

## آسان ترجمه قرآن

اوپه دې كتاب كښې د مريم هم تذكره اوكړه. دهغه وخت تذكره چه كله هغه د خپل كور د خلقو نه بيليدو سره هغه طرف ته لاړه كوم چه د مشرق طرف ته واقع وو. بيا هغې د هغه خلقو او خپل مينځ كښې يوه پرده واچوله په دې موقع بانديې مونږ هغې ته خپل روح (يعنې يوه فرشته) راوليږله چه د هغې مخكښې د يو مكمل انسان په شكل بانديې ظاهر شو مريم اووئيل: زه ستا نه د رحمٰن ذات پناه غواړم. كه په تا كښې د الله پاك ويره وي (نو د دې ځائې نه څه) فرشتې اووئيل: زه خو ستا د رب راليږلې شوې (فرشته) يم. (او د دې دپاره راغلې يم) چه تا ته يو پاك هلك دركړم مريم اووئيل: زما به هلك څنګه پيدا شي. حال دا چه ما ته هيڅ بشر لاس نه دې راوړلې. او نهٔ زهٔ بدكاره زَنانه يم؟ فرشتې اووئيل: هم دغه شان به كيږي. ستا رب فرمائيلې دي چه: دا زما دپاره معمولي خبره ده. او مونږ دا كار د دې دپاره كوو چه هغه هلك د خلقو دپاره (د خپل قدرت) يو نخښه كړو. او دخپل طرف نه د رحمت مظاهره اوكړو او دا خبره پوره طريقې سره فيصله شوې ده.

## خلاصه تفسير

[ او] اے محمد ﷺ ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مَرْيَمَ ۘ﴾ [ په دې كتاب ] يعنی قرآن په دې خاص حصه يعنی سوره [ كښې د] حضرت [مريم ] عليها السلام [ قصه ذكر كړه ] چه دغه دحضرت زكريا عليه السلام ددې ذكر شوې قصې سره خاص مناسبت لرى او دغه هغه وخت شوه ﴿اِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ اَهْلِهَا﴾ [ كله چه هغه د خپل كور والونه جدا] شوه ﴿مَكَانًا شَرْقِيًّا ۙ﴾ [ په يو داسې مكان كښې كوم چه مشرق طرف ته وو ] دغسل دپاره ﴿فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُوْنِهِمْ حِجَابًا ۪﴾ [ لاړه بيا دې د] كورد [ خلقو نه ] په مينځ كښې [ پرده وغورزوله ] چه ددوى نه پناه غسل وكړى [ پس ] په دغه حالت كښې ﴿فَاَرْسَلْنَآ اِلَيْهَا رُوْحَنَا﴾ [ مونږ خپله فرښته ] جبرائيل عليه السلام [ وليږلو او هغه ] فرښته [ ددې په وړاند] په لاسو پښو صورت او شكل كښې ﴿فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ۝﴾ [ يو پوره سړې جوړشو ښكاره شو ] چونكه حضرت مريم عليها السلام دهٔ لره انسان اوګڼړلو په دې وجه ويريده ﴿قَالَتْ اِنِّيْٓ اَعُوْذُ بِالرَّحْمٰنِ مِنْكَ اِنْ كُنْتَ تَقِيًّا ۝﴾ [ وفرمائيل چه زهٔ خو تانه په خپل خدائې پناه غواړم كه ته ] څه [ دخدائې نه ويريږې ] نو ددې خائې نه به لرې شې ﴿قَالَ﴾ [ فرښتې ووئيل چه ] زهٔ بشر نه يم چه ته ما نه ويريږې بلكه ﴿اِنَّمَآ اَنَا رَسُوْلُ رَبِّكِ ۖ﴾ [ زهٔ خو ستاد رب راليږلې شوې ] فرښته [ يم ] په دې وجه راغلې يم ﴿لِاَهَبَ لَكِ غُلٰمًا زَكِيًّا ۝﴾ [ چه تاته يو پاكيزه هلك دركړم ] يعنی چه ستا خلې يا ګريوان كښې به پوكې وكړم چه دهغې په اثر به سره ستا حمل شى او هلك به د وشى [ هغې ] په تعجب سره ﴿قَالَتْ﴾ [ وفرمائيل ] نه چه په انكارسره ﴿اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ﴾ [ چه زما هلك به څنګه وشى حال دادې چه ] ددې عادتى شرط خو دسړى سره يو ځائې كيدل دى او هغه بلكل نشته ځكه چه ﴿وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ﴾ [ مالره هيڅ بشر لاس قدر نه دې راوړې ] يعنی نه مې نكاح شوې ده ﴿وَّلَمْ اَكُ بَغِيًّا ۝ قَالَ كَذٰلِكِ ۚ﴾ [اونه زهٔ بدكاره يم فرښتې ووئيل چه ] بس بغير دچابشر دلاس دروړونه [ هم دغسې ] هلك [ به وشى ] او زهٔ دخپل طرف نه نه وايم بلكه ﴿قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ ۚ﴾ [ ستا رب ارشاد فرمائيلې دې چه داخبره ] چه بغير دعادتى اسبابونه بچې پيداكړم [ ماته اسانه ده او ] داهم فرمائى چه مونږ بغير دعادتى اسبابونه ﴿وَلِنَجْعَلَهٗٓ اٰيَةً لِّلنَّاسِ﴾ [ په دې خاص طور سره ځكه دې

پیدا کوو چه مونږ دې بچی لره دخلقو دپاره یوه نښه ] دقدرت [ جوړه کړو او ] دارنګ دده په ذریعه خلقو ته دهدایت موندو دپاره ﴿وَرَحْمَةً مِّنَّا﴾ [ دده لره باعث درحمت جوړ کړو او دا] بې پلاره بچې پیدا کیدل ﴿وَكَانَ أَمْرًا مَّقْضِيًّا﴾ [ یوه مقرر شوې خبره ده ] چه خامخا به کیږي.

## معارف او مسائل

﴿انْتَبَذَتْ﴾ نبذ نه مشتق دې چې معنی ئې لرې اچول اوغورزول دی ، په دې بنا د انتباذ معنی دخلقو دګنړې نه یو خواته لرې تلل دی . ﴿مَكَانًا شَرْقِيًّا﴾ [ یعنی کور کښې دننه د ختیز اړخ یو ګټ ته لاړه ] ګټ ته تلل په څه غرض وو؟ په دې کښې مختلف احتمالونه اواقوال دی . څینی وئیلي دی چې غسل کولو دپاره ګټ ته ورغلې وه ،څینو وئیلی دی چې دخپل عادت مطابق د الله ﷻ په عبادت کښې د مشغولیدو دپاره دکوټګۍ دختیز طرفته یو ګټ ئې نیولې وو.
قرطبی رحمه الله دغه دویم احتمال زیات ښهٔ بللې دې ، د ابن عباس رضی الله عنهما نه منقول دی چې نصارې چې د ختیز طرف تعظیم کوی او هغه ئې قبله جوړه کړې ده نو ددې وجه هم دغه ده.[1]
﴿فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا رُوحَنَا﴾ روح نه مراد د جمهورو په نزد جبرائیل دې . او څینو وئیلی دی چې پخپله عیسی علیه السلام تر مراد دې ، الله ﷻ بی بی مریم ته د هغې نه دپیداکیدونکی ماشوم یعنی عیسی علیه السلام په شکل کښې دهغې مخې ته راوستو خو رومبې قول غوره دې څکه چې وړپسې کلماتو نه ئې تاکید کیږي.
﴿فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا﴾ أصلی صورت او شکل کښې فرښتې لره لیدل د انسان د وس نه بهر څکه دی چې دهغې هیبت پرې راځی څنګه چې په نبی کریم ﷺ باندې په غار حرا کښې او ددې نه روستو هیبت راغلې وو. په دې خاطر جبرائیل علیه السلام بی بی مریم ته په انسانی شکل کښې رامخامخ شوې وو. بی بی مریم علیها السلام چې یو پردې سړې په پرده کښې داخلیدونکې اولیدو اراده ئې ورته خرابه معلومه شوه څکه ئې اوفرمائیل:
﴿إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَٰنِ مِنكَ إِن كُنتَ تَقِيًّا﴾ [ زه د رحمان پناه غواړم تا نه که الله ﷻ نه ویریدونکې ئې ] څینو روایتونو کښې راغلی دی چې جبرائیل علیه السلام دغه کلمه واؤریده نو د الله ﷻ د نوم مبارك د تعظیم په خاطر څهٔ قدرې پشا شو.
﴿إِن كُنتَ تَقِيًّا﴾ داکلمه عموماً په داسې موقعه وئیلې شی لکه چې یو مجبور فریادی د یو ظالم د زور نه دځان خلاصولو دپاره ئې ورشئ مطلب داچې که ته مؤمن ئې نو په ما باندې ظلم مه کوه. ستا ایمان ددې ظلم نه د ایسارولو دپاره کافی کیدل پکار دی . دلته هم مطلب دادې چې تاله مناسب دی چې الله ﷻ نه ویریږې او غلط قدم اوچتولو نه ځان اوساتې
خلاصه داده چې ﴿إِن كُنتَ تَقِيًّا﴾ د پناه غوښتو شرط نه دې . بلکه دپناه غوښتو دمؤثر کیدو شرط ، د شوق پیدا کولو دپاره دې . او څینو مفسرینو فرمائیلی دی چې دا کلمه د مبالغې په ډول راوړلې شوې ده چې که ته متقی هم یې بیا هم تا نه د الله ﷻ پناه غواړم اوکه ددې خلاف وې نو معامله ښکاره ده . [مظهری].[2]

---

[1] تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١١ص:٩٠]
[2] تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٨٨]

﴿لِأَهَبَ لَكِ﴾ دلته د اولاد وركول خكه جبرائيل ﷺ خان ته منسوب كړي دي چې الله ﷻ هغه دې كار دپاره ليږلې وو چې په ګريوان كښې وته پوك وهل به د اولاد وركولو ذريعه جوړه شي اګر چې دا وركول په اصل كښې د الله ﷻ كار دي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَرَحْمَةً | مِّنَّا ۚ | وَكَانَ أَمْرًا | مَّقْضِيًّا ﴿٢١﴾ | فَحَمَلَتْهُ |
| او رحمت | دخپل طرفنه | او دې دا كار | خامخا كيدونكې | نو اميدواره شوه مريم په هلك سره |

رحمت جوړ كړو او دا يوه فيصله شوې خبره د نو دهغې بچې په ګيډه شو نو د خپل [حمل] سره يولرې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَانْتَبَذَتْ | بِهِ | مَكَانًا | قَصِيًّا ﴿٢٢﴾ | فَأَجَاءَهَا |
| نو لاړه يوې ددې ته مريم | دغه حمل سره | يو خائې ته | چې لرې وو | پس راوسته هغه |

خائې ته لاړه نو د زيږون دردونو ........... دكهجورې يوې ونې ته راوستله

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْمَخَاضُ | إِلَىٰ جِذْعِ النَّخْلَةِ ۚ | قَالَتْ | يَا لَيْتَنِي |
| دردونو دبچې دپيدا كيدلو | تنې دونې دكجورې ته | اووئيل هغې | افسوس دې په ما باندې |

او هغې اووئيل چې هائې افسوس كه زه ددې نه پخوا مړه شوې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِتُّ | قَبْلَ هَٰذَا | وَكُنتُ | نَسْيًا مَّنسِيًّا ﴿٢٣﴾ | فَنَادَاهَا |
| چې مړه وې زهٔ | وړاندې ددې نه | اووې زهٔ | هيره دزړونونه وتلې | نو فرښتې اواز اوكړو هغې ته |

او هيره تيره شوې وې بيا [فرښتې] ورته دلاندې نه اړخ ته اواز اوكړو چې هيڅ غم مه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِن تَحْتِهَا | أَلَّا تَحْزَنِي | قَدْ جَعَلَ | رَبُّكِ | تَحْتَكِ | سَرِيًّا ﴿٢٤﴾ |
| دښكته طرف دهغې نه | چې مهٔ غمژنه كيږه | پيدا كړې ده | رب ستا | ښكته طرف ستانه | يوه چينه |

كوه ستارب ستا در پښو لاندې يوه چينه راپيدا كړې ده

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَهُزِّي | إِلَيْكِ | بِجِذْعِ النَّخْلَةِ | تُسَاقِطْ | عَلَيْكِ | رُطَبًا جَنِيًّا ﴿٢٥﴾ |
| اوخوزوه تهٔ | خان خپل ته | تنه دونې دكجورې | راوبه غورزوې | تاته | كجورې \| تازه |

او د كهجورې دابوتې خپل خان ته راوخنده ددې نه به درته تازه كهجور راوغورزيږي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَكُلِي | وَاشْرَبِي | وَقَرِّي عَيْنًا ۖ | فَإِمَّا | تَرَيِنَّ | مِنَ الْبَشَرِ | أَحَدًا |
| پس خوره | او څكه | او يخې كړه \| سترګې | نو كه چرې | او ليدلو تا | دانسانانو نه | يو كس |

نو ته خوره اوڅښه او خپلې سترګې [دخوشې په ديدن] يخوه او كه چرته يو بنيادم اووينې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقُولِي | إِنِّي نَذَرْتُ | لِلرَّحْمَٰنِ | صَوْمًا | فَلَنْ أُكَلِّمَ |
| نو اووايه [ورته] تهٔ | چې بيشكه نذر منلې دې ما | دپاره درحمن | دروژې | نو هركز به خبرې نهٔ كوم زهٔ |

نو [په اشارت] ورته اووايه چې ما درحمان [الله ﷻ] په نامه دروژې نذر منلې دې نو زه نن دهيچا بنيادم

| | |
|---|---|
| الْيَوْمَ | إِنسِيًّا ﴿٢٦﴾ |
| نن ورځ | ديو انسان سره |

سره خبرې اترې نه كوم

## آسان ترجمه قرآن

بیا داسې اوشوه چه مریم په هغه ماشوم سره حامله شوه. (اوکله چه د ولادت وخت نژدې شو) نو هغې هغه واخستلو اود خلقو نه جدا لرې ځائې ته لاړه. بیا د زیږولو درد هغه د کهجورې یوې اونې ته اورسوله. هغې اووئیل: کاش چه زه د دې نه مخکښې مړه وې، او د مرګ نه پس هیره شوې وې! بیا فرشتې هغې ته د لاندې یو ځائې نه آواز اوکړو چه غم مه کوه. ستا رب ستا نه لاندې یو چینه پیدا کړې ده. او د کهجورې تنه خپل طرف ته اوخوزوه. دهغې نه به په تا پاندې تازه کهجورې راغورځیږي. اوس خوره، او څکه. او سترګې یخې کړه او که په خلقو کښې څوک را اوګوره نو (په اشارې سره) وایه چه: ما اَلله د رحمٰن ذات دپاره د روژې نیت کړې دې، په دې وجه زه به د هیڅ انسان سره هم خبرې نه کوم.

## خلاصه تفسیر

[بیا] ددې خبرونه پس جبرائیل ﷺ ددې په ګریوان کښې پوکې وکړو چه په دې سره [ددې هلك په ګیډه شو [بیا ] کله چه په خپل وخت باندې حضرت مریم ﷺ ته دبچي دپیداکیدو نښې معلومې شوې نو ﴿فَحَمَلَتْهُ﴾[ددې حمل سره ] دخپل کورنه ﴿فَانْتَبَذَتْ بِهٖ مَكَانًا قَصِيًّا﴾ [ چرته لرې ځایٔ ته ] ځنګل یاغرۀ ته [ جدا لاړه بیا ] کله چه درد شروع شو نو ﴿فَاَجَآءَهَا الْمَخَاضُ اِلٰى جِذْعِ النَّخْلَةِ﴾[ دبچي کیدو دردپه وجه سره دکجورې اونې ته راغله ] چه ددې په سهاره پاخې کښینې اوس حالت دا وو چه نه څوك ملګرې شته او نه څه سامان د راحت او ضرورت شته او ددردونو نه بې ارامه او دبچي کیدو د بدنامۍ خیال اخر اوبریده ﴿قَالَتْ يٰلَيْتَنِيْ مِتُّ قَبْلَ هٰذَا﴾[ وېٔ وئیل کاش زۀ ددې ] حالت [ نه وړاندې مړه وې ﴿وَكُنْتُ نَسْيًا مَّنْسِيًّا﴾ او داسې ورکه شوې وې چه دچا یاده هم نه وې پس ] دغه وخت دخدایٔ تعالی په حکم سره حضرت [جبرائیل] ﷺ راورسیدو او ددې د احترام په وجه مخامخ رانغلو بلکه په کوم مقام کښې چه حضرت مریم ﷺ وه ددغه نه لاند په یو پناه ځایٔ کښې راغلو او هغه [ دې ته ] ددغه ﴿فَنَادٰىهَا مِنْ تَحْتِهَآ﴾[ لاندې ځایٔ نه اوازوکړو ] چه دا حضرت مریم ﷺ وپیژندو چه دا هم دهغې فرښتې اواز دې کومه چه اول ښکاره شوې وه [ چه ته ] دبې سروسامانۍ نه یا بد نامۍ نه ﴿اَلَّا تَحْزَنِيْ﴾[ مه غمژنه کیږه ] ځکه چه دبې سرو سامانۍ خو دا انتظام شوې دې چه ﴿قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا﴾[ ستارب ستانه ] په [ لاندې ] مکان [ یونهر پیداکړې دې ] چه په لیدو او اوبو څښلو سره دطبیعت ښه وی دارنګ د روالمعانی د روایت مطابق دادغه وخت تږې شوې هم وه او دطبی مسئلې مطابق د ګرمو څیزونو استعمال دبچي کیدو نه وړاندې یا روستو بچې کیدل هم اسانوی او طبیعت هم ښه کوی او په اوبو کښې که هم ګرموالې وی لکه داکثرو چینوپه اوبو کښې چه وی نو نور زیاتې موافق وی دمزاج سره دارنګ کجورې چه غذا په کښې هم ډیره ده وینه زیاتوی قوی کونکې دګردې ملا او جوړونو ده نو په دې وجه دځلوېښتې دښځې دپاره دتولو خوراکونو او دوایانونه غوره ده او دګرموالی په وجه چه په دې کښې کوم دضرر احتمال دې نو اول خو داده چه په لونده کښې حرارت کم وی دویم په اوبو سره ددې اصلاح کیږی دریم ددې ضرر هله ښکاره کیږی چه په اندامونو کښې کمزوری وی ورنه هیڅ شې هم دڅه ناڅه ضرر نه خالی نه وی دارنګ دخرق عادت کرامت ښکاره کیدل دالله تعالی په نزد دمقبولیت دعلامې په وجه سره سبب د روحانی خوشحالۍ وی ﴿وَهُزِّيْٓ اِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ﴾[ اوددې کجورې تنې لره ] ونیسه

﴿تُسٰقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا﴾ [ خپل طرف ته يې وخوز وه ددې نه به تاته ترو تازه كجورې راوغورزيږي ] چه په دې سره به تاته دميوې په خوړلو جسماني لذت او په طور دخرق عادت دميوې په راتلو كښې روحاني لذت جمع شي [بيا] دې ميوې لره ﴿فَكُلِي وَاشْرَبِي﴾ [ خوره او ] دغه اوبه [ څښه او ﴿وَقَرِّي عَيْنًا﴾ ستر كې يخې كړه ] يعني دبچي په ليدو او په خوړلو څښلو او دالله تعالى په نزد دقبوليت په نښو خوشحاله شه [ بيا ] كله چه د بدنامۍ داحتمال موقع راشي يعني څوك په دې قصه باندې خبرشي نو دهغې دا انتظام شوې دې چه ﴿فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ أَحَدًا﴾ [ كه ته په بنيادمو كښې څوك هم ] تاته راتلونكې او اعتراض كوونكې [ ووينې نو ] ته څه مه وايه بلكه په اشاره ده ته ﴿فَقُولِي إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمٰنِ صَوْمًا﴾ [ ووايه چه ما دالله تعالى دپاره ] د داسې [ روژې نذر منلى دې ] چه خبرې په كښې بندې دى [پس] په دې وجه [ زه نن ] توله ورځ ﴿فَلَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنْسِيًّا﴾ [ دچاسرې سره خبرې نه كوم ] او دخدائ تتعالى په ذكر او دعا كښې مشغوليدل خو بله خبره ده پس ته دغه هومره جواب وركړه بې فكره شه الله تعالى به دا نوې پيداشوې خوش بخت بچې په خپله گويا نه كړي چه په دې معجزه ښكاره كيدو به ستا دپاكدامنۍ او پاكوالى دليل وشي غرض د هر يو غم علاج وشو بې فكره اوسه.

## معارف او مسائل

**دمرګ د خواهش كولو حكم:** د مرګ دغه خواهش كول كه ددنيا د غم په وجه وو نو د حال غلبه به د دهغې عذر بللې شي ، چې انسان باندې د هر طرفنه ذمه داري نه وي اوكه ددين د غم په وجه وو چې خلق به مې بدنامه كړي او كيدې شي چې زه پرې صبر اونه كړې شم . اوبې صبرئي په ګناه كښې به اخته شم ، كه مړه شم نو دغې ګناه نه بهٔ خلاصه شم ، نو دغسې خواهش لرل څه دګناه خبره نه ده . پاتې شوه دا خبره چې مريم بى بى ته ددې وئيلوحكم اوشو چې انسانانو سره خبرې مه كوه بلكه هغوئ ته وايه چې ماد خبرو كولونه روژه نيولې ده . او دا مې منښته كړې ده . حالانكه هغې خو منښته نه وه كړې . ددې جواب دادې چې هم ددې څخه ددې حكم مهفوم هم واضح شو چې تاسو نذر هم منئ او دا ښكاره كوئى هم .

**د خاموشۍ روژه نيول په اسلامي شريعت كښې منسوخ شو:** اسلام نه مخكښې دخاموشۍ روژه نيول اسلامى عبادت كښې شامل وو. يعنى سحر نه تر ماښامه پورې د خبرو اترو نه روژه نيول هم د ثواب كار وو. كله چې اسلام راغلو نو دا منسوخ شو. او دا لازم شوچې خرابو خبرواترو ، كنځلو ، بدورودو ، دروغ وئيلو ، غيبت كولو وغيره نه دې پرهيز كولې شي . عامې خبرې اترې پريخودل په اسلام كښې څه عبادت پاتې نشو ، ځكه ددې منښته منل هم جائز نه دى .

**﴿لما رواه ابوداود مرفوعاً لا يتم بعد احتلام ولا صمات يوم الى الليل[1] وحسنه السيوطى والعزيزى﴾** [پلار مرې چې بالغ شي نو يتيم نه حسابيږي ، يعنى د يتيم احكام پر نه جارى كيږي او نه د صبا نه تر ماښام پورې خاموش پاتې كيدل څه عبادت دې ] او دځائيګون [دبچي] د درد دپاره د اوبو او كهجورو استعمال په طبى لحاظ سره هم مفيد دى ، اود خوراك څكاك حكم وركول په ظاهره د مباحوالى دپاره استعماليږي . [ والله اعلم ]

[1] ) سنن ابوداود، كتاب الوصايا ، باب ماجاء متى ينقطع اليتم [ج:۲ص:۴۱ ]

**سړي سره نزديکت کولو نه بغير د ښځې ماشوم پيداکيدل خلاف دعقل نه دي** :: بغيرد سړي د يو ځائې کيدو نه د ښځې حمله داره کيدل او بچې راوړل د عادت نه خلاف معجزه ده ،خلاف عادت څيزونو کښې که هر څومره لرې والې وي نو څه بديت خو ئې لا څه کوې چې د معجزې ښه په ډاګه کيدل دي . او په دې کښې زيات لرې والې هم ځکه نشته چې د طب او حکمت کتابونو دا په ډاګه کړې ده چې ځنګه د ښځې په منی کښې د غوټه کيدو اثر قبلولو سره د اثر کولو طاقت هم شته . په دې وجه درجا په مرض کښې د اندامونو څه نامکمل صورت هم جوړيږي . ځنګه چې په قانون کښې هم دا خبره په ډاګه شوې ده . نو که دا غوټۀ کوونکې قوت نورهم زيات شي نو دا بۀ زياته لرې خبره نه وي [بيان القرآن]([1])

دلته بي بي مريم ته د کهجورو دتنې خوزولو حکم کښې دا حکمت معلوميږي چې د روزئ حاصلولو دپاره د کوشش کولوسبق ترې حاصل شي ، په دې کښې مقصود دا خودل دي چې د روزئ په حاصلولو کښې کوشش اوخوارى کول د توکل خلاف نه دي ، ګنى الله ﷻ ترې بې خوزولو هم کهجورې راغورزولې شي . [روح المعانی]([2])

﴿سَرِيًّا﴾سَرِ په لغت کښې ورکوټى نهر ته وئيلې شي . په دې موقعه الله ﷻ يو ورکوټې نهر بې د څه واسطې خاص په خپل قدرت سره جارى کړو ، يا د جبرائيل ﷺ په ذريعه ئې چينه جارى کړه . دې باره کښې دواړه قسمه روايتونه شته دي . دلته ددې خبرې لحاظ هم ساتل پکار دي چې د مريم عليها السلام دپاره د تسلئ سامان بيانولو په وخت ئې اول د اوبو بيان اوکړو او بيا د کهجورو بيان ئې اوکړو خو ددې د استعمال په بيان کښې ې اول د خوراك کولو حکم اوفرمائيلو هله ئې د اوبو څکلوحکم داسې اوفرمائيل چې : ﴿فَكُلِي وَاشْرَبِي﴾.

ددې وجه غالبا داده چې انسان دخپل فطرى عادت مطابق د اوبو انتظام اول کوى هله پسته دخوراك دڅيز انتظام کوى،خصوصاپه هغه صورت کښې چې په يوخوراك ورته دتندې لګيدلو يقين وى.خو کله چې داستعمال وخت راشي نو اول خوراك کوى اوبيا اوبه څکى.[روح المعانی]([3])

| تَحْمِلُهُ | قَوْمَهَا | بِهِ | فَأَتَتْ | إِنسِيًّا | الْيَوْمَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې راغستې ني وۀ هغه | قوم خپل ته | سره ددغه بچي | نو راغله | ديو انسان سره | نن ورځ |
| سره خبرې اترې نه کوم بيا هغې ماشوم په غيږ کښې واخستو اوخپل قوم ته ورغله | | | | | |

| مَا كَانَ | يَٰأُخْتَ هَٰرُونَ | فَرِيًّا | شَيْئًا | لَقَدْ جِئْتِ | يَٰمَرْيَمُ | قَالُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نۀ وۀ | اے خور دهارون | ناکاره ته | يو کار | بيشکه راغلې ته | اے مريم | اووئيل خلقو |
| هغوئ ورته اووئيل چې اې مريم! تا ډير بد کار کړې دې ائې دهارون خورې ! | | | | | | |

| فَأَشَارَتْ | بَغِيًّا | أُمُّكِ | وَمَا كَانَتْ | سَوْءٍ | امْرَأَ | أَبُوكِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو اشاره اوکړه هغې | بدکاره | مور ستا | اونۀ وه | دبدئ | سړي | پلار ستا |
| ستاپلار څۀ خراب سړې نه وو اونه ستامور بدکاره وه په دې باندې مريم دماشوم طرفته اشاره اوکړه | | | | | | |

[1]) بيان القرآن تحت هذه الآية [ ج:۷ص:۶۰۵]
[2]) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۶ ص:۸۵]
[3]) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۶ ص:۸۵]

| إِلَيْهِ ۖ | قَالُوا | كَيْفَ | نُكَلِّمُ | مَنْ | كَانَ | فِي الْمَهْدِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه بچی ته | اووئیل خلقو | څنګه | خبری اوکړو مونږه | دهغه چاسره | چی دې هغه | په زانګو کښی [پروت] |

هغوئ اووئیل چې مونږ په زانګو کښي پروت ماشوم سره څنګه خبرې اوکړو

| صَبِيًّا ۝ | قَالَ | إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ ۖ | آتَانِيَ الْكِتَابَ | وَجَعَلَنِي |
|---|---|---|---|---|
| يو ماشوم | اووئیل ماشوم | بیشکه زه بنده دالله یم | هغه راکړو ماته کتاب | او جوړ ئې کړم زه |

عیسی ؑ اووئیل چې بیشکه زه دالله ﷻ بنده یم هغه ماله کتاب راکړې دې او زه ئې نبی جوړ کړې یم

| نَبِيًّا ۝ | وَجَعَلَنِي | مُبَارَكًا | أَيْنَ مَا | كُنْتُ | وَأَوْصَانِي |
|---|---|---|---|---|---|
| نبی | اووې ګرځولم زه | برکتی | هر چرته چی | یم زه | او حکم ئې اوکړو ماته |

او زه ئې برکتی کړې یم په هر ځائې کښې چې زه یم اوهغه ماته دمونځ کولو اودزکوة ورکولو

| بِالصَّلَاةِ | وَالزَّكَاةِ | مَا دُمْتُ | حَيًّا ۝ | وَبَرًّا |
|---|---|---|---|---|
| په مانځه سره | او په زکاة سره | تر څو چی یم زه | ژوندې | او جوړئې کړم زه نیکی کونکې |

حکم راکړې دې ترڅو پورې چې ژوندې یم او زه دخپلې مور خدمت ګزار جوړ کړې یم اوسرکش

| بِوَالِدَتِي | وَلَمْ يَجْعَلْنِي | جَبَّارًا | شَقِيًّا ۝ | وَالسَّلَامُ | عَلَيَّ | يَوْمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دمورخپلې سره | اوګرځولې ئې نه یم زه | سرکشه | بدبخته | او سلام دې | په ماباند | په کومه ورځ |

اوبدبخت ئې نه یم پیدا کړې اوپه ماباندې سلام دې په کومه ورځ چې زه پیدا شوې یم

| وُلِدْتُ | وَيَوْمَ | أَمُوتُ | وَيَوْمَ | أُبْعَثُ | حَيًّا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| چی پیداشوم زه | او په کومه ورځ | چی به مرم زه | او په کومه ورځ | چی به راپاځولې کیږم زه | ژوندې |

اوپه کومه ورځ چې به زه مړ کیږم |..................او په کومه ورځ چې به زه دوباره ژوندې کولې شم

## آسان ترجمه قرآن

بیا هغه دهغې ماشوم سره خپل قوم ته راغله. هغوی اووئیل چه: اې مریم! تا راتګ کړې دې یو غلط کار ته. اې د هارون خورا نه خو ستا پلار بد سړې وو، نه ستا مور بدکاره زنانه وه! په دې باندې مریم د هغه ماشوم طرف ته اشاره اوکړه. خلقو اووئیل چه: مونږ د ځانګو ماشوم سره څنګه خبرې اوکړو؟ (په دې باندې) ماشوم خبرې شروع کړې چه: زه د الله پاک بنده یم. هغه ماته کتاب راکړې دې، او نبی ئې جوړ کړې یم او چرته هم چه زه اوسیږم، زه ئې مبارک کړې یم، او ترڅو چه ژوندې یم، ماته ئې د مونځ او زکوة حکم راکړې دې او زه ئې د خپلې مور فرمانبردار کړې یم، او سرکش سخت زړه والا ئې نه یم جوړ کړې. او (د الله پاک د طرف نه) سلامتي ده په ما باندې په هغه ورځ هم چه کله زه پیدا شوم، او په هغه ورځ هم په کومه ورځ چه به زه مرم، او په هغه ورځ هم چه کله به زه دوباره ژوندې کولو سره پاسولې شم.

## خلاصه تفسیر

غرض د بی بی مریم په دې خبرو تسلی وشوه او حضرت عیسی ؑ پیدا شو ﴿فَأَتَتْ بِهِ قَوْمَهَا تَحْمِلُهُ﴾ [بیا ده لره په غیږ کښې را اخستې] دهغه ځائ نه کلی طرف ته راغله او [ خپل قوم

ته یٔ راوړو خلقو چه وليدل چه ددې ] خو دسره وادهٔ نه دې شوې نو دا بچې دکومه دې بدګمانه شول ﴿قَالُوا يَٰمَرۡيَمُ لَقَدۡ جِئۡتِ شَيۡـًٔا فَرِيّٗا﴾ [ وې وئيل اے مريم تاخو لوئ دغضب كار وكړو ] يعنى نعوذبالله بدكارى د وكړه اوبدكارى چه هر څوك وكړى بنه نه ده ليكن ستا نه داسې كاركيدل زياته دغضب خبره ده څكه چه ﴿يَٰٓأُخۡتَ هَٰرُونَ﴾ [ اے دهارون خور ] ستاسو په خاندان كښې چرې داسې چانه دى كړى چنانچه ﴿مَا كَانَ أَبُوكِ ٱمۡرَأَ سَوۡءٖ﴾ [ ستا پلار څه ناكاره سړې نه وو ] چه ګونډ دهغه نه دا اثر په تاكښې راغې ﴿وَمَا كَانَتۡ أُمُّكِ بَغِيّٗا﴾ [ او نه ستا مور بدكاره وه ] چه دهغې نه دا اثر په تاكښې راغې بيا هارون چه ستا د رشتې ورور دې چه نوم یٔ دهغې هارون نبى په نوم باندې اېښودې شوې دې هغه خومره بنه سړې دې غرض دچاچه خاندان پاك صفا وى دهغوى نه دا حركت كيدل څومره دغضب خبره ده [بى بى مريمې ] داټول تقرير واوريدو هيڅ جواب یٔ ورنه كړو بلكه﴿فَأَشَارَتۡ إِلَيۡهِ﴾ [ بچى طرف ته یٔ اشاره وكړه ] چه دهٔ ته ووايئ څه چه وئيل غواړې دې به جواب دركړى [ دغه خلق ] پوه شول چه داموږ سره مسخرې كوى

﴿قَالُواْ كَيۡفَ نُكَلِّمُ مَن كَانَ فِي ٱلۡمَهۡدِ صَبِيّٗا﴾ [ داسې ګويانه شول چه موږ دداسې سړى سره څنګه خبرې وكړو چه لادغيږې بچې دې ] څكه چه خبرې دهغه سړى سره كيدې شى كوم چه هغه هم خبرې كولې شى پس هركله چه دې بچې دې او په خبرو قادرنه دې نو ددهٔ سره به څه خبرې وكړو په دې كښې [ هغه بچى ] په خپله ﴿قَالَ إِنِّي عَبۡدُ ٱللَّهِ﴾ [ خبرې وكړې چه زهٔ دالله تعالى ] خاص بنده يم نه الله يم لكه جاهلان نصارا مې ګڼړى اونه غير مقبول يم لكه چه يهود به مې ګڼړى او د بنده توب او بياد خاص كيدو مې دانښې دى چه ﴿ءَاتَىٰنِيَ ٱلۡكِتَٰبَ﴾ [ هغه ماته كتاب ]يعنى [انجيل راكړو] يعنى اګر چه ائنده به یٔ راكوى مګر په وجه ديقينى كيدو داسې دې لكه چه یٔ راكړې وى﴿وَجَعَلَنِي نَبِيّٗا﴾ [ او هغه مالره نبى جوړكړو] يعنى جوړبه مې كړى ﴿وَجَعَلَنِي مُبَارَكًا﴾ [ اومالره یٔ بركت والا جوړكړو] يعنى زمانه به خلقوته ددين نفع ورسيږى ﴿أَيۡنَ مَا كُنتُ﴾ [ زهٔ چه كوم ځاىٔ هم يم] زما نه به بركت رسيږى دغه نفع ددين دتبليغ ده خواه كه څوك یٔ قبلوى اوكه نه یٔ قبلوى دوى خو نفع ورسوله ﴿وَأَوۡصَٰنِي بِٱلصَّلَوٰةِ وَٱلزَّكَوٰةِ﴾ [ او هغه ماته دمانځه او زكوات حكم راكړې دې ترڅوپورې چه زهٔ ] په نيا كښې ﴿مَا دُمۡتُ حَيّٗا﴾ [ ژوندې يم ] اوظاهره ده چه اسمان ته دتلو نه پس مكلف نه دې پاتې شوې او دادليل دې دبنده والى لكه چه نور دليلونه دى دخصوصيت ﴿وَبَرَّۢا بِوَٰلِدَتِي﴾ [ اوزهٔ یٔ دخپلې مور خدمت ګار جوړكړې يم ] او چونكه دې بې پلاره پيداشوې دې په دې وجه یٔ دمور تخصيص وكړو ﴿وَلَمۡ يَجۡعَلۡنِي جَبَّارٗا شَقِيّٗا﴾ [ او هغه زهٔ سر كشه بد بخته نه يم جوړ كړې ] چه دخالق دحقونو دادا كولو نه يادمور دحقونو داداكولو نه سركشى وكړم يادحقونو او عملونو په پرېښودو سره بدبختى واخلم ﴿وَٱلسَّلَٰمُ عَلَيَّ يَوۡمَ وُلِدتُّ﴾ [ اوپه ما باندې ] د الله تعالى دطرف نه سلام په كومه ورځ چه پيداشوم ﴿وَيَوۡمَ أَمُوتُ﴾او په كومه ورځ چه به [مرم ] هغه قيامت ته نژدې زمانه دهٔ پس د راكوزيدو داسمان نه مزكې ته﴿وَيَوۡمَ أُبۡعَثُ حَيّٗا﴾ [ او په كوم ورځ چه ] په قيامت كښې [ ژوندې پورته كړې شم ] او دالله تعالى سلام دليل دې دخاص بنده والى

ذٰلِكَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ ۚ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِي فِيهِ يَمْتَرُونَ ۝

دغه | عیسی [خوئي] دمريم دي | او دا ده خبره | حقه | هغه | چې په هغې کښې | خلق شك كوي

دا عيسى ابن مريم وو | دا هغه رښتيا حقيقت دې | په کوم کښې چې خلق شک کوي

مَا كَانَ لِلَّهِ أَنْ يَتَّخِذَ مِنْ وَلَدٍ ۖ سُبْحَانَهُ ۚ إِذَا قَضَىٰ أَمْرًا

نه ښائي الله لره | چې اونيسي | خوئي | پاك دي هغه | كله چې | هغه حكم اوكړي | ديو كار

دالله ﷻ سره نه ښائي | چې هغه دې خان دپاره اولاد اونيسي | هغه پاک دې | کله چې د يو کار فيصله

فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ۝ وَإِنَّ اللَّهَ رَبِّي

نو بيشكه | هغه وائي | هغه كار ته | موجود شه | نو هغه موجود شي | او بې شكه الله | رب زما دي

اوکړي | نو دومره ورته اووائي چې موجود شه | نو هغه کار موجود شي | او بيشکه الله ﷻ زما هم رب دې

وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ۚ هَٰذَا صِرَاطٌ مُسْتَقِيمٌ ۝ فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ

اورب ستاسو دي | پس عبادت كوئ د هغه | دا | لار ده | نيغه | نو اختلاف اوكړو

او ستاسو هم رب دې | نو صرف د هغه عبادت كوئ | هم دغه [د شريعت] سمه لار ده | بيا د اهل كتابو ډلې

مِنْ بَيْنِهِمْ ۖ فَوَيْلٌ لِلَّذِينَ كَفَرُوا

ډلو | په منځ خپل كښې | نو تباهي ده | دپاره د هغه كسانو | چې كفر ئې اوكړو |

په خپل مينځ کښې سره مختلف شوې | نو هغه خلقو دپاره افسوس دې | چې په لويه ورځ [دقيامت] د الله

مِنْ مَشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيمٍ ۝ أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ

دحاضريدو | دورځې لوئې نه | څه ښه اوريدونكى به وي هغوئ | او څه ښه ليدونكى به وي |

د حاضرئ نه ئې انكار كړې دې | په كومه ورځ چې به دوئ مونږ ته واپس راشي | [په دغه ورځ به] څومره

يَوْمَ يَأْتُونَنَا ۖ لَٰكِنِ الظَّالِمُونَ الْيَوْمَ فِي ضَلَالٍ

په كومه ورځ | چې به هغوئ راځي مونږ ته | ليكن دا ظالمان | نن ورځ [په دنيا كښې] | په ګمراهئ

ښه آوريدونكي اوليدونكي وي | ...... خو نن ورځ [په دنيا كښې] ظالمان په ښكاره ګمراهئ كښې دي

مُبِينٍ ۝ وَأَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ إِذْ قُضِيَ

ښكاره كښې [پراته دي] | او اويروه دوئ | دورځې دافسوس نه | كله چې | فيصله كړې شي |

اوته دوئ د افسوس د ورځې [د عذاب] نه اوويروه | كله چې به آخرى فيصله اوكړې شي

الْأَمْرُ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ۝ إِنَّا

كار [دحساب كتاب] | حال دا چې دوئ | په غفلت كښې دي | او دوئ | ايمان نه راوړي | بيشكه

......[خو] دوئ په غفلت كښې پراته دي | او دوى [اوس] ايمان نه راوړي | بيشكه مونږ به

| وَإِلَيْنَا | عَلَيْهَا | وَمَنْ | الْأَرْضَ | نَرِثُ | نَحْنُ |
|---|---|---|---|---|---|

هم مونږه | په میراث کښي اوړو | زمکه | اوهغه څه | چې په دې زمکې باند دی | او خاص مونږ ته به

زمکه او په دې باندې چې څوک اوسیږی دهغې وارثان يُ | اوهم مونږ طرفته به دوئ را واپس کولې شی

يُرْجَعُونَ ۝

واپس کولې شی |

## آسان ترجمه قرآن

دا دې عیسیٰ بن مریم! د هغوی (د حقیقت) په باره کښې حق خبره دا ده چه خلق پکښې شک کوی د الله پاک دا شان نه دې چه هغه ځان له ځوئې اونیسی، د هغه ذات پاک دې، چه کله هغه د یو کار فیصله اوفرمائی نو هغې ته وائی چه : "اوشه" پس هغه اوشی. او (اې پیغمبره! خلقو ته اووایه چه:) الله پاک زما هم رب دې، او ستاسو هم رب دې، په دې وجه د هغه عبادت کوئ. هم دا نیغه لاره ده. بیا هم په هغوی کښې مختلفو ډلو اختلاف جوړ کړې دې، نو چه کله یوه زبردست ورځ اوویني، هغه ورځ به د هغوی لویه تباهی وی چا چه کفر کړې دې په کومه ورځ باندې چه دوی مونږ ته راځی، هغه ورځ به دوی څومره اوریدونکی او کتونکی جوړ شی! خو دا ظالمان نن په ښکاره ګمراهۍ کښې پراته دی. او (اې پیغمبره!) هغوی د دې افسوس د ورځې نه اویروه چه کله د هرې خبرې آخری فیصله اوشی او حال دا چه دا خلق (دې وخت کښې) په غفلت کښې دی، او ایمان نه راوړی. یقین اوکړه چه زمکه او په هغې باندې د ټولو اوسیدونکو وارثان به مونږ یو. او زمونږ طرف ته به ټول واپس کولې شی.

## خلاصه تفسیر

﴿ذٰلِكَ عِيسَى﴾ [ دادې عیسی] ﷺ ﴿ابْنُ مَرْيَمَ﴾ [خوئ د مریم] ﷺ د کوم خبرې او حالاتو چه ذکر شول چه په دې سره معلومیږی چه دې دهغه مقبول بنده دې نه داسې لکه چه عیسایانو دبندګانو دفهرست نه خارج کړې دې او خدایئ ته يُ رسولې دې او نه داسې لکه چه یهودیانو دمقبولیت نه خارج کړې دې او قسم قسم تهمتونو يُ پرې لګولې دی [ زهٔ ] بلکل ﴿قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِي﴾ [ رښتونې خبرې وایم چه په دې کښې دا] افراط او تفریط کوونکی ﴿فِيهِ يَمْتَرُونَ ۝﴾ [ خلق جګړه کوی ] چنانچه دیهودو او انصاراؤ اقوال بره معلوم شول او چونکه دیهودو قول ظاهرا هم موجب دنقص دنبوت وو کوم چه بداهتا باطل دې په دې وجه يُ ددې رد طرف ته په دې موقع توجه ونه فرمائیله په خلاف دقول دنصاراؤ نه چه ظاهرا ثابتوونکې دزیاتوالی دکمال وو چه دنبوت سره يُ دخدایٔ خوئ کیدل ثابتول دی په دې وجه وړاندې ددې رد فرمائی چه ددې نچوړ دادې چه په دې کښې دالله تعالی دنقص ثابتول دتوحید نه دانکار به وجه لازمیږی حال دادې چه ﴿مَا كَانَ لِلَّهِ﴾ [ دالله تعالی شان داسې نه دې چه هغه ] چالره ﴿أَنْ يَتَّخِذَ مِنْ وَلَدٍ﴾ [ اولاد جوړ کړی هغه ] بلکل ﴿سُبْحَانَهُ﴾ [ پاك دې ] ځکه چه دهغه شان دادې چه ﴿إِذَا قَضَى أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ۝﴾ [ هغه کله یو کار کول وغواړی نو بس دومره ورته وفرمائی چه وشه پس هغه وشی ] او دداسې کمال په واسطه د اولاد کیدل عقلا نقص دې [ او ] ته دتوحید ثابتولو دپاره خلقوته ووایه چه مشرکان يُ هم واوری چه ﴿وَإِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ﴾ [ بیشکه الله تعالی زما هم

رب دي او ستاسو هم رب دي پس ] صرف ﴿فَاعْبُدُوهُ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ﴾ [ دهغه عبادت کوئ ] او [ دا] توحيد سره ددې عقلي او نقلي دليلونو دقائميدونه پس بيا هم ﴿فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ مِن بَيْنِهِمْ﴾ [ مختلفو ډلو] په دې باره کښې [ ديو بل سره اختلاف جوړ کړې دې ] يعني دتوحيد نه ئې انکار وکړو او قسم قسم مذهبونه ئې ايجاد کړل ﴿فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [ پس ددې کافرانو دپاره ديوې لوئې ] درنې [ ورځې د راتلونه لويه خرابي ] کيدونکې [ ده ] مراد ددې نه دقيامت ورځ ده چه دا ورځ زر کاله اوږده او دهيبتناکې کيدو په وجه به ډيره عظيمه وي ﴿مِن مَّشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيمٍ﴾ [ په کومه ورځ چه داخلق ] دحساب او جزاء دپاره [ زمونږ خوا ته راشي ] په دغه ورځ به ﴿أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ يَوْمَ يَأْتُونَنَا﴾ [ څنګه اوريدونکي اوليدونکي شي ] څکه چه دقيامت په ورځ به داحقيقتونه دنظر په وړاندې شي او ټولې غلطئ به رفع شي ﴿لَٰكِنِ الظَّالِمُونَ الْيَوْمَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾ ليکن [ داظالمان نن ] په دنيا کښې [ څنګه په ښکاره غلطئ کښې ] اخته ﴿وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ﴾ [ دې او ته دې خلقو لره دافسوس کولو دورځې نه اوير وه ﴿إِذْ قُضِيَ الْأَمْرُ﴾ کله چه ] دجنت او دوزخ [ اخرې فيصله وکړې شي ] چه ددې ذکر په حديث شريف کښې دې چه جنت او دوزخ والاؤ ته به مرګ وښودې شي ذبح به کړې شي او دواړو جنتيانو او دوزخيانو ته به دهميشه هميشه په دې حال کښې دژوندې پاتې کيدو حکم واورلې شي رواه الشيخان والترمذي ﴿وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ﴾ [ او دغه وخت بې حده افسوس کول ظاهره ] خبره ده [ او دغه خلق ] نن په دنيا کښې [ په غفلت کښې ] پراته دي ﴿وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ [ او دغه خلق ايمان نه راوړي ] ليکن اخر يوه ورځ به مړه شي ﴿إِنَّا نَحْنُ نَرِثُ الْأَرْضَ وَمَنْ عَلَيْهَا﴾ [ او دټولې مزکې او په مزکه داوسيدونکو وارث ] يعني اخرې مالك ﴿وَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ﴾ [ مونږ به يو او دوی ټول به مونږ ته واپس کړې شي ] بيابه دخپل کفر او شرك سزا وڅکي.

## معارف او مسائل

﴿ذَٰلِكَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ﴾ د عيسى ﷺ باره کښې ديهودو او نصرانيانو خيالونو کښې د زياتي او کمی داحائل وو چې نصرانيانو تر دې حده پورې لوئې اوګڼړلو چې د الله ﷻ خوئې ئې ورته اووئيلو. او يهودو ئې دومره سپکاوې اوکړو چې د يوسف نجار ناجائز اولاد ئې اوبللو. [معاذ الله] الله ﷻ ددې دواړو قسمو غلطو خلقو غلطيانې اوخودلې. ادې صحيح شان ئې دې آيتونو کښې واضح کړو. [قرطبي] [1]

﴿قَوْلَ الْحَقِّ﴾ چې د لام په زور شي نو واضح ترکيب نحوی به ئې داسې وي ﴿أَقُولُ قَوْلَ الْحَقِّ﴾ او په څينې قرآتونو کښې ﴿قَوْلُ الْحَقِّ﴾ په پيښ د لام سره راغلې دې. دې صورت کښې به ئې مطلب دا وي چې عيسى ﷺ پخپله قول حق څکه دې چې د دوئ ﷺ پيداکيدل بې د واسطې ظاهري سبب نه صرف د الله ﷻ په قول سره شوې دی. څنګه چې هم په دې بنا باندې ورته د کلمة الله لقب ورکړې شوې دې. [ قرطبي]. [2]

﴿يَوْمَ الْحَسْرَةِ﴾ دقيامت ورځې ته ﴿يَوْمَ الْحَسْرَةِ﴾ څکه وئيلې شوي دي چې جهنميان به دا ارمان کوي چې که هغوئ نيکاك مؤمنان وې نو ورته به جنت ملاؤ شوې وو چې اوس دجهنم په عذاب

[1]) تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۰۵]
[2]) تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۰۵]

کښې ګير دی. او يو خاص قسم ارمان به د جنتيانو هم وی ، څنګه چې طبراني او ابو يعلی په روايت د معاذ ؓ داحديث پاك روايت كړېدې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې جنتيان به په هيڅ څيز باندې افسوس نه كوی صرف په هغه لمحاتو به كوی كوم چې دالله ﷻ د ذكر څخه بغير تير شوی وی. (۱)

اوبغوی د ابوهريره ؓ نه روايت نقل كړې دی چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې هر مړ كيدونكې به ارمان او پښيمانی كوی ، صحابه كرامو ؓ عرض اوكړو چې ددې به څه وجه وی ؟ نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې نيك عملونه كوؤنكی به په دې ارمان كوی چې نور زيات نيك عملونه مو كړې وې چې د جنت درجې ورته ددې نه زياتې حاصلې شوې وې . او بدكار خلق به په دې ارمان كوی چې هغوئ د خپلې بدكارئ نه ولې منع نشو . [مظهری] (۲)

يُرْجَعُوْنَ۝ وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِبْرٰهِيْمَ ۥ اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا

واپس كولې شی |او ياد كړه | په كتاب كښې | ابراهيم | بيشكه هغه | وو | يو رښتنې انسان

......اوته په دې كتاب [قرآن] كښې دابراهيم ؑ ذكر اوكړه |بيشكه هغه ډير رښتونې نبي وو

نَبِيًّا۝ اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ يٰٓاَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا

اويو نبي وو | كله چې | اووئيل هغه | پلار خپل ته | اے پلاره | ولې تهٔ عبادت كوې | دهغه څه

......كله چې هغه پلار ته اووئيل | ائې زما بابا جانه ته ولې د داسې څيز عبادت كوې |چې نه آوری

لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِيْ عَنْكَ شَيْـًٔا۝ يٰٓاَبَتِ اِنِّيْ

چې نه اوری | او نهٔ وينی | اونهٔ لرې كولې شی | ستانه | څه څيز | اے پلاره | بيشكه زهٔ چې يم

او نه وينی |..........اونه ستا نه څه تكليف لرې كولې شی | اې زما باباجانه بيشكه ماته هغه علم

قَدْ جَآءَنِيْ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَمْ يَاْتِكَ فَاتَّبِعْنِيْٓ

په تحقيق سره راغلې دې ماته | علم[وحی] | هغه | چې نهٔ دې راغلې تاته | نو تابعداری اوكړه زما

نصيب دې | چې هغه تاته نه دې نصيب شوې | ..........نوزما تابعداری اوكړه

اَهْدِكَ صِرَاطًا سَوِيًّا۝ يٰٓاَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطٰنَ ۭ اِنَّ الشَّيْطٰنَ

چې اوښايم تاته | لاره | نيغه | اے پلاره | عبادت مهٔ كوه تهٔ | دشيطان | بيشكه شيطان

زهٔ به درته برابره لار اوښايم | ائې زما پلاره د شيطان عبادت مه كوه | بيشكه شيطان

كَانَ لِلرَّحْمٰنِ عَصِيًّا۝ يٰٓاَبَتِ اِنِّيْٓ اَخَافُ اَنْ يَّمَسَّكَ

دې | رحمان لره | نافرمانه | اے پلاره | بيشكه زهٔ | بريږم | چې اوبه رسيږی تاته

د رحمان نافرمان دې | . ائې زما باباجانه ماسره دا ويره ده چې چرته په تاباندې درحمان د طرفنه عذاب

---

(۱) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[۱٦٦۰۸]

(۲) جامع الترمذي ، كتاب الزهد باب ماجاء في ذهاب البصر [ج:۲ ص:٦٦] و تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:۹۷]

عَذَابٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ فَتَكُوْنَ لِلشَّيْطٰنِ وَلِيًّا ﴿٤٥﴾ قَالَ اَرَاغِبٌ

عذاب | د رحمان نه | نو شې به ته | د شيطان | ملګرې | اووئيل پلار | آيا مخ اړونکې ئې

رانشى | نو ته به دشيطان ملګرې پاتې شې | (پلارورته) اووئيل چې ته ابراهيم ﷺ ګنې ته زما د معبودانونه

اَنْتَ عَنْ اٰلِهَتِىْ يٰٓاِبْرٰهِيْمُ ۚ لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهِ لَاَرْجُمَنَّكَ

ته | دمعبودانو زمانه | اے ابراهيم | که چرې | منع نه شوې ته | نو زۀ به په کاڼړو اوولم تا

مخ اړونکې يې| .......... که ته (دخپلوخبرونه) منع نه شوې | نو زه به دې په کاڼړو اولم

وَاهْجُرْنِىْ مَلِيًّا ﴿٤٦﴾ قَالَ سَلٰمٌ عَلَيْكَ ۚ سَاَسْتَغْفِرُ لَكَ

او جدا شه زما نه | ډيره موده | اووئيل ابراهيم | سلام دې وى | په تاباند | زۀ به بښنه غواړم | ستا دپاره

اوزما د مخې نه هميشه دپاره لرې شه | ابراهيم اووئيل چې په تا دې سلام وى زه به ستا دپاره دخپل

رَبِّىْ ۭ اِنَّهٗ كَانَ بِىْ حَفِيًّا ﴿٤٧﴾ وَاَعْتَزِلُكُمْ

درب خپل نه | بيشکه الله | دې | په ماباند | ډير مهربان | او زۀ جدا کيږم ستاسو نه

رب نه بخښنه غواړم | بيشکه هغه په ماډير مهربان دې | او زه تاسو اوتاسو چې د الله ﷻ نه سوا کوم

وَمَا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَاَدْعُوْا رَبِّىْ ۡ عَسٰٓى

او دهغې نه چې رابلئ ئې تاسو | ماسوا دالله نه | او زۀ رابلم | رب خپل | اميد دې

بتان رابلئ د هغې نه په ډډه کيږم | او زه خپل رب رابلم |.... اميد دې چې زه به د خپل رب نه په غوښتلو

اَلَّآ اَكُوْنَ بِدُعَآءِ رَبِّىْ شَقِيًّا ﴿٤٨﴾ فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ

چې نه به شم زۀ | په رابللو درب خپل سره | بدبخته | نو هر کله چې | په جدا شو دهغوئ نه

کښې محروم پاتې نشم | ........ بيا چې ابراهيم ﷺ دهغه خلقو نه او دهغوئ دمعبودانو نه په ډډه شو

وَمَا يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۙ وَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ

او دهغې بتانونه | چې هغوئ ئې عبادت کولو | ماسوا دالله نه | نو ورکړل مونږه | هغه ته | اسحاق

........نو مونږ ورته اسحاق ﷺ (ځوې) او (د هغه نه) يعقوب ﷺ (نمسې)

وَيَعْقُوْبَ ۭ وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا ﴿٤٩﴾ وَوَهَبْنَا لَهُمْ مِّنْ رَّحْمَتِنَا

او يعقوب | او هر يو | اوګرځولو مونږه | پيغمبر | او ورکړو مونږه | هغوئ ته | د رحمت خپل نه

ورکړل | ........ اوپه دواړو کښې مو هر يو نبى جوړ کړو | اومونږ په دوئ باندې خپل رحمت کړې وو

وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا ﴿٥٠﴾

او ورکړو مونږ | هغوئ ته | ريښتنې شهرت | او چت |

او د دوئ ذکر خير مو ډير اوچت کړې دې | ..........

## آسان ترجمه قرآن

او په دې کتاب کښې د ابراهيم عليه السلام هم تذکره اوکړه. بيشکه هغه ډير رشتينې نبي وو. ياد کړه چه کله هغه خپل پلار ته وئيلې وو چه! اې پلاره! تهٔ د داسې څيزونو عبادت ولې کوې چه نه اورې، نه وينې، او نه ستا څه په کار راتللې شي؟ اې پلاره! ماته يو داسې علم راغلې دې کوم چه تا سره نشته، په دې وجه زما خبره اومنه، زه به تا ته نيغه لار اوښايم اې پلاره! د شيطان عبادت مه کوه. يقين اوساته چه شيطان د رحمٰن ذات نافرمان دې. اې پلاره! زما ويره ده چه د رحمٰن ذات د طرف نه تا څه عذاب راونيسي، چه دهغې په نتيجه کښې به تهٔ د شيطان ملګرې شې دهغوی پلار اووئيل: اې ابراهيمه! آيا ته زما د خدايانو نه بيزار ئې؟ ياد ساته، که ته منع نه شوې نو زه به تا په کانړو اولولم او اوس ته د هميشه دپاره زمانه لرې شه. ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل: زه تا ته (د رخصت) سلام کوم زه به دخپل رب نه ستا د بخښنې دعا کوم. بيشکه هغه په ما باندې ډير مهربان دې. او زه تاسو نه هم بيليږم. او د الله پاک نه سوا چه تاسو د کومو کومو څيزونو عبادت کوئ، د هغې نه هم، او زه به خپل رب رابلم. او زما پوره اميد دې چه زه به د خپل رب په رابللو باندې نامراده پاتې نه شم. پس چه کله هغه د هغوی نه او د هغه (بتانو) نه جدا شو کوم چه به هغوی د الله پاک نه سوا رابلل، نو مونږ هغهٔ ته د اسحٰق او يعقوب (په شان) اولاد ورکړو، او ټول مو نبيان جوړ کړل. او هغه ته مو خپل رحمت ورکړو، او د اوچتې درجې نيک نامي مو ورکړه.

## خلاصه تفسير

[ او] اے محمد ﷺ ﴿وَاذْكُرْ فِى الْكِتٰبِ اِبْرٰهِيْمَ﴾ [ ته په دې کتاب ] يعنی قرآن [ کښې ] خلقو ته دحضرت [ ابراهيم ]ؑ قصه [ ذکر کړه ] چه دوی ته دتوحيد او رسالت مسئله زياته واضحه شی ﴿اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا﴾ [ هغه ] په هر قول او فعل کښې [ لوئ رښتونې ] وو او ﴿نَّبِيًّا﴾ [ پيغمبر وو ] او هغه قصه دکومې چه ذکر کول دلته مقصود دی هغه وخت شوې وه ﴿اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ﴾ [ کله چه دوی خپل پلار ته ] کوم چه مشرک وو [ ووئيل ﴿يٰۤاَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِىْ عَنْكَ شَيْـًٔا﴾ چه اے پلاره ته دداسې څيز ولې عبادت کوې کوم چه نه څه اورې او نه څه وينی او نه ستا په څه کار راتلې شی ] مراد ترې بتان دی حال دا دې چه څوك وينی اورې او پکار هم راخی مګر چه واجب الجود نه وی بيا هم لائق دعبادت نه دې نو چه بيا ددې صفتونو نه خالی وی هغه خو په درجه اولی به دعبادت لائق نه وی ﴿يٰۤاَبَتِ اِنِّىْ قَدْ جَآءَنِىْ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَمْ يَاْتِكَ﴾ [ اے زما پلاره ماته داسې علم راسيدلې دې کوم چه تاته نه دې راغلې ] مراد ددې نه وحی ده چه په دې کښې د غلطۍ احتمال دسره نه شی کيدې پس زهٔ چه څه وايم قطعا حق دی هر کله چه خبره داسې ده ﴿فَاتَّبِعْنِىْۤ اَهْدِكَ صِرَاطًا سَوِيًّا﴾ [ نو ته زما په خبره باندې څه زهٔ به تاته نيغه لاره وښايم ] او هغه توحيد دې ﴿يٰۤاَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطٰنَ﴾ [ اے زما پلاره ته دشيطان عبادت مه کوه ] يعنی شيطان او ددهٔ عبادت لره خو ته هم بد ګڼړې او په بت پرستئ کښې شيطان پرستی لازمه ده چه هغه په خلقو دا کار کوی او دچا داسې اطاعت کول چه دحق تعالی په مقابله کښې هم دهغه تعليم لره حق ګڼړی دا عبادت دې پس په بت پرستئ کښې شيطان پرستی شوه او ﴿اِنَّ الشَّيْطٰنَ﴾ [ بيشکه شيطان د] حضرت ﴿كَانَ لِلرَّحْمٰنِ عَصِيًّا﴾ [ رحمان نافرمانی کوونکې دې ]

نو دې بيا كله داطاعت لائق كيدې شي ﴿يٰۤاَبَتِ اِنِّيْۤ اَخَافُ﴾ [ اے زما پلاره زۀ ويريږم ] او دغه ويره زما يقيني ده ﴿اَنْ يَّمَسَّكَ عَذَابٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ﴾ [ چه په تا درحمان دطرف نه څه عذاب راپرې نه وځي ] خواه په دنيا كښې يا په اخرت كښې [ بيا به ته ] په عذاب كښې ﴿فَتَكُوْنَ لِلشَّيْطٰنِ وَلِيًّا﴾ [ دشيطان ملګرې شې ] يعني كله چه په اطاعت كښې ددۀ ملګرې كيږې نو په نفس عذاب كښې به هم ددۀ سره يې اګر چه په دنيا كښې دشيطان عذاب نشته او دشيطان دې ملګرتيا او په عذاب كښې شركت لره څوك خپل خير غوښتونكې نه خوښوى

دحضرت ابراهيم ﷺ داتول نصيحت چه يې واورېدو نو ﴿قَالَ اَرَاغِبٌ اَنْتَ عَنْ اٰلِهَتِيْ يٰۤاِبْرٰهِيْمُ﴾ [ پلارجواب ورکړو چه ايا ته زما دمعبودانونه ګرځيدلې يې اے ابراهيمه ] او په دې وجه سره ما هم منع كوې ياد ساته ﴿لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهِ لَاَرْجُمَنَّكَ﴾ [ كه ته ] دې بتانوته دبدو وئيلو نه او زما ددوى د عبادت نه دمنع كولو نه [واپس نه شوې نو زۀ به خامخا تاپه ګټو باندې سنګسارکړم ] پس ته ددې نه واپس شه ﴿وَاهْجُرْنِيْ مَلِيًّا﴾ [ او هميشه هميشه دپاره زما ] سره دداسې وينا [ نه په ډډه شه ﴿قَالَ﴾ ابراهيم ] ﷺ [ووئيل ] بنه ده ﴿سَلٰمٌ عَلَيْكَ﴾ [ زما سلام واخله ] اوس تاته څه وئيل اورول بې فائدې دى ﴿سَاَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّيْ﴾ [ اوس زۀ تادپاره دخپل رب نه دبخښنې ] داسې درخواست كوم ] چه تاته هدايت وكړى چه مغفرت پرې مرتب كيږى

﴿اِنَّهٗ كَانَ بِيْ حَفِيًّا﴾ [ بيشكه هغه په ما ډيرمهروبان دې ] په دې وجه به هغه ته عرض وكړم چه قبلول يانه قبلول يې دواړه په مختلف اعتبار سره رحمت او مهرباني ده [ او] ته او ستا دمذهب خلق چه هركله زما حق خبره هم نه منې نو په تاسو كښې پاتې كيدل هم فضول دى په دې وجه ﴿وَاَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ [ زۀ تاسونه او دكومو چه تاسو دخدائې نه سوا عبادت كوئ دهغوى نه ] په بدن هم [ په ډډه كيږم ] لكه چه په زړۀ سره درنه دوراندې نه په ډډه يم يعني دلته اوسيږم هم نه [ او] په اطمنان سره جدا كيږم ﴿وَاَدْعُوْا رَبِّيْ﴾ [ د خپل رب عبادت به كوم ] څكه چه دلته اوسيږم نو تاسو به په دې كښې ماسره مزاحمت كوئ ﴿عَسٰۤى اَلَّاۤ اَكُوْنَ بِدُعَآءِ رَبِّيْ شَقِيًّا﴾ يعني يقين [اميد دې چه دخپل رب په عبادت كولو سره به زۀ محروم نه شم ] لكه بت پرست [ چه دخپلو باطلو معبودانو عبادت كوى او محرومه كيږى ] غرض ددې خبرو نه پس ددوى نه داسې جدا شو چه دشام ملك ته لاړو هجرت يې وكړو ﴿فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ [ پس هركله چه ددې خلقو نه او دكومو چه دغو خلقو د خدائې نه سوا عبادت كولو دهغوى نه ] داسې [ جدا شو ﴿وَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ﴾ نو مونږ دۀ ته اسحق ] ﷺ څوئ او [ يعقوب] ﷺ نمسې [ وركړل ] كوم چه دملګرتيا دپاره ددۀ دبت پرست ورور ولې نه په ډيرو درجو غوره وو ﴿وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا﴾ [ اومونږ ] په دې دواړو كښې [ هر يو لره نبى جوړ كړو او دې تولو ته مونږ ] قسم قسم كمالات وركړل ﴿وَوَهَبْنَا لَهُمْ مِّنْ رَّحْمَتِنَا﴾ [ دخپل رحمت حصه مو وركړه ] او په راتلونكو نسلونو كښې ﴿وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا﴾ [ مونږ ددوى نوم نيك او اوچت كړلو ] چه تول يې په تعظيم او صفت سره ذكر كوى او داسحق ﷺ نه وړومبې اسماعيل ﷺ ورته هم په دې صفتونو سره وركړې شوې وو .

## معارف او مسائل

**د صديق تعريف:** ﴿صِدِّيقًا نَّبِيًّا﴾ صديق د صاد په زير سره د قرآن عظيم الشان يو اصطلاحي لفظ دې ، ددې په معنى او تعريف كښې د علماء كرامو مختلف اقوال دی، ځوك هغه ته صديق وائي چې ټول عمر ئې څه دروغ نه وی وئيلی ، ځوك هغه چاته صديق وائي چې په وئيلو او د عمل په هر يو څيز كښې رښتينې وی. يعينی د زړهٔ او د عقيدې په جوړ د ژبې او هر عمل هم دغه حال ئې وی. روح المعانی او مظهري وغيره هم دا آخری معنى غوره كړې ده.(1) او بيا صديق د درجو په لحاظ سره خپل مينځ كښې فرق داسې لرى چې هر پيغمبر سره لازم دادی چې هغه صديق وی. خو داسې نه ده چې هر صديق به پيغمبر وی. لكه بی بی مريم ته چې قرآن عظيم الشان صديقه وئيلی دی. حالانكه هغه پيغمبره نه وه ولې چې د جمهور امت په نزد ښځه چرته پيغمبره نه ده پاتې شوې.

**خپلو مشرانو ته د نصيحت كولو طريقه او آداب:** خپل پلار ته ﴿يَٰٓأَبَتِ﴾ وئيل د عربی لغت په اعتبار سره ډير د آدب او مينې لفظ دې ،د خليل الله ﷺ خپل پلار ته داسې وئيل ددې خبرې دليل دې چې ابراهيم ﷺ ته الله ﷻ ټول اړخيز ښه صفات او كمالات وركړی وو او د ابراهيم ﷺ د اوچتې حوصلې زبردست دليل داسې دې چې پلار ئې يوائې په شرك ، كفر او ګمراهئ كښې اخته نه وو بلكه نور خلق هم په دې مرض كښې اخته كول ، حالانكه ابراهيم ﷺ خالص هم ددې د وركولو دپاره پيدا كړې شو ې وو ، ليكن بيا ئې هم د هرې يوې جملې په اول سر كښې ﴿يَٰٓأَبَتِ﴾ لفظ راوړلې دې چې د مينې اوآدب لفظ دې . د كفر او ګمراهئ نسبت ئې ورته او نكړو خكه چې دې كښې دهغه سپكاوې وو. صرف د بتانو د بې وسئ او بې حسئ ښكاره كول ئې اوكړل چې پخپله ئې خپل غلط كردار ته مخه شی . بله جمله كښې ئې د الله ﷻ د وركړی خاص نعمت يادګيرنه اوكړه كوم ئې چې دپيغمبرئ دعملونو په شكل كښې وركړې وو. دريمه او ځلورمه جمله كښې دشرك او كفر په نتيجه كښې د راتلونكى خراب انجام نه ئې اوويرولو. خو سره ددې پلار ئې بيا هم د ابراهيم ﷺ د نرمئ او خوږ والئ د په ګذارش د څه غور كولو په ځائې ورته په سختئ سره د سنګسارولو او وژلو دهمكى وركړه اود كور نه د وتلو حكم ئې وركړو. ابراهيم ﷺ ورته په ﴿يَٰٓأَبَتِ﴾ غوندې د مينې په لفظ سره خطاب اوكړو چې د عرف مطابق د هغې جواب په ﴿يَٰبُنَيَّ﴾ سره وركول پكار وو. خو د هغې په ځائې ورته په سخته اوويل چې ﴿يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ﴾ .بيا هم ابراهيم ﷺ دتولې ناارمئ او ضد كوم جواب چې ورته اوفرمائيلو هغه هم د آوريدو او ياد لرلو جوګه دې. وې فرمائيل چې:

﴿سَلَٰمٌ عَلَيۡكَ﴾ دلته د سلام دوه مطلبه راوځی ، يو دا چې سلام مقاطعه وی يعنی ورسره د نور پاتې كيدو په شريفانه او په مهذب طريقې سره خبر وركول وی څنګه چې په پښتو كښې هم داسې وئيلې شی چې زما درته سلام دې او بيا ترې جدا شی ، څنګه چې قرآن عظيم الشان دنيكانو او مقبول بندګانو په صفت كښې هم فرمائيلی دی چې: ﴿وَإِذَا خَاطَبَهُمُ ٱلۡجَٰهِلُونَ قَالُواْ سَلَٰمٗا﴾ يعنى كله چې جاهلان خلق دوئ سره جاهلانه خبرې كوی نو دوئ هغوئ سره د خبرو اترو په

---

(1) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٩٦، ٩٧]

ځائې ورته د سلام لفظ وائی. دداسې سلام مطللب دا وی چې په ترون پریکولو کښې مې درسره څه بدی کول غرض نه دی بلکه هم ستا د زړه مراد پوره کول مې غرض دی. ددې سلام کولوبل مطلب دا هم کیدې شی چې دغه سلام دې عرفی او رسمی سلام وی څنګه چې عموما خلق ئې په یوبل باندې خپل مینځ کښې اچوی. خو په دې کښې د فقهې اشکال راپورته کیږی چې یو کافراو مشرک باندې په اول سر کښې سلام اچول د حدیث تر مخه منع کړې شو ی دی. لکه بخاری شریف او مسلم شریف کښې د ابی هریره ﷜ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿لا تبدؤا الیهود والنصٰری بالسلام﴾[1] [یعنی یهود او نصاری ته ابتداء سلام مه کوئی] خو بل طرفته د حدیث د روایتونو مطابق په داسې ډله باندې په اول سر کښې سلام اچول د نبی کریم ﷺ نه ثابت دی په کومه کښې چې مسلمانان اوکافران په شریکه موجود وی ، په صحیح بخاری او مسلم کښې د اسامه ﷜ نه نقل کړې شوی روایت کښې هم دغه شان راغلی دی.[2]

په دې وجه د فقهاء امت ددې په جواز او عدم جواز کښې اختلاف شو ، د ځینو صحابه کرامو ، تابعینو او ائمه مجتهدینو د قول او عمل څخه ددې جواز ثابت دې او د ځینو څخه عدم جواز. او ددې تفصیل قرطبی په احکام القرآن کښې ددې ایت مبارك لاندې بیان کړې دې . او امام نخعی دا فیصله کړې ده چې که ستاسو د یو دینی یا دنیاوی ضرورت له کبله یو کافر یهودی یا نصرانی سره ملاویدل وی نو هغه په باندې سلام کولو کښې ابتداء کول څه باق نشته دې . او بې ضرورته په سلام کښې د ابتداء کولو څخه بچ کیدل پکار دی . په دې کښې د مذکوره دواړو احادیثو تطبیق کیږی . والله اعلم [قرطبی][3]

﴿سَاَسۡتَغۡفِرُ لَكَ رَبِّیۡ﴾ دلته هم هغسې اشکار راپیښیږی چې یو کافر دپاره بخښنه غوښتل د شریعت تر مخه ناروا دی. نبی کریم ﷺ خپل ترهٔ ابو طالب ته فرمائیلی ووچې ﴿والله لاستغفرن لك مالم انه عنه﴾ [ قسم مې په الله ﷻ وی چې زهٔ تر هغه پورې ستا دپاره دبخښنې دعا غواړم چې تر څو پورې منع کړې شوې نه یم] نو پدې دا آیت مبارك نازل شو چې ﴿مَاكَانَ لِلنَّبِیِّ وَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَنۡ یَّسۡتَغۡفِرُوۡا لِلۡمُشۡرِكِیۡنَ﴾ [پیغمبر ﷺ او مؤمنانودپاره جائز نه دی چې مشرکانو دپاره دې بخښنه غواړی][4] نوددې آیت په نازلیدو سره نبی کریم ﷺ دخپل ترهٔ دپاره بخښنه غوښتل پریخودل. په دې بنا ددې اشکال جواب داسې شو چې ابراهیم ﷺ خپل پلار سره دهغه دپاره د بخښنې غوښتو وعده هغه وخت کړې وه چې دې نه منع کړې شوې نه وو نو په سورة ممتحنه کښې الله ﷻ پخپله دا واقعه په استثناء سره فرمائیلې ده اطلاع یې ورکړې ده چې ﴿اِلَّا قَوۡلَ اِبۡرٰهِیۡمَ لِاَبِیۡهِ

---

[1] ) صحیح مسلم کتاب السلام، باب النهي عن ابتداء اهل الکتاب بالسلام إلخ[ج:۲ص:۲۱۳]

[2] ) صحیح البخاري کتاب الإسیذان ،باب التسلیم في مجلس فیه اختلاط من المسلمین والمشرکین [ج:۲ص:۹۲٤]و صحیح مسلم کتاب الجهاد، باب لقي النبي صلي الله علیه وسلم إلخ [ج:۲ص:۱۰۹]

[3] ) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة [ ج:۱۱ص:۱۱۲]

[4] ) صحیح البخاري کتاب الجنائز ،باب إذا قال المشرك عندالموت لا إله إلا الله [ج:۱ص:۱۸۱]و صحیح مسلم کتاب الإیمان ، باب الدلیل علی صحة إسلام من حضره الموت إلخ [ج:۱ص:٤۰]

﴿لَاَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ﴾(١) او ددې نه زيات ښكاره بيان په سورة توبه كښې ﴿مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ﴾ نه پس په بل آيت مبارك كښې فرمائي چې ﴿وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ اِلَّا عَنْ مَّوْعِدَةٍ وَّعَدَهَآ اِيَّاهُ ۚ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهٗٓ اَنَّهٗ عَدُوٌّ لِّلّٰهِ تَبَرَّاَ مِنْهُ ؕ﴾(٢) چې دهغې نه معلومه شوه چې دغه وعده دابراهيم ﷺ خپل پلار سره د هغه وخت ده چې ابراهيم ﷺ ته دا معلومه نه وه چې پلار به مې په كفر باندې كلك پاتې شي ، خوكله چې دا حقيقت ورته ښكاره شو نو ابراهيم ﷺ ددې نه هم لاس واخستو او د خپلې بيزارئى اعلان ئې دخپل پلار نه اوكړو.

﴿وَاَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَاَدْعُوْا رَبِّيْ ۖ﴾ يو خوا خو ابراهيم ﷺ دخپل پلار د ادب او مينې ډير زيات لحاظ اوساتلو چې بيان ئې اوشو، بل خوا ئې دا ښكاره كول هم ضروري اوګڼړل چې د حق په ښكاره كولو كښې به ابراهيم ﷺ هيڅ قسم سستى يا كمزوري ښكاره نه كړي . نو دپلار هغه حكم ئې په سرسترګو سره منظور كړو چې پلار ئې د ابراهيم ﷺ دكور كلى نه د اوښكلو دپاره كړې وو. او ورسره دائې هم په ښكاره كړل چې زه ستاسو دبتانو نه ويزاره يم ، صرف خپل رب لره بلم.

﴿فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۙ وَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ؕ﴾ ددې جملې څخه په وړاندې جمله كښې د ابراهيم ﷺ دا قول راغلې دې چې زما دا اميد دې چې زه به د خپل پروردګار څخه په دعا كولو كښې نامراده او ناكامه نشم . اودا ښكاره خبره ده چې دكور او دخاندان څخه د جدائى څخه وروستو د جدائى د وحشت وغيره د اثراتو څخه د بچ كيدو دپاره دعا مراد وه . دې مذكوره جمله كښې ددې دعا قبليدل داشان بيان شوى دى چې كله ابراهيم ﷺ د الله ﷻ دپاره خپل كور ، خاندان او د هغوئ معبودان پريښودل نو الله ﷻ ددې بدله داشان وركړه چې دوئ ته يو زوئې وركړو چې نوم يې اسحاق ﷺ وو. او دې سره سره يې ددې هم ذكر اوفرمائيل چې دده عمر به زيات وى او دې به صاحب اولاد وى . يعنى دې سره يې د يعقوب په لفظ زياتولو سره دا اوفرمائيل . او د زوې وركړه ددې خبرې دليل دې چې ددې څخه يې مخكښې نكاح شوې وه ، نو ددې حاصل داشو چې د پلاردخاندان څخه بهتر يې ورته يو مستقل خاندان وركړو چې په كښې انبياء او صالحان وو.

| وَجَعَلْنَا | لَهُمْ | لِسَانَ صِدْقٍ | عَلِيًّا ۟ | وَاذْكُرْ | فِي الْكِتٰبِ |
|---|---|---|---|---|---|
| او وركړو مونږ | هغوئ ته | رښتني شهرت | او چت | او بيان اوكړه | په كتاب كښې |
| او د دوئ ذكر خير مو ډير اوچت كړې دې | | | | .........او [محبوبه] ته په دې كتاب [قرآن] كښې | |

١) ترجمه:-ليكن د ابراهيم دومره خبره پلار سره شوې وه چې زه به ستا دپاره بخښنه ضرور غواړم.

٢) د سورة توبه آيت نمبر ١١٣ اور آيت نمبر١١٤ ترجمه داده:- پيغمبر لره او نورو مسلمانانو لره جائز نه دى چې مشركانو دپاره دبخښنې دعاء اوغواړى اګر كه هغه رشته دار ولې نه وى، سره ددې چې دا امر واضح شوې دې چې دا دوزخيان دى. او ابراهيم دخپل خوئې دپاره دبخښنې دعا غوښتل صرف اوصرف د وعدې په وجه وه چې وعده يې ورسره كړې وه، او بيا چې كله دا واضح شوه چې هغه خو دالله تعالي دښمن دې نو بيا يې ورسره تعلق پريښودو، واقعي خبره ده چې ابراهيم ډير رحيم المزاج او حليم الطبع وو.

مُوسَىٰٓ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ مُخْلَصًا وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا ﴿٥١﴾ وَنَٰدَيْنَٰهُ

دموسی | بیشکه هغه | وو | خالص کړې شوې | او وو | رسول | نبی | او آواز او کړو مونږ هغه ته

دموسی ذکر هم او کړه | بیشکه هغه دالله ﷻ خاص بنده اورسول اونبی وو | اومونږ هغه ته دکوه طور

مِن جَانِبِ ٱلطُّورِ ٱلْأَيْمَنِ وَقَرَّبْنَٰهُ نَجِيًّا ﴿٥٢﴾

دطرفه د کوه طور | ښی نه | او رانزدې کړو مونږ هغه | دراز په خبرو کولو سره

د ښی طرفنه آواز کړې وو | اوهغه ته د راز د خبرو کولو په وجه خپل نزدیکت ورکړې وو |

وَوَهَبْنَا لَهُۥ مِن رَّحْمَتِنَآ أَخَاهُ هَٰرُونَ نَبِيًّا ﴿٥٣﴾ وَٱذْكُرْ

او ورکړو مونږ | هغه ته | درحمت خپل نه | رور دهغه | هارون | په حیثیت دنبی | او بیان اوکړه

اوهغه ته مو دخپلې مهربانئ په وجه دهغه رورهارون عليه السلام د نبی په حیثیت ورکړې وو | او [محبوبه] ته

فِى ٱلْكِتَٰبِ إِسْمَٰعِيلَ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ صَادِقَ ٱلْوَعْدِ وَكَانَ رَسُولًا

په کتاب کښې | داسماعیل | بیشکه هغه | وو | رښتینې دوعدې | او وو | رسول |

په دې کتاب [قران] کښې داسماعیل عليه السلام ذکرهم اوکړه | بیشکه هغه دوعدې [ډیرارښتونې وواو رسول

نَّبِيًّا ﴿٥٤﴾ وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُۥ بِٱلصَّلَوٰةِ وَٱلزَّكَوٰةِ

نبی | او وو هغه | چې حکم به ئې کولو | خپل کوروالو ته | دمانځه | او د زکاة

اونبی وو | اوهغه به دخپل کور خلقو ته دمونځ اداکولو او د زکوة ورکولو حکم کولو

وَكَانَ عِندَ رَبِّهِۦ مَرْضِيًّا ﴿٥٥﴾ وَٱذْكُرْ فِى ٱلْكِتَٰبِ

او وو هغه | په نزد د رب خپل | خوښ کړې شوې | او بیان او کړه | په کتاب کښې |

اود خپل رب په نزد ډیر غوره وو | ............................او ته په دې کتاب [قرآن] کښې د ادریس

إِدْرِيسَ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا ﴿٥٦﴾ وَرَفَعْنَٰهُ مَكَانًا

دادریس | بیشکه هغه | وو | رښتینې انسان | [او] نبی | او پورته کړې وو مونږ هغه | مقام

ذکر هم اوکړه | بیشکه هغه ډیر رښتونې نبی وو | اومونږ هغه ډیرې اوچتې مرتبې ته

عَلِيًّا ﴿٥٧﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم

لوړ ته | دا کسان چې دی | دا هغه کسان دی | چې انعام اوکړو | الله | په هغوئ باند |

رسولې وو | دا هغه پیغمبران دی په کومو چې الله ﷻ په پیغمبرانو کښې [خصوصی] انعام کړې وو

مِّنَ ٱلنَّبِيِّۦنَ مِن ذُرِّيَّةِ ءَادَمَ وَمِمَّنْ حَمَلْنَا

چی دپیغمبرانو نه وو | د اولاد دآدم نه وو | او د [نسل] دهغه چانه وو | چی سواره کړی وو مونږه |

یعنی د دآدم عليه السلام په اولاد کښې اود هغه چانه چې مونږ نوح عليه السلام سره [په بیړئ کښې] سواره کړی وو

مَعَ نُوحٍ وَمِن ذُرِّيَّةِ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْرَٰٓءِيلَ وَمِمَّنْ

د نوح سره | او داولاد دابراهیم نه وو | او داسرائیل دنسل نه وو | او دهغه کسانو نه وو |

او څه په کښې دابراهیم عليه السلام اویعقوب دنسل نه وو | اود [تول] په هغه خلقو کښې وو چې مونږ ورته هدایت کړې

هَدَيْنَا　وَاجْتَبَيْنَا ۭ　اِذَا تُتْلٰى　عَلَيْهِمْ

چې لاربنودلي وه ورته مونږه | او خوښ کړي وو مونږه | کله چې به لوستلې کيدل | په هغوئ باندې |

وو | او مونږ غوره کړي وو | هرکله چې به دهغوئ په مخکښې د رحمان آيتونه اولوستلې شو

اٰيٰتُ الرَّحْمٰنِ　خَرُّوْا　سُجَّدًا　وَّبُكِيًّا ۩

آيتونه　درحمن　| نو پريوتل به | په سجده | په ژړا ژړا |

نو په سجده به پريوتل | او ژړيدل به |

## آسان ترجمه قرآن

او په دې کتاب کښې د موسٰى عليه السلام هم تذکره اوکړه. بيشکه هغه د الله پاک منتخب کړې شوې بنده وو. او رسول او نبي وو. مونږ هغهٔ لره د کوهِ طور د ښي طرف نه راوبللو او هغه له مو خپل رازدار جوړ لو سره هغهٔ ته خپل قرب ورکړو. او مونږ د هغهٔ ورور هارون عليه السلام نبي کولو سره په خپل رحمت باندې هغهٔ ته (يو مددګار) ورکړو. او په دې کتاب کښې د اسمعيل عليه السلام هم تذکره اوکړه. بيشکه هغه د وعدې رشتينې وو او رسول او نبي وو. او هغهٔ به د خپل کور خلقو ته هم د مانځه او د زکوٰة حکم کولو. او د خپل رب په نزد غوره وو. او په دې کتاب کښې د ادريس عليه السلام تذکره هم اوکړه. بيشکه هغه ډير رشتينې نبي وو. او مونږ هغوی ته اوچتوالې ورکړې وو او په يو اوچت مقام باندې مو رسولې وو د آدم عليه السلام په اولاد کښې دا هغه انبياء عليه السلام دی چه په هغوی باندې الله پاک انعام فرمائيلې دې. او په دوی کښې څه د هغه خلقو په اولاد کښې دی کوم چه مونږ د نوح عليه السلام سره (په کشتۍ کښې) سوارهٔ کړی وو. او څه د ابراهيم او اسرائيل (يعقوب عليه السلام) په اولاد کښې دی. اودا ټول د هغه خلقو نه دی چاته چه مونږ هدايت ورکړې وو. او (دخپل دين دپاره مو) منتخب کړل. چه کله به دهغوی مخې ته زما آيتونه لوستلې کيدل نو هغوی به په ژړا ژړا باندې په سجده کښې پريوتل.

## خلاصه تفسير

﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مُوْسٰٓى ۡ﴾ [ او په دې کتاب ] يعنی قرآن [کښې د موسی] ﵇ [ هم ذکر وکړه ] يعنی خلقو ته ئې واوروه که نه وی نو په کتاب کښې ذکر کونکې خو په حقيت کښې الله تعالی دې ﴿اِنَّهٗ كَانَ مُخْلَصًا﴾ [ هغه بيشکه دالله تعالی خاص کړې شوې ] بنده [ وو ﴿وَّكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا ۝﴾ او هغه رسول هم وو نبی هم وو ﴿وَنَادَيْنٰهُ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ الْاَيْمَنِ﴾ او مونږ هغه ته دکوه طور په ښي اړخ کښې اواز ورکړو ﴿وَقَرَّبْنٰهُ نَجِيًّا ۝﴾ او مونږ هغه لره د راز دخبرو کولو دپاره مقرب جوړ کړو ﴿وَوَهَبْنَا لَهٗ مِنْ رَّحْمَتِنَآ﴾ او مونږ هغه ته په خپل رحمت ] او عنايت [ سره ﴿اَخَاهُ هٰرُوْنَ نَبِيًّا ۝﴾ دهغه ورور هارون ﵇ لره نبی جوړ کړې ورکړو ] يعنی دهغه ددرخواست مطابق مونږ دهٔ ته نبوت ورکړو چه ددهٔ مدد وکړی ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِسْمٰعِيْلَ ۡ﴾ [ او په دې کتاب کښې داسماعيل ] ﵇ [ هم ذکر وکړه ﴿اِنَّهٗ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ﴾ بيشکه هغه د وعدې ] لوئ [ ربښتونې وو ﴿وَكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا ۝﴾ او هغه رسول هم وو نبی هم وو ﴿وَكَانَ يَاْمُرُ اَهْلَهٗ بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ ۠﴾ او خپلو تعلقداروانو ته به ئې دمونځ او زکوات ] خصوصاً او د نورو احکامو هم عموما [ حکم کولو ﴿وَكَانَ عِنْدَ رَبِّهٖ مَرْضِيًّا ۝﴾ او دې دخپل پروردګار په نزد غوره کړې شوې وو ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِدْرِيْسَ ۡ﴾ او په دې

کتاب کښې د ادریس ] ﷺ [هم ذکر وکړه ﴿إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا﴾ بيشکه هغه لوئ رښتونې نبي وو او ﴿وَرَفَعْنَاهُ مَكَانًا عَلِيًّا﴾ مونږ ده لره ] په کمالاتو کښې [ اوچتې مرتبې ته ورسولو دا ] حضرات دکومو چه د سوره دشروع نه تردې پورې ذکر وشو د زکريا ﷺ نه تر ادريس ﷺ پورې دا ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ﴾ [ هغه خلق دی په کومو چه الله تعالی پرې ] خاص ﴿أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم﴾ [ انعام فرمائيلې دې ] چنانچه دنبوت نه لوئ به بل کوم يو نعمت وی ﴿مِّنَ النَّبِيِّينَ﴾ [ د نورو پيغمبر انو ] ﷺ څنې چه دا وصف په دې ټولو ذکر کښې مشترك دې ] دا ټول ﴿مِن ذُرِّيَّةِ آدَمَ﴾ [ د ادم ] ﷺ [دنسل نه او] څنې په دوی کښې ﴿وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ﴾ [ دهغو خلقودنسل نه] کومو لره چه مونږ د نوح ﷺ [ سره ] په کشتئ کښې [سوارۀ کړی وو] چنانچه بغير د ادريس ﷺ نه چه هغه دنوح ﷺ دنيکونو نه وو په باقی ټولو کښې دا وصف شته [ او] څنې په دوی کښې ﴿وَمِن ذُرِّيَّةِ إِبْرَاهِيمَ﴾[دابراهيم ] ﷺ ﴿وَإِسْرَائِيلَ﴾[او يعقوب ]ﷺ [ دنسل نه ] وو چنانچه زکريا ﷺ، يحيی ﷺ، عيسی ﷺ ،اوموسی ﷺ ددواړو داولادنه وو او اسحاق ﷺ، اسماعيل ﷺ ، او يعقوب ﷺ صرف د حضرت ابراهيم ﷺ د اولاد نه وو [او] دا ټول حضرات ﴿وَمِمَّنْ﴾ [ دهغو خلقو نه] وو ﴿هَدَيْنَا وَاجْتَبَيْنَا﴾[کوموته چه مونږ هدايت وفرمائيلو او مقبول موجوړ کړل ] او باجود ددې مقبوليت او حاصلوالی ددې ټولو ذکر شوو حضراتو دبندګئ دا حال ووچه ﴿إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ﴾[ کله به ددوی په وړاندد] حضرت ﴿آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ﴾[ رحمان ايتونه لوستې کيدل نو] ددېرې عاجزئ انکسار او انقياد داظهار دپاره ﴿خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا﴾[ به سجده کوونکی او ژړيدونکی ] په مزکه [ پريوتل]

## معارف او مسائل

[كَانَ مُخْلَصًا] مخلص هغه چاته وئيلې کيږی چې الله ﷻ خپل ځان دپاره خالص کړې وی او هغوئ سوا دالله ﷻ څخه دبل چا پسې مخه نه اوړی او خپل ځانونه اوټول خواهشات يې دالله ﷻ دپاره مخصوص کړی وی . داشان خصوصا د پيغمبرانو ﷺ وی لکه د قرآن کريم په يو بل ځائې کښې ارشاد دې چې [إِنَّا أَخْلَصْنَاهُم بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ] [مونږ دوئ مخصوص کړی دی ديو خاص کار د دار آخرت د يادولو دپاره] د امت کاملانو ته هم ددې مقام يو درجه ملاويږی کوم چې دپيغمبرانو عليهم السلام په لار روان وی ، د هغوئ نخښه داوی چې په قدرتی طور سره دګناهونو او بدو څخه ساتلې شی ، اودالله ﷻ په حفاظت کښې وی .

[مِن جَانِبِ الطُّورِ] طور يو غر دې چې په شام ملك کښې دې او دا د مصر او مدين مينځ کښې دې . او نن هم په دغه نوم باندې مشهور دې . دې غر لره هم الله ﷻ په ډيرو ځيزونو کښې خصوصيت او اهميت ورکړې دې .

[الْأَيْمَنِ] د کوه طور ښې طرف د يعقوب ﷺ په اعتبار سره داسې ښودلې شوې دې چې کله هغوئ ﷺ د کوه طور خواته اورسيدل نو کوه طور يې ښی طرفته وو .

[نَجِيًّا] دوه په دوه څه خاص خبرو کولو ته مناجاة وئيلې شی . او په داسې شان کلام چې چا سره کولې شی هغه ته نجی وئيلې شی .

[وَوَهَبْنَا لَهُ مِن رَّحْمَتِنَا أَخَاهُ هَارُونَ نَبِيًّا] د هبه لفظی معنی ورکول دی ، موسی ﷺ دا دعا کړې وه چې هارون ﷺ دې زما د مددګار په حيثيت پيغمبر جوړ کړې شی ، الله ﷻ دغه دعا قبوله کړه

ځکه په وهبنا لفظ سره یې دا بیان اوشو. مطلب یې دادې چې مونږ هارون عليه السلام، موسی عليه السلام ته ورکړو او هم په دې وجه هارون عليه السلام ته هبة الله هم وئیلې شي. [مظهري]([1])

[وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ إِسْمٰعِيْلَ] ښکاره خبره هم داده چې دې ځخه مراد د ابراهیم عليه السلام ځوی اسماعیل عليه السلام دې، د والد او رور ابراهیم او اسحاق عليه السلام سره د دوئ د بیان نه کولو مطلب دا معلومیږي چې ددوئ ځه خاص شان ترې ښکاره شي. چنانچه ددوئ عليه السلام مینځ د موسی عليه السلام بیان راغلې دې. بله دا چې دلته ځومره پیغمبران ﷺ بیان شوي دي دهغوئ د پیغمبرئ او یادګیرنې ترتیب یو شان نه دې، چنانچه د ادریس عليه السلام ذکر د ټولو ځخه وروستو شوې دې مګر زمانه یې د ټولو ځخه وړاندې ده.

[كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ] د لوظ پوره کول، داسې یو ښه عادت دې چې هر شریف انسان یې ضروري ګڼړي او دهغې الټه کار کول یو رذیل حرکت ګڼړلې شي، یو حدیث مبارک کښې راغلي دي چې وعد خلافي کول د منافقت نخښه ده، ځکه د الله ﷻ هر یو رسول ﷺ صاد الوعد یعنی د وعدې ریښتونې وو، د کلام په دې سلسله کښې د خاص خاص پیغمبرانو ﷺ د یادولو سره ځه یو خاص صفت هم بیان کړې شوې دې. ددې مطلب دا نه دې چې ګني دغه صفت په نورو پیغمبرانو ﷺ کښې نه وو بلکه دې خبرې ته اشاره ده چې په دغې پیغمبرا کښې دا خاص صفت په یو ځانله شان سره وو لکه د موسی عليه السلام چې مخلص کیدل دهغوئ خاص صفت په دې شان سره ګرځولې شوې دې چې دا صفت په ټولو پیغمبرانو ﷺ کښې په عام طور سره موجود وو مګر په موسی عليه السلام کښې په یو ځانله حیثیت سره موجود وو.

اسماعیل عليه السلام په یو ځانله شان سره د وعدې ریښتونې بللې شوې دې اګر چې ټول پیغمبران ﷺ په عام طور سره د وعدې ریښتونې وو، چنانچه اسماعیل عليه السلام او بنده سره خپله کړې وعده په ښه شان سره پوره کړې ده، الله ﷻ سره یې دا وعده کړې وه چې خپل ځان به د ذبح کیدو دپاره پیش کوي او په هغې به صبر کوي او هم دغسې یې اوکړل. یو سړي سره یې په یو ځایې کښې د ملاقات کولو وعده اوکړه چې هغه په دغه ټاکلې وخت را اونه رسیدو نو دهغه په انتظار کښې یې تر درې ورځو پورې او په ځینې روایتونو کښې تر درې کالو پورې هلته په انتظار باندې ولاړ وو [مظهري]([2])

دغه شان د ترمذي شریف په حواله د عبدالله بن ابی الخمساء رضي الله عنه په روایت په یو ځائې باندې د رسول کریم ﷺ د دریو ورځو پورې ایسارېدل بیان شوي دي، چرته چې یو کس سره یې د ملاقات کولو وعده کړې وه. [قرطبي]([3])

د وعدې د پوره کولو ضرورت او هغې درجه:: د وعدې پوره کول د پیغمبرانو ﷺ او نیکانو خلقو یو خاص صفت دې او د ټولو شریفانو انسانانو عادت دې چې دهغې نه الټه کار کول د فاسقانو، فاجرانو او رذیلانو خلقو عادت دې، چنانچه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دي چې [العدة دین]([4]) یعنی وعده قرض دې. یعنی ځنګه چې قرض ادا کول په انسان باندې لازم دي

[1]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:١٠١]
[2]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:١٠٢]
[3]) تفسير القرطبي [ج:١١ص:١١٥] و سنن ابوداود، كتاب الأدب، باب في العدة [ج:٢ص:٣٣٤]
[4]) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[٣٦٤٧]

دغه شان د وعدې پوره کول هم لازمي دي ، په يو بل حديث پاک کښې په داسې الفاظو سره راغلي دي چې [و اي المؤمن واجب] يعنی د مؤمن وعده واجب ده.[1]

په دې بنا د فقهاء کرامو په دې باندې اتفاق دې چې د وعدې فرض کيدل او د وعدې د پوره کولو د واجبيدلو مطلب دادې چې د شرعی عذر نه بغير ددې نه پوره کول د ګناه کار دې ، خو ددې مطلب دا هم نه دې چې د عدالت په ذريعه به په زبردستئ سر ددې د پوره کولو انتظام کولې شی ، بلکه د فقهاء کرامو په اصطلاح کښې د د وعدې پوره کول ديانةً واجب بللې شی ، قضاءً نه [قرطبی وغيره][2]

**د اصلاح کوښښ فرض دادې چې د اصلاح کار د خپل بال بچ نه شروع کړی** [وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُ بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ] د اسماعيل ﷺ يو خصوصی صفت داشان بيان شوې دې چې هغوئ ﷺ به خپل بال بچ ته د مونځ او زکوة حکم کولو ، دلته داسوال پيدا کيږی چې هر کله دا کار خو د هر يو مؤمن مسلمان په ذمه واجب دې چې خپل بال بچ ته بهٔ د نيکو کارونو هدايت او ښودنه کوی ، چنانچه په قرآن کريم کښې ټولو مؤمنانو ته عام حکم داسې دې چې :

[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا] اې مؤمنانو خپل ځانونه او خپل اولاد د اور څخه اوساتئ!

نودې کښې داسماعيل ﷺ خصوصيت څه شو؟ جواب يې هغه دې چې وړاندې تير شو ، يعنی دا حکم واقعی چې ټولو مؤمنانو ته عام دې خو اسماعيل ﷺ په جدا حيثيت سره ددې کوشش کولو ،څنګه چې رسول کريم ﷺ هم دخپلې کورنئ خلق داالله ﷻ د عذاب څخه په خصوصيت سره ويرولی وو ولې چې ورته داالله ﷻ دطرفنه د[وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ] حکم راغلې وو.[3]

دويمه خبره قابل غور داده چې ټول پيغمبران ﷺ د ټول قوم دهدايت دپاره راليږلې شوی وو ، هغوئ ﷺ د قوم هر غړی ته داالله ﷻ پيغام رسوی او د الله ﷻ د حکم يې پابند کوی ، نو په خصوصيت سره خپل اولاد ته د بلنې ورکولو پابند کول يې د احکمت لری چې د بلنې کار دې د خپلې کورنئ څخه شروع کوی ځکه چې دا نسبتاً آسان هم وی او نګرانی يې هر وخت کولې شی . کله چې هغوئ څخه خاص رنګ اختيار کړی او په دغې رنګ باندې پاخه شی نو يو دينی ماحول پيدا کيدو سره بلنه عام کول او د نورو د اصلاح کول مضبوطيږی ولې چې د خلقو د اصلاح دپاره د ټولو څخه زيات تاثير لرونکې څيز يو دينی ماحول پيدا کول دی ، چنانچه تجربه ګواه ده چې هره نيکی او بدی د ښودلو پوهولو او ازدکړې ورکولو په ځائې د ماحول په ذريعه اکثر خوريږی او وده کوی .

[وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِدْرِيسَ] ادريس ﷺ دنوح ﷺ څخه يو زر کاله مخکښې ددوئ ﷺ په نيکونو کښې دې [روح المعانی بحواله مستدرک حاکم][4] دوئ د آدم ﷺ نه پس اولنې نبی او رسول دی چې پرې الله ﷻ ديرش صحيفې نازلې کړې [کما في الحديث ابي ذر زمخشري][5] او ادريس

---

[1] ) كنز العمال رقم الحديث:[٦٨٧٢]
[2] ) تفسير القرطبي [ ج:١١ص:١١٥]
[3] ) صحيح ابن حبان رقم الحديث:[٦٦٥٩] ودلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث:[٤٨٦]
[4] ) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:١٠٥]والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[٣٩٧٢]
[5] ) تفسير كشاف تحت هذه الآية [ج: ٤ ص:٩]

عليه السلام د ټولو څخه اول انسان دي چې ورته د معجزې په طور علم نجوم او حساب ورکړې شوې وو [بحر محيط] (۱) او د ټولو څخه اول انسان دي چې په قلم سره يې ليکل او جامې ګنډل روان کړل، دې څخه به مخکښې خلقو عام طور د څناورو څرمن د اغوستلو د پاره استعمالوله، د ټولو څخه اول هم د وئ د میچ، تول طريقې راښکلي، وسله هم اول دوئ راؤښکله دوئ چې کله وسله تياره کړه نو د قابيل اولاد سره يې جهاد او کړو [بحر محيط، مظهري روح] (۲)

[وَرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا] [مونږ ادريس عليه السلام لوړ مقام ته پورته کړو] مطلب يې دادې چې د نبوت، رسالت او د الله ﷻ د نزديکت خاص مقام ورکړې شو. او په بعضې روايتونو کښې چې دې نه آسمان ته خيژول مراد اخستې شوی دی، دهغې باره کښې ابن کثير رحمه الله فرمائيلي دي چې:

[هذا من اخبار كعب الاحبار الاسرائيليات و في بعضه نكارة] [ دا د کعب بن احبار د اسرائيلي روايتونو څخه دې او ددې په څينو روايتونو کښې نکارت او اجنبيت دې]

او دقرآن کريم الفاظ په هر حال په دې باره کښې ښکاره نه دی چې دې څخه مراد ددرجو بلند وال دې او که د هغوئ عليه السلام آسمان ته ژوندې خيژل مراد دی؟ داشان د قرآن کريم تفسير کول هم په دې باندې څه دارومدار نه لري. [بيان القرآن] (۳)

**فائده از بيان القرآن**: درسول کريم ﷺ په تعريف کښې فرق او خپل مينځ کښې يې نسبت: د رسول کريم ﷺ او نبي په تعريف کښې ډير اقوال دی، په مختلفو قرآني آيتونو کښې په غور کولو سره چې کومه خبره د احقر په نزد ثابته شوه هغه داده چې ددې دواړو مينځ کښې نسبت د عموم خصوص من وجه دې، رسول کريم هغه چې چې مخاطبينو ته نوې شريعت اورسوی خواه دغه شريعت پخپله ددغې رسول ﷺ په اعتبار سره هم نوې وی لکه تورات وغيره شو، يا يوازې د هغه عليه السلام د امت په اعتبار سره نوې وی لکه د اسماعيل عليه السلام شريعت چې په اصل کښې هم د ابراهيم عليه السلام زوړ شريعت وو، خو چې کوم قوم جرهم ته اسماعيل عليه السلام ليږلې شوې وو هغوئ ته وړاندې ددغې شريعت علم نه وو، هم د اسماعيل عليه السلام په ذريعه ورته ددې علم اوشو په دې لحاظ هر رسول به نبي نه وی لکه فرښتې شوې چې رسولان خو دی ليکن نبيان نه دی يا لکه د عيسى عليه السلام هغه استاذی چې رسولان خو وو مګر نبيان نه وو، چنانچه د هغوئ باره کښې قرآن کريم فرمائي چې: [اِذْ جَآءَهَا الْمُرْسَلُوْنَ]

نبي هغه دې چې وحی ورته راځي خواه هغه ته نوې شريعت ورکړې شوې وی يا د پخواني شريعت پرچار کوی، څنګه چې د بني اسرائيلو اکثرو پيغمبرانو عليهم السلام به د موسى عليه السلام د شريعت تبليغ کولو، دې څخه معلومه شوه چې په يو اعتبار سره رسول عام شو يا خو به صاحب د حی وی يا به د بل چا استاذې وی، صاحب وحی به نه وی.

او په بل اعتبار سره نبي عام داسې شو چې صاحب دوحی به وی يا خو به خپل نوې شريعت چلوی يا به د بل پيغمبر شريعت چلوی. کله چې رسول کريم ﷺ لفظ دواړه يو ځائې استعمال شی نو په دې کښې خو څه مشکل نشته لکه چې قرآن کريم چې په دې اوسنو آيتونو

(۱) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية [ج:۸ ص:۳۲]
(۲) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱٦ ص:۱۰۵]و تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۱۷]
(۳) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۱۱]

کښې فرمائی چې : [وَكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا] ، او چرته چې ديوبل په مقابله کښې استعمال شی نو نبی نه به مراد هغه پيغمبر وی چې د بل پيغمبر شريعت چلوی او رسول به هغه پيغمبر وی چې هم خپل مستقل شريعت چلوی لکه قرآن کريم فرمائی چې : [وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ وَّلَا نَبِيٍّ]

[اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ] دې څخه مراد صرف ادريس عليه السلام دې .

[وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ] دې څخه مراد صرف ابراهيم عليه السلام دې.

[وَّمِنْ ذُرِّيَّةِ اِبْرٰهِيْمَ] دې څخه مراد اسماعيل عليه السلام ، اسحاق عليه السلام او يعقوب عليه السلام دی . [وَاِسْرَآءِيْلَ] دې څخه مراد موسی عليه السلام ، هارون عليه السلام ، زکريا عليه السلام ، يحيی عليه السلام او عيسی عليه السلام دی .

[اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوْا سُجَّدًا وَّبُكِيًّا] په تيرو شوؤ آيتونو کښې دخو بزرګانو پيغمبرانو عليهم السلام بيان په خاص طور رسه کړې شوې دې چې په کښې د هغوئ د شان لوې والې بيان کړې شوې دې ، هر کله چې د پيغمبرانو عليهم السلام د شان د لوې والی په وجه د عوامو د طرفه د حد څخه زيات خطره وه لکه يهودو چې عزيز عليه السلام ته او نصاراؤ عيسی عليه السلام ته خداې وئيل . ځکه ددغې تولو پيغمبرانو عليهم السلام د بيان کولو نه پس په دې آيت مبارك کښې دهغوئ عليه السلام داشان بيان کړې شوې دې چې د الله جل جلاله په مخکښې سجده کوی ، د هغه نه ويريدونکی وو چې د زياتی ، کمی په درميانه حال کښې پاتې شو . [بيان القرآن] (١)

**دقرآن پاك د تلاوت کولو په وخت بکاء کول يعنی سترګو کښې اوښکې راوستل د انبياء کرامو سنت دی :**

دې څخه معلومه شوه چې دقرآن کريم د آيتونو دتلاوت کولو په وخت د بکاء شان پيدا کولو يو ښه او دپيغمبرانو عليهم السلام صفت دې ، چنانچه درسول کريم صلی الله عليه وسلم صحابه کرامو تابعينو او دالله جل جلاله د اولياء کرامو څخه په دې باره کښې ډير واقعات نقل شوی دی .

امام قرطبی رحمه الله فرمائيلی دی چې علماء کرام داخبره مستحب ګرځولې ده چې د آيت دسجدې مناسب دعا کول په دغې سجده کښې اوکړې شی مثلا د سورة سجده په سجده سهوا کښې دې داسې دعا کوی : (٢)[اللهم اجعلنی من الساجدين لوجهك المسبحين بحمدك واعوذبك ان اكون من المستكبرين عن امرك] او د [سبحٰن الذی] په سجده کښې دې دا دعا کوی (٣)[اللهم اجعلنی من الباكين اليك الخاشعين] او ددې آيت [خَرُّوْا سُجَّدًا] په سجده کښې دې دا دعا کوی : (٤)[اللهم اجعلني من عبادک المنعم عليهم المهديين لک الباكين عند تلاوة ايتک] [قرطبی] (٥)

---

(١) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٧ ص:١١]

(٢) ترجمه:- اې الله تعالې ما دهغه خلقو نه اوګرزوې کوم چې ستا ذات ته سجده کوی، حمد سره ستا پاکی بيانوی ، او تاسره پناه غواړم ددې خبرې نه چې زه د هغه خلقو نه شم کوم چې ستاد حکم نه تکبر کوی.

(٣) ترجمه:- اې الله تعالې مادهغه خلقو نه اوګرزوې کوم چې ستا مخې ته ژاړی ، ستا دپاره خشوع کونکی دی.

(٤) ترجمه:- اې الله تعالې ما دهغه بندګانو نه اوګرزوې چې په هغوئ باندې انعام کړې شوې دې، او هدايت ورته شوې دې ، ستا ذات ته سجده کوی ، ستا دآيتونو دتلاوت په وخت کښې ژاړی .

(٥) تفسير القرطبي [ ج:١١ص:١٢١]

آيٰتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوْا سُجَّدًا وَّبُكِيًّا ۩ فَخَلَفَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ

آیتونه درحمن | نو پریوتل به | په سجده | په ژړا ژړا | بیا راغلل | روستو دهغوئ نه |

نو په سجده به پریوتل | او ژړیدل به | ......بیا دهغوئ نه پس خیني داسې نا اهله جانشین شول

خَلْفٌ اَضَاعُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوٰتِ

داسې بدعمله جانشینان | چې ضائع کړو هغوئ | مونځ | او روان شو | په خواهشاتو پسې |

.........چې مونځونه ئې ضائع کړل | اود خواهشاتو تابعداری ئې شروع کړه

فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ۙ اِلَّا مَنْ تَابَ

نو زر ده | چې مخ به شي هغوئ | دګمراهئ دانجام سره | مګر | هغه څوک | چې توبه ئې اوویستله |

نو ډیرزر به د ګمراهئ سزا بیا مومی | ...........البته چا چې توبه اوویستله

وَاٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ

او ایمان ئې راوړو | او عمل ئې اوکړو | نیک | نو دغه کسان چې دی | دا خلیږی به هغوئ |

او ایمان ئې راوړو | اونیک عملونه ئې اوکړل | ..............دا خلق به جنت ته داخلیږی

الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ شَيْـًٔا ۙ جَنّٰتِ عَدْنِ الَّتِيْ

جنت ته | او نۀ به پرې کیږی ظلم | هیڅ | جنتونه دی | دهمیشه اوسیدو | هغه

او په دوئ به هیڅ ظلم نه شی کیدې | د همیشه اوسیدو په باغونو کښې به وی | هغه چې رحمان

وَعَدَ الرَّحْمٰنُ عِبَادَهٗ بِالْغَيْبِ ۭ اِنَّهٗ كَانَ

چې وعده کړې ده رحمن [دهغې] | دبندګانو خپلو سره | په غیبو | بیشکه شان دادې | چې ده

ئې د خپلو بندګانو سره غائبانه وعده کړې ده | ............ بیشکه د هغه وعده

وَعْدُهٗ مَاْتِيًّا ۝ لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا اِلَّا

وعده دهغه | پوره کیدونکی | نۀ به اوری هغوئ | په هغې کښې | څه فضول خبره | مګر |

خامخا پوره کیدونکې ده | په هغې کښې به فضول خبره نه اوری | سلام لفظ به وی [چې یو بل ته به

سَلٰمًا ۭ وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيْهَا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا ۝

دسلامتیا خبره | اووی به دپاره دهغوئ | رزق دهغوئ | په هغې کښې | صبا | بیګاه

د ملاقات په وخت کښې وائی] | اوهغوئ ته به په کښې سحر مابنام روزی ورکولې شی

تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيْ نُوْرِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَنْ

دادې | جنت | هغه | چې په میراث کښې به ئې ورکوو مونږه | دبندګانو خپلو نه | هغه چاته

دا هغه جنت دې چې په خپلو بندګانو کښې به ئې مونږ هغه څوک وارث جوړوو

كَانَ تَقِيًّا ۝

چې وی هغه | پرهیزګار

چې پرهیزګار وی

## آسان ترجمه قرآن

بيا دهغوی نه پس داسې خلق د هغوی په ځائې راغلل چه مونځونه ئې برباد کړل، او په خپل نفساني خواهشاتو پسې اولګيدل. پس د هغوی ګمراهئ به ډيره زر د هغوی مخې ته راځي خو کومو خلقو چه توبه اُويستله. او ايمان ئې راوړلو، او نيک عمل ئې اوکړو، نو داسې خلق به جنت ته داخل شي. او په هغوی به لږ ظلم هم نه کيږي. (د هغوی داخله به) داسې د هميشه والي باغونو ته (کيږي) د کومو چه رحمٰن ذات دهغوی د ليدلو نه بغير هغوی سره وعده فرمائيلې ده. يقيناً د هغه وعده داسې ده چه دوئ به هغې ته ضرور وَر رسيږي هغوی به په دې کښې دسلامتئ د خبرو نه علاوه هيڅ لغوه خبره نه اوري او د هغوی رزق به هغوی ته سحر او ماښام ملاويږی دا دې هغه جنت چه د هغې وارثان به مونږ په خپلو بندګانو کښې هغه څوک جوړوو چه پرهيزګاروی.

## خلاصه تفسير

[ بيا ددوی ] ذکرشوو [ نه پس ] څنې ﴿فَخَلَفَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ خَلۡفٌ أَضَاعُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ﴾ [داسې نا اهله پيدا شول کومو چه مونځ برباد کړو] خواه اعتقاداً چه نکار ئې وکړو يا عملا چه په اداکولو کښې يا ضروری خقونو او ادابو کښې ئې کوتاهی وکړه ﴿وَٱتَّبَعُوا۟ ٱلشَّهَوَٰتِ﴾ [ او] په انساني ناجائزو [ خواهشونو پسې شول ] کوم چه دضروری اطاعت نه غافله کوونکي وو ﴿فَسَوۡفَ يَلۡقَوۡنَ غَيًّا﴾ [ پس داخلق به ډير زر ] په اخرت کښې [ خرابی ويني ] خواه هميشه وی يا غيرهميشه ﴿إِلَّا مَن﴾ [ البته مګر کومو چه ] کفر او نافرمانئ نه ﴿تَابَ﴾ [ توبه وکړه] اومطلب دکفر نه دتوبه کولو دادې ﴿وَءَامَنَ﴾ چه ايمان [ ئې راوړو او] دنافرمانئ نه توبه کول دادی چه ﴿وَعَمِلَ صَـٰلِحًا﴾ [ نيک کارونه ئې وکړل ﴿فَأُو۟لَـٰٓئِكَ﴾ پس دا خلق ] بغير دخرابئ ليدو ﴿يَدۡخُلُونَ ٱلۡجَنَّةَ﴾ [ جنت ته ځی او] دجزا ملاويدو په وخت کښې به ﴿وَلَا يُظۡلَمُونَ شَيۡـًٔا﴾ [ د دوی ذره نقصان ونه کړې شی]يعنی دنيك عمل جزا به ورته ملاؤ شي يعنی ﴿جَنَّـٰتِ عَدۡنٍ﴾ [ د هميشه پاتې کيدو باغونو کښې] په وی ﴿ٱلَّتِی وَعَدَ ٱلرَّحۡمَـٰنُ عِبَادَهُۥ بِٱلۡغَيۡبِ﴾ [ دکومو چه رحمن دخپلو بندګانو سره غائبانه وعده فرمائيلې ده ] او ﴿إِنَّهُۥ كَانَ وَعۡدُهُۥ مَأۡتِيًّا﴾ [ دې وعده شوی څيز ته به داخلق ضرور ورسيږی ﴿لَّا يَسۡمَعُونَ فِيهَا لَغۡوًا﴾ په دې ] جنت [ کښې به دغه خلق څه فضول خبره وانه وری ] څکه چه هلته به فضول خبره دسره نه وی ﴿إِلَّا﴾ [ بغير ] دفرښتو او ديوبل ﴿سَلَـٰمًا﴾ [ دسلام ] کولو[ نه ] او ظاهره ده چه په سلام سره ډيره خوشحالی او راحت رسيږی نو دغه فضول نه دې ﴿وَلَهُمۡ رِزۡقُهُمۡ فِيهَا بُكۡرَةً وَعَشِيًّا﴾ [ او دوی ته به سحر ماښام خوراك ملاويږی ] يعنی داخو به په معين طور سره وی او هسې هم که بل وخت غواړی ملاويږی به ﴿تِلۡكَ ٱلۡجَنَّةُ﴾ [ داجنت ] دکوم چه ذکر وشو ﴿ٱلَّتِی نُورِثُ مِنۡ عِبَادِنَا مَن كَانَ تَقِيًّا﴾ [ داسې دې چه مونږ به په خپلو بندګانو کښې دې مالکان داسې خلق جوړ کړو کوم چه داخدائ نه ويريدونکی وی ] کوم چه مبنی دايمان او نيك عمل ده.

## معارف او مسائل

[خَلۡفٌ] په غړوندی د لام سره د خراب جانشين او د ناکاره اولاد معنی ورکوی ، او د لام په زور سره [خَلَفٌ] د ښه جانشين او د ښه اولاد معنی ورکوی [مظهری] [1]

---

[1] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:١٠٤]

مجاهد فرمائيلي دي چې د ابه د قيامت په نزدې زمانه کښې وي کله چې به د امت نيکان خلق ختم شي يعنې مونځونو نه به د خلقو مخه واوړي او نافرمانۍ او ناکاره کارونه کول به په ښکاره کول شروع کړي

بې وخته د جمعې څخه بغير مونځونه کول د مونځ خرابو او لويه ګناه ده :: [أَضَاعُوا الصَّلٰوةَ] د جمهورو مفسرينو عبدالله بن مسعود ، نخعي رحمه الله ، قاسم رحمه الله ، مجاهد رحمه الله ، ابراهيم رحمه الله ، عمر بن عبدالعزيز رحمه الله په نزد د مونځ خرابول او بربادول څخه مراد د خپل خپل وخت نه دهغې وروستو ادا کول دي او ځينې حضراتو وئيلي دي چې دا مونځ په آدابو کښې او شرطونو کښې کوتاهي کول د مونځ په بربادولو کښې شامل دي . او ځينې حضرات فرمائيلي دي چې ځانله پخپل کور کښې فرض مونځ ادا کول او جمعې ته نه حاضريدل ترې مراد دي.

[قرطبي ، بحر محيط] ([1])

فاروق اعظم رضي الله عنه د خپل حکومت ټولو حاکمانو ته دا هدايت ليکلي ليږلي وو چې:

[ان اهم امركم عندي الصلوة فمن ضيعها فهو لما سواها اضيع] [مؤطا امام مالك] ([2])

[ستاسو په ټولو کارونو کښې زما په نزد ډير زيات ضروري کار مونځ دې ، ځوک چې مونځ ضائع کوي نو هغه به نور ديني حکمونه ددې څخه زيات ضائع کوي]

حذيفه رضي الله عنه کله چې داسې يو سړي اوليدو چې د مونځ په آدابو او په پوره شان د ارکانو په ادا کولو کښې کوتاهي کوله ، تپوس يې ترې اوکړو چې ته کله راسې په دې شان سره مونځ کوې ؟ وې وئيل چې څلويښتو کالو راسې . حذيفه رضي الله عنه ورته اووئيل چې بيا خو تا يو مونځ هم نه دې کړې ، که ددې پشان مونځونو کولو په حالت کښې مړ شوې نو اوګڼړه چې د محمد صلى الله عليه وسلم د فطرت نه په خلاف مړ شوې . ([3])

د ترمذي شريف په حواله د ابی مسعود انصاري رضي الله عنه څخه روايت دې چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې : د هغه چا مونځ نه کيږي چې اقامت په کښې نه وي . مراد ترې دادې چې ځوک د رکوع او سجدې په حالت کښې ټول اندامونه برابروي د رکوع په پورته کيدو او د دواړو سجدو ترمينځه په کيناستلو کښې د پوره او دريدو او پوره کيناستلو خيال نه ساتي نو دهغه مونځ نه کيږي

خلاصه دا شوه چې چا په اودس او په پاکوالي حاصلولو کښې کوتاهي اوکړه يا د مونځ په رکوع سجده کښې يا ددې دواړو مينځ کښې په اودريدو او په کښيناستو کښې د جلدۍ څخه کار واخستو نو هغه مونځ برباد کړو

حسن رحمه الله د اضاعت الصلوة ا واتباع شهوات په باره کښې اوفرمائيل چې چې ددې مطلب مسجدونه شاړول او په صنعت ، تجارت او لذتونو او خواهشونو کښې اخته کيدل دي .

امام قرطبي رحمه الله ددې روايتونو دنقل کولو څخه وروستو اوفرمائيل چې په نن دور کښې داسې عالمان او نيکان خلق هم شته چې د مونځونو دآدابو نه غافله ، صرف نقل او حرکت کوي داد شپږمې صدئ هجرئي حال و چې په کښې دغسې خلق ډير کم ليدلې شي . خو نن

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١١ ص:١٢٢ ] و تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:٨ ص:٣٤]

[2]) موطا مالك رقم الحديث [٦] كتاب وقوت الصلاة.

[3]) سنن النسائي ، كتاب السهو، باب تطفيف الصلاة [ج:١ ص:٩٣]

دغه صورت حال د مونځ کوونکو عام شوې دې . الاماشاءالله. نعوذبالله من شرور انفسنا واعمالنا

[وَاتَّبَعُوا الشَّهَوٰتِ] د شهوات څخه مراد ددنيا هغه مزې دي چې انسان لره د الله ﷻ د ياد او مونځ څخه غافله کوي . علي رضی الله عنه فرمائيلي دي چې د ښکلي مکانونو جوړول ، او په داسې ښکلو سورلو باندې سورلي کول چې خلق يې په تماشا شي او داسې اعلی جامې استعمالول چې نورو خلقو نه ورته ځان جدا ښکاري دا ټول په بيان شوؤ شهواتو کښې داخل دي [قرطبي]. (۱)

[فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا] په عربي ژبه کښې د [غَيًّ] د رشاد التهه مطلب لري ، يعنی رشاد هر خير ښيګړې ته وئيلې شي ، او [غَيًّ] هر شر او خرابي ته وئيلې شي ، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه نقل دي چې [غَيًّ] د جهنم د يو غار نوم دې چې په کښې د ټول جهنم څخه زيات قسماقسم عذابونه راجمع دي .

ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چې [غَيًّ] دجهنم د غار نوم دې ، چې جهنم ترې پناه غواړي ، دا غار الله ﷻ دهغه زناکارو دپاره تيار کړې دې چې زنا کاري يې خپل عادت جوړکړې وي . او هر وخت په دې کښې اخته وي . دغه شان شرابي او دغه شان سودخور دپاره هم دې چې دغه ناکاره عادت يې عمل جوړ کړې وي . او په هيڅ وخت کښې ترې ډډه نه کوي ، دغه شان دغه غار ، د مورپلار د نافرمانو ا وپه دروغه دګواهي ورکوونکو خلقو دپاره او هغې ښځې دپاره دې چې د بل چا ماشوم خپل ما شوم جوړوي . [قرطبي]. (۲)

[لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا] لغو څخه مراد باطل ا وعبث کلام ، کنځل کول او زيان رسوونکې کلام کول دي ، چې جنتيان به دې څخه پاك او صفا اوسيږي ، دهغوئ غوږونو ته به داسې څه خبره وررسي چې هغوئ ته پرې غم تکليف وي.

[اِلَّا سَلٰمًا] دا استثناء منقطع ده ، مطلب يې دا دې چې هلته به د جنتيانو غوږونو ته داسې خبره وررسي چې سلامتي ، ښيګړې او خوشحالي کښې به يې زياتوالې راولي ، په د اسې کښې اصطلاح سلام هم داخل دې کوم به چې جنتيان خپل مينځ کښې په يو بل باندې او د الله ﷻ فرښتې به په دوئ ټولو باندې اچوي [قرطبي]. (۳)

[وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيْهَا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا] په جنت کښې د نمر دراختلو او غروب او دشپې او د ورځې دبدليدو انتظام خو به نه وي اوهميشه دپاره به په کښې رڼا وي ، خو دشپې او ورځې مينځ کښې فرق کول دپاره به خاص نخښې وي چې دهغې په حساب به ورته صبا ماښام روزي وررسولې شي . دا خبره واضحه ده چې جنتيانو ته به هم هر يو څيز د هغوئ په خوښه ، بې د څه مهلت څخه ورکولې شي . [وَلَهُمْ مَّا يَشْتَهُوْنَ] اعلان عام دې . خو دصبا او ماښام تخصيص کول د انساني عادت او فطرت په بنا باندې دي چې هغه دصبا ماښام د خوراك کولو عادت لري ، عربي وائي چې چاته د صبا ماښام پوره خوراکه ملاويږي نو هغه د آرام او عيش خاوند دې .

انس بن مالك رضی الله عنه دد ې آيت مبارك په تلاوت کولو سره اوفرمائيل چې د ې څخه معلوميږي

---

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۱ص:۱۲۵]

(۲) تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۲۵]

(۳) تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۲۶]

چې د مؤمنانو خوراك به ورځ كښې دوه ځل وى ، يعنى صبا او ما ښام.
بعضې حضراتو د صبا او مابښام نه عامه معنى داسې اخستې ده چې جنتيانو ته به د هغوئ په خوښه هر وخت د هغوئ روزى ملاويږى څنګه چې د شپې ورځې ځخه ، يادي مشرق ، مغرب ځخه عامه معنى مراد اخستې شى يعنى د شپې ورځې ځخه مراد هر وخت او د مشرق ، مغرب ځخه مراد هر ځائې اخستې شى [قرطبى] (۱)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَانَ | تَقِيًّا ﴿٦٣﴾ | وَمَا نَتَنَزَّلُ | اِلَّا بِاَمْرِ | رَبِّكَ | لَهٗ | مَا | |
| چې وى هغه | پرهيزګار | او نه نازليږو مونږه | مګر په حكم | درب ستا | هغه لره دى | هر هغه څه | |

چې پرهيزګار و او [جبرئيل اووئيل] مونږ د خپل رب د حكم نه بغير نه نازليږو | چې زمونږ په وړاندې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بَيْنَ اَيْدِيْنَا | وَمَا | خَلْفَنَا | وَمَا | بَيْنَ ذٰلِكَ |
| څه زمونږ په وړاند دى | او هغه څه | چې روستو زمونږ نه دى | اوهغه څه | چې په منځ ددې كښې دى |

څې دى اوڅه چې زمونږ نه شاته دى اوڅه چې د دې په مينځ كښې دى هغه ټول د هغه ملكيت دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَا كَانَ | رَبُّكَ | نَسِيًّا ﴿٦٤﴾ | رَبُّ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ |
| او نه دې | رب ستا | هيرونكې | رب دآسمانونو دې | او دزمكې دې |

اوستارب [هيڅ] خبره هيرونكې نه دې | هغه د آسمانونو او د زمكې او څه چې د دې دواړو په مينځ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَا | بَيْنَهُمَا | فَاعْبُدْهُ | وَاصْطَبِرْ | لِعِبَادَتِهٖ |
| او دهغې | چې په منځ ددې دواړو كښې دى | تو بندګى كوه دهغه | او صبر كوه | په عبادت دهغه |

كښې دى د ټولو څيزونو رب دې | نود هغه عبادت كوه | اوهم د هغه په عبادت ټينګ ولاړ اوسيږه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هَلْ تَعْلَمُ | لَهٗ | سَمِيًّا ﴿٦٥﴾ | وَيَقُوْلُ | الْاِنْسَانُ | ءَاِذَا مَا | مِتُّ |
| آيا ته پوهيږې | چې هغه لره شته | شريك په نوم | او وائى | انسان | آيا هر كله چى | مړ شم زه |

آيا تاته د هغه [الله سره په خدايې كښې ] څوك همنام معلوم دې؟ | او انسان وائى چې آيا هركله زه مړ شم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَسَوْفَ اُخْرَجُ | حَيًّا ﴿٦٦﴾ | اَوَلَا يَذْكُرُ | الْاِنْسَانُ | اَنَّا | خَلَقْنٰهُ |
| نو راوبه ويستلې شم زه | ژوندې | آيا نه يادوى | انسان | چې بيشكه مونږه | پيدا كړې دې هغه |

نو لابيا به هم ژوندې [دقبرنه] راويستې شم | آيا انسان دا نه يادوى چې د دې نه وړاندې په هغه وخت كښې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ قَبْلُ | وَلَمْ يَكُ | شَيْئًا ﴿٦٧﴾ | فَوَرَبِّكَ | لَنَحْشُرَنَّهُمْ |
| مخكښې ددې نه | اونه وو هغه | هيڅ څيز | نوقسم دې په رب ستا | چې ضرور به مونږه راجمع كړو دوئ |

مونږ دې پيدا كړو چې لاهيڅ څيز هم نه وو | ......نو ستا په رب مې قسم دې چې مونږ به دوئ

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۲۷]

وَالشَّيٰطِيْنَ　ثُمَّ　لَنُحْضِرَنَّهُمْ　حَوْلَ جَهَنَّمَ　جِثِيًّا ﴿٦٨﴾

او شيطانان | بيا | به خامخا حاضر كړو دوئ | چاپيره ددوزخ نه | په زنګنانو پراته پرمخي

اوشيطانان خامخا راجمع كړو | بيا به دوی د دوزخ نه ګيرچاپيره حاضرو | چې په ګونډو به[غورزيدلی] پراته وی

ثُمَّ　لَنَنْزِعَنَّ　مِنْ كُلِّ شِيْعَةٍ　اَيُّهُمْ　اَشَدُّ

بيا | به اوباسو مونږه | دهرې ډلې نه | هر هغه سړې ددوئ | چې هغه زيات سخت وی

بيا به د هرې يوې ډلې نه هغه كسان بيل كړو چې د رحمان نه په سركشئ كولوكښې د ټولو نه وړاندې

عَلَى الرَّحْمٰنِ　عِتِيًّا ﴿٦٩﴾　ثُمَّ لَنَحْنُ　اَعْلَمُ　بِالَّذِيْنَ　هُمْ

په مقابله د رحمن كښې | په لحاظ دسركشئ سره | بيا | مونږه | ښه پيژنو | هغه كسان | چې هغوئ

وو | .................. بيا مونږ هغه څوک ښه پيژنوچې دې دوزخ ته د داخليدو زيات

اَوْلٰى　بِهَا　صِلِيًّا ﴿٧٠﴾　وَاِنْ مِّنْكُمْ　اِلَّا

ښه مستحق دی | ددغه دوزخ | په لحاظ دغورزولو | او نشته هيڅوک په تاسو كښې | مګر

قابل دی | .............اوپه تاسو كښې به هريو كس په هغې [دوزخ باندې د پل صراط په ذريعه]

وَارِدُهَا ۚ　كَانَ　عَلٰى رَبِّكَ　حَتْمًا　مَّقْضِيًّا ﴿٧١﴾　ثُمَّ

تيريدونكي دې په دوزخ | دې [داكار] | په رب ستا باندې | يقيني | فيصله شوې | بيا

تيريدونكي وی | داستاسو په رب باندې يقيني فيصله شوې خبره ده چې خامخا به پوره كيږی | بيا

نُنَجِّي　الَّذِيْنَ　اتَّقَوْا　وَّنَذَرُ　الظّٰلِمِيْنَ　فِيْهَا

به بچ كړو مونږه | هغه خلق | چې متقيان وو | او پرې به ږدو | ظالمان خلق | په هغې كښې

به مونږ هغه كسان بچ كړو چې پرهيزګاران دی | اوظالمان به په كښې دننه په ګونډو

جِثِيًّا ﴿٧٢﴾

[پرمخې]غورزيدلی

غورزيدلی پريږدو

## آسان ترجمه قرآن

او (فرښتې تاته داسې وائی چه) مونږ دخپل رب دحكم نه بغير نه راكوزيږو څه چه زمونږ مخې ته دی،اوڅه چه زمونږ شاته دی اوڅه چه دهغې ترمينځه دی. هغه ټول د هغه ملكيت دی. اوستا رب د هيرولو والا نه دې. هغه د آسمانونو او زمكو هم مالک دې او كوم مخلوقات چه د دې ترمينځه دی، دهغې هم. لهٰذا ته د هغهٔ عبادت كوه. او دهغه په عبادت باندې مضبوط اوسيږه آيا ستا په علم كښې بل داسې څوک شته چه دهغه په شان صفات لری؟ او (كافر) انسان دا وائی چه : كله زه مړ شم نو آيا رښتيا به زه دوباره ژوندې كولې شم؟ آيا دې انسان ته دا خبره نه رايادېږی چه مونږ دې هغه وخت پيدا كړې وو

چه کوم وخت دې هيڅ هم نه وو؟ پس قسم دې ستا په رب باندې! مونږ به دوئ او د دوئ سره ټول شيطانان ضرور جمع کوو . بيا به دوئ د دوزخ نه ګير چاپيره داسې راولو چه دوی به زنګونانو باندې پريوتلې وي. بيا به د هغوی په هره ډله کښې هغه خلق راوباسو کوم چه د رحمٰن ذات سره په سرکشۍ کولو کښې زيات سخت وو بيا دا خبره مونږ ته ښه معلومه ده چه هغه کوم خلق دي چه د ټولو نه مخکښې دوزخ ته د داخلولو زيات مستحق دي او په تاسو کښې داسې څوک نشته چه په هغې (دوزخ) ئې تيريدل نه وي. ددې خبرې الله پاک حتمي طور ذمه اخستلې ده بيا چه کومو خلقو تقوىٰ اختيار کړې ده. هغوی ته خو به مونږ خلاصې ورکړو. او کوم چه ظالمان دي. هغوی به په داسې حالت کښې پريږدو چه هغوی په هغې (دوزخ) کښې په زنګونانو پريوتلې پراته وي.

## خلاصه تفسير

**شان نزول**- په صحيح بخاري کښې حديث دې چه نبي کريم ﷺ حضرت جبرائيل عليه السلام ته دا ارزو ظاهره کړه چه لږ زيات راځه په دې باندې دا آيت نازل شو [ او] مونږ ستا د درخواست د جبرائيل عليه السلام د طرف نه جواب درکوو واوره هغه دادې چه ﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ﴾ [ مونږه ] يعني فرښتې [ بغير ستاد رب دحکم نه وقتا فوقتا نه شو راتلې دهغه ] په ملکيت کښې [ ادی زمونږ په وړاند ټول څيزونه ] مکان وی اوکه زمان مکاني وی اوکه زماني وی [ او] دغه شان ﴿لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا وَمَا بَيْنَ ذَٰلِكَ﴾ [ زمونږ وړاندټول څيزونه او څه څيزونه چه ددوی په مينځ کښې دی ] دوړاند مکان کوم چه مخامخ وی او د شا کوم چه شا طرف ته وی او ددوی په مينځ کښې کوم چه دا سړې دې په کښې او وړاندې زمانه کومه چه تيره شوې ده او وروستو کومه چه راروانه ده ددوی په مينځ کښې کومه زمانه حال ده ﴿وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا﴾ [ او ستا رب هيرونکې نه دې ] مطلب دادې چه دا ټول کارونه ورته د وړاندنه معلوم دی غرض دا چه مونږ تکوينا او تشريعا دحکم مسخر يو په خپله راې سره ديوځای نه بل ځای ته يا کله چه مونږ غوارو چرته تلې راتلې نه شو ليکن کله چه زمونږ ليږول مصلحت وی نو حق تعالى مونږه ليږی دا احتمال نشته چه شايد دځه مصلحت په وخت کښې ئې هير شی ﴿رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ [ هغه رب دې داسمانونو او دمزکې ﴿وَمَا بَيْنَهُمَا﴾ او دهغو ټولو څيزونو کوم چه ددوی په مينځ کښې دی پس ] هرکله چه داسې حاکم او مالك دې ﴿فَاعْبُدْهُ﴾ نو اے مخاطبه [ ته دهغه عبادت ] او اطاعت [ کوه ] يو څل نيم نه بلکه ﴿وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهِ﴾ [ دهغه په عبادت باند قائم وسيږه ] اوکه دهغه عبادت نه کوې نو چرته د بل چا عبادت به کوې ﴿هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا﴾ [ نو ايا ته چالره دهغه هم صفته پيژنې ؟ ] يعنی هيڅوك دهغه په صفت کښې شريك نه شته نو لايق د عبادت هم څوك نشته پس دهغه عبادت کول ضروری شو [ ﴿وَيَقُولُ الْإِنسَانُ أَإِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ أُخْرَجُ حَيًّا﴾ اوانسان ] داخرت نه منکر [ داوائی چه زه هرکله مړ شمه نو ايا بيا به ژوندې دقبرنه راويستلې شم ] الله تعالى جواب ورکوی چه ﴿أَوَلَا يَذْكُرُ الْإِنسَانُ أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِن قَبْلُ﴾ [ ايا ] دا [ انسان په دې خبره باندې نه پوهيږی چه مونږ ده لره ددې نه وړاند ] دعدم نه وجودته [ راوړې دې ﴿وَلَمْ يَكُ شَيْئًا﴾ اودې ] هغه وخت [ هيڅ هم نه وو] هرکله چه دداسې حالت نه ژوند ته راوستل اسان دی نو دوباره ژوند ورکول خه په درجه اولى اسان دی ﴿فَوَرَبِّكَ﴾ [ پس قسم دې ستا په رب چه مونږ

به دوی لره ] په قیامت کښې ژوندی کړو او په موقف د ﴿لَنَحْشُرَنَّهُمْ﴾[ حشر کښې به ئې جمع کړو او] ددوی سره ﴿وَالشَّيٰطِيْنَ﴾[شیطانانو لره هم ] کوم چه په دنیا کښې به ددوی سره اوسیدل او غلطې خبرې به ئې ورته ښودلې لکه چه په بل ایت کښې دی [قال قرینه ربنا ما اطغیته ](۱) ﴿ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا﴾[ بیا به دوی ] ټولو [ لره ددوزخ چارچاپیره په دې حالت کښې حاضر کړو چه ] دهیبت نه به [چه په زنګنونو پریوتی وی﴿ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ﴾ بیا د] دې کفارو د﴿مِنْ كُلِّ شِيْعَةٍ﴾[ هرې ډلې نه به ] لکه یهود نصارا او مجوس او بت پرست﴿اَيُّهُمْ اَشَدُّ عَلَى الرَّحْمٰنِ عِتِيًّا﴾ [ هغو خلقو لره جدا کړو کوم چه به دوی کښې زیات دالله تعالی نه سرکشی کونکی وو] چه دوی لره دنورونه اول دوزخ ته داخل کړو [ بیا ] دانه ده چه دوی لره په جدا کولو کښې مونږ ته دځه تحقیقاتو کولو ضرورت پریوځی ځکه چه [مونږ ] په خپله ﴿ثُمَّ لَنَحْنُ اَعْلَمُ بِالَّذِيْنَ هُمْ اَوْلٰى بِهَا صِلِيًّا﴾[ داسې خلقو لره ښه پیژنو کوم چه دوزخ ته دتلو زیات ] یعنی اول [مستحق دی ] پس په خپل علم سره به داسې خلقو لره جدا کړو اول دوی لره بیا نورو کفارو لره دوزخ ته داخل کړو او دا ترتیب صرف په اولیت کښې دې او په نه وروستو والی کښې خو ټول برابر دی او دجهنم وجود داسې یقینی دې چه دابه ټولو مؤمنانو او کافرانو ته وښودې شی کفاروته په طور ددخول او عذاب ابدی دپاره او مؤ منانو ته په طور دپورې وتو په بل صراط او دزیادت دشکر او خوشحالئ دپاره چه دا وويني او جنت ته ورسیږی نو زیات شکر به وکړی او خو شحاله به شی [او] ځنې ګناهګارانو لره به دلږې سزا دپاره کوم چه په حقیقت کښې پاکوالې دې ددې عامو لیدو خبر ورکولې شی چه ﴿وَاِنْ مِّنْكُمْ اِلَّا وَارِدُهَا﴾[ په تاسو کښې هیڅوك هم نشته چه په دې باند به تیرنه شی ] څوك په ننوتو سره او څوك په تیریدو سره [ دا ] دوعدې موافق﴿كَانَ عَلٰى رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا﴾ [ ستا درب په اعبتار سره ] په طور دلازم ] موکد[ ده چه ] خامخابه [ پوره شی بیا ] په دې جهنم باند په تیروسره داسې مه ګنړئ چه په دې کښې مؤمن او کافر برابردی بلکه ﴿ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِيْنَ اتَّقَوْا﴾ بیا[مونږ به هغو خلقو له نجات ورکړو کوم چه دخدائ نه ویریدل ] ایمان ئې راوړې وو خواه اول سره نه نجات بیا مومی لکه مؤمنان کاملان اوکه خواه وروستو دځه تکلیف تیر ولو نه لکه ناقصه مؤمنان ﴿وَنَذَرُ الظّٰلِمِيْنَ فِيْهَا جِثِيًّا﴾ [ اوظالمانو] یعنی کافرانو [ لره به په دې کښې] دهمیشه دپاره [ داسې حالت کښې پاتې کړو چه ] دډیر رنج او غم نه به [ په زنګنونو پریوځی ]

## معارف او مسائل

﴿وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهٖ﴾ په مشقت او تکلیف باندې کلك پاتې کیدل د اصطبار معنی ده ، دې کښې اشاره شوه چې په عبادت باندې همیشوالې کول او کلك پرې پاتې کیدل مشقت غواړی چې عبادت کوونکی لره دې دپاره تیار اوسیدل پکار دی .

﴿هَلْ تَعْلَمُ لَهٗ سَمِيًّا﴾ د ﴿سَمِيٌّ﴾ مشهور معنی د نوم شریك ده . او دا عجیبه اتفاق دې چې مشرکانو او بت پرستو اګر چې په عبادت کښې ډیر انسانان ، فرښتې او کانړی او بتان الله ﷻ سره شریك ګرځولی وو او ټولو ته ئې اله یعنی معبود وئیلی دی خو داسې هیڅرې نه دی

(۱) ترجمه:—د پوره آیت مبارك ترجمه داده:— هغه شیطان چې دوئ سره اوسیدو ، هغه به اووائی چې اې زمونږ پروردګاره! ما خودوئ نه وو ګمراه کړی بلکه دې خو پخپله په ګمراه کښې وو.

شوي چې يو باطل معبود د الله ﷻ په نوم بللې شوې وي ، دا يو تكويني او تقديري خبره وه چې په دنيا كښې هيڅ يو بت يا باطل معبود ته الله ﷻ نه دې وئيلې شوې ، نو ددې معنى په لحاظ سره هم ددې آيت مبارك مضمون داسې واضح دې چې په دنيا كښې هيڅوك د الله ﷻ په نوم نيشته .

اكثرومفسرينو ، مجاهد رحمه الله ، ابن جبير رحمه الله ، قتاده رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنهما نه دلته ددې لفظ معنى مثل او شبيه منقول ده . مطلب ددې هم واضح داسې دې چې په صفتونو د كمال كښې د الله ﷻ پشان هيڅوك نشته .

﴿لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّيَاطِينَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ﴾ دلته ﴿وَالشَّيَاطِينَ﴾ سره لګيدلې واؤ په معنى د مع دې ، مراد دادې چې هر كافر به هم د هغه دشيطان سره په زنځير كښې تړلې شوې وي راپورته كولې شي ، دې صورت كښې به دا صرف د كافرانو د راپورته كولو بيان وي ، كه دې نه عام مطلب دا واخستې شي چې مؤمنان او كافران ټول بهٔ شيطانانو سره يو ځائې كولې شي ، په دې بنا شيطانانو سره د ټولو حشر به په دې شان وي چې كافران خو به سره د خپلو شيطانانو په زنځيرونو كښې تړلى حاضرولې شي او د مؤمنانو د حشر ميدان به هم دغه ځائې وي جدا به نهوي پدې اعتبار سره به شيطانان يعنى هم په دغې ميدان كښې به ټولو سره يو ځائې راجمع وي [ قرطبى ] . (1)

﴿حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا﴾ دحشر د شروع كيدو په وخت بهٔ مؤمنان ، كافران ، نيك بختان اوبدبختان ټول د جهنم نه ګير چاپيره راجمع كولې شي او په ټولو به هيبت وي ، ټول به په خپلو ګونډو ورغورزيدلې وي ، بيا به مؤمنان او نيك بختان د جهنم نه په پورې باسلو جنت كښې داخل كړې شي ، چې د جهنم نه په خلاصى موندو باندې هميشه دپاره پوره خوشحاله شي ددين په مخالفت كوونكو باندې خوشحاله او د الله ﷻ زيات شكر كولٔ ئې پرې نصيب شي .

﴿ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيعَةٍ﴾ په اصل لغت كښې شيعة لفظ د خاص بنده يا د خاص عقيدې خلقو دپاره استعمالولې شي ، ځكه په معنى د فرقې يعنى ډلې هم استعماليږى ، مراد به د آيت مبارك داوى چې دكافرانو په مختلفو فرقو كښې زيات سركش خلق بهٔ په چونړ كولو سره دټولو نه وړاندې كولې شي . ځينې مفسرينو فرمائيلى دى چې جهنم ته د كافرانو وړننويستل به په دې شان وى چې ټولو نه اول به ئې زيات مجرمان وروستې شي بيا به درجه په درجه دجرمونو د كم والى په لحاظ ورروستې شي . [مظهرى] (2)

﴿وَإِنْ مِنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا﴾ [ يعنى هيڅ يو انسان كه مومن وى كه كافر داسې به نه وى چې په جهنم باندې به د هغه اوريدل نه وى ] دلته د ورود نه مراد دخول نه دې بلكه عبور دې . لكه چې د ابن مسعود رضي الله عنه په يو روايت كښې لفظ د مرور هم راغلې دې . اوكه دخول مراد واخستې شي نو مومنانو متقيانو دخول به داشان وى چې جهنم به ددوئ دپاره يخ او د سلامتيا والا جوړ شي . دوئ ته به ددې هيڅ تكليف نه وى . ، لكه د ابى سميه په روايت كښې دى چې نبى اكرم ﷺ چې فرمائيلى دى : هيڅوك نيك يا فاجر به پاتې نشى چې په اول سر

(1) تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۳۲]
(2) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:۱۱۰ و ۱۱۱]

کښې به جهنم ته نه وی ورداخل شوې خو مؤمنان متقيانو دپاره به يخ اوسلامتيا والا جوړ شی. څنګه چې ابراهيم ﷵ دپاره د نمرود اور چې برد اوسلام جوړ کړې شوې وو، دې څخه وروستو به مؤمنان ددغه ځائې څخه نجات ملاو شی او جنت ته به بوتلې شی ،([1])هم دا معنی د آيت ددې جملې ده. x ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوْا) دا مضمون د ابن عباس ﷠ څخه هم منقول دې ، اوقرآن کريم کښې چې کوم لفظ ،،ورود،، راغلې دې که د هغې معنی دخول واخستلې شی نو دخول به په طور د عبور وی ، په دې وجه دې کښې هيڅ تضاد نشته دې.

جِثِيًّا ۞ وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ

[پړمخې]غورزيدلی|اوکله چی|الوستلې کيږی|په دې خلقو باندې|آيتونه زمونږ|چی واضحه اوښکاره دی

غورزيدلی پرې اوهرکله چې دوئ ته زمونږ ښکاره آياتونه واوروليی شی [نود هغې په اوريدو دايمان

قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا أَيُّ

نو وائی | هغه کسان | چی انکار ئې کړې دې | هغه کسانوته | چی ايمان ئې راوړې دې | کومه يوه

راوړو په ځائې ] کافران مومنانوته وائی | ............ ............چې په[مونږ] د دواړو

الْفَرِيقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا ۞

ددې دواړو ډلونه | بهتره ده | په لحاظ دمقام سره | او زيات شاندار دی | په لحاظ دمجلس

ډلو [د کافرانو او مسلمانانو] کښې د چا ځائې بهتر دې | اود چا مجلس ډير ښائسته دې

وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هُمْ أَحْسَنُ أَثَاثًا

اوڅومره|هلاك کړی دی مونږ|مخکښی ددوئ نه|دقومونونه|چی هغوئ|زيات ښه وؤ|په لحاظ دسامانونو

ا ود دوئ نه وړاندې مونږ څومره ډير امتونه هلاک کړی ووا چې [ددوئ نه] په سازوسامان اوظاهری شکل

وَرِءْيًا ۞ قُلْ مَن كَانَ فِي الضَّلَالَةِ

او په لحاظ دظاهری شان وشوکت سره | ورته اووايه | هغه څوك چی وی | په ګمراهئ کښی |

صورت کښې ډير ښه وو | [ائې محبوبه] ته ورته اووايه څوک چې په ګمراهئ کښې دی

فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمَٰنُ مَدًّا ۚ حَتَّىٰ إِذَا رَأَوْا

نو مهلت ورکوی | هغه ته | رحمان | په مهلت ورکولو سره | تردې پورې | کله چی | اووينی |

نو رحمان [اللهﷻ]هغوئ ته پوره مهلت ورکوی | .... تردې چې کله هغه څيز ا ووينی دکوم څيز

مَا يُوعَدُونَ إِمَّا الْعَذَابَ وَإِمَّا السَّاعَةَ ط

هغه څيز | چی وعده ئې شوې ده [دهغوئ سره] | يا که عذاب وی | او يا که | قيامت وی |

چې ورسره وعده شوې ده | يا[په دنيا کښې ] عذاب [پرې راشی] اويا قيامت [پرې راشی ]

فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا

نو معلومه به شی هغوئ ته | چې څوك دې | هغه | چی ناکاره دې | په لحاظ دځائې سره |

نو بيا به ورته معلومه شی چې څوک د ځائې په اعتبار سره خراب دې | او د چا لښکر کمزورې دې

[1]) مسند احمد رقم الحديث:[۱۴۸۹۴]، مسندجابر بن عبدالله رضي الله عنه و مجمع الزوائد رقم الحديث :[۱۱۱۵۹]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّاَضْعَفُ | جُنْدًا ۝ | وَيَزِيْدُ اللّٰهُ | الَّذِيْنَ | اهْتَدَوْا هُدًى ؕ |
| او ډير کمزوري دي | په لحاظ دلښکر سره | او زياتوي الله | هغه کسان | چې په نيغه لاره دی هدايت کښې |

او الله ﷻ هدايت يافته خلق په هدايت کښې نور هم زياتوی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْبٰقِيٰتُ | الصّٰلِحٰتُ | خَيْرٌ | عِنْدَ رَبِّكَ | ثَوَابًا |
| او باقي پاتی کيدونکی | نيکياني | بهتري دی | په نيز درب ستا | په اعتبار دجزا سره |

اوهغه نيک عملونه چې باقي پاتې کيدونکي دی ستا د رب په نيز د ثواب

| | |
|---|---|
| وَّخَيْرٌ | مَّرَدًّا ۝ |
| او بهتري دی | په اعتبار دواپس ورتلو سره |

او دانجام په اعتبار سره بهتر دی

## آسان ترجمه قرآن

او کله چه د هغوی مخې ته زمونږ ښکاره ښکاره آيتونه تلاوت کولې شی نو کافران خلق مومنانو ته وائی چه: اوښايئ په مونږ دواړو ډلو کښې دچا مقام زيات غوره دې او دچا مجلس زيات غوره دې؟ او (دې ته نه گوری چه) د هغوی نه مخکښې مونږ څومره نسلونه هلاک کړی دی، کوم چه په خپل سازوسامان او ظاهری ښوښا کښې ډير غوره وو. اووايه چه: کوم خلق په گمراهئ کښې پريوتل نو دهغوی دپاره مناسب دا ده چه رحمٰن ذات هغوی ته ښه مهلت ورکړی، تر دې چه دا خلق هغه څيز په خپلو سترگو باندې وينې په کوم سره چه هغوی ته ويره ورکولې شی که هغه (د دې دنيا) عذاب وی، يا قيامت، نو هغه وخت به هغوی ته پته اولگی چه بدترين مقام د چا دې، او لښکر د چا ډير کمزورې وو. او کومو خلقو چه نيغه لاره اختيار کړې ده، الله پاک هغوی ته په هدايت کښې ترقی ورکوی، اوکوم نيک اعمال چه باقی پاتې کيدونکې دی، دهغې بدله هم دالله پاک په نزد غوره ملاويږی، او دهغې (مجموعی) انجام به هم غوره وی.

## خلاصه تفسير

﴿وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ﴾ [ او کله چه ددې منکرانو خلقو په وړاند زمونږ ] هغه [ ښکاره ښکاره ايتونه لوستلې شی ] په کومو کښې چه دمؤمنانو په حقه باند کيدل او دکفارو په باطله باند کيدل ذکر وی ﴿قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا﴾ [ نوداکافران خلق مسلمانانو ته وائی چه ] داووايئ: په مونږ ﴿اَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ﴾ [ دواړوفرقوکښې ] يعنی په مونږ او په تاسوکښې په دنيا کښې ﴿خَيْرٌ مَّقَامًا وَّاَحْسَنُ نَدِيًّا﴾ [ مکان دچا زيات ښه دې او محفل دچا غوره دې ] يعنی ظاهره ده چه کورنی او مجلسی سازو سامان او په اهل او په مددگارانو کښې مونږ زيات يو دا خو مقدمه محسوسه ده او دويمه مقدمه ده عرفی ده چه انعام او احسان او ورکړه دنعمت د هغه سړی دپاره وی کوم چه دورکوونکی په نزد محبوب او غوره وی ددې دواړو مقدمونه ثابته شوه چه مونږ دالله تعالی محبوب او مقبول يو او تاسو مغضوب او مخذول يئ؛ وړاند الله تعالی يو جواب الزامی او يو تحقيقی ورکوی اول جواب خو دادې چه داخلق داسې خبره کوی [ او ] دانه گوری چه ﴿وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ﴾ [ مونږ ددوی نه وړاندې ډيرې داسې داسې ډلې ] په هيبت ناکو سزاگانو سره چه په يقين] سره عذاب وو[هلاکې کړې دي ﴿هُمْ اَحْسَنُ اَثَاثًا وَّرِءْيًا ۝﴾

کومې چه په سامان او نمائش کښې ددوی نه هم ] ډیرې زیاتې [ښې وې] ددې نه معلومه شوه
چه دویمه مقدمه غلطه ده بلکه په څه حکمت او مصلحت سره ددنیا نعمت مبغوض او مردود
ته هم ورکولې شی وراند دویم جواب دې چه اے پیغمبر ﷺ ﴿قُلْ مَنْ كَانَ فِي الضَّلٰلَةِ﴾ [ ته
وفرمائه چه کوم خلق په ګمراهئ کښې دی ] یعنی تاسو ﴿فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمٰنُ مَدًّا﴾ [ نو الله تعالی
دوی ته مهلت ورکوی اوږد ] یعنی په دې دنیوی نعمت کښې داحکمت دې چه مهلت ورکوی
حجت پرې پوره کوی لکه چه په بل ایت کښې دی [﴿أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ
فَذُوقُوا فَمَا لِلظّٰلِمِينَ مِنْ نَصِيرٍ﴾[۱] او دمهلت یوڅو ورځې دې ﴿حَتّٰى إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ إِمَّا الْعَذَابَ﴾ [ نزدې
چه دکوم شی ددوی سره وعده شوې ده کله چه هغه لره ووینی خواه عذاب لره ] په دنیاکښې
﴿وَإِمَّا السَّاعَةَ﴾ [ خواه قیامت لره ] په بل عالم کښې [پس ] دغه وخت ﴿فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ شَرٌّ
مَكَانًا وَأَضْعَفُ جُنْدًا﴾ [ دوی ته به معلومه شی چه بدمکان دچادې اومددګاران دچاکمزوری دی ]
یعنی په دنیا کښې چه کوم خپل اهل او مجلس لره خپل مددګار ګنړی او فخر پرې کوی هلته
به معلومه شی چه په دوی کښې څومره زور دې ځکه چه هلته به دهیچا دسره څه زور نه وی هم
دئ ته یې اضعف فرمائلې وه [ او ] دمسلمانانو دا حال دې چه ﴿وَيَزِيدُ اللّٰهُ الَّذِينَ اهْتَدَوْا هُدًى﴾ [
الله تعالی هدایت والوته ] په دنیاکښې خو [ هدایت زیاتوی ] یعنی اصل سرمایه داده چه که
دده سره څه زور نه وی هیڅ ضرر نشته [ او ] په اخرت کښې به ظاهره شی چه ﴿وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ
خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَخَيْرٌ مَرَدًّا﴾ [ کوم نیک کارونه همیشه باقی پاتی کیدونکی دی هغه ستا د رب په
نزد په ثواب کښې هم غوره دی او په انجام کښې هم غوره دی ] پس دوی ته به په ثواب کښې
لوئ لوئ نعمتونه ملاؤ شی چه مکان او باغونه هر څه به په کښې وی او انجام ددې عملونو
همیشوالې او دوام والې دې ددې نعمتونو نه پس به په هر شان او هر قسم سره دمسلمانانو
اخری حالت غوره وی او اعتبارهم اخر لره دې

## معارف او مسائل

﴿خَيْرٌ مَقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا﴾ دلته کافرانو د مسلمانانو غلطولوپاره دوه څیزونه پیش کړل ، اول ددنیا مال ، دولت او سازوسامان او بل دخدمتګارانو دبدبه او ډله ، چې په ظاهر د مسلمانانو په نسبت کافرانو ته دا زیات حاصل وو ، او هم دا دوه څیزونه دی چې انسان ته د نشې کار ورکوی ، او د دوئ فخر او لوئی عقل مند ، ذهنی خلق هم په غلطو لاروباندې واچوی ، د پخوانی دور ، د لویو لویو سرمایه دارو او د حکومت او سلطنت د خاوندانو د عبرتناك تاریخ نه په غافله کیدلو سره خپل موجوده حال لره خپل ذاتی کمال او دهمیشه راحت په هغوئ باندې ضباطوی ، سوا دهغې خلقو نه چې د قرآن کریم د تعلیم په جوړ ددنیا مال ، دولت ، عزت او مرتبه په هیڅ شان سره خپل ذاتی کمال یا د همیشه ملکرې نه ګنړی . په دې باندې د الله ﷻ شکر په ژبې سره هم ادا کوی او دهغه د ورکړی نعمت په لګولو کښې هم د هغه دحکمونو پابندی کوی . او دهغې د فنا کیدو یا دکمیدو خطرې نه هم هیڅ وخت نه غافله کیږی نو داسې خلق ددې شر نه په امن کښې پاتې کیږی . څنګه چې پیغمبران علیهم السلام دی ، سلیمان علیه السلام او داؤد علیه السلام او په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې ډیر غنیان صحابه کرام رضی الله عنهم دغه

[۱] ترجمه:-آیا مونږ تاته دومره عمر نه وو درکړې چې څوك پوهیدل هغه به پوهه شوی وی.

شان په امت کښې په لکونو اولیاء او نیکان خلق چې الله ﷻ ورته ددنیا مال ، دولت هم ښه ورکړې وو او ددین دولت او خپله ویره ئې ورته هم ډیره زیاته ورکړې وه .

قرآن عظیم الشان د کافرانو غلطي په دې شان سره لرې کړه چې ددنیا څو ورځې نعمت او دولت نه خو د الله ﷻ په نزد د مقبول کیدو نخښه ګرځیدې شي او نه هم په دنیا کښې د څه ذاتي کمال نخښه ګنړلې شي.ولې چې په دنیاکښې داخیزونه بې عقله جاهلانو ته دعقل مندو او هوښیارانو نه زیات په ګوتو ورځي . پخوانې تاریخ اوګورئ نو دا حقیقت به درته ښکاره شي چې داسې خو لا څه کوې ددې نه هم زیات څومره دولتونه او نور د بدبو څیزونه په ډیرو ډیرو په زمکه پراته لیدلې شوي دي . د خادمانو او د رعب داب د نور څیزونو، دوستانو او نیك خوهانو دډیر والي حقیقت هم اول خو په دنیا کښې ښکاره کیږي چې په تنګ وخت کښې هیڅ پکار نه راځي . بیا که په دنیا کښې هم په مخه باندې خدمت هم کوي نو تر کومې به داسې کوي آخر به ختم شي نو دې نه پس به په میدان محشر کښې څوك ملګرې وي ؟

﴿وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ مَّرَدًّا﴾ د ﴿وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ﴾ په تفسر کښې مختلف اقوال دي چې تفصیل ئې په سورة کهف کښې تیر شوېدې . غور قول دادې چې دې نه مراد هغه ټول عبادات او نیك کارونه دي چې فائدې ئې باقي پاتې کیدونکي دي ، دمردا لفظ معنی مرجع ده ، مراد ترې انجام او آخري حالت دې په دې بنا د ټول آیت مبارك مراد داسې واضح دې چې نیك عملونه اصلي دولت دې چې ثواب ئې ډیر او انجام ئې د همیشه راحت دې .

وَّخَيْرٌ    مَّرَدًّا ۝    اَفَرَءَيْتَ    الَّذِيْ    كَفَرَ

او بهترې دی | په اعتبار دواپس ورتلو سره | آیا نو تااولیدو | هغه سړې | چې انکار ئې کړې دې |

او دانجام په اعتبار سره بهتر د ی | آیا تاهغه سړې لیدلې دې چې زمونږ دحکمونو نه ئې انکار کړې دې

بِاٰيٰتِنَا    وَقَالَ    لَاُوْتَيَنَّ    مَالًا وَّوَلَدًا ۝    اَطَّلَعَ

د آیتونو زمونږ نه |اووې وئیل | خامخا به راکړې کیږي ماته |مال او اولاد |آیا خبر شوې دې ده ته

او دا وائي چې ماته به [په آخرت کښې هم که چرته وي ] مال او اولاد راکولې شي| آیا ده ته دغیبو

الْغَيْبَ    اَمِ اتَّخَذَ    عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا ۝    كَلَّا    سَنَكْتُبُ    مَا

دغیبو | یا ئې اخستې ده| د رحمن نه | وعده | هر ګز نه| لیکو به مونږه | هغه څه

خبرې معلومې دي | او که دهٔ د رحمان نه څه وعده اخیستې ده؟ | هر ګز داسې نه ده | څه چې دې

يَقُوْلُ    وَنَمُدُّ    لَهٗ    مِنَ الْعَذَابِ    مَدًّا ۝

چې وائي ئې دې | او زیات به کړو مونږ | دپاره دهغه | عذاب | په زیاتولو سره |

وائي مونږ هغه [د فرشتو په ذریعه ] لیکو | او د دهٔ په عذاب کښې به عذاب زیاتوالې کوو

وَّنَرِثُهٗ    مَا    يَقُوْلُ    وَيَاْتِيْنَا    فَرْدًا ۝

او مونږ به میراث اخلو ددهٔ نه | دهغه څه | چې وائي ئې دې | او راځي به مونږ ته | یوازې

اودې چې د کوم مال او اولاد ذکر کوي مونږ به هغه هم په میراث کښې اوړو اودې به مونږ ته یوازې راځي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاتَّخَذُوْا | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | اٰلِهَةً | لِّيَكُوْنُوْا | لَهُمْ |
| او نيولي دی دې خلقو | ماسوا د الله نه | نور خدايان | دپاره ددې چې شی هغوئ | دپاره ددوی |

اودوئ د الله ﷻ نه سوا ځان دپاره نور معبودان جوړ کړی دی اچې د دوئ دپاره دعزت باعث وی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عِزًّا | كَلَّا | سَيَكْفُرُوْنَ | بِعِبَادَتِهِمْ | وَيَكُوْنُوْنَ | عَلَيْهِمْ |
| مددګاران | هرګز نه | انکار به اوکړی هغوئ | دعبادت ددوئ نه | اوشی به [دغه معبودان] | ددوئ |

هيڅکله نه دوئ به ډير زر ددوئ دعبادت نه انکار اوکړی | اوددوئ مخالفين [دوشمنان] به شی

| |
|---|
| ضِدًّا |
| دشمنان [مخالفان] |

## آسان ترجمه قرآن

آيا تا هغه سړې هم ليدلې دې چا چه زمونږ د آيتونو منلو نه انکار کړې دې، او دا ئې وئيلې وو چه: ماته به مال او اولاد (په آخرت کښې هم) ضرور ملاويږي آيا هغه په عالم غيب کښې کتلې دی. يا هغه د رحمٰن ذات نه څه وعده اخستلې ده؟ هرګز داسې نه ده! څه چه دې وائی، مونږ به هغه هم ليکو، او ده له په عذاب کښې به اضافه اوکړو. او د کوم (مال او اولاد) چه دې حواله ورکوی، د هغې به مونږ وارثان يو. او دې به مونږ ته يواځې راځی. او دې خلقو د الله پاک نه سوا نور معبودان جوړ کړی دی چه هغوی د دوی ملاتړ ښی دا ټولې غلطې خبرې دی! هغوی خو به د دوی دعبادت نه هم انکار اوکړی. او اُلټه به د دوی مخالف ښی.

## خلاصه تفسير

اے محمد ﷺ ﴿اَفَرَءَيْتَ الَّذِىْ كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا﴾ [ ايا تا ] حالت د [ دهغه سړی لره وليدو کوم چه زمونږ دايتونو سره ] دکومو چه دا حق دې چه ايمان پرې راوړی چه ايتونه دبعث دوباره ژوندی کيدلو په کښې هم دی [ کفر کوی او] په مسخرو سره ﴿وَقَالَ﴾ [ وائی چه ماته به] په اخرت کښې ﴿لَاُوْتَيَنَّ مَالًا وَّوَلَدًا﴾ [مال او اولاد ملاويږی] مطلب دادې چه دده حالت هم دتعجب قابل دې ورند ددې رد دې چه ﴿اَطَّلَعَ الْغَيْبَ اَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا﴾ [ ايا داسړې په غيبوخبرشوې دې ياده دالله تعالى سره څه عهد] ددې خبرې [ کړې دې ] يعنى ددې دعوې علم ورته بې دواسطې داسبابونه شوې دې چه علم غيب دې ياپه واسطه داسبابو شوې دې بيا چونکه دغه دعوى عقلى حکم خو دې نه بلکه نقلى امر دې په دې وجه صرف دليل نقلى چه اخبار خداوندى دې ددې دليل کيدېشي پس دواړه طريقې معدومې دی اوله خو عقلا هم ناممکنه ده او دويمه هډو واقع شوې نه ده ﴿كَلَّا﴾ [ هرګز نه ده ] محض غلطه وائى او ﴿سَنَكْتُبُ مَا يَقُوْلُ﴾ [ مونږ دده وئيلې شوی هم ليکو] او په وخت به دسزا ورکړو چه ﴿وَنَمُدُّ لَهٗ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا﴾ [ دده دپاره به عذاب زياتولې شی ﴿وَنَرِثُهٗ مَا يَقُوْلُ﴾ او دده د وئيلې شوو څيزونو به مونږ مالکان پاتې شو يعنى دوی به ددنيا نه مره شی او په مالونو او اولاد باندبه ددوی څه اختيار پاتې نه شی مونږ به دټولومالکان شو او په قيامت کښې به ورله مونږ ورنه کړو بلکه ﴿وَيَاْتِيْنَا فَرْدًا﴾ [دوی به مونږ ته ] دمال او اولاد نه ] تن تنها راشی ﴿وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً﴾ او دې خلقو خدائ لره پريښودې دې اونورو لره يې معبودان جوړ کړی دی ﴿لِّيَكُوْنُوْا لَهُمْ عِزًّا﴾ چه ددوی دپاره دغه ] دالله تعالى په

نژد [باعث دعزت وی ] لکه چه په دې ایت کښې ئې قصه ده ﴿يَقُولُونَ هَٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا﴾(۱) ﴿ كَلَّا سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ ﴾ پس داسې [به هرگز ونه شي بلکه دغه خویه ] په قیامت کښې پخپله ددوئ د عبادت نه منکر شي لکه د سورهٔ یونس په دریمه رکوع کښې چه تیر شوی دی [قَالَ شُرَكَاؤُهُمْ مَا كُنْتُمْ إِيَّانَا تَعْبُدُونَ](۲) [او] البته ﴿وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا﴾ [ددوی به مخالف شی ] په وینا سره هم لکه چه تیر شول او په حال سره هم چه په ځائ دعزت به سبب د ذلت شی په دې معبودانو کښې به بتان هم وی پس ددوی خبرې کول لکه چه دیکلرون مقتضاده په مثل دخبرو کولو په ښکاره اندامونو سره څه بعیده او عجیبه نه ده .

## معارف او مسائل

﴿لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا﴾ بخاری شریف او مسلم شریف کښې د خباب بن الارت رضي الله عنه نه روایت دې چې په عاص بن وائل باندې د دوئ رضي الله عنه څۀ قرض وو ، دوئ رضي الله عنه د هغې غوښتلو دپاره ورغلل هغه ورته اووئیل چې زه ستاسو قرض تر هغې پورې نه درکوم تر څو چې تاسو محمد ﷺ سره د کفر او انکار معامله اونه کړئی . دوئ رضي الله عنه جواب ورکړو چې زه خو داسې نشم کولې تر څو چې ته د مرګ نه پس بیا راژوندې شې . عاص بن وائل اووئیل چې ښه ده نو د مرګ نه پس بۀ زه بیا هم ژوندې کیږم ؟ که داسې اوشوه نو قرض به دې هم هغه وخت خلاص کړم کله چې بیا ژوندې شم ، ځکه چې هغه وخت به هم ماسره مال او اولاد وی [قرطبی].(۳)
قرآن عظیم الشان ددغې کم عقل په جواب کښې اوفرمائیل چې ده ته دا څنګه معلوم شو چې د دوباره ژوندی کیدو په وخت به هم دۀ سره مال او اولاد وی ؟لکه فرمائی چې :

﴿أَطَّلَعَ الْغَيْبَ﴾ [آیا ده د غیب د خبرو په پلټنې کولو سره معلوم کړی دی] .

﴿أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا﴾ [یا درحمان ، الله ﷻ نه ئې د مال، اولاد دپاره څه دغسې لوظ اخستې دې ] اودا ښکاره ده چې دغسې هیڅ خبره نه ده شوې . بیا ئې څنګه د شګو محلونه جوړ کړل . ﴿وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ﴾ او په آخرت کښې خولا څه کوې چې په دنیا کښې بۀ ترې هر څه مال ، اولاد هم مونږ ته پاتې شی . په آخرت کښې به ددۀ وارثان هم مونږ یو ، یعنی دغه مال ، اولاد به آخر په دنیا کښې ترې واخستې شی ، او دې به تش لاس مونږ ته واپس راځی .

﴿وَيَأْتِينَا فَرْدًا﴾ اود قیامت په ورځ به یواځې زمونږ په دربار کښې حاضرېږی نه به ورسره څه اولاد وی او نه به ورسره څه مال وی .

﴿وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا﴾ یعنی دا خپله جوړ کړی بتان او باطل معبودان دکومو عبادت به ئې چې په دې غرض کولو چې په محشر کښې به ئې مددګار شی ، البته به ئې دښمنان جوړشی ، الله ﷻ به ئې ګویا کړی هغه بۀ وائی چې یا الله ! دوئ ته عذاب او سزا ورکړې چې ستا په پرېښودو ئې مونږ معبودان جوړ کړی وو . [قرطبی](۴)

---

۱) ترجمه:-او وائې چې دوئ الله تعالي جل شانه ته زمونږ سفارشیان دی.
۲) او ددوئ هغه شریکان به اووائې چې تاسو زمونږ عبادت نه کولو.
۳) صحيح البخاري كتاب البيوع ، باب ذكر القين والحداد [ج:۱ص:۲۸۰] و صحيح مسلم كتاب صفة المنافقين، باب صفة القيامة والجنة والنار [ج:۲ص:۲۷۰] و تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۴۵، ۱۴۶]
۴) تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۴۸]

| عَلَى الْكٰفِرِيْنَ | الشَّيٰطِيْنَ | أَرْسَلْنَا | أَنَّآ | أَلَمْ تَرَ | ضِدًّا ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| کافرانوته | شیطانان | لیږلي دي مونږه | چې بیشکه | آیا نهٔ ګورې ته | دشمنان [مخالفان] |

......انې محبوبه ] آیاته نه ګورې چې مونږ شیطانان په کافرانو باندې ورپرېښي [مسلط کړي] دي

| نَعُدُّ | إِنَّمَا | عَلَيْهِمْ ط | فَلَا تَعْجَلْ | أَزًّا ۝ | تَؤُزُّهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| شمارو مونږه [ورځې ] | بیشکه | په دوئ باند | انو تلوارمهٔ کوه ته | په تیزولو سره | چې تیزوي هغوئ لره |

[چې هغوئ [کفر او ګناه ته] ښه تیزوي [نو ته په دوئ د عذاب راتلو تلوارمه کوه ] مونږ پخپله ددوئ کارونه

| إِلَى الرَّحْمٰنِ | الْمُتَّقِيْنَ | نَحْشُرُ | يَوْمَ | عَدًّا ۝ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| رحمان ته | پرهیزګاران | چې جمع به کړو مونږه | هغه ورځ | په شمارولو سره | دپاره ددوئ |

شمیرو | ..........په کومه ورځ چې به مونږ ټول پرهیزګاران ډلې ډلې رحمان ته [دمیلمستیا

| وِرْدًا ۝ | إِلَى جَهَنَّمَ | الْمُجْرِمِيْنَ | وَّنَسُوْقُ | وَفْدًا ۝ |
|---|---|---|---|---|
| پشان دتږي څناورو | دوزخ ته | نافرمان خلق | او اوبه شړو مونږه | ډلې ډلې |

دپاره ] جمع کړو | اومجرمان به اوږي تږي دوزخ ته اوشړو

| عِنْدَ الرَّحْمٰنِ | اتَّخَذَ | مَنِ | إِلَّا | الشَّفَاعَةَ | لَا يَمْلِكُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| د رحمان | چې اخستې ئې وي | هغه څوك | مګر | دسفارش | اختیار به نهٔ لري خلق |

د هغه چا نه سوا د سفارش اختیار به هیچا ته نه وي چې درحمان نه ئې اجازت غوښتې وي

عَهْدًا ۝

اجازت نامه [وعده]

## آسان ترجمه قرآن

(اې پېغمبره!) آیا تاته معلومه نه ده چه مونږ په کافرانو باندې شیطانان پرېښودلې دي کوم چه هغوی برابر تیزوي؟ لهٰذا تهٔ د هغوی په معامله کښې جلتي مه کوه. مونږ خو د هغوی دپاره شمیر کوو. (هغه ورځ مه هېروه) په کومه ورځ چه به مونږ ټول متقیان خلق د رحمٰن ذات سره میلمانهٔ جمع کړو. او مجرمان به تږي د څناورو په شان د دوزخ طرف ته بوځو خلقو ته به د چا د سفارش هیڅ اختیار نه وي، سوا دهغه خلقو نه چا چه د رحمٰن ذات نه څه اجازت حاصل کړې وي.

## خلاصه تفسیر

ته چه ددوی په ګمراهۍ باندغم کوې نو ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّآ أَرْسَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ﴾ [ ایاتاته معلومه نه ده چه مونږ شیطانانو لره په کافرانو باند] دپاره ازمائش [ ورپرېښودي دي ﴿تَؤُزُّهُمْ أَزًّا﴾ چه هغوی دوی لره ] په کفر اوګمراهۍ [ ښه رپارا وی ] اولمسوی بیا چه په خپل اختیار سره دخپل بد خواه په لمسه کښې راشي دهغه ولې غم کوې [ پس ] بیا چه شیطانان ابتلاء په دوی مسلط شول او مستحق له په تلوارې په سزا ورکولو کښې ازمینبت نه شي پاتې کیدې نو [ ته ددوی دپاره ] دعذاب په درخواست کښې ﴿فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ ط﴾ [ تلوار مه کوه ﴿إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا﴾ مونږ ددوی خبرې ] په کومه چه به سزا وی [ په خپله شمیرو] او دغه سزا به په هغه ورځ واقع

کیږي ﴿يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِيْنَ اِلَى الرَّحْمٰنِ وَفْدًا﴾ [ په کومه ورځ چه مونږ متقیانو لره درحمن ] دار النعیم [ طرف ته میلمانه جوړ کړي جمع کړو ﴿وَنَسُوْقُ الْمُجْرِمِيْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ وِرْدًا﴾ او مجرمان دوزخ طرف ته تږي وشړو ] او څوك به ددوی سفارش کوونکي هم نه وي ځکه چه هلته ﴿لَا يَمْلِكُوْنَ الشَّفَاعَةَ﴾ [ به دچا دسفارش اختيار نه وي ﴿اِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا﴾ مگر چاچه درحمن نه اجازت اخستې وي ] هغه انبياء ﷺ او صالحان دي او اجازت خاص دې دمؤمنانو سره پس کفار محل دشفاعت نه شول .

## معارف او مسائل

[تَؤُزُّهُمْ اَزًّا] عربي لغت کښې [هَزًا] [اَزًا] [فَزًا] [حَضً] ټول په یو معنی کښې دی . يعنی یو کار دپاره راپاره کول او راغولول یې معنی ده . د سپکوالی ، سختوالی ، کمی ، زیاتی ، په لحاظ سره په دې کښې فرق شته دې ،نو د [اَزًا] معنی په پوره قوت تدبیر او تحریك سره څوك یو کار دپاره تیارول ، او په هغې باندې مجبوره کول معنی لری . د آیت معنی دا شوه چې د غه شیطانان یې بدوعملونو ته راپاروی اود هغې خوبیانې هغوی ته ښائی او په خرابیانو باندې یې نظر کولو ته نه پریږدی.

[اِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا] مطلب د ادې چې تاسو ﷺ ددوئ د عذاب په باره کښې جلدی مه کوئ ځکه چې دا خو به زر کیدونکی وی ولې چې مونږ د دوئ د شمیر ورځې او په دنیا کښې ورکړې موده ډیره زر ختمونکی یو چې ددې ځځه پس به خالص په عذاب کښې وی .

[نَعُدُّ لَهُمْ] [مونږ دوئ دپاره شمیرو] مطلب دادې چې ددوئ هیڅ یو څیز آزاد نه دې ، ددوئ د عمر شمیرلې شوې دې ، ددوئ هر ه یوه ساه ، ددوئ هر یو نقل و حرکت ددوئ هر یو قدم ، ددوئ مزې ، ددوئ د ژوند یویو ساعت مونږ شمیرو ، ددې شمیر په پوره کیدو سره به پرې زر تر زره عذاب شروع شی .

مامون الرشید یو ځل د سورة مریم تلاوت کولو ، کله چې دې آیت مبارك ته راؤرسیدو نو په مجلس کښې د حاضرو عالمانو او فقهاء کرامو ځینې یې ابن سماك رحمه الله ته اشاره اوکړه چې ددې باره کښې څه وایې ، هغوئ عرض اوکړو چې هر کله زمونږ ساګانې شمیرلې شوی دی ، په دې باندې زیاتوالې نشی کیدې نو دا به څومره زر ختمې شی ؟ لکه یو شاعر وائی چې :

حیوتك انفاس تعد فكلما　　　　مضى نفس منك انتقصت به جزا

[ستا د ژوند ساګانې شمیرلې شوی دی چې په یو ساه اخستو سره ستا دژوند یوه یوه حصه ختمیږی]

وئیلې شی چې په یو یو شواروز کښې انسان څلویښت زره ساګانې اخلی [قرطبی][1]

او ځینو حضراتو فرمائیلی دی چې :

وكيف يفرح بالدنيا ولذتها　　　　فتى يعد عليه اللفظ والنفس

[په دنیا او ددې په مزو کښې هغه څوك څنګه اخته او بې فکره پاتې کیدې شی چې الفاظ او ساګانې یې شمیرلې شی] [روح][2]

---

[1]) تفسير القرطبي [ ج:١١ص:١٥٠]

[2]) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:١٣٥]

[يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِيْنَ اِلَى الرَّحْمٰنِ وَفْدًا] وفد يو داسې راتلونکې ډلې ته وائی چې يو لويې بادشاه يا امير ته په قدر او عزت سره ورځی . د حديثو په ځينو روايتونو کښې راغلی دی چې داخلق به په سورلو سواره وررسيږی چې د هر چا سورلی به هم هغه وی کومه چې به يې په د نيا کښې خوښوله ، ځينې حضراتو فرمائيلی دی چې ددوئ عملونه به ددوئ دزړه پورې دسورلو صورت اختيار کړی ، د حديثو دا روايتونه روح المعانی او قرطبی نقل کړی دی .([1])

[اِلٰى جَهَنَّمَ وِرْدًا] ورد اوبو ته د تلو معنی ورکوی ، او ښکاره ده چې هم د تندې په وخت څوك انسان يا ځناور د اوبو گودر ته ورځی ، ځکه ددې ترجمه تږې اوکړې شوه.

[اِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا] ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلی دی چې د عهد څخه مراد د لا اله الا الله گواهی ورکول دی ، ځينو حضراتو فرمائيلی دی چې د عهد څخه مراد حفظ د کتاب الله دې ، خلاصه داده چې د شفاعت کولو حق به هر يو ته نه ملاويږی ، سوا دهغې خلقو څخه چې د ايمان په لوظ باندې مضبوط پاتې شوې وی [روح]([2])

عَهْدًا ۝ وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا ۝ لَقَدْ جِئْتُمْ

اجازت نامه [وعده] | او وائی دوئ | چې نيولې دې رحمان | ځوئې | بيشکه چې راتگ اوکړل تاسو

........او [داخلق] وائی چې رحمان ځان دپاره اولاد نيولې دې | تاسو ډيره خرابه خبره کړې ده | نزدې ده

شَيْئًا اِدًّا ۝ تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ

يو ځيز ته | چې ډير بد دې | قريبه ده | چې آسمانونه | اوشليږی | ددې خبری نه

........چې په دې وينا باندې آسمانونه اوشليږی | اوزمکه ځيری شی

وَتَنْشَقُّ الْاَرْضُ وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا ۝ اَنْ دَعَوْا لِلرَّحْمٰنِ

او اوچوی | زمکه | او راپريوزی | غرونه | توتې توتې | چې رااوبللو دوئ | دپاره درحمن

........اوغرونه ريزه ريزه راوغورزيږی | ځکه چې هغوئ درحمان دپاره ځوئې

وَلَدًا ۝ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لِلرَّحْمٰنِ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا ۝ اِنْ كُلُّ مَنْ

ځوئې | او نه ښائی | دپاره درحمان | چې اونيسی | ځوئې | نه دی ټول | هغه څوك

گرځولې دې | حال دا چې درحمان دپاره څوك ځوئې جوړول مناسب نه دی | چې څوك هم په

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اِلَّآ اٰتِي الرَّحْمٰنِ عَبْدًا ۝

چې په اسمانونو کښی دی | اوپه زمکه کښی دی | مگر | راتلونکی دی | رحمان ته | په حيثيت دبنده

اسمانونو اوپه زمکه کښې موجود دی هريو به رحمان ته د بنده په حيثيت حاضريږی

لَقَدْ اَحْصٰىهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا ۝ وَكُلُّهُمْ

بيشکه احاطه کړی ده الله دهغوئ | او شمارلی ئې دی هغوئ | په شمارلو سره | او هغوئ ټول

هغه داټول ځيزونه احاطه کړی دی | او ښه ئې شميرلی دی | ........اوهريو به ورته دقيامت په ورځ

[1] ) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:١٣٥] و كنز العمال رقم الحديث:[٤٥٠٤] وصفة الجنة لابن ابي الدنيا رقم الحديث [٦]

[2] ) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:١٣٧]

اٰتِیۡهِ  یَوۡمَ الۡقِیٰمَةِ  فَرۡدًا﴿۹۵﴾  اِنَّ الَّذِیۡنَ  اٰمَنُوۡا

راتلونکی دی هغه ته | په ورځ دقیامت | یوازې | بیشکه هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو

ایکې یوازې حاضرېږی | ........ بیشکه کومو کسانو چې ایمان راوړې دې

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ  سَیَجۡعَلُ  لَهُمُ  الرَّحۡمٰنُ  وُدًّا﴿۹۶﴾

او عمل ئې او کړو نیک | او به ګرځوی | دپاره دهغوئ | رحمان | محبت [په زړونو دخلقو کښې]

او نیک عملونه ئې کړی دی | رحمان به دهغوئ دپاره [دخلقو په زړونو کښې] محبت پیدا کوی

فَاِنَّمَا  یَسَّرۡنٰهُ  بِلِسَانِكَ  لِتُبَشِّرَ  بِهِ

پس بیشکه | آسان کړو مونږه دا کلام | په ژبه ستا | دپاره ددې چې ته زیرې ورکړې | په دې سره

نو مونږ دا [قرآن] ستا په ژبه څکه آسان کړې دې | چې ته ددې په ذریعه پرهیز ګارانو ته زیرې ورکړې

الۡمُتَّقِیۡنَ  وَتُنۡذِرَ  بِهِ  قَوۡمًا  لُّدًّا﴿۹۷﴾  وَكَمۡ اَهۡلَكۡنَا

پرهیزګارو خلقو ته | او ویروې ته | په دې سره | قوم | ضدیان | او څومره ډیر هلاک کړل مونږه

او ددې په ذریعه جګړمار خلق او ویرې | او مونږ ددې خلقو نه وړاندې څومره ډیرې ډلې هلاکې کړی

قَبۡلَهُمۡ  مِّنۡ قَرۡنٍ ؕ  هَلۡ تُحِسُّ  مِنۡهُمۡ  مِّنۡ اَحَدٍ  اَوۡ تَسۡمَعُ

مخکښې ددوئ نه | قومونه | آیا محسوسوې ته | دهغوئ نه | یو کس | یا اورې ته

دی | نو آیا نن ته په هغوئ کښې څوک [باقی پاتې] وینې | یا د هغوئ

لَهُمۡ  رِكۡزًا﴿۹۸﴾

هغوئ لره | څه کشار [ګنګوسه]

ګنګوسې قدرله آورې [نه بلکه ټول خاوره سره خاورې شو]

## آسان ترجمه قرآن

او دا خلق وائې چه د رحمٰن ذات اولاد دې! (داسې خبره کونکو!) حقیقت دا دې چه تاسو ډیر سخت حرکت کړې دې. هیڅ لرې نه ده چه د دې په وجه آسمان اوچوی، او غرونه ذره ذره کیدو سره رالړ پرځی. چه دې خلقو د رحمٰن ذات دپاره د اولاد کیدو دعوی کړې ده. حال دا چه د رحمٰن ذات دا شان نه دې چه د هغه دې اولاد وی په آسمانونو او زمکه کښې چه څومره خلق دی. په هغوی کښې څوک هم داسې نشته چه د رحمٰن ذات په حضور کښې تابعدار راتلی یقینی ساتلی چه هغه په ټولو احاطه کړې ده او مونږ هغوی په شمار کړې دی. او د قیامت په ورځ به هغوی کښې یو یو کس هغهٔ ته یوائې راځی بیشکه کومو خلقو چه ایمان راوړې دې او هغوی نیک اعمال کړی دی. رحمٰن ذات به د هغوی دپاره په زړونو کښې محبت پیدا کړی پس (اې پیغمبره!) مونږ دا قرآن کریم ستا په ژبه آسان کړې دې چه ته د دې په ذریعه متقیانو خلقو ته زیرې ورکړې. او هم د دې په ذریعه هغه خلق اویرَوې کوم چه د ضد د وجې نه جهګړې ته تیار دی. د دوی نه مخکښې مونږ څومره قومونه هلاک کړی دی. آیا تهٔ په هغوی کښې د چا احساس کوې، یا په هغوی کښې تهٔ د چا کشارې هم آورې.

## خلاصه تفسير

﴿وَقَالُوا﴾ [ اودا ] کافران [خلق وائی چه ] نعوذبالله ] ﴿اتَّخَذَ الرَّحْمَٰنُ وَلَدًا﴾ الله تعالی اولاد هم نیولې دې ] چنانچه نصاره په کثرت سره اویهود په قلت سره او دعربو مشرکان په دې فاسده عقیده کښې اخته وو الله تعالی فرمائی چه [ تاسو دا ] خبره چه وکړه ﴿لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا إِدًّا﴾[ داسې سخت حرکت مووکړو ﴿تَكَادُ السَّمَاوَاتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَتَنْشَقُّ الْأَرْضُ﴾ چه ددې په سبب څه لرې نه ده چه اسمان څیرې شی او دمزکې ټکړې والوزی ﴿وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا﴾ او غرونه مات شی او راوغورزیږی ﴿أَنْ دَعَوْا لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدًا﴾ په دې خبره چه داخلق الله تعالی طرف ته اولاد نسبت کوی ﴿وَمَا يَنْبَغِي لِلرَّحْمَٰنِ أَنْ يَتَّخِذَ وَلَدًا﴾حال دادې چه دالله تعالی شان نه دې چه هغه اولاد اختیار کړی ﴿إِنْ كُلُّ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ إِلَّا آتِي الرَّحْمَٰنِ عَبْدًا﴾ ځکه چه څومره څه چه په اسمانونو کښې اوپه مزکه کښې دی ټول دالله تعالی په وړاند به غلامان حاضریږی ] او ﴿لَقَدْ أَحْصَاهُمْ﴾[ هغه ټول لره] دخپل قدرت [ په ګیرکښې راوستی دی او] په خپل علم سره ﴿وَعَدَّهُمْ عَدًّا﴾ [ ټول یې شمیر کښې دی ] دا حالت خو ددوی فی الحال دې﴿وَكُلُّهُمْ آتِيهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَرْدًا﴾[ او دقیامت په ورځ به دوی ټول هغه ته ایکی یوازې حاضرې شی ] چه هرسړې به دالله تعالی محتاج او محکوم وی پس که دالله تعالی اولاد وی نو د الله تعالی شان به وجوب د وجود اولاوازماتو دوجوب سره موصوف پکاردی الله تعالی داصفتونو دی کوم چه ذکر شول عموم دقدرت عموم دعلم اود غیر خو خدادا صفتونه دی محتاجی تابعداری کوم چه ضد دی دوجوب بیا دضدینو اجتماع څنګه کیدې شی ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾[ بیشکه کوم خلق چه ایمان راوړی او نیک عملونه وکړی الله تعالی به ] دوی ته علاوه داخرت دذکر شوو نعمتونو نه په دنیا کښې دانعمت ورکړی چه ﴿سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمَٰنُ وُدًّا﴾ [ددوی دپاره ] دخلقو په زړونو کښې [ محبت پیداکړی پس ] ته دوی ته دا خوشخبری ورکړه ځکه چه ﴿فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ بِلِسَانِكَ﴾[ مونږ دې قرآن لره ستا په ژبه ] عربی[کښې ځکه اسان کړې دې ﴿لِتُبَشِّرَ بِهِ الْمُتَّقِينَ﴾ چه ته په دې سره پرهیزکارانو ته خوشخبری واوروې او] دارنګ ﴿وَتُنْذِرَ بِهِ قَوْمًا لُدًّا﴾[ په دې سره جګړالو خلقو ته ویره ورکړې او] ددې ویرې په څیزونو کښې ددنیا دعذاب یو مضمون داهم ده چه ﴿وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِنْ قَرْنٍ﴾ [ مونږ ددوی نه وړاند ډیرې ډلې ] په عذاب او قهر سره [ هلاك کړی دی ] پس ﴿هَلْ تُحِسُّ مِنْهُمْ مِنْ أَحَدٍ﴾[ ایا په دوی کښې چالره وینې ﴿﴿أَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا﴾﴾یا په دوی کښې دچا څه کشار اوړې ] داکنایه ده دبې نام ونشان کیدو نه پس کفار ددې عذاب ددنیا هم مستحق دی اګر چه په څه مصلحت سره دچا کافر دپاره ددې وقوع نه وی مګر د فکر کولو قابل خو دی

## معارف او مسائل

[وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا] ددې آیتونو څخه دا معلومه شوه چې په زمکه ، غرونو او ددې په ټولو څیزونو کښې یو خاص قسم عقل او شعور موجود دې ، اګر چې هغه تر دې حده پورې نه وی په کوم باندې چې دالله ﷻ حکمونه مرتب کیږی ، دا هم هغه عقل اوشعور دې چې د کوم په وجه د دنیا هر څیز د الله ﷻ د نوم تسبیح کوی ، لکه پخپله قرآن کریم فرمائی چې [وَإِنْ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ] [هیڅ یو څیز په د نیا کښې داسې نشته دې چې دالله ﷻ د حمد سره به تسبیح نه کوی] چنانچه ددغه څیزونو هم دغه شعور او فهم دې کوم چې د قرآن کریم په دې آیتونو کښې داسې

بيان شوي دي چې د الله ﷻ په شريك كرځولو خصوصاً هغه دپاره په اولاد كرځولو سره زمكه او غرونه وغيره سخت ويريږي . عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائيلي دي چې د پيريانو او بنيادمو څخه علاوه ټول مخلوقات الله ﷻ سره د شريك كرځولو څخه ډير زيات ويريږي او دا خطره محسوسوي چې ذره ذره به شي [روح المعاني]([1]) [وَعَدَّهُمْ عَدًّا] الله ﷻ د ټولو انسانانو د ذات او عملونو پوره پوره علم لري ، د دوئ ساګانې ، د دوئ قدمونه ، د دوئ نمرې ، او ګوتونه د الله ﷻ په نزد په شمير دی ، چې د هغې څخه زياتيدلې نشي .

[سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا] [په ايمان او نيك عمل باندې كلك ولاړ خلقو دپاره د الله ﷻ دوستي او محبت بنا كوي] يعني كله چې ايمان اونيك عمل مكمل وي او د بهرنو عوراضو څخه خالي وي نو د هغې خصوصيت دادې چې د نيكانو صالحانو ترمينځه په خپل مينځ كښې هم مينه محبت پيداكيږي او دنورو خلقو اوټولو مخلوقاتو په زړونو كښې دوئ سره الله ﷻ مينه محبت كوي .

بخاري او ترمذي وغيره د ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت نقل كړې دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل : الله ﷻ چې يو بنده خوښ كړي نو جبرائيل عليه السلام ته فرمائي چې زه فلاني بنده سره محبت كوم ته ورسره هم محبت كوه ، جبرائيل عليه السلام په ټولو آسمانونو كښې ددې اعلان كوي نو ټول آسماني مخلوق ورسره محبت كول شروع كړي تر دې چې دغه محبت زمكې ته رابنكته شي ، او وې فرمائيل چې دقرآن پاك دا آيت مبارك پرې ګواه دې چې :[اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا] .([2])

او هرم بن حيان رحمه الله فرمائي چې څوك د زړه د اخلاصه په مكمل شان سره الله ﷻ ته متوجه شي نو الله ﷻ د ټولو ايماندرو زړونه هغه ته رامات كړي . [قرطبي]([3])

كله چې ابراهيم عليه السلام خپله بي بي هاجره او د غيږې تي رودونكي ماشوم خوې اسماعيل عليه السلام د مكې مكرمې د اوچو غرونو مينځ كښې په شګلنه زمكه كښې د الله ﷻ په حكم سره پريښودو او شام ته د واپس تلو اراده يې اوفرمائيله نو هغوئ دپاره يې هم داسې دعا اوفرمائيله چې : [فَاجْعَلْ اَفْـِٕدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِيْٓ اِلَيْهِمْ] [اې الله ﷻ زما دې بې آسرې بال بچ ته د څه خلقو زړونه رامات كړې] نو د زرګونو كلونو تيريدو باوجود د الله ﷻ د مكې اود مكې د خلقو دپاره د ټولې دنيا د خلقو زړونه رامات كړي دی ، د دنيا د ګوټ ګوټ څخه خلق په ډيرو محنتونو او مشقتونو سره د ټول عمر جمع كړې پنګه خرچ كوي او دغه ځائې ته د حج او عمرې دپاره ځانونه رارسوي . او د ټولې دنيا څيزونه دغه ځائې هر وخت په بازارونو كښې ملاويږي .

[اَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا] د ركزا معنی هغه غلې آواز دې چې په مطلب يې څوك نه پوهيږي لكه د ځنكدن په وخت كښې چې ځنګه آواز وي ، د آيت مبارك مطلب دادې چې دا ټول د حكومت اوبادشاهۍ د رعب او طاقت قوت او خاوندان كله چې د الله ﷻ په عذاب كښې راګير او فنا كړې شونو د هغوئ شان داسې شو چې د هغوئ څه غلې آواز او حس حركت هم نشي آوريدلې

([1]) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص: ١٤٠]
([2]) جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب سورة مريم [ج:٢ ص:١٤٩] و صحيح البخاري كتاب الأدب ، باب المقة من الله تعالى عزوجل [ج:٢ص:٨٩٢] و صحيح مسلم كتاب البر إلخ، باب إذا أحب الله عبدا [ج:٢ص:٣٣١]
([3]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:١١ص:١٦١]

| اٰیاتونه | | سورة طٰهٰ مكية وهي مائة وخمس وثلاثون آيات وثمان ركوعات | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۱۳۵ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | | ۸ |
| | | د الله په نوم شروع كوم چه ډير مهربان اوزيات رحم كونكې دې | | |

ددې سورة بل نوم سورة كليم دې ، [كما ذكر السخاوي] او ددې وجه داده چې په دې كښې د كليم الله موسى عليه السلام واقعه تفصيل سره ذكر شوې ده .

مسند دارمي كښې ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دې چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې الله جل جلاله د زمكې او آسمانونو پيدا كولو څخه دوه زره وړاندې سورة طٰهٰ او سورة يٰس اووئيل. [يعنى فرښتو ته يې واؤرول] نو فرښتو اووئيل چې خوش نصيبه او مبارك دي هغه امت چې په كوم باندې به دا سورتونه نازليږي ، او مباركې دى هغه سينې چې دا به حفظ كوى ، او مباركې دي هغه ژبې چې ددې تلاوت بهٔ كوى .([1]) هم دا هغه مبارك سورة دې چې دې [سورة] د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د قتل اراده كوؤنكې عمر بن خطاب رضي الله عنه په ايمان قبلولو او د نبى كريم په قدمونو كښې په پريوتلو مجبوره كړو ، او دا واقعه د سيرت په كتابونو كښې مشهوره ده .

د ابن اسحاق روايت داشان دې چې عمر بن خطاب رضي الله عنه يوه ورځ توره واخستله او د نبى كريم صلى الله عليه وسلم دقتل په اراده د كوره اووتلو. لاره كښې يې نعيم بن عبد الله سره ملاقات اوشو. تپوس يې ترې اوكړو چې چرته روان يې ؟ عمر بن خطاب رضي الله عنه اووئيل چې دهغه ګمراه سړي په قتل پسې روان يم چا چې په قريشو كښې اختلاف پيدا كړې دې او ددوئ دين او مذهب ته يې بدرد وئيلى دى . دوئ څخه بې قوفان جوړ كړل ، او ددوئ بتانو ته بدرد اووئيل . نعيم ورته اووئيل چې اې عمره ستا نفس ته په دهوكه كښې اچولې يې . آيا ته په دې نه پوهيږې چې كه ته محمد صلى الله عليه وسلم قتل كړې نو دهغه قبيله بنو عبد مناف به ګنې تا ژوندې پريږدى او ته په زمكه باندې به تګ كوې . كه په تا كښې عقل وى نو ته د خپلې خور او اوښى خبر واخله هغه مسلمانان شوى دى او د محمد صلى الله عليه وسلم ددين تابع شوى دى . دې خبرې په عمر بن خطاب باندې ډير اثر اوكړو او هم ددې ځايې څخه دخپلې خور او اوښى كور ته روان شو. دهغوئ په كور كښې خباب بن ارت صحابى رضي الله عنه موجود وو او هغوئ ته يې د قرآن پاك سورة طٰهٰ خودلو او دا په يو صحيفه كښې ليكلې شوې وو.

كله دوئ ته معلوم شو چې عمر بن خطاب رضي الله عنه راروان دې نو خباب دكور په يوه كمره كښې يا يو ګوټ كښې پټ شو ، او خور يې هغه پاڼې د خپل پټون لاندې پټې كړې . خو عمر بن خطاب رضي الله عنه د خباب بن ارت او د هغه د لوستلو آواز آؤريدلو وو. تپوس يې اوكړو چې دا د لوستلو آواز څنګه وو كوم چې ما واؤريدو؟ هغوئ [خو خبره د رفه دفه كولو دپاره] اووئيل چې هيڅ نه . مګر ابن خطاب رضي الله عنه خبره واضحه كړه چې زه خبر شوې يم چې تاسو دواړه د محمد صلى الله عليه وسلم تابع شوى او مسلمانان شوى يې . دې وينا سره پخپل آؤښى سعيد بن زيد باندې يې حمله اوكړه . ددهٔ خور چې كله د اوكتل نو زر د خپل خاوند بچ كولو دپاره راغله، عمر بن

([1]) مجمع الزوائد رقم الحديث :[۱۱۱۶۳]

خطاب ﷺ هغه هم اووهله او زخمي يې کړه.
کله چې خبره دومره حد ته اورسيده نو خور او آوښي دواړو ورته اووئيل چې واوره مونږ دواړه مسلمانان شوي يو . په الله ﷻ او دهغه په رسول ﷺ باندې مونږ ايمان راوړې دې . اوس ته چې ته څې کوې نو هغه اوکړه . د خور د زخم څخه وينه روانه وه ، کله چې عمر بن خطاب ﷺ دا اوکتل نولږ پښيمانه شو او خورته يې اووئيل چې ماته هغه صحيفې اوښايه کومې چې تاسو وئيلې چې زه هم اوګورم چې محمد ﷺ څه تعليم ورکوي؟ عمربن خطاب ﷺ ليك لوست والا انسان وو څکه يې صحيفې د لوستلو دپاره غوښتلې وې . خور ورته اووئيل چې مونږ ويريږو چې هسې نه ته دا اوشلوې او ددې بې ادبي او نه کړې ، عمر بن خطاب ﷺ ورته دخپلو بتانو قسم اوکړو چې دا به د وئيلو نه پس تاسو ته واپس کړم. ددۀ خور چې کله دا اوکتل نو لږ شان اميدې يې پيدا شو چې کيديشي عمر هم مسلمان شي . ورته اووئيل چې اې رورره ته نجس او ناپاك يې او دې صحيفې ته د پاك سړي څخه علاوه بل کس لاس نشي لګولې . که ته دا کتل غواړې نو اول غسل اوکړه. عمر ﷺ غسل اوکړو ، بيا ورته دا صحيفه حواله کړې شوه اوپه دې کښې سورۀ طٰهٰ ليکلې شوې وو. ددې دشروع حصه د تلاوت کولو نه پس عمر ﷺ اووئيل چې دا خو ډير ښه او محترم کلام دې . خباب بن ارت ﷺ چې په کور کښې پټ وو دا تول هر څه آوريدل ، د عمر ﷺ دې الفاظو آوريدو سره راؤوتلو او وې وئيل چې اې عمره ! زه دالله ﷻ درحمت څخه دا اميد ساتم چې ته الله ﷻ د نبي کريم دعا دپاره منتخب کړې يې . څکه چې پرون ما د سول کريم ﷺ څخه د ادعا واؤريدله چې [اللهم ايد الاسلام بابي الحكم بن هشام او بعمر بن الخطاب][اې الله ﷻ اسلام ته تقويت او تائيد ورکړه دابولحکم بن هشام [يعني ابوجهل] يا دعمر بن خطاب په ذريعه ] مطلب داوو چې په دې دواړو کښې يو مسلمان شي نو د مسلمانانو دا کمزورې جماعت به ژوندې شي . بيا خباب اووئيل چې اې عمر بن خطاب ته دا موقع غنيمت اوګڼړه ، عمر بن خطاب خباب ته اووئيل چې ما محمد ﷺ ته بوځه ، [قرطبي] وراندې دهغه دنبي کريم ﷺ په خدمت کښې حاضريدل او اسلام قبلول مشهوره واقعه ده.[1]

| طٰهٰ ۝ | مَآ اَنۡزَلۡنَا | عَلَيۡكَ | الۡقُرۡاٰنَ | لِتَشۡقٰٓى ۝ | اِلَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| طه | نه دې نازل کړې مونږه | په تاباندې | دا قرآن | چې ته په مشقت کښې پريوزې | مګر |
| مونږ داقران مجيد دې دپاره نه دې نازل کړې چې ته دې په مشقت کښې اخته شې بلکه دا خوهغه | | | | | |

| تَذۡكِرَةً | لِّمَنۡ | يَّخۡشٰى ۝ | تَنۡزِيۡلًا | مِّمَّنۡ |
|---|---|---|---|---|
| دا خو يوه يادګيرنه ده | دپاره دهغه چا | چې يريږي | نازل شوې دې | دطرفه دهغه ذات نه |
| دچا دپاره نصيحت دې چې يريږي | | | دهغه[رب] دطرفه نازل کړې شوې دې | |

| خَلَقَ | الۡاَرۡضَ | وَالسَّمٰوٰتِ | الۡعُلٰى ۝ | اَلرَّحۡمٰنُ | عَلَى الۡعَرۡشِ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې پيدا ئې کړه | زمکه | او آسمانونه | اوچت | هغه رحمان | په عرش باندې |
| چې زمکه او دنګ آسمانونه ئې پيدا کړې دی | | | | هغه رحمان [چه دهغه حکومت] په عرش | |

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١١ص:١٦٣، ١٦٤] والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[٦٨٩٧] ودلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث[٥١٩].

اَسْتَوٰى۝ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَمَا

قائم دي | هغه لره دی | هغه څه | چې په آسمانونو کښې دی | او هغه | چې په زمکه کښې دی | او هغه

باندې قائم دې | هرهغه څه دهغه دی کوم چې په آسمانونو کښې دی او کوم چې په زمکه کښې دی

بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ الثَّرٰى۝ وَاِنْ تَجْهَرْ

چې په منځ دددې دواړو کښې دی | او هغه | چې لاند | دخاورونه دی | او که په زوره کوې |

څه چې ددې دواړو په مینځ کښې دی او څه چې د زمکې نه ښکته پراته دی| اوکه ته په زوره

بِالْقَوْلِ فَاِنَّهٗ يَعْلَمُ السِّرَّ وَاَخْفٰى۝ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ

خبره |پس بیشکه |هغه پوهیږی |په رو خبره |اوپه زیاته پټ خبره |الله [داسې ذات دې چه] |نشته لائق دعبادت

خبرې اوکړې نوهغه په پټو خبرو اوپه ښه پټو رازونو باندې هم پوهیږی| [هغه] الله ﷻ دې چې دهغه نه

اِلَّا هُوَ لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى۝

مګر | هم هغه دې | هغه لره دی | نومونه | نیک [ښه] |

سوا بل څوک د عبادت لائق نشته| هم دهغه ښه ښه نومونه دی|

## آسان ترجمه قرآن

طٰهٰ. مونږ په تا باندې قرآن کریم د دې دپاره نه دې نازل کړې چه ته تکلیف اوچت کړې خو دا د هغه چا دپاره یو نصیحت دې چه ویریږی. دا د هغه ذات د طرف نه لږ لږ نازلولې شی چا چه زمکه او اوچت اوچت آسمانونه پیدا کړی دی. اوهغه د ډیر رحمت والا په عرش باندې استواء کړې ده. په آسمانونو او زمکه کښې چه څه دی، او څه چه د هغې په مینځ کښې دی، هغه ټول د هغه ملکیت دې، او د زمکې نه لاندې چه څه دی هغه هم اوکه ته یو خبره اوچت آواز سره کوې (یا پټه) نو هغه په مزه وڅیلې شوې خبرو. بلکه په زیاتو پټو خبرو باندې هم عالم دې الله پاک هغه ذات دې چه د هغه نه سوا هیڅوک معبود نشته. هم د هغه ښوره نومونه دی.

## خلاصه تفسیر

﴿طٰهٰ۝﴾ [طه ] ددې معنی خو الله تعالی ته معلومه ده ﴿مَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لِتَشْقٰٓى۝﴾ [مونږ په تا قرآن ] مجید [ ددې دپاره نازل نه کړو چه ته په تکلیف کښې پریوځې ﴿اِلَّا تَذْكِرَةً﴾ بلکه دداسې سړی دنصیحت دپاره ] نازل کړو ﴿لِّمَنْ يَّخْشٰى۝﴾ [ کوم چه ] دالله تعالی نه [ ویریږی داد هغه ] ذات ﴿تَنْزِيْلًا مِّمَّنْ خَلَقَ الْاَرْضَ وَالسَّمٰوٰتِ الْعُلٰى۝﴾ [ دطرف نه نازل شوې دې کوم چه مزکې لره او پورته اسمانونو لره پیدا کړل] او ﴿اَلرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ﴾ [هغه لوئ رحمت والا په عرش ] چه مشابه دې دتخت دحکومت سره داسې ﴿اسْتَوٰى۝﴾[ قائم ] او جلوه فرما [ دې ] کوم چه دده دشان سره لایق وی او هغه داسې دې چه ﴿لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا﴾[ دهغه په ملکیت کښې دی څه څیزونه چه په اسمانونو کښې او څه څیزونه چه په مزکه کښې دی او څه څیزونه چه ددې دواړو په مینځ کښې دی ] یعنی داسمان نه لاند او دمزکې نه دپاسه ﴿وَمَا تَحْتَ الثَّرٰى۝﴾[ او څه څیزونه چه مزکې لاندې دی ] یعنی دمزکې دننه چه کومه لمده خته ده چه ثری

ورته وائي څه شي چه دهغې نه لاند دي مراد دا دي چه کوم څيزونه چه دمزکې په ويخ کښې دی دا خو دالله تعالى قدرت او سلطنت وو [او] دعلم ئې داشان دي چه ﴿وَإِنْ تَجْهَرْ بِالْقَوْلِ﴾ [ که ته [ اے مخاطبه [ په چغه خبره کوې نو ] دهغه په اوزيد کښې څه شبهه ده؟ [ هغه خو] داسې دي چه ﴿فَإِنَّهُ يَعْلَمُ السِّرَّ﴾ [ په پټه ونيلې شوې خبرې لرې او] بلکه ﴿وَأَخْفَى﴾ [ ددې نه هم زياتې پټې خبرې لره ] يعنى کومه چه لاپه زړهٔ کښې ده [ پيژنى ] ﴿اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ دغه [ الله تعالى داسې دي چه دهغه نه سوا هيڅ معبود] مستحق دعبادت ] نشته ﴿لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ﴾ دهغه ] ډير [ ښه ښه نومونه دى ] کوم چه په صفتونو او کمالونو دلالت کوى پس قران دداسې ذات جامع الصفات دطرف نه نازل کړې شوې دي او په يقين سره حق دي .

## معارف او مسائل

﴿طٰهٰ﴾ ددې لفظ په تفسير کښې د عالمانو ډير اقوال دی ، ابن عباس رضی الله عنهما ددې معنى يا رجل او ابن عمر رضی الله عنهما نه ياحبيبى منقول ده . د حديث پاك د څينې روايتونو نه معلوميږى چې ﴿طٰهٰ﴾ او ياسين د نبى اکرم ﷺ د نومونو څينې نومونه دى. او بې غباره خبره هغه ده چې صديق اکبر رضی الله عنه او جمهورو عالمانو کړې ده . هغه داسې چې ﴿طٰهٰ﴾ او ياسين هم هغسې حروف مقطعات دى چې په متشابهاتو کښې حسابيږى او د نورو سورتونو په اول سر کښې لکه الم ، وغيره راغلى دى. دا داسې رازونه دى چې د الله ﷻ نه سوا بل هيڅوك ئې په معنى نه پوهيږى.

﴿مَا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لِتَشْقَىٰ﴾ . ﴿لِتَشْقَىٰ﴾ د شقاء نه مشتق دې ، معنى ئې خوارى مشقت کول او تکليف پورته کول دى ، د قرآن عظيم الشان د نزول په شروع کښې نبى اکرم ﷺ او صحابه کرامو رضی الله عنهم په ټوله شپه عبادت کولو. او د تهجدو په مونځ کښې به د قرآن عظيم الشان په تلاوت کښې مشغول اوسيدل ، تر دې پورې چې د نبى کريم ﷺ قدمونه مبارك به اوپرسيدل ،[1] او ټوله ورځ به ئې په دې فکر کښې تيروله چې کافران به په څه شان هدايت بيا مومى . او د قرآن کريم بلنه به خپله کړى.

دې آيت مبارك کښې نبى اکرم ﷺ ته ددې دواړو قسمو مشقتونو نه بچ کولو دپاره ئې ارشاد اوفرمائيلو چې مونږ دربانډې قرآن پاك دې دپاره نه دې نازل کړې چې خان په مشقت کښې او تکليف کښې واچوې ، ټوله شپه د ويښ پاتې کيدو او د قرآن عظيم الشان په تلاوت کښې د مشغول پاتې کيدو ضرورت نشته.

نو ددې آيت مبارك د نازليدو نه پس د نبى اکرم ﷺ دا معمول جوړ شو چې په اول د شپې کښې بهٔ ئې آرام فرمائيلو او په آخر د شپې کښې به ئې تهجد کول.

په دې شان دې آيت مبارك کښې ئې دې طرفته هم اشاره اوفرمائيله چې ستاسو ﷺ فرض صرف د تبليغ او د بللو کار کول دى ، کله چې دې دغه خپل فرض ادا کړل نو بيا ددې فکر کول ستاسو ﷺ په ذمه نه دى چې څا په کښې ايمان راوړې او څا بلنه قبوله نکړه.[ قرطبى].[2]

[1]) مجمع الزوائد رقم الحديث :[۱۱۱۶۵]
[2]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۱ص:۱۶۷]

﴿إِلَّا تَذْكِرَةً لِّمَن يَخْشَىٰ﴾ ابن كثير رحمه الله ([1])فرمائيلي دي چې د قرآن عظيم الشان د نازليدو او په اوله زمانه کښې تول شپه په تهجد او تلاوت کښې د مشغول پاتې کيدو په وجه ځينې کافرانو په مسلمانانو باندې دا آوازونه کول شروع کړل چې په خلقو باندې قرآن عظيم الشان ځه نازل شو چې يو مصيبت پرې راغلو. ولې چې نه خو دشپې آرام شته او نه د ورځې.
دې آيت مبارك کښې الله ﷻ اشاره او فرمائيله چې دا جاهلان بد نصيبه، د حقيقتونو نه ناخبره په ځه پوهيږي چې قرآن عظيم الشان او ددې په ذريعه د الله ﷻ ورکړې شوې علم سراسري خير او خوش قسمي ده دې لره مصيبت ګنړلو والا بې خبره او احمق دی. د صحيحينو په حواله د امير معاويه رضي الله عنه په روايت راغلی دی چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائيل:
﴿من يرد الله به خيرا يفقهه في الدين﴾ [ الله تعالى چې چا سره ښيګړه کول غواړي نو هغه ته ددين علم پوهه ورکړي ]. ([2])
په دې مقام ابن كثير رحمه الله يو بل صحيح حديث پاك هم نقل کړې دې چې عالمانو دپاره لوئې زيرې دې، دا حديث پاك طبراني رحمه الله د ثعلبه بن الحكم رضي الله عنه نه روايت کړې دې. ابن كثير اوفرمائيل چې ددې اسناد جيد دې، حديث پاك دادې چې:
﴿قال رسول الله ﷺ يقول الله تعالى للعلماء يوم القيامة اذا قعد على كرسيه لقضاء عباده انى لم اجعل علمي وحكمتي فيكم الا انا اريد ان اغفر لكم على ما كان منكم ولا ابالي﴾([3])[نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې کله د قيامت په ورځ الله ﷻ د خلقو د عملونو فيصله کولو دپاره پخپله کرسۍ باندې تشريف فرما شي نو عالمانو ته به او فرمائي چې ما خپل علم او حکمت ستاسو په سينو کښې دې دپاره اچولې وو چې ستاسو بخښنه او کړم، د هغه خطاګانو باوجود کومې چې ستاسو ځخه شوې دی او زما په دې هيڅ پرواه نشته دې] [ ابن كثير ص/۱۴۱ ج/۳]
خو ښکاره خبره داده چې دلته د عالمانو ځخه مراد هغه عالمان دی چې په کښې قرآني علامت خشية الله موجوده ده. نو په دې آيت مبارك کښې د ﴿لِّمَن يَخْشَىٰ﴾ لفظ هم دې ته اشاره کوی او چې په چا کښې دا نخښنه نه وی، هغه ددې حقدار نه دې. [ والله اعلم]
﴿عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوَىٰ﴾ په عرش باندې د استواء بې غباره مطلب هم هغه دې چې د جمهورو پخوانو علماؤ نه داسې منقول دې. چې ددې حقيقت او کيفيت هيچاته معلوم نه دې. دا د متشابهاتو ځينې دې، دې باره کښې صرف دومره قدرې عقيده لرل دی چې استواء على العرش حق دی. د هغې کيفيت به د الله ﷻ دشان سره مناسب او مطابق وی. چې د دنيا هيڅوك هم دهغې په درك نشي پوهيدې.
﴿وَمَا تَحْتَ الثَّرَىٰ﴾ ثرى، نوجنې لوندې خاورې ته وئيلې شی چې د زمکې د کنستو په موقع ترې راؤوځی، د مخلوقاتو علم خو صرف ثرى پورې ختم شی، ددې ثرى نه لاندې ځه دی، ددې علم الله ﷻ نه سوا بل چاته نشته.

---

[1]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:٢٧٢]
[2]) صحيح البخاري كتاب العلم باب العلم قبل القول والعمل [ج:١ص:١٦]
[3]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:٢٧٢]و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[١٣٦٤] و مجمع الزوائد رقم الحديث :[٥٢٧]

ددې نوې تحقيق ، دنوې آلاتو او د سائنس انتهائي ترقۍ باوجود د نن نه څو کاله وړاندې ددې زمکې په برمه کولو سره د يو طرفنه تر بل طرف پورې د وتو کوشش تر څه موده پورې جاري وو خو ددې ټولو تحقيقاتو او سخت کو ششونو نتيجه په اخبارونو کښې د ټولو مخې ته راغلې ده ، چې صرف تر شپږو ميلو پورې دغې نوؤ آلاتو کار اوکړې شو. د هغې نه پس د کاڼړي داسې يو پرده ثابته شوه چې هلته د کنستلو ټول آلات او نوې سائنسي ټول فکرونه بالکل پاتې شو ، صرف تر شپږو ميلو پورې انسان دغه هومره قدرې عمل حاصل کړې شو ، حالانکه د زمکې قطر په زرګونو ميله دې. ددې اقرار کولو نه سوا بل څه علاج نشته چې دا عقيده اولرو چې د ماتحت الثرى علم خالص د الله ﷻ يو مخصوص صفت دې.

﴿ يَعۡلَمُ السِّرَّ وَاَخۡفٰی ﴾ د ﴿السِّرَّ﴾ نه مراد هغه څيز دې چې په زړه کښې پټ ساتلې شوې وی ، او چاته ښکاره کړې شوې نه وی. اود اخفى نه مراد هغه خبره ده چې د چاپه زړه کښې هم لا نه وی راغلې، دې نه پس چرته بل وخت په زړه کښې راشي. الله ﷻ ددې ټولو څيزونو نه خبردار دې چې د انسان په زړه کښې اوس څه دی اوبيا به په کښې څه وی. د صبا يا د اوس نه پس معامله خو داسې وی چې انسان پرې پخپله هم نه وی خبرچې زما په زړه کښې به څه راځي. [قرطبی] [1]

اِلَّا هُوَ ؕ لَهُ الۡاَسۡمَآءُ الۡحُسۡنٰی ﴿۸﴾ وَهَلۡ اَتٰٮكَ حَدِيۡثُ

مګر | هم هغه دې | هغه لره دی | نومونه | نيک [ښه] | او ايا راغلې دې تاته | خبر

سوا بل څوک د عبادت لائق نشته | هم دهغه ښه ښه نومونه دی | او آياتا ته د موسی د واقعی خبر راغلې دې

مُوۡسٰی ﴿۹﴾ اِذۡ رَاٰ نَارًا فَقَالَ لِاَهۡلِهِ امۡكُثُوۡۤا

دموسی | کله چې اوليدو هغه | اور | نو اووئيل هغه | خپلې بی بی ته | لږ وخت تير کړئ [دلته]

هرکله چې هغه اور اوليدو نو خپلې بی بی ته اووئيل | چې تاسو دلته ايسارشئ

اِنِّیۡۤ اٰنَسۡتُ نَارًا لَّعَلِّیۡۤ اٰتِيۡكُمۡ مِّنۡهَا بِقَبَسٍ

بيشکه زه چې يم | اوليدو ما | اور | دې دپاره چې زه | راوړم تاسو ته | دهغه اور نه | يوه لنبه |

بيشکه ما اور اوليدلو | ...............کيدې شی چې زه ترې نه ستاسو دپاره يوه شغله راوړم

اَوۡ اَجِدُ عَلَی النَّارِ هُدًی ﴿۱۰﴾ فَلَمَّاۤ اَتٰٮهَا نُوۡدِیَ

يا بيا مومم زه | په اور باندې | دلارې پته | نو هر کله چې | راغې هغه اور ته | آواز او کړې شو

يا داور په خوا کښې د لارې درک اولګوم نو کله چې هلته اورسيدو نو آواز ورته اوشو

يٰمُوۡسٰی ﴿۱۱﴾ اِنِّیۡۤ اَنَا رَبُّكَ فَاخۡلَعۡ نَعۡلَيۡكَ ۚ اِنَّكَ

چې اے موسی | بيشکه زه چې يم | زه رب ستا يم | نو او باسه | پيزار خپل | بيشکه ته |

چې ائې موسی ! بيشکه زه ستا پروردیګار يم | نو ته خپلې دواړه پڼړې اوباسه | بيشکه ته په يو پاک

بِالۡوَادِ الۡمُقَدَّسِ طُوًی ﴿۱۲﴾ وَاَنَا اخۡتَرۡتُكَ فَاسۡتَمِعۡ لِمَا

په ميدان پاک کښې ئې | دطوی | او ما | غوره کړې ئې ته | نو غوږ کيږده | هغې ته |

ميدان يعنی په طوی کښې [ولاړ] ئې | اوماته منتخب کړې ئې نو څه حکم چې درته کولې شی هغه واوره

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۱ص:۱۷۰] والمستدرك للحاكم(باختصار) رقم الحديث:[۳۳۸۷]

يُوْحٰى ﴿١٣﴾ اِنَّنِيْٓ اَنَا اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا

چې وحی کیږی تاته | بیشکه زۀ چې یم | زۀ الله یم | نشته دې لائق دعبادت | مګر | زۀ یم |

بیشکه هم زه ستا الله [ پروردیګار ] یم | ............ زما نه سوا بل معبود نشته دي

فَاعْبُدْنِيْ ۙ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِيْ ﴿١٤﴾ اِنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ

نوعبادت کوه زما | اوقائم کړه مونځ | دپاره دیاد زما | بیشکه وخت دقیامت | ضرور راتلونکی دی

نو زما عبادت کوه | او زماد یاد دپاره مونځونه کوه | بیشکه قیامت راتلونکی دي

اَكَادُ اُخْفِيْهَا لِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا

زۀ غوارم | چې پټ او ساتم دغه وخت | دپاره ددې چې بدله ورکړې شي | هر نفس ته | دهغه عملونو

څه غوارم چې هغه پټ اوساتم | ............ چې هر کس ته د خپل کوشش

تَسْعٰى ﴿١٥﴾ فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنْهَا مَنْ لَّا يُؤْمِنُ بِهَا

چې کوی ئې هغه | نو منع دې نکړی تا | ددغه وخت د تیارئ نه | هغه څوك | چې ایمان نۀ راوړی | په هغې

بدله ملاؤشی | نوهغه څوک چې ایمان نه راوړی | اودخپلو خواهشاتو تابعداری کوی

وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ فَتَرْدٰى ﴿١٦﴾

اوتابعداری ئې اوکړه | دخواهشاتوخپلو | ګنی هلاك به شې تۀ |

چرته تا ددې [حقې لارې] نه منع نکړی | ګنی ته به هلاک شې |

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پیغمبره!) آیا تاته د موسٰی علیه السلام واقعه را رسیدلې ده؟ دا دهغه وخت خبره ده چه کله هغوی یو اور اولیدو نو هغوی خپل کور والو ته اوویل: تاسو هم دلته ایسار شئ، ما یو اُور لیدلې دې. کیدې شی چه زه دهغې نه تاسو ته څه شُغله راوړم، یا هغه اور سره ماته د لارې پته ملاؤ شی. نو کله چه هغه اور ته نزدې اورسیدو نو هغه ته آواز وکړې شو چه: اې موسٰی! یقین اوکړه چه زه ستا رب یم اوس ته خپلې پڼرې (پیزار) اوباسه. ته دا وخت د طوٰی په مقدس وادئ کښې ئې. او ماتهٔ (د نبوّت دپاره) منتخب کړې ئې. لهٰذا کومه خبره چه د وحی په ذریعه وئیلې شی هغه په غور سره واوره. حقیقت دادې چه هم زه الله یم. زما نه سوا هیڅوك معبود نشته. په دې وجه زما عبادت کوه. اوزما د یاد ساتلو دپاره مونځ قائموه. یقین اوساته چه قیامت راتلونکې دې. زه هغه (وخت) پټ ساتل غوارم. چه هر سړی ته د هغه د کړی عمل بدل ملاؤ شی لهٰذا یو داسې سړې دې تا د هغې نه بالکل غافل نه کړی چه په هغې باندې ایمان نه لری. او په خپلو خواهشاتو پسې روان وی کینې په هلاکت کښې به پریوځې.

## خلاصه تفسير

[اے] محمد ﷺ ﴿وَهَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ﴿٩﴾﴾ [ ایا تا ته دموسی علیه السلام دقصې [ خبر رسیدلې دي ] یعنی هغه داوریدو قابل دې چه په هغې کښې دتوحید او نبوت متعلق علوم دی چه تبلیغ ئ نفع ورکوونکې دې هغه قصه داده چه ﴿اِذْ رَاٰ نَارًا﴾ [ هرکله هغوی ] دمدین نه په راتلو کښې یوه شپه چه ساړه یعنی یخ په کښې هم وو اولاره نزې هم ورکه شوې وه په کوه طور باندې [ یو

اوروليدو] چه په واقع كښې هغه نور وو مګر شكل ئې د اور په شان وو ﴿فَقَالَ لِأَهْلِهِ﴾ [پس خپل كور والؤ ته ئې ] چه صرف بى بى وه يا خادم وغيره هم [ وفرمائيل چه تاسو] دلته ﴿امْكُثُوا﴾ [وسيږئ ] يعنى په ما پسې مه راځئ ځكه چه داخو احتمال نه وو چه بغير ددوى نه به هغوى وړاند سفر وكړى ﴿إِنِّي آنَسْتُ نَارًا﴾ [ مايو اور ليدلې دې ] زه هلته ځم ﴿لَعَلِّي آتِيكُمْ مِنْهَا بِقَبَسٍ﴾ [ شايد زه ددغې نه تاسو لره څه لمبه ] په لرګى وغيره لګولې [ راوړم ] چه ديخنئ علاج وشى [يا] هلته ﴿أَوْ أَجِدُ عَلَى النَّارِ هُدًى﴾ [ داور په خوا كښې دلارې پته ] ښودونكې څوك سړې هم [ ماته ملاؤ شى ﴿فَلَمَّا أَتَاهَا﴾ پس دې چه هركله دې ] اور [ ته اورسيدونو ] ده ته دالله تعالى دطرف نه ﴿نُودِيَ يَا مُوسَىٰ﴾ [ اواز وشو چه اے موسى ﴿إِنِّي أَنَا رَبُّكَ﴾ زه ستا رب يم ﴿فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ﴾ پس ته خپل پيزار او باسه ] ځكه چه ﴿إِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ۝ وَأَنَا اخْتَرْتُكَ﴾ [ ته په يو پاك ميدان يعنى طوى كښې يې ] داددغې ميدان نوم دې ﴿فَاسْتَمِعْ﴾ [ اوماتالره ] دنبى جوړولو دپاره منجمله دنورو خلقونه [ منتخب فرمائيلې دې پس] داوخت [چه] څه ﴿لِمَا يُوحَىٰ﴾ [وحى كيدې شى دې لره ] په غوره سره [ واوره ] هغه داده چه ﴿إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا﴾ [ زه الله تعالى يم زمانه سوا څوك معبود ] دعبادت لايق [ نشته ﴿فَاعْبُدْنِي﴾ نو ته زما عبادت كوه ﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي﴾ او خما ديادو دپاره مونځ كوه ] دويمه خبره دا واوره چه ﴿إِنَّ السَّاعَةَ آتِيَةٌ﴾ [ بيشكه قيامت راتلونكې دې زه دې لره ] دټول مخلوق نه ﴿أَكَادُ أُخْفِيهَا﴾ [ پټ ساتم ] او قيامت به ځكه راځى ﴿لِتُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا تَسْعَىٰ﴾ [ چه هر سړى ته دده دعمل بدله ملاؤشى پس] هركله چه قيامت راتلل يقينى دى نو [ تالره ددقيامت ] دپاره دتياريدو ﴿فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنْهَا مَنْ لَا يُؤْمِنُ بِهَا﴾ [ نه داسې سړې منع نه كړى كوم چه په ده ايمان نه لرى او په خپلو] نفسانى ﴿وَاتَّبَعَ هَوَاهُ فَتَرْدَىٰ﴾ [ خواهشونو چليږى ] يعنى ته دداسې سړى په اثر سره دقيامت دپاره دتيارئ كولو نه بې فكره نه شې [ هسې نه چه ته ] ددې بې فكرئ په وجه [ تباه نه شې ]

## معارف او مسائل

[﴿هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَىٰ﴾] په تيرو شوؤ آيتونو كښې د قرآن كريم د لوې والى او دهغې په ضمن كښې د رسول كريم ﷺ بيان شوې وو ، وروسته هم په دغه مناسب سره د موسى ؑ قيصه بيان كړې شوه چې د پيغمبرئ او دبلنې د فرض ادا كولو په لار كښې چې كوم مشكلات او تكليفونه دى او پخوانو پيغمبرانو ؑ برداشت كړى دى نو هغه رسول كريم ته هم معلوم شى چې رومبې څخه يې هغې دپاره ذهن جوړ شى او ددې دپاره ښه حجت تيار پاتې كيږى لكه په بل آيت مبارك كښې راغلى دى : [﴿وَكُلًّا نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنْبَاءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ﴾] [تاسو ته د پيغمبرانو ؑ قيصې ځكه بيانوؤ چې ستاسو زړهٔ مضبوط او د پيغمبرى د پيټى پورته كولو دپاره تيار شئ]

دلته د موسى ؑ بيان شوېدې چې قيصه داسې شروع شوه چې مدين ته په رسيدو باندې موسى ؑ هر كله چې شعيب ؑ سره داتو،لسو كالو دپاره ايسار شو او هغوئ چې دهغوئ خدمت به كوى نو د تفسير بحر محيط د روايت مطابق موسى

چې ورسره لس كاله پوره كړل نو شعيب ؑ نه ئې تلو دپاره رخصت اوغوښتلو چې هلته خپلې موربى بى او خور بى بى سره ملاقات اوكړى ځكه چې اوس يې هغه ويره هم پاتې ن

نشوه چې سپیان به ئې د یو فرعونی په وژلو گرفتارکښې کړي ، شعیب ﷺ څه مال سامان ورکړواو دخپلې بی بی سره یې رخصت ورکړو ، کومه چې یې ورته په نکاح ورکړې وه په لاره کښې دشام دبادشاهانو د خطرې په وجه عامه لارې پریښودې ، اوپه بې روه لارو باندې روان شو ، دغه موسم د یخنئ وو ورسره بی بی اولاد پیدا کولو ته داسې نزدې وه چې صرف د سبا بیگاه خبره په کښې وه ، په دغه ورك شوې لارې باندې دکوه طور مغرب او ښې طرف باندې ورغلو ، په دغه تیاره شپه کښې چې واوړې هم وریدې ، دبی بی د اولاد دپیدا کیدو درد یې شروع شو ، خو په کاڼو وهلو سره یې اور حاصل کړو . د حیرانتیا او د پریشانی په دغه حالت کښې یې په کوه طور باندې بل اور اولیدو چې په حقیقت کښې نور وو . کور والو ته یې اوفرمائیل چې ورځم چې دغه اور تاسو ته راوړم یا څوك واقف هلته بیا اووینم چې د لارې تپوس تري اوکړم ، د کور والو څخه مراد یې بی بی وه اود ځینو روایتونو څخه معلومیږي چې څوك خادم ورسره هم راغلي وو ، چې هغه هم په دغې خطاب کښې داخل دي ، په ځینونو روایتونو کښې راغلی دی چې څه ملگری د سفر هم ورسره وو چې د لارې غلطیدو په وجه تري ورك شوی وو [بحر محیط].([1])

[فَلَمَّآ أَتٰىهَا] [کله چې هغه لیدلی اور ته راؤرسیدو] په مسند احمد وغیره کښې د وهب بن منبه د روایت مطابق کله چې دغه اور ته موسی ﷺ نزدې وراورسیدو ننداره یې داسې ښکاره شوه چې اور د شنې ونې دپاسه لمبې وهلې او سره د هغې ددغه ونې څخه څه څانگه پاڼړه نه سوځیده بلکه دنورو نسبت زیاته شنه اوښکلې ښکاریده ، دوئ ﷺ په تماشه او انتظار یې کولو چې دي اور نه څه سروتکه یا څه شغله په څه شان سره ورته حاصله شی نو تر ډیره وخته پورې به دغه شان څه اونه شو ، موسی ﷺ بیا د وښو تیلی رایوځائې کړل ، اوهغې ته یې د لمبې اخستلو دپاره ورته تردې کړل خو هغه اور تري په روستو شو ، او ځینو روایتونو کښې راغلی دی چې اور دوئ ﷺ ته مخه اوکړه دوئ ﷺ تري ویریدل او دهغې څخه په تماشه شو . خلاصه داده چې اور حاصلولو مطلب یې چې پوره نه شو نو په دغه عجیبه اور باندې حیرانه شو چې په دې کښې ورته یو غیبی آواز راغلو [روح]([2]) دا واقعه موسی ﷺ ته د غر په لمنه کښې راپیښه شوه چې ددوئ ښی طرفته وو اوددغه ځائې نوم طوی وو.

[نُوْدِيَ يٰمُوْسٰىۤ ﴿١١﴾ إِنِّيْۤ أَنَا رَبُّكَ فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ] بحر محیط ، روح المعانی([3]) وغیره کښې دی چې موسی ﷺ دغه آواز پدې شان واؤریدو چې هر طرف نه راتلو ، د یو خاص طرف څخه نه راتلو ، ددې آؤریدل هم صرف په غوږونو نه وو بلکه په ټولو اندامونو سره یې واؤریدل چې د یوې معجزې شان یې لرلو ، ددغه آواز حاصل دا وو چې کوم څیز تاسو اوگنړئ دا په حقیقت کښې اور نه دې بلکه دالله ﷻ یوه تجلی ده ، او په دې کښې یې اوفرمائیل چې هم زه ستا رب یم ، دلته داسوال پیدا کیږي چې موسی ﷺ پوهه شو چې د اد پروردگار آواز دې ؟ ددې اصلی جواب دادې چې هم الله ﷻ ددوئ ﷺ په زړه کښې دا یقین واچولو چې دا هم د الله ﷻ آواز دې گنی

---

[1] ) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج: ٨ ص:٦٣]

[2] ) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:١٦٦، ١٦٧]وكتاب الزهد لأحمد بن حنبل رحمة الله عليه رقم الحديث[٣٤٨]

[3] ) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:١٦٨]

نور دلیلونه یې داهم وو چې شنه اونه کښې اور بلیدو ، د هغې د سوځولو په ځائې یې هغه نوره هم شنه تازه او ښکلې کړې وه هم د عامو آوازونو پشان د یو خاص طرفنه نه راتلو بلکه د هر طرفه په یو یوشان راتلو ، دغه آواز یوازې غوږونو مبارکو نه بلکه هغه ټولو اندامونو یې هم واؤریدو ، د کومو کار چې آؤریدل نه دی ځکه یې تسلی وه چې دا آواز یقینا دالله ﷻ دې.

**د موسی ﷺ د الله ﷻ لفظی کلام بې واسطې واؤریدو** : روح المعانی په حواله د مسند احمد روایت کړې دې چې کله موسي ﷺ ته په [يٰمُوسٰى] سره آواز اوشو نو هغوئ ﷺ لبیك اووئیل او عرض یې اوکړو چې زه آواز آؤرم خو د آواز کوؤنکی ځائې راته معلوم نه دې جواب اوشو چې زه ستاسو ﷺ څخه پورته ، وړاندې ، روستو او درسره یم ، بیا ئې عرض اوکړو چې دا کلام تاسو پخپله کوئی ، اوکه ستاسو رالیږلې څوك فرښته یې کوی نو جواب راغلو چې زه پخپله دا کلام کوم.

دروح صاحب فرمائیلی دی چې دې څخه معلومه شوه چې موسی ﷺ دا کلام لفظی بې د واسطې د فرښتو څخه پخپله آؤریدلې دې ځکه چې د اهل سنت والجماعة څخه یوې ډلې مسلك هم دادې چې کلاك لفظی هم د قدیم کیدو باوجود آؤریدلې شی . څوك چې په دې بانديې د حدوث شبه کوی نو ددې جواب دهغوئ د طرفه داددې چې کلام لفظی هغه وخت حادث وی چې کله په مادی ژبې سره ادا کړې شی ، کوم دپاره چې جسامت شرط دې ، داشان د آؤریدو دپاره صرف غوږونه مخصوص دی.

موسی ﷺ چې څنګه واؤریدل چې آواز د یو خاص طرف څخه نه راتلو ، یوازې په غوږونو نه بلکه په ټول اندامونو یې واؤریدلو نو دا ددې خبرې دلیل دې چې دا صورت د حدوث یعنی حادثوالی نه پاك دې [والله اعلم] (١)

**د ادب په مقام کښې پیزار اوښکل د ادب تقاضا ده** : [فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ] د پیزار اوښکلو حکم ورته ځکه اوشو چې دغه مقام د ادب وو او د ادب تقاضا داده چې پیزار اوښکلې شی ، او د ځینې روایتونو مطابق د پیزار اوښکلو حکم ورته ځکه اوشو چې دمردار ځناور د څرمنې څخه جوړ شوې وو (٢)

علی ﷺ ، حسن بصری ﷫ او ابن جریج ﷫ څخه اوله وجه منقول ده ، هغوئ د پیزار اوښکلو مصلحت دا ښودلې دې چې د هغوئ پښې مبارکې ددغه وادی د برکتی خاؤرو څخه نیغ په نیغه برکت حاصل کړی.

ځینې حضراتو فرمائیلی دی چې دا حکم ورته د عاجزئ ، خاکساری او د تواضع د صورت جوړولو په غرض اوشو لکه چې پخوانو بزرګانو دبیت الله شریف د طواف کولو په وخت دغه شان کول ، په یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې رسول کریم ﷺ یو ځل بشیر بن خصاص ﷫ د قبرونو په مینځ کښې سره د پیزاره په ګرځیدو اولیدو نو وې فرمائیل چې [اذاكنت فى مثال هذاالمكان فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ] [کله چې ته داسې عزت مندځایې کښې تیریږې نوخپل پیزار

---

(١) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:١٦٩،١٦٨]
(٢) جامع الترمذي ، كتاب اللباس باب ماجاء في لبس الصوف [ج:١ ص:٣٠٣]

اوباسئ] (۱) پاك پیزار سره مونځ ادا کول تول فقهاء په اتفاق سره درست بولی رسول کریم ﷺ او صحابه کرامو ﷡ څخه پاك پیزار سره مونځ کول په صحیح روایتونو سره ثابت هم دی ، (۲) مگر عام عادت او سنت څخه دا معلومیږی چي پیزار به یي اوښکلي وو ، او مونځ به یي کولو ولي چي دا تواضع سره نزدي خبره ده [قرطبی] (۳)

[اِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى] الله ﷻ دزمکي خاص خاص حصي ځانله او د شرافت خاوندانې جوړي کړي دي ، لکه بیت الله شریف ، مسجد اقصی او مسجدنبوی شو. دغه شان طوی نومي وادی هم په دغه پاکو مقاماتو کښي ده کومه چي د کوه طور په لمن کښي ده [قرطبی] (۴)

**د قرآن کریم د آوریدو آداب:** [فَاسْتَمِعْ لِمَا يُوحٰى] د وهب بن منبه څخه منقول دی چي د قرآن کریم د آوریدو یو ادب دا هم دي چي انسان خپل تول اندامونه دفضول حرکت کولو څخه بند کړی چي هیڅ یو اندام یي په بل هیڅ یو کار کښي مشغول نه وی ، نظر دي ښکته لری او د خیال تولمخه دي په کلام الله باندي پوهیدو ته لری اوڅوك چي په داسي ادب سره کلام آوری نو الله ﷻ ورته په هغي باندي د پوهیدو توفیق ورکوی [قرطبی] (۵)

[اِنَّنِيْٓ اَنَا اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدْنِيْ ۙ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِيْ] په دي کلام کښي موسی ﷺ ته ددین د تولو اصولو تعلیم ورکړي شو چي هغه د توحید رسالت اوآخرت تعلیم دي ،نو: [فَاسْتَمِعْ لِمَا يُوحٰى] کښي رسالت ته اشاره ده او د [فَاعْبُدْنِيْ] معنی داده چي یوازي هم زما عبادت کوه اوزما څخه بغیر د بل هیچا عبادت مه کوه ، دا د توحید مضمون شو ، وروسي په [اِنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ] کښي د آخرت بیان دي په [فَاعْبُدْنِيْ] کښي اگر چي د مونځ کول حکم هم داخل دي خو جدا بیانولو کښي یي حکمت دادی چي په تولو عبادتونو کښي د مونځ زیات غوروالي اولویه درجه ښکاره کړي شي دحدیث پاك تر مخه دي ته د دین ستن او دایمان نور وئیلي شوي دي او دمونځ پریښودل د کافرانو نخښه گرځولي شوي ده.

[وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِيْ] دا مطلب لری چي مونځ د الله ﷻ د ذکر روح دي او دا خبره هم ده چي مونځ د اول څخه تر آخره پوري سراسر دالله ﷻ ذکر دي چي په زړه سره هم کیږی او په نورو اندامونو سره هم ، څکه خو په مونځ کښي د الله ﷻ د ذکر څخه غفلت نه دی کول پکار او ددي په مفهوم کښي دا هم داخل دی چي د خوب د غلبي یا په څه کار کښي د اخته کیدو په وجه چا څخه مونځ پاتي یا هیر شی او وخت یي اووتلو نو د خوب څخه په رابیداریدو یا په رایادیدو دي همدغه وخت هغه مونځ قضا ادا کړی څنگه چي دحدیث شریف دځیني روایتونو څخه هم معلومیږی. (۶)

---

(۱) تفسیر القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۷۳] و سنن ابن ماجة، (باختصار)ابواب الجنائز،باب ماجاء خلع النعلین في المقابر[ص:۱۱۲ ]

(۲) سنن ابوداود، کتاب الصلاة ، باب الصلاة في النعل [ج:۱ص:۱۰۲ ]

(۳) تفسیر القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۷٤]

(۴) تفسیر القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۷۵]

(۵) تفسیر القرطبي [ ج:۱۱ص:۱۷٦] و روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱٦ ص:۱۷۱].

(۶) ترجمه:- ددي سلسلي یو حدیث پاك په صحیح مسلم کتاب الصلاة ، باب قضاء الصلاة الفائتة [ج:۱ص: ۲٤۱] کښي اوګورئ.

[اَكَادُ اُخْفِيْهَا] يعنى دقيامت معامله دټول مخلوق څخه تر دې چې دپيغمبرانو او فرښتو څخه هم پټه ساتل غواړم] او په اكاد كښې دې ته هم اشاره ده چې قيامت او آخرت ته په فكر راګرځولو سره ايمان او نيك عمل ته د خلقو شوق راپورته كول كه غرض نه وې نو د قيامت د راتلو ليږه خبره خو بۀ يې هم هغه نه وې ښكاره كړې څنګه يې چې په [اِنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ] سره ښكاره كړې ده ، مقصد ددې څخه د قيامت د راتلو په پټ ساتلو كښې مبالغه كول دي.

[لِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا تَسْعٰى] [دپاره ددې چې هر چا ته د خپل عمل بدله وركړې شي] كه ددې جملې تعلق [اٰتِيَةٌ] سره اوګڼرلې شي نو معنى يې ښكاره داسې جوړيږي چې د قيامت د راتلو حكمت او مصلحت دادې چې دنيا خو دارالجزاء نه دې دلته د نيك او بد عمل بدله چاته نشي وركولې او كه چاته وركړې شي نو هغه پوره نه وي بلكه د قيامت دبدلې يو مثال دې ، په دې بنا ضروري شوه چې داسې څه وخت راشي په كوم كښې چې د هر نيك او بد عمل پوره سزا وركړې شي . او كه تعلق يې [اَكَادُ اُخْفِيْهَا] سره اوګڼرلې شي نو په دې بنا به يې معنى داسې هم كيدې شي چې د قيامت او مرګ د وخت او دنيتې په پټو ساتلو كښې حكمت دادې چې هر څوك پخپل خپل عمل او كوشش كښې اختهاوسى ، خپل خانى قيامت يعنى مرګ او ټول جهانى قيامت يعنى د حشر ورځ لرې اونه ګڼړې او غافله ترې پاتې نشى. [روح][1]

[فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنْهَا] په دې كښې موسى ﷺ سره په خطاب كولو خبردارې وركړې شوې دې چې داسې دې اونه كړې د كافرانو اوبې ايمانو په وئيلو سره دقيامت په معامله كښې د غفلت څخه كار وانخلې چې ستاسو ﷺ د هلاكيدو سبب جوړ شى .

هر كله چې نبى معصوم يعنى د ګناه څخه پاك وى او دغسې غفلت او بې پروائى دهغه څخه نشى كيدې څكه دوئ ﷺ ته ددې خطاب كولو مراد امت او عام مخلوق ته آوږول دى ، چې هر كله پيغمبر ﷺ ته داسې تاكيد كولې شى نو مونږ له څكه ددې زيات غم كول پكار دى .

| وَاتَّبَعَ | هَوٰىهُ | فَتَرْدٰى | وَمَا تِلْكَ | بِيَمِيْنِكَ |
|---|---|---|---|---|
| اوتابعدارې ئې اوكړه | دخواهشاتوخپلو | ګنې هلاك به شې ته | اوڅه دى دغه | په ښى لاس ستا كښې |
| چرته تا ددې[حقې لارې] نه منع نكړي | ګنې ته به هلاک ش ې | اوائې موسى داستا په ښى لاس كښې | | |

| يٰمُوْسٰى | قَالَ | هِيَ | عَصَايَ | اَتَوَكَّؤُا | عَلَيْهَا | وَاَهُشُّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اے موسى | اووئيل موسى | دا | همسا زما ده | زه تكيه وهم | په دې باندې | او راخندم [پاڼې] |
| څه څيزدى ؟ موسى ﷺ اووئيل دا زما همسا ده | زه په دې باندې تكيه وهم | اوخپلو چيلو | | | | |

| بِهَا | عَلٰى غَنَمِيْ | وَلِيَ | فِيْهَا | مَاٰرِبُ | اُخْرٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| په دې سره | ګډو خپلو ته | او دى زمادپاره | په دې كښې | ضروري كارونه | نور هم [ډير] |
| دپاره پرې پاڼې راخندم | اوزما دپاره په دې كښې نورې هم ډير فائدې دى [څه به درته يوه يوه شمارم] | | | | |

| قَالَ | اَلْقِهَا | يٰمُوْسٰى | فَاَلْقٰىهَا | فَاِذَا | هِيَ | حَيَّةٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اووئيل الله | اوغورزوه دا | اې موسى | نو وې غورزوله هغه | نويو دم شو | هغه | مار |
| الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې ائې موسى دا اوغورزوه | چه هغه اوغورځول نوناګهانه هغه مار وو چه | | | | | |

[1]) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:١٧٣].

تَسْعٰى۝ قَالَ خُذْهَا وَلَا تَخَفْ سَنُعِيْدُهَا

چې منډې ئې وهلې | اوونيل الله | او نيسه دا | او مه يريږه | اوبه گرزوو مونږ دغه همسا

منډې ئې وهلې | نو الله تعالى اوفرمائيل | چې دا اونيسه او يريږه مه | مونږ دا اوس

سِيْرَتَهَا الْاُوْلٰى۝ وَاضْمُمْ يَدَكَ اِلٰى جَنَاحِكَ تَخْرُجْ

شکل خپل | رومبی ته | اوجوخت کړه | لاس خپل | ترخ خپل ته | را اوبه وخی |

بيا داول په شان [همسا] گرځوو | اوته خپل لاس په خپل ترخ کښې ورکړه | هغه به بغير د څه عيب نه سپين

بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ اٰيَةً اُخْرٰى۝ لِنُرِيَكَ

تك سپين [خليدونكې | بغير دڅه خرابئ نه | [دا] يوه نښه ده | بله | دپاره ددې چې اوښايو تاته

پرقيدونكې راوخی | دا دويمه نښه ده ددې دپاره چې مونږ تاته خپلې لوئې

مِنْ اٰيٰتِنَا الْكُبْرٰى۝ اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى۝

دنښو خپلو نه | لوئې | [اوس لاړ شه | فرعون ته | بيشکه هغه | سرکشه شوې دې

لوئې نخښې اوښايو | ......... اوس ته فرعون ته ورشه ځکه چې هغه ډير سرکشه شوې دې

## آسان ترجمه قرآن

او اې موسٰی! دا ستا په ښي لاس کښې څه دي؟ موسٰی عليه السلام عرض اوکړو: دا زما همسا ده زه په دې تکيه لګوم. او زه په دې سره خپلو ګډوبيزو باندې (د اونې نه) پانړې راخنډم. او په دې سره زما نور ضروريات هم پوره کيږي. وې فرمائيل: موسٰی! دا اوغورځوه. پس هغوی هغه اوغورځوله. بس بيا څه وو! هغه ناڅاپه يو منډې وهونكې مارجوړشو. الله پاک اوفرمائيل: دا اونيسه، او ويريږه مه. مونږ به دا په خپل اصل حالت باندې واپس کړو اوخپل لاس په خپل ترخ کښې ورکړه. هغه به د څه بيمارئ نه بغير سپين راوځي. دا (ستا د نبوت) بله يوه نخښه ده. (دا مونږ په دې وجه کوو) چه د خپلو لويو نخښو نه تاته څه اوښايو. (اوس) فرعون ته لاړ شه. هغه په سرکشئ کښې د حد نه تير شوې دې.

## خلاصه تفسير

[او] حق تعالی حضرت موسی ﷺ ته داهم وفرمائيل چه ﴿وَمَا تِلْكَ بِيَمِيْنِكَ يٰمُوْسٰى۝﴾ [داستا په ښي لاس کښې څه شې دې اے موسی ﴿قَالَ هِيَ عَصَايَ﴾ ده ووئيل چه دا زما همسا ده] ﴿اَتَوَكَّؤُا عَلَيْهَا﴾ زهٔ کله [ دې ته تکيه لګوم] ﴿وَاَهُشُّ بِهَا عَلٰى غَنَمِيْ﴾ او کله [په دې سره په خپلو ګډوته داونو [ پانړې راخنډم ﴿وَلِيَ فِيْهَا مَاٰرِبُ اُخْرٰى۝﴾ او په دې کښې زما نور کارونه هم دی ] مثلاً په اوږه يې کيږدم سامان ورته زوړند کړم يا موذی خناوران پرې دفع کوم وغيره وغيره ﴿قَالَ﴾ [ ارشاد ورته وشو چه دې ] همسا [ لرې ] مزکې ته ﴿اَلْقِهَا يٰمُوْسٰى۝﴾ [ وغورزه اے موسی ﴿فَاَلْقٰهَا فَاِذَا هِيَ﴾ پس دهٔ هغې لرې ] په مزکه [ وغورزوله نو يکدم هغه ] دالله تعالی په قدرت سره ﴿حَيَّةٌ تَسْعٰى۝﴾ [يومنډه وهونكې مار جوړ شو ] حضرت موسی ﷺ ترې ويريدو ﴿قَالَ خُذْهَا وَلَا تَخَفْ﴾ [ ارشاد ورته وشو چه دا ونيسه او ويريږه مه مونږ به اوس ] دنيولو سره ﴿سَنُعِيْدُهَا سِيْرَتَهَا الْاُوْلٰى۝﴾ [ دا په خپل اولنی حالت باند کړو ] يعنی دابه بيا همسا جوړه شی او تاته به هيڅ نقصان ونه

رسیږي یوه معجزه خو داشوه [ او] دویمه معجزه درلره درکولې کېږي چه ﴿وَاضْمُمْ يَدَكَ﴾ [ته خپل ښي لاس لره] ﴿إِلَىٰ جَنَاحِكَ﴾ په خپل کیڼ[ترخ کښې دننه کړه ] بیایې راوباسه ﴿تَخْرُجْ بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوءٍ﴾ [ دابه بغیر دڅه عیب نه ] یعنی بغیر دڅه مرض برګی وغیره نه نهایت [ سپین راوځی ﴿آيَةً أُخْرَىٰ﴾دا دویمه نښه ] زمونږ د قدرت او ستا دنبوت [شوه] او داحکم د همسا دغورزولو او لاس په ترخ کښې دورکولو په دې وجه دې ﴿لِنُرِيَكَ مِنْ آيَاتِنَا الْكُبْرَى﴾ [ چه مونږ تاته خپلې ] قدرت [ دلويو نښونه څنې نښې وښايو] نو اوس دانښې واخله ﴿اذْهَبْ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغَىٰ﴾ [ ته فرعون ته لاړشه هغه ډير دحدنه وتې دې ] چه د خدایۍ دعوه کوی ته دۀ ته دتوحید تبلیغ وکړه اوکه په نبوت کښې شك کوی نو همدغه معجزې ورته اوښایه

## معارف او مسائل

﴿وَمَا تِلْكَ بِيَمِينِكَ يَا مُوسَىٰ﴾ رب العالمین چې موسی ﷺ نه تپوس اوکړو چې په ښی لاس کښې دې څه دی ؟ نو داد الله ﷻ د طرفنه په موسی ﷺ باندې خپله خاص مهربانی څرګندول وو چې هغه دروند اثر ددوئ نه لرې کړی کوم چې د عجیبه او حیراؤنکو ننداړو لیدلو او د الله ﷻ دکلام په آؤریدو سره د موسی ﷺ په طبیعت باندې شوې وو. داسې فرمائیل چې په لاس کښې دې څه دی ، د خطاب یو دوستانه انداز وو ، دې نه علاوه په دې سوال کښې یو حکمت دا هم وو چې موسی ﷺ د ا خپله همسا یو لښته اوګڼړی ، هسې نه د معجزې په ډول کله چې دې نه مار جوړ شی نو د موسی ﷺ داخیال راشی چې د همسا په خیال ما دشپې په تیاره کښې هم دغه مار څان سره راخستې وو .

﴿قَالَ هِيَ عَصَايَ﴾ موسی ﷺ نه صرف دا تپوس شوې وو چې په لاس کښې دې څه دی ؟ ددې لنډ جواب دومره قدرې کافی وو چې دا همسا ده . خو دضرورت نه زیات داسې جواب ورکول چې دا زماهمسا ده ، په دې باندې زۀ اډانړه کیږم [تکیه کوم]، خپلو چیلو ته پرې د ونو نه پاڼړې راڅنډم او نور ډیر کارونه ددې نه اخلم، الله ﷻ سره د خپل عشق او محبت ښکاره کول وو ، ولې چې مهربان محبوب سره اوږدو خبرو کولو سره مزې ، خوندونه او فائدې اخستل وی ، خو ورسره ئې د ادب لحاظ هم داسې اوساتلو چې څلورمه خبره ئې په لنډو ختمه کړه چې زیاته آزادی ورسره هم اونه کړی او د حد نه زیاتې خبرې کولو سره ئې کلام اوږد نشی ، ددې دویمې مقتضا باندې عمل کولو دپاره یې آخر کښې اختصار اوکړو چې:

﴿وَلِيَ فِيهَا مَآرِبُ أُخْرَىٰ﴾ [ زه ددې نه نور هم ډیر کارونه اخلم خو تفصیل ئې بیان نه کړو] [روح و مظهری][1]

تفسیر قرطبی کښې ددې آیت مبارك نه دا مسئله راؤښکلې شوې ده چې د ضرورت او مصلحت ښیګړې په بنا باندې داسې کول هم جائز دی چې یو ناپوښتلې خبره په جواب کښې راوستې شی.

**مسئله** :: دې آیت مبارك نه یوه مسئله دا معلومه شوه چې همسا په لاس کښې ګرځول د پیغمبرانو ﷺ سنت دی ، نو نبی اکرم ﷺ به هم څان سره همسا ګرځوله چې په کښې بې

---

[1] ) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:١٧٦]و تفسير المظهري[ج:٦ص:١٣٣]

شمیره دیني او دنیوي فائدې دي . [قرطبي] (١)

﴿فَاِذَا هِيَ حَيَّةٌ تَسْعٰى﴾ موسی ﷺ چې د الله ﷻ په حکم هغه د خپل لاس همسا په زمکه باندې راواچوله نو مار ترې جوړ شو . ددې مار باره کښې قرآن عظیم الشان بل ځائې کښې فرمائي چې ﴿كَاَنَّهَا جَآنٌّ﴾ دا په عربي ژبه کښې وړوکي او نري مار ته وئیلې کیږي. او بل ځائې کښې فرمائي چې ﴿فَاِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ﴾ د ثعبان معنی ده بلا او غټ مار. دې آیت مبارك کښې د [حَيَّةٌ] لفظ راغلې دې ، دا عام دې ، هر وړوکي او غټ مار ته حية وئیلې کیږي . دې دواړو آیتونو کښې تطبیق دا سې کیدې شي چې مار په شروع کښې نرې او بیا به غټ مار یعنی اژدها وه. جَآنٌّ یعنی وړوکی مار ، دا په دې مناسبت سره اووئیلې شو چې د تیز تلو په حساب سره وړه اژدها وه یعنی د عام عادت خلاف چې غټه اژدها تیزه نشي تلې او دا ډیره په تیزئ سره روانه وه، او په آیت مبارك کښې لفظ (كَاَنَّهَا) کښې هم ورته اشاره شوې ده . او دلته په دې آیت مبارك کښې ورته حية اووئیلې شو چې غټ او نري مار دواړو ته وئیلې شي .(٢)

﴿وَاضْمُمْ يَدَكَ اِلٰى جَنَاحِكَ﴾ جناح په اصل کښې دځاورو پښو او وزر ته وئیلې شي دلته په ترخ کښې دا اس وړکولو حکم شوې دې . چې دا دویمه معجزه موسی ﷺ ته په دې شان ورنکړې شي چې خپل ترخ نه بیرته لاس راوباسي نو لکه د نمر به ځلیږي . د ابن عباس ﷺ نه د ﴿تَخْرُجْ بَيْضَآءَ﴾ هم دا تفسیر منقول دې [مظهري] (٣)

﴿اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ﴾ هر کله چې الله ﷻ خپل پیغمبر ﷺ ته د دوؤ معجزو وسله ورکړه نو حکم ئې ورته اوفرمائیلو چې فرعون ته ورشه هغه ډیر زیات سرکشه شوې دې .

| |
|---|
| قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ ۙ وَيَسِّرْ لِيْٓ اَمْرِيْ ۙ |
| اووئیل موسی \| اے ربه زما \| فراخه کړې \| زمادپاره \| سینه زما \| او آسان کړې ماته \| کار زما |
| موسی دعا اوکړه ائې زماپروردیګاره ! زما سینه پرانیزه \| ..........او زما کار آسان کړه |
| وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّنْ لِّسَانِيْ ۙ يَفْقَهُوْا قَوْلِيْ ۠ وَاجْعَلْ لِّيْ |
| او پرانیزه \| غوټه \| د ژبې زما \| چې پوهیږي خلق \| په خبره زما \| او مقرر کړه \| زماسره |
| او زما د ژبې لقنت لرې کړه \| چې خلق زما په خبره ښه پوهیږي \| او زما دکور په خلقو |
| وَزِيْرًا مِّنْ اَهْلِيْ ۙ هٰرُوْنَ اَخِي ۙ اشْدُدْ بِهٖٓ اَزْرِيْ ۙ |
| یو مددګار [وزیر] \| دخاندان زما نه \| هارون \| رور زما \| مضبوطه کړه \| په هغه سره \| شا زما |
| کښې زما یو مددګار جوړ کړه یعنی هارون \| چې زما رور دې دهغه په ذریعه زما ملا مضبوطه کړه |

١) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١١ص: ١٨٨]
٢) تفسیر المظهري [ج:٦ص:١٣٤]
٣) تفسیر المظهري [ج:٦ص:١٣٥]

| وَاَشْرِكْهُ | فِيْٓ اَمْرِيْ ۙ | كَيْ | نُسَبِّحَكَ | كَثِيْرًا ۙ |
|---|---|---|---|---|
| او شريك كړه هغه | په كار زماكښي | دپاره ددې | چې مونږ پاكي بيان كړو ستا | ډيره |
| اوهغه راسره په دې كار [د نبوت] كښې شريک كړه \| چې مونږ ستا ډيره ډيره پاكي بيانوو | | | | |

| وَّنَذْكُرَكَ | كَثِيْرًا ۗ | اِنَّكَ | كُنْتَ | بِنَا | بَصِيْرًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اومونږ ذكر كوو ستا | ډير | بيشكه ته | خاص هم ته | په حال زمونږ | باند اليدونكې [خبردار] ئې |
| اومونږ تا ډير ډير يادوو \| بيشكه ته زمونږ حالات گورې وينې [ستا نه زمونږ يو حركت هم پټ نه دې] | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

موسٰى عليه السلام اوفرمائيل: اې ربه! زما دپاره زما سينه پراخه كړه. او زما دپاره زما كار آسان كړه، او زما په ژبه كښې چه كومه غوټه ده، هغه لرې كړه .چه خلق زما په خبره باندې پوهه شي. او زما دپاره زما د خاندان يو سړې مددگار مقرر كړه يعنې هارون عليه السلام چه زما ورور دې! دهغه په ذريعه زما طاقت مضبوط كړه. اوهغه ما سره شريک كړه. چه مونږ په كثرت سره ستا تسبيح اوكړو.او په كثرت سره ستا ذكر اوكړو .بيشكه ته زمونږ ښه ليدونكې ئې.

## خلاصه تفسير

كله چه حضرت موسى عليه السلام ته معلومه شوه چه زۀ ئې پيغمبر كړم او فرعون ته مې ليږي نو دغه وخت ئې ددې عظيم منصب دمشكلاتو داسانئ دپاره درخواست وكړو او ﴿قَالَ رَبِّ﴾[ عرض ئې وكړو چه اے زما ربه﴿اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ ۙ﴾ زما حوصله ] نوره زياته [ فراخه كړې ] چه په تبليغ كښې راباندې تنگوالې يازما په دروغژن كولو او مخالفت كولو راباندې سختى نه راځى ﴿وَيَسِّرْ لِيْٓ اَمْرِيْ ۙ﴾[ او زما ] دا [ كار] تبليغ [اسان كړې ] چه دتبليغ اسباب راته جمع اومنع كوونكى دتبليغ رانه لرې شى ﴿وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّنْ لِّسَانِيْ ۙ﴾[او زما دژبې نه غوټه ] دتنوالى [لرې كړې﴿يَفْقَهُوْا قَوْلِيْ ۠﴾ چه خلق زما په خبره پوه شى ﴿وَاجْعَلْ لِّيْ وَزِيْرًا مِّنْ اَهْلِيْ ۙ﴾ او زما دپاره زما په خاندان كښې يو معاون مقرر كړې يعنى ﴿هٰرُوْنَ اَخِي ۙ﴾هارن ] عليه السلام [ لره چه زما ورور دې﴿اشْدُدْ بِهٖٓ اَزْرِيْ ۙ﴾ دده په ذريعه سره زما قوت لره مستحكم كړې﴿وَاَشْرِكْهُ فِيْٓ اَمْرِيْ ۙ﴾ او دۀ لره هم ] ددې تبليغ [ په كاركښې شريك كړې ] يعنى ده لره هم نبى جوړ كړې او په تبليغ ئې ماموره كړې چه مونږ دواړه تبليغ كوو او زما زړۀ ته قوت ورسيږى ﴿كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيْرًا ۙ﴾[ چه مونږ دواړه ] يوځاىْ د دعوت او تبليغ په وخت ستا ښۀ په كثرت سره پاكى [دشرك او نقائصو كښې نه] بيان كړو او ﴿وَّنَذْكُرَكَ كَثِيْرًا ۗ﴾ [ ستا] دكمال دصفتونو [ ښه ډير ذكر وكړو ] ځكه چه تبليغ كوونكى دوه تنه وى نو دهر يو بيان دبل په تائيد سره ډير او زيات وى ﴿اِنَّكَ كُنْتَ﴾[ بيشكه ته مونږ لره ] او زمونږ حال لره ﴿بِنَا بَصِيْرًا﴾[ښه وينې ] په دې حالت سره زمونږ احتياج ددې كار چه ديو بل مدد گارشو تاته ښه معلوم دې ﴿قَالَ﴾[ ارشاد وشو چه ستاسو] هريو [ درخواست ] كوم چه په رب اشرح لى الخ كښې مذكور دې ﴿قَدْ اُوْتِيْتَ سُؤْلَكَ يٰمُوْسٰى﴾[ منظور كړې شو اې موسى ] عليه السلام

## خلاصه تفسیر

کله چې موسی ﷺ ته الله ﷻ سره د کلام کولو خاص شرف حاصل شو او د نبوت او رسالت په مرتبې ورکولو سره سرفراز شو نو پخپل ذات او طاقت باندې تکیه کول ئې پریخودل او پخپله ئې الله ﷻ ته ماتې اوکړه ځکه چې ددې لوئې منصب ذمه دارئی هم د الله ﷻ په مدد سره پوره کیدېشی او په موسی ﷺ باندې د راتلونکو مصیبتونو او سختو راتلل لازمی دی چې دهغې د برداشت کولو حوصله او توفیق هم الله ﷻ ورکوی ، ځکه ئې دغه وخت پنځه قسمه دعاګانې اوکړې .

**رومبۍ دعا** :: ﴿رَبِّ اشْرَحْ لِي صَدْرِي ۝﴾ [زما سینه فراخه کړې ] په دې کښې داسې فراخی پیدا کړې چې د پیغمبری عملونو وزن او چتولې شی او د ایمان دبلنې په لار کښې د خلقو د طرفنه چې کوم نقصان او تاوان راته رارسی یا خلق راته بدرد وائی نو دهغې د برداشت کولو توفیق غواړم.

**دویمه دعا** :: بله دعا دا وه چې ﴿وَيَسِّرْ لِي أَمْرِي ۝﴾ [زما کار آسان کړې ] دا قسم پوهه او زیرکتیا هم د پیغمبرئ نتیجه وه چې د یو کار ګرانوالې او آسانوالې د ظاهری تدبیرونو او انتظامونو تابع نه وی بلکه د الله ﷻ کار دې چې مشکل نه مشکل کار آسانوی ، هم دغه وجه ده چې په یو آیت مبارك کښې مسلمانانو نه ددې دعا غوښتنه شوېده چې :

﴿اللهم الطف بنافی تیسیر کل عسیر فان تیسیر کل عسیر علیك یسیر﴾ [یا الله ﷻ پخپلې مهربانئ سره ماته هر مشکل کار آسان کړې ولې چې هر مشکل کار آسانول هم ستا په قبضه کښې دی ][1]

**دریمه دعا** :: دریمه دعا داده چې ﴿وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّن لِّسَانِي ۝ يَفْقَهُوا قَوْلِي ۝﴾ [زما د ژبې غوټه پرانیځې [خلاصه کړې] چې خلق مې په خبره پوهیږی] د ژبې مبارکې د غوټې واقعه داسې وه چې موسی ﷺ د پیشو رودلو انتظام د فرعون د طرفنه هم د موسی ﷺ د مور بی بی په ذریعه شوې وو. او فرعون به ددې به بدل کښې ورته وظیفه ورکوله . هرکله چې موسی ﷺ د تې رودولو نه خلاص شو نو فرعون او ددهٔ بی بی آسیه موسی ﷺ خپل ځوئې جوړ کړې وو ، او د موسی ﷺ توله پالنه ئې پخپله کوله . دې د وران کښې داسې اوشو چې یو ځل موسی ﷺ د فرعون ږیره اونیوه او په مخ ئې څپیړه هم ورکړه ، او ځینې روایتونو کښې راغلی دی چې په هغه لښته ئې اووهلو چې کومې سره موسی ﷺ په وړوکوالی کښې لوبې کولې . فرعون په دې غصه شو او د موسی ﷺ د وژلو اراده ئې اوکړه . آسیه بی بی ورته اووئیل چې بادشاه سلامت تاسو د یو ماشوم په کار دومره مه غصه کیږئی ځکه چې هغه خو په څه نه پوهیږی. ګنی تاسو په موسی ﷺ باندې آزمیښت اوکړئی . په دې غرض ئې یو پلیټ دځروتکو او بل د ملغلرو ډك ئې د موسی ﷺ مخې ته کیخودو خیال ئې دا وو چې ماشوم خو د څه قیمت ته نه ګوری بلکه په ظاهری رنګ او ښائست باندې دهوکه کیږی . خو دا ماشوم عام ماشوم نه وو بلکه پیغمبر جوړیدونکې وو. خپل لاس مبارك ئې ملغلرو طرفته ور اوږد کړو. جبرائیل ﷺ ئې لاس مبارك سکروټکو طرفته ور اوږد کړو او موسی ﷺ سکروټکه په لاس کښې راواخسته او په خله مبارکه کښې ئې واچوله او ژبه مبارکه ئې اوسوزیده . او دې سره د فرعون یقین راغلو چې د موسی ﷺ دغه عمل څهٔ د شیطانت په غرض نه وو بلکه د

[1] ) مجمع الزوائد رقم الحدیث :[۱۷۴۲۳]

ماشومتوب او ناپوهئ په وجه وو. دې واقعې سره د موسی ﷺ په ژبه مبارکه کښې تکلیف پیدا شو. چې قرآن پاك ورته عقده یعنې او موسی ﷺ ددې [عقده او غوټې] پرانستلو او ښه کیدو دعا دالله ﷻ څخه غوښتلې وه. [مظهري و قرطبي] [1]

اولې دوه دعاګانې خو عام وې چې دالله ﷻ څخه يې په ټولو کارونو کښې د مدد دپاره غوښتلې وې. دريمه دعا کښې دخپلې يوې خاص کمزورۍ د ازالې دعا کړې وه چې د رسالت اودعوت دپاره د ژبې فصاحت او بلاغت هم يو ضروري څيز دې. مخکښې يو بل آيت مبارك کښې فرمائی چې د موسی ﷺ د دا ټولې دعاګانې قبولې شوې، او هغه دا چې د ژبې لکنت به يې هم ختم شوې وی، او پخپله موسی ﷺ چې د هارون ﷺ په حقله دا دعا کړې وه چې هغه ماسره په رسالت کښې شريك کړه نو په هغې کښې يې اوفرمائيل چې ×هُوَ أَفْصَحُ مِنِّي لِسَانًا) [يعنې هارون ﷺ زما څخه خبره صفا کوی] ددې څخه معلوميږی چې لږ لکنت يې اوس هم په ژبه مبارکه کښې وو. او فرعون چې په موسی ﷺ باندې کوم عيب اولګولو په هغې کښې يې دا هم اووئيل چې: (وَلَا يَكَادُ يُبِينُ) [خبرې هم صفا نشی کولې]

څينې حضراتو ددې جواب دا ورکړې دې چې موسی ﷺ پخپله خپله دعا کښې دومره خبره کړې وه چې د ژبې غوټه ئې لرې شی چې خلق زما په خبر باندې پوهيږی. دومره لکنت يې لرې شو باقې څه فرق په کښې پاتې وو خو ددې دعا دقبوليت خلاف نه دې.

**څلورمه دعا**: ﴿وَاجْعَل لِّي وَزِيرًا مِّنْ أَهْلِي﴾ [يعنې زما د کورنۍ نه زما يو ملاتړ جوړ کړې] روميئ درې دعاګانې دموسی ﷺ د خپل ذات باره کښې وې او دا څلورمه دعا ئې د پيغمبرئی د ذمه داريانو پوره کولو دپاره د ذريعو راجمع کولو په غرض وه. هغې کښې ټولو نه لويه ذريعه ئې دا څرګنده کړه چې ماسره دې زما په کورنۍ کښې څوك ملګرې او مددګار وی. وزير په لغت کښې پيټی پورته کوونکی ته وئيلې شی. نو دبادشاه وزير هغه څوك وی چې د بادشاه په ذمه داريو پوره کولو کښې پوره مدد کوی دې نه موسی ﷺ د عقل کامل والې معلوميږی چې د يو کار او تحريك چلولو نه مخکښې دټولو نه اول څيز د انسان مددګاران او مدد کوونکی وی. که هغه دطبيعت خلق ملاؤ شی نو ورته نور ټول کارونه آسانيږی. که د غه خلق غلط او د طبيعت نه خلاف وی نو ټول اسباب او سامان هم بيکاره شی. نن صبا د حکومتونو د خرابيدو اسباب هم دا ثابت شوی دی چې مدد کوونکی، وزيران، مشران، دحکومت خراب يا نااهله وی.

په دې وجه نبی اکرم ﷺ فرمائيلی دی چې الله ﷻ کله چاته څه حکومت يا اميری، سرداری اوسپاری اودهغه ښه کار کول ورته منظور وی نو نيك وزيران ورته ورکړی چې دهغه مدد کوی که څه کار ترې هير شی نو وزير ئې ورته يادوی. او کوم کار چې کوی وزير ورسره په کښې لاس مدد کوی. [نسائی دقاسم بن محمد نه روايت کړو]. [2]

دې دعا کښې چې موسی ﷺ وزير اوغوښتلو او دې کښې يې د[أَهْلِي] قيد اولګولو چې هغه هم ددوئ ﷺ د کورنۍ او اقاربو څخه وی، ولې چې داسې کس دسره د اول نه بلد وی او

---

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۱ص:۱۹۲] و تفسير المظهري[ج:۶ص:۱۳۶]
[2] ) سنن النسائي كتاب البيعة باب وزير الإمام[ج:۲ ص:۱۸۶]

د یو بل په طبیعتونو باندې پوهیږي. او یو بل سره ئې طبیعتونه لګې هم، اودې سره په کار کښې مدد ملاویږي. خو دې کښې شرط دادې چې دغه کس په خلقو کښې د قابلیت په بنیاد ټاکلې شوې وی. صرف د خپلوئ په بنیاد نه وی اخستې شوې. نن صبا د دینداری او اخلاص څه لحاظ نشته. څکه یو امیر سره صرف خپل خپلوان وزیران او نائبان وی خو دې ته په ښه سترګه نشی کتلې، که د دینداری او قابلیت په بنیاد اخستل وی نو بیا د خپلو خپلوانو، د حکومت غړی جوړل وی څه بدیت نه لری بلکه د مهماتو د تکمیل دپاره زیات غوره دی. د نبی اکرم ﷺ نه پس هم هغه حضرات خلفاء راشدین ﷺ جوړ شوی دی چې د پیغمبر ﷺ د کورنئ مبارکې سره ئې تعلق اوخپلوی هم لرله.

موسی ﷺ پخپله دعا کښې رومبې یوه عامه خبره اوکړه چې زما د خاندان او اهل څینې وی، بیا ئې په ګوته کړو چې هغه زما رور هارون ﷺ دې چالره چې خپل وزیر جوړول غواړم، دپاره ددې چې د پیغمبرئ په کارونو کښې پرې طاقت بیا مومم.

هارون ﷺ د موسی ﷺ نه درې یا څلور کاله مشر وو او درې کاله وړاندې ترې وفات شوې وو. کله چې موسی ﷺ دا دعا غوښتله نو هارون ﷺ په مصر کښې وو، چې د موسی ﷺ په دعا سره پیغمبر جوړ کړې شو نو د فرښتې په ذریعه هم په مصر کښې ورته ددې خبر ورکړې شو، کله چې موسی ﷺ په مصر کښې د فرعون د تبلیغ دپاره اولیږلې شو نو په مصر کښې هارون ته دا هدایت اوکړې شو چې د مصر نه بهر دې دهغوئ استقبال اوکړی او هم دغسې اوشو. [قرطبی] [1]

﴿وَأَشْرِكْهُ فِي أَمْرِي﴾ موسی ﷺ هم دا اختیار لرلو چې هارون ﷺ خپل وزیر جوړ کړی وی خود برکت حاصلولو په غرض یې دادعا د الله ﷻ نه اوغوښتله، البته د هغوئ ﷺ پیغمبر جوړیدل ئې هم غوښتل چې خپل اختیار کښې ئې نه وو څکه ئې دا دعا مستقله اوکړه چې زما د پیغمبرئ په کار کښې ئې هم شریک کړې. آخر کښې ئې اوفرمائیل چې:

**صالحان ملګری په عبادت کښې هم مددګار وی** :: ﴿كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيرًا ۝ وَنَذْكُرَكَ كَثِيرًا﴾ [هارون ﷺ چې زما وزیر او په پیغمبرئ کښې شریک جوړ کړې شی نو فائده به ئې دا وی چې مونږ به ستا تسبیح او ذکر ډیر ډیر کوؤ]

دلته دا سوال پیدا کیږی چې تسبیح او ذکر خو په یواځې ځان هم کیدې شی د بل چا دخل په دې کښې څنګه کیدې شی؟ لیکن په غور کولو سره معلومیږی چې په ذکر او تسبیح کښې هم د یو سازګار چاپیریال [ماحول] او د خدائی ملګرو لوئې دخل وی. د چا ملګری چې الله والا نه وی هغه دومره عبادت نشی کولې څومره هغه کولې شی دچا ماحول چې دالله والا وی او ذکر یې مشغله وی. دې نه معلومه شوه چې څوک د الله ﷻ په ذکر کښې مشغولیدل غواړی نو د یو سازګار چاپیریال لټون هم هغې دپاره پکار دې.

تر دې پورې چې دعاګانې ختمې شوې، په آخر کښې ورته الله ﷻ ددې ټولو دعاګانو د قبلیدو زیرې په دې شان ورکړو

﴿قَالَ قَدْ أُوتِيتَ سُؤْلَكَ يَا مُوسَى﴾ [ستاسو ټول غوښتلې څیزونه درکړې شو].

[1]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة [ج:۱۱ص:۱۹۴]

قَالَ قَدْ اُوْتِيْتَ سُؤْلَكَ يٰمُوْسٰى ۝ وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ

اووئيل الله | درکړې شوه تاته | غوښتنه ستا | اې موسى | او احسان اوکړو مونږ | په تاباندې

الله تعالى ! تاچې څه اوغوښتل هغه تاته درکړې شو [او مونږ] ددې نه مخکښې] په تاباندې

مَرَّةً اُخْرٰٓى ۝ اِذْ اَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اُمِّكَ مَا يُوْحٰٓى ۝

يو ځل | بيا | ياد کړه کله چې | اشاره اوکړه مونږه | مور ستا ته | هغه چې د وحى په ذريعه کيدې شى

يوبل ځل هم احسان کړې وو [چې ستا مور ته مو د هغې خبرې الهام اوکړو چې دالهام قابله وه

اَنِ اقْذِفِيْهِ فِى التَّابُوْتِ فَاقْذِفِيْهِ فِى الْيَمِّ فَلْيُلْقِهِ

چې واچوه دې [په صندق کښې | او واچوه دغه صندق [په درياب کښې | نو اوبه غورزوى هغه صندق لره

يعنى داچې موسى په يو صندق کښې واچوه] او بيا هغه [صندق] په درياب کښې لاهو کړه] نو درياب

الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ يَأْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّىْ وَعَدُوٌّ لَّهٗ ۭ وَاَلْقَيْتُ

درياب | په غاړه باندې | چې رااوبه نيسى دهٔ لره | دشمن زما | او دشمن دهغه | اوواچوؤ ما

به ئې په خپله غاړې ته راولى | اوهغه څوک بهٔ اونيسى چې زما هم دښمن دې او ددهٔ هم دښمن دې

عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّىْ ۚ وَلِتُصْنَعَ عَلٰى عَيْنِىْ ۝ اِذْ

په تاباندې | محبت | دخپل طرفه | او چې تربيت اوشى ستا | وړاند دسترګو زما | ياد کړه کله چې

اوماپه تاباندې د خپل طرفه د خلقو مينه پيدا کړې وه | اوداچې خاص زما په نګرانئ کښې ستا پالنه اوشى | هرکله چې

تَمْشِىْٓ اُخْتُكَ فَتَقُوْلُ هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰى مَنْ يَّكْفُلُهٗ ۭ

روانه وه | خور ستا | نو وې وئيل هغې | آيا زهٔ اوښايم تاسو ته | هغه څوک | چې پالنه اوکړى ددهٔ

ستا خور ورغله او وې وئيل | چې آيا زه درته دداسې خلقو خبر درکړم چې هغوئ به ئې [ډيره ښهٔ] پالنه اوکړى

فَرَجَعْنٰكَ اِلٰٓى اُمِّكَ كَىْ تَقَرَّ عَيْنُهَا

دغه شان واپس راوستې مونږ تهٔ | مور ستا ته | دپاره ددې | چې يخې شى | سترګې دهغې |

نومونږ ته خپلې مور ته بيا ورواپس کړې ......... اچې دهغې سترګې درباندې يخې شى

وَلَا تَحْزَنَ ۚ وَقَتَلْتَ نَفْسًا فَنَجَّيْنٰكَ مِنَ الْغَمِّ وَفَتَنّٰكَ

او غمژنه نشى | او مړ کړو تا | يو سړې | نو خلاص کړې مونږ تهٔ | ددې غم نه | او ازمائيلې مونږ تهٔ

اوغمژن کيږى نه | اوتايو سړې قتل کړې وو | نو تاته مې ددغه غم نه نجات درکړو | اوته مو په قسم قسم

فُتُوْنًا ۚ فَلَبِثْتَ سِنِيْنَ فِىْٓ اَهْلِ مَدْيَنَ ۬ ثُمَّ جِئْتَ

په آزمېښتونو سره | او وخت تير کړو تا | ډير کلونه | په خلقو د مدين کښې | بيا [اوس] | راغلې تهٔ

امتحانونوکښې واچولې | نو ته څو کاله دمدين په خلقو کښې پاتې شوې | بيا ائې موسى ! ته په

عَلٰى قَدَرٍ يّٰمُوْسٰى ۝ وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِىْ ۝ اِذْهَبْ اَنْتَ

په ټيک اندازه | اې موسى | او جوړ کړې ماته | دپاره دکار خپل | لاړ شه | ته

خپل مقرر وخت دلته راغلې | اوبيا ما ته د خپل ځان دپاره منتخب کړې | نو اوس ته اوستا

| اِذْهَبَآ | فِيْ ذِكْرِيْ | وَلَا تَنِيَا | بِاٰيٰتِيْ | وَاَخُوْكَ |
|---|---|---|---|---|
| لاړ شئ دواړه | په یادولو زما کښې | او مه کوئ سستي | په نښو زما سره | او رور ستا |

رورا[هارون] زما په نښو[معجزاتو] سره لاړشئ | اوزما په ذکر کښې سستي مه کوئی| تاسو دواړه

| لَّيِّنًا | قَوْلًا | لَهٗ | فَقُوْلَا | طَغٰى | اِنَّهٗ | اِلٰى فِرْعَوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نر مه | خبره | هغه ته | نو اوکړئ دواړه | سرکشی کړی ده | بیشکه هغه | فرعون ته |

فرعون ته لاړ شئ| خکه چې هغه [په خپله سرکشئ کښې] دحدنه تیر شوې دې| نو هغه سره نرمې خبرې اوکړئ

| اَوْ يَخْشٰى | يَتَذَكَّرُ | لَّعَلَّهٗ |
|---|---|---|
| یا اویریږي | نصیحت قبول کړي | کیدې شي چې هغه |

کیدې شي چه نصیحت قبول کړي| یا [زما دنیولونه ] اویریږي |

## آسان ترجمه قرآن

الله پاک اوفرمائیل: اې موسٰی! تا چه څه غوښتلې دی، تاته درکړې شو. او ما په تا باندې یو کرت مخکښې هم احسان کړې وو. چه کله مونږ ستا مور ته د وحی په ذریعه هغه خبره کړې وه. کومه چه اوس د وحی په ذریعه (تاته) بیا نولې شی چه دا (ماشوم) په صندوق کښې کیږده، بیا صندوق په دریاب لاهو کړه، بیا به دریاب دې غاړې ته واچوی. چه د هغې په نتیجه کښې به یو داسې سړې دا (ماشوم) اوچت کړی چه زما به هم دشمن وی، او د دهٔ هم او ما دخپل طرف نه په تا باندې یو محبوبیت نازل کړې وو . او دا هرڅه مې په دې وجه کړې وو چه ته زما په نګرانئ کښې پرورش بیا مومې دهغه وخت تصور اوکړه چه کله ستا خور د کور نه روانیږی، او (د فرعون خادمانو ته) دا وائی چه: آیا زه تاسو ته دهغه (زنانه) پته درکړم چه دا ماشوم اوپالی؟ دغه شان مونږ ته خپلې مور ته راواپس کړې، چه د هغې سترګې یخې وې اوهغه خفګان نه وی، او تا یو سړې وژلې وو بیا مونږ تاته دهغه غم نه خلاصې درکړو. اوپه تا باندې مو ډیر ازمیښتونه اوکړل بیا ته د ډیرو کلونو پورې په مدین والو کښې اوسیدلې. د دې نه پس اې موسٰی! ته په یو داسې وخت کښې دلته راغلې کوم چه د مخکښې نه مقدر وو او ما تهٔ خاص دخپل ځان دپاره جوړ کړې ئې. ته او ستا ورور دواړه زما د نخښو سره لاړ شئ. او زما په ذکر کولو کښې سستی مه کوئ دواړه فرعون ته لاړ شئ، هغه د حد نه وتلې دې. دواړه لاړ شئ او هغه سره په نرمئ باندې خبرې کوئ، کیدې شی چه هغه نصیحت قبول کړی، یا (د الله پاک نه) اویریږی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً اُخْرٰىٓ﴾ [ مونږ خوبل وار هم ] ددې نه وړاند بې درخواسته [ په تا احسان کړې دې ﴿اِذْ اَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اُمِّكَ مَا يُوْحٰىٓ﴾ کله چه مونږ ستا مورته هغه خبره په الهام سره وښودله کومه چه ] په وجه ددې چه ډیر مهتم بالشان وه [ الهام سره دښودلو] قابله [ وه] ﴿اَنِ اقْذِفِيْهِ فِي التَّابُوْتِ﴾ هغه [ دا چه موسی] ﷺ [ لره دجلادیانو دلاسونو نه دبچ کولو دپاره [ په یو صندوق کښې کیږده ﴿فَاقْذِفِيْهِ فِي الْيَمِّ﴾ بیادهٔ لره ] سره د صندوق [ دریاب ته ] دکوم یو شاخ چه دفرعون محل ته هم تلې وو [ وغورزوه ﴿فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ﴾ سره د صندوق نه د کنارې خواته راوړی

بیا دریاب به دهٔ لره ﴿يَأْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّي وَعَدُوٌّ لَّهُ﴾ کوم چه ] دکفر کولو په وجه [ زما هم دښمن دې او دده هم دښمن دې ] خواه فی الحال په وجه ددې چه ټول بچی یې قتلول خواه ائنده به ددهٔ په خاص طور سره دښمن وی [ او] کله چه صندوق ونیوې شو او ته نزترې راوستلې شو ﴿وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّي﴾ نو [ ماستا ] دمخ [ دپاسه دخپل طرف نه یو اثر دمحبت وغورزولو ] ددې دپاره چه څوك تاوینی اومینه درسره کوی ﴿وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِي﴾ [ او ددې دپاره چه ته زمایه ] خاصه [ نګرانۍ کښې پرورش بیا مومې ] داد هغه وخت قصه ده ﴿إِذْ تَمْشِي أُخْتُكَ﴾ [ کله چه ستا خور] ستا په تلاش کښې دفرعون کورته [ راتله راغله بیا چه ته یې ولیدې ځان یې نا اشنا کړو ﴿فَتَقُولُ﴾ [ وفرمائیل ] کله چه تا دیوې دائی پېۍ هم نه څښل ﴿هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ مَن﴾ [ ایا زهٔ تاسوته داسې څوك ونه ښایم کوم چه دهٔ لره ] په ښه شان ﴿يَكْفُلُهُ﴾ [پرورش وکړی ] نودغه خلق چونکه ددې په تلاش کښې وو دا خبره یې منظور کړه او ستا خور راغله ستا مور یې راوستله [ بیا ] په دې تدبیر سره ﴿فَرَجَعْنَاكَ إِلَىٰ أُمِّكَ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ﴾ [ مونږ ته خپلې مورته بیا ورسولې ددې دپاره چه دهغې سترګې یخې شی او غم نه کوی ] لکه چه لږ وخت پورې ستا په جدایۍ غمژنه وه [ او] چه لویۍ شوی نو یو بل احسان مو درباند وکړو چه ﴿وَقَتَلْتَ نَفْسًا﴾ [ تا] په غلطۍ سره یو سړې ] [ مړکړلو] چه قصه یې په سوره قصص کښې ده او چه مړ دکړو نو ویریدې دعذاب نه هم انتقام دویرې نه هم ﴿فَنَجَّيْنَاكَ مِنَ الْغَمِّ﴾ [بیا مونږ تالره ددې غم نه نجات [ درکړو ] دعذاب دویرې نه خو داسې چه د استغفار توفیق مو درکړو او قبول مو کړو او دویرې دانتقام نه داسې چه دمصر نه مومدین ته ورسولې [ او] مدین ته درسیدو پورې ﴿وَفَتَنَّاكَ فُتُونًا﴾ [ مونږ تالره په سختو سختو محنتونو کښې واچولو ] او بیا مو درله ددې نه خلاصې درکړو چه ذکر یې په سوره قصص کښې دې چه خلاصې ورکول هم احسان دې او پخپله ازمائش هم په وجه ددې چه دغه سبب دې دحاصلیدو دښواخلاقو او دغوره خاصیتونو دا مستقل احسان دې

[بیا] مدین ته اورسیدې او ﴿فَلَبِثْتَ سِنِينَ فِي أَهْلِ مَدْيَنَ﴾ [ مدین والو کښې څو کاله پاتې شوې ﴿ثُمَّ جِئْتَ عَلَىٰ قَدَرٍ﴾ بیا په یو خاص وخت باند کوم چه زما په علم کښې ستا دنبوت او ماسره دخبرو مقدر وو [ ته ] دلته [ راغلې ﴿يَا مُوسَىٰ﴾ او اے موسی ] ﷺ [ او] دلته په راتلو ﴿وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِي﴾ [ ماتالره دخپل ځان د] نبی کولو [ دپاره منتخب کړو ] پس اوس ﴿اذْهَبْ أَنتَ وَأَخُوكَ بِآيَاتِي﴾ [ ته او ستا ورور دواړه زما نښې ] یعنی معجزې چه په اصل کښې دوه معجزې دی یوهمسا بل سپین لاس اوپه هره یوه کښې د اعجاز وجهې بې شمیره دی [ واخلۍ ] دکومې موقعې دپاره چه درته حکم کیږی [ لاړ شۍ ﴿وَلَا تَنِيَا فِي ذِكْرِي﴾ او زما په یادولو کښې] خواه په خلوت کښې وی خواه دتبلیغ په وخت کښې [سستی مه کوۍ ] اوس ورته دتلو موقع ښودلې شی چه ﴿اذْهَبَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغَىٰ﴾ [ دواړه فرعون ته لاړشۍ هغه ډیر سرکشه شوې دې بیا ] چه هغه ته ورشۍ ﴿فَقُولَا لَهُ قَوْلًا لَّيِّنًا﴾ [ په نرمۍ ورسره خبرې کوۍ ﴿لَّعَلَّهُ يَتَذَكَّرُ أَوْ يَخْشَىٰ﴾ شاید هغه ] په رغبت سره [ نصیحت قبول کړی یا ] یا دالله تعالی دعذاب نه [ ویریږی ] او په دې سره ومنی

## معارف او مسائل

[﴿وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً أُخْرَىٰ﴾] موسی ﷺ باندې چې کوم انعامات او عنایات شوی وو ، چې الله ﷻ سره د کلام کولو شرف ورکړې شو ، نبوت او رسالت ورکړې شو ، خاص معجزې ورکړې شوې،

دې سره سره الله ﷻ ورته دې خاې کښې خپل هغه نعمتونه هم وریاد کړل چې د پیدائش نه تر دې وخت پورې په دوئ ﷺ باندې شوی وو. او مسلسل آزمینښتونو او لویو لویو خطرو سره د مخ کیدو باوجود الله ﷻ ددوئ ﷺ حفاظت اوکړو. ددې کومو نعمتونو ذکر چې راروان دې ددې واقع کیدل د زمانې اعتبار سره دی. دې خاې کښې چې چرته د اخرىٰ لفظ دې دپاره استعمال شوې دې ددې معنی دا نه ده چې دا نعمتونه ددې څخه وروستو دی، بلکه اخرىٰ لفظ کله د نورو په معنی کښې هم استعمالیږی. او په دې کښې دمقدم او مؤخر هیڅ مفهوم نه وی. دلته هم دا لفظ په دې معنی کښې دې. [روح](١) د موسی ﷺ دا پوره قصه به دحدیث پاك حوالې سره مخکښې راشی.

[إِذْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ أُمِّكَ مَا يُوحَىٰ] یعنی کله چې مونږ ددوئ مور بی بی ته وحی اولیږله دیو داسې معاملې چې صرف په وحی سره معلومیدې شوه، هغه دا چې د فرعون کسانو ته دا ذمه واری حواله شوې وه چې د بنی اسرائیلو ماشومان به یې قتل کول. دهغوئ د بچ کیدو دپاره ددوئ مور بی بی ته د وحی په ذریعه اووئیلې شو چې دوئ په یو تابوت کښې بند کړئی او په دریاب کښې ئې اوغورزوئی. او دا ویره دې نه کوی چې ګنی دې به هلاك شی. مونږ به ددهٔ حفاظت کوؤ، او بیا به یې تاته واپس کړو. دا ښکاره خبره ده چې دا خبرې دعقل او قیاس نه دی بلکه دا الله ﷻ وعده او ددوئ ﷺ د حفاظت ډیر ښکلې انتظام کول صرف د هغه لوئې ذات دطرفه کیدې شی

### آیا وحی یو غیر نبی ته هم راتلې شي ::

حقیقت دا دې چې د وحی د لفظ لغوی معنی داسې پټه خبره ده کومه چې صرف مخاطب ته معلومه وی او نورو ته ددې خبر نه وی، ددې لغوی معنی اعتبار سره وحی د چا دپاره مخصوص نه ده. نبی، رسول بلکه تر څناورو پورې په دې کښې شاملیدې شی.

[وَأَوْحَىٰ رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ] دې کښې د شاتو مچو ته د وحی په ذریعه تعلیم ورکول هم په دې معنی کښې دی او په دې ایت مبارك کښې [أَوْحَيْنَا إِلَىٰ أُمِّكَ] هم د لغوی معنی اعتبار سره ده، دې څخه ددوئ نبی یا رسول کیدل لازم نه دی. لکه څنګه چې مریم بی بی ته د الله ﷻ ارشادات اورسیدل او د امت د جمهورو په اتفاق سره دا نه نبی وه او نه رسوله وه. دا شان لغوی وحی عام طور سره د الهام په معنی کښې وی چې الله ﷻ د یو کس په زړه کښې یو مضمون واچوی. او هغه په دې بادې مطمئن کړی چې دا دالله ﷻ د طرفه دی. لکه څنګه چې اولیاء الله ته دا شان الهامات کیږی. بلکه ابو حیان او ځینې نورو عالمانو وئیلی دی چې داشان وحی کله کله د یو فرښتې په ذریعه هم کیدې شی. لکه څنګه چې د مریم په واقعه کښې ددې تشریح شته دې چې جبرائیل ﷺ انسانی شکل جوړ کړو او ددې تلقین یې ورته اوفرمائیل خو ددې تعلق صرف د هغه کس ذات سره وی چې چا ته دا وحی کیږی. د مخلوق اصلاح او دعوت او تبلیغ سره ددې هیڅ تعلق نشته دې. په خلاف د وحی د نبوت چې ددې مقصد دا وی چې د مخلوق اصلاح اوشی او په دعوت اوتبلیغ باندې مامور کول دی. ددهٔ په ذمه دا لازم دی چې هغه پخپله وحی باندې پخپله هم ایمان راوړی او نورو لره هم ددې پابند جوړ کړی چې ددوئ نبوت اومنی او د

---

(١) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص: ١٨٧]

خپلې وحی د منلو پابند ئې جوړ کړی او څوك يې چې نه منی نو هغه کافر اوګرځوی.
د وحی الهام يعنی وحی لغوی او وحی نبوت يعنی وحی اصطلاحی مينځ کښې هم دا فرق دې.
چې وحی لغوی هميشه څخه جاری ده او هميشه به وی، اووحی نبوت په حضرت محمد ﷺ
باندې ختمه شوې ده. د څينې بزرګانو په کلام کښې هم دې ته وحی تشريعی اوغير تشريعی
عنوان سره تعبير کړې دې. اود نبوت دعوه کوونکی قاديانی د شيخ محی الدين ابن عربی
رحمه الله څينې عبارتونو لره د خپلې دعوې د نبوت په جواز کښې دليل پيش کړې دې او دا دعوی
په خپله د ابن عربی رحمه الله د تصريحاتو سره باطل دې. ددې مسئلې مکمل بحث زما يو کتاب
ختم نبوت کښې تفصيل سره ذکر شوې دې.

**د ام موسی عليها السلام نوم:** روح المعانی کښې دی چې ددې مشهور نوم يوحانذ دې، او په اتقان کښې
ددې نوم لحيانه بنت يصمد بن لادی ليکلې شوې دې. اوڅينو ددې نوم بارحا، څينو بازخت
ښودلې دې. څينې تعويذونه کوونکی ددوئ د نوم عجيبه خصوصيات بيانوی. صاحب روح
المعانی فرمائی چې مونږ ته ددې هيڅ بنياد معلوم نشو اوغالب دادی چې دا دخرافاتو څخه
دی.(۱)

[فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ] دې ځايې کښې لفظ د يم په معنی د درياب دې چې په ظاهره ددې څخه د
دريائې نيل مراد دې. آيت مبارك کښې يو حکم د موسی عليه السلام مور بی بی ته ورکړې شو چې
چې دا ماشوم په صندوق کښې ګير کړه او درياب کښې يې اوغورزوه. دويم حکم د امر په
صيغه کښې درياب ته دې چې دا صندوق يو غاړې ته راوله.

[فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ] درياب چونکه په ظاهره بې حس او بې شعوره دې، په دې وجه دې ته د حکم
کولو مفهوم په پوهه کښې نه رازی. په دې وجه څينو حضراتو دا وئيلی دی چې دې ځائې
کښې صيغه د امر استعمال شوې ده خو ددې څخه مراد حکم نه دې بلکه خبر ورکول دی چې
درياب به دا غاړې ته راولی. خو د محققينو علماء کرامو په نزد د امر په ظاهر کښې هم امر
اوحکم دې. او ددې مخاطب درياب دې. څکه چې ددوئ په نزد د دنيا هريو مخلوق، ونې،
کانړی بې عقله او بې شعوره نه دی بلکه ټولو کښې عقل او فهم موجود دې. او هم ددې عقل
او فهم په وجه دا ټول څيزونه د قرآن پاك د تصريح مطابق د الله ﷻ تسبيح کښې مشغول دی.
خو دا فرق ضروری دی چې انسانان، جنات او فرښتو څخه علاوه په يو مخلوق کښې هم عقل
او شعور دومره مکمل نه دې چې دهغې په وجه پرې د حلال او حرام حکم اولګولې شی،
مولانا رومی رحمه الله فرمائی چې:

خاك وباد و آب آتش بنده اند　　　بامن وتومرده باحق زنده اند(۲)

[يَأْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّي وَعَدُوٌّ لَّهُ] يعنی داتابوت او په دې کښې بند شوې ماشوم به د سمندر د غاړې څخه
داسې کس پورته کوی چې هغه زما هم دښمن دی او د موسی عليه السلام هم. ددې څخه مراد فرعون
دې. د فرعون د کفر په وجه خو ښکاره د الله ﷻ دشمن وو. مګر د موسی عليه السلام دښمن ورته

(۱) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۶ ص:۱۸۷]
(۲) ترجمه:- خاوره، هوا، اوبه او اور(هور) ټول دالله تعالي تابع دی، زه او ته دا مره ګنړوخو دالله تعالي په نزد دا ژوندی دی.

وثیل، دا خبره قابل غور ده ځکه چې هغه وخت کښې خو فرعون د موسی ﷺ دښمن نه وو بلکه د هغوئ ﷺ په پرورش باندې یې ډیر خرچ کولو. بیا ده ته د موسی ﷺ دښمن وئیل خو یا د انجام په اعتبار سره دې ، او فرعون د [موسی ﷺ] دښمن کیدل د الله ﷻ په علم کښې وو. او که دا اووئیلې شي چې د فرعون د ذات تعلق هم په دغه وخت کښې د دښمن وو. هغه د موسی ﷺ تربیت صرف د خپلې بی بی آسیه په وجه کړې وو. او کله چې ورته په دې کښې هم شك پیدا شو نو د هغه د قتل حکم یې ورکړې وو. خو داسې د آسیه په عقل مندئی سره اونشو. [روح ، مظهری][1]

[وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّي] دې خائې کښې لفظ د محبت مصدر د محبوبیت په معنی کښې دې او مطلب یې دادې چې الله ﷻ فرمائی چې دا زمونږ عنایت او رحمت وو چې ستا په وجود کښې مو د محبوبیت شان اینبودې وو چې تا څوك هم اووینې نو تاسره به محبت کوی. د ابن عباس رضي الله عنه او عکرمه څخه هم دا تفسیر منقول دې [مظهری][2]

[وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِي] دې ځايې کښې د صنعت د لفظ څخه مراد ښه تربیت دې . لکه په عربو کښې د صَنَعْتُ فَرَسِي محاوره هم په دې معنی کښې مشهوره ده چې ما دخپل آس ښه تربیت اوکړو. او [عَلَىٰ عَيْنِي] څخه مراد علی حفظی دې یعنی الله ﷻ اراده فرمائیلې وه چې دموسی ﷺ بهترین تربیت د الله ﷻ په نګرانی کښې براه راست اوشو. په دې وجه د مصر د ټولو څخه لوې شخصیت یعنی د فرعون په کور کښې دا کار داسې اوشو چې هغه ددې څخه خبر نه وو چې څه د خپله لاسه د خپل دښمن پرورش کوم. [مظهری][3]

[إِذْ تَمْشِي أُخْتُكَ] د موسی ﷺ د خور تابوت پسې تلل او ددې څخه روستو قصه چې دهغې اجمال په دې آیت مبارکه کښې راغلې دې او دهغې په آخر کښې فرمائی چې [وَفَتَنَّاكَ فُتُونًا] یعنی مونږ ستا آزمیښت بار بار اوکړو [قاله ابن عباس رضي الله عنه] یا مونږ ته بار بار په آزمیښت کښې اخته کړې [قاله الضحاك] ددې پوره تفصیل په سنن نسائی کښې یو اوږد حدیث پاك کښې د ابن عباس رضي الله عنه په روایت سره راغلې دې هغه دادې:

**د موسی ﷺ مفصله واقعه :** د حدیث الفتون په نوم سره یو اوږد حدیث د سنن نسائی په کتاب لتفسیر کښې د ابن عباس رضي الله عنه روایت سره نقل دې او ابن کثیر رحمه الله په خپل تفسیر کښې دا پوره نقل کړې دې او بیا ئې فرمائیلې دی چې ابن عباس رضي الله عنه دا روایت مرفوع یعنی د نبی کریم ﷺ بیان ګرځولې دې . او ابن کثیر رحمه الله هم د حدیث د مرفوع باره کښې فرمائیلې دی چې:

[وصدق ذلك عندی] یعنی ددې حدیث پاك مرفوع کیدل زما په نزد درست دی . بیا یې ددې دپاره یو دلیل هم بیان کړې دې ، خو ددې څخه وروستویې فرمائیلې دی چې ابن جریر او ابن ابی حاتم هم دا پخپلو تفسیرونو کښې داروایت نقل کړې دې . خو هغه موقوف یعنی د ابن عباس رضي الله عنه خپل کلام دې . د مرفوع حدیث جملې په دې کښې لږې ډیرې راغلی دی ، داسې معلومیږی چې ابن عباس رضي الله عنه دا روایت د کعب احبار رحمه الله څخه اخستې دې لکه څنګه چې په

[1] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:١٣٩] و روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:١٨٨، ١٨٩]
[2] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:١٤٠]
[3] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:١٤٠]

ډیرو موقعو باندې داسې شوې دی. خو د ابن کثیر پشان ناقد حدیث او د نسائی پشان امام حدیث دا مرفوع ګڼړی. اوچا چې دا مرفوع نه دې منلې هغوئ هم ددې په مضمون باندې څه نکیر نه کوی او پخپله ددې اکثره حصه خو د قرآن پاك په آیتونو کښې راغلې ده. په دې وجه دپوره حدیث پاك ترجمه لیکلې کیږی چې په هغې کښې د موسی ﵇ د قصې په ضمن کښې ډیرې علمی او عملی فائدې هم شته.

**حدیث الفتون**: په د سند امام نسائی قاسم بن ابی ایوب فرمائی چې ماته سعید بن جبیر خبر راکړو چې ما د عبدالله بن عباس ﵄ څخه ددې آیت مبارك د تفسیر باره کښې تپوس اوکړو چې دموسی ﵇ باره کښې دې: [وَفَتَنّٰكَ فُتُوْنًا] چې په دې کښې د فتون څخه څه مراد دی؟ ابن عباس ﵄ اوفرمائیل چې ددې واقعه ډیره اوږده ده. صبا سحر راشه نو درته بهٔ یې اووایم. کله چې صباشو نوزه د ابن عباس ﵄ په خدمت کښې حاضر شوم دې دپاره چې کومه وعده یې ماسره مخکښې ورخ کړې وه چې هغه پوره کړی. ابن عباس ﵄ اوفرمائیل چې واؤره [یوه ورځ] د فرعون اوددهٔ د درباریانو په مینځ کښې د یوې خبرې ذکر اوشو چې الله ﷻ آدم ﵇ سره کومه وعده کړې ده چې دهغه په اولاد کښې به پیغمبران او نبیان پیدا کوم. څینې درباریانو یې اووئیل چې بنی اسرائیل خو ددې منتظر دی. او په دې کښې هغوئ هیڅ شك نه کوی چې په دوئ کښې به یو رسول او نبی پیدا کیږی. او اول اول ددې خلقو دا خیال وو چې دا نبی یوسف بن یعقوب ﵇ دې، کله چې هغه وفات شو نو وې وئیل چې ابراهیم ﵇ سره کومه وعده شوې وه دې دهغې مصداق نه دې. [بل نبی یا رسول به پیدا کیږی چې دا وعده به پوره کوی] فرعون چې کله دا واؤریدل نو [ ورسره فکر پیدا شو چې که په بنی اسرائیلو کښې چې زما غلامان دی رسول یا نبی پیدا شونو هغه به دوئ زما څخه آزاد کړی ] په دې وجه یې په مجلس کښې د حاضرو خلقو څخه تپوس اوکړو چې ددې څخه د بچ کیدو څه لاره راته اوښائې. دې خلقو خپلو کښې مشورې کول شروع کړې اوآخر ټول په دې متفق شو چې [بنی اسرائیلو کښې کوم یو هلك پیدا کیږی هغه دې ذبح کړې شی ددې دپاره] دې سپاهیان مقرر کړې شو چې لاسونو کښې ورسره چړې وی او هغوئ به د بنی اسرائیلو یو یو کور ته تلل او کتل بهٔ یې چې هلته به یې څوك هلك لیدو نو هغه به یې ذبح کولو.

ددې معاملې د جاری ساتلو څخه څه وخت وروستو ورته خیال راغلو چې بنی اسرائیل خو زمونږ ټول خدمت کوی، که د قتل کولو دا سلسله جاری اوساتلې شوه نو ددوئ بوډا خو به مړهٔ شی او ددوئ بچی چې قتل شی نو راتلونکی وخت کښې به په بنی اسرائیلو کښې څوك سړې پاتې نشی چې زمونږ خدمت اوکړی. اوددې په نتیجه کښې به مونږ خپل ټول کارونه پخپله کوو. په دې وجه دا حکم اوشو چې یو کال کښې کوم ماشومان پیدا کیږی نو هغه دې پرینښودې شی. او بل کال چې کوم ماشومام پیدا کیږی نو هغه دې ذبح کړې شی. دغه شان به په بنی اسرائیلو کښې څه ځوانان پاتې شی چې د خپلو بوډاګانو ځائې به واخلی. او ددوی شمیر به هم دومره ډیر نه وی چې د فرعون حکومت دپاره خطره پیدا کړی. داخبره د ټولو خوښه شوه او هم دا قانون یې نافذ کړو. [اوس دالله ﷻ د قدرت او حکمت ظاهریدل داشان اوشو چې] د موسی ﵇ مور بی بی په هغه کال حامله شوه کوم کال چې د ماشومانو د ژوندی پرینښودو کال وو. په دې کښې هارون ﵇ پیدا شو چې د فرعونی قانون مطابق ددهٔ دپاره هیڅ خطره نه وه.

راتلونکې کال د ماشومانو د قتل کولو کال وو ، کله چې موسی ﷺ رحم ته راغلو نو مور بی بی سره یې غم پیدا شو چې که دا ماشوم پیدا شی نو دې به قتل کوی. ابن عباس ﷠ کله چې دې ځائې پورې قصه اوکړه نو وې فرمائیل چې اې جبیر فتون یعنی د آزمیښت دا رومبی موقع ده چې موسی ﷺ لا دنیا ته راغلې هم نه دې چې د هغه د قتل منصوبه تیاره وه. هغه وخت کښې الله ﷻ د دوئ ﷺ مور بی بی ته د وحی په ذریعه تسلی ورکړه چې: [وَلَا تَخَافِي وَلَا تَحْزَنِي إِنَّا رَادُّوهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ الْمُرْسَلِينَ] [یعنی ته هیڅ غم او فکر مه کوه [مونږ به دده حفاظت کوو او څو ورځې د جدا اوسیدو څخه وروستو] تاته به یې واپس کړو او بیا به دوئ پخپلو رسولانو کښې داخل کړو] کله چې موسی ﷺ پیدا شو نو دده مور بی بی ته الله ﷻ حکم اوکړو چې دې په یو تابوت کښې بند کړه او د نیل په دریاب کښې یې اوغورزوه. د موسی ﷺ مور بی بی دا حکم پوره کړو. کله چې دې تابوت دریاب کښې غوزار کړو نو شیطان ددې په زړه کښې وسوسه واچوله چې دا تا څه اوکړل ، دا بچی که چرې تا سره وې او ذبح شوې هم وې نو پخپلو لاسونو به دې دده کفن دفن کړې وو نو تسلی خو به درته وه کنه. اوس به دې د دریاب ځناور اوخوری. [د موسی ﷺ مور بی بی په دې غم او فکر کښې وه چې] د دریاب چپو دا تابوت په داسې کانړی باندې اودرولو چې هلته به د فرعون وینځې لامبلو د پاره تلې. هغوئ چې دا تابوت اولیدو نو راپورته یې کړو او د دې د پرانستلو اراده یې اوکړه خو په هغوئ کښې یو کسې اووئیل چې که چرې په دې کښې څه مال وی او مونږ دا پرانستو نو د فرعون ښځه به په شك کښې شی چې مونږ ددې څخه څه پټ کړی دی ، بیا که مونږ ورته هر څه اووایو خو د هغې به یقین نه راځی. په دې په اتفاق سره دا فیصله اوکړه چې دا تابوت نه پرانیزو بلکه د فرعون د ښځې مخکښې به یې پرانیزو.

کله چې د فرعون ښځې دا تابوت پرانستو نو څه گوری چې په دې کښې یو هلك دې او دده په کتلو سره ددې هغه سره محبت پیدا شو. او داسې محبت یې ددې څخه وړاندې بل ماشوم سره نه وو شوې. او دا په حقیقت کښې دالله ﷻ د ارشاد ظهور وو چې] [وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِنِّي] بل طرفته د موسی ﷺ مور بی بی د شیطان د وسوسې په وجه د الله ﷻ هغه وعده هیره کړه او حالت یې دا شو چې [وَأَصْبَحَ فُؤَادُ أُمِّ مُوسَى فَارِغًا] یعنی د موسی ﷺ د مور بی بی زړه د هرې خوشحالۍ او هر خیال څخه خالی شو. [صرف د موسی ﷺ فکر ورسره مل شو] کوم پولیس چې د هلکانو په قتل کولو باندې د فرعون په کور کښې په ډیوټی وو او هغوئ خبر شو نو هغوئ چرې په لاس د فرعون کور ته ورغلل چې دا هلك مونږ ته راکړئ چې قتل یې کړو.

ابن عباس ﷠ چې کله دې ځائې ته راورسیدو نو ابن جبیر ته مخاطب شو چې اې جبیر! د فتون یعنی د آزمیښت دویمه واقعه دا ده.

د فرعون ښځې هغه لښکریانو ته اووئیل چې صبر اوکړئی صرف په دې یو هلك سره د بنی اسرائیلو طاقت نه زیاتیږی. زه فرعون ته ورځم او ددې ماشوم د معاف کولو سوال ترې کوم. که فرعون دې اوبخښلو نو دا به ډیره ښه وی ، کنې بیا چې تاسو څه کوئی نو اوکړئی ستاسو معامله کښې به مداخلت نه کوم او دا ماشوم به تاسو ته حواله کړم. دې څخه وروستو دا فرعون ته ورغله او ورته ئې اووئل چې دا ماشوم زما د سترگو تور دې. فرعون ورته اووئیل چې دا خو صحیح ده چې دا ستا د سترگو تور دې خو ما ته دده هیڅ ضرورت نشته دې.

دې څخه وروستو ابن عباس ﷛ فرمائي چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې قسم مې دې وى په هغه ذات چې دهغه قسم كولې شى كه فرعون په هغه وخت كښې موسى ﷵ ته د خپلې بى بى پشان د سترګو تور وئيلې وې نو الله ﷻ به هغه ته هم هدايت نصيب كړې وې لكه څنګه چې يې دده بى بى ته نصيب كړو.

[بهر حال د ښځې په وينا فرعون هغه ماشوم ته جان بخشى اوكړه] اوس د فرعون ښځې د ده د پيئو [شودو] وركولو دپاره نزدې څخه ښځې راؤبللې. تولو دا غوښتل چې موسى ﷵ ته د پيئو [شودو] وركولو خدمت په خپل سر واخلى خو موسى ﷵ به د چا تې يعنى سينه نه اخستله [وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ الْمَرَاضِعَ مِنْ قَبْلُ][(١)] اوس دفرعون ښځې سره د فكر شو چې هر كله دې د چا پئ نه اخلى نو دې به ژوندې څنګه پاتې شى ، په دې وجه يې خپلو وينځو اونوكرانو ته وركړو چې دې بازارته بوځئ اودخلقو ډلې ته يې بوځئ چې كيديشى چرته ديوې ښځې پئ قبول كړى.

بل طرفته د موسى ﷵ مور بى بى خپلې لور ته اووئيل چې لږ بهر اوګوره او تلاش اوكړه او خلقو څخه تپوسونه اوكړه چې هغه تابوت او ماشوم څه شو؟ هغه ژوندې دې كه د درياب ځناورو خوړلې دې ؟ تر دې وخته پورې هغې ته دالله ﷻ هغه وعده ياده نه وه چې كومه ورسره الله ﷻ د حمل په حالت كښې د موسى ﷵ د حفاظت باره كښې كړې وه او چې دى به درته واپس كوم. كله چې د موسى ﷵ خور بهر لاړه [نو د الله ﷻ دقدرت دا نظاره يې اوكتله چې] د فرعون وينځو دا ماشوم ګرځولو چې داسې ښځه تلاش كړى چې دهغې پئ دې واخلى. هر كله چې يې دا نظاره اوكتله نو وې كتل چې د ماشوم د هيچا پئ نه اخلى او دا وينځې پريشانې دى نو ورته يې اووئيل چې زه تاسو ته يو كور ښايم ، او زما اميد دې چې دې به دهغې پئ ضرور واخلى. او هغه به ډير په محبت سره ددۀ پالنه كوى. دې آؤريدو سره هغه وينځو د شك په بنياد دا ښځه [يعنى د موسى ﷵ خور] اوونيوله چې شايد دا ددې ماشوم مور يا خپل پيژنى چې دومره په يقين سره دا خبره كوى چې هغه كور والا دده همدرد او خيرخواه دى. [نو خور يې ډيره پريشانه شوه]

كله چې ابن عباس ﷛ دې ځائې ته راؤرسيدو نو وې فرمائيل چې دا دريمه واقعه د فتون ده. په هغه وخت كښې د موسى ﷵ خور بى بى خپلې خبرې ته بل رنګ وركړو چې زما مطلب وو چې هغه كورنئ به ددۀ خيرخواه وى يعنى دفرعون دربار ته په آسانه رسى او هغوئ ته به ددې ښه بدله ملاويږى. نو په دې وجه به هغوئ ددې بچې سره ښۀ محبت كوى او پالنه بۀ يې كوى. دې آؤريدو سره وينځو هغه پريښوده. دا واپس كور ته لاړه او مور بى بى ته يې دا قصه بيان كړه. هغه دې سره هغه ځائې ته لاړه كوم ځائې كښې چې هغه وينځې راجمع شوې وې. د وينځو په وينا سره دې ماشوم خپله غيږه كښې واخستو ، موسى ﷵ زر دهغې سينې ته نزدې شو او پئ رودل [رول] يې شروع كړل تر دې چې ښه موړ شو. دا زيرې د فرعون ښځې ته اورسيدو چې دې ته د پئ وركولو والا ملاؤ شوه. د فرعون ښځې د موسى ﷵ مور بى بى راؤبلله. هغه راغله او وې كتل چې د فرعون ښځه زما حاجت اوضرورت محسوسوى نو لږ د خودارئى څخه يې كار واخستو. د فرعون ښځې اووئيل چې ته دې ځائې كښې اوسيږه او دې ماشوم ته پئ

---

(١) ترجمه:- او موږ د اول نه په موسى عليه السلام باندې د پئ څكونكو نه بنديز لګولې وو.

ورکوه ځکه چې زما دې ماشوم سره ډیر زیات محبت دې اودې زه دخپلو سترګو څخه اخوا کولې نشم. دموسی ﷤ مور بی بی ورته اووئیل چې زه خپل کور نشم پرېښودلې ځکه چې زما په غیره کښې یو بل ماشوم هم دې او هغه ته هم پئ ورکوم. زه هغه څنګه پرېږدم. خو که ته په دې باندې راضی یې چې دا ماشوم ماته حواله کړې او دې ځان سره په کور کښې اوساتم او دهٔ ته پئ ورکوم، اودا وعده کوم چې د دې ماشوم په پرورش کښې به څه هیڅ قسمه غفلت نه کوم.
دغه وخت کښې دموسی ﷤ مور بی بی ته دالله ﷻ هغه وعده هم وریاد شوه چې په کومې کښې یې ورته فرمائیلی وو چې دې به مونږ څو ورځې پس دوباره تاته واپس کړو. په دې هغې په خپله خبره زور ورکړو. د فرعون ښځې د مجبورۍ د وجې دهغې خبره اومنله او مور یې هم په هغه ورځ موسی ﷤ خپل کور ته راوستلو. او الله ﷻ دهغه پرورش په خاص طریقې سره اوکړو.
کله چې په موسی ﷤ کښې لږ قوت راغلو نو د فرعون ښځې ددوئ ﷤ مور بی بی ته اووئیل چې دا ماشوم ماته راوله [ځکه چې ددهٔ څخه بغیر زه ناقلاره یم] اود فرعون ښځې خپلو ټولو درباریانو ته حکم اوکړو چې دا ماشوم نن زمونږ کور ته راروان دې. تاسو کښې هیڅوك دهغه د اکرام کولو او هدیه ورکولو څخه پاتې نشی. او زه به پخپله ددې نګرانی کوم چې په تاسو کښې څوك په دې حکم باندې عمل کوی. او ددې نتیجه دا شوه چې کله موسی ﷤ خپلې مور بی بی سره دکور څخه اووتلو نو هم په هغه وخت په هغوئ ﷤ باندې د تحفو او هدیو باران شو تر دې چې کله د فرعون ښځې ته اورسیدو نو هغې ورته دخپله طرفه خاص تحفې او هدیې ورکړې. د فرعون ښځې چې دوئ ﷤ اولیدو نو ډیره خوشحاله شوه او هغه ټولې تحفې یې د موسی ﷤ مور بی بی ته ورکړې. دې څخه وروستو د فرعون ښځې اووئیل چې زه دې فرعون ته ورولم. هغه به دوئ ﷤ ته انعامات او تحفې ورکوی. کله چې دې موسی ﷤ فرعون ته وروستو نو فرعون دې پخپله غیره کښې واخستلو. موسی ﷤ دهغه ږیره اونیوله او زمکې طرفته راښکله. هغه وخت کښې دربار کښې خلقو اووئیل چې تا اوکتل چې الله ﷻ خپل نبی ابراهیم ﷤ سره کومه وعده کړې وه چې بنی اسرائیلو کښې به یو پیغمبر پیدا کوم چې هغه به ستاد مال وارث وی. او په تا باندې به غالب شی. دا وعده څنګه پوره شوه.
فرعون ته خبرداری ملاؤ شو او په هغه وخت یې هغه سپاهیان راؤبلل کوم چې په هلکانو قتل کولو باندې مامور وو چې دې ذبح کړئی. ابن عباس ﷠ چې کله دې ځائې ته راؤرسیدو نو ابن جبیر ته یې اووئیل چې دا څلورمه واقعه دفتون یعنی آزمیښت ده چې بیا دمرګ وریځې په سرشوې.
دفرعون ښځې اووئیل چې تا خو دا ماشوم ما ته راکړې دې بیا په دې څه خبره راغله. ته نه ګورې چې دا هلك د خپل عمل څخه دا څرګندوی اودا دعوی کوی چې دې به ما زمکه راګوزار او په ما باندې به غالب شی. د فرعون ښځې اووئیل چې ته زما یوه خبره اومنه هغې سره به زما او ستا فیصله هم اوشی او حق به هم واضح شی [چې دې ماشوم دا کار د وړوکوالی دبې خبرئی په وجه کړې دې اوکه په قصد یې کړې دې] ته د اور دوه سکروټې او دوه موتیان [ملغلرې] راؤغواړه او دواړه ددهٔ په مخکښې کیږده، که ده موتیانو طرفته لاس وراوږد کړو او اور یې پرېښودو نو بیا ته پوهه شه چې ددهٔ دا کار په قصد کړې دې، او که دهٔ د موتیانو په ځائې د اور سکروټې په لاس کښې راواخستې نو ستا به یقین اوشی چې دا کار یې څه په عقل اوشعور سره نه دې کړې ځکه چې یو عاقل انسان د اور سکروټې په لاس کښې نه اخلی.

[فرعون دې خبرې ته تيار شو] دوه د اور سکروټې او دوه ملغلرې د موسى علیه السلام په مخکښې کېښودې شول نو موسى علیه السلام د اور سکروټې اوچتې کړې [څينې نورو رواياتو کښې دي چې موسى علیه السلام موتيانو طرفته لاس وراوږدول غوښتل خو جبرائيل علیه السلام د دوئ علیه السلام لاس مبارك د اور سکروټو طرفته بوتلو] کله چې فرعون د اوکتل نو زر يې دهغه د لاسه سکروټې واخستې چې هسې نه دې اوسوزي. [اوس يې د خپلې بي بي خبره اومنله] هغې ورته اووئيل چې اوس درته د واقعې حقيقت معلوم شو. داشان الله جل جلاله موسى علیه السلام دمرګ څخه بچ کړو څکه چې الله جل جلاله ده ته د نور کار ذمه واري ورکونکې وو.

[داشان موسى علیه السلام د فرعون په شاهي اکرام او شاهي خرچ باندې د خپلې مور بي بي په نګرانئ کښې او پرورش کښې وو تر دې چې ځوان شو]

ددوئ علیه السلام دا شاهي اکرام او اعزاز چې اوکتلو نو د فرعون په خلقو کښې د هغه ظلم او جبر همت پاتې نشو چې به يې په بني اسرائيلو باندې کولو او چې ددې څخه وړاندې آل فرعون په بني اسرائيلو باندې کولو. يوه ورځ موسى علیه السلام د ښار په يوه حصه کښې روان وو ، څه ګوري چې دوه کسان خپلو کښې په جنګ دي چې يو فرعوني دې او بل بني اسرائيلي. اسرائيلي چې کله موسى علیه السلام اوليدو نو مدد يې ترې اوغوښتلو. موسى علیه السلام ته د فرعوني په ظلم باندې ډيره غصه ورغله څکه چې هغه ته معلومه وه چې موسى علیه السلام په شاهي دربار کښې څومره عزت او قدر دې او بيا هم دې په دې بني اسرائيلي باندې ظلم کوي حالاکه ده ته معلومه ده چې موسى علیه السلام دبني اسرائيلو حفاظت کوي. اوخلقو ته خو صرف دا معلومه وه چې د موسى علیه السلام تعلق خو بني اسرائيلو سره صرف د رضاعت او پئ څکلو په وجه دې. او دا هم ممکن ده چې موسى علیه السلام ته الله جل جلاله دا خودلې وي چې دوئ علیه السلام ته کومه ښځه پئ ورکوي دا ددۀ خپله مور بي بي ده او دې بني اسرائيلي دې.

غرض دا چې موسى علیه السلام په غصه شو او دا فرعونئ يې په سوك اووهلو او هغه ددې په وجه مړ شو. خو اتفاق داوو چې هغه ځائې کښې د موسى علیه السلام او دهغه بل کس څخه سوا بل څوك موجود نه وو ، فرعوني خو قتل شو او اسرائيلي سړي څخه يې څه انديښنه نه وه چې ګني دې به مخبري اوکړي.

کله چې دا فرعون د موسى علیه السلام دلاسه مړ شو نو موسى علیه السلام اوفرمائيل چې [هٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ إِنَّهُ عَدُوٌّ مُّضِلٌّ مُّبِيْنٌ] يعني داکارد شيطان دطرفه اوشو هغه ښکاره دښمن او ګمراه کوونکې دې.

[بيا يې دالله جل جلاله په دربار کښې غرض اوکړو چې] [رَبِّ إِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَاغْفِرْ لِيْ فَغَفَرَ لَهٗ إِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ] يعني اې زما ربه ما پخپل ځان باندې ظلم اوکړو [او د فرعوني قتل زما څخه په خطاب اوشو] ما ته معافي اوکړه. الله جل جلاله معاف کړو څکه چې هم هغه ذات معاف کوونکې او رحمت والا دې.

موسى علیه السلام ددې واقعې څخه وروستو به ډير په ويره تيرسونه کول چې [په دې قتل باندې د آل فرعون څه رد عمل دې او دا خبر د فرعون درباره ته اورسيدو که نه] معلومه شوه چې فرعون ته دا معلومه شوه چې يو اسرائيلي يو فرعوني قتل کړې دې ، په دې وجه د اسرائيليانو څخه دې ددې بدله واخستې شي. او دې معامله کښې دې هغه ته مهلت ورنکړې شي. فرعون اووئيل چې ددۀ قاتل تلاش کړئې او سره د ثبوته يې پيش کړئې. څکه اګر چې بادشاه ستاسو دې خو

دا دهغه دپاره مناسب نه دي چې بغير د څه شهادت اوثبوت څخه چا څخه قصاص واخلی. تاسو دهغه قاتل تلاش کړئی او ثبوت پيش کړئی . زه به ضرور ستاسو بدله اخلم . آل فرعون چې کله دا واوريدل نو کوڅو او بازارونو کښې خواره شو چې ددې قتل معلومات اوکړی. خو ددې څه معلومات نه کيدل .

ناڅاپه واقعه دا پيښه شوه چې په بله ورځ موسی ﷺ د کور څخه اووتلو او هم هغه اسرائيلی يې اوکتلو چې يو فرعونی سره په جنګ دې . او بيا اسرائيلی موسی ﷺ څخه مدد طلب کړو. خو موسی ﷺ په تيره شوې واقعه باندې هم ډير خفه وو. اوکله چې يې اوکتل چې دا اسرائيلی بيا بل کس سره په جنګ دې نو ډير خفه شو [چې هم ددې سړی غلطی ده معلوميږی چې جنګ کول ددې سړی عادت دې] خو بيا هم موسی ﷺ اراده اوکړه چې هغه فرعونی کس په دې اسرائيلی د حملې کولو څخه منع کړی . خو اسرائيلی ته يې دزجر په طور اووئيل چې تا پرون هم جنګ کړې وو او نن بيا په جنګ يې ، هم ته ظالم يې. اسرائيلی چې موسی ﷺ ته اوکتل چې ډير په غصه کښې دې لکه څنګه چې پرون په غصه کښې وو ، نو دموسی ﷺ الفاظو سره ورته شك شو چې هسې نه نن ما قتل نه کړی . نو زر يې د خلې څخه اووتل چې ته دا غواړې چې ما قتل کړې لکه څنګه چې دې پرون هغه کس قتل کړې وو.

ددې خبرو اترو څخه وروستو دوئ دواړه د بل څخه جدا شو ، خو کوم خلق چې د قاتل په تلاش کښې وو دې اسرائيلی هغوئ ته اووئيل چې يو پخپله موسی ﷺ ته اووئيل چې تا پرون سړې قتل کړې دې . داخبره د فرعون دربار ته زر تر زره اورسولې شوه . فرعون دموسی ﷺ قتل کولو پسې خپل سپاهيان اوليږل . دې سپاهيانو ته معلومه وه چې هغه به زمونږ څخه چرته بچ شی ډير په اطمينان سره د ښار په لويه لاره د موسی ﷺ په تلاش کښې روان وو. د موسی ﷺ په متبعينو کښې يو کس د ښار په لرې يوه حصه کښې اوسيدو هغه ته معلومه شوه چې د فرعون سپاهيان د موسی ﷺ د قتل کولو دپاره په تلاش کښې دی . هغه په کوڅو کوڅو لاړو او موسی ﷺ ته يې ددې خبر ورکړو.

دې ځائې ته چې اورسيدو نو ابن عباس ﷺ ابن جبير ته اووئيل چې اې جبير دا پنځمه واقعه د فتون يعنی آزمينبت ده چې مرګ يې په سرولاړووخو الله ﷻ ورته ددې څخه هم نجات ورکړو.

کله چې موسی ﷺ د اخبر واوريدو نو زر تر زره د ښار نه اووتلو او مدين طرفته روان شو. تر دې وخته پورې دوئ ﷺ په شاهی پرورش کښې وو او څه محنت مشقت يې نه ووکړې . مصر څخه چې اووتل نو اودريدل ځکه چې ورته لار هم نه وه معلومه. خو پخپل رب باندې يې بهروسه وه چې [عَسٰى رَبِّيْٓ اَنْ يَّهْدِيَنِيْ سَوَآءَ السَّبِيْلِ] يعنی اميد دې چې زما رب راته نيغه لار اوښائی کله چې د مدين ښار ته نزدې شو نود ښار څخه بهر يې په يو کوهی باندې ډير خلق راجمع اوليدل چې خپلو څناورو ته يې اوبه ورکولې . څه ګوری چې دوه جينکئ يو طرفته ولاړې دی او خپلې چيلې ورسره دی . موسی ﷺ ددې ښځو څخه تپوس اوکړو چې تاسو ولې ولاړې يې؟ هغوئ ورته اووئيل چې مونږ کښې ددې خلقو سره د مقابلې او مزاحمت طاقت نشته دې په دې وجه مونږ انتظار کوؤ چې کله دا ټول فارغ شی نو کومې اوبه چې پاتې شی هغه مونږ استعمال کښې راولو.

موسى عليه السلام چې دهغوئ دا شرافت اوليدونو پخپله يې دهغوئ دپاره د كوهي څخه اوبه راويستل شروع كړل. الله ﷻ ورته قوت او طاقت وركړې وو ، ډير زر دهغوئ چيلو اوبه اوڅكلې. دا ښځې خپلو چيلو سره خپل كور ته لاړې ، او موسى عليه السلام ديونې لاندې په سورى كښيناستو او الله ﷻ څخه يې دعا اوكړه چې [رَبِّ اِنِّيْ لِمَآ اَنْزَلْتَ اِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيْرٌ] يعنى اې ربه څه محتاج يم دهغه نعمت كوم چې ته ما ته راليږې. [مطلب دا وو چې د خوراك څكاك او خاني څه انتظام اوشي] دا جينكئ چې كله كور ته د وخت څخه مخكښې اورسيدلې حالانكه مخكښې به يې ډير وخت لګيدو ، نوددوئ پلار ډير حيران شو او تپوس يې ترې اوكړو چې نن خو څه نوې خبره ده. جينكو ورته د موسى عليه السلام د اوبه راويستلو او اوبو څكلو قصه بيان كړه. پلار يوې ته حكم اوكړوچې تاسو سره دا احسان چا كړې دې هغه راوله. هغې راوستلو. پلار يې دموسى عليه السلام څخه دهغوئ حالات معلوم كړل او وې فرمائيل چې [لَا تَخَفْ نَجَوْتَ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ] يعنى ته دخپل زړه څخه ويره اوباسه تاته د ظالمانو څخه نجات ملاؤ شوې دې. نه مونږ د فرعون په سلطنت كښې يو او نه په مونږ باندې حكم كولې شي.

اوس دې دواړو جينكو كښې يوې خپل پلار ته اووئيل چې [يٰٓاَبَتِ اسْتَاْجِرْهُ اِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَاْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْاَمِيْنُ] يعنى اې باباجانه ! دې خپل ځان سره نوكر كړه ځكه چې دې د نوكرئ دپاره بهترين كس دې ، قوى هم دې او امانت دار هم دې. پلار چې يې كله دا خبره واؤريدو نو په غيرت كښې راغلو چې زما لور ته دا څنګه معلومه شوه چې دې قوى هم دې و امين هم. تپوس يې اوكړو چې تاته ددهٔ قوت څنګه معلومات اوشو او تاته څنګه معلومه شوه چې دې امانتدار دې. جينئ ورته اووئيل چې كله دهٔ د كوهي څخه اوبه راويستلې نو راته ددهٔ د قوت اندازه اوشوه ځكه چې دهٔ د ټولو شپونكو څخه مخكښې خپل كار تر سره كړو. ددوئ عليه السلام برابرى بل څوك نه وو. اود امانت حال يې راته هغه وخت معلوم شو چې كله ما دې راؤبللو نو په اول نظر چې كله دوئ ته معلومه شو چې څه يوه ښځه ذات يم نو زر يې خپل سر لاندې كړو او تر هغه وخته پورې يې سر لاندې وو ترڅوچې مې ورته ستاسو پيغام نه وورسولې. دې څخه وروستو ئې اووئيل چې ما پسې روستو روستو رازه او د روستو څخه ماته لاره ښايه اودا خبره صرف په هغه كس كښې كيدې شي چې امانت دار وى. پلار يې د خپلې لور په دې عقلمنده خبره ډير خوشحاله شو او ددې تصديق يې اوكړو. او پخپله ورته هم دهغوئ عليه السلام باره د قوت او امانت يقين اوشو. [ دالله ﷻ رسول شعيب عليه السلام ] په وخت كښې موسى عليه السلام ته اووئيل چې آيا تاته دا منظور ده چې څه تاته په دې دواړو كښې يوه لور په نكاح كړم. خو شرط به په كښې دا وى چې ته به مونږ سره اته كاله مزدورى كوې ، او كه تا لس كاله پوره كول نو دا به ستا اختيار وى او بهتر به وى. خو په تا باندې دا پابندى نه لګوؤ هسې نه چې ته په مشقت كښې شې. موسى عليه السلام دا منظور كړل او ددې په وجه په موسى عليه السلام باندې اته كاله خدمت كښې لازم شو. اوباقى دوه كاله اختيارى وو. الله ﷻ په خپل پيغمبر موسى عليه السلام باندې هغه لس كاله وعده پوره كړه

سعيد بن جبير رحمه الله فرمائي چې يو ځل ماته يو نصرانى عالم ملاؤ شو ، هغه زما څخه تپوس اوكړو چې آيا تاته معلومه ده چې موسى عليه السلام په دوؤ نيتو كښې كومه يوه نيته پوره كړه. ما ورته اووئيل چې ما ته ددې علم نشته دې ځكه چې تر دغه وخت پورې ما دابن عباس رضي الله عنهما څخه دا حديث نه وو آؤريدلې. دې څخه وروستو زه ابن عباس رضي الله عنهما سره ملاؤ شوم نو هغوئ څخه

مي تپوس اوکړو. هغوئ اوفرمائيل چي اته کاله نيتهه يې پوره کول خو په موسى (ع) باندي واجب وو ، په دې کښې د کمى کولو څه احتمال نه وو. او په دې هم پوهيدل پکار دی چي الله ﷻ ته د خپل نبى (ع) اختيارى وعده پوره کول هم منظور وو، ځکه يې د لسو کالو ميعاد پوره کړو. دې څخه وروستو زما دې نصرانى عالم سره بيا ملاقات اوشو نو هغه ته مې دا خبر ورکړو ، هغه اووئيل چي تا د چا څخه دا خبره آؤريدلې ده هغه ستا څخه زيات لوې عالم دې. ما اووئيل چي آؤ بيشکه هغه ډير لوې عالم او مونږ ټولو څخه افضل دې .

[د لسو کالو د خدمت موده پوره کولو څخه وروستو کله چي ] موسى (ع) د خپلې بى بى سره د شعيب (ع) د وطن څخه رخصت شو نو په لاره کښې سخته يخنى وه ، شپه تياره وه ، لار ورته معلومه نه وه ، د بې وسئ په دې حالت کښې يې په کوه طور باندې اور اوليدو. بيا هلته ورغلو ، ډيرې عجيبه ننداري يې اوليدلې ، د عصا او يد بيضا معجزه ورکړې شوه ، اودې سره سره ورته د نبوت او رسالت منصب هم ورکړې شو ، [دا ټوله قصه په قرآن کښې مخکښې تيره شوې ده ] موسى (ع) سره فکر شو چي زه د فرعون په دربار کښې يو مفرور ګرځولې شوې يم ، ما څخه د قبطى د قصاص اخستلو حکم شوې دې. او راته دا حکم اوشو چي هغه ته ورشه او د رسالت پيغام ورته اورسوه. خپله ژبه کښې د لکنت عذر هم ورته وو، نو د الله ﷻ په دربار کښې يې عرض اوکړو. چي يا الله ما سره زما رور هم معاون جوړ کړه الله ﷻ ددوئ (ع) د فرمائش مطابق ددوئ رور هارون (ع) دوئ سره په رسالت کښې شريك کړو او ورته يې وحى اوليږله او دا حکم ورته اوشو چي د مصر ښار څخه بهر د موسى (ع) استقبال اوکړه. ددې مطابق موسى (ع) هلته اورسيدو. هارون (ع) سره يې ملاقات اوشو. دواړو رونړه د الله تعالى د حکم مطابق فرعون ته د حق دعوت ورکولو دپاره دهغه دربار ته اورسيدل ، څه وخت پورې خو هغوئ ته دربار ته دحاضريدو موقع ورنکړې شوه ، دواړه په دروازه کښې ايسار وو ، بيا په ډيرو پردو کښې لاړل او ورته د حاضرۍ اجازت ملاؤ شو. او دواړو فرعون ته اووئيل چي [اِنَّا رَسُوْلَا رَبِّكَ] يعنى مونږ دواړه ستا د رب دطرفه قاصدان او پيغمبران يو.

فرعون تپوس اوکړو چي [فَمَنْ رَّبُّكُمَا] يعنى تاسو اووايې چي ستاسو رب څوك دې؟ موسى (ع) اوهارون (ع) هغه خبره اوکړه د کومې چي قرآن پاك پخپله هم ذکر کړې دې [رَبُّنَا الَّذِيْٓ اَعْطٰى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى] په دې باندې فرعون اووئيل چي تاسو دواړه څه غواړئ ؟ او دې سره يې د قبطى واقعه هم ذکر کړه او په موسى (ع) باندې الزام اولګولو. او خپل کور کښې يې دهغه د پرورش په هغه باندې احسان هم اوکړو] موسى (ع) ورته د دواړو خبرو هغه جواب ورکړو چي کوم په قرآن کښې ذکر شوې دې. [يعنى د مقتول باره کښې يې د خپلې خطا اعتراف اوکړو او د ناواقفيت عذر يې ورته پيش کړو اوپه کور د پرورش کولواحسان باره کښې يې ورته اووئيل چي تا ټول بنى اسرائيل خپل غلامان جوړ کړى دى. او په هغوي باندې دې رنګ په رنګ ظلمونه کوې. ددې په نتيجه کښې زه د تقدير مطابق ستا کور ته راوستې شوم ، اوڅه چي الله ﷻ ته منظور وو هغه اوشو. په دې کښې ستا هيڅ احسان نشته دې. بيا موسى (ع) فرعون ته مخاطب شو او ورته يې اووئيل چي آيا ته په دې باندې راضى يې چي په الله ﷻ باندې ايمان راؤړې او بنى اسرائيل دخپلې غلامۍ څخه آزاد کړې. فرعون ددې څخه انکار اوکړو او ورته يې اووئيل چي که تاسره د خپل رب څه نخښه وى نو هغه راته اوښايه. موسى (ع) خپله

همسا په زمکه اوغورزوله نو دهغې څخه لويه بلا يعنى اژدها جوړه شوه ، چې خوله يې وازه وه او فرعون طرفته روانه شوه. فرعون ويريدو او دخپل تخت لاندې پټ شو ، او دموسى عليه السلام څخه يې پناه اوغوښتله چې دا راايساره کړه موسى عليه السلام هغه رااونيوله ، بيا يې خپل ترخ کښې لاس ورا ومندلو او هغه يې راؤښکلو نو هغه خليدو ، دا فرعون ته يې دويمه معجزه ښکاره کړه ، بيا يې دوباره خپل ترخ کښې لاس ورکړونو هغه خپل اصلي حالت کښې شو

فرعون ډير زيات پريشانه شو او خپلو درباريانو سره يې مشوره اوکړه [چې تاسو ګورئ چې دا څه قصه ده او مونږ ته څه کول پکار دى ] درباريانو ورته په جمع اوونيل چې [هيڅ فکره مه کوه ] دا دواړه جادوګران دى او د خپل جادو په ذريعه تا ددې ملك څخه ويستل غواړى. او ستا بهترين مذهب او دين ختمول غواړى [چې دهغوئ په نظر کښې د فرعون عبادت کول وو]

تاسو ددوئ هيڅ خبره مه منئ. [اوهيڅ فکر مه کوئ ] څکه چې ستا په ملك کښې لوئ لوئ جادوګران موجود دى، ته هغوئ راؤبله اودخپل جادوپه ذريعه به په هغوئ باندې غالب شئ

فرعون د خپل ملك په ټولو ښارونو کښې اعلان اوکړو چې څومره کسان په جادو کښې ماهر دى هغوئ دې دربار ته حاضر شى. د ټول ملك جادوګران راجمع شو. هغوئ فرعون څخه تپوس اوکړو چې ته چا سره په جادو کښې زمونږ مقابله کول غواړې هغه څه عمل کوى. هغه ورته اوونيل چې هغه د خپلې همسا څخه مار جوړوى ، جادوګرانو ورته ډير په بې فکرى سره اوونيل چې دا خو څه خبره نه ده. د لرګو او همساګانو څخه د مارانو جوړولو کوم فن چې مونږ ته راځى دهغې څوك مقابله نشى کولې. خو دا خبره د مخکښې صفا کړه که چرې مونږ وربانډې غالب شو نو مونږ ته به څه ملاويږى.

فرعون اوونيل چې که تاسو غالب شوئ نو زما د خاندان حصه او مقربينو څخه به اوګرځئ. او تاسو ته به هغه هر څه ملاويږى چې تاسو يې غواړئ

جادوګرانو د مقابلې کولو دپاره موسى عليه السلام سره وخت او ځاې مقرر کړو او دخپل اختره ورځ يې د څاښت وخت مقرر کړو. ابن جبير رحمه الله فرمائى چې ابن عباس رضي الله عنهما ما ته اوفرمائيل چې ددوئ يوم الزينة يعنى د اختر ورځ چې په دې کښې الله ﷻ موسى عليه السلام ته په دوئ غلبه ورکړه هغه د عاشورې يعنى دمحرم لسم تاريخ وو. کله چې ټول خلق په يو لوې ميدان کښې راجمع شو نو د فرعون خلقو خپلو کښې يو بل ته اوونيل چې [لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ السَّحَرَةَ إِن كَانُوا هُمُ الْغَالِبِينَ] يعنى مونږ ته پکار دى چې مونږ دې ځاې کښې پاتې شو که دا ساحر يعنى موسى عليه السلام او هارون عليه السلام په مونږ باندې غالب راشى نو مونږ هم په ده باندې ايمان راؤړو ددوئ داخبرې دې حضراتو سره د خندا او ټوقو په طور وې. [دا غالب ګمان وو چې مونږ به غالب راځو]

د مقابلې ميدان ښه ښائسته کړې شو جادوګرانو موسى عليه السلام ته خطاب اوکړو چې اول ته څه راواچوه [يعنى خپل سحر اوښايه] يا که مونږ شروع اوکړو. موسى عليه السلام اوونيل چې تاسو شروع اوکړئ. خپل جادو اوښايئ. دې خلقو خپل لرګى او رسئ په زمکه باندې راګوزارې کړې او وې وئيل چې [بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ إِنَّا لَنَحْنُ الْغَالِبُونَ] يعنى د فرعون په خاطر مونږ به غالب راځو. [دا لرګى او رسئ داسې ښکاريدې لکه چې روانې وى ] ددې په کتلو سره په موسى عليه السلام يو ويره شان راغله. [فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ خِيفَةً مُّوسَىٰ] الله ﷻ موسى عليه السلام ته د وحى په ذريعه حکم اوفرمائيل چې خپله عصا ګوزاره کړه. موسى عليه السلام خپله عصا ګوزاره کړه نو دهغې څخه يوه اژدها او بلا جوړه شوه

چې خلې يې وازه وه ، دې اژدها او بلا هغه هرڅه تير كړل كوم چې هغه جادوګرانو د رسوا او لرګو څخه جوړ كړي وو.
فرعوني جادوګران د فن ماهر وو ، كله چې يې دا قصه اوكتله نو ددوئ يقين اوشو چې د موسى ﷺ د عصا د اثر په جادو سره نه دې بلكه دالله ﷻ دطرفه دې . په دې وجه جادوګرو هم په هغه وخت اعلان اوكړو چې مونږ په الله ﷻ باندې او د موسى ﷺ په راوړى دين باندې ايمان راوړو ، او مونږ د خپل رومبو خيالاتو او عقائد څخه توبه كوؤ. داشان الله ﷻ د فرعون اوهغه د ملګر ملا ماته كړه او هغوئ چې كوم چل جوړ كړې وو هغه ناكام شو .[فَغُلِبُوْا هُنَالِكَ وَانْقَلَبُوْا صٰغِرِيْنَ] فرعون ددۀ ملګرى مغلوب شواو ذلت او رسوائ سره د ميدان څخه واپس شو.
په كوم وخت كښې چې دا مقابله روانه وه نو د فرعون ښځې زړې جامې واغوستې او الله ﷻ څخه يې د موسى ﷺ د مدد دپاره دعا كوله . او د آل فرعون خلقو دا ګڼړل چې ګنى دا دفرعون د حالت په وجه پريشانه ده اود هغه دپاره دعا كوى حالانكه ټول غم او فكر د موسى ﷺ دپاره وو [او هم دهغه د غالب كيدو دپاره يې دعا كوله] دې نه پس چې كله به موسى ﷺ څه معجزه ښودله او د الله ﷻ دطرفه به په وربانديې حجت ختم شو نو هم په هغه وخت به يې وعده كوله چې بنى اسرائيل به تا سره اوليږم. خو كله چې به د موسى ﷺ په دعا سره هغه عذاب لرې شو نو د خپلې وعدې خلاف به يې اوكړل. اودا به ئې ووئيل چې ستا رب څه بله نخښه ښودلې شى . دا سلسله روانه وه چې الله ﷻ دفرعون په قوم باندې طوفان ، د مولخانو عذاب ، په جامو كښې د سپږو كيدو عذاب او په لوښو كښې او په خوراك كښې د چيندخانو او وينې وغيره عذابونه مسلط كړل . اودا ټول قرآن كريم د آيات مفصلات په عنوان سره بيان كړى دى . او د فرعون دا حال وو چې كله به پرې عذاب راغلو او ددې د مقابلې كولو توان به په كښې نه وو نو موسى ﷺ ته به يې سوال اوكړو چې دا عذاب لرې كړه نو مونږ وعده كوؤ چې بنى اسرائيلو ته به آزادي وركړو. بيا كله چې به عذاب ختم شو نو وعده خلافى به يې اوكړه . تر دې چې الله ﷻ موسى ﷺ ته حكم اوفرمائيلو چې خپل قوم بنى اسرائيل ځان سره واخله او مصر څخه اوځه موسى ﷺ دا ټول ځان سره واخستل او د شپې په وخت كښې د مصر څخه اووتلو. كله چې سحر فرعون ته ددې معلومات اوشو نو خپل فوج يې راجمع كړو او ددوئ په تعاقب كښې يې اوليږلو ، بل طرفته الله ﷻ هغه درياب ته حكم اوفرمائيلو كوم چې د موسى ﷺ او بنى اسرائيلو لار كښې راتلو چې كله موسى ﷺ تا په عصا باندې اووهى نو په درياب كښې دولس لارې جوړيدل پكار دى چې په دې د بنى اسرائيلو دولس قبيلې تيرې شى . او كله چې دا [قبيلې] تيرې شى نو ددوئ په تعاقب كښې چې كوم خلق راروان دى په هغوئ باندې بيا يو ځائې كيدل پكار دى .
كله چې موسى ﷺ درياب ته نزدې اورسيدو نو دا ورته ياد نه وو چې درياب به د عصا وهلو سره به په دې كښې لارې پيدا شى . او ددوئ قوم دوئ ﷺ ته فرياد اوكړو چې [اِنَّا لَمُدْرَكُوْنَ] يعنى مونږ خو ګير شو [څكه چې فرعون يې اوليدو چې د وروستو څخه راروان وو او مخكښې درياب وو] نو په دې وخت كښې موسى ﷺ ته دالله ﷻ وعده ياده شوه چې درياب په عصا سره وهلو سره به دې كښې لارې پيدا شى . او زر يې درياب په عصا باندې اووهلو. دا هغه وخت وو چې د بنى اسرائيلو د وروستو حصې فوج سره د فرعون رومبى حصه يو ځائې

شوې وه. د موسی عليه السلام معجزې سره درياب په عصا وهلو سره د الله جل جلاله د وعدې مطابق دولس لارې په کښې جوړې شوې او موسی عليه السلام او ټول بني اسرائيل په دې لارې تير شو. کله چې د فرعون فوج لارې اوکتلې نو خپل آسونه او پيادل فوج يې ددوئ په تعاقب کښې درياب کښې داخل کړل، نو د درياب مختلفې ټکړې د الله جل جلاله په امر سره يو ځايې شوې. کله چې موسی عليه السلام او بني اسرائيل بل طرفته پورې وتل نو ددوئ عليه السلام اصحابو اووئيل چې مونږ سره دا فکر دې چې هسې نه دوئ سره فرعون نه وی غرق شوې او خپل ځان يې بچ کړې وی. نو موسی عليه السلام دعا اوفرمائيله چې مونږ باندې د فرعون هلاکت واضح کړه. د الله جل جلاله قدرت د فرعون لاش د درياب څخه بهر راګوزار کړو. او ټولو په خپلو سترګو دهغه د هلاکت حال اوليدو.

دې څخه وروستو په لارې کښې بني اسرائيل موسی عليه السلام سره په يو داسې قوم باندې تير شو چې هغوئ پخپلو لاسو د جوړ کړی بتانو عبادت کولو. نو دې بني اسرائيلو موسی عليه السلام ته اووئيل چې [يٰمُوْسَى اجْعَلْ لَّنَآ اِلٰهًا كَمَا لَهُمْ اٰلِهَةٌ قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيْهِ] يعنې ايې موسی عليه السلام مونږ دپاره هم يو داسې معبود جوړ کړه لکه څنګه چې دوئ جوړ کړی دی. موسی عليه السلام ورته اووئيل چې تاسو خو ډير عجيبه قوم يې چې دجهالت خبرې کوئی. داکوم خلق چې د بتانو عبادت کوی ددوئ عبادت تباه کيدونکې دې. [موسی عليه السلام اوفرمائيل چې] تاسو د خپل رب دومره زياتې معجزې او انعامات اوکتل اوبياهم ستاسو دجاهلانو خيالات بدل نشو. دې وئيلو سره موسی عليه السلام سره د خپلو ملګر مخکښې لاړو اويو ځائې کښې يې پړاؤ واچولو او وې فرمائيل چې تاسو ټول دې ځايې کښې ايسار شئ. څه رب ته ورځم، ډيرش ورځې پس به واپس راځم. اوزما څخه وروستو به هارون عليه السلام زما خليفه اونائب وی. په هر کار کښې د هغه خبره منئ. موسی عليه السلام ددوئ څخه لاړو او کوه طور ته يې تشريف يوړو. [او دالله جل جلاله د ارشاد مطابق] يې مسلسل ديرش روژې اونيولې چې ددې څخه وروستو دالله جل جلاله د کلام څخه مستفيد شي. خومسلسل ديرش روژو نيولو سره د خلې څخه چې کومه بد بوئی خيژی [نو هغه دموسی عليه السلام د خولې مبارکې څخه هم ختلونو] په دې وجه ورسره فکر شو چې دې بدبوبوئی سره به د الله جل جلاله سره څنګه کلام کوم او دا خو نامناسب دی، نو غر په وښوباندې يې مسواك اوکړو او خوله يې صفا کړه. کله چې دحق دربار کښې حاضر نو د الله جل جلاله دطرفه ورته ارشاد اوشو چې تا افطار ولې کړې دې [او الله جل جلاله ته معلوم وو چې موسی عليه السلام څه خوړلی څکلی نه دی بلکه صرف خوله يې صفا کړې ده او دې ته يې د پيغمبرانه امتياز په لحاظ سره افطار اووئيل] موسی عليه السلام په دې حقيقت د پوهيدو څخه وروستو عرض اوکړو چې اې زما ربه! زما دا خيال راغلو چې تا سره د کلام کولو دپاره دخپلې خولې بد بوئی صفا کړم. حکم اوشو چې اې موسی عليه السلام تا ته څه معلومه ده چې د روژه دار دخولې دغه بوئی ما ته مشکو خوشبو څخه زياته محبوب ده. اوس ته واپس لاړشه اولس روژې نورې اونيسه اوبياماته راشه، موسی عليه السلام دحکم تعميل اوکړو.

بل طرفته کله چې د موسی عليه السلام قوم بني اسرائيلو دا اوکتل چې موسی عليه السلام د ديرشو ورځو پوره کيدو باوجود هم واپس رانغلل نو ډير خفه شو، بل خوا هارون عليه السلام دموسی عليه السلام د تللو څخه وروستو قوم ته يو تقرير اوکړو چې تاسو د فرعون د خلقو څخه ډير ګيزونه د قرض په طور غوښتلې وو، هغه تاسو سره دی، يا هغوئ تاسو سره څه امانت ايښودی دی، او هغه تاسو ځان سره راوړی دی، اګر چې ستاسو به هم ډير ګيزونه د فرعون قوم سره امانت او قرض

اېښودي وو ، او ستاسو دا ګمان دې چې مونږ دا ځيزونه د خپلو هغه ځيزونو په بدله کښې ځان سره اېښودي دي کوم چې مونږ هغوئ سره اېښودي وو، خو دا حلال نه ګڼړم چې تاسو دهغوئ امانتونه او قرضونه پخپله استعمال کښې راولئ . او مونږ دا واپس کولې هم نشو. په دې وجه يوه کنده يې اوويستله او حکم يې اوفرمائيلو چې دا ځيزونه که زيورات يعني کالي وی اوکه نور ځيزونه وي ټول په دې کنده کښې واچوئ . [دې خلقو ددې حکم تعميل اوکړو] هارون عليه السلام دې ټول سامان تـه اور واچولو او دا ټول اوسوزيدو ، او وې فرمائيل چې اوس نـه دا ستاسو اونه د هغوئ.

دوئ سره سامري نومې يو داسې کس وو چې دهغه تعلق داسې قوم سره وو چې هغوئ بـه د غوا عبادت کولو . دده تعلق د نبي اسرائيلو سره نه وو. خو کله چې موسى عليه السلام او بني اسرائيل د مصر ځخه اووتل نو دې هم ورسره روان شو، اتفاقي طور ده يوه عجيبه واقعه اوليده ، ده د [جبرائيل عليه السلام] يو اثر اوليدو [يعنى چې کوم ځائې کښې بـه يې قدم اېښودو نو هغه ځائې کښې بـه يو ژوند او لوندوالې پيدا کيدو] ده دهغې ځخه يو موټي خاوره راواخستله او دا يې په لاس کښې وه چې هارون عليه السلام سره يې ملاقات اوشو ، د هارون عليه السلام خيال راغلو چې دده په لاس کښې د فرعوني کالې وغيره دې ، ده ته يې اووئيل چې ځنګه ټولو خلقو دې کنده کښې هر ځه اچولي دي ته هم دې کښې دا واچوه . ده اووئيل چې دا خو د رسول [يعنى جبرائيل عليه السلام] د قدم خاوره ده او هغه تاسو د درياب ځخه راپورې ويستي يې . او زه دا په دې کښې نه اچوم سوا ددې ځخه چې تاسو دعا اوفرمائي چې دا ځه د ځه مقصد دپاره اچوم چې هغه مقصد پوره شي . هارون عليه السلام ورسره د دعا وعده اوکړه .نو دهٔ هغه موټئ د خاورې اوغورزولو. د وعدې مطابق هارون عليه السلام دعا اوفرمائيله چې يا الله دا سامري چې ځه غواړي هغه پوره کړې . هرکله چې هارون عليه السلام دعا اوفرمائيله نو دهٔ اووئيل چې ځه دا غواړم چې دا سره زر ، چاندي ، اوسپنه ، پيتل او ځه چې په دې کنده کښې دی ، ددې ځخه يو د غوا بچې [سخې] جوړ شي . هارون عليه السلام دعا کړې وه او هغه قبوله شوې هم وه . په دې کښې چې ځه تانبا او پيتل وغيره غورزولې شوی وو ، ددې ځخه يو د غوا بچې [سخې] جوړ شو او په دې کښې روح نه وو خود غوا پشان آواز بـه يې کولو . ابن عباس رضي الله عنهما ددې روايت د نقل کولو په وخت اوفرمائيل چې والله ! هغه ځه د ژوندې آواز نه وو بلکه هوا بـه ددې روستئ باندې داخليده او مخکښې حصه باندې بـه ترې وتله نو دهغې ځخه بـه دا آواز پيدا کيدو.

دې عجيبه واقعې کتلو سره د بني اسرائيلو قوم په ډيرو فرقو کښې تقسيم شو. يوې فرقې سامري ځخه تپوس اوکړو چې دا ځه دی ؟ نو هغه ورتـه اووئيل چې دا ستاسو خدائ دې خو موسى عليه السلام غلط شوې دې او بله لاره يې اختيار کړې ده . يوې فرقې اووئيل چې مونږ د موسى عليه السلام د راتلو پورې د سامري ددې خبرې تکذيب نشو کولې . که واقعي دا زمونږ خدائ وې نو هسې نـه چې ددهٔ په مخالفت کولو سره مونږ ګناهګار شو. اوکه دې خدائ نه وی نو مونږ د موسى عليه السلام د قول تصديق کوؤ.

يوې بلې فرقې اووئيل چې دا ټول شيطاني دهوکه ده ، دا زمونږ خدائ نه دې . نه مونږ په ده باندې ايمان راوړلې شو او نه ددهٔ تصديق کولې شو. د يوې بلې فرقې په زړه دې خبرې ځائې اونيولو او هغوئ دسامري خبره اومنله او دا [سخې] يې خپل خدائي اومنلو.

هارون ؑ کله چې دا فساد اولیدو نو وې فرمائیل چې [يٰقَوْمِ اِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهٖ وَاِنَّ رَبَّكُمُ الرَّحْمٰنُ فَاتَّبِعُوْنِيْ وَاَطِيْعُوْٓا اَمْرِيْ] یعنی زما قومه تاسو په فتنه کښې اخته شوئ ، بیشکه ستاسو رب او خدائ خو رحمن ذات دې ، تاسو زما تابعداری اوکړئی او زما حکم اومنئ. دوئ ترې تپوس اوکړو چې دا اووایه چې په موسی ؑ باندې څه اوشو چې د دیرشو ورځو وعده یې کړې وه او وعده خلافي یې اوکړه او اوس خو د هغه څلویښت ورځې پوره کیږی. په دوئ کښې څو بې وقوفانو اووئیل چې موسی ؑ څخه خپل رب هیر شوې دې د هغه په تلاش کښې دې.

بل طرفته کله چې د موسی ؑ څلویښت ورځې پوره شوې او الله ﷻ سره یې خبرې اوکړې نو الله ﷻ ورته ددې فتنه خبر ورکړو چې ستا قوم پدې کښې اخته شوې دې. [فَرَجَعَ مُوْسٰٓى اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا] موسی ؑ دهغه ځایې څخه ډیر په غصه او د افسوس په حالت کښې واپس شو.

او چې کله راغلو نو هغه خبرې یې اوکړې کومې چې تاسو په قرآن کښې وایې: [وَاَلْقَى الْاَلْوَاحَ وَاَخَذَ بِرَاْسِ اَخِيْهِ يَجُرُّهٗٓ اِلَيْهِ] یعنی موسی ؑ د ډیرې غصه څخه خپل رور هاورن ؑ د سر د ویښتو څخه اوونیولو او هغه الواح د تورات چې د کوه طور څخه یې راوړې وو هغه یې ورته په لاسونو کښې کیښودې ، او چې کله یې غصه سړه شوه نو د خپل رور عذر یې معلوم کړو او هغه یې قبول کړو ، او د هغه دپاره یې د الله ﷻ څخه استغفار اوغوښتلو. بیا سامری ته ورغلو او ورته یې اووئیل چې تا داسې حرکت ولې اوکړو ، هغه جواب ورکړو چې [فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ اَثَرِ الرَّسُوْلِ] یعنی ما د رسول [د جبرائیل ؑ] د قدمونو خاوړې راپورته کړې وې ، او څه په دې پوهه شوې ووم چې دا په کوم څیز باندې واچولې شی نو په هغې کښې به دژوند آثار راپیدا کیږی. خو ما د اخبره ستاسو څخه پټه کړې وه. [فَنَبَذْتُهَا وَكَذٰلِكَ سَوَّلَتْ لِيْ نَفْسِيْ] یعنی ما داخاوړه [په کالو وغیره باندې واچوله] زما نفس ماته دا کار ښائسته کړې وو.

[قَالَ فَاذْهَبْ فَاِنَّ لَكَ فِي الْحَيٰوةِ اَنْ تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ وَاِنَّ لَكَ مَوْعِدًا لَّنْ تُخْلَفَهٗ وَانْظُرْ اِلٰٓى اِلٰهِكَ الَّذِيْ ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا لَنُحَرِّقَنَّهٗ ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهٗ فِي الْيَمِّ نَسْفًا] یعنی موسی ؑ سامری ته اووئیل چې اوس ستا سزا داده چې ته به ټول عمر دا وایې چې ما ته دې څوك لاس نه راوړی ، [ګنی هغه به هم په عذاب کښې راګیر شی] او ستادپاره یوه موده مقرر ده چې دهغې خلاف به نشې کولې ، او په ژوند کښې به دربانډې د اعذاب وی. او خپل هغه معبود ته اوګوره چې تا یې عبادت کړې دې ، مونږ به هغه اوسیزو او دهغه ایره به په دریاب کښې واچوؤ. که چرې دې خدائ وې نو مونږ ته به په دې عمل باندې قدرت نه وو حاصل شوې.

په هغه وخت کښې بنی اسرائیلو په دې باندې پوهه شو چې مونږ په فتنه کښې اخته شوی وو. او ټولو دهغه جماعت تائید اوکړو کوم چې د هارون ؑ خبره منلې وه. [یعنی دې زمونږ خدائ نشی کیدې] کله چې بنی اسرائیلو ته معلومه شوه چې مونږ خو ګناه کړې ده نو موسی ؑ ته یې اووئیل چې د خپل رب څخه دعا اوغواړه چې زمونږ دپاره د توبې دروازه بیرته کړی اوزمونږ توبه قبوله کړی.

موسی ؑ د خپل قوم داسې اویا صالحان یعنی نیکان منتخب کړل چې په ټول قوم کښې نیکان وو. او د سخی عبادت یې هم نه وو کړې. او په دې انتخاب یې ډیر د احتیاط څخه کار واخستلو. دا اویا کسان صالحان یې خان سره واخستل او کوه طورته روان شو، چې الله ﷻ ته ددوئ د توبې باره کښې عرض اوکړی. کله چې موسی ؑ کوه طور ته اورسیدو نو په زمکه

زلزله راغله . او دې سره موسى ﷺ ډير خفه شو. په دې وجه عرض يې اوكړو چې [رَبِّ لَوْ شِئْتَ أَهْلَكْتَهُم مِّن قَبْلُ وَإِيَّايَ أَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَاءُ مِنَّا] يعنى اې ربه ! كه ته دوئ هلاكول غوارې نو دا وفد به دې د راتلو څخه وړاندې هلاك كړې وې او زه به دې هم ورسره هلاك كړې وې ، آيا ته مونږ په دې وجه هلاكوې چې په مونږ كښې څه بې وقوفانو ګناه كړې ده.او د دې زلزلې اصل وجه دا وه چې پدې وفد كښې اوس هم داسې خلق شامل وو چې هغوئ د سخى عبادت كړې وو او د هغوئ په زړونو كښې د سخى دعبادت أهميت وواګرچې موسى ﷺ به تفتيش او تحقيق كړې وو.

د موسى ﷺ د دې دعا په جواب كښې ارشاد اوشو چې : [وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ فَسَأَكْتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَالَّذِينَ هُم بِآيَاتِنَا يُؤْمِنُونَ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِندَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ] يعنى الله ﷻ اوفرمائيل چې زما رحمت خو ټولو د پاره دې ، او زر ده چې زه د خپل رحمت [پروانه] اوليكم د هغه خلقو د پاره چې تقوى اختياروى او زكاة وركوى او چې زمونږ په آيتونو باندې ايمان راوړى ، اوچې اتباع كوى د هغه رسول چې امى دى او دده ذكر په تورات كښې او انجيل كښې هم دوئ ته ملاويږى .

دې آوريدو سره موسى ﷺ عرض اوكړو چې اې زما ربه ! ماستاڅخه دخپل قوم د توبې باره كښې عرض كړې وو ، اوتا زما د قوم څخه علاوه د بل قوم باره كښې د رحمت باره كښې اوفرمائيل ، بيا تا ولې زما پيدائش مؤخر نه كړو چې زه دې هم د هغه نبى په امت مرحومه كښې پيدا كړې وې ، په دې باندې د الله ﷻ د طرفه د بنى اسرائيلو د توبې د قبليدو يوه بله طريقه ارشاد اوفرمائيلې شوه ،[او هغه دا چې ] د دوئ د توبې قبليدو يو صورت دې چې په دوئ كښې هر كس خپلو متعلقينو څخه پلار يا زوئ چې چا سره ملاؤ شى نو هغه دې په تور باندې قتل كړى ، په هغه ځائې كښې كوم ځائې كښې چې د سخى عبادت شوې وو.

دې وخت كښې د موسى ﷺ هغه ملګرى چې موسى ﷺ ته معلوم نه وو او دوئ يې بې قصوره ګڼړلى وو خو په حقيقت كښې د هغوئ په زړونو كښې د سخى د عبادت جذبه اوس هم وه. هغوئ هم په خپل زړه كښې ډير پښيمانه شو ، او هغوئ هم په دې سخت حكم باندې عمل اوكړو كوم چې د دوئ د توبې د كفارې د پاره نافذ شوې وو[يعنى د خپلو عزيزانو او رشته دارو قتلول] اوكله چې هغوئ په دې باندې عمل اوكړو نو الله ﷻ د قاتل او مقتول دواړو ګناه معاف كړه . دې څخه وروستو موسى ﷺ د تورات هغه الواح راواخستې كومې چې يې دلاسه ايښودې وى او ارض مقدس يعنى شام طرفته راغلو . اودوئ په لار كښې په يو داسې قوم باندې تير شو چې په هغوئ باندې د جبارينو قبضه وه ، اود هغوئ شكل وصورت ډير هيبت ناك وو ، او دوئ ته دهغوئ د ظلم او بربريت ډيرې قصې اوكړې شوې . [موسى ﷺ دې ښار ته داخليدل غوښتل خو كله چې بنى اسرائيلو د دې خلقو عجيبه عجيبه حالات واوريدل نو ويريدل او] وې وئيل چې په دې ښار كښې خو ډير جبارين او ظالمان خلق دى او مونږ كښې د دوئ د مقابلې كولو همت نشته دې . او مونږ دې ښار ته تر هغه وخته پورې نه داخليږو تر څو چې په دې كښې دا جبارين موجود وى . خو چرې دوئ د دې ځائې نه اووځى نو بيا مونږ دې ته داخليدو د پار تيار يو.

[قَالَ رَجُلَانِ مِنَ الَّذِينَ يَخَافُونَ] د دې روايت په راويانو كښې يو يزيد بن هارون هم دې . د هغه څخه تپوس اوشو چې آيا ابن عباس ﷺ د دې آيت مبارك قراءت هم داشان كړې دې نو هغه اووئيل

چې آوۍ. ابن عباس رضي الله عنهما داشان کړې دي. د [رَجُلَانِ مِنَ الَّذِينَ يَخَافُونَ] څخه مراد د جبارين د قوم دوه کسان دي ددې ښار څخه راغلي وو او په موسى عليه السلام باندې يې ايمان راوړې وو. هغوئ چې د بني اسرائيلو دا پريشاني اوفکرمندي اوکتله نو وې وئيل چې مونږ ته دخپل قوم د حالاتو ښه خبر دې، تاسو ددوئ د جسامت او غټو بدنونو او ددوئ د ډير شمير څخه ويريږئ، حقيقت دادې چې په دوئ کښې د زړۀ قوت نشته دې، اونه په دوئ کښې د مقابلې کولو قوت شته دې، تاسو خو لږ ددې ښار دروازې پورې لاړ شئ گورئ چې دوئ څنګه وسله غورزوي او تاسو به په دوئ باندې غالب شئ.

او ځينو د [رَجُلَانِ مِنَ الَّذِينَ يَخَافُونَ] تفسير داسې کړې دې چې دموسى عليه السلام په قوم کښې دا دوه کسان د بني اسرائيلو وو. [قَالُوا يَامُوسَى إِنَّا لَنْ نَدْخُلَهَا أَبَدًا مَا دَامُوا فِيهَا فَاذْهَبْ أَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ] يعني بني اسرائيلو ددې دواړو کسانو د نصيحت آوريدو څخه پس بياهم اووئيل چې اې موسى عليه السلام مونږ به دې ښار ته هغه وخته پورې نه داخليږو تر څو چې جبارين په دې کښې موجود وي، که ته دوئ سره مقابله کول غواړې نو ته او ستا رب دې لاړ شي او دوئ سره دې جنګ اوکړي مونږ به دلته ناست يو.

موسى عليه السلام د الله ﷻ د بې شميره انعاماتو کولو باوجود د خپل قوم دا سرکشي کتله، خو ډير د صبرمظاهره يې کوله. کله يې هم ددوئ دپاره بد دعا اونه کړه. دې وخت کښې موسى عليه السلام ددوئ د خراب اوسخت جواب په وجه ډير زيات خفه شو، او ددوئ دپاره يې بد دعا اوکړه. ددوئ په حق يې د فاسقين الفاظ استعمال کړل. الله ﷻ د موسى عليه السلام دعا قبوله کړه او ددوئ نوم يې فاسقين کيښودو. اودا خلق يې ددې مقدس زمکې څخه څلويښت کاله محروم کړل. او پدې کښې وسيع ميدان کښې دوئ داسې قيد کړل چې سحر نه تر ماښامه پورې به يې سفر اوکړو خو هيڅ قرار ورته نه وو.

خو څونکه د الله ﷻ نبي موسى عليه السلام هم دوئ سره وو نو پدې باندې ددوی د سزا په دوران کښې الله ﷻ د موسى عليه السلام په برکت سره خپل انعامات جاري اوساتل، دوئ به په دې ميدان تيه کښې چې کوم طرفته تلل نو ددوئ په سرونو باندې به وريځ وه، ددوئ خوراك دپاره يې من او سلوی نازل کړی وو، ددوئ جامې به معجزانه انداز سره نه ګنده کيدې اونه به شليدې. او دوئ ته يو مربع کاڼړۍ ورکړې وو او موسى عليه السلام ته يې حکم کړې وو چې کله دوئ ته د اوبو ضرورت شي نو دا کاڼړۍ په خپله عصا باندې اووهه نو دې څخه به دولس چينې روانې شي. د کاڼړي هر طرف څخه به درې درې چينې روانې وې. اود بني اسرائيلو په دولس قومونو کښې دا چينې متعين کيدو نه پس تقسيم کړې شوې وې چې خپلو کښې په دې جنګ اونه کړي، او کله چې به دې خلقو مزل کول او بو ځائې کښې به يې پړاو واچولونو دا کاڼړۍ به هلته موجود وو [قرطبي][1]

ابن عباس رضي الله عنهما دا حديث مبارك مرفوع کړې دې او د نبي کريم ﷺ ارشاد يې ګرځولې دې، او زما په نزد دا درست دې، څکه چې معاويه رضي الله عنه دابن عباس رضي الله عنهما څخه دا حديث د روايت په وخت کښې آوريدلې دې. اودا خبره يې منکره اوغلطه ګرځولې ده چې موسى عليه السلام چې کوم

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۴۲۰] تفسير سورة البقرة

قبطي قتل كړي وو او دفرعون قوم ته هغه معلوم نه وو نو دهغه مخبري دې بل فرعوني سړي كړې وه. كوم سره چې بله ورځ دا اسرائيلي په جګړه وو. وجه دا وه چې دې فرعوني ته خو ددې پروني د قتل د واقعې علم نه وو، هغه به ددهٔ مخبري څنګه كوله ، ددې معلومات خو صرف ددې جنګ كولو والا اسرائيلي ته وو.

كله چې معاويه دهغوئ ددې حديث څخه انكار اوكړو نو ابن عباس رضي الله عنهما په غصه شو ، او معاويه رضي الله عنه يې د لاس څخه اونيولو او سعد بن مالك زهري رضي الله عنه ته يې بوتلو ، او هغه ته يې اووئيل چې اې ابو اسحاق آيا تاته دا ياد دي چې كله مونږ ته نبي كريم ﷺ د قتيل موسى عليه السلام باره كښې حديث مبارك بيان فرمائيلې وو، ددې راز ښكاره كولو والا او فرعون ته مخبري كولو والا سړې اسرائيلي وو او كه فرعوني ؟ سعدبن مالك اووئيل چې هغه فرعوني وو څكه چې هغه د اسرائيلي څخه آوريدلي وو چې پرون كومه دقتل واقعه شوې وه هغه د موسى عليه السلام دلاسه شوې وه. اوهغه فرعون ته ددې خبرې ګواهي وركړه. امام نسائي رحمه الله دا پوره اوږد حديث پاك په خپل كتاب سنن كبرى كښې په كتاب التفسير كښې نقل كړې دې.[1]

اودا پوره حديث پاك ابن جرير طبري په خپل تفسير كښې او ابن ابي حاتم هم په خپل تفسير كښې هم ددې زيد بن هارون په سند سره نقل كړې دې او وئيلې يې دي چې دا حديث پاك مرفوع نه دې بلكه د ابن عباس رضي الله عنهما خپل كلام دې ، او دا هغه د كعب بن احبار دهغه داسرائيلي رواياتو څخه اخستي دي چې دهغې نقل كول او بيانول يې جائز ګرځولي دي. خو په دې حديث پاك كښې ځينې ځينې ځايونو كښې د مرفوع حديث جملې هم شته دې. امام ابن كثير رحمه الله پخپل تفسير كښې دا پوره حديث مبارك او په دې باندې مذكور الصدر تحقيق او تصديق ليكلو څخه وروستو ليكي چې زمونږ شيخ ابوالحجاج مزي به هم د ابن جرير او ابن ابي حاتم پشان دا روايت موقوف دا ابن عباس رضي الله عنهما كلام ګرځولو. انتهى [ تفسير ابن كثير از ۱۴۸ تا ۱۵۳ ج:۳]

**دموسى عليه السلام ددې مذكوره قصې حاصل شوى نتائج او عبرتونه او اهم فوائد:** قرآن پاك د موسى عليه السلام د قصې دومره اهتمام كړې دې چې په اكثرو سورتونو كښې ددې څه نه څه ذكر كيږي. اوددې وجه داده چې دا قصه په ډيرو عبرتونو ، حكمتونو او دالله ﷻ په ډيرو عجيبه عجيبه قدرتونو باندې مشتمله ده. اودې سره د انسان ايمان تازه كيږي. او په دې كښې عملي او اخلاقي هدايتونه هم بې شميره دي. نو دې ځائې كښې دا قصه ډير په تفصيل سره راغلې ده نومناسب دي چې ددې لاندې په عبرتونو او حكمتونو او هدايتونو باندې مشتمل څه بحث اوشي.

**د فرعون احمقانه تدبير او په دې باندې د الله ﷻ حيران كن رد عمل:** كله چې فرعون ته دا معلومه شوه چې بني اسرائيلو كښې به يو هلك پيدا كيږي چې هغه به د فرعون دسلطنت دزوال سبب جوړيږي نو داسرائيلي هلكانو د قتل كولو حكم يې جاري كړو. او بيايې د خپل سلطنت د ذاتي مصلحت دپاره يو كال د ماشوماتو دقتل كولو اوبل كال دنه قتل كولو حكم اوكړو. الله ﷻ په دې باندې قادر وو چې موسى عليه السلام يې په هغه كال پيدا كړې وې چې په كوم كال ماشومان نه قتل كيدل. خو الله ﷻ ته دا منظور وو چې دې احمق دا كوم تدبير كړې دې هم دا په ده باندې الټه كړي او ددهٔ څخه ښهٔ بې وقوف جوړ كړي. په دې وجه يې موسى عليه السلام په هغه كال پيدا كړو

---

[1]) السنن الكبري للنسائى رقم الحديث [۱۱۳۲۶]

کوم چې د ماشومانو دقتل کولو کال وو. او خپلې حکمت بالغه سره يې صورت حال داسې جوړ کړو چې د موسی ﷺ پرورش هم ددې ظالم او جابر په کور کښې اوکړي. فرعون او ددهٔ ښځې موسی ﷺ سره د محبت په وجه اوپاللو. د ټول ښار اسرائيلي ماشومان د موسی ﷺ په شك کښې قتل کيدل. او موسی ﷺ د فرعون په کور کښې ډير په عزت او احترام سره د فرعون په خرچ پرورش کيدلو.

در به بندو دشمن اندر خانه بود حيلهٔ فرعون زين افسانه بود(1)

**د موسی ﷺ په مور بي بي باندې يو معجزانه انعام او د فرعوني تدبير يو بل انتقام:** که موسی ﷺ د نورو ماشومانو پشان د بل چا پئ قبول کړې وې نو بيا به ددوئ ﷺ پرورش د فرعون په کور کښې ډير په احترام او عزت سره کيدو خو د موسی ﷺ مور بي بي به ددوئ ﷺ په جدا والي باندې ډيره پريشانه وه او موسی ﷺ ته د يوې کافرې ښځې پئ ملاويدل. الله ﷻ خپل پيغمبر ﷺ د کافرې ښځې د پئيو څخه هم بچ کړو او ددهٔ مور بي بي يې هم د جدا والي د عذاب څخه بچ کړه. او بچ کيدل هم د اسې چې د فرعون کورنۍ به ددې ښځې احسان مند او شکر گزار وو او دې ته به يې تحفې او هديې ورکولې. او هم د خپل بچي په پرورش ورته د فرعون د دربار څخه معاوضه ملاويدله او دعام ملازمانو پشان د فرعون په کور کښې هم نه اوسيدله. [فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ].(2)

**د کاريگرو او تاجرانو دپاره يو زيرې:** يو حديث پاك کښې راغلي دي چې رسول کريم اوفرمائيل چې کوم يو کاريگر په خپل کسب کښې په نيك نيت سره د ثواب نيت اوکړي نو دهغه مثال د موسی ﷺ د مور بي بي پشان دې، چې خپل بچي ته يې پئ ورکول او په دې يې د نورو څخه معاوضه اخسته.[ابن کثير](3) مطلب دادې چې کله يو گلکار مسجد ، نانقاه ، مدرسه يا بل څه د خير ښيکړې د ادارې تعمير کوي، نو که دده نيت صرف د مزدورئ او گټې وي نو دهٔ ته به صرف دا ملاويږي او که دا نيت اوکړي چې دا تعميرونه په نيك کار کښې استعماليږي او دې سره به دين والو ته فائده وي او دې ته يې په نورو تعميرونو باندې ترجيح ورکړه نو دهٔ ته به د ام موسی ﷺ پشان مزدوري هم ملاويږي او ديني فائده به ورته هم ملاويږي.

دالله ﷻ خاص بندگانو ته د محبوبيت يو شان عطا کيږي چې څوك دوئ ويني نو محبت ورسره کوي: [وَاَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّيْ] دې کښې يې دې طرفته اشاره اوفرمائيله چې الله ﷻ خپلو خاص بندگانو ته د محبوبيت يو شان عطا کوي او چې دا اوگوري نو خپل پردي ، دوست دښمن ده سره محبت کوي. د انبياء ﷺ يو ډير اوچت مقام دې ، ډيرو اولياء کرامو کښې ددې محبوبيت مشاهده کړې شويده.

**د فرعوني سړي قتل چې د موسی ﷺ دلاسه اوشو نو دې ته څنګه خطا اوويلې شوه:** موسی ﷺ يو فرعوني کس اوليدو چې يو اسرائيلي سره په جنګ دې نو هغه فرعوني کافر يې په سوك اووهلو او هغه مړ شو ، نو دې ته موسی ﷺ پخپله هم د شيطان عمل اوويلو او دالله ﷻ څخه يې د خطا

(1) ترجمه:- دروزه يې بنده کړه حالانکه دښمن يې په کور دننه وو ، د فرعون حيله داشان قصه يا ردوغ خبره وه.
(2) ترجمه:- څه لوئې شان دې دالله تعالي جل شانه چې د ټولو پيدا کوونکو نه ډير غور دې.
(3) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص: ٢٨٤] ومصنف ابن ابي شيبة ، بألفاظ مختلفة رقم الحديث[١٩٥٣٢]

معافي اوغوښتله او هغه ورته معاف شوه.
خو دې ځایې کښې یو فقهي مسئله پیدا کیږي چې د افرعوني کس یو کافر وو او دۀ سره د موسی ﷺ څه معاهده د صلحې هم نه وه او نه دې د کافرو په فهرست کښې داخلولې شي چې دهغوئ د مال او ځان حفاظت په مسلمانانو باندې واجب وي. دا خو یو حربي کافر وو او ددۀ حکم په اسلامي شریعت کښې دا دې چې دې مباح الدح دې، دده قتل کول څه ګناه نه ده، بیا دې ته عمل شیطان او خطا په کوم بنیاد باندې اووئیلې شو.
دتفسیر په عامو کتابونو کښې دې سوال څخه چا تعرض نه دې کړې. احقر چې کله د سیدي حکیم الامت مولاناتهانوی ﷫ په حکم سره د احکام القرآن په تصنیف کښې مشغول وو او په هغې کښې دا واقعه زیر تحریر راغله نو حضرت ددې سوال جواب دا ورکړې وو، اګر چې دې فرعوني سړي سره نیغ په نیغه څه ښکاره معاهده د صلح یا ذمې نه وه خو خوچونکه نه په هغه وخت کښې د موسی ﷺ حکومت وو نه او نه ددې فرعوني سړي، بلکه دواړه د فرعون د حکومت کسان وو او د یو بل د طرفه مطمئن وو، دا یو قسم عملي معاهده وه، د فرعوني په قتل ددې عملي معاهدې خلاف ورزي اوشوه، نو په دې وجه دا خطا اوګرځولې شوه، او دا خطا چونکه په قصد نه وه بلکه یو اتفاقي کار وو نو په دې وجه دا دموسی ﷺ د عصمت او نبوت خلاف نه ده.
سیدي حکیم الامت هم په دې وجه فرمائیلي وو چې په مشترکه هندوستان کښې چې مسلمانان او هندوان یو ځائې اوسیږي او دواړه د انګریز په حکومت کښې اوسیږي، د یو مسلمان دپاره دا جائز نه دی چې د یو هندو په مال او ځان باندې ظلم اوکړي.
**د کمزورو مدد او د مخلوق خدمت کول ددنیا اوآخرت دپاره مفید او نافع دی:** موسی ﷺ د مدین د ښارڅخه بهر په یو کوهی باندې دوه زنانه داسې اولیدلې چې د کمزورۍ په وجه یې خپل چیلو ته اوبه نه شوې ورکولې، دغه زنانه بالکل دوئ نه پیژندې. او موسی ﷺ مسافر وو، خود کمزورو او ضعیفانو سره مدد کول او دهغوئ خدمت کول د شرافت تقاضا او د الله ﷻ په نزد یو خوښ عمل وو، ځکه یې هغوئ دپاره خواري اوکړه او دهغوئ چیلوته یې اوبه ورکړې، ددې اجر او ثواب خو الله ﷻ سره لوې دې، په دنیا کښې هم الله ﷻ دې عمل لره د موسی ﷺ د مسافرۍ په دې بې کسۍ او بې وسۍ کښې داسې پکار راوستو چې راتلونکې ژوندې یې هم د هغوئ دشان مطابق ښائسته شو، د شعیب ﷺ د خدمت او خوموليۍ شرف ورته حاصل شو، د خوانید نه پس کوم کار کول یې چې دمور بی بی په ذمه وو الله ﷻ د غریبۍ په حالت کښې هغه د یو پیغمبر دلاسه پوره کړو.
**د دوؤ پیغمبرانو مینځ کښې د مالك او مزدور معامله ددې حکمتونه او عجیبه فوائد:** موسی ﷺ د شعیب ﷺ په کور کښې چې میلمه شو نو د فرعوني سپاهیانو څخه په امن کښې شو، شعیب ﷺ د خپلې لور بی بی په مشوره هغوئ ﷺ نه د مزدورۍ کارا خستل اوغوښتل په دې کښې د الله ﷻ لوې حکمتونه او دالله ﷻ دمخلوق دپاره لوې شان او هدایات دی.
① اول دا چې شعیب ﷺ پیغمبر وو، پخپل کور باندې یو غریب الوطن مسافر هم داسې د څه کار اخستلو، څه زمانې دپاره میلمه ساتلې شو لیکن غالب ګمان داسې دې چې هغوئ ﷺ د پیغمبرانه زیرکتیا په وجه د موسی ﷺ بلند همتي معلومه کړې وه او په دې پوهه شوې وو

چې هم داسې میلمستیا به تر څه زمانې پورې قبوله نه کړی او که بل خوا لاړ شی نو تکلیف به ورته پیښ شی ، څکه یې ورسره بې تکلفی او کړه ، پدې کښې نورو دپاره هم دا هدایت دې چې د چا په کور کښې بې مقصده میلمه کیدل او په هغوئ باندې بوج جوړیدل د شرافت څخه خلاف دی .

② دویم حکمت په دې کښې دا وو چې الله ﷻ موسی ﷺ ته نبوت او رسالت ورکول غوښتل ، اوددې دپاره نه څه مجاهده کول شرط وی او نه په دې څه عمل او مجاهدې سره دا حاصلولې شی ، دا خو صرف دالله ﷻ د طرفه یو انعام او عطیه وی . خو دالله ﷻ عادت شریفه دادې چې هغه خپلو پغمبرانو لره د مجاهدې ، محنت او مشقت دور څخه تیروی . او دا د انسانی اخلاقو ذریعه او دنورو د اصلاح سبب جوړیږی . د موسی ﷺ ژوند تر دغه وخت پورې ډیر شاهانه انداز سره په اکرام او اعزاز کښې تیر شوې وو . او ددې څخه وروستو دوئ ﷺ د الله ﷻ مخلوق دپاره هادی او مصلح جوړیدل وو . شعیب ﷺ سره په مزدوریی کول د دوئ ﷺ اخلاقی تربیت دپاره وو . عارف شیرازی هم ددې باره کښې وئیلی دی چې :

شبان وادئ ایمن گهے بمراد　　که چند سال بجان خدمت شعیب کند(۱)

③ دریم دا چې دوئ څخه کوم خدمت واخستې شو هغه چیلې څرول وو ، دا یوه عجیبه خبره ده چې دا کار د أنبیاء ﷺ څخه اخستې شوې دې ، شاید په دې کښې راز دا وی چې چیلئ یو داسې ځناور دې چې د رمې [ریوړ] څخه مخکښې وروستو تښتی او په دې شپونکی ته ډیره غصه ورزی . ددې غصې په نتیجه کښې که دې دا تښتیدونکې چیلی نظر انداز کړی نو چیلی څخه به لاس وینځی ، هغه به د شرمخ خوراك جوړیږی ، او دې هغه خپله مرضی باندې وهی نو هغه کمزورې کیږی او داسې کمزورې کیږی چې لره یې هم اووهی نو پښه یې ماتیږی ، په دې شپونکې د ډیر صبر مظاهره کوی . د عام مخلوق سره هم د الله ﷻ د انبیاء کرامو ﷺ هم دا حال وی ، چې په دې انبیاء ﷺ نه دوئ نظر انداز کولې شی او نه دوئ باندې تشدد کولې شی ، نو صبر او حلم ددوئ ﷺ ښه طریقه وی .

**چا ته ډیو عهدې او ملازمت ورکولو دپاره یو بهترین دستور العمل** :: دې قصه کښې چې د شعیب لور لوبی خپل پلار ته دا مشوره ورکړه چې دې ځان سره ملازم کړه ، ددې مشورې دلیل یې دا بیان کړو چې بهترین اجیر هغه کس وی چې هغه قوی هم وی او امین هم وی . د قوی څخه مراد دا دې چې کوم کار دهٔ حواله کیږی دهٔ کښې دهغې د کولو قوت وی ، او د امین څخه مراد دادې چې دده مخکښې ژوند دده په امانت او دیانت باندې شاهد وی . نن صبا چې په مختلفو ملازمتونو کښې سرکاری او غیر سرکاری عهدو دپاره کوم د انتخاب اصول جوړیږی او په درخواست ورکوونکی کښې دا اوصاف کتلې شی نو ، که غور او کړېشی ټول په تولـه پدې دوؤ لفظونو کښې جمع دی . بلکه دده په تفصیلی شرطونو کښې هم دا جامعیت عام طور سره نه وی څکه چې امانت او دیانت خو څوك په څه کښې شماری هم نه ، صرف دعلمی قابلیت ډگری دده دپاره معیار گرځولې شی ، او نن صبا چې په سرکاری او غیر سرکاری نظام کښې

---

(۱) ترجمه:- پس حضرت موسی علیه السلام هغه وخت خپل مقصد ته رسې کله چې یو څو کاله د زړه نه د حضرت شعیب علیه السلام خدمت کوی.

کومې خرابۍ دی هغه ددې اصولو د نظر انداز کولو په وجه دی. هر کله چې يو قابل او عاقل کس کښې امانت او ديانت نه وی نو بيا هغه د کار غل وی ، د رشوت دپاره هم داسې داسې لارې راوباسی چې دې هيڅ قانون ته په ګوتو نه ورځی. هم دې څيز نن ددنيا ډير سرکاری او غير سرکاری ادارې تباه کړې دی ، اسلامی نظام کښې په دې وجه دې ته ډير زيات اهميت ورکړې شوې دې ، او ددې برکات دنيا ترصدو پورې کتلې دی.

**د ساحرانو او پيغمبرانو په معاملاتو کښې بنکاره فرق:** فرعون چې کوم جادوګران جمع کړی وو او ددې مخکښې ددې کار د کولو دپاره د پوره ملك او قوم خطره اېښودې شوې وه ، ددې تقاضا دا وه چې په دې کار باندې پوهه شی چې دا خدمت کول دی ، خو هلته د خدمت کولو څخه وړاندې سودا بازی شروع شوه چې مونږ ته به څه ملاويږی.

ددې په مقابلې کښې د ټولو نبيانو ﷺ دا اعلان وی چې[وَمَآ اَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ اَجۡرٍ]يعنی زه ستاسو څخه ددې خدمت بدله نه اخلم ، او د انبياء ﷺ په تبليغ کولو کښې ددوئ د استغناء ډير دخل وی. هر کله چې علماء دين ، اهل فتوی ، اهل خطابت او د وعظ او خدمت انتظام په بيت المال کښې پاتې نشو نو دوئ خپل تعليم او وعظ باندې په تنخواه اخستلو مجبوره شو ، اګر چې دا متاخرينو فقهاء کرامو د مجبورۍ په درجه کښې جائز کړې شوی دی ، خو په دې کښې څه شك نشته دې چې ددې معاوضې نه اخستلو اثر په تبليغ ، دعوت او د خلقو په اصلاح باندې ډير زيات خراب اوشو ، او دوئ ته ددې کوششونو ډيره کمه فائده حاصليږی.

**د فرعونی جادوګرانو د جادو حقيقت:** دې خلقو د خپلو لرګو او رسو څخه په ظاهره ماران جوړ کړی وو يا که واقعی هغه ماران وو. ددې متعلق د قرآن پاك دالفاظو [يُخَيَّلُ اِلَيۡهِ مِنۡ سِحۡرِهِمۡ اَنَّهَا تَسۡعٰى]څخه دا معلوميږی چې هغه په حقيقت کښې ماران نه وو بلکه دا يو قسم مسمريزم وو ، چې دې سره يې د خلقو خيالاتو کښې بدلون راوستې وو او په دوئ باندې يې نظر بندی کړې وه ، او حاضرينو ته هغه روان ماران معلوميدل.

ددې څخه دا نه لازميږی چې جادو سره د يو څيز حقيقت نشی بدليدې ، دومره معلوميږی چې ددې جادوګرانو جادو په حقيقت کښې د بدلون په درجه کښې نه وی.

**قبائلی تقسيم تر د معاشرتی معاملاتو حده پورې څه بد کار نه دې:** اسلام وطنی ، لسانی ، نسبی او قبيلو په بنياد قوميت بدلولو باندې ډيره بدله منلې ده ، او دداسې بيلتونونو په ختمونو باندې يې په هر قدم او هر کار کښې کوشش کړې دې ، بلکه د اسلامی سياست سنګ بنياد هم د اسلامی دينی قوميت دې چې په کښې عربی ، حبشی ، فارسی او هندی او سندهی ټول د يو قوم غړی دی ، چنانچه نبی کريم ﷺ په مدينه منوره کښې د اسلامی حکومت د بنياد اېښودو دپاره د ټولو څخه رومبې کار دا اوکړو چې د انصارو او مهاجرينو مينځ کښې يې يورنګی او رور ولی قائمه کړه ، او د حجة الوداع په موقع يې تر قيامته پورې دا دستور العمل ورکړې دې چې علاقائی ، نسبی او لسانی بيلتونونه ټول تباه دی ځکه چې اسلام ختم کړی دی ، ليکن په معاشرتی معاملو کښې تر يو حده پورې دا جدا ځکه زغملې شوې دې چې د مختلفو قبيلو مختلفو وطنونو دخوراك ، څکاك او د استوګنې طريقې جدا جدا وی چې د هغې په خلاف کول سخت تکليف جوړ شی.

موسی ﷺ چې کوم بنی اسرائیلو سره دمصر څخه وتلي وو دهغوئ دولس قبیلې وې ، الله ﷻ ددې قبیلو امتیاز لره معاشرتی معامله کښې جائز اوساتلو ، او په درباب کښې یې چې کومې لارې جوړې کړې وې هغه هم دولس وې چې هرې قبیلې دپاره جدا جدا لاره وه ،داشان په واده تیه کښې چې کوم کانړی څخه د معجزې په طور د اوبو دولس چینې راوتلې وی هغه هم دولس وې،چې دخپلوخپل مینځ کښې مزاحمت نه وی، هره قبیله خپلې خپلې حاصلې کړی،والله اعلم.

**جماعتي انتظام دپاره خلیفه او نائب مقررول:** کله چې موسی ﷺ د خپل قوم څخه د یوې میاشتې دپاره کوه طور کښې د عبادت کولو اراده اوفرمائیله نو هارون ﷺ یې خپل خلیفه او نائب مقرر چې ما په عدم موجودگۍ کښې ټول دده اطاعت کوئ چې ستاسو خپل مینځ کښې اختلاف او شر پیدا نشی. ددې څخه معلومه شوه چې کله دیو جماعت یا خاندان مشر په سفر ځی نو د انبیاء کرامو سنت دادی چې څوك خپل قائمقام او خلیفه جوړ کړی چې د هغه نظم وضبط قائم اوساتی.

**دمسلمانانو په جماعت کښې د تفرقې څخه د بچ کېدو دپاره لوې څخه لوې بدی وختی طور سره برداشت کېدې شی:** د موسی ﷺ په غیرحاضرۍ کښې چې په بنی اسرائیلو کښې د سخی د عبادت کولو کومه فتنه راپورته شوه ، او په دوئ کښې درې فرقې پیدا شوې ، هارون ﷺ خو ټولو ته د حق دعوت ورکړو مگر د موسی ﷺ د راتلو پورې یې یوې فرقې سره هم ښکاره اجتناب او بیزاری او ځانله والې اختیار نه کړو، په دې باندې موسی ﷺ خفه شو،نودوئ ورته عذر پیش کړو چې چرې ما تشدد اختیار کړې وې نو بنی اسرائیل به تقسیم شوې وې ، او په دوئ کښې به تفرقه پیدا شوې وې [اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ تَقُوْلَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِيْ] یعنی ما په دې وجه د یوې فرقې څخه هم دجدائی او بیزارۍ اظهار اونه کړو چې هسې نه تاسوواپس راشې اوما باندې دا الزام او لګوی چې ما بنی اسرائیلو کښې تفرقه پیدا کړه او زما دهدایت پابندی دې اونه کړه.
موسی ﷺ هم دهغوئ عذر ته غلط او نه وئیل بلکه صحیح یې اومنل اودهغوئ دپاره یې د بخښنې دعا اوفرمائیله ، ددې څخه دا هدایت معلومیږی چې که په مسلمانانو کښې د تفرقې ختمولو دپاره وختی طور سره په یوه معامله نرمی اوکړې شی نو دا صحیح ده .والله سبحانه وتعالي اعلم.
دموسی ﷺ دقصې چې کوم آیتونه پورته لیکلې شوی دی دهغې په آخر کښې د موسی ﷺ او هارون ﷺ فرعون ته د هدایت دپاره د لیږلو حکم په یو خاص هدایت سره شوې دې ، [فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهٗ يَتَذَكَّرُ اَوْ يَخْشٰى] په هغې کښې :-

**د پیغمبرانه دعوت یو اهم اصول:** دا بیان شوی دی چې مخالف فریق که هر څومره سرکشه او د غلط څخه غلطو عقیدو او خیالاتو حامل وی ، په اصلاح کوونکو او هدایت ورکوونکو باندې دا لازم دی چې هغه سره هم د همدردۍ او خوخواهۍ په انداز کښې خبرې اوکړی. ددې نتیجه دا کیدې شی چې مخاطب په غور او فکر کولو مجبوره شی ، اودهغوئ په زړه کښې د الله ﷻ ویره پیدا شی.
فرعون چې د خدائ دعویدار او جبار او ظالم دې ، او د خپل ذات د حفاظت دپاره د بنی اسرائیلو د زرګونو ماشومانو قاتل دې ، هغوئ طرفته هم الله ﷻ خپل خاص بندگان پیغمبران لیږی ، او هغوئ ﷺ ته دا هدایت نامه ورکوی چې هغه[فرعون] سره نرمه خبره کوه ، چې

ورته د غور او فکر کولو موقع ملاؤ شي . او دا په دې وجه دی چې د الله ﷻ په علم کښې وو چې فرعون دخپلې سرکشۍ او گمراهۍ نه څخه منع کيدو والا نه دې خو خپل پيغمبران يې ددې اصول پابند کول چې ددې په وجه دالله ﷻ مخلوق په سوچ او فکر کولو مجبور شي او دالله ﷻ دويرې طرفته راشي . فرعون هدايت قبلوی که نه قبلوی خو اصول قائم ساتل پکار دی چې د هدايت او اصلاح ذريعه جوړه شي .

نن صبا ډير علماء کرام خپلو کښې اختلاف لری او د يو بل خلاف د ژبې استعمال غلط کوی او په يو بل باندې الزامونه لگوی او دې ته د اسلام خدمت وائی ، دوئ لره پکار دی چې پدې باندې ډير غور او فکر اوکړی .

لَعَلَّهٗ　يَتَذَكَّرُ　اَوْ يَخْشٰى ۝　قَالَا　رَبَّنَآ　اِنَّنَا

کيدې شی چې هغه | نصيحت قبول کړی | يا اويريږی | اووئيل دواړو | اې ربه زمونږ | بيشکه مونږه

کيدې شی چه نصيحت قبول کړی | يا [زما دنيولونه ] اويريږی | دواړو اووئيل چې ائې زمونږه ربه ! مونږ

نَخَافُ　اَنْ يَّفْرُطَ　عَلَيْنَآ　اَوْ　اَنْ يَّطْغٰى ۝　قَالَ

يريږو | چې هغه به ظلم اوکړی | په مونږ باندې | يا | دا چې سرکشی به اوکړی | اووئيل الله

يريږو | چې چرته په مونږ باندې زياتې اونکړې | يا دا چه زيات سرکشه شي | الله ﷻ اوفرمائيل

لَا تَخَافَآ　اِنَّنِيْ　مَعَكُمَآ　اَسْمَعُ　وَاَرٰى ۝　فَاْتِيٰهُ

مه يريږئ دواړه | بيشکه زه | ستاسو سره يم | اورم | اووينم | نو ورشئ دواړه هغه ته |

تاسو دواړه مه يريږئ | زه ستاسو ملگرې يم | زه هر څه وينم گورم | .........نو دواړه هغه ته ورشئ

فَقُوْلَآ　اِنَّا　رَسُوْلَا　رَبِّكَ　فَاَرْسِلْ　مَعَنَا

او ورته اووايئ | بيشکه مونږه | دواړه رسولان يو | درب ستا | نو اوليږه | مونږ سره |

او ورته اووائې چې مونږ دواړه ستا د رب رااليږلې شوی يو | .........نو ته مونږ سره

بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ　وَلَا تُعَذِّبْهُمْ ؕ　قَدْ جِئْنٰكَ　بِاٰيَةٍ

بنی اسرائيل | او مه ورکوه تکليفونه دوئ لره | راغلی يو مونږ تاته | په نښې سره |

بنی اسرائيل پريږده [چه شام ته لاړ شو ] | اوهغوئ ته [نور] تکليفونه مه رسوه | مونږ تاته ستا د رب

مِّنْ رَّبِّكَ ؕ　وَالسَّلٰمُ عَلٰى مَنِ　اتَّبَعَ　الْهُدٰى ۝　اِنَّا

د طرفه درب ستا نه | او سلامتيا ده | په هغه چا | چې تابعداری ئې اوکړه | دنيغې لارې | بيشکه مونږه چې يو

د طرفه يوه نښه راوړې ده | اوسلامتيا دې په هغه چا وی چې په سمه لار روان شی | بيشکه مونږ ته خو

قَدْ اُوْحِيَ　اِلَيْنَآ　اَنَّ الْعَذَابَ　عَلٰى مَنْ　كَذَّبَ　وَتَوَلّٰى ۝

وحی شوی ده | مونږ ته | چې بيشکه عذاب | په هغه چا دې | چې دروغ ئې اوگڼړو | او مخ ئې واړلو |

وحی شوې ده | چې [دهغه ] عذاب هغه چا دپاره مقرر دې | چې [پيغمبر] دروغژن گڼړی او د [حق] نه مخ گرزوی

قَالَ　فَمَنْ　رَّبُّكُمَا　يٰمُوْسٰى ۝　قَالَ　رَبُّنَا

[نو] اووئيل فرعون | څوك دې | رب ستاسو ددواړو | اې موسی | اووئيل موسی | رب زمونږه |

فرعون اووئيل چې ستاسو رب څوک دې اې موسی ، ؟ | موسی ﷺ اوفرمائيل چې زمونږ رب

| الَّذِیٓ | اَعۡطٰی | كُلَّ شَیۡءٍ | خَلۡقَهٗ | ثُمَّ هَدٰی۝ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| هغه دي | چې ورنې کړو | هر څيز ته | شکل د هغه | بيا ئې ورته لار اوښودله دګزران |
| هغه دي اچې هر څيز ته ئې د هغه صورت ورکړې دې ا اوبيا ئې ورته سمه لار خودلې ده | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

دواړو اووئيل : اې زمونږ ربه! مونږ سره ويره ده چه چرته هغه په مونږ باندې زياتې اونکړي، يا چرته سر کشۍ ته تيار نه شي. الله پاک اوفرمائيل : ويرېږئ مه، زه تاسو سره يم، آورم هم، او وينم هم اوس هغه ته لاړ شئ، او اوايئ چه مونږ دواړه ستا د رب پيغمبران يو، په دې وجه بنى اسرائيل مونږ سره اوليږه، او هغوى ته تکليفونه مه ورکوه، مونږ تا ته ستا د رب د طرف نه نخښه راوړې ده، او سلامتى د هغه چا دپاره ده چه د هدايت تابعدارى اوکړى، په مونږ باندې دا وحى نازله کړې شوې ده چه عذاب به په هغه چا باندې وى چه (حق) دروغژن اوګڼړى، او مخ واړوى. (د دې ټولو خبرو اوريدلو نه پس) فرعون اووئيل: موسٰى! ستاسو د دواړو رب څوک دې؟ موسٰى عليه السلام اوفرمائيل: زمونږ رب هغه دې چا چه هر يو څيز ته پيدائش ورکړو کوم چه د هغه مناسب وو، بيا ئې (د هغه) رهنمائى هم اوفرمائيله.

## خلاصه تفسير

هر کله چه دا حکم دواړو صاحبانو ته ورسيدو ﴿قَالَا رَبَّنَآ﴾ نو دواړه [عرض وکړو چه اے زمونږ پروردګاره ] مونږ د تبليغ دپاره حاضريو ليکن ﴿اِنَّنَا نَخَافُ﴾ [ زمونږ ويره ده چه ] هسې نه ﴿اَنْ يَّفْرُطَ عَلَيْنَآ﴾ [ هغه په مونږ ] د تبليغ نه وړاند [ زياتې ونه کړى ] چه تبليغ پاتى شى [ يادا چه ] عين د تبليغ په وخت په خپل کفر کښې ﴿اَوْ اَنْ يَّطْغٰى۝﴾ [ زيات شرارت شروع نه کړى ] چه په خپل بکواس کولو کښې په خپله هم تبليغ وانه ورى اونور هم اوږيدو ته پرې نږدى چه تبليغ به دنه تبليغ سره برابرشى ﴿قَالَ﴾ [ ارشادوشو شو چه ] د دې خبرې نه مطلق ﴿لَا تَخَافَآ﴾ [ ويره مه کوئ ] خکه چه ﴿اِنَّنِيْ مَعَكُمَآ اَسْمَعُ وَاَرٰى۝﴾ [ زه ستا دواړو سره يم هر څه اوږم اووينم ] زه به ستاسو حفاظت کوم او په هغه به رعب واچوم چه تاسو به پوره تبليغ وکړې شئ لکه چه په بل ايت کښې دى [ نجعل لكما سلطانا ] ﴿فَاْتِيٰهُ فَقُوْلَآ اِنَّا رَسُوْلَا رَبِّكَ﴾ [پس تاسو ] بې خوف اوخطر [ هغه ته لاړشئ او] هغه ته [ ووايئ چه مونږ دواړه ستا دپروردګار راليږلي شوى يو ] چه مونږ ئې نبيان جوړکړى راليږلي يو [پس ] ته زمونږ خبره ومنه دعقيدې په اصلاح کښې هم چه د توحيد تصديق وکړه او داخلاقو په اصلاح کښې هم چه دظلم وغيره نه منع شه او ﴿فَاَرْسِلْ مَعَنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ﴾ [ بنى اسرائيلو لره ] په کومو چه ته ناحق ظلم کوې دخپل ظلم نه ازاد کړه [ مونږ سره ئې راپرېږده ] چه کوم خائ غواړى او څنګه غواړى وسيږى ﴿وَلَا تُعَذِّبْهُمْ ۭ﴾ او دوى ته تکليف مه رسوه او [ مونږ] چه دنبوت دعوى کوو نو داخالى دخلې خبره نه ده بلکه مونږ ﴿قَدْ جِئْنٰكَ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكَ ۭ﴾ [تاته ستا درب دطرف نه ] دخپل نبوت ] نښه ] يعنى معجزه هم [ راوړې ده او] دتصديق او حق قبلولو فائده به په دې قاعده کليه سره معلومه شى چه ﴿وَالسَّلٰمُ عَلٰى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى۝﴾ [دداسې سړى دپاره ] دعذاب الهى نه [سلامتى ده کوم چه په] ينغه [لاره ځى ] او ددروغژن کولو او حق رد کولو دپه باره کښې ﴿اِنَّا قَدْ اُوْحِيَ اِلَيْنَآ﴾ [مونږ ته داحکم راغلې دې چه ]

دقهر ﴿أَنَّ الْعَذَابَ عَلَىٰ﴾ دالله تعالى [عذاب ] [به په هغه سړي وي کوم چه] حق لره ﴿مَنْ كَذَّبَ﴾ [ دروغژن کړی او] ددې نه ﴿وَتَوَلَّىٰ﴾ [ مخ واړوی ] غرض دادې چه لاړشئ او دا ټول مضمون هغه ته بیان کړئ نو دواړه حضرات لاړل داهر څه ئې ورته ووئیل ﴿قَالَ﴾[ هغه ووئیل چه بیا ] داخو ووایئ چه ﴿فَمَن رَّبُّكُمَا﴾[ستاسو دواړو رب څوك دې ] کوم چه تاسو وایئ چه مونږ ئې رالیږلي يو ﴿يَا مُوسَىٰ﴾[ اے موسی] په جواب کښې ﴿قَالَ﴾[ موسی] ووئیل چه زمونږ ﴿رَبُّنَا الَّذِي أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ﴾ ددواړو بلکه دټولو [رب هغه دې چاچه هر شی له دهغه مناسب شکل صورت ورکړو بیا] په دوی کښې چه کوم د روح لرونکی څیزونه وو هغوته ئې ﴿ثُمَّ هَدَىٰ﴾ دهغوی دنفع او مصلحت طرف ته [ ئې لار وښوده ] چنانچه هر یو ځناور خپل مناسب خوراك جوړه او ځائ وغیره لټوی پس هغه زمونږ رب دې.

## معارف او مسائل

**موسى عليه السلام ولې ویریدو ؟** :: ﴿إِنَّنَا نَخَافُ﴾ موسی علیه السلام او هارون علیه السلام په دغې موقعه د الله ﷻ په وړاندې دوه قسمه ویره ښکاره کړه ، یو په ﴿أَن يَفْرُطَ﴾ لفظ سره چې اصلي معنی ئې د حد نه پورې وتل دی ، مطلب ئې دا شو چې کیدې شی چې فرعون زمونږ د خبرې د آوریدو نه مخکښې په مونږ باندې راسور شی. بله ویره ئې په ﴿أَن يَطْغَىٰ﴾ لفظ سره بیان کړه ، ددې مطلب دادې چې کیدې شی چې هغه ددې نه زیات سرکشی راواخلی او ستا په شان کښې نامناسبې خبرې د خلې نه اوباسی.

دلته یو سوال دا پیدا کیږی چې کله موسی علیه السلام ته پیغمبری ورکړې شوه نو هغه وخت ئې دا خواست کړې وو چې زما رور هارون علیه السلام دې هم ماسره په پیغمبرئی کښې شریك کړې شی ، دغه خواست ئې منظور شو نو الله ﷻ ورته داسې اوفرمائیل چې : ﴿سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِأَخِيكَ وَنَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطَانًا فَلَا يَصِلُونَ إِلَيْكُمَا﴾ دې سره دا تسلی ئې هم ورکړه چې ستاسو خواست مې سراسری قبول کړو ، یعنی ستاسو غوښتلی څیزونه مې ټول درکړل. ﴿قَدْ أُوتِيتَ سُؤْلَكَ يَا مُوسَىٰ﴾ په دغه غوښتلی څیزونو کښې یو د شرح صدر هم وو ، دهغې حاصل دا وو چې د مخالف نه زړه تنګی او ویره هم نه وی.

د الله ﷻ ددې وعدو څخه وروستو بیا ویره کول او ددې ښکاره کول ولې کوی ؟ ددې یو جواب خو دادې چې رومبئ وعده ورسره الله ﷻ د غلبې ورکولو داسې اوکړه چې دغه مخالف خلق تاسو ته نشی رارسیدلې ، دغه غلبه د حجت او دلیل غلبه هم کیدې شوه او مادی غلبه هم کیدې شوه. نودا خیال کیدې شو چې د اغلبه خو به هله وی چې دغه خلق د دوئ علیهما السلام نه واوری او معجزې اووینی مکر خطره داوه چې هسې نه د کلام آوریدو نه مخکښې راباندې حمله اوکړی. اوشرح صدر دپاره دا ضروری نه ده چې طبعی ویره دې هم د هغوئ نه وی.

دویمه خبره داده چې د ټولو پیغمبرانو ﷺ دا طریقه ده چې د ویرې د څیزونو نه هغوئ ﷺ طبعی ویره کوی سره ددې نه چې د الله ﷻ په وعدو ئې پوره ایمان او یقین وی. پخپله موسی علیه السلام هم د هغې مار د نیولو نه ویریدو کوم چې هم ددوئ علیه السلام د لاس دهمسا نه جوړ کړې شوې وو. او الله ﷻ ورته اوفرمائیل چې ﴿لَا تَخَفْ﴾ [مه ویریږئی] او د غه شان د ویرې په ټولو موقعو کښې هم دغسې کیدل چې طبعی او بشری ویرې به ئې محسوسولې بیا الله ﷻ د زیری

په ذريعه هم لرې کړې نو ددې واقعې آيتونو کښې ﴿فَخَرَجَ مِنْهَا خَآئِفًا يَتَرَقَّبُ﴾(۱) او ﴿فَأَصْبَحَ فِى الْمَدِينَةِ خَآئِفًا﴾(۲) او ﴿فَأَوْجَسَ فِى نَفْسِهِۦ خِيفَةً مُّوسَىٰ﴾(۳) په دې مضمون باندې ګواه دی. خاتم الانبياء ﷺ ددې انسانی ويرې په وجه مدينې منورې ته او ځينې صحابه کرامو ﷺ رومبې حبشې ته او بيا مدينې منورې ته هجرت کړې وو. غزوهٔ احزاب کښې ددې ويرې نه د بچ کيدو دپاره خندق اوکنستې شو. سره ددې چې د الله ﷻ د طرفنه د مدد کولو وعده شوې وه. مطلب دا چې د الله ﷻ په وعده باندې خو ددوئ ټولو پوره يقين وو ليکن طبعی او انسانی ويره پيغمبرانو ﷺ سره هم وی. ځکه چې هغوئ ﷺ هم انسانان وی او ورسره بې سمونه نه وی.

﴿إِنَّنِى مَعَكُمَآ أَسْمَعُ وَأَرَىٰ﴾ الله ﷻ اوفرمائيل چې زه ستاسو دواړو سره يم. هرڅه به آؤرم او وينم به دمعيت نه مراد مدد کول دی چې دهغې پوره حقيقت اوشان دانسان په پوهه کښې نشی راتلې.

**موسی ﷺ فرعون ته د ايمان دبلنې سره دا بلنه هم ورکړه چې بنی اسرائيل دې دمعاشی مصيبت نه خلاص کړی** :: دې نه معلومه شوه چې ځنګه پيغمبران ﷺ خلقو ته د ايمان د هدايت ورکولو ذمه دار دی دغه شان خپل امت ته ددنيوی او معاشی مصيبتونو نه ئې آزادول هم ددوئ ﷺ په ذمه دارئ کښې داخل دی. نو قرآن عظيم الشان کښې د موسی فرعون ته په بلنه ورکولو کښې دواړه ځيزونه شامل دی. اول په الله ﷻ باندې ايمان راؤړل او دويم بنی اسرائيل آزادول او خصوصا په دې آيت مبارك کښې دغه دويم جز بيان شوې دې.

**الله تعالی هر ځيز پيداکړو او بيا د هر يو وجود مناسب ئې هدايت ورته اوکړو چې په هغې سره خپل کار کښې لګيا شو**:: ددې تفصيل دادې چې يو هدايت د پيغمبرانو ﷺ دې کوم چې د هغوئ ﷺ وظيفه او فرض منصبی دې. داهغه خاص قسم هدايت دې چې مخاطب ئې د عقل خاوندان انسانان او پيريان دی. بل قسم تکوينی هدايت دې چې هر يو مخلوق لره شامل دې نو الله ﷻ اور، اوبه، ښاؤرې او ددې د ګډون نه جوړ شوۇ ټولو ځيزونو ته يو خاص قسم ادراك اوشعور ورکړې دې چې اګر که د بنيادمو او د پيريانو پشان خو نه دې په کوم باندې چې حلال او حرام پيژندل اړه لری، بيا هم د ادراك او شعور نه بالکل خالی نه وی او الله ﷻ هر يو ځيز ته ددغې ادراك او شعور په سمون هدايت اوکړو هر يو ته ئې خپله وظيفه خودلې ده چې دهغې په بنا خپل خپل کار کښې لګيا دی. لکه زمکه، آسمان، نمر، سپوږمئ او هر قسم ګرځنده او په ځائې ځائې ولاړ ستوری پخپل خپل کار کښې داسې لګيا دی چې د يو منټ او سيکنډ فرق هم په کښې نه رازی. او نه د وينبته د سر هومره د الله ﷻ دحکم نه سر غړوی، البته کله خالص د الله ﷻ په حکم د اور نه ګلزار جوړ شی لکه ابراهيم ﷺ دپاره او کله اوبه د اور کار کوی لکه طوفان نوح دکوم باره کښې چې الله ﷻ پخپله فرمائی چې: ﴿أُغْرِقُوا فَأُدْخِلُوا نَارًا﴾(۴).

پيداکيدونکی ماشوم ته سمسدتی خالص الله ﷻ اوخودل چې د خپلې مور د سينې نه دې خپله خوراکه حاصله کړی. د تی رودلو چل هم ورته خاص الله ﷻ ا وخودلو، خپلې لوږې،

(۱) ترجمه:- پس موسی عليه السلام هلته نه راؤوتلو د ويرې او وحشت په حالت کښې.
(۲) ترجمه:- بيا په موسی عليه السلام باندې په دې ښار کښې صبا شو د ويرې او وحشت په حالت کښې.
(۳) ترجمه:- پس دموسی عليه السلام په زړه کښې لږه شان ويره پيدا شوه.
(۴) ترجمه:- هغه غرق شو او په دوزخ کښې داخل شو.

تندې ، ګرمۍ او يخنۍ باندې دغه شان پخپل رنګ درد باندې د ژړا په ذريعه ښکاره کول او د نورو خبرولو چل ورته هم خالص الله ﷻ اوخودلو چې بل هيڅ مخلوق ورته نشو خودلې.
خلاصه دا شوه چې د الله ﷻ د طرفنه يو عام تکويني هدايت د هر يو مخلوق دپاره دې چې هم دهغې په جوړ کار کوي او دهغې د خلاف کولو هيڅ طاقت نشي لرلې. بل خاص هدايت د عقل خاوندانو ،پيريانو او بنيادمو دپاره دې چې هغه تکويني او جبري نه دې بلکه اختياري دې ځکه پرې ثواب او عذاب بنا کيږي.

په ﴿أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ﴾ کښې رومبې قسم هدايت بيان کړې شوې دې ، موسى عليه السلام فرعون ته هم رومبې د رب العالمين هغه کار اوخودلو چې ټول مخلوق ته شامل دې او د هغې پاره کښې هيڅوک داسې نشي وئيلې چې دا کار مونږ يا بل انسان کړې دې. فرعون ددې هيڅ جواب ورنکړې شو هسې يو غر بل غرئي اوويشتلو او يو سوال ئې د موسى عليه السلام نه په دې خيال اوکړو چې کله ددغې حقيقي جواب د موسى عليه السلام د خلې مبارکې نه عوام واؤري نو هغوئ عليه السلام نه به ځکه بدګماني شي چې هغوئ به تير شوؤ ټول بت پرستو خلقو ته ګمراه او جهنميان اوفرمائي نو د عوامو خله به ورته جوړه شي چې ګورئي چې دومره بې شميره ټولو خلقو ته ګمراه او جهنميان وائي او صرف خپل ځان او نور کسان په حقه او جنتيان ګڼرلي او په دې شان به زمونږ مقصد پوره شي ، خو د الله ﷻ پيغمبر موسى عليه السلام ددې داسې حکيمانه جواب ورکړو چې ورسره د فرعون ټوله منصوبه ښاؤرې ايرې شوه.

قَالَ فَمَا | بَالُ | الْقُرُونِ الْأُولَىٰ ۝ | قَالَ | عِلْمُهَا | عِندَ رَبِّي
اوونيل فرعون نو څه دې حال | دخلقو | تيرو شوؤ [پخوانو] | اوونيل موسى | علم دهغوئ | زما درب سره
فرعون اوونيل د تيرو قومو نو څه حال شو؟ ... موسى عليه السلام اوفرمائيل چې دهغې علم خو زما رب سره

فِي كِتَابٍ | لَا يَضِلُّ | رَبِّي | وَلَا يَنسَى ۝ | الَّذِي
په کتاب کښې محفوظ دې | نه خطا کيږي | رب زما | او نه ئې هيريږي | هغه رب
[په لوح محفوظ کښې درج] دې | زما رب نه غلطي کوي او نه ترې څه هيريږي | [الله] هغه ذات دې

جَعَلَ | لَكُمُ | الْأَرْضَ | مَهْدًا | وَسَلَكَ | لَكُمْ
چې جوړه ئې کړه | ستاسو دپاره | زمکه | يو فرش | او راوتې ئې کړې | ستاسو دپاره |
چې زمکه ئې ستاسو دپاره فرش ګرځولې ده | اوستاسو دپاره ئې په هغې لارې جوړې

فِيهَا | سُبُلًا | وَأَنزَلَ | مِنَ السَّمَاءِ | مَاءً | فَأَخْرَجْنَا
په هغې کښې | لارې | او نازلې ئې کړې | د آسمان نه | اوبه | نو راوويستل مونږه |
کړې دي | اود آسمان نه ئې اوبه راورولې دي| ........... بيا مونږ په هغې سره قسم قسم

بِهِ | أَزْوَاجًا | مِّن نَّبَاتٍ | شَتَّىٰ ۝ | كُلُوا | وَارْعَوْا
په هغې اوبو سره | ډير قسمونه | دبوټو | مختلف مختلف | خورئ | او څروئ |
شينکۍ راوزرغون کړې دې | ........... [پخپله ئې] خورئ او خپل څاروي په کښې څروئ

أَنْعَامَكُمْ ۗ | إِنَّ | فِي ذَٰلِكَ | لَآيَاتٍ | لِأُولِي | النُّهَىٰ ﴿٥٤﴾

څاروی خپل | بیشکه | په دې کار کښې | ډیرې نښې دي | دپاره دخاوندانو | دعقل |

بیشکه په دې کښې د عاقلانو دپاره ډیرې نخښې دی

مِنْهَا | خَلَقْنَاكُمْ | وَفِيهَا | نُعِيدُكُمْ

ددې زمکې نه | پیدا کړی یئ مونږه تاسو | او هم په دې زمکه کښې | واپس کوو تاسو |

مونږ تاسو ددې زمکې نه پیدا کړی یئ | او تاسو به په دې کښې واپس کوو

وَمِنْهَا | نُخْرِجُكُمْ | تَارَةً | أُخْرَىٰ ﴿٥٥﴾ | وَلَقَدْ أَرَيْنَاهُ

او د دې زمکې نه | به رااوباسو تاسو | یو ځل | بیا یعنی دوباره | او اوښودلې مونږه فرعون ته |

او هم ددې نه به مو یو ځل بیا بهر راوباسو | اوهغه [فرعون] ته خپلې نښې تولې

آيَاتِنَا | كُلَّهَا | فَكَذَّبَ | وَأَبَىٰ ﴿٥٦﴾ | قَالَ | أَجِئْتَنَا

نښې خپلې | ټولې | خو هغه دروغ اوګڼړلې | او انکار ئې اوکړو | اووئیل هغه | آیا راغلې ئې ته مونږ ته

اوخودلې | خوهغه دروغ اوګڼړلې | اوانکاری ئې اوکړو | هغه [فرعون] اووئیل چې ائې موسی ! آیا

لِتُخْرِجَنَا | مِنْ أَرْضِنَا | بِسِحْرِكَ | يَا مُوسَىٰ ﴿٥٧﴾ | فَلَنَأْتِيَنَّكَ

چې اوباسې مونږه | دزمکې زمونږ نه | په جادو خپل سره | اې موسی | نو رابه وړو مونږه تاته

ته مونږ ته د دې دپاره راغلې ئې | چې ته دخپل جادو په زور مونږ دخپل ملک نه اوباسې | نو اوس به

بِسِحْرٍ | مِثْلِهِ | فَاجْعَلْ | بَيْنَنَا | وَبَيْنَكَ | مَوْعِدًا

جادو | په شان ددې | نو مقرر کړه | په منځ زمونږ | او منځ خپل کښې | ځائې دوعدې |

مونږ ستا په مقابله کښې دغسې جادو وړاندې کړو | نو ته زمونږ اوخپل مینځ یو داسې ځائې مقرر کړه

لَا نُخْلِفُهُ | نَحْنُ | وَلَا أَنْتَ | مَكَانًا سُوًى ﴿٥٨﴾ | قَالَ

چې نه به کوو مخالفت دهغې نه | مونږه | اونه ته | یو ځائې هوار | اووئیل موسی

چې نه به ترې مونږ خلاف کوو اونه به ته ترې ته | چه په یو هموار میدان کښې دامقابله وی | موسی اووئیل

مَوْعِدُكُمْ | يَوْمُ الزِّينَةِ | وَأَنْ يُحْشَرَ | النَّاسُ | ضُحًى ﴿٥٩﴾

وخت دوعدې ستاسو | ورځ د میلې ده | او راجمع دې کړې شی | خلق | په وخت دڅاښت کښې |

به ده تاسو سره دمیلې ورځ نیټه شوه | او داچې خلق دې د څاښت په وخت کښې راجمع شی

## آسان ترجمه قرآن

فرعون اووئیل: نه بیا دهغه قومونو څه معامله شوه کوم چه مخکښې تیر شوې دی؟ موسٰی علیه السلام اوفرمائیل: د هغوی علم زما د رب سره په یو کتاب کښې محفوظ دې. زما رب نه غلطې کوی او نه ترې هیره کیږی. دا الله هغه ذات دې چه د زمکې نه ئې ستاسو دپاره فرش جوړ کړو. او په هغې کښې ئې ستاسو دپاره لارې جوړې کړې. او د آسمان نه ئې اوبه راورولې او بیا مونږ د هغې په ذریعه قسم قسم مختلف

نباتات راؤ یستل. خپله هم خورئ. او خپل څاروی هم څروئ. یقیناً په دې ټولو خبرو کښې د عقل والو دپاره ډیرې نخښې دی. هم د دې زمکې نه مونږ تاسو پیدا کړی وئ. هم دې ته به تاسو واپس بوځو. او هم د دې نه به مو یو کرت بیا راوباسو. حقیقت دا دې چه مونږ هغه فرعون ته خپلې ټولې نخښې اوښودلې خو هغه به تکذیب کولو او انکار ئې کولو. وې وئیل : اې موسیٰ! آیا ته د دې دپاره راغلې ئې چه مونږ د خپل جادو په ذریعه زمونږ د زمکې نه اوباسې؟ پس مونږ به هم ستا د مقابلې دپاره دغه شان جادو راوړو. اوس ته په یو فراخه میدان کښې ستا او زمونږ ترمینځه د مقابلې داسې وخت مقرر کړه چه د هغې خلاف ورزی نه مونږ اوکړو، او نه ته. موسیٰ علیه السلام اووئیل : تاسو سره د هغې ورځې نیټه د اختر ورځ چه جشن ماڼخلې شی او دا هم نیټه ده چه د څاښت په وخت دې خلق راجمع کړې شی.

**خلاصه تفسیر**

[ فرعون ] په دې شبهه وکړه چه [ ان العذاب علی من کذب وتولی او ﴿قَالَ فَمَا بَالُ الْقُرُوْنِ الْأُولٰى﴾ [ وې وئیل چه بیا نو د وړاندینو خلقو څه حال شو؟ ] کومو چه انبیاء ﷺ دروغژن کړی دی په دوی څه قسم عذاب نازل شو؟ ﴿قَالَ﴾ [ موسیٰ ﷺ [ وفرمائیل ] چه مادا دعوی نه ده کړې چه دغه وعده شوې عذاب په دنیا کښې راتلل ضروری دی بلکه کله خو په دنیا کښې هم راځی او په اخرت کښې خو به خامخا وی چنانچه ﴿عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّىْ فِىْ كِتٰبٍ﴾ [ د دغو خلقو ] د بدو عملونو [ علم زما د پروردګار سره په کتاب ] د عملونو [ کښې ] محفوظ [ دې ] اګر چه هغه ته د کتاب څه حاجت نه شته مګر د ځنې حکمتونو په بنا سره ئې داسې کړی دی غرض دا چې الله ﷻ ته د هغوئ اعمال معلوم دی زما رب داسې پوهیدونکې دې چه ﴿لَا يَضِلُّ رَبِّىْ وَلَا يَنْسَى﴾ [ نه غلطی کوی او نه ترې هیریږی ] پس د هغوی د عملونو صحیح صحیح علم هغه ته معلوم دې مګر د عذاب دپاره ئې وخت مقرر کړې دې هر کله چه هغه وخت راشی دغه عذاب به په دوی جاری کړې شی پس په دنیا کښې په نه عذابولو سره دا نه لازمیږی چه کفر او دروغژن کول سبب د عذاب نه دی تر دې پورې د حضرت موسیٰ ﷺ تقریر وشو وړاند الله تعالی د خپل ربوبیت د شان څه تفصیل بیانوی چه ذکرئ اجمالا د حضرت موسیٰ ﷺ په دې کلام کښې وو [ ربنا الذی اعطی الخ علمها عند ربی الخ لایضل ربی الخ ] چنانچه ارشاد دې چه ﴿الَّذِىْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ﴾ [ هغه رب [ داسې دې کوم چه تاسو لره مزکه ] په مثل د ﴿مَهْدًا﴾ [ فرش جوړه کړه ] چه ارام پرې کوئ ﴿وَّسَلَكَ لَكُمْ فِيْهَا سُبُلًا﴾ [ او په دې ] مزکه [ کښې ئې ستاسو ] د تللو [ دپاره لارې جوړې کړې ﴿وَّاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً﴾ او داسمان نه ئې اوبه ورولې ﴿فَاَخْرَجْنَا بِهٖۤ اَزْوَاجًا مِّنْ نَّبَاتٍ شَتّٰى﴾ بیا مونږ په دې ] اوبو [ سره مختلف قسم شنه بوټی پیدا کړل ] او تاسو ته مو اجازت درکړو چه ﴿كُلُوْا وَارْعَوْا﴾ [ خورئ په خپله ] هم ﴿اَنْعَامَكُمْ﴾ [ او خپلو څارو ولره ] هم [ څروی ﴿اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِى النُّهٰى﴾ په دې ټولو ] ذکرشوو [ څیزونو کښې د هو ښیارانو دپاره ] د الله تعالی په قدرت باند دلیل نیولو [ نښې دی ] اولکه څنګه چه شنه بوټی د مزکې نه راوباسی دغه شان ﴿مِنْهَا خَلَقْنٰكُمْ﴾ [ مونږ تاسو لره د دې مزکې نه ] په اول کښې [ پیدا کړئ ] لکه چه حضرت ادم ﷺ د خاؤرونه پیدا کړې شو پس د دهٔ په واسطه سره د ټولو ماده بعیده خاؤره شوه ﴿وَفِيْهَا نُعِيْدُكُمْ﴾ [ او په دې کښې به مونږ تاسو لره ] پس د مرګ نه [ بوځو ] چنانچه هر یو مرده په هر حالت کښې چه وی لیکن اخر که هر څومره موده پس وی خو د خاؤره سره به خامخا ملاویږی [ او ] د قیامت

په ورځ به ﴿وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ﴾ [ دوباره ددې خاوړونه مونږ تاسرلره راوباسو ] لکه څنګه چه اول خل مونږ تاسو لره ددې نه پيدا کړې وی

﴿وَلَقَدْ أَرَيْنَاهُ آيَاتِنَا كُلَّهَا﴾ [ اومونږ دهٔ] فرعون [ته خپلې] هغه [ټولې نښې وښودلې ] کومې چه حضرت موسى عليه السلام ته ورکړې شوې وې ﴿فَكَذَّبَ وَأَبَىٰ﴾ [ پس هغه دروغژنې کړې او انکارئ وکړو] او ﴿قَالَ﴾ [وئ وئيل چه ﴿أَجِئْتَنَا لِتُخْرِجَنَا مِنْ أَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يَا مُوسَىٰ﴾ اے موسى عليه السلام [ ته مونږ ته] ددې دعوې سره [ څکه راغلې چه مونږ لره زمونږ دملك نه] په زرو دخپل جادو سره وباسې او په خپله عوام وغولوې خپل تابعدارئ کړې او مشرئ شې ﴿فَلَنَأْتِيَنَّكَ بِسِحْرٍ مِثْلِهِ فَاجْعَلْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ مَوْعِدًا﴾ [پس اوس مونږ هم ستا په مقابله کښې داسې جادو لره راوړو ته زمونږ او په خپل مينځ کښې يوه وعده مقرر کړه ﴿لَا نُخْلِفُهُ نَحْنُ وَلَا أَنْتَ مَكَانًا سُوًى﴾ چه نه به ئ مونږ خلاف کوو اونه به ئ ته خلاف کوې په يو هوار ميدان کښې ] چه ټول خلق ئ ويني ﴿قَالَ﴾ [ موسى عليه السلام [ وفرمائيل ستاسو د] مقابلې د[وعدې وخت هغه ورځ ده په کوم کښې چه] ستاسو [ ميله وی ﴿مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ الزِّينَةِ وَأَنْ يُحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى﴾ او] په کومه کښې [ چه خلق دڅاښت په وخت کښې جمع کيږی ] او داظاهره خبره ده چه دميلې موقع اکثر به هوار مزکه کښې وی په دې سره به دمکان سوی شرط هم پوره شی

## معارف او مسائل

﴿قَالَ عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّي فِي كِتَابٍ ۖ لَا يَضِلُّ رَبِّي وَلَا يَنْسَى﴾ فرعون لعين د پخوانو امتونو د انجام سوال کړې وو که ددې په جواب کښې موسى عليه السلام هغوئ ته په ښکاره ګمراه او جهنميان وئيلې وې نو د فرعون به دې ته خله جوړه شوې وه چې دوئ عليه السلام خو يواځې مونږ ته نه بلکه ددنيا ټولوخلقوته ګمراه او جهنميان وائی . او په دې سره ئې د عوامو په زړونو کښې شك غورزولې شو خوموسى عليه السلام داسې دحکمت نه ډك جواب ورکړو چې چې خبره ئې هم پوره او فرعون ته دا موقعه هم ملاؤ نشو چې دوئ عليه السلام خلقو ته په ګوته کړی وې فرمائيل چې ددې علم زمارب سره دې چې دهغوئ به څه انجام وی ؟ څکه چې زما رب نه نه غلطی کيږی او نه ترې هير کيږی . د غلطئ مراد دادې چې اراده ئې د يو کار کولو وی او اوکړی بل کار . او د هيرې مطلب ښکاره دې .

﴿أَزْوَاجًا مِنْ نَبَاتٍ شَتَّىٰ﴾ دلته د ازواج لفظ د قسماقسم معنی ورکوی . شتی د شيت جمع ده، چې د مختلف او بيل بيل معنی ورکوی . مراد دا شو چې د بوټو دومر بې شميره قسمونه ئې پيدا کړل چې ددې په ټولو قسمونو باندې د انسان علم نشی راچاپيره کيدې ، بيا هرې زرغونې او بوټی کښې په هر ګل ، ميوه کښې او د ونو بوټو په پوستکو وغيره کښې يې داسې داسې خاصيتونه ايخودی دی چې د علم طب او ډاکټرئ ماهران حيران دی ، او د زرګونو کلونو تحقيقاتو باوجود هم څوك دعوی نشی کولې چې دغه ټول ليکل او تحقيق بالکل آخرې خبره ده . لهذا د ونو بوټو مختلف قسمونه د انسان او د انسان د ساتلو څاروو او ځنګلې ځناورو خوراکه يا دارو وی . ددې د لرګو نه انسان د مکانونو آبادولو کار اخلی او د کورنی استعمال ګڼر څيزونه دې نه جوړ وی . ﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾ .(١)

١) ترجمه:- پس څه لوئی شان دې دالله تعالی جل شانه چې د ټولو پيدا کوونکو نه ډير غوره دې.

ځکه ئې په آخر کښې اوفرمائيل چې: ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّأُولِي النُّهَىٰ﴾ [په دې کښې د الله ﷻ د کامل قدرت نخښې دی چې عقل مندو خلقو دپاره] نهی د نهية جمع ده، ددې معنی عقل په دې وجه ده چې دا انسان لره د خرابو او ضروری کارونو نه ايساروی.

**د هر انسان په خمير کښې نطفې سره د هغه ځائې خاوره هم ګډه وی چرته به چې هغه دفن کیږی:** ﴿مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ﴾ دمنها ضمير زمکې ته راجع دې، معنی ئې دا شوه چې مونږ تاسو د زمکې د خاورې نه پيدا کړئ. ددې مخاطب ټول بنيادم دی حالانکه د عامو بنيادمو پيدا کيدل د خاورې نه نه دی، بلکه د نطفې نه دی، سوا د آدم ؑ نه چې هغوئ نيغ په نيغه د خاورې نه پيدا شوی وو، نوخطاب بهٔ ټولو بنيانو ته په دې شان وی چې هر کله ستاسو اصل او د ټولو پلار آدم ؑ وو او دهغوئ پيدا کيدل د خاورې نه وو نو داسې شوه چې تاسو ټول ګويا که د خاورې نه پيدا يئ، ځينې حضرات فرمائی چې هره نطفه هم د خاورې نه پيدا کيږی نو ددې نه د بنيادمو پيدا کيدل په حقيقت کښې د خاورې نه پيدا کيدل دی، امام قرطبی ؒ فرمائی چې د قرآن عظيم الشان د الفاظو نه ښکاره خبره هم داده چې هر انسان د خاورې نه پيدا شوی دې. او ځينو حضراتو فرمائيلی دی چې دهر انسان په پيدا کيدو کښې الله ﷻ په خپل کامل قدرت سره خاوره شاملوی، ځکه ئې دهر انسان پيداکيدل نيغ په نيغه دخاورې نه اوبلل.
امام قرطبی ؒ فرمائی چې قرآن عظيم الشان په ښکاره ټکو کښې فرمائی چې انسان د خاورې نه پيدادې، دابی هريره ؓ په روايت سره استدلال کړې دې چې نبی اکرم ﷺ فرمائيلی دی چې په هر پيدا کيدونکی انسان باندې د مور په رحم کښې دهغه ځائې خاوره اوشيندلې شی چرته چې دهغه ښخيدل وی.(¹) دا حديث پاك د ابو نعيم د ابن سيرين په تذکره کښې روايت کړې فرمائيلی ئې دی چې دا حديث پاك غريب دې، د حديث پاك د عون نه مونږ نه دې ليکلې د حديث پاك مګر د حديث د عاصم بن نبيل نه او دې د اوچتې مرتبې ثقه عالمانو د بصرې ځينې دې.
اوداسې مضمون يوروايت دعبدالله بن مسعود ؓ نه هم منقول دې اوعطاء خراسانی ؒ فرمائيلی دی چې کله په رحم کښې نطفه ځائې اونيسی نوددې نه د پيدا کيدونکی انسان په پيدا کيدو باندې چې کومه فرښته مقرر وی هغه لاړه شی او دهغه ځائې نه راوړلې خاوره په دې کښې ګډه کړی چرته چې دې ښخيدل وی. په دې بنا د انسان پيدا کيدل د نطفې او خاورې دواړو نه وی او هم په دې آيت مبارك سره ئې دليل نيولې دې چې: ﴿مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ﴾ [قرطبی](²)
تفسير مظهری کښې د عبدالله بن مسعود نه روايت دې چې فرمائيلی دی چې د هر پيدا کيدونکی ماشوم په نوم[ناف] کښې د خاورې څه برخه اچولې شی کله چې مرشی نو هم په دغه زمکه کښې ښخولې شی. دا روايت خطيب نقل کړې دې او فرمائيلی ئې دی چې دا حديث پاك غريب دې، او ابن جوزی دا په موضوعاتو کښې حساب کړې دې. خو شيخ محدث ميرزا محمد حارثی بد خشی فرمائيلی دی چې ددې حديث پاك ګڼ شواهد د ابن عمر ؓ،

¹) حلية الأولياء [ج:۲ ص:۲۸۰]
²) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:۱۱ ص:۲۱۰]

ابن عباس ﷺ ، ابی سعد خدری ﷺ او ابی هریره ﷺ نه منقول دی. چې ورسره د روایت قوی کیږی ، ځکه دا حدیث پاك د حسن نه کم نه دې [ مظهری ][١]

﴿مَكَانًا سُوًى۝﴾ د موسی ﷺ اود جادوګرو د مقابلې دپاره فرعون داسې ځائې پخپله تجویز کړو چې فرعونیانو ، موسی ﷺ او بنی اسرائیلو دپاره ورته مزل یو شان وی چې هیڅ یوې ډلې ته دلرې تلو تکلیف پېښ نشی ، موسی ﷺ د اقبوله کړه او د ورځې او وخت ټاکل ئې داسې اوکړل چې :

﴿مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ الزِّينَةِ وَأَن يُحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى۝﴾ یعنی دا مقابله د زینت په ورځ پکار ده چې هغه یا خو د اختر یا د میلې ورځ کیدې شی ، په دې کښې اختلاف دې چې دا کومه ورځ وه ، ځینو وئیلی دی چې د فرعونیانو د اختر څه ورځ مقرره وه. چې ښکلې جامې به ئې واغوستې او ډېنار نه به بهر وتل ، ځینې وائی چې هغه د نیروز ورځ وه ، څوك وائی چې دا د خالی ورځ وه ، کومه به چې دې خلقو بزرګه ورځ ګڼرله. ځینې وائی چې دا د عاشورې ورځ وه.

**فائده** :: موسی ﷺ د ورځې او وخت ټاکلو کښې د لوئې حکمت نه کار داسې واخستو چې ورځ ئې دهغوئ د اختر ځکه مقرر کړه چې په دې کښې لوې واړه د هرې طبقې خلقو راجمع کیدل د مخکښې څخه مقرر وو. ، ددې لازمی نتیجه دا وه چې د راغونډه به ډیره ګڼره شی او د ښار ټول خلق په دې شامل شی .او د ضحی یعنی د څابښت وخت ئې ځکه غوره کړو چې دا د نمر د راختلو څخه وروستو وی او په دې یو مصلحت دا دې چې ټول خلق د خپلو ضروریاتو څخه فارغ شی او راتګ ورته آسان شی ، دویم حکمت په کښې دادې چې د رڼرا ښکاریدو په اعتبار سره په ټوله ورځ کښې زیات غوره ځکه هم دې چې داسې وخت کښې ډیر په دلجمعئ سره او سکون سره کارونه کیږی. او دداسې وخت د اجتماع څخه چې خلق خواره شی نو خبره تر لرې لرې پورې اورسیږی. نو په دغه ورځ کله چې موسی ﷺ د الله ﷻ فضل سره په فرعونی جادوګرو باندې بر راغلو هم په دغه ورځ تر لرې لرې نو ټول ښار کښې بلکه تر لرې لرې پورې ئې شوربښت اوشو.

**د جادو حقیقت ددې قسمونه اوشرعی حکمونه** :: دامضمون په پوره تفصیل سره سورة بقره کښې د هاروت او ماروت په قیصه کښې بیان شوې دې هم هغه ځائې کښې دې اوکتلې شی.

| فَتَوَلّٰی فِرْعَوْنُ | فَجَمَعَ | كَيْدَهٗ | ثُمَّ | اَتٰی۝ |
|---|---|---|---|---|
| نو واپس شو فرعون | او راجمع ئې كړل | [اسباب] دمكر فريب خپل | بيا | راغلې [مقابلې له] |
| غرض دا چې فرعون واپس شو | نو خپل دمكر سامان ئې ټول راغونډ كړو | نو بيا موسى ﷺ هغه خلقو | | |

| قَالَ لَهُمْ | مُوْسٰى | وَيْلَكُمْ | لَا تَفْتَرُوْا | عَلَى اللّٰهِ | كَذِبًا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوونيل هغوئ ته | موسى | هلاكت دې تاسو دپاره | مه تړئ | په الله باندې | دروغ |
| ته اوونيل | چې هلاك شئ | ............تاسو په الله ﷻ باندې د درغو بهتانونه مه تړئ | | | |

[١] تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:١٤٦]

فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ ۚ وَقَدْ خَابَ مَنِ افْتَرَىٰ ۝٦١

گني هلاك به كړي تاسو | په عذاب سره | اونامراده شو | هغه څوك | چي دروغ ئې جوړ كړل |

گني هغه به تاسو په عذاب سره هلاک کړي | او څوک چې دروغ جوړوي هغه نامراده پاتې شوې دي

فَتَنَازَعُوا أَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ وَأَسَرُّوا

نواختلاف راغې دهغوئ | په كار خپل كښې | په منځ خپل كښې | او پټې پټې ئې شروع كړې |

بيا هغوئ په خپل مينځ کښې په خپله خبره کښې په جنګ شو | او پټې مشورې ئې اوکړې

النَّجْوَىٰ ۝٦٢ قَالُوا إِنْ هَٰذَانِ لَسَاحِرَانِ يُرِيدَانِ أَنْ يُخْرِجَاكُمْ

دغوړ خبرې | اووئيل هغوئ | دا دواړه | جادوګران دي | غواړي دوئ دواړه | چې اوباسي تاسو |

بيا ئې اووئيل چې دا دواړه رونړه هم جادوګر دي | او دا غواړي چې تاسو دخپل ملک

مِنْ أَرْضِكُمْ بِسِحْرِهِمَا وَيَذْهَبَا بِطَرِيقَتِكُمُ الْمُثْلَىٰ ۝٦٣

د زمكې ستاسو نه | په جادو خپل سره | او ختمې كړي | لارې [دژوند] ستاسو | غوره

نه دجادو په ذريعه اوباسي | اوستاسو بهترينه لاره چاره ورانه کړي | نوټول سره رايوځائې

فَأَجْمِعُوا كَيْدَكُمْ ثُمَّ ائْتُوا صَفًّا ۚ وَقَدْ أَفْلَحَ الْيَوْمَ

نو راجمع كړئ | تدبيرونه خپل | بيا راشئ | قطار قطار [په اتفاق] | او كامياب شو | نن ورځ

شئ | او دخپل فن مظاهره اوکړئې | نو بيا قطار قطار راشئ | ځکه چې نن به هغه څوک ميدان ګټي

مَنِ اسْتَعْلَىٰ ۝٦٤ قَالُوا يَا مُوسَىٰ إِمَّا أَنْ تُلْقِيَ

هغه څوك | چې غالب شو | اووئيل [جادوګرانو] | اې موسى | يا به ته غورزوې [همساخپله] |

چې غالب راشي | هغوئ [جادوګرو] اووئيل چې ائې موسى يا خو ته رومبې خپله [همسا] اوغورزوه او

وَإِمَّا أَنْ نَكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَلْقَىٰ ۝٦٥ قَالَ بَلْ

او يا به شو مونږه | اول | هغه څوك | چې غورزوى [جادوخپل] | اووئيل موسى | بلكه

يا ئې هم مونږ رومبې غورزو | ..........موسى ﷺ اووئيل چې تاسو اول اوغورزوئې

أَلْقُوا ۖ فَإِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ

اوغورزوئې تاسو | نو فورا | رسئ دهغوئ | او همساګانې دهغوئ | په خيال كښې راتلې هغه ته |

نوناګهانه دهغوئ رسئ او همساګانې دموسى ﷺ په خيال كښې دجادو په زور سره

مِنْ سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَىٰ ۝٦٦ فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ

دوجې د جادو دهغوئ نه | داسې لكه چې هغه [ماران دي] منډې وهي | نو اوموندله | په زړه خپل كښې

داسې ښکاره شوې لکه چې منډې وهي | په دې باندې موسى ﷺ په خپل زړه کښې

خِيفَةً مُوسَىٰ ۝٦٧ قُلْنَا لَا تَخَفْ إِنَّكَ أَنْتَ الْأَعْلَىٰ ۝٦٨ وَأَلْقِ

يره | موسى | اووئيل مونږه | مه يريږه | بيشكه ته | هم ته | به غالب ئې | او اوغورزوه

ويره محسوس کړه | مونږ ورته اووئيل چې مه ويريږئې هم ته به برې بيا مومې | او داستا

| مَا | فِىْ يَمِيْنِكَ | تَلْقَفْ | مَا | صَنَعُوْا |
|---|---|---|---|---|
| هغه څه | چې په ښي لاس ستا کښې دی | تیر به کړي | هغه څیزونه | چې جوړ کړی دی دوئ |

په ښي لاس کښې چې [همسا] ده دا اوغورزوه | ددوئ جوړ کړی ټول څیزونه بهٔ تیر کړي

| اِنَّمَا | صَنَعُوْا | كَيْدُ | سٰحِرٍ | وَلَا يُفْلِحُ |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه هغه څه | چې جوړ کړی دی دوئ | مکر [فریب] | دجادوګر دې | او بري نهٔ شي موندې |

دوئ چې څه جوړ کړی دی دا خو تش دجادو فریب دې | او جادوګر چې هر خائې ته لاړشي نو

| السّٰحِرُ | حَيْثُ اَتٰى | فَاُلْقِىَ | السَّحَرَةُ | سُجَّدًا | قَالُوْٓا |
|---|---|---|---|---|---|
| جادوګر | په هر شان سره چې راشی | پس اوغورزولې شو | جادوګران | سجده کونکی | وې وئیل |

کامیابیدې نشی | .........................بیا جادوګر په سجده پریوتل او دائې اووئیل چې

| اٰمَنَّا | بِرَبِّ هٰرُوْنَ | وَمُوْسٰى | قَالَ | اٰمَنْتُمْ | لَهٗ |
|---|---|---|---|---|---|
| ایمان راوړو مونږ | په رب دهارون | او دموسی | اووئیل فرعون | ایمان راوړلو تاسو | په هغه باند |

مونږ خو د هارون ﷺ او موسی ﷺ په رب باندې ایمان راوړو | فرعون اووئیل زما د اجازت نه وړاندې

| قَبْلَ | اَنْ اٰذَنَ | لَكُمْ | اِنَّهٗ | لَكَبِيْرُكُمُ |
|---|---|---|---|---|
| مخکښې ددې نه | چې اجازت کړې ووما | تاسو ته | بیشکه چې هغه | خامخا مشر دې ستاسو |

تاسو په ده ایمان راوړو | .............................. بیشکه چې داستاسو هغه مشر [استاد] دې

| الَّذِىْ | عَلَّمَكُمُ | السِّحْرَ | فَلَاُقَطِّعَنَّ | اَيْدِيَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| هغه [مشر] | چې ښودلې ئې دې تاسو ته | جادو | نو خامخا پریکوم زهٔ | لاسونه ستاسو |

چې تاسو ته ئې هم جادو خودلې دې | نو اوس زه ستاسو لاس او پښې ادل بدل پریکوم

| وَاَرْجُلَكُمْ | مِّنْ خِلَافٍ | وَّلَاُوصَلِّبَنَّكُمْ | فِىْ جُذُوْعِ | النَّخْلِ |
|---|---|---|---|---|
| او خپې ستاسو | ادلې بدلې | او خامخا په سولئ کوم تاسو | په تنو کښې | دکجورو |

او دکهجورو ونو کښې مو په سولئ خیژوم اودابه درته معلوم شي چې په

| وَلَتَعْلَمُنَّ | اَيُّنَآ | اَشَدُّ عَذَابًا | وَّاَبْقٰى |
|---|---|---|---|
| او پته به اولګی تاسو ته | چې کوم یو زمونږ نه | زیات سخت دې په لحاظ دعذاب سره | او باقی پاتې کیدونکې دې |

مونږ دواړو کښې دچا عذاب سخت دې | او زیات پاتې کیدونکې دې | هغوئ [جادوګرو] ورته

| قَالُوْا | لَنْ نُّؤْثِرَكَ | عَلٰى مَا | جَآءَنَا |
|---|---|---|---|
| اووئیل جادوګرانو | هر ګز به ترجیح درنهٔ کړو تالره | په هغې باند | چې راغلی دی مونږ ته |

اووئیل چې مونږ به تا هیڅ کله غوره نه کړو | دهغې ښکاره دلیلونو نه پس چې مونږ ته راغلی دی

| مِنَ الْبَيِّنٰتِ | وَالَّذِىْ | فَطَرَنَا | فَاقْضِ | مَآ | اَنْتَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دروښانه نښو نه | قسم دې په هغه ذات | چې پیدا کړی ئې یو مونږ | پس اوکړه | هغه څه | چې تهٔ |

اودهغې الله ﷻ په مقابله کښې چې مونږ ئې پیدا کړی یو | ته چې هر څه فیصله کول غواړې

قَاضٍ ۖ إِنَّمَا تَقْضِي هَٰذِهِ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا ۝ إِنَّا آمَنَّا

كونكي ني | بيشكه | ته فيصله كولې شې | ددې ژوند ددنيا | بيشكه مونږه | ايمان راوړى دى

هغه اوكړه | ته خوبس ددې دنيا په حقله [چې څه غواړې هغه] كولې شې | مونږ خو پخپل رب ايمان راوړو

بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا خَطَايَانَا وَمَا أَكْرَهْتَنَا

په رب خپل | دپاره ددې چې اوبښى | مونږ لره | خطاګانې زمونږه | او هغه | چې مجبوره كړى يو تا مونږه

چې هغه زمونږ ګناهونه معاف كړى | اوكوم د جادو كولو په باره كښې چه تا په مونږ كوم زياتې كړې دى

عَلَيْهِ مِنَ السِّحْرِ ۗ وَاللَّهُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ ۝ إِنَّهُ

په هغې باند | چه جادو دې | او الله | بهتر دې | او باقي پاتې كيدونكې دې | بيشكه شان دادې

هغه [هم راته اوبخښى] | او الله ﷻ د هرچانه غوره دې اوباقې پاتې كيدونكې دې | ياد ساتئ

مَن يَأْتِ رَبَّهُ مُجْرِمًا فَإِنَّ لَهُ جَهَنَّمَ ۖ لَا يَمُوتُ

چې څوك ورشى | رب خپل ته | په حيثيت دمجرم | نو بيشكه | دپاره دهغه | دوزخ دې | چې نۀ به مرى

چې څوک خپل رب ته د مجرم په حيثيت راشى | نو بيشكه هغه دپاره جهنم دې | چې نه به په كښې مرى

فِيهَا وَلَا يَحْيَىٰ ۝ وَمَن يَأْتِهِ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ

په هغې كښې | او نۀ به ژوندې اوسى | او څوك چې ورشى هغه ته | په حيثيت دمومن | چې كړى ئې وى

او نه به رغيږى | اوڅوك چې ورته ايماندار ورشى | چې دنيكئ كارونه ئې كړى وى

الصَّالِحَاتِ فَأُولَٰئِكَ لَهُمُ الدَّرَجَاتُ الْعُلَىٰ ۝ جَنَّاتُ

نيك عملونه | نو دغه كسان چې دى | دى دهغوئ دپاره | مرتبې | اوچتې | باغونه دى

نوداسې خلقو دپاره اوچتې اوچتې درجې مقرر دى | ............[يعنى] د هميشه استوګنې باغونه

عَدْنٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ۚ

دهميشه استوګنې | چې بهيږى به | لاندې د ونود هغې نه | نهرونه | هميشه به وى | په هغې كښې

چې دهغې لاندې به ولې بهيږى | دوئ بۀ په كښې تل ترتله اوسيږى [چه د وتو ويره به ئې نه وى]

وَذَٰلِكَ جَزَاءُ مَن تَزَكَّىٰ ۝

او دا جزا ده | دهغه چا | چې پاكوالې ئې اختيار كړو |

اوهم دغه انعام دې د هغه چا چې پاک شو |

**آسان ترجمه قرآن**

پس فرعون (خپل ځائي ته) واپس لاړو، اوهغه خپل ټول تدبيرونه راجمع كړل، بيا (د مقابلې دپاره) راغلو موسٰى عليه السلام هغوى (يعنى جادوګرو ته) اووئيل: افسوس دې په تاسو باندې! په الله پاک باندې بهتان مه تړئ، ګني هغه به په يو سخت عذاب باندې تاسو ختم كړى، اوڅوک چه بهتان تړى، هغه نامراده كيږى. په دې باندې د هغوى په خپله راتې ګانمولو باندې اختلاف شو، او پټې پټې خبرې ئې شروع كړې. (آخردا چه) هغوى اووئيل چه: دا دواړه (يعنى موسٰى او هارون عليهما السلام)

جادوګر دی او دوی غواړی چه تاسو د خپلې زمکې نه اوباسی. او ستاسو بهترینه (دینی) طریقه ختمه کړی. لهٰذا خپل ټول تدبیرونه مضبوط کړئ. بیا صف تړلو سره راشئ. او یقین لرئ چه څوک نن غالب شو کامیابی به هم هغه ته ملاویږی. جادوګرو اووئیل : اې موسیٰ! یا خو ته (خپله همسا مخکښې) اوغورځوه. یا به مونږ په غورځولو کښې رومبی شو؟ موسیٰ علیه السلام اوفرمائیل: نه بلکه هم تاسو اوغورځوئ. پس بیا ناڅاپه د هغوی (غورځولې شوې) رسئ او همساګانې د هغوی د جادو په نتیجه کښې موسیٰ علیه السلام ته داسې محسوس شوې ګویا منډې وهی. په دې باندې موسیٰ علیه السلام ته په زړه کښې ویره محسوس شوه. مونږ اووئیل : ویریږه مه. یقین ساته چه هم ته به غالب کیږې او کومه (همسا) چه ستا په ښی لاس کښې ده. دا (په زمکه) باندې اوغورځوه. دې خلقو چه کومه کاریګری کړې ده. دا به هغه ټول تیر کړی. دهغوی ټوله کاریګری د جادو د یو کرتب نه سوا هیڅ نه دی. او جادوګر چه هر چرته لاړ شی. هغه به نه کامیابیږی پس (هم دغه شان اوشوه) او ټول جادوګر په سجده کښې اوغورځولې شو . وې وئیل چه: مونږ د هارون او موسیٰ په رب باندې ایمان راوړو. فرعون اووئیل: تاسو په هغهٔ باندې زما د اجازت نه مخکښې ایمان راوړلو. زما یقین دې چه دې (یعنی موسیٰ علیه السلام) ستاسو مشر دې چا چه تاسوته جادو ښودلې دې. اوس ما هم کلکه اراده کړې ده چه ستاسو لاس خپې به د مخالف طرف نه پرې کوم . او تاسو به د کهجورو په ګنو باندې په سولئ کوم. او تاسو ته به یقینی معلومه شی چه په مونږ دواړو کښې د چا عذاب زیات سخت او ډیر وخته پورې پاتې کیدونکې دې. جادوګرو اووئیل: قسم په هغه ذات چا چه مونږ پیدا کړوا زمونږ مخې ته چه کوم روښانه نخښې راغلې دی. په هغې باندې به مونږ تاته هرګز ترجیح ورنکړو اوس چه ته څه کولې شې. اوکړه. ته چه هر څه کوې. هغه به هم د دې دنیا د ژوند دپاره وی. مونږخو په خپل رب باندې ایمان راوړې دې. چه هغه زمونږ ګناهونه معاف کړی. او د جادو هغه کار هم په کوم باندې چا تا مونږ مجبور کړو . او الله پاک د ټولو نه غوره او همیشه باقی پاتې کیدونکې دې. حقیقت دا دې چه کوم انسان خپل رب ته مجرم راشی. د هغه دپاره جهنم دې چه په هغې کښې به هغه نه مری او نه به ژوندې وی او څوک چه هغه ته مومن راشی چه نیک عملونه ئې هم کړې وی. نو د هم داسې خلقو دپاره اوچتې درجې دی. هغه د همیشوالی باغونه چه لاندې به ترې نه نهرونه بهیږی. چه په هغې کښې به همیشه اوسیږی! او دا بدله ده دهغه چا چه پاکی ئې اختیار کړه.

## خلاصه تفسیر

[غرض ] چه دایٔ واوریدل [ فرعون ] د دربارنه خپل ځایٔ ته ﴿فَتَوَلّٰى فِرْعَوْنُ﴾ [ واپس شو بیایٔ دخپل مکر ] یعنی جادو ﴿فَجَمَعَ كَيْدَهٗ ثُمَّ اَتٰى﴾ [سامان جمع کول شروع کړل بیا] دټولو سره هغه میدان ته دکوم ځایٔ چه وعده شوې وه [ راغلو] دغه وخت ﴿قَالَ لَهُمْ مُّوْسٰى﴾ [ موسی ﷺ دغو] جادوګرو خلقوته ووئیل چه ﴿وَيْلَكُمْ لَا تَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ [ اے کم بختی: راخستو په الله تعالی دروغ مه جوړویٔ ] چه دهغه دوجود یاتوحیدنه انکار وکړیٔ یاد هغه ظاهرو کړو معجزوته سحر ووایی: ﴿فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ﴾ [چرته به الله تعالی تاسولره په څه قسم سزا سره بلکل نیست ونابود کړی ﴿وَقَدْ خَابَ مَنِ افْتَرٰى﴾ او څوك چه دروغ جوړوی هغه ] اخر [ ناکامه

کیږي ﴿فَتَنَازَعُوا أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ﴾ پس جادو ګرو] دا خبره واوریده ددې دواړو حضراتو په باره کښې [ دیو بل سره په خپله راې کښې اختلاف شروع کړو ﴿وَأَسَرُّوا النَّجْوَىٰ﴾ او پټې خبرې ئې شروع کړې] اخر ټول متفق شول ﴿قَالُوا إِنْ هَٰذَانِ لَسَاحِرَانِ يُرِيدَانِ﴾ [ وئې وئیل چه بیشکه دادواړه جادوګران دي ددوی مطلب دادې چه] د[ خپل جادو] په زور سره ﴿أَن يُخْرِجَاكُم مِّنْ أَرْضِكُم بِسِحْرِهِمَا﴾ [تاسولره ستاسو دمزکې نه بهر کړي ﴿وَيَذْهَبَا بِطَرِيقَتِكُمُ الْمُثْلَىٰ﴾ او ستاسو ښکلې [ مذهبي [طریقه ورانه کړي ﴿فَأَجْمِعُوا كَيْدَكُمْ﴾ نو اوس تاسو په جمع دخپل تدبیر انتظام وکړئ ﴿ثُمَّ ائْتُوا صَفًّا﴾ اوبیا صفونه برابر کړئ ] مقابله ته [ راشئ ﴿وَقَدْ أَفْلَحَ الْيَوْمَ مَنِ اسْتَعْلَىٰ﴾ او نن هغه کامیاب دې کوم چه غالب شو ] ﴿قَالُوا يَا مُوسَىٰ﴾ بیا [ دوی ] موسیٰ ﷺ ته [ ووئیل چه اے موسیٰ ﷺ ﴿إِمَّا أَن تُلْقِيَ وَإِمَّا أَن نَّكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَلْقَىٰ﴾ یا خو به [ ته ] خپله همسا موسیٰ ﷺ [وړاندغورزوې اوکه اول مونږ غورزونکی شو ] ﴿قَالَ بَلْ أَلْقُوا﴾ ډیر په بې پرواهئ سره ئې [اوفرمائیل ناتاسو وړاند وغورزوئ] نو هغوی خپلې رسئ او همسا ګانې وغورزولې او نظر بندی ئې وکړه ﴿فَإِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِن سِحْرِهِمْ﴾ [ پس یکدم ددوی رسئ او همساګانې ددوی په نظر بندئ سره دموسیٰ ] ﷺ [ په خیال کښې داسې معلومې شوې لکه ] دمارانو په شان ﴿أَنَّهَا تَسْعَىٰ﴾ [ روان وی منډې وهی پس موسیٰ ] ﷺ ﴿فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ خِيفَةً مُّوسَىٰ﴾ [په زړه کښې لږ شان وویریدو ] چه هرکله په لیدو کښې دا رسئ او همساګانې هم ماران معلومیږی او زما همسا هم د ډیرو نه ډیرماران جوړه شی نو لیدونکی خو به دواړه څیزونه یو شان ګڼړی نو په حق او باطل کښې به فرق څنګه وکړی او دا ویره طبعی وه که نه وی نو دحضرت موسیٰ ﷺ یقین وو چه هرکله الله تعالی دا حکم کړې دې نو ددې دټولو لوړو ژورو په ئې هم انتظام کړې وی او دخپل رالیږلی شوی پیغمبر به پوره مدد کوی او دا ویره طبعی کوم چه د وسوسې په درجه کښې وه دکمال د شان منافی نه ده غرض هرکله چه ورله دا ویره راغله نو دغه وخت ﴿قُلْنَا لَا تَخَفْ إِنَّكَ أَنتَ الْأَعْلَىٰ﴾ [مونږ ووئیل ته ویریږه مه ته به غالب ئې او] صورت ئې دادې چه ﴿وَأَلْقِ مَا فِي يَمِينِكَ﴾ [ ستا په ښی لاس کښې چه ] همسا [ده دغه وغورزوه دې خلقو چه څه تماشه [جوړه کړې ده دا] همسا [ به ﴿تَلْقَفْ مَا صَنَعُوا ۖ إِنَّمَا صَنَعُوا كَيْدُ سَاحِرٍ ۖ﴾ ټول هر څه تیر کړی دا څه چه جوړ شوی دی دجادوګرانو تماشه ده ﴿وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُ حَيْثُ أَتَىٰ﴾ او جادوګر چرته چه ځی ] دمعجزې په مقابله کښې چرته [نه شی کامیابیدې ] دموسیٰ ﷺ تسلی وشوه چه اوس به فرق ښه معلوم شی نو دوی همسا وغورزوله او هغې واقعی چه ټول تیر کړل ﴿فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سُجَّدًا﴾ [پس جادوګران ] چه دا دسحر نه اوچت کارئ ولیدو نو پوه شول چه دابیشکه معجزه ده او فورا ټول [ په سجده پریوتل ] او په اوچت اواز سره ئې ﴿قَالُوا آمَنَّا بِرَبِّ هَارُونَ وَمُوسَىٰ﴾ [ ووئیل چه مونږ خو ایمان راوړو هارون او موسیٰ ] ﷺ [ په رب باند فرعون ] چه د واقعه ولیده نو جادوګران ئې وویرول ﴿قَالَ آمَنتُمْ لَهُ قَبْلَ أَنْ آذَنَ لَكُمْ ۖ﴾ [ ووئیل چه بغیر ددې نه چه زۀ تاسوته اجازت وکړم ] یعنی زما دمرضئ خلاف [تاسو په موسیٰ ] ﷺ [ایمان راوړو واقعی ] معلومیږی چه ﴿إِنَّهُ لَكَبِيرُكُمُ الَّذِي﴾ [دغه ] په سحر کښې [ ستاسو هم مشر] استاذ [ دې ﴿عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ﴾ چه دۀ تاسوته سحر ښودلې دې ] اوشاګردانو او استاذ سازش کولو سره جنګی زرګری کړې دې چه تاسوته ریاست حاصل شی [پس] اوس به حقیقت معلوم شی ﴿فَلَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُم مِّنْ

خِلَافٍ﴾ [ زه ستا دتولو لاسونه پښې پريكوم ديو طرف لاس او ديو طرف پښه ﴿وَلَاُصَلِّبَنَّكُمْ فِي جُذُوْعِ النَّخْلِ﴾ او تاسو ټول به دكجورو په اونو پورې زوړندوم ] چه ټول ئې ووينى او عبرت حاصل كړى ﴿وَلَتَعْلَمُنَّ﴾ [ او دابه هم تاسو ته معلومه شى چه په مونږ دواړو كښې] يعنى په ما او په رب دموسى عليه السلام كښې ﴿اَيُّنَا اَشَدُّ عَذَابًا وَّاَبْقٰى﴾ [ دچا عذاب زيات سخت او ډير وخت پاتې كيدونكې دې ﴿قَالُوْا لَنْ نُّؤْثِرَكَ عَلٰى مَا جَآءَنَا مِنَ الْبَيِّنٰتِ﴾ دې خلقو صفا جواب وركړو چه مونږ تالره چرې نه غوره كوو په مقابله دهغو دليلونو كښې كوم چه مونږ ته ملاوشوى دى ﴿وَالَّذِيْ فَطَرَنَا فَاقْضِ مَآ اَنْتَ قَاضٍ﴾ او په مقابله دهغه ذات كښې چاچه مونږ پيدا كړى يو ته چه څه كول غواړې ] ښه په ارت مټ ئې [ وكړه ﴿اِنَّمَا تَقْضِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا﴾ ته بغير ددې نه چه ددنيا په دې ژوندكښې څه وكړې اوته نور كولې هم څه شې ﴿اِنَّآ اٰمَنَّا بِرَبِّنَا﴾ پس مونږ خو په خپل پروردګار ايمان راوړو چه ﴿لِيَغْفِرَ لَنَا خَطٰيٰنَا﴾ زمونږ تير ګناهونه ] كفر وغيره [ معاف كړى ﴿وَمَآ اَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ السِّحْرِ﴾ او تاچه كوم ] مقدمه د [ جادو په مونږ په زبردستئ وكړو داهم معاف كړى ﴿وَاللّٰهُ﴾ او الله تعالى ] په اعتبار د ذات او صفتونو هم تانه ﴿خَيْرٌ﴾ [ په ډير دروجو غوره دې او] په اعتبار دثواب او عذاب هم ﴿وَّاَبْقٰى﴾ [ زيات باقى پاتې كيدونكې دې ] او تاته نه غوره والې نصيب دې او نه بقاء نو ستا به څه انعام وى چه تائ مونږ سره وعده كړې وه او څه به دعذاب وى چه اوس ترې مونږ ويروې او الله تعالى د چاچه ثواب او عذاب باقى پاتې كيدونكى دى دهغه قانون دادې چه ﴿اِنَّهٗ مَنْ﴾ [ كوم سړى] دبغاوت [ مجرم شى ] يعنى كافر شى ﴿يَّاْتِ رَبَّهٗ مُجْرِمًا﴾ [ خپل رب ته حاضر شى ﴿فَاِنَّ لَهٗ جَهَنَّمَ﴾ پس دده دپاره دوزخ ] مقرر [دې ﴿لَا يَمُوْتُ فِيْهَا﴾ په دې كښې به نه مرى ﴿وَلَا يَحْيٰى﴾ او نه به ژوندې وى ] نه مرهٔ كيدل خو ظاهر دى اونه ژوندى كيدل داچه دژوند ارام به ورته نه وى ﴿وَمَنْ يَّاْتِهٖ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ الصّٰلِحٰتِ﴾ [ اوكوم سړې چه دهٔ ته مومن كيدو سره حاضر شى چه نيك كارئ هم كړې وى ﴿فَاُولٰٓئِكَ لَهُمُ الدَّرَجٰتُ الْعُلٰى﴾ پس دداسې خلقو دپاره لوئ او چتې درجې دى ﴿جَنّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ﴾ يعنى دهميشه وسيدو باغونه چه لاند به ترينه نهرونه بهيږى ﴿خٰلِدِيْنَ فِيْهَا﴾ او هغوى به په دې كښې هميشه هميشه وسيږى او كوم سړې چه ] دكفر او ګناه نه ﴿وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا مَنْ تَزَكّٰى﴾ [ پاك شو دهغه دا انعام دې ] پس ددې قانون موافق مونږ كفر لره پريښودو او ايمان مو اختيار كړو

## معارف او مسائل

[فَجَمَعَ كَيْدَهٗ] فرعون خپل كيد يعنى چل داسې اوكړو چې د موسى عليه السلام دمقابلې دپاره يې ساحران راجمع كړل او د هغوئ دپاره يې ټول سامانونه هم ، ابن عباس رضي الله عنهما څخه منقول دى چې ددغې ساحرانو شمير دوه اويا وو ، او نور اقوال دهغوئ د شمير متعلق ډير دى. د څلورو سوؤ نه تر د نهو لكو پورې دهغوئ شمير ښودلې شوې دې. او دې ټولو كښې مشر شمعون وو ، داسې هم وئيلې شوى دى چې ددوئ مشر يو ړوند سړې وو [قرطبى ، والله أعلم] (1)

**جادوګرو ته د موسى عليه السلام پيغمبرانه خطاب:** د جادوګرو د معجزو سره د مقابلې شروع كيدو څخه وړاندې موسى عليه السلام جادو ته د نصيحت څخه ډكې خبرې اوكړې او هغوى يې د الله تعالى د

1) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۱ص:۲۱٤ ]

عذاب څخه اوويرول هغه الفاظ دا وو چې [وَيْلَكُمْ لَا تَفْتَرُوا عَلَى اللَّهِ كَذِبًا فَيُسْحِتَكُم بِعَذَابٍ وَقَدْ خَابَ مَنِ افْتَرَىٰ] يعني ستاسو هلاكيدل رامخامخ شوى دى په الله ﷻ باندې د دروغو تور مه پوري كوئى چې هغه سره په خدايۍ كښې ګنى فرعون يا بل څوك شريك دې ، كه تاسو دغسې اوكړل نو په عذاب كښې به تاسو تباه كړى او ستاسو بيخ بنياد به اوباسى ، څوك چې په الله ﷻ باندې د دروغو تور پورې كوى دهغه انجام به نامراده وى اوبې نصيبى به وى.

ښكاره خبره ده چې كوم خلق د فرعون د شيطانى طاقت ، رعب ، ساز وسامان او خادمانو په داو ګيرنه كوم خلق چې مقابلې دپاره رامخكښې كړې شوى وو ، په هغوئ باندې د نصيحت اثر كيدل ډيره لرې خبره وه . خو هر كله چې پيغمبرانو ﷺ سره د الله ﷻ يو پټ طاقت او رعب وى دهغوئ ساده خبرې په زړونو باندې د غشى او نشتر كار وركوى . د موسى ﷺ د دغې نصيحت په آوريدو د جادوګرو په ډله كښې سخت اختلاف راولاړ شو ، يوه زلزله شان پرې راغله ، ډيرو په كښې اووئيل چې داسې خبرې خو يو جادوګر هم نشى كولې ، دا خو د الله ﷻ د طرفه معلوميږى ، څكه څينو اووئيل چې ددې مقابله كول مناسب نه دى او څينې پخپله خبره او ګمراهى باندې كلك ولاړ پاتې شو ، نو د [فَتَنَازَعُوا أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ] هم دغه مطلب دې ، بيا ددې اختلاف دپاره يې پټې پټې مشورې او مصلحتونه كول شروع شو ، لكه الله ﷻ فرمائى چې : [وَأَسَرُّوا النَّجْوَىٰ] خو آخر اكثريت په يو رائې باندې اتفاق اوشو او مقابلې كولو باندې كلك پاتې شو او داسې ئې اووئيل چې :

[¹][إِنْ هَٰذَانِ لَسَاحِرَانِ يُرِيدَانِ أَن يُخْرِجَاكُم مِّنْ أَرْضِكُم بِسِحْرِهِمَا وَيَذْهَبَا بِطَرِيقَتِكُمُ الْمُثْلَىٰ] [دا دواړه جادوګران دى غوارى چې د خپل جادو په زور سره [فرعون او فرعونيان] دخپلې زمكې يعنى مصر څخه اوباسى او پخپله پرې قبضه اوكړى] او ستاسو هغه طريقه د مينځه اوباسى چې د ټولو څخه ښكلې او زياته بهتره ده .

[مُثْلَىٰ] د امثل [اسم تفضيل] مؤنث دې چې معنى يې زياته لوړه او زياته غوره ده ، مطلب دا وو چې ستاسو دپاره د فرعون خدائى او اختيارات منل د ټولو ډيره زياته غوره لاره ده خو دا خلق يې د مينځه اوړى او خپل دين او مذهب خورول غوارى ، او د [طَرِيقَة] لفظ يو معنى دا هم كيدې شى چې دقوم سرداراتو او نمائنده ګانو ته وئيلې شى ، د ابن عباس ؓ او على ؓ څخه دلته د طريقة تفسير هم دا منقول دې ، مطلب دا چې دوئ ﷺ ستاسو دقوم سرداران او عزتمند خلق ختمول غوارى نوتاسو ته پكار دى چې د مقابلې دپاره خپل پوره تدبير او طاقت استعمال كړئ او ټول جادوګر صفتونه جوړ كړئ او په يو ځل د هغه سره مقابله اوكړئ [فَأَجْمِعُوا كَيْدَكُمْ ثُمَّ ائْتُوا صَفًّا] صف بندى كول ، په مد مقابل باندې يو خاص اثر او رعب لرى څكه يې ددې بندوبست اوكړو .

د جادوګرو پخپل جادو باندې ډير زيات اعتبار وو څكه يې په بې پروايئ سره موسى ﷺ ته اووئيل چې د مقابلې شروع تاسو كوئى او كه مونږ اوكړو؟ موسى ﷺ ورته په جواب كښې

---

[¹] د نافع مدنى ؒ وغيره په قرآءت كښې [إِنْ هَٰذَانِ لَسَاحِرَانِ] منقول دې دا په ظاهره د عربى ژبې د نحوې د قاعدې خلاف دې ، خو ددې جواب دا دې چې د عربو په څينو لغاتو كښې دا صورت هم جائز دې [فصله قرطبى]

اوفرمائيل چې : [بَلْ اَلْقُوْا] چې اول تاسو د جادو پړی او همسا گانې اوغورزوئی . د موسی ﷺ په داشان جواب ورکولو کښې ډیر حکمتونه دی . ① اول حکمت په کښې خپل شرافت ښودل وو ، هغه داسې چې هغوئ ورته د مقابلې کولو دپاره اووئيل او دوئ ورته هم د مقابلې کولو دپاره اووئيل . د هغوئ مطلب حوصله او ښه پوره ډاډگيرنه ښودل وو . ② بل دا چې د موسی ﷺ مقابله اوړده نشی بلکه زر تر زره د گټلو یا بائيلو معلومات اوشی . یعنی هغوئ چې ټول جادوگری او ټول زور ختم کړی نو په يو ځل به هغه د معجزې په ذریعه ختم کړی ، نوجادوگرانو اول شروع اوکړه خپل ډیر پړی او همساگانې یې په زمکه باندې په یو وخت ورگذارې کړې چې ټولې د مارانو په شان په شکل کښې روانې او په منډه ښکاریدې .

[يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعٰى] دې ځخه معلومه شوه چې د فرعونی جادوگرانو جادو یو قسم نظر بندی وه چې د مسمریزم په ذریعه هم کولې شی ، ولې چې کتونکو ته دغه پړی او همساگانې منډې وهونکې ښکاریدل او په حقیقت کښې ماران نه وو جوړ شوی او جادو هم داشان وی .

[فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ خِيفَةً مُّوسٰى] موسی ﷺ چې دغه صورت حال اوليدو نو ويره پرې راغله چې په زړه کښې یې پټه او ساتله او چاته يې ښکاره نه کړه ، که دا ويره د موسی ﷺ خپل ځان دپاره وه نو دا د بشریت او انسانیت تقاضا ده چې پیغمبرئ سره بې سمونه نه وه ، خو ښکاریږی داسې چې هغوئ سره د خپل ځان ويره نه وه بلکه دا ويره ورسره شوه چې تماش گیر ډير زيات وو او په دوئ باندې يې د جادوگرانو غلبه محسوسه کړه اودا خیال یې راغلو چې د پیغمبری د بلنې مقصد به پوره نشی ځکه چې د الله ﷻ د ارشاد ځخه معلومیږی چې په کښې هغوئ ﷺ ته د جادوگر ځخه نه غالب کیدل تسلی ورکړې شوه او وې وئيل چې هم تاسو به غالب کیږی لکه الله ﷻ فرمائی چې : [لَا تَخَفْ إِنَّكَ أَنْتَ الْأَعْلٰى].

[وَأَلْقِ مَا فِي يَمِينِكَ] موسی ﷺ ته په ذريعه د وحی سره خطاب اوشو چې ستاسو لاس کښې چې ځه څيز دې هغه گذار کړئ دې ځخه مراد اگر چې همسا وه خو ددې نوم یې ځکه نه دې اخستې چې اشاره په کښې دې خبرې ته ده چې د جادوگرود جادو هیڅ حقیقت نشته ، پروا مه کوئ ، او ځه چې درسره په لاس کښې دی هغه گذار کړئی نو دهغوئ ټول ماران به تیر کړی یعنی اوخوری ، نو دغه شان اوشوه د موسی ﷺ همسا ځخه اژدها جوړه شوه او د جادوگرو ټول ماران یې تیر کړل .

**دفرعونی جادوگرو مسلمانیدل او په سجده پریوتل:** کله چې د موسی ﷺ همسا ځخه اژدها جوړه شوه او د جادو ټول سامان یې اوخوړو نو دغه ماهر جادوگران په دې پوهه شو چې دا کار د جادو نشی کیدې بلکه بیشکه د امعجزه ده چې خالص دالله ﷻ په قدرت سره ښکاریږی ، ځکه په سجده پریوتل او اعلان یې اوکړو چې مونږ د هارون ﷺ او دموسی ﷺ په رب باندې ایمان راوړې دې ، چنانچه دحدیث مبارك د ځینې روایتونو مطابق ددغه جادوگرانو تر هغې پورې د سجدې ځخه سرونه پورته نشو تر ځو چې ورته قدرت جنت او دوزخ نه وو ښکاره کړی ، [په روایت د عبدالله بن حمید ابن ابی حاتم او ابن المنذر از عکرمه ﷺ ، روح][1]

---

1) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱٦ ص: ۲۳۰] و تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث[۱٤۳٤۹]

[قَالَ اٰمَنۡتُمۡ لَهٗ قَبۡلَ اَنۡ اٰذَنَ لَكُمۡ] کله چې الله ﷻ فرعون لره ددې عظيم الشان جماعت وړاندې ښه په ښکاره شرمنده کړو نو وار يې خطا شو او ساحرانو ته يې اووئيل چې زما د اجازت څخه بغير مو څنګه په ده باندې ايمان راوړو ، په دې سره يې خلقو ته دا ښکاره کول غرض وو چې زما د اجازت څخه بغير د جادوګرو هيڅ قول او فعل اعتباری نه دې خو دداسې ښکاره معجزې څخه وروستو د عقل هيڅ يو خاوند د چا ضرورت نه محسوسوی . څکه يې بيا په جادوګرو باندې تور پورې کړو چې تاسو ټول په جادو کښې د موسى ﷺ شاګردان يې ، او دا خپله ناکامی منل ستاسو مينځ کښې شريکه ترلې منصوبه ده .

[فَلَاُقَطِّعَنَّ اَيۡدِيَكُمۡ وَاَرۡجُلَكُمۡ مِّنۡ خِلَافٍ] بيا يې جادوګرانو ته سخته غصه اوکړه چې ستاسو لاسونه پښې به په دې شان سره پريکړم چې ښې لاس ګسه پښه يا ګس لاس ښئ پښه به درڅخه پريکړم ، او په فرعونی قانون کښې سزا ورکولو هم دا طريقه وه ، يا کيدې شی چې دوئ لره د عبرت يوه نمونه جوړول وو .

[وَلَاُوصَلِّبَنَّكُمۡ فِىۡ جُذُوۡعِ النَّخۡلِ] يعنی دپښو لاسونو پريکولو څخه پس به تاسو د کهجورو په ونو کښې داسې په سولئ کوم چې تر هغې پورې به په ونو کښې زوړوند لرلئ شی . چې د لوږې تندې مړه شئ .

[قَالُوۡا لَنۡ نُّؤۡثِرَكَ عَلٰى مَا جَآءَنَا مِنَ الۡبَيِّنٰتِ وَالَّذِىۡ فَطَرَنَا] جادوګرو چې د فرعون دا سخته دهمکی واوريده او د سختې سزا ورکولو اعلان واوريدل نو دخپل ايمان د مضبوطوالی ثبوت يې په داسې طريقه ورکړو چې مونږ تا ته يا ستا څه خبرې ته په هغه ښکاره دليلونو او معجزو باندې ترجيح نشو درکولې چې د موسى ﷺ په ذريعه زمونږ مخې ته راغلې دی .

عکرمه رحمه الله فرمائيلی دی چې جادوګران په سجده پريوتل نو الله ﷻ ورته دجنت هغه لوړ مقامات او نعمتونه ورښکاره کړل کوم چې دوئ ته به ورکولې شو څکه يې اووئل چې دداسې ښکاره دليلونو څخه پس مونږ ستا خبره نشو منلې [قرطبی] [1]

دغه شان د کائناتو د خالق او دآسمانونو د رب په پريښودو سره مونږ تا رب نشو منلې .

[فَاقۡضِ مَاۤ اَنۡتَ قَاضٍ] او چې څنګه دې زړه غواړی زمونږ په باره کښې هغه شان اوکړه او څه چې غواړې هغه سزا راکړه .

[اِنَّمَا تَقۡضِىۡ هٰذِهِ الۡحَيٰوةَ الدُّنۡيَا] يعنی که تا راته سزا هم راکړه نو هغه به صرف ددې دنيا د څو ورځو ژوند سره تعلق ساتی ، دمرګ څخه وروستو به ستا په مونږ وس نه رسی ، ليکن دالله ﷻ په قبضه کښې د مرګ څخه وړاندې هم او د مرګ څخه پس به هم يو ، دهغه د سزا فکر د هر څه نه وړاندې دې

[وَمَاۤ اَكۡرَهۡتَنَا عَلَيۡهِ مِنَ السِّحۡرِ] جادوګرو اوس فرعون ته دا ښکاره کول غوښتل چې په جادو کولو باندې مونږ تا مجبوره کړی يو ، ګنی ددې بې فائدې کار خواته به مونږ نه وو ورغلی ، اوس مونږ ايمان راوړو نو الله ﷻ ته به ددغه جادو کولو ګناه څخه د معافۍ سوال کوؤ ، دلته دا يو سوال پيدا کيږی چې هر کله دغه جادوګر په خپله خوښه مقابلې ته راغلی وو او ددغه مقابلې سودا بازی يې هم فرعون سره داسې کړې وه چې زمونږ د بر راتلو په صورت کښې به

[1] تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۱ص:۲۲۵]

مونږ ته څه انعام راکوې ؟ نو په فرعون باندې دا الزام لګول څنګه صحیح کېدې شی چې وې وئيل چې مونږ دې په جادو کولو مجبوره کړی وو. ددې جواب دادې چې اګر که دوئ په اول کښې پخپله خوښه څکه مقابلې ته راغلی وو چې فرعون څخه يې د انعام موندلو لالچ لرلو ، هر کله چې محسوسه شوه چې د معجزې د مقابلې کولو طاقت نشی لرلې نو دغه وخت فرعون مجبور کړل ، بل جواب يې دا بيان شوې دې چې د جادوګرې زده کول فرعون جبری کړی وو ، څکه هر څوك د جادو په زده کولو باندې مجبور وو [روح] (۱)

**فرعون دبی بی آسیه به انجام** :: په تفسير قرطبی کښې راغلی دی چې ددغه مقابلې په باره کښې به د فرعون بی بی په مخه ځان خبرولو ، دموسی ﷺ او هارون ﷺ په کاميابيدو باندې چې خبر شوه نو هغې اعلان اوکړو چې ما هم دموسی ﷺ او هارون ﷺ په رب باندې ايمان راوړې دې ، کله چې فرعون ته معلومه شوه نو حکم يې اوکړو چې يو غټ کاڼړی راواخلئ او په هغې باندې يې ورګذار کړی. آسيه چې دا اوليدل نو آسمان ته يې اوکتل ، الله ﷻ ته يې فرياد اوکړو ، الله ﷻ د هغې روح د کاڼړی د راګذاريدو څخه وړاندې وړاندې قبض کړو نو دغه کاڼړی يې بې ساه کالبوت باندې راګذار کړو. (۲)

**دفرعونی جادوګرانو یو عجیبه شان انقلاب** :: [اِنَّهٗ مَنْ يَّاْتِ رَبَّهٗ مُجْرِمًا] تر [ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا مَنْ تَزَكّٰى] خالص اسلام عقيدو او آخرت سره تعلق لرونکې دا کلمې او حقيقتونه دهغې جادوګرانو دخلو څخه ادا کيږی کوم چې اوس اوس مسلمانانو شوی وو ، او د اسلامی عقيدو اوعملونو هيڅ تعليم يې نه وو حاصل کړې. دا ټول د موسی ﷺ برکت او ددوئ ﷺ داخلاص اثر وو چې الله ﷻ پرې زر تر زره ددين ټول حقيقتونه داسې ښکاره کړل چې د هغې په مقابله کښې يې نه د ځان پرواه لرله او نه د سختې سزا اوتکليف ملايدو څخه ويريدل ، ګويا د ايمان سره سره ورته د ولايت هغه مقام هم حاصل شو کوم چې نور خلق د ټول عمر په مجاهدو او يا رياضتونو سره په مشکله حاصلولې شی. [فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ] (۳)

| وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا | مَنْ | تَزَكّٰى ﴿۷۶﴾ | وَلَقَدْ اَوْحَيْنَآ | اِلٰى مُوْسٰٓى ۵ |
|---|---|---|---|---|
| او دا جزا ده | دهغه چا | چې پاکوالي ئې اختيار کړو | او بيشکه وحی اوکړه مونږ | موسی ته |
| اوهم دغه انعام دې د هغه چا چې پاک شو | اومونږ موسی ﷺ ته خپله وحی اوليږله | چې زما بندګان | | |

| اَنْ اَسْرِ | بِعِبَادِيْ | فَاضْرِبْ | لَهُمْ | طَرِيْقًا | فِى الْبَحْرِ | يَبَسًا ۷ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې بوزه دشپې | بندګان زما | او جوړه کړه | دپاره دهغوئ | لاره | په درياب کښې | وچه |
| شپه په شپه دمصر نه بهر بوزه | بيا ورله په سمندر کښې [دهمسا په وهلو] يوه اوچه لار جوړه کړه | | | | | |

| لَا تَخٰفُ | دَرَكًا | وَّلَا تَخْشٰى ﴿۷۷﴾ | فَاَتْبَعَهُمْ |
|---|---|---|---|
| نه دې وی يره تاته | ددرسيدو [دفرعون نه] | او نه دې راشي يره په تا | پس وراورسيدو په هغوئ پسې |
| مه د[چا] د رالاندې کولو ويره کوه | اومه نوره ويره [په زړه کښې ساته] | نو فرعون | |

(۱) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۶ ص: ۲۳۳]
(۲) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج: ۱۱ ص: ۲۲۵]
(۳) ترجمه:- پس څه لوئې شان دې دالله تعالې جل شانه چې د ټولو پيداکوونکو نه دير غوره دې.

فِرْعَوْنُ بِجُنُوْدِهٖ فَغَشِيَهُمْ مِّنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ ؕ

فرعون | سره دلښکرو خپلو | نو پټ کړی هغوئ لره | دریاب | هغه چی پټ ئې کړل هغوئ

وړپسې خپلې لښکرې روانې کړې | نود دریاب چپې په دوئ راوختلې | اودوئ ئې پټ کړل [یعنی ډوب

وَاَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهٗ وَمَا هَدٰی ۞ یٰبَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ

او بې لارې کړې وو | فرعون | قوم خپل | او نه ئې وه ورته ښودلی نیغه لار | ای بنی اسرائیلو

ئې کړل] | او فرعون خو خپل قوم ګمراه کړې وو | او وسمه لار ئې ورته خودلې نه وه | ائې بنی اسرائیلو

قَدْ اَنْجَیْنٰكُمْ مِّنْ عَدُوِّكُمْ وَوٰعَدْنٰكُمْ جَانِبَ

موږ تاسو ستاسو ددښمن نه خلاص کړئې | او وعده او کړه موږ تاسو سره | په طرف

خلاصې درکړو موږ تاسو ته | ددشمن ستاسو نه | اوموږ د کوه طور ښی طرفته تاسو سره

الطُّوْرِ الْاَیْمَنَ وَنَزَّلْنَا عَلَیْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰی ۞

دکوه طور | ښی | او نازل کړل موږه | په تاسو باندې | من [ترنجبین] | او سلوٰی [مرزان] |

[دتورات درکولو] وعده اوکړه | اوموږ په تاسو باندې من اوسلوٰی نازل کړل کړو | او حکم مو اوکړو چې]

كُلُوْا مِنْ طَیِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَلَا تَطْغَوْا

خورئ | دپاکو څیزونو | هغو نه | چی درکړی دی موږ تاسو ته | او سرکشئ مهٔ کوئ |

کوم پاکیزه څیزونه موږ تاسو ته درکړی دی هغه خورئې | او په دې کښې له حد نه مه تیرېږئې

فِیْهِ فَیَحِلَّ عَلَیْكُمْ غَضَبِیْ ۚ وَمَنْ یَّحْلِلْ

په [خوراك د] هغې کښی | ګنی واقع به شی | په تاسو باند | غضب زما | او هغه څوك چی واقع شو

ګنی په تاسو باندې به زما غضب نازل شی | ............او په چا چې زما غضب نازل شو

عَلَیْهِ غَضَبِیْ فَقَدْ هَوٰی ۞ وَاِنِّیْ لَغَفَّارٌ

په هغه باند | غضب زما | نو یقینا هغه هلاک شو | او بیشکه زهٔ | خامخا ډیر بښونکې یم |

نو هغه هلاک شو............................ | او زهٔ به ضرور د هغه چا بښونکې یم |

لِّمَنْ تَابَ وَاٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ثُمَّ

هغه چا لره | چی توبه ئې اوویستله | او ایمان ئې راوړو | او عمل ئې اوکړو نیك | بیا

............چه ایمان راوړی | اونیک عمل اوکړی | اوبیا په سمه لار قائم پاتې شی

اهْتَدٰی ۞

په نیغه لار روان شو |

..................

## آسان ترجمه قرآن

او موږ حضرت موسٰی علیه السلام ته وحی را ولیږله چه: ته زما بندګان د ځان سره واخله او د شپې روان شه، بیا دهغوی دپاره په سمندر کښې یو اوچه لار داسې جوړه کړه چه نه تاسو ته (د دشمن) د نیولو ویره

**وي، او نه بله څه ويره وي. پس فرعون د خپلو لښکرو سره په هغوی پسې هو نو د سمندر کوم (وېرونکې) څيز چه هغوی پټ کړل، هغې ښه برابر پټ کړل او فرعون خپل قوم په غلطه لاره روان کړو. اوهغوی ته ئې نيغه لاره او نه ښودله. اې بنی اسرائيلو! مونږ تاسو ته ستاسو د دشمن نه خلاصې درکړو، او تاسو نه مو د كوه طور ښي طرف ته د راتلو وعده واخستله. او په تاسو مو مَن او سَلوٰی نازل کړل. کوم پاک رزق چه مونږ تاسو ته درکړې دې هغه خورئ، او په هغې کښې سرکشي مه کوئ چه دهغې په نتيجه کښې به په تاسو باندې زما غضب نازل شي. او په چا باندې چه زما غضب نازل شي، هغه په تباهئ کښې غورځيږي او دا هم حقيقت دې چه کوم انسان ايمان راوړي، او نيک عمل اوکړي، او بيا په نيغه لاره باندې قائم وي نو زه هغه ته ډير بخښنه کونکې يم.**

## خلاصه تفسير

[ او] کله چه فرعون په دې ايمان رانه وړو او تر يوې زمانې پورې مختلفې معاملې او واقعات کيدل دغه وخت ﴿وَلَقَدۡ أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ﴾ [ مونږ موسیٰ ﷺ [ ته وحی وليږله ﴿أَنۡ أَسۡرِ بِعِبَادِي﴾ چه زما ]دې [ بندګانو لره ] يعنې بنی اسرائيلو لره دمصرنه [ شپه په شپه ] بهر[ بوځه ] او لرې لاړ شئ چه دفرعون دظلم او سختو نه دوی خلاص شی [ بيا ] په لاره کښې چه درله درياب راشی نو ﴿فَٱضۡرِبۡ لَهُمۡ﴾ [ ددوی دپاره په درياب کښې ] همسا ووهه ﴿طَرِيقٗا فِي ٱلۡبَحۡرِ يَبَسٗا﴾ [ اوچه لاره جوړه کړه ] يعنې همسا ووهه چه اوچه لار په کښې جوړه شی ﴿لَّا تَخَٰفُ دَرَكٗا﴾ [نه به تاسو سره دچا دتعاقب ويره وی ] ځکه چه څوك په تاسو پسې تعاقب کوی هغوی به کامياب نه شی اګر که تعاقب وکړی ﴿وَلَا تَخۡشَىٰ﴾ [ او نه دبل قسم ] مثلاً دغرقيدو وغيره [ويره وی ] بلکه په امن او په اطمنان سره به پوريوځې نو حضرت موسیٰ ﷺ دحکم موافق دوی لره شپه په شپه دمصرنه وويستل او سحر په مصر کښې خبر مشهو شو ﴿فَأَتۡبَعَهُمۡ فِرۡعَوۡنُ بِجُنُودِهِۦ﴾ [ پس فرعون سره دخپل لښکرو په دوی پسې روان شو ] او بنی اسرائيل دالله تعالیٰ دوعدې موافق په درياب پورې وتل او لا د درياب لارې په خپل حالت وې لکه چه په بل ايت کښې دی [واترك البحر رهوا انهم جند مغرقون ]([1]) فرعونيانو د تلوارئ نه څه وړاند وروستو ونه کتل په دغولارو ور روان شول کله چه ټول درياب ته دننه شول ﴿فَغَشِيَهُم مِّنَ ٱلۡيَمِّ مَا غَشِيَهُمۡ﴾ [ نو ] دغه وخت دځلور وارو طرفونو نه د[ درياب ] اوبه راغونډې شوې[ په دوی داسې راغونډې شوې څنګه چه راغونډې شوې ] او ټول غرق شول ﴿وَأَضَلَّ فِرۡعَوۡنُ قَوۡمَهُۥ وَمَا هَدَىٰ﴾ [ او فرعون خپل قوم په بده لار روان کړې وو نيکه لارئ دوی ته ونه ښوده ] دکومې چه دده دعوی وه [ وما اهديكم الاسبيل الرشاد]([2]) او په بده لار کيدل خو ظاهره ده چه په دنيا کښې ئې هم نقصان وشو چه ټول هلاك شول او داخرت هم ځکه چه جهنم ته لاړل لکه چه په بل ايت کښې دی [ ادخلوا ال فرعون اشد العذاب ]([3]) بيا بنی اسرائيلو ته دفرعون د تعاقب او په درياب کښې دغرقيدونه د نجات نه پس نور نعمتونه ورکړې شول مثلاً تورات ورکړې شو او من اوسلوی دا نعمتونه مو

---

[1]) ترجمه:- او ته دادرياب د سکون په حالت کښې پريږده دده ټول لښکر به ډوب کړې شی.
[2]) ترجمه:-او زه تاته حقيقت کښې د مصحلت طريقه ښايم.
[3]) ترجمه:- فرعونيانو په سخت اوور کښې ورداخل کړه.

ورکړل مونږ بنی اسرائیلو ته ووئیل چه ﴿يَـٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ﴾ [ اے بنی اسرائیلو] وګورئ [ مونږه] تاسو ته څنګه څنګه نعمتونونه درکړل چه ﴿قَدۡ أَنجَيۡنَٰكُم مِّنۡ عَدُوِّكُمۡ﴾ [ تاسولره مو] دداسې لوئ [ دښمن نه خلاصي درکړو ﴿وَوَٰعَدۡنَٰكُمۡ جَانِبَ ٱلطُّورِ ٱلۡأَيۡمَنَ﴾ او مونږ تاسوسره ] يعنی ستاسو دپیغمبرسره ستاسو دنفع دپاره [دکوه طوربنی طرف ته د راتلو ] او هلته د راتلو نه پس د تورات ورکولو [ وعده وکړه او] په وادی تیه کښې ﴿وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكُمُ ٱلۡمَنَّ وَٱلسَّلۡوَىٰ﴾ [ مونږ په تاسو من او سلوی نازل کړل ] او اجازت مودر کړو چه ﴿كُلُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقۡنَٰكُمۡ﴾ [ زمونږ کوم پاك څيزونه ] شرعا هم چه حلال دی او طبعا هم چه خوندناك دی [ تاسو له درکړی دی دا خورئ ﴿وَلَا تَطۡغَوۡاْ فِيهِ﴾ او په ] خوراك د [دې کښې دحد] شرعی [ نه مه تیریږی ] مثلا داسې چه په حرامه ئې حاصل کړئ لکه چه په الدر کښې دی یائې دخوراك نه پس ګناه کوئ ﴿فَيَحِلَّ عَلَيۡكُمۡ غَضَبِيۖ﴾ [ هسې نه چه زما غضب په تاسو واقع شی ﴿وَمَن يَحۡلِلۡ عَلَيۡهِ غَضَبِي فَقَدۡ هَوَىٰ﴾ او په چا چه زما غضب واقع شی هغه بالکل تباه شو او] دارنګ ددې سره داهم ده چه ﴿وَإِنِّي لَغَفَّارٞ لِّمَن﴾ [ زه دداسې خلقو دپاره لوئ بخښنې والا هم یم کوم چه ] دکفر او نافرمانئ نه ﴿تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا﴾ [ توبه وکړی او ایمان راوړی اونیك عمل کوی ﴿ثُمَّ ٱهۡتَدَىٰ﴾ بیا] په دې لار [قائم] هم [پاتې شی ] یعنی په ایمان او نیك عمل همیشوالې کوی دا مضمون مونږ نبی اسرائیلو ته وئیلې وو چه یاد ګیرنه دنعمت او امر په شکر او منع دمعصیت نه او وعده وعیده په خپله دینی نعمت دې .

## معارف او مسائل

﴿وَلَقَدۡ أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ﴾ کله چې د حق او باطل اود معجزې او جادو تر مینځه د مقابلې فیصله اوکړې شوه اود فرعون او فرعونیانو ملا ورسره ماته شوه ، او بنی اسرائیلو د موسی ﷺ او هارون ﷺ رهنمائئ کښې راجمع شو نوبیا ورته دغه ځائې نه د هجرت کولو حکم ملاویږی خو هر کله چې د فرعون د ورپسې ورتلو او مخ ته د دریاب راتلو خطره موجوده وه څکه ددغې دوارو بابت کښې موسی ﷺ ته تسلی ورکړې شوه چې کله دریاب په همسا اووهی نو هغې کښې به دولس لارې پیدا شی . او روستو نه د فرعون دایسارولو ویره به هم ختمه شی . څنګه چې دا واقعه په تفصیل سره د حدیث فتون لاندې په تفصیل سره تیره شوې ده.

موسی ﷺ چې کله دریاب په خپلې همسا مبارکې اووهلونو په کښې د اسې دولس اوچې کلکې لارې جوړې شوې چې ددې مینځ کښې د اوبو غرونه لکه د بحر منجمد پشان ولاړ وو او لګه د شیشې په شان داسې رڼا ووچې یوبل خپل ملګری لیدل . او یوبل سره به ئې خبرې هم کولې شوې . او هیڅ سره د خپلو ملګرو غم پاتې نشو . [قرطبی][1]

**د مصر نه د کوچ کولو په وخت کښې د بنی اسرائیلو څنې حالات د دوئ او د فرعونی لښکر ډوبیدل :** د تفسیر روح المعانی مطابق موسی ﷺ د شپې په اوله حصه کښې بنی اسرائیلو ځان سره کړل او د مصر نه بحر قلزم ته روان شو. بنی اسرائیلو د مخکې نه دا خبر خور کړې وو چې زمونږ اختر دې د اختر مناولو دپاره بهر اوځو او په دې غرض ئې د قبطیانو نه کالی هم په سوال غوښتلی ووچې واپس شی نو دوئ ته به خپل کالی ورکړی . د غه وخت د بنی اسرائیلو

[1]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة [ ج:۱۱ص:۲۲۹]

شمیر شپږ لاکهه او دري زره وو. او په یو روایت کښې شپږ لاکهه اویا زره وو. دا اسرائیلي روایات دي چې په دې مبالغه کیدې شي خودومره خبره د قرآن کریم داشارو او د حدیث پاک د روایاتو څخه ثابته ده چې ددوئ دولس قبیلې وې ، او د هر قبیلې شمیر ډیر زیات وو ، دا هم دالله ﷻ د قدرت یوه لویه مشاهده وه . بیا چې کله دا حضرات د یوسف ﷺ په زمانه کښې مصرته راغلل نو نودولس رونړه وو ، اوس د دولسو رونړو دولس قبیلې ګنړ شمیر د مصر څخه اووتل ، چې د شپږو لاکهو څخه زیات وو. کله چې فرعون ته ددوئ د وتلو معلومات اوشو نو خپل فوج یې راجمع کړو، چې په دې اویا زره تور آسونه هم وو ، او دلښکر څخه وړاندې اویا لاکهه سوارهٔ وو ، کله چې د وروستو څخه یې دا فوجي سیلاب او د مخکښې څخه یې د قلزم دریاب اولیدو نو ویریدل ، پورته او موسی ﷺ ته یې فریاد اوکړو [اِنَّا لَمُدْرَكُوْنَ] یعني مونږ خواونیولې شو ، موسی ﷺ ورته تسلي ورکړه چې [اِنَّ مَعِيَ رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ] یعني زما رب ماسره دې. هغه به ماته لار ښائي.[۱۳۰]

بیا د الله ﷻ په حکم سره ئې دریاب په همسا اووهلو چې په کښې دولس اوچې لارې جوړې شوې. د بني اسرائیلو دولس قبلې په دغې لارو لاړل تیر شو ، د فرعون لښکر چې دغه ځائي ته راؤرسیدو او دا حیرانوؤنکې ننداره ئې اوکتله نو اوپسخیدو چې دوئ دپاره په دریاب کښې لارې څنګه جوړې شوې. خو فرعون ورته اوویل چې د اټول هر څه زما د هیبت دا ننداره وه چې زما په لیدو سره دریاب هم په ټپه اودریدو او دولس لارې په کښې جوړې شوې . او سمدستي وړاندې شو او خپل آس ئې په دغه دریابي اوبو کښې ورکوز کړو او لښکر ته ئې اوویل چې راځئ راپسې ، کله چې ټول لښکر په دغو دریابي اوبو کښې ورګډ شو نو الله ﷻ دریاب ته د روانیدو او بهیدو حکم اوکړو. د دریاب دغه اودریدلې ټولې حصې پرې رایوځائې شوې: ﴿فَغَشِيَهُمْ مِّنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ﴾ [روح المعاني].(۱)

﴿وَوٰعَدْنٰكُمْ جَانِبَ الطُّوْرِ الْاَيْمَنَ﴾ چې فرعون نه خلاص شو او دریاب نه پورې وتل نو الله ﷻ موسی ﷺ او دهغوئ په واسطه بني اسرائیلو سره دا وعده اوفرمائیل چې دوئ دې دکوه طور ښي طرفته لاړ شي ، موسی ﷺ ته بهٔ تورات ورکړې شي او بني اسرائیل به پخپله هم الله ﷻ سره د موسی ﷺ خبرې او کلام کول اووینې.

﴿وَنَزَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى﴾ داد هغه وخت واقعه ده چې بني اسرائیلو د دریاب نه پورې وتل او مخ په وړاندې روان وو ، په دې دوران کښې ورته یو پاک ښار کښې د داخلیدو حکم اوشو، دوئ ئې خلاف ورزي اوکړه څکه دهغې په سزا کښې د میدان تیه قیدیان جوړ کړې شو . دې ځائي نه خلوېښتو کالو پورې بهر اونه وتلې شو. خو بیا هم موسی ﷺ د برکته په دوئ باندې دغه قسما قسم انعامات جاري وو نو دمن وسلوی خوراکه ورته په دغه موقعه ورکولې شوه.

| | وَمَآ | اَعْجَلَكَ | عَنْ قَوْمِكَ | يٰمُوْسٰى | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په نیغه لار روان شو | او څه ځیز | راګرندي کړي ته | دقوم ستانه | اي موسی | اوویل موسی |
| ........ | اوموسی ﷺ دا ته ولې د خپل قوم نه په تلوار رامخکښې شوې | | | | موسی ﷺ اوویل |

(۱) روح المعاني تحت هذه الآیة [ج: ۱۶ ص: ۲۳۷]

هُمْ أُولَآءِ عَلَىٰٓ أَثَرِى وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضَىٰ ۝

هغوئ | دغه دی | چه روستو زما روان دی | او په تلوار راغلم زهٔ | تا ته | اې ربه | چې راضي شي ته

زما ربه هغه ټول ما پسې [راروان دی] او ما ستا طرفته دراتلو تلوار ځکه او کړو [ چې ته خوشحاله شې

قَالَ فَإِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنۢ بَعْدِكَ

اوونيل الله | نو بيشکه مونږه | په امتحان کښې واچولو | قوم ستا | روستو ستا نه |

الله تعالى اوفرمائيل چې مونږ ستا قوم ستا [د راتلو] نه پس په امتحان کښې اچولې دې [ او هغوئ خو

وَأَضَلَّهُمُ ٱلسَّامِرِىُّ ۝ فَرَجَعَ مُوسَىٰٓ إِلَىٰ قَوْمِهِۦ غَضْبَٰنَ

او گمراه کړل هغوئ لره | سامری | نو واپس راغې | موسی | قوم خپل ته | سخت غصه

سامری گمراه کړی دی [نو موسی ؑ دغصې او افسوس په حالت کښې خپل قوم ته واپس راغلو

أَسِفًا ۚ قَالَ يَٰقَوْمِ أَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ

افسوس کوونکې | اوونيل موسی | اې قومه زما | آيا نهٔ وه کړی تاسو سره | رب ستاسو |

.........او وې فرمائيل اې زما قومه آيا ستاسو رب تاسو سره يو ښه وعده نه وه کړې

وَعْدًا حَسَنًا ۚ أَفَطَالَ عَلَيْكُمُ ٱلْعَهْدُ أَمْ أَرَدتُّمْ أَن يَحِلَّ

وعده | نيکه | آيا وږده شوه | په تاسو باند | زمانه | يا | غوارې تاسو | چې راشي

بيا آيا په تاسو باندې ډير زيات وخت تير شوې وو| يا دامو خوښه ده چې په تاسو دې

عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّن رَّبِّكُمْ فَأَخْلَفْتُم مَّوْعِدِى ۝

په تاسو باندې | غضب | دطرفه درب ستاسو | چې خلاف اوکړو تاسو | دوعدې زما |

ستاسو درب غضب خامخاه راشي [نو ځکه مو ماسره د پخې وعدې کولو نه مخالفت اوکړو

قَالُوا۟ مَآ أَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا وَلَٰكِنَّا

اوونيل هغوئ | چې خلاف نهٔ دې کړې مونږه | دوعدې ستا | په اختيار خپل سره | ليکن مونږه

هغوئ ورته اوونيل چې مونږ تاسره د خپلې وعدې نه په خپله خوښه اوريدلې نه يو [ خو خبره داده

حُمِّلْنَآ أَوْزَارًا مِّن زِينَةِ ٱلْقَوْمِ فَقَذَفْنَٰهَا فَكَذَٰلِكَ

بار کړې شوی وو | په | پيټو | دکالو د خلقو | نو اوغورزول مونږه هغه | نو دارنګې

چې په مونږ باندې د [قبطي] قوم [پاتې شوی] کالی درانه شوی وو | نو مونږ هغه او غورزول [نو دغه شان

أَلْقَى ٱلسَّامِرِىُّ ۝ فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُۥ

او غورزول | سامری [هم] | نو راوويستو هغه | دپاره دهغوئ | يو سخې | يوه جوسه | چې وۀ هغه لره

سامري هم اوغورزول [نو بيا [سامری] هغې خلقو ته يو سخې راښکاره کړو | چې هغه تش کالبوت وو

خُوَارٌ فَقَالُوا۟ هَٰذَآ إِلَٰهُكُمْ وَإِلَٰهُ مُوسَىٰ فَنَسِىَ ۝

اواز [دسخې] | نو اوونيل هغوئ | دا دی | معبود ستاسو | او معبود | دموسی | نو هغه هير کړې دې

خو آواز به ئې کولو [نو هغوئ [ بنی اسرائيلو] اوونيل چې هم دا ستاسو معبود دې او د موسی هم معبود دې خو

| أَفَلَا يَرَوْنَ | أَلَّا يَرْجِعُ | إِلَيْهِمْ قَوْلًا | وَلَا يَمْلِكُ | لَهُمْ |
|---|---|---|---|---|
| آیا نه گوري دوئ | چي جواب نه ورکوي \| دوئ ته | د خبري | او نه اختیار لري | دپاره ددوئ |
| موسی هیر کړو \| آیا دا خلق نه گوري چي هغه بت دهغوئ دخبري جواب نه ورکوي \| او نه هغوئ ته | | | | |
| ضَرًّا وَلَا نَفْعًا | | | | |
| دنقصان \| او نه دنفعي \| | | | | |
| دنقصان رسولو اختیار لري \| او نه دنفع ورکولو \| | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او(کله چه موسیٰ علیه السلام کوه طور ته د خپل قوم نه مخکښ راغلو نو الله پاک هغوی ته اوفرمائیل:) اې موسیٰ! ته د خپل قوم نه مخکښ په ټوندئ ولې راغلې؟ هغوی اوفرمائیل: هغوی ما پسې هاته راروان دی، او اې ربه! زه تاته په تندئ ځکه راغلم چه ته خوشحاله شې. الله پاک اوفرمائیل: بیا ستا د راتلو نه پس مونږ ستا قوم په فتنه کښ غورځولې دې او سامري هغه گمراه کړې دی. پس موسیٰ علیه السلام په غم او غصه کښ خپل قوم ته واپس شو، وې وئیل: اې زما د قوم خلقو! آیا ستاسو رب تاسو سره غوره وعده نه وه کړې؟ نو آیا په تاسو باندې څه اوږده موده تیره شوې وه یا که تاسو هم دا غوښتله چه په تاسو باندې ستاسو د رب د طرف نه غضب نازل شي، او په دې وجه تاسو ما سره وعده خلافي اوکړه؟ وې وئیل: مونږ په خپل اختیار باندې تاسره وعده خلافي نه ده کړې، بلکه داسې اوشوه چه مونږ د خلقو د کالو بوج اوچت کړې وو، په دې وجه مونږ هغه اوغورځول، بیا دغه شان سامري هم څه اوغورځول او دخلقو مخې ته ئې یوسخې جوړولو سره راوویستلو، یو بدن وو چه آواز به ترې نه راوتلو. خلقو اووئیل چه: دا ستاسو معبود دې او دموسیٰ علیه السلام هم معبود دې، خو دموسیٰ علیه السلام نه هیر شوې دی. آیا هغوی ته دا په نظر نه راتله چه هغه د هغوی د هیڅ خبرې جواب نه ورکوي او نه هغوی ته څه نفع یا نقصان رسولې شي؟

## خلاصه تفسیر

[ او] کله چه الله تعالی ته تورات ورکول منظور شو نو حضرت موسی ته ئې په کوه طور باندې دتلو حکم وفرمائیلو او قوم ته ئې هم یعنی ځنو ته دځان سره د راوستو حکم وشو لکه چه په فتح المنان کښې دی دباب نولسم دسفر خروج نه حضرت موسی په شوق کښې دټولو نه اول یوازې ورسیدو او نور خلق په خپل ځائ پاتې شول دطور دتلو اراده ئې هم وه نو کړه الله تعالی دحضرت موسی نه تپوس اوکړو چه ﴿وَمَا أَعْجَلَكَ عَن قَوْمِكَ يَا مُوسَىٰ﴾ [ اے موسی ستا دقوم نه وړاندې دزر راتلو څه سبب وو دوی] دخپل گمان موافق ﴿قَالَ هُمْ أُولَاءِ عَلَىٰ أَثَرِي﴾ [عرض وکړو چه خلق دغه دی په ماپسې ورروستو ورروستو] راروان [ دی او زه ] د ټولو نه وړاند[ تاته ] یعنی هغه ځائ ته کوم ځائ چه دخبرو او خطاب تا وعده فرمائیلې ده ﴿وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ﴾[په تلوار ځکه راغلم ﴿لِتَرْضَىٰ﴾ چه ته ] زیات [ خوشحاله شې] ځکه چه دحکم په منلو کښې وړاند کیدل زیات موجب دخوشنودی وی ﴿قَالَ فَإِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِن بَعْدِكَ﴾ [ ارشاد وشو چه ستا قوم خو مونږ ستا] دراتلو [ نه پس په یوه بلا کښې اخته کړو ﴿وَأَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ﴾ او هغوی لره سامری گمراه کړل ] چه بیان ئې وړاند راځی [ فاخرج لهم عجلا الخ ] او فتنا کښې

الله تعالی دا ابتلاء خپل طرف ته څکه منسوبه کړه چه خالق دهر فعل هغه دې ورنه اصل نسبت د دې فعل سامری طرف ته دې کوم لره چه یې په [ اضلهم السامری ] کښې ظاهر کړو [ غرض موسی علیه السلام پس دپوره کیدو دمودې نه ﴿فَرَجَعَ مُوسَىٰ إِلَىٰ قَوْمِهِ غَضْبَانَ أَسِفًا﴾ [ دغصې او خفګان نه ډك خپل قوم طرف ته واپس راغلې [ او] ﴿قَالَ يَا قَوْمِ أَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا﴾ وې فرمائیل چه اے زما قومه ایا تاسو سره ستاسو رب یوه ښه ] او رښتونې [ وعده نه وه کړې ] چه مونږ په تاسو ته یو کتاب داحکامو درکړو نو ددې کتاب دپاره خو په تاسو انتظار واجب وو ﴿أَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ﴾ [ ایا په تاسو ] دمقرر میعاد نه ډیره [ زیاته زمانه تیره شوې وه ] چه ددې دملاویدو نه نا امیده شوئ په دې وجه مودخپل طرف نه یو عبادت ایجاد کړو[ یا ] سره ددې چه نا امیده شوی نه وئ ﴿أَمْ أَرَدتُّمْ أَن يَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّن رَّبِّكُمْ﴾ [ ستاسو دا خوښه شوه چه په تاسو ستاسو د رب غضب واقع شی ﴿فَأَخْلَفْتُم مَّوْعِدِي﴾ په دې وجه تاسو چه ماسره کومه وعده کړې وه] چه ستا دواپس راتلو پورې به څه نوې کارنه کوو او ستا دنائب هارون علیه السلام به منو ﴿قَالُوا مَا أَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا﴾ [ دهغې نه موخلاف وکړو هغوی ووئیل چه مونږ کومه وعده دیویل سره کړې وه د هغې نه مونږ په خپل اختیار خلاف نه دې کړې ] دا معنی نه ده چه چاپه زور په دوی دا کار وکړو بلکه مطلب دادې چه کومه راې مونږ په اول کښې چه ذهن مو خالی وو اختیار کړې وه دهغې خلاف د سامری کار زمونږ دپاره منشاء د اشتباه جوړشو چه مونږه هغه وړاند راې یعنی توحید اختیار نه کړو بلکه راې بدله شوه اګر چه په دې هم عمل په اختیار سره وشو چنانچه وړاند ووئیلې شو ﴿وَلَٰكِنَّا حُمِّلْنَا أَوْزَارًا مِّن زِينَةِ الْقَوْمِ﴾ [ او لیکن دقوم] قبطی [ کالی په مونږ بوج جوړ شوې وو پس مونږ هغولره ] سامری په وینا سره اورته ﴿فَقَذَفْنَاهَا فَكَذَٰلِكَ أَلْقَى السَّامِرِيُّ﴾ [ وغورزوله بیا دغه شان سامری ] هم خپل کالی ﴿[ وغورزول ] وړاند الله تعالی قصه داسې مکملوی فرمائی ﴿فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُ خُوَارٌ﴾ [بیا دغې] د سامری [دې خلقو له یو سخې ] جوړ کړې [ ظاهر کړو] ددغې په نسبت هغو احمقو[ خلقو] ﴿فَقَالُوا﴾ یو بل ته [ ووئیل ﴿هَٰذَا إِلَٰهُكُمْ﴾ چه ستاسو او دموسی علیه السلام [ هم معبود خودادې ] ددهٔ عبادت کوئ ﴿وَإِلَٰهُ مُوسَىٰ فَنَسِيَ﴾[ دموسی علیه السلام [ نه﴿ ﴾ خو هیر شول ] چه کوه طورته دالله تعالی په طلب کښې تلې دې حق تعالی ددوی په دې احمقانه زرهٔ ورتیا باندفرمائی چه ﴿أَفَلَا يَرَوْنَ﴾[ ایا هغه خلق دې ته هم نه ګوری چه هغه ] په واسطه یابې دواسطې ﴿أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا وَلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا﴾[نه خو ددوی دخه خبرې جواب ورکولې شی اونه ددوی په څه ضرور یا نفع رسولو قدرت لری ] داسې بې کاره به څه الله تعالی وی او حق تعالی په واسطه د انبیاء علیهم السلام ضروری خطاب او کلام فرمائی

### معارف او مسائل

هر کله چې موسی علیه السلام او بنی اسرئیل د فرعون د تعاقب او د دریاب څخه د پورې وتلو څخه وروستو مخکښې لاړل نو دوئ په یو بت پرست قوم باندې تیر شو ، او دهغوئ عبادت چې یې بتانو لره خپل خدایان جوړ کړی دی زمونږ دپاره هم یو داسې معبود پکار دې. موسی علیه السلام د هغوئ ددې کم عقلی په جواب کښې اووئیل چې تاسو ډیر جاهل قوم یې ، دا بت پرست خلق دی او دوئ تول به هلاکیږی او ددوئ طریقه باطله ده. ﴿قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ۝ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ

وَيَطِلُ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾[۱] دغه وخت كښې الله ﷻ موسى ﷺ سره وعده اوفرمائيله چې خپل قوم سره كوه طور ته راشه ، مونږ به تاته كتاب يعنى تورات دركړو ، اودا به ستا او ستا دقوم دپاره يو دستور العمل وى. خو د تورات دركولو څخه وړاندې به ته ديرش ورځې او ديرش شپې مسلسل روژه نيسې. بيا ددې څخه ورستو په دې شمير د لسو ورځو اضافه اوشوه او څلويښتو ورځې نيته مقرر شوه. او موسى ﷺ خپل قوم سره كوه طور ته روان شو. د الله ﷻ د دې وعدې په شوق كښې موسى ﷺ ډير زيات جذباتى وو او خپل قوم ته يې وصيت اوكړو چې تاسو هم ماپسې راځئ. څه وړاندې ځم او په عبادت روژه وغيره كښې مشغوليږم ، او ماته ددې نيتې ديرش ورځې ښودلې شوې دې ، زما په عدم موجودګۍ به هارون ﷺ زما نائب او قائمقام وى. بنى اسرائيل په خپل رفتار سره وروستو روان وو او موسى ﷺ تيزى سره وړاندې لاړو او خيال يې دا وو چې دقوم خلق به كوه طور ته وروستو راؤرسى. خو ددوئ د تلو څخه وروستو دلته د سامرى د سخى د عبادت واقعه راپيښه شوه. د بنى اسرائيلو درې فرقې شوې او اختلاف په كښې پيدا شو. او موسى ﷺ پسې د تللو معامله ختمه شوه.

كله چې موسى ﷺ حاضر شو نو الله ﷻ ورته دا خطاب اوفرمائيلو چې : [وَمَآ أَعْجَلَكَ عَن قَوْمِكَ يَٰمُوسَىٰ﴾] يعنى اې موسى ﷺ ته د خپل قوم څخه ولې مخكښې تيزى سره راغلې.

**دموسى ﷺ څخه د عجلت كولو سوال او په دې كښې حكمت:** د سوال مقصد په ظاهر كښې دا وو چې موسى ﷺ دخپل قوم د حالاتو څخه بې خبره وو او دا توقع يې كوله چې هغوئ به هم كوه طورته رانژدې شوې وى ، او [خبر نه وو چې] قوم يې په فتنه كښې اخته شوې وو. چې ددې خبر موسى ﷺ ته وركړې شى [از تفسير ابن كثير][۲]

او په روح المعانى كښې د كشف په حوالې سره ددې سوال وجه دا وه چې موسى ﷺ ته د خپل قوم د تربيت يو خاص هدايت وركول وو او ددوئ په تيزى باندې متنبه كول وو، ستاسو د منصب رسالت تقاضا خودا وه چې تاسو خپل قوم سره وې، ستا نظر په هغوى باندې وې او خان سره مو راوستلې وې ستاسود عجلت نيتجه دا شوه چې سامرى ستا قوم ګمراه كړو. او په دې كښې دعجلت فعل طرفته د مذمت يوه اشاره هم ده چې دا انبياء كرامو شان سره نه ښائى.

اود انتصاب په حواله نقل كړې دى چې په دې كښې موسى ﷺ ته قوم سره د سفر كولو طريقه ښودلې شوې وه چې رئيس القوم ته روستو راتلل پكار دى ، لكه څنګه د لوط ﷺ په واقعه الله ﷻ هغوئ ته حكم وركړو چې مؤمنان خان سره واخله او دښار څخه بهر اوځه ، دوئ مخكښې كړه او پخپله روستو اوسئ. [وَاتَّبِعْ أَدْبَارَهُمْ].

د الله ﷻ ددې مذكوره سوال په جواب كښې موسى ﷺ د خپل ګمان مطابق عرض اوكړو چې زما د قوم خلق روستو روستو راتلل غواړى ، او څه وړاندې په تيزى سره څكه راغلم چې د حكم په تعميل كښې پيشقدمى كولو سره حاكم زيات خوشحاليږى. دې وخت كښې ورته الله ﷻ ددوئ په قوم بنى اسرائيلو كښې چې كومه واقعه د سخى د عبادت راپيښه شوې وه دهغې

[۱] ترجمه:- واقعى خبره ده چې په تاسو خلقو كښې ډير جهالت دې، داخلق چې په كوم كار كښې اخته دى دا به تباه كړې شى او دا كار به صرف بې بنياده دې.
[۲] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۵ ص: ۳۰۹]

خبر ورکړه. او دا چې هغوئ خو سامري ګمراه کړي دي او په فتنه کښې اخته شوي دي.

**سامري څوك وو؟** ځينې حضرات وائي چې دا د آل فرعون قبطي سړې وو، او د موسی ﷺ په ګاوند کښې اوسيدو. په موسی ﷺ باندې يې ايمان راوړو او کله چې موسی ﷺ بني اسرائيلو سر د مصر څخه اووتل نو دې هم ورسره شو. ځينې وائي چې دې د بني اسرائيلو د سامره قبيلې مشر وو، او سامره قبيله دشام په ملك کښې مشهوره ده. سعيد بن جبير رحمه الله فرمائي چې دا فارسيبان کس د کرمان اوسيدونکې وو. ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چې ددې کس تعلق يو داسې قبيلې سره وو چې د غوا عبادت به يې کولو. دې په څۀ طريقه مصر ته اورسيدو، او په ظاهره د بني اسرائيلو په دين کښې داخل شو، خو ددۀ په زړه کښې نفاق وو[قرطبی].([1]) د قرطبی په حاشيه کښې ليکلي شوي دي چې د اسړې د هندوستان هندو وو، چې د غوا عبادت کوي، [انتهیٰ] موسی ﷺ باندې يې ايمان راوړو، بيا خپل کفر طرفته واپس شو، يا د اوله سره يې په منافقت سره د ايمان اظهار کړې وو، والله اعلم.

مشهوره داده چې دسامري نوم موسی ابن ظفر وو، ابن جرير د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت نقل کړې دې چې کله موسی سامري پيدا شو نو د فرعون طرفه د اسرائيلو د ټولو هلکانو دقتل حکم جاري وو. ددۀ مور سره ويره پيدا شوه چې د فرعون سپاهيان به دې قتل کړي، نو دې په خپلو سترګو دماشوم قتل ليدلو څخه دا بهتر اوګڼړل چې دا ماشوم يې ځنګل کښې په يو غار کښې کيښودو او د غار خوله يې بنده کړه، [کله کله به يې ددۀ خبر اخستو] بل طرفته الله ﷻ جبرائيل ددۀ په حفاظت او خوراك ورکولو مقرر کړو. هغوئ به په خپله يوه ګوته باندې شهد، بله باندې مکهن يعني کوچ، بله باندې پئ راوړل او دې ماشوم ته به يې ورکول، تر دې چې دا ماشوم په غار کښې لوې شو، او ددۀ انجام دا شو چې دې په کفر کښې اخته شو او بني اسرائيل يې هم په کفر کښې اخته کړل، بيا د الله ﷻ په قهر کښې ګرفتار شو. هم دا مضمون يو شاعر په دوؤ شعرونو کښې بيان کړې دې، [از روح المعاني]([2])

| | |
|---|---|
| اذا المرء لم يخلق سعيدا تحيرت | عقول مربيه وخاب المؤمل |
| فموسى الذي رباه جبريل كافر | وموسى الذي رباه فرعون مرسل |

[ترجمه]: هر کله چې يو کس په اصل پيدائش کښې نيك بخت نه وي، نو دهغه پرورش چې څوك کوي نو دهغوئ عقلونه هم حيرانيږي، او ددې څخه اميد لرلو والا محروميږي، اوګوره چې د کوم موسی پرورش جبرائيل کړې وو هغه کافر وو او دکوم موسی ﷺ پرورش چې فرعون لعين کړې وو هغه د الله ﷻ رسول جوړ شو.

[أَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا] موسی ﷺ ډير د خفګان په حالت کښې واپس راغلو او قوم ته خطاب يې اوکړو او هغوئ ته يې د الله ﷻ وعده وريادہ کړه دکومې دپاره چې هغوئ ﷺ خپل ټول قوم د کوه طور بنی طرف ته بوتلل چې هلته په رسيدو به الله ﷻ خپل کتاب ورکړي اودهغې په ذريعه به ستاسو ددين او دنيا ټول مقاصد پوره شي.

[أَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ] يعني دا الله ﷻ په هغه وعده باندې لا ډيره موده نه ده تيره شوې چې ګنی

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:١١ص:٢٣٣، ٢٣٤]

[2]) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٦ ص:٢٤٤]

ستاسو څخه به هیره شوې وی ، [او په دې وجه] تاسو د ډیرې زمانې راسې انتظار کولو څخه وروستو مایوسه شوئ او بله طریقه مو اختیار کړه.

[اَمْ اَرَدْتُّمْ اَنْ یَّحِلَّ عَلَیْکُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّکُمْ] یعنی د هیریدو یا د انتظار کولو څه احتمال نشته دې ، نو اوس ددې څخه سوا بل څه وئیلې کیدې شی چې تاسو پخپله پخپل قصد او اختیار سره دالله ﷻ غضب ته دعوت ورکړو.

[قَالُوْا مَاۤ اَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا] لفظ د ملك په د فتحې میم او په ضمې د میم دواړه یو معنی ورکوی. اودې ځائې کښې ددې څخه مراد خپل اختیاردې، اوددې مقصد دادې چې مونږ د سخی عبادت پخپل اختیارسره نه دې کړې بلکه د سامری عمل کتلو سره مونږ په دې مجبوره شو. ښکاره خبره داده چې ددوئ دا دعوی غلطه او بې بنیاده ده . سامری یا د هغه عمل نه وو مجبوره کړی، دخپل غور اوفکرکولو سره یې داسې کړی وو ، وړاندې د سامری واقعه بیانیږی.

[وَلٰكِنَّا حُمِّلْنَاۤ اَوْزَارًا مِّنْ زِیْنَةِ الْقَوْمِ] اوزار جمع ده معنی یې دروندوالې او بوج ده ، هر کله چې د قیامت په ورځ به هم ګناه د بنده په سر بوج او پیتې وی څکه ورته وزر او اوزار وئیلې شی.

[زِیْنَةِ الْقَوْمِ] دلته د زینة څخه مراد کالی دی اود قوم څخه مراد فرعونی قوم قبط دې چا څخه چې بنی اسرائیلو د اختر په بهانه کالی په سوال باندې غوښتلې وو خو بیا هم دوئ سره پاتې شو ، دې ته اوزار ، ګناه په دې بنا اووئیلې شوه چې د واپس کولو په ځائې دوئ ځان سره راوړل او د فتون په نوم سره چې کوم حدیث پاك تیر شوې دې په تفصیل سره د هغې څخه معلومیږی چې هارون ﷺ دغه خلق په دې خبر کړی وو چې دوئ دګناه کار کړې دې څکه یې ورته حکم اوکړو چې کنده کښې د غه ټول کالی اوغورزوئی.

ځینې روایاتو کښې راغلی دی چې سامری ورته د خپل مطلب پوره کولو دپاره وئیلی وو چې دغه کالی د نورو خلقو مال دې ، تاسو لره ددې ځان سره ساتل ګناه ده او هم دده په وینا په کنده کښې غورزولې شوی وو.

**د کافرانو مال مسلمانانو دپاره په کوم صورت کښې حلال دې:** دلته دا سوال پیدا کیږی چې کوم کافران د مسلمانانو په ملك کښې د هغوئ د حکومت دقانون پابندی کوی او اوسیږی یا هغه کافران چې مسلمانانو سره یې د ځان او مال وغیره په باره کښې د امن لوظ ،قبول شوې وی نو ددې قسمه کافرانو مال خو مسلمانانو دپاره یقینا حلال نه دې . لیکن کوم کافران چې دې دواړو کښې یو قسم هم نه وی ، یعنی نه ذمی او نه حربی معاهد وی نو دددوئ مالونه خو د مباح الاصل ځیزونو پشان مسلمانانو دپاره حلال دی ، بیا هارون ﷺ دغې کالو ته ولې وزر او ګناه اوفرمائیل او خپلو ځانونو سره د ساتلو په ځائې یې په کنده کښې د غورزولو حکم ولې ورکړو؟ ددې یو مشهور جواب دادې چې یقینا مسلمان دپاره دحربی کافر مال اخستل جائز دی څنګه چې عامو مفسرینو لیکلی دی خو د اسې مال په حکم د غنیمت کښې دې چې داسلامی شریعت څخه وړاندې په نورو پخوانو شریعتونو کښې دکافر د قبضې څخه ددې اوښکل خو جائز وو خو مسلمانانو دپاره دهغې استعمال او فائدې ترې اخستل حلال نه وو. بلکه دابه په یوه غونډئی باندې پورته ایښودلې شو او تندر به راغلو او دابه ئې اوخورلو یعنی دابه ئې وسیزلو، او کوم مال د غنیمت به چې جهاد اور اونه سوزولو نو دابه نخښنه ددې خبرې وه چې دغه کړې جهاد به قبول شوې نه وو څکه به هغه مال هم سپیره ګنړلې شو او

هیڅوك به هغې ته نژدې نه ورتلل.
د رسول کریم ﷺ په شریعت کښې چې کوم مخصوص رعایتونه او آسانۍ ورکړې شوی دی دهغې ځینې یو داهم ده چې د غنیمت مال مسلمانانو دپاره حلال اوګرځولې شو ، څنګه چې د مسلم شریف په یو حدیث پاك کښې دا بیان ښه په واضحه طور سره راغلې دې. (۱) اوس که دغې ته مال د غنیمت اووئیلې شي بیا هم د هغې استعمال بنی اسرائیلو دپاره جائز نه وو ځکه یې ورته اوزار اوفرمائیل او د هارون ؑ په حکم په یوه کنده کښې ښخ کړې شو.
**یوه اهمه فائده:** لیکن فقهی لحاظ سره ددې معاملې کوم تحقیق چې د امام ابوحنیفه ؒ په سیر کتاب(۲) او ددې په شرح کښې امام سرخسی کړې دې هغه ډیر زیات اهم او حق ته نژدې دې لیکن چې د حربی کافر مال په هر صورت کښې غنیمت نه وی بلکه په هغه حال کښې غنیمت وی چې په جنګ کښې ترې د تورې په زور اخستې شوی وی. ځکه خو د سیر په شرح کښې دې دپاره مغالبه بالمحاربه شرط ګرځولې شوې دې ، هغوئ کوم مال چې د محاربې په صورت کښې حاصل کړې نو هغې ته به د غنیمت مال نه بلکه دې ته مال فيئ وئیلې شي ،خو د هغې د حلال کیدو دپاره دهغه کافرانو رضا او اجازت شرط دې لکه څنګه چې یو اسلامی حکومت په دوئ باندې ټیکس او قلنګ ایښودې وی او هغوی په هغې باندې راضي وی اودغه ټیکس ورکوی نو اګرچې دا څه جهاد او قتال نه دې خو په رضا سره ورکړې مال د مال فيئ په حکم کښې دې اوهغه هم حلال دې.
دلته د فرعونی قوم څخه اخستې شوی کالی په غنیمت اوفيئ دواړو کښې ځکه نه حسابیږی چې په سوال ترې داختر په بهانه غوښتلې شوی وو ، او بیا د واپس کولو وعده ورسره کړې شوې وه ځکه په هیڅ صورت کښې د بنی اسرائیلو دپاره حلال مال نه شو ګڼلې.
د هجرت په موقع رسول کریم ﷺ دکافرانو د امانتونو واپس کولو دپاره په ډیر اهتمام سره علی ؓ په مکه مکرمه کښې ایسارکړو دې غنیمت او فيئ مال یې اونه ګڼلو ګنی نوبیا کافرانو ته ددغې امانتونو واپس کولو سوال نه پیدا کیدو ، د مسلمانانو حق به یې ګرځولې وو ، والله اعلم
[فَقَذَفْنٰهَا] [مونږ دغه کالی اوغورزولی ] د تیر شوی حدیث فتون تر مخه دغه کار د هارون ؑ حکم سره اوکړې شو ، او په ځینې روایتونو کښې چې سامری خلق دهوکه کړل او په کنده کښې یې دغې کالو غورزولو ته تیارکړل که دواړه خبرې شوی وی نودا هم څه لرې خبره نه ده.
[فَكَذٰلِكَ اَلْقَى السَّامِرِيُّ] په تیر شوی حدیث فتون کښې د عبدالله بن عباس ؓ د روایت څخه معلومیږی چې هارون ؑ کله چې ټول کالی په یوه کنده کښې په خلقو باندې ورګذار کړل په هغې یې د اور بلولو حکم اوکړو چې ټول په ویلو کیدو سره رایوځائې شي نو د موسی ؑ په راتلو به خبره ختمه کړې شي چې دې سره څه کول پکار دی چې ټولو خلقو خپل خپل کالی په دغې کنده کښې وراغورزول نو سامری هم لاس موټې کړې دغلته وراورسیدو او هارون ت یې اووئیل چې زه هم وراوغورزوم ځکه یې ورته د غورزولو اجازت ورکړو، دغه وخت سامری هارون ؑ ته اووئیل چې زه یې کله اوغورځوم نو تاسو دعا اوکړئ چې زما مقصد په دې سره پوره شي ، هارون ؑ ته دده منافقت او کفر معلوم نه وو ځکه یې دعا اوکړه ،

---
۱) صحیح مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة [ج:۱ص:۱۹۹]
۲) مبسوط للسرخي کتاب الصرف ، باب الصرف في دار الحرب [ج:۱۶ ص:۴۴۹ تا ۴۵۲]

دسامري په موټې کښې د کالو په ځائې هغه ښاؤره وه چې د جبرائيل ﷺ د اس د پښو لاندې راغلې وه ، ده دا حيرانونکې واقعه ليدلې وه چې اس به يې قدم په کوم ځائې ايښودلو هلته به په خاوره کښې د ژوند آثار راښکاره کيدل ،د دې ځخه هغه په دې پوهه شوې وو چې په دې کښې د ژوند آثار موجود دي.شيطان هغه په دې باندې آماده کړې وو چې هغه دې په دې باندې سخې ژوندې کړې اود دې فن مظاهره دې اوکړي په هر حال دا دا د خاوړې اثر وو او که د هارون ﷺ د دعا اثر وو ، دغه ويلو کړو کالو ځخه يو ژوندې سخې جوړ شو چې آوازونه به يې کول ، په کومو روايتونو کښې چې راغلي دي چې بني اسرائيلو ته په کنده کښې د کالو غورزولو نه يې د سخي کالبوت جوړ کړو خو په کښې ځه ژوند نه وو چې د جبرائيل ﷺ د اس دپښو خاوره يې په کښې واچوله نو ژوند په کښې راغلو . دا ټول روايات په تفسير قرطبی[1] وغيره کښې موجود دي خو هرکله چې اسرائيلي روايات دي ځکه پرې اعتبار نشي کولې خو دې ته د غلط وئيلو هم ځه دليل نشته دې .

[فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُ خُوَارٌ] [دغه کالو ځخه سامري يو سخې راؤښکلو چې په کښې د غوا آواز يعني خوار وو] د جسدا لفظ په بنا باندې ځينې مفسرينو حضراتو فرمائيلي دي چې دا صرف کالبوت او ډانچه وه د ژوند نخښې او آثار په کښې نه وو او آواز ترې هم د يو خاص صفت په وجه راوتلو خو دعامو مفسرينو قول هم هغه دې چې پورته ليکلې شوې دې او د ژوند نخښې او آثار موجويدل په کښې منلې شي .

[فَقَالُوا هَٰذَا إِلَٰهُكُمْ وَإِلَٰهُ مُوسَىٰ فَنَسِيَ] يعني سامري او د هغه ملګرو دا آواز کوؤنکې سخې چې اوليدو نو نورو بني اسرائيلو ته يې اووئيل چې دا ستاسو او د موسی ﷺ خداې دې خو موسی ﷺ ځخه هير شوی دی ځکه چرته بل طرفته لاړو ، تر دې پورې د بني اسرائيلو دغلط عذر بيان وو چې هغوئ د موسی ﷺ د زورنې په جواب کښې پيش کړو . وريسې : [أَفَلَا يَرَوْنَ أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا وَلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا] کښې د دوئ کم عقل توب او ګمراهي بيانولې شي چې که واقعي يو سخې ژوندې هم شو او لکه د غوا پشان آواز يې هم اوکړو نو د عقل دښمنانو په دې خو ځان پوهه کړې چې خدايئ سره ددې ځه واسطه ده ؟ ځکه چې دا خو نه ستاسو د ځه خبرې جواب درکولې شي او نه درته نفع نقصان دررسولې شي نو دې لره د خدايئ ګڼړلو بيوقوفي ځنګه کولې شي ؟

| وَلَقَدْ | قَالَ لَهُمْ | هَٰرُونُ | مِن قَبْلُ | يَٰقَوْمِ | إِنَّمَا |
|---|---|---|---|---|---|
| او وئيلي وؤ | دوئ ته | هارون | دمخکښې نه | اې قومه زما | بيشکه |
| اونه دنفع ورکولو او ددې نه وراندې هارون هغوئ ته وئيلي هم وو چې اې زما قومه | | | | | |

| فُتِنتُم | بِهِۦ | وَإِنَّ | رَبَّكُمُ | ٱلرَّحْمَٰنُ |
|---|---|---|---|---|
| په فتنه کښې اچولې شوی يئ تاسو | په دې [سخي] سره | او بيشکه | رب ستاسو | رحمن دې |
| د دې سخي په سبب په تاسو امتحان کړې شوې دې | ..........اوبيشکه ستاسو رب رحمن دې | | | |

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۱ص: ۲۳۵]

فَاتَّبِعُوْنِيْ وَاَطِيْعُوْٓا اَمْرِيْ ۝ قَالُوْا لَنْ نَّبْرَحَ

نو تابعداري اوکړئ زما | او اطاعت اوکړئ | دحکم زما | اووئيل هغوئ | چې هميشه به اوسو مونږ

نو زما تابعداري کوئ | اوزما حکمونه منئ | هغوئ اووئيل چې مونږ خو به دده په عبادت کښې

عَلَيْهِ عٰكِفِيْنَ حَتّٰى يَرْجِعَ اِلَيْنَا مُوْسٰى ۝ قَالَ

په عبادت ددې سخې | محکم ولاړ | تردې پورې | چې واپس راشي | مونږ ته | موسی | اووئيل موسی

مشغول يو | ............ تر دې چې موسی ﷺ راته واپس راشي | موسی ﷺ اووئيل چې

يٰهٰرُوْنُ مَا مَنَعَكَ اِذْ رَاَيْتَهُمْ ضَلُّوْٓا ۝

اې هارونه | څه خيز منع کړې وې ته | کله چې | اوليدل تا دوئ | چې ګمراهان شول |

اې هارونه ته ماپسې ولې نه راتلې کله چې تا دا اوليدل چې دوئ ګمراهان شول ؟

اَلَّا تَتَّبِعَنِ ؕ اَفَعَصَيْتَ اَمْرِيْ ۝ قَالَ

چې عمل دې اونکړلو په طريقه زما | آيا خلاف ورزي اوکړه تا | دحکم زما | اووئيل هارون |

............ آيا تاهم زما د حکم نافرماني اوکړه ؟ | [هارون] اووئيل چې اې زما دمور

يَبْنَؤُمَّ لَا تَاْخُذْ بِلِحْيَتِيْ وَلَا بِرَاْسِيْ ۚ اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ تَقُوْلَ

اے خويه دمور | مه نيسه | ږيره زما | اونه سر زما | بيشکه زهٔ | يريدم | چې تهٔ به اووائې

خويه [روره] | زما ږيره او زما سر مه رانيسه | ما سره دا ويره شوه چې ته به دا او وائې | چې

فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِيْ ۝

چې اختلاف دې پيدا کړو | په منځ | دبني اسرائيلو کښې | او لحاظ دې اونکړو | دخبرې زما |

تا په بني اسرائيلو کښې اختلاف پيدا کړو | اوزما د راتلو انتظار دې اونه کړو |

## آسان ترجمه قرآن

او هارون عليه السلام هغوی ته مخکښې نه وئيلي وو چه : اې زما د قوم خلقو! تاسو ددې (سخې) په وجه په فتنه کښې اچولې شوی يئ. او په حقيقت کښې خو ستاسو رب رحمٰن دې، په دې وجه تاسو ما پسې روان شئ اوزما خبره اومنئ. هغوی اووئيل چه: تر څو پورې موسیٰ عليه السلام واپس نه وی راغلې مونږ خو به دهٔ په عبادت پاندې کلک ولاړ يو اوموسیٰ عليه السلام (واپس راتلو) سره اووئيل : هارونه! کله چه تا اوليدل چه دوی ګمراه شوی دی نو ته څه څيز منع کړې وې. چه ته ما پسې راغلې وې؟ آيا تا زما د خبرې خلاف ورزی اوکړه؟ هارون عليه السلام اوفرمائيل: اې زما د مور ځويه! زما ګيره مه نيسه او مهٔ زما سر. په حقيقت کښې ماته دا ويره وه چه ته به وائې چه تا په بنی اسرائيلو کښې اختلاف واچولو او زما د خبرې خيال دې اونکړو.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ قَالَ لَهُمْ هٰرُوْنُ﴾ [ اودغو خلقو ته هارون ] ﷺ دحضرت موسیٰ ﷺ دواپس کيدونه ﴿مِنْ قَبْلُ يٰقَوْمِ﴾ [ وراندهم وئيلي وو چه اے زما قومه ﴿اِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهٖ﴾ تاسو ددې ] سخی [ په عبادت کولو سره په ګمراهئ کښې ګير شوئ ] يعنې ددهٔ عبادت په هيڅ جوړ سره جائزنه دې دا ښکاره

گمراهي ده ﴿وَإِنَّ رَبَّكُمُ﴾ [ او ستاسو رب ] حقيقي ﴿الرَّحْمَٰنُ﴾ [ خو رحمن دې ] نه چه داسخي ] پس تاسو ] ددين په باره کښې ﴿فَاتَّبِعُونِي﴾ [ زما په لاره راځي او] په دې باره کښې ﴿وَأَطِيعُوا أَمْرِي﴾ [ زما خبره منئ ] يعنى زما په قول او فعل باندې عمل کوئ ﴿قَالُوا لَن نَّبْرَحَ عَلَيْهِ عَاكِفِينَ حَتَّىٰ يَرْجِعَ إِلَيْنَا مُوسَىٰ﴾ [ دوى جواب ورکړو چه مونږ خو ترڅوپورې چه موسى ﷺ [واپس رانه شي په] عبادت د [ده به دغسې ټينګ يو] غرض د حضرت هارون ﷺ وينا ئې نه وه منلې تردې چه حضرت موسى ﷺ هم راغې او قوم ته ئې اول خطاب وکړو کوم چه بره تيرشو ددې نه پس ئې حضرت هارون ﷺ ته مخ کړو او ﴿قَالَ يَا هَارُونُ﴾ [ وې وئيل اے هارونه ] ﷺ ﴿مَا مَنَعَكَ إِذْ رَأَيْتَهُمْ ضَلُّوا ۝ أَلَّا تَتَّبِعَنِ﴾ [ هرکله چه تا ] دوى [ وليدل چه دوى ] بلکل [گمراه شو ] اونصيحت ئې هم نه اوريدؤ [نو ] دغه وخت [ تالره په ماپسې د راتلو نه کوم کار مانع شوې وو] يعنى دغه وخت په ماپسې راتلل پکار وو چه ددې خلقو نور زيات يقين راغلې وې چه ته ددوى کار ډير ناخوښه گنړې او دارنګ ددې باغيانو نه خو قطع تعلق چه څومره زيات وى غوره دې ﴿أَفَعَصَيْتَ أَمْرِي﴾ [پس اياتا زما دوينا نه خلاف وکړو] چه مادرته وئيلى وو[ لاتتبع سبيل المفسدون ] لکه چه په نهمه پاره کښې دى چه معنى ئې داده ته به دمفسدانو دلارې تابعدارى نه کوې چه ددې په عموم کښې داهم داخله ده چه دمفسدانو سره به تعلقات نه ساتې او جدا کيږې په ترې ﴿قَالَ يَبْنَؤُمَّ﴾ [ هارون ] ﷺ [ ووئيل چه اے زما دمور ځويه ] يعنى زما وروره ﴿لَا تَأْخُذْ بِلِحْيَتِي﴾ [ ته زما ږيره مه نيسه ﴿وَلَا بِرَأْسِي﴾ او نه مې ] ويښته [ دسر نيسه ] او زما عذر واوره زما په تاپسې دنه درتلو وجه داوه چه ﴿إِنِّي خَشِيتُ أَن﴾ [ زمادا ويره پيداشوې وه چه ] که زه په تاپسې درتلې نو ماسره به هغه خلق هم درتلل کومو چه دسخى دعبادت نه ځان ساتلې وو نو دبنى اسرائيلو جماعت به دوه ټکړې شوې وو څکه چه دسخى دعبادت نه ځان ساتونکى به ماسره وو او نور خلق به دده په عبادت ټينګ پاتې شوى وو او په دې حالت کښې ﴿تَقُولَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ [ به تاوئيل چه تا دبنى اسرائيلو په مينځ کښې تفريق پيدا کړو] کوم چه څنې وخت ددوى سره دپاتې کيدونه زيات مضر وى چه فساد کوونکى ميدان خالى بيا مومى بې خطرې بيا فساد زياتوى ﴿وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِي﴾ [اوتا زما دخبرې لحاظ ونه کړو ] چه ما درته وئيلى وو اصلح يعنى په دې صورت کښې به تا په ما دا الزام لګولو چه ما تا ته داصلاح کولو حکم کړې وو او تا په بنى اسرائيلو کښې تفريق جوړ کړو او فساد د پيدا کړو

**معارف او مسائل**

بنى اسرائيلو کښې چې دسخى دعبادت فساد پيداشو نو هارون ﷺ دموسى ﷺ په ځائې د اودريدو حق ادا کړو او قوم يې پوهه کړو ، مګر څنګه چې روميې بيان شوى دى چې په هغوئ کښې درې ډلې جوړ شوې وې ، يوه ډله هارون ﷺ سره پاتې شوه دهغوئ فرمانبردار وو ، اود سخى عبادت کول يې ګمراهى ګڼړله چې شمير يې دولس زره ښودلې شوې دې ، [بحواله قرطبى]
پاتې دوه ډلې د سخى په عبادت کولو کښې شريکې پاتې شوې ،فرق صرف دا وو چې دوئ کښې څه کسانو به دا وئيل چې که دموسى ﷺ واپس راغلو او مونږ يې د سخى د عبادت کولو څخه منع کړو نو ددې څخه به منع شو ، او څه کسان په کښې دومره سخت وو چې وئيل به يې چې که موسى ﷺ واپس راغلو نو هغوئ ﷺ به هم دسخى په عبادت کولو مونږ سره شريک شي ،

یعنی په هیڅ صورت کښې به مونږ د سخې عبادت نه پریږدو ، په دې صورت کښې هارون ﷺ د دولسو زرو کسانو سره دوئ څخه ویزاره شول خو ورسره بیا هم په یو ځائې کښې پاتې کیدل.
موسی ﷺ چې واپس راغلو نو اول یې بنی اسرائیلو ته هغه خطاب اوکړو چې تیرو شوؤ آیتونو کښې بیان شو، بیا یې خپل خلیفه هارون ﷺ ته مخ کړو او خپله سخته غصه او خفګان یې پرې ښکاره کړو ، دهغوئ دسر او ږیرې ویښته یې اونیول او وې فرمائیل چې کله دې بنی اسرائیل په ښکاره ګمراهۍ او شرك كښې اخته اولیدل نو زما تابعداری دې ولې اونه کړه او زما حکم دې ولې اونه منلو .
[مَامَنَعَكَ إِذْ رَأَيْتَهُمْ ضَلُّوا ۙ أَلَّا تَتَّبِعَنِ] دلته موسی ﷺ اوفرمائیل چې زما د تابعدارۍ کولو نه ته څه څیز منع کړې ، ددې تابعدارۍ نه کولو یو مطلب دادې چې ما پسې کوه طور ته ولې رانغلې ، څنګه چې د تفسیر په خلاصه کښې بیان شو ، او څینې مفسرینو یې دا مطلب بیان کړې دې چې تاسو ﷺ ولې دا خلق د شرك او كفر څخه منع نه کړل څنګه چې زما طریقه ده چې د کفر او شرك څخه منع کول کوم. په دواړو صورتونو کښې موسی ﷺ هارون ﷺ ته دا زورنه ورکوی چې یا خو به دې دوئ سره جنګ او جهاد کړې وې او یا به دې د دوئ ځائې پریښودې وې ، او ماپسې به راغلې وې ، دوئ سره پاتې کیدل تاسو دپاره ښه نه وو.
خو بیا هم هارون ﷺ په پوره ادب سره د موسی ﷺ د غصې کمولو په خاطر [يَبْنَؤُمَّ] سره خطاب کوی چې په دې سره یې زړه نرم شی او دې ته یې خیال شی چې آخر رور دې یم څه دښمن خو دې نه یم زما عذر واؤرئې نو عذر ورته داسې بیانوی چې ما سره دا خطره پیدا شوه چې که ستاسو د راتلو څخه وړاندې مې ورسره جنګ او جهاد کړې وې یا مې دوئ په ځائې پریښودې وې ، نو ویره مې وه چې تاسو ﷺ به راته وئیل چې د بنی اسرائیلو تر مینځه دې جدائی ولې راوسته ؟ سره ددې چې د تلو په وخت کښې راته تاسو ﷺ فرمائیلی وو چې [اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي وَأَصْلِحْ] اودامې خیال وو چې تاسو راشئ هله به څه قدم پورته کوؤ. اود قرآن پاك په بل ځائې کښې د هارون ﷺ دا عذر هم منقول دې چې [إِنَّ الْقَوْمَ اسْتَضْعَفُونِي وَكَادُوا يَقْتُلُونَنِي] [زما قوم بنی اسرائیلو زه کمزورې ګنړلم ولې چې ددغې تولو په مقابله کښې زما ملګری ډیر کم وو .کیدې شوه چې دوئ زه وژلې وې]
د عذر کولو خلاصه داده چې زه په ګمراهۍ کښې دهغوئ ملګرې نه ووم ، زما چې څومره وس کیدې شو په هغې انداز مې دوئ پوهه کړل او هدایت مې ورته کولو خو دوئ زما خبره نه منله او زما په وژلو پسې یې هم راوخستې وه ، په داسې صورت کښې مې که ورسره جهاد کړې وې یا په ځایې مې پریښودې وې او تاسو ﷺ ته درغلې وې نو ماسره به صرف دا دولس زره کسان وو نور خلق به مې په مقابله کښې ولاړ وو، څکه مې ستاسو ﷺ د راتلو انتظار اوکړو او دغه شان سستی رانه اوشوه ، موسی ﷺ چې د هارون ﷺ دا عذر واؤریدو نو هغوئ یې پریښودل او اصل فسادی ته ورغلو ، قرآن کریم کښې دا چرته هم نشته چې ګنی موسی ﷺ د هارون ﷺ رائې صحیح اومنله ، یا دهغوئ ﷺ دغه کار ته یې اجتهادی غلطی اووئیله ، او هغوئ ﷺ یې پریښودل.

**د دوؤ پیغمبرانو ﷺ د رایې اختلاف او دواړه طرفونو ته د حقوالی امکان**: په دې واقعه کښې د موسی ﷺ اجتهادی رائې دا وه چې په دغه حالت کښې دغه ګمراه خلقو سره د هارون ﷺ او دهغوئ

د ملگرو په یو ځائې پاتې کیدل نه وو پکار ، موسی ﷺ له به ورغلې وې چې د گمراه قوم نه یو قسم د ویزاره کیدو اعلان وو.

بل طرفته دهارون ﷺ اجتهادي رایې دا وه چې په دغه شان کولو سره به بني اسرائیل خپل مینځ کښې جدا شوی وو او همیشه دپاره به جدا جدا پاتې شوی وو ، او دا کیدې شوه چې موسی ﷺ په راتلو سره به دوئ بیا ایمان اوتوحید راواوړې ځکه یې ورسره نرمي اوکړه او هغوئ سره یې یو ځائې استوگنه کول لړ وخت دپاره اختیار کړل ، په دې شان د دواړو رائې د الله ﷻ د حکمونو په منلو او په ایمان او توحید باندې خلق کلك لړل وو ، خو یو ددې طریقه دا اوگڼله چې دغه گمراه قوم سره یې بائیکاټ کړې وې او بل یې دا طریقه اوگڼله چې تر څه وخته پورې ورسره نرمي اوکړې شي کیدې شي چې په دې شان بیا توحید او ایمان ته راواوړي ، د عقل فکر ترمخه یو طرفته هم گناه یا غلطه نشي بللې.

پاتې شوه دا خبره چې موسی ﷺ بیا خپل رور ته ولې غصه شو ، او هغوئ یې د سر او ږیرې وېښتو څخه اونیول او راښکل ، نو دا یو دیني غیرت وو څه وخت چې ورته پوره حقیقت نه وو معلوم شوې خو کله چې هارون ﷺ ورته حقیقت او عذر بیان کړو نو دغه عمل یې جاري او نه لړلو بلکه هغوئ دپاره یې د بخښنې دعا اوکړه.

| قَالَ فَمَا خَطْبُكَ | يٰسَامِرِيُّ ۝ | قَالَ | بَصُرْتُ | بِمَا | لَمْ يَبْصُرُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| اووئیل موسی نو څه کار دې ستا | اې سامریه | اووئیل [سامري] | الیدلې ووما | هغه څیز | چې لیدلې نه وو خلقو |

موسی ﷺ اووئیل چې ښه سامریه ته اووایه چې ستا څه قصه ده | هغه اووئیل چې ماته یو داسې څیز ښکاره شو چې

| بِهٖ | فَقَبَضْتُ | قَبْضَةً | مِّنْ اَثَرِ | الرَّسُوْلِ | فَنَبَذْتُهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه څیز | نو راواخستلو ما | یو موټې [خاوره] | دقدم دنښې | د رسول نه | پس ورواچوؤ ما هغه |

هغه بل چاته نه ښکاریدو | ما د فرښتې د قدمونو نه یو موټئ خاوره راوچته کړه | بیا مې هغه په دې بت

| وَكَذٰلِكَ | سَوَّلَتْ | لِيْ | نَفْسِيْ ۝ | قَالَ | فَاذْهَبْ | فَاِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او دارنگې | ښه ښکاره کړو | ماته | نفس زما [دا کار] | اووئیل موسی | نو څه [لرې شه] | بیشکه |

کښې ورواچوله | اوهم دا خبره زما نفس ماته ښه ښکاره کړې وه | موسی ﷺ اوفرمائیل چې څه تول

| لَكَ | فِي الْحَيٰوةِ | اَنْ تَقُوْلَ | لَا مِسَاسَ | وَاِنَّ | لَكَ | مَوْعِدًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مقرره ده تادپاره | په ژوند کښې | چې وائې به ته | مه لگیږه [ماسره] | او بیشکه | دې تالره | وخت مقرر |

عمر به ته هم دا وائې | چې ماته لاس مه راوړئ | .............. اوتاسره یوه بله وعده [دعذاب هم] ده

| لَّنْ تُخْلَفَهٗ ۝ | وَانْظُرْ | اِلٰۤى اِلٰهِكَ | الَّذِيْ |
|---|---|---|---|
| چې هرگز به روستو نشي ته د هغې نه [بلکه هم په هغې به هلاکیږې] | او اوگوره ته | اخپل معبود ته | هغه |

چې دهغې نه روستو کیدې نشي | .............. اوخپل دې معبو د ته اوگوره دکوم چې ته

| ظَلْتَ | عَلَيْهِ | عَاكِفًا | لَنُحَرِّقَنَّهٗ | ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهٗ |
|---|---|---|---|---|
| چې وې ته | په هغه باند | محکم ولاړ | خامخا به مونږ سوزوو هغه | بیا به خامخا ذره ذره کوو هغه |

عبادت کوې | .............. مونږ به دا اوسیزو | اوبیا [ددې یره به] په دریاب کښې

فِي الْيَمِّ نَسْفًا ۝ إِنَّمَآ إِلَٰهُكُمُ اللَّهُ الَّذِي لَآ

په درياب كښې | په ذره كولو سره | بيشكه | معبود ستاسو | الله دي | هغه [الله] | چې نشته دي

اوبهيوو | ........ ستاسو معبود خو بس يو الله ﷻ دي | چې هغه نه سوا بل

إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ۝

لائق دعبادت | مگر | هم هغه دي | فراښه دي | د هر څيز نه | په لحاظ دعلم سره |

معبود نشته | هغه هر څيز په خپل علم كښې راگير كړى دى |

## آسان ترجمه قرآن

موسٰى عليه السلام اوفرمائيل : اې سامري! په تا څه چل شوې وو؟ هغه اووئيل : ما يو داسې څيز ليدلې وو كوم چه نورو نه وو ليدلې په دې وجه ما د رسول د نقش قدم نه يو موټې اوچت كړو، اوهغه مې (په سخې بانديې) واچولو. او ما ته زما زړه دا كار هم دغه شان ښكلې كړو. موسٰى عليه السلام اوفرمائيل : ښه نو څه، اوس به ټول ژوند ستا دا كار وى چه خلقو ته به وائې چه ما ته گوتې مه راوړئ او (د دې نه علاوه ستا دپاره د يوې وعدې وخت مقرر دې كوم چه ستا نه به روستونه كړې شي او گوره دې خپل (دروغژن) معبود ته دې د چا په عبادت چه ته كلک ولاړ وې! مونږ به دا اوسيزو. او بيا به ئې (ايره) ذره ذره كولو سره سمندر ته واچوو. په حقيت كښې ستاسو د ټولو معبود خو بس يو الله پاک دې چه دهغه نه علاوه بل معبود نشته، دهغه علم په هر څيز بانديې احاطه كړې ده.

## خلاصه تفسير

بيا سامرى ته متوجه شو او ده ته يې ﴿قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يَٰسَٰمِرِيُّ ۝﴾ [ ووئيل چه اے سامرى ستا څه معامله ده ] يعنى تادا حركت ولې وكړو ﴿قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوا بِهِ﴾ [ هغه ووئيل چه ماته داسې شې په نظر راغلې وو كوم چه نوروته په نظر نه وو راغلې ] يعنى حضرت جبرائيل ﷺ چه په كومه ورځ په درياب كښې راپورې وتې وو كوم چه دمؤمنانو دمدد او دكافرانو دهلاك كولو دپاره راغلې وو او په تاريخ طبرانى كښې دسدى په په سند سره نقل كړى دى چه حضرت جبرائيل ﷺ حضرت موسى ﷺ ته كوه طور دتلو كوم حكم راوړې وو نو په اس سو راغلې وو او دغه وخت سامرى ليدلې وو(1) ﴿فَقَبَضْتُ﴾ [ بيا ما د دغه راليږلې شوى ] چه دالله تعالى دطرف نه راغلې وو دسورلې: ﴿قَبْضَةً مِّنْ أَثَرِ الرَّسُولِ﴾ [ دپښې دپل نه يو موټې ] ډك دخاوړو [ اوچت كړې وو] اودخانه زما په زړه كښې داخبره راغله چه په دې كښې به دژوند نښې وى په كوم شى كښې چه واچولې شى په هغې كښې به ژوند پيداكيږى ﴿فَنَبَذْتُهَا﴾ [ پس ما هغه موټې ] د خاوړو ددې سخې په قالب كښې [ واچولو ﴿وَكَذَٰلِكَ سَوَّلَتْ لِي نَفْسِي ۝﴾ او زما زړه ته داخبره ] غوره او[ ښه ښكاره شوه ] ﴿قَالَ فَاذْهَبْ﴾ موسى ﷺ [ وفرمائيل نو ته څه ﴿فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيَوٰةِ﴾ بس ستا دپاره په دې ] دنيوى ﴿ [ ژوند كښې دا سزا ] تجويزشوې [ ده ﴿أَن تَقُولَ لَا مِسَاسَ﴾ چه ته به دا وايې چه ماله دهيڅوك لاس نه راوړى ﴿وَإِنَّ لَكَ﴾ او ستا دپاره ] ددې سزا نه علاوه ﴿مَوْعِدًا لَّن تُخْلَفَهُ﴾ [ يوه بله وعده ] دحق تعالى دعذاب [ ده كومه چه تانه واپس كيدو نكې نه ده ]

(1) تاريخ الطبري [ج: ۱ ص: ۲۹۶]

يعنى په اخرت كښې به دې جدا عذاب وى ﴿وَانْظُرْ إِلَىٰ إِلَٰهِكَ الَّذِي﴾ [ او ته خپل دې ] باطل [ معبود ته گوره دكوم ] په عبادت ﴿ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا﴾ [ چه ته ټينګ شوې ناست وې ] گوره ﴿لَنُحَرِّقَنَّهُ ثُمَّ﴾ [ مونږ دې سيزو بيا ] ايرې د ﴿لَنَنْسِفَنَّهُ فِي الْيَمِّ نَسْفًا﴾ [ دا لره په درياب كښې شيندو ] چه نوم نښه يې ورك شى ﴿إِنَّمَا إِلَٰهُكُمُ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ [ بس ستاسو ] حقيقى [ معبود خو صرف الله تعالى دې دكوم نه چه سوا څوك دعبادت لائق نشته ﴿وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا﴾ هغه په خپل [ علم سره تول څيزونه په احاطه كښې راوستى دى ]

## معارف او مسائل

﴿بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوا بِهِ﴾ [ يعنى ما هغه څيز اوليدو چې نورو نه وو ليدلې ] دې نه مراد جبرائيل ﷺ دې چې د يو روايت مطابق په آس سور هغه وخت ئې تشريف راوړو چې د موسى ﷺ په معجزې سره په درياب كښې دولس اوچې لارې جوړې شوې ، بنى اسرائيل ترې پورې وتل او فرعونى لښكر په دريا ب كښې ورګډيدو نو جبرائيل ﷺ په آس سور دغلته موجود وو. اود بل روايت مطابق په آس سورئې هغه وخت تشريف راوړوچې موسى ﷺ سره د بنى اسرائيلو درياب نه پورې وتې وو. اوهغوئ ته ئې كوه طور ته د راتلو بلنه وركوله نو په داسې حالت كښې سامرى اوليدو ،نورو خلقو تـه معلوم نشو د ابن عباس ﷺ په يو روايت كښې دادى چې د سامرى تربيت پخپله دجبرائيل ﷺ په ذريعه شوې وو. چې كله سامرې ، خپلې مور په يو غار كښې دپيشو ماشوم پريخودې وو ، جبرائيل ﷺ ده ته د خوراك وركولو دپاره راتلو، په دې وجه دې سره بلد شوې وو اوپيژندلوئې او نوروخلقو نشو پيژندې ، [بيان القران][1]

﴿فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِنْ أَثَرِ الرَّسُولِ﴾ دلته درسول نه مراد د الله تعالى راليږلې فرښته جبرائيل ﷺ ده ، د سامرى په زړه كښې شيطان دا خبره واچوله چې د جبرائيل ﷺ د آس د قدم لاندې كومه خاوره چې ده په هغې كښې دژوند خاص اثرات دى څكه ئې په دې خيال سره راواخسته . دا خبره د ابن عباس ﷺ په روايت كښې ده ﴿القى فى روعه انه لايلقيها على شئ فيقول كن كذا الاكان﴾ [يعنى دسامرى په زړه كښې پخپله دا خبره راغله چې د قدم د نشان داغه خاوره چې په كوم څيز باندې واچولې شى او ورته اووئيلې شى چې فلانې څيز جوړ شه نو هغه څيز به ترې جوړ شى ]

او څينې حضراتو فرمائيلى دى چې سامرى د جبرائيل ﷺ د آس د قدم لاندې د ا اثر اوليدو چې سمدستى به هغه رازرغون شو نو ددهٔ په زړه كښې دا خيال راغلوچې په دې كښې د ژوند آثار شته دې . [كمالين] هم دا تفسير په روح المعانى[2] كښې راغلى دې او وئيلى يې دى چې دا تفسير د تابعينو اوجمهورو مفسرينو نه منقول دې . او په دې كښې ظاهر پرستو خلقو چې كومې شبهې راؤښكلې دى دهغې تولوجواب ئې وركړې دې. فجزاه الله خيرا الجزاء [بيان القرآن][3]

بيا چې كله يې د بنى اسرائيلو راجمع كړى زيوراتو څخه چې ده د څخى يو كالبوت ئې ترې جوړ كړو ، دخپل ګمان مطابق چې په دې خاوره كښې د ژوند آثرات دى په كوم څيز كښې چې واچولې شى په هغه كښې ژوند پيدا كيږى نو دغه خاوره ئې په كښې واچوله د الله ﷻ په

---

[1] بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۳۲، ۳۳]
[2] روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۶ ص:۲۵٤]
[3] بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:۷ ص: ۳۳]

قدرت په هغې کښې د ژوند نخښې پيدا شوې. او آوازونه ئې کول.
يو حديث پاك کښې دا بيان راغلې دې چې دا د هارون ﷺ ښخه د دې دعا خواست اوکړو چې په دې خاورې سره دې زما د طبيعت کار اوشي. هارون ﷺ دعا اوفرمائيله خو هارون ﷺ ددۀ د منافقت نه خبر نه وو. په دې بنا د ښځى آواز کول د هارون ﷺ د دعا په برکت سره وو. دې نه وړاندې د يو روايت حواله کښې تير شوى دى چې سامرى د فارس يا دهندوستان د هغه قوم غړې وو چې د غوا عبادت به ئې کولو. کله چې مصر ته راغلو نو په موسى ﷺ ئې ايمان راوړو خو روستو بيا مرتد شو. يا ړومبې نه ئې منافقت کړې وو. ايمان ئې هسې ښکاره کړې وو. زړه کښې ئې ايمان نه وو. ددې ايمان ښکاره کولو په برکت سره بنى اسرائيلو سره د درياب نه پورې وتلو.

﴿فَاِنَّ لَكَ فِى الۡحَيٰوةِ اَنۡ تَقُوۡلَ لَا مِسَاسَ﴾ موسى ﷺ سامرى د پاره دا سزا ديو قانون لاندې اوټاکله چې نه بۀ دې چاله لاس ور اوړې شى او نه بۀ دۀ له څوك لاس وراوړې شى. يا الله ﷻ ددۀ په بدن کښې داسې اثر پيدا کړو. او د موسى ﷺ په ذريعه خلقو ته ددۀ سپيرۀ توب ښکاره شو. يا دموسى ﷺ بد دعاسره ده کښې دا سپيرۀ توب راغلو. کله چې به دۀ له چا لاس وراوړو يا دۀ چا له لاس ورکړو نو په دواړو به تبه راغله. په دې شان هغه ټول عمر لکه د وحشى ځناور په شان تير کړو. [معالم] (۱) ددغې ويرې نه به د خلقو نه بيل پاتې کيدو. او دهغوئ نه بۀ لرې تښتيدو. کله چې بۀ ئې څوك اوليدو چې زما طرفته راروان دې نو د لرې نه به ئې ورته آواز اوکړو چې لا مساس يعنى ماته لاس مه راوړه.

**د سامرى په سزا کښې يو لطيفه**: روح المعانى کښې د بحر محيط په حواله نقل شوى دى چې کله موسى ﷺ د سامرى د وژلو اراده اوکړه نو الله ﷻ منع کړو چې دې سخې وو او د خلقو خدمت بۀ ئې کولو [بيان القرآن] (۲)

﴿لَنُحَرِّقَنَّهٗ﴾[مونږ بۀ ئې په اور کښې خامخا سيزو] دلته دا سوال پيدا کيږى چې هر کله دغه ځښې د سرو اوسپينو زرو جوړ وو نو ددې د سوځولو صورت به څه وو، ولې چې زر خو سوځى نه بلکه ويلى کيږى. ددې يو جواب دادې چې دې ځښى کښې د ژوند د نخښو د پيدا کيدو نه پس اختلاف دې چې دا په خپل حال باندې سره او سپين زر پاتې شوى وو او که د غوښې او څرمنې صورت ئې اختيار کړې وو. دويم صورت کښې سوځول خو ئې ښکاره خبره ده. او په اول صورت کښې ئې د سوځولو مطلب دادې چې په سوهان سره به ذره ذره کړې شوې وى. [درمنثور] (۳) يا په اکسيرى طريقې سره به سيزلې شوې وى. [روح المعانى] (۴) او دا هم څه لرې خبره نه ده چې سوځول ئې د عادت نه خلاف د معجزې په ډول وى، [والله اعلم] [بيان القرآن]. (۵)

---

۱) تفسير البغوي تحت هذه الآية [ج: ۵ ص:۲۹۲]
۲) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۶ ص:۲۵۶] و بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:۷ ص: ۳۳]
۳) الدر المنثور تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۳۲]
۴) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۶ ص:۲۵۷]
۵) بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:۷ ص: ۳۳]

كَذٰلِكَ

هم دارنګې |

[ائې پيغمبره] هم دغه شان ........ |

نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ مَا قَدْ سَبَقَ ۚ وَقَدْ اٰتَيْنٰكَ

بيانوو مونږ | په تا باند | دخبرونو نه | هغه خبرونه | چې مخکښې تير شوي دی | او درکړې دې مونږ تاته

مونږ تاته د پخوانو واقعاتو خبرونه اوروؤ | ......... او مونږ درته دخپل طرفنه يوه

مِنْ لَّدُنَّا ذِكْرًا ﴿۹۹﴾ مَنْ اَعْرَضَ عَنْهُ فَاِنَّهٗ يَحْمِلُ

دخپل طرف نه | يو ذکر [نصيحت] | هغه چا | چې مخ واړولو | ددې نه | نو بيشکه هغه | به باروی

نصيحت نامه درکړې ده | ............ څوک چې ددې نه مخ اوګرزوی | هغه به دقيامت په

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا ﴿۱۰۰﴾ خٰلِدِيْنَ فِيْهِ ۭ وَسَآءَ

په ورځ دقيامت | لوئ بار [دګناهونو] | هميشه به وی | په هغې کښې | او ډير بد دې [دا بار]

ورځ خراب پند بار کړی | او په دغه ځائې کښې به هميشه اوسيږی | او دغه

لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حِمْلًا ﴿۱۰۱﴾ يَّوْمَ يُنْفَخُ

دپاره دهغوئ | په ورځ دقيامت | دحيثيته دبارنه | په هغه ورځ | چې پوکې به اووهلې شي

ډير بد ځائې دې | په اعتبار د بار کولو | ........ په کومه ورځ چې شپيلئ پوک وهلې شي او

فِي الصُّوْرِ وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَىِٕذٍ زُرْقًا ﴿۱۰۲﴾

په صور [شپيلئ] کښې | او مونږ به راجمع کړو | مجرمان | په دغه ورځ | شين سترګې

ټول مجرمان به په دغه ورځ داسې رايوځائې کړو چې شنې سترګې به ئې نيولې وی | په

يَّتَخَافَتُوْنَ بَيْنَهُمْ اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا عَشْرًا ﴿۱۰۳﴾

چې پټې خبرې به کوی | په منځ خپل کښې | چې وخت نۀ دې تير کړې تاسو | مګر | لس ورځې

خپل مينځ کښې بۀ پټې پټې خبرې کوی اچې تاسو خو بۀ صرف لس ورځې په دنيا کښې پاتې شوې يئ

نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَقُوْلُوْنَ اِذْ يَقُوْلُ اَمْثَلُهُمْ

مونږ ته ښۀ معلوم دی | هغه څه | چې وائې به هغوئ | کله چې | به اووائې | کامل سړې دهغوئ

مونږ د دوی په وينا باندې ښه پوهيږو | دغه وخت به په دوئ کښې زيات عقل مند اووائی | چې

طَرِيْقَةً اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا يَوْمًا ﴿۱۰۴﴾ وَيَسْـَٔلُوْنَكَ

په عقل کښې | چې وخت نۀ دې تير کړې تاسو | مګر | يوه ورځ | او تپوس کوی ستا نه دا خلق

تاسو خو صرف يوه ورځ په دنيا کښې پاتې شوې يئ | او [ائې زما محبوبه] خلق ستا نه د

عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ يَنْسِفُهَا رَبِّيْ نَسْفًا ﴿۱۰۵﴾ فَيَذَرُهَا

دحال دغرونو | نو ورته اووايه | ذره ذره به کړی هغه | رب زما | په ذره کولو سره | نو پرې به ږدی دا زمکه

دغرونو په باره کښې تپوس کوی | نو ورته اووايه چې زما رب به دغه غرونه والوزوی | او زمکه

قَاعًا صَفْصَفًا ۝ لَّا تَرٰى فِيْهَا عِوَجًا وَّلَآ اَمْتًا ۝ يَوْمَئِذٍ

میدان | هموار | چې نۀ به وینی ته | په هغې کښې | څه کوږ والې | او نۀ لوړ والې | په دغه ورځ

به هموار میدان پریږدی | ته به په دې کښې نه څه کوږ والی اووینې اوه نه لوړ والی|...... په دغه ورځ

يَتَّبِعُوْنَ الدَّاعِيَ لَا عِوَجَ لَهٗ ۚ وَخَشَعَتِ

به پیروی کوی ټول خلق | دبلونکی | چی نۀ به وی | کوږوالې | دغه بلونکی ته | او چپ به شی |

به ټول خلق په بلونکی پسې روان شی | چې دهغې نه به هیڅوک مخالفت کولې نشی | او ټول

الْاَصْوَاتُ لِلرَّحْمٰنِ فَلَا تَسْمَعُ اِلَّا هَمْسًا ۝ يَوْمَئِذٍ

آواز ونه | رحمن ته | نو تۀ به نۀ اورې | مګر | کښار [دقدمونو] | په دغه ورځ به |

آوازونه به د رحمان الله ﷻ دآواز په وړاندې ټیټ شی | نو ته به د پښو دکشاری د آواز نه سوا بل آواز نه

لَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَرَضِيَ لَهٗ

نۀ رسوی فائده سفارش | مګر | دهغه چا | چی اجازت اوکړو | هغه ته رحمن | اوراضی شو | دهغه نه

اورې | په د غه ورځ به سفارش چا ته فائده نه رسوی | خوهغه چاته چې رحمان ورته اجازت ورکړې وی

قَوْلًا ۝ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ

په لحاظ دخبری کولو سره | معلوم دی الله ته | هغه څه | چی په منځ دلاسونو دهغوئ کښی دی |

اودهغه دپاره ئې [د شفارس] اجازت کړې وی | هغه دټولو خلقو وړاندې روستو حالات ډیرښه پیژنی

وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِهٖ عِلْمًا ۝

او هغه څه | چی روستو دهغوئ نه دی | او احاطه نشی کولې دا خلق | په هغه باند | دحیثیته دعلم نه |

اوخلق په خپل علم سره دهغه [الله تعالی دمعلوماتو] احاطهٔ نشی کولې

وَعَنَتِ الْوُجُوْهُ لِلْحَيِّ الْقَيُّوْمِ ۭ وَقَدْ خَابَ مَنْ

او ذلیله شول | مخونه | همیشه ژوندی قائم الله ته | او خراب [ناکام] شو | هغه څوک |

اومخونه بۀ تل ژوندی اودنظام چلونکی الله ﷻ په وړاندې ټیټ شی | او چاچې

حَمَلَ ظُلْمًا ۝ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَهُوَ

چی پورته ئې کړو | بار دظلم | او هغه څوك چې کوی عمل | دنیکو عملونو نه | او هغه |

دنافرمانۍ بوج اوچت کړو هغه به ناکامه وی | او څوک چې نیک کار اوکړی اوهغه

مُؤْمِنٌ فَلَا يَخٰفُ ظُلْمًا وَّلَا هَضْمًا ۝ وَكَذٰلِكَ

مومن هم وی | نو نۀ به دې یریږی | دظلم نه | او نۀ دکمولو دنیکو نه | او دارنګې |

مومن وی | نو هغه سره به نه دظلم څۀ ویره وی اونه دنقصان | اودغه شان مونږ دا

اَنْزَلْنٰهُ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا وَّصَرَّفْنَا فِيْهِ

نازل کړو مونږه دا کتاب | دقران عربی په حیثیت | او بار بار بیان کړل مونږه | په دې کښی |

قران پاک په عربۍ ژبه کښې نازل کړې دې | او په دې کښې موهر قسم سزاګانې آورولی

مِنَ الْوَعِيْدِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ اَوْ يُحْدِثُ

دآيتونو ويرونكو نه | دپاره ددې چې هغوئ | خان اوساتي دغلط عمل نه | يا پيدا كړي دا قرآن |

دى | چې خلق اوويريږي | يا دا چې دا [قران] په كښې پوهه پيدا كړي

لَهُمْ ذِكْرًا ۝ فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ ۚ وَلَا تَعْجَلْ

دپاره دهغوئ | نصيحت | پس او چت دې الله | چې بادشاه دې | حق دې | او مه كوه تلوار |

اوډير لوئې دې هغه الله ﷻ چې حقيقي بادشاه دې | او ته د قران په لوستلو كښې

بِالْقُرْاٰنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّقْضٰٓى اِلَيْكَ وَحْيُهٗ ۚ وَقُلْ

په لوستلو دقرآن | مخكښې دهغې نه | چې پوره كړې شي | تاته | وحى دهغې | او اووايه |

تلوار مه كوه [چه زر زر ئې لولې] | ددې نه مخكښې چې ددې وحى دربانديې پوره را نازله شي | او دا وايه

رَّبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا ۝

اے ربه زما | زيات كړې ما لره | په لحاظ دعلم سره |

چې ائې زما ربه زما علم زيات كړه |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پيغمبره!) په ماضي كښې چه كوم حالات تير شوي دي په هغې كښې څه واقعات مونږ هم داسې تاته بيانوو، او مونږ تاته خاص د خپل طرف نه يو نصيحت نامه دركړې ده كوم خلق چه د دې نه مخ واړوي نو د قيامت په ورځ بانديې به هغوى ډير لوئې بوج اوچتوى. چه په هغې (عذاب) كښې به هغوى هميشه اوسيږي، او دا به د قيامت په ورځ بانديې د هغوى دپاره بدترين بوج وى. په كومه ورځ بانديې چه شپيلۍ پوك وهلې شي، او په هغه ورځ بانديې به مونږ ټول مجرمان ګيرولو سره داسې راجمع كړو چه هغوى به شنه پړانګ وى. خپل مينځ كښې به پټې خبرې كوى چه تاسو (په قبرونو كښې يا په دنيا كښې) د لس ورځو نه زيات نه يئ پاتې شوې. دڅه په باره كښې چه به هغوى خبرې كوى دهغې حقيقت مونږ ته ښه معلوم دې، او په هغوى كښې چه د ښه طريقه د ټولو نه غوره وى. هغه به وائي چه تاسو د يوې ورځې نه زيات وخت نه دې تير كړې او خلق ستا نه د غرونو په باره كښې تپوس كوى (چه قيامت كښې به دې سره څه كيږي؟) په جواب كښې اووايه چه زما رب به دا د دوړو په شان والوځوى او زمكه به داسې هوار او صفا ميدان پريږدى. چه په هغې كښې به نه تاته ژوره ښكارى او نه لوړه. هغه ورځ به ټول خلق په راپلونكى پسې داسې راځى چه د هغه مخكښې به هيڅ كوږ والې نه شي ښودلې. او د رحمٰن ذات مخكښې به ټول آوازونه ښكته شي. پس ته به د خپو د كشارى نه علاوه هيڅ هم نه اورې. هغه ورځ به د چا سفارش هم په كار نه راځى سوا د هغه سړى (د سفارش) نه چاته چه رحمٰن ذات اجازت وركړې وى، او د چا په وينا چه هغه راضى وى. هغه د خلقو په مخكښې روستو ټولو خبرو بانديې پوهيږى، او هغوى د هغه د علم احاطه نه شى كولې، او ټول په ټول مخونه به د حَیٌّ وَقَیُّوم مخكښې ښكته شى، او هر چا چه د ظلم بوج بار كړې وى،

هغه به نامراده شي. او چا چه نيک عمل کړي وي او هغه مومن هم وي نو هغه ته به نه د څه زياتي ويره وي او نه د حق د ضائع کيدو. او موږ هم دغه شان دا وحي د يو عربي ژبې د قرآن په شکل کښې نازل کړې ده. او په دې کښې مو تنبيهات قسم قسم بيان کړي دي چه خلق پرهيزګاري اختيار کړي، يا دا قرآن کريم په هغوی کښې د پند اخستلو ماده پيدا کړي. هم دغه شان اوچت شان دې د الله پاک، کوم چه د پادشاهۍ حقيقي مالک دې! او (اې پيغمبره!) چه کله وحي د قرآن کريم په ذريعه نازليږي نو د هغې د پوره کيدو نه مخکښې د قرآن کريم په لوستلو کښې ګوندي مه کوه او دا دعا کوه چه: اې زما ربه! ما ته په علم کښې ترقي را کړه.

## خلاصه تفسير

**د آيتونو ربط**:: په سوره طه کښې اصل بيان د توحيد رسالت او اخرت د اصولي مسئلو دې د پيغمبرانو ﷺ واقعات په دې سلسله کښې بيان شول او دحضرت موسیٰ ﷺ قصه په تفصيل سره بيان شوه اوددې په ضمن کښې درسالت محمد ﷺ اثبات هم دې او همدا هم ددې رسالت محمدی ﷺ حصه کومه چه په راتلونکو ايتونو کښې بيان شوه چه ددې واقعاتو او قصو اظهار ديو نبی امی په ژبه په خپله دليل درسالت او نبوت اووحی الهی دې او ددې ټولو سر چشمه قران دې او د قران دحقوالي په ضمن کښې څه تفصيل د اخرت او دبيا پورته کيدو هم راغلي دې لکه څنګه چه موږ دحضرت موسیٰ ﷺ قصه بيان کړه ﴿كَذٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنْبَآءِ مَا قَدْ سَبَقَ﴾[دغه شان موږ تاته دنورو تيرو واقعاتو خبرونه ] او قصې [ هم بيانوو] چه دنبوت په دليلونو کښې په دې سره زياتوالې راځی ﴿وَقَدْ اٰتَيْنٰكَ مِنْ لَّدُنَّا ذِكْرًا﴾[ او موږ تاته دخپل طرف نه نصيحت نامه درکړې ده ]يعنی قرآن چه په دې کښې هغه خبرونه دی او دغه په خپله هم په مستقل طورسره دخپل اعجاز په وجه دنبوت دليل دې او دغه نصيحت نامه داسې ده چه ﴿مَنْ﴾[ کوم خلق چه ددې ] مضامينو منلو ﴿أَعْرَضَ عَنْهُ فَإِنَّهُ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا﴾[ نه مخ واړوی پس دې به دقيامت په ورځ ډيرلوئ بوج ] دعذاب [ پورته کړی ] او ﴿خٰلِدِيْنَ فِيْهِ﴾[ هغه به په دغې ] عذاب [ هميشه اوسی ﴿وَسَآءَ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حِمْلًا﴾او دا بوج به دقيامت په ورځ ددوی دپاره لوئ ] بوج [وي﴿يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ﴾ په کومه ورځ چه شپيلئ پوك وهلې شی ] چه مړی پرې ژوندی کولې شی ﴿وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا﴾ [ اوموږ به په دغه ورځ مجرمان ] يعنی کافران [ خلق ] په ميدان دقيامت کښې [ په دې حالت کښې جمع کړو چه نهايت بدصورته به وی چه ] سترګې به ئې شنې وی ﴿يَتَخَافَتُوْنَ بَيْنَهُمْ﴾ [ کوم چه [ خبرې به ديويل سره پټې پټې کوی ] اويويل ته به وائی ﴿إِنْ لَّبِثْتُمْ إِلَّا عَشْرًا﴾[ چه تاسو خلق ] په قبرونو کښې [صرف لس ورځې پاتې شوې يئ ] مطلب دادې چه موږ خو داسې ګڼړله چه دمرګ نه پس ژوند نشته هغه ګمان خو بلکل غلط شو نه ژوندی کيدل خو پريږده داسې هم ونه شو چه لږ شان ورستو ژوندی شوې وې بلکه ډير ژر ژوندی شو چه دغه موده خو دلسو ورځو برابر معلوميږی وجه ددې مقدار دمعلوميدو داده چه دغه ورځ ډيره هيبتناکه اودپريشانۍ ده او اوږده چه په قبر کښې دپاتې کيدو موده به ددې په وړاندې دومره کمه معلوميږی الله تعالی فرمائی چه[ دکومې مودې ﴿نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُوْلُوْنَ﴾ [ په نسبت چه به دا خلق خبرې کوی هغه موږ ته ښه معلومه ده] چه هغه څومره ده ﴿إِذْ يَقُوْلُ أَمْثَلُهُمْ طَرِيْقَةً إِنْ لَّبِثْتُمْ إِلَّا يَوْمًا﴾ [ هر کله چه په دوی کښې زيات

هوښيار به داسې وائي چه نابلکه تاسو يوه ورځ ] په قبر کښې [ پاتې شوي يئ ] دا ته ئې صائب الرائ يعنې پوه څکه ووئيل چه ددغې ورځې د اوږدوالي او هيبت په اعتبارسره دا نسبت ډير نږدې دې پس داسړي دسختووالي په حقيقت زيات يوه شو په دې وجه ددې سړي رائ د وړاندې سړي د رائ نه زياته بهتره ده او مقصود دانه دې چه ددې سړي خبره بلکل صحيح دی څکه دا ښکاره ده چې دواړه مقدارونه د اصلي تحديد په اعتبار سره صحيح نه دي او نه ددې ويونکو دا مقصود وو [او] اے نبی کريم ﷺ دقيامت دحال په اوريدو باند خنې ﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْجِبَالِ﴾ [خلق ستانه دغرونو په نسبت تپوس کوی ] چه په قيامت کښې به ددوی څه حال وی [پس ته ] په جواب کښې ﴿فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا﴾ [ووايه چه زما رب به دوی لره ] ذره ذره کړی [ بلکل والوزوی ﴿فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا﴾ بيا به مزکه يوهوارميدان کړی چه په دې کښې به ته] اې مخاطبه ﴿لَّا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَلَا أَمْتًا﴾ [ نه ژوره ووينې اونه لوړه] دغږه ير کئی وغيره [ووينې ﴿يَوْمَئِذٍ يَتَّبِعُونَ الدَّاعِيَ لَا عِوَجَ لَهُ﴾ په دغه ورځ به ټول د] خدائی [بلونکی ] يعنی شپيلئ وهونکې فرښتې [په وينا وريسې وی] يعنی هغه به دخپلې شپيلئ په اواز سره ټول دقبرونونه راوبلی نو ټول به] اوځی [ دهغه په وړاندې به] په هيچا کښې څه کوږوالي نه چه ګونګ دقبرونونه به نه راوځی لکه په دنيا کښې چه به د پيغمبرانو ﷺ په وړاندکارۀ ګرځيدل چه تصديق به ئې نه کولو [ او] دډيرهيبت نه به ﴿وَخَشَعَتِ الْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَٰنِ﴾ [ د ټولو اوازونه به دالله تعالی په وړاندې غلی شی پس ] اے مخاطبه ﴿فَلَا تَسْمَعُ إِلَّا هَمْسًا﴾[ته به بغيرد پښود کشارنه ] چه ميدان دحشر ته به غلی غلی روان وی [ نو رهيځ ] اواز[ نه اوری ] خواه په دې وجه چه دغه وخت به خبرې نه کوی اګر چه په ځنې موقع خويه رو رو خبرې کوی لکه چه بره راغلی دی يتخافتون او که خواه په دې وجه چه ډيرې پټې پټې خبرې به کوی چه لږ بيرته به نه شی اوريدې ﴿يَوْمَئِذٍ﴾ [ په دغه ورځ به] چاته دچا ﴿لَّا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ إِلَّا مَنْ﴾ [ سفارش نفع ورنه کړی مګر داسې سړې لره] به دانبياء ﷺ او صالحانو سفارش نفع ورکړی [ چه دچا] دسفارش کولو ﴿أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَٰنُ﴾ [ دپاره الله تعالی ] سفارش کوونکوته [ اجازت ورکړی ﴿وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا﴾ او دهغه سړې دپاره ] دسفارشی [خبرې کولو خوښ کړی] مراد ددې نه مؤمنان دی چه سفارش کوونکوته به ددوی دسفارش دپاره اجازت وی اوپه دې باره کښې به دسفارشی خبرې کول دالله تعالی په خوښې وی او کفارو دپاره به دسفارش کولو هيچاته اجازت نه وی پس نشتوالې دنفع په سبب دنشتوالی دشفاعت دې او په دې کښې د اعتراض کوونکو کافرانو دپاره ويره ده چه تاسو خو به دشفاعت نه هم محرومه يئ او[ هغه ] الله تعالی ﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ [ ددوی ټول وړاندې ورو ستوحالات پيژنی ﴿وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا﴾ او دهغه ] معلوماتو [ لره د دوی علم په احاطه کښې نه شی راوستې ] يعنی داسې يوکار نشته چه مخلوق ته معلوم وی او الله تعالی ته معلوم نه وی او داسې ډير کارونه شته کوم چه الله تعالی ته معلوم دی او مخلوق ته معلوم نه دی پس دمخلوقاتو هغه ټول حالات هم هغه ته معلوم دی په کومو چه دشفاعت قابليت يا نه قابليت مرتب دې پس څوك چه ددې اهل وی دهغوی دپاره به سفارش کوونکو شافعانو ته اجازت وشي او کوم چه ئې اهل نه وی دهغوی دپاره به اجازت ونه شی [ او] په دغه ورځ ﴿وَعَنَتِ الْوُجُوهُ لِلْحَيِّ الْقَيُّومِ﴾ [ ټول مخونه به ددغه ژوندی او هميشه قائم پاتې کيدونکی په وړاند ښکته وی ] او دټولو تکبرکوونکو او انکار کوونکو تکبر اوانکار به ختم شی [ او] په

دې صفت كښې به تول شريك وى بيا وړاندې به په دوى كښې دا فرق پوى چه ﴿وَقَدْ خَابَ مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا﴾ [ داسې سړې خو به] په هرشان [ ناكام وى كوم چه دظلم ] يعنى شرك [سره راغلې وى ﴿وَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ﴾ او چاچه نيك كار كړې وى او دې ايماندار هم وى پس دهٔ ته به ] كامل ثواب ملاوېشى ﴿فَلَا يَخٰفُ ظُلْمًا وَّلَا هَضْمًا﴾ [ نه به دځه زياتى ويره وى اونه دكمى] مثلا دا چه څه گناه ددهٔ په عملنامه كښې زيات وليكلې شى اويا څه نيكى ئې كمه وليكلې شى او داكنايه ده دكمال ثواب نه پس ددې په مقابله كښې دكفارونه مقصود نفى كول دثواب دى په وجه دعدم موجب دثواب اگر چه ظلم او حق تلفى به دكفارو هم نه وى او دكفارو نيك عملونه په حساب كښې نه ليكل دا څه ظلم نه دې بلكه وجه ئې داده چه ددوى نيك عملونه دايمان دشرط نه خالى دى نو په شان دنيشت شول [ او مونږ ] لكه څنگه چه دا ذكرشوى مضامين صفا صفا ارشاد كړى دى ﴿وَكَذٰلِكَ﴾[دغه شان دې لره ] او تولو لره ﴿أَنْزَلْنٰهُ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا﴾[ په عربى قرآن كيدلوسره نازل كړى دى ] چه الفاظ ئې واضحه دى ﴿وَصَرَّفْنَا فِيْهِ مِنَ الْوَعِيْدِ﴾[ او دې كښې مونږ قسم قسم ويرې ] دقيامت او دعذاب [ بيان كړى دى ] چه په دې سره ئې معنې هم واضحه شوه مطلب دادې چه دټول قران مضامين مونږ صفا صفا ښودلى دى ﴿لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ﴾[ ددې دپاره چه دغه] اوريدونكى [خلق ] ددې په ذريعه سره بالكل [ ويريږى ] او فى الحال ايمان راوړى [يا] كه بالكل ددې نه ونه ويريږى نو دومره خو به وشى چه ﴿أَوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا﴾[ دا قرآن به ددوى دپاره څه قدرې پوهه ] خو[پيداكړى]يعنى كه پوره اثر پرې ونه شى نو لږ خو به وشى او دغه شان څو پيرې باربارچه لږ لږ جمع شى پوره مقدار به شى او څه وخت به مسلمانان شى﴿فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ﴾[پس الله تعالى چه حقيقى بادشاه دې عالى شان دې ] چه داسې نفع مند كلام ئې نازل كړو [ او] څنگه عمل كول او نصيحت منل كوم چه بره ذكر شو دقرآن دتبليغ واجب حق دې چه اداكول ئې په تولو مسلمانانو باندې كوم چه داحكام مكلف دى فرض دى دغه شان څنې اداب دقران دنزول سره هم متعلق دى چه داداكولو تعلق ئې تاسره دې په دوى كښې يو دادې چه ﴿وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْاٰنِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يُّقْضٰى إِلَيْكَ وَحْيُهٗ﴾ [ په قرآن ] لوستلو [ كښې وړاند ددې نه چه ددې وحى په تاباند پوره نازله شى تلوارمه كوه ] چه په دې كښې تاته تكليف وى چه د جبرائيل عليه السلام نه اوريدل او لوستل عبرگ پريوځى پس داسې مه كوه او ددې ويره مه كوه چه شايد ياد به دنه شى يادول ئې زمونږ په ذمه دى [ اوته] هم ددې ديادولو دپاره زمونږ نه ﴿وَقُلْ رَّبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا﴾دادعا كوه چه اے ربه زما علم زيات كړې ] په دې كښې دحاصل شوى علم ديادپاتې كيدو او دغيرحاصل دحاصليدو اوكوم چه حاصليدونكې نه دې دهغه نه حاصليدو لره خير او مصلحت گنړلو او په تولو علمونو كښې دښې پوهې تولې دعاگانې داخلې دى نو دلاتعجل نه پس ددې راتلل ډير مناسب شول نچوړې ئې داشو چه تپه تدبيرونو دحفظ كښې تدبيرونه دتلوار پريږده او تدبير د دعا اختيار كړه .

## معارف او مسائل

﴿وَقَدْ اٰتَيْنٰكَ مِنْ لَّدُنَّا ذِكْرًا﴾ د جمهورو مفسرينو په نزد دلته د ذكر نه مراد قرآن عظيم الشان دې.
﴿مَنْ أَعْرَضَ عَنْهُ فَإِنَّهٗ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا﴾ [ يعنى د قرآن عظيم الشان نه په مخ اړونكى به

دقيامت په ورځ درونډ پيټي بار شوي وي ؟ قرآن عظيم الشان نه دمخ اړولو مختلف صورتونه دي ، يو دا چې د قرآن كريم تلاوت كولو دسره خيال نه كوي ، نه چرته د قرآن عظيم الشان لوستلو او ازده كولو ته فكر كوي ، يا قرآن غلط وائي ، د حرفونو د صحيح كولو فكر ورسره نه وي يا صحيح ئې لولي خو بې زړه او بې پرواه ئې لولي ، يا د څه دنيوي مال او دولت حاصلولو په خيال يې لولي ، دغه شان د قرآن عظيم الشان په حكمونو باندې دپوهې حاصلولو نه بې فكره كيدل د قرآن عظيم الشان نه مخ اړول دي ، د قرآن عظيم الشان په حكمونو باندې پوهيدو نه پس په هغې عمل كولو كښې كوتاهي كول يا ددغې حكمونو خلاف ورزې كول خو د مخ اړولو آخري درجه ده ، غرض دا چې د قرآن عظيم الشان د حقونو نه بې پرواهي كول ډير وبال لرې چې دقيامت په ورځ به درونډ پيټې جوړ شوې دده په څټ بۀ باروليې شي . لكه د حديثو په روايتونو كښې چې راغلي دي چې د انسان خراب عملونه او گناهونه به د قيامت په ورځ يو درونډ پيټې جوړ شي او په ده به بار كړې شي .(١)

﴿يُنفَخُ فِي الصُّورِ﴾ ابن عمر ﷺ فرمائيلي دي چې يو كلي وال سړي د نبي اكرم ﷺ نه تپوس اوكړو چې صور څه څيز دې ، نبي اكرم ﷺ اوفرمائيل چې دايو ښكر دې چې په كښې به پوك وهلې شي ،(٢) مراد دادې چې د ښكر پشان څه څيز به وي ، چې په هغې كښې به د فرښتې دپوك وهلو اثر به په ټوله دنيا باندې داوي چې مړي به ژوندي شوي راپورته شي ، ددې صور په حقيقت باندې صرف الله تعالى خبر دې .

﴿وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْآنِ مِن قَبْلِ أَن يُقْضَىٰ إِلَيْكَ وَحْيُهُ﴾ صحيح حديث پاك كښې د ابن عباس ﷺ څخه منقول دي چې د وحى په شروع كښې به جبرائيل ﷺ يو آيت مبارك د قرآن عظيم الشان ځان سره راوړلو او نبي كريم ﷺ ته بۀ ئې آوړولونو نبي كريم ﷺ به ورسره ورسره د لوستلو كوشش هم كولو چې هسې نه زما څخه هير شي . په دې و جه په دې كښې دوئ باندې دوه مشقتونه وو ، اول بۀ يې قرآن د جبرائيل ﷺ څخه آوريدو او په دې باندې دپوهيدو ، او دې سره سره ددې يادولو دپاره خپلې ژبې مباركې سره ادا كولو ، الله ﷻ دې باره كښې د سورة قيامة آيت مبارك نازل كرو چې [لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ](٣) ما ستا دپاره دا آساني پيدا كړه چې په تاسو باندې كوم آيتونه مبارك نازليږي دهغې ياد ساتل ستاسو ذمه واري نه ده بلكه زمونږ ذمه واري ده ، مونږ به دا تاته پخپله يادوؤ . په دې جبرائيل ﷺ سره سره وئيل او ژبې ته د حركت وركولو ضرورت نشته دې ، تاسو صرف په هغه وخت كښې اطمينان سره آوړئي . البته دا دعا كويي چې [رَبِّ زِدْنِي عِلْمًا] يعنى اې الله ﷻ زما په علم كښې اضافه اوكړې ، په دې جامع دعا كښې دقرآن پاك يادساتل هم شامل دي . او د غير نازل شوي طلب هم او په دې باندې د پوهيدو توفيق هم .

---

(١) تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث [٧٢٦٥]
(٢) جامع الترمذي ، ابواب صفة القيامة باب ماجاء في شان الصور[ج:٢ ص:٦٩]
(٣) تفسير البغوي تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:٢٩٧]

وَلَقَدْ عَهِدْنَآ

| او په تحقيق سره حکم کړې وو مونږه |

| .....او مونږ ددې نه مخکښې د آدم عليه السلام

إِلَىٰٓ ءَادَمَ مِن قَبْلُ فَنَسِيَ وَلَمْ نَجِدْ لَهُۥ عَزْمًا

| ا دم عليه السلام ته | مخکښې ددې نه | نو هير شو دهغه | او اونه موندو مونږه | هغه لره | کلکه اراده |

نه وعده اخستې وه | خو دهغه نه غفلت اوشو | او مونږ په هغه کښې [د نافرمانۍ] کلکه اراده نه موندلې

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ٱسْجُدُوا۟ لِءَادَمَ فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ

او کله چې | اووئيل مونږه | فرښتو ته | سجده اوکړئ | آدم ته | نو سجده اوکړه هغوئ | مګر نه

| اوياد کړه هغه وخت چې هر کله مونږ فرښتو ته اووئيل | چې تاسو آدم عليه السلام ته سجده اوکړئ

إِبْلِيسَ أَبَىٰ فَقُلْنَا يَٰٓـَٔادَمُ إِنَّ هَٰذَا عَدُوٌّ لَّكَ

ابليس | انکار ئې اوکړو | نو اووئيل مونږه | اې آدمه | بيشکه | دا دشمن دې | ستا

نو ټولو سجده او کړه | خو ابليس اونه کړه | هغه انکار اوکړو | نو مونږ اووئيل چې ائې آدم عليه السلام دا ستا

وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ ٱلْجَنَّةِ فَتَشْقَىٰٓ إِنَّ

او دښځې ستا | پس اونۀ باسې تاسو دواړو لره | دجنت نه | نو به مشقت کښې به پريوزئ | بيشکه

اوستا د ښځې دښمن دې | نو هسې نه تاسو دواړه د جنت نه بهر اوباسې | نو په مصيبت کښې به اخته

لَكَ أَلَّا تَجُوعَ فِيهَا وَلَا تَعْرَىٰ وَأَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا۟

دې تالره | چې نۀ به وږې کيږې | په هغې کښې | اونۀ به بربنډ يږې | او بيشکه تۀ | نۀ به تږې کيږې

شئ دلته [په جنت] کښې به نه ته اوږې کيږې | اونه به چرې بربنډيږې | او دا هم ده چې نه به چرې تږې

فِيهَا وَلَا تَضْحَىٰ فَوَسْوَسَ إِلَيْهِ ٱلشَّيْطَٰنُ قَالَ

په هغې کښې | اونۀ به دې ګرمي کيږي | نو وسوسه واچوله | هغه [آدم] ته | شيطان | او وئيل هغه

کيږې | اونه به د ګرمۍ نه تنګيږې | نو شيطان دهغوئ په زړه کښې وسوسه واچوله | هغه اووئيل چې

يَٰٓـَٔادَمُ هَلْ أَدُلُّكَ عَلَىٰ شَجَرَةِ ٱلْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَّا يَبْلَىٰ

اې آدمه | آيا اوښايم تاته | اونه دهميشوالې | او بادشاهي | چې نۀ به ختميږي |

ائې آدم عليه السلام ! آيا زه تاته دهميشه پاتې کيدو ونه اوښايم | او داسې بادشاهي چې کمزورې کيږي به نه

فَأَكَلَا مِنْهَا فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْءَٰتُهُمَا

نو اوخوړه دواړو سره | دهغې ونې نه | نو په نتيجه کښې ښکاره شو | دواړو ته | دپردې ځايونه د دواړو

نو دواړو دهغې ونې نه خوراک اوکړو | نو خپل د پردې ځايو نه [شرمګاهونه] ورته ښکاره شو

وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ ٱلْجَنَّةِ وَعَصَىٰٓ

او شروع اوکړه دواړو | چې نښلولې ئې | په ځان پورې | دپاڼړو [دونو] دجنت نه | او نافرمانې اوکړه

اودواړو په ځان پورې د جنت پاڼړې انښلول شروع کړل | او آدم عليه السلام نه د خپل رب په

اٰدَمُ رَبَّهٗ فَغَوٰى ۝ ثُمَّ اجْتَبٰهُ رَبُّهٗ فَتَابَ

آدم | درب خپل | نو بې لارې شو | بيا | غوره كړو هغه لره | رب دهغه | نو رجوع ئې اوكړه

په حكم كښې تقصير اوشو او هغوئ په غلطئ كښې واقع شول | بيا خپل رب هغه مقبول كړو نو دهغه توبه ئې

عَلَيْهِ وَهَدٰى ۝ قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا

په هغه باند | او هدايت ئې اوكړو هغه ته | اوونيل الله | كوز شئ دواړه [ دلې ] | ددې جنت نه

قبوله كړه | او سمه لار ئې ورته اوخودله . الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې تاسو دواړه اوس

جَمِيْعًا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِّنِّيْ

ټول | بعضې ستاسو | دپاره د بعضو | دشمنان يئ | نو كه چرې | راشي تاسو ته | زما دطرف نه

دجنت نه كوزشئ په يوځل | تاسو به ديو بل دښمنان يئ | بيا كه چرې زما د طرفه تاسوته

هُدًى ۙ فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا

هدايت | نو هغه چاچې | تابعدارى اوكړه | دهدايت زما | نو نه به بې لارې كيږى هغه | او نه به

هدايت درشى | نو څوک چې زما دهدايت پيروى اوكړى | نو هغه به نه گمراه كيږى

يَشْقٰى ۝ وَمَنْ اَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِيْ فَاِنَّ لَهٗ

بدبخته كيږى | او هغه څوك | چې مخ ئې واړولو | دنصيحت زمانه | نو بيشكه | وى به هغه لره

اونه به محرومه پاتې كيږى | اوڅوک چې زما د ياد نه مخ واړوى | نو بيشكه دهغه

مَعِيْشَةً ضَنْكًا وَّنَحْشُرُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَعْمٰى ۝ قَالَ

ژوند | لنډتنګ | او راپورته به كړو مونږ هغه | په ورځ دقيامت | ړوند | او به وائى هغه

ژوندون به لنډتنګ وى | اودقيامت په ورځ به مونږ هغه ړوند راپاسوؤ | هغه به اووائى

رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِيْٓ اَعْمٰى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيْرًا ۝ قَالَ

اې ربه زما | ولې راپورته كړم تا زه | ړوند | او بې شكه وم زه | ليدونكې | او به وائى الله

چې ائې زما ربه تازه ړوند ولې راپاسوم | حالانكه زه په دنيا كښې دسترګو خاوند وم | حكم به اوشى چې

كَذٰلِكَ اَتَتْكَ اٰيٰتُنَا فَنَسِيْتَهَا ۚ وَكَذٰلِكَ الْيَوْمَ

همدارنګې | راغلې وې تاته | ايتونه زمونږ | نو هير كړل تا هغه | او همدارنګې | نن ورځ

هم دغه شان تاته زمونږ ايتونه درغلې وې | خوتا دهغې پرواه اونه كړه | او دغه شان به

تُنْسٰى ۝ وَكَذٰلِكَ نَجْزِيْ مَنْ اَسْرَفَ

ته [هم] هيرولې كيږې | او همدارنګې | بدله وركوؤ مونږ | هغه چاته | چې اسراف ئې اوكړو

ته نن هير كړې شې | اودغه شان مونږ هر هغه چالره سزا وركوؤ چې د حد نه وړاندې تير شى

وَلَمْ يُؤْمِنْۢ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ ۭ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَشَدُّ

او ايمان ئې رانوړو | په | ايتونو | درب خپل | او خامخا عذاب | داخرت | زيات سخت دې

اود خپل رب نخښې اونه منى اوداخرت عذاب ډير سخت اوډير پاتې كيدونكې دې ايا دوئ

وَاَبْقٰى۝ اَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ اَهْلَكْنَا

او زيات باقي پاتې کيدونکې دې | آيا ښکاره شوې نه ده | دوئ ته | چې څومره ډير | هلاک کړل مونږه

ددې نه هم سبق وانه خستلو چې مونږ تراوسه دد وئ نه وړاندې څومره ډير قومونه تباه کړي دی

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ د دې نه مخکښې آدم عليه السلام ته د يوې خبرې تاکيد کړې وو، بيا د هغۀ نه هيره اوشوه. او مونږ په هغۀ کښې عزم او نه موندلو ياد کړه هغه وخت چه مونږ ملائکو ته وئيلي وو چه آدم عليه السلام ته سجده اوکړئ، پس ټولو سجده اوکړه. خو ابليس انکار اوکړو پس مونږ هغه ته اووئيل چه: اې آدمه! دا ستا او ستا د ښځې دشمن دې، لهٰذا هسې نه چه دې تاسو دواړه د جنت نه اوباسي او تاسو په مشقت کښې پريوځئ دلته خو دا فائده ده چه تاسو به نه اوږي شئ، او نه به بربنډ. او نه به تږي شئ، او نه به مو ګرمي کيږي بيا شيطان د هغوی په زړونو کښې وسوسه واچوله. وې وئيل : اې آدمه! آيا زه تاته داسې اونه اوښايم چه په هغې سره د هميش والي ژوند او بادشاهي حاصليږي چه کله به هم نه زړيږي؟ پس دې دواړو دهغه اونې نه څه خوراک اوکړو چه په هغې سره د هغوی دواړو د شرم ځايونه د هغوی مخکښې ښکاره هو، او دواړو د جنت پاڼړې په ځان باندې لګول شروع کړل. او (دغه شان) آدم عليه السلام د خپل رب وينا روستو کړه، نو په غلطۍ کښې پريوتو بيا دهغه رب هغه منتخب کړو، پس دهغوی توبه ئې قبوله اوفرمائيله، او هغوی ته ئې هدايت اوفرمائيلو. الله پاک اوفرمائيل تاسو دواړه د دې ځائې نه کوز شئ، تاسو به د يو بل دشمنان يئ. بيا که تاسو ته زما د طرف نه هدايت راشي نو څوک چه زما د هدايت تابعداري کوي، هغه به نه ګمراه شي، او نه به په مشقت کښې پريوځي او څوک چه زما د نصيحت نه مخ واړوي نو هغه ته به ډير تنګ ژوند ملاويږي، او د قيامت په ورځ باندې به ئې مونږ روند پاسوو هغه به وائي چه: اې ربه! تا زۀ روند ولې راپاسولم، حال دا چه زه خو د سترګو والا اوم؟ الله پاک به اوفرمائي: دغه شان زما آيتونه تاته راغلي وو، خو تا هغه هير کړي وو. او نن به هم دغه شان ته هير کړې شې. او کوم سړې چه د حد نه تير شي، او د خپل رب په نخښو باندې ايمان نه راوړي، هغوی ته مونږ هم دغه شان سزا ورکوو، او د آخرت عذاب واقعي زيات سخت او ډير وخته پورې پاتې کيدونکې دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ عَهِدْنَآ اِلٰٓى اٰدَمَ مِنْ قَبْلُ﴾ او ددې نه] ډيره زمانه [ وړاند مونږ ادم عليه السلام [ته يو حکم ورکړې وو] چه بيان ئې وړاند راځي ﴿فَنَسِيَ﴾ ددۀ نه غفلت] او بې احتياطي [ وشوه ﴿وَلَمْ نَجِدْ لَهٗ عَزْمًا۝﴾ او مونږه ]ددې حکم په اهتمام کښې [ په دۀ کښې خوالې ] ثابت قدمي [بيانه مونده او] ددې اجمال تفصيل که غواړې نو ﴿وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ﴾ هغه وخت يادکړه کله چه مونږ فرښتوته ارشاد وفرمائيلو چه دادم ] عليه السلام [ په وړاند سجده ] دتحيه [ وکړئ ﴿فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ اَبٰى۝﴾ نو ټولو سجده وکړه بغير دابليس نه ] چه [ هغه انکار وکړو ﴿فَقُلْنَا﴾ بيا مونږ ] ادم عليه السلام ته وئيل چه ﴿يٰٓاٰدَمُ اِنَّ هٰذَا عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ﴾ اے ادم ] عليه السلام يادساته دابيشکه ستا او ستا بي بي ] په دې وجه [ دښمن دې ] چه ستا سو په معامله کښې مردود شو ﴿فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ﴾ پس چرته تاسو دواړه

دجنت نه ونه باسی ] یعنی دد؛ په وینا چرته داسې کارونه کړئ چه دجنت نه بهر شئ ﴿فَتَشْقٰى﴾ چه په مصیبت ] دکسب دمعاش کښې پریوځی ] او تاسره ستابی بی هم مګر زیاته حصه دمصیبت به په تا پریوځی او ﴿اِنَّ لَكَ﴾ دلته په جنت کښې خو تاسو دپاره دا ] ارام [ دې ﴿اَلَّا تَجُوْعَ فِيْهَا﴾ چه تاسو به نه چرې اوږی شئ ] چه تکلیف به وی درته یا به ئ په تدبیر کولو کښې وخت واوړی او پریشانه به شئ ﴿وَلَا تَعْرٰى﴾ [ او نه به لغړ شئ ] چه جامې به درته ملاؤ نشي یادحاجت نه پس ډیر وخت ورستو به ګوندی ملاؤشی چه تاسوته به تکلیف اورسی ﴿وَاَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا فِيْهَا﴾ [ اونه به دلته تږی شئ] چه اوبه به نه ملاویږی یا به ګوندی پس ملاویږی چه تاسو ته به تکلیف رسی ﴿وَلَا تَضْحٰى﴾ [ اونه به په غرمو ګرم شئ ] خکه چه په جنت کښې غرمه نشته اومکان هم دهرقسم دپناه دې په خلاف دهغې حالت نه چه که دجنت نه اوځئ دنیا ته لاړ شئ نو دا ټول مصیبتونه به درته درپیښیږی په دې وجه دا هر څه په نظر کښې اوساتئ ښه هوښیا او بیدار اوسئ ﴿فَوَسْوَسَ اِلَيْهِ الشَّيْطٰنُ﴾ [بیا دوی لره شیطان ] دوکه ورکړه [ وئ غولول ﴿قَالَ يٰاٰدَمُ﴾ وئ وئیل ورته چه اے ادم ] ﷺ ﴿هَلْ اَدُلُّكَ عَلٰى شَجَرَةِ الْخُلْدِ﴾ [ زه تاته داسې اونه ونه ښائم چه] خاصیت په کښې [ دهمیشه پاتې کیدو وی ] چه دهغې په خوړلو سره به همیشه شاد او اباد اوسئ ﴿وَمُلْكٍ لَّا يَبْلٰى﴾ او داسې بادشاهی چه چرته په کښې کمزوری نه راځی پس ] دد؛ په غولولو سره ﴿فَاَكَلَا مِنْهَا﴾ [دواړو دهغې اونې نه وخوړه ] دکومې نه چه دوی منع شوی وو او شیطان ورته دهمیشه پاتې کیدو ونه ووئیل او وئ غولول [نو] ددې دخوراك سره ﴿فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا﴾ [ ددواړو ستر یوبل ته ښکاره شول او] دخپل بدن پټولودپاره ﴿وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ﴾ [دواړو دخپل خان ] بدن [ دپاسه دجنت ] داونو[ پاڼې پورې کول شروع کړل ﴿وَعَصٰۤى اٰدَمُ رَبَّهٗ﴾ [او ادم ﷺ نه دخپل رب قصور وشو پس] په جنت کښې دهمیشه پاتې کیدو دمقصد حاصلولوپه باره کښې ﴿فَغَوٰى﴾ [ په غلطئ کښې پریوتل بیا] کله چه دوی معذرت پیش کړو نو ﴿ثُمَّ اجْتَبٰهُ رَبُّهٗ﴾ [بیاددوی رب ] زیات [مقبول جوړ کړل ﴿فَتَابَ عَلَيْهِ وَهَدٰى﴾ پس په دوی باندې] په مهربانئ سره [ توجه وفرمائیله او په ] نیغه [ لارې همیشه قائم پاتې کړل ] چه بیا ترې داسې خطا ونه شوه اوکله چه ئ اونه وخوړه نو ﴿قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيْعًا﴾ [ الله تعالی وفرمائیل چه دواړه په جمع دجنت نه کوز شئ] او دنیاته [په داسې حالت کښې لاړشئ چه] ستاسو په اولاد کښې ﴿بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ﴾ [ یوبه دبل دښمن وی ﴿فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِّنِّيْ هُدًى﴾ بیاکه تاسو ته زمادطرف نه څه ] ذریعه د [دهدایت] یعنی رسول یاکتاب [ راورسی نو ] په تاسو کښې ﴿فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ﴾ کوم سړې چه زماددې هدایت تابعداری وکړی ﴿فَلَا يَضِلُّ﴾ نو هغه خو به نه ] په دنیاکښې [ ګمراه شی ﴿وَلَا يَشْقٰى﴾ اونه به ] په اخرت کښې [ بدبخته شی ﴿مَنْ اَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِيْ فَاِنَّ لَهٗ﴾ اوکوم سړې چه زما ددې نصیحت نه مخ واړوی نو دهغه دپاره ] دقیامت نه اول په دنیا او په قبر کښې ﴿وَمَعِيْشَةً ضَنْكًا وَّنَحْشُرُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَعْمٰى﴾ [ دتنګسیا ژوند به وی او دقیامت په ورځ به مونږ دد؛ لره ړوندې] دقبرنه [پورته کړو ﴿قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِيْۤ اَعْمٰى﴾ دې به] په تعجب سره [ او وائی چه اے زما ربه تا زه ړوند ولې راپورته کړم زه خو ] په دنیا کښې ﴿وَقَدْ كُنْتُ بَصِيْرًا﴾ [ سترګو والا وم؟] زمانه به داسې څه خطا شوې وی ﴿قَالَ﴾ [ارشاد به وشی چه ] داځنګه چه تاله سزا درکړې شوه ﴿كَذٰلِكَ﴾ [دغسې ] تانه عمل

شوې وو هغه داچه [ تاته ] دپیغمبراو ﷺ او عالمانو په واسطه سره ﴿أَتَتْكَ آيَاتُنَا﴾ [ زمونږ احکام درسیدلی وو ﴿فَنَسِيتَهَا﴾ بیاتا دهغو هیڅ پروا ونه کړه ﴿وَكَذَٰلِكَ الْيَوْمَ تُنسَىٰ ۝﴾ او دغسې نن ستا څه پروانه شی کیدې] لکه تا پروانه وه کړې [ او] لکه څنګه چه داسزا مناسب دعمل ورکړې شوه ﴿وَكَذَٰلِكَ﴾ [ دغه شان ] ﴿نَجْزِي مَنْ أَسْرَفَ﴾ [ هر سړی ته مونږ ] دعمل مناسب [ سزا به ورکړو کوم چه دحد] اطاعت [ نه تیرشی ﴿وَلَمْ يُؤْمِن بِآيَاتِ رَبِّهِ﴾ او دخپل رب په ایتونو باند ایمان رانه وړی ﴿وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَدُّ وَأَبْقَىٰ ۝﴾ او واقعی داخرت عذاب ډیر سخت او ډیرپاتې کیدونکې دې] [اعاذنا الله منه ] چه ددې چرته انتها نشته نو ددې نه دځان بچ کولو لوئ اهتمام پکاردې.

## معارف او مسائل

**ربط:** ددې ځائې څخه د آدم ﷺ قیصه بیانیږی ، ددې څخه مخکښې هم دا قیصه په سورة بقره ، سورة اعراف او بیا څه لږه شان په سورة حجر او سورة کهف کښې هم تیره شوې ده . او په آخر کښې به په سورة صاد [ص] کښې راځی ، په هر مقام کښې ددې مناسب حصې سره د متعلقه هدایتونو بیان کړې شوې دې .

په دې مقام باندې مفسرینو حضراتو ړومبو آیاتونو سره ددې قیصې مناسب په مختلفو اړخونو سره بیان کړې دې ، په دې کښې د ټولو څخه زیاته روښانه او بې غباره خبره داده چې په ړومبو آیتونو کښې دا ارشاد شوې دې چې :

[كَذَٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنبَاءِ مَا قَدْ سَبَقَ ۚ] (۱) پدې کښې رسول کریم ﷺ ته په خطاب کولو سره فرمائیلې شوی دی چې ستاسو د نبوت او رسالت ثابتولو دپاره او ستاسو د امت د خبرداره کولو دپاره مونږ د تیرو شوؤ پیغمبرانو ﷺ حالات او واقعات تاسو ته بیانوؤ چې په کښې د موسی ﷺ تفصیلی قیصه ددې آیت څخه مخکښې بیان شوې ده ، او په دې ټولو قیصو کښې د ټولو څخه ړومبۍ او څینو حیثیتو کښې د ټولو څخه اهمه د آدم ﷺ قیصه ده چې دلته څخه شروع شوې ده ، پدې کښې امت محمدیه په دې باندې خبرداره کول دی چې شیطان د ټولو بنیادمو زوړ دښمن دې ، ده د ټولو څخه اول ستاسو په مور پلار باندې دخپلې دښمنئ غصه اوباسی ، د قسما قسم بهانو چلونو او همدردانه مشورو جالونو خوړولو سره یې هغوئ لره دهوکه کړل د هغې په نتیجه کښې د جنت نه د کوزیدو حکم ورکړې شو ، د جنت جامې ترې لرې کړې شی ، بیا یې الله ﷻ ته زارګانې اوکړې ، دغه دهوکه کیدل ورته معاف کړې شو ، د نبوت او پیغمبرۍ لوړ مقام ورته حاصل شو ، څکه د ټولو بنیادمو د شیطانی دهوکه کولو چرې هم پې فکره کیدل نه دی پکار ، ددینی حکمونو په معامله کښې دشیطانی وسوسو او چلونو څخه د بچ کیدو ډیر غم کول پکار دی .

[وَلَقَدْ عَهِدْنَا إِلَىٰ آدَمَ مِن قَبْلُ فَنَسِيَ وَلَمْ نَجِدْ لَهُ عَزْمًا] دلته د [عَهِدْنَا] لفظ د امرنا [مونږ حکم اوکړو] او د [وصینا] مونږ وصیت اوکړو ، معنی ورکوی [بحر محیط]. (۲) مطلب دادې چې مونږ ددې واقعې په باره کښې تاسو ﷺ ته ډیر مخکښې آدم ؑ ته یووصیت کړې وو یعنی تاکیدی حکم مو ورته کړې وو چې په سورة بقره وغیره کښې تیر شوې دې ، او دې نه پس هم څه

---

(۱) ترجمه:-داشان مونږ تاته دنورو تیر شوؤ واقعاتو خبرونه بیانوؤ.
(۲) تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآیة [ج:۸ ص:۱۲۵]

راروان دي ، يعني يوه ونه يې ورته اوښودله چې ددې ګل ، ميوه يا بله څه حصه مه خورئ او ددې خواته هم مه ورځئ ، باقي پاتې د ټول جنت په باغونو او نعمتونو کښې تاسو دپاره آزادي ده ، چې په استعمال کښې يې راوستې شئ څنګه چې بيان يې راروان دي ، داهم ورته ښودلې شوې دي چې ابليس ستاسو دښمن دې دهغه په دهوکه کښې رانشئ. ځکه چې تاسو دپاره به مصيبت جوړ شي ، خو آدم ﷺ څخه هير شو او مونږ هغوئ ﷺ د ارادې پوخ بيان نه موندل ، دلته د نسيان مشهوره معنی هيرول او بې پرواه کيدل دي ، او د عزت لفظي معنی د څه کال کولو پخه اراده او پوخ قصد کول دي ، اوس ترې څه مراد دی؟ په دې باندې پوهيدو دپاره اول دې ته کتل پکار دي چې آدم ﷺ د اولو العزم پيغمبرانو ﷺ ځينې دې او ټول پيغمبران ﷺ دګناهونو څخه محفوظ وي.

په رومبی لفظ کښې آدم ﷺ ته دهيرې نسبت کړې شوې دې چې غير اختياری حرکت دې ځکه په ګناه کښې نشي حسابيدې لکه رسول کريم ﷺ هم فرمائي چې [رفع عن امتي الخطا والنسيان](۱) زما امت څخه خطا او هيره صادريدل معاف کړې شوې دی او دقرآن کريم د اارشاد عام دې چې : [لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا] الله ﷻ هيچا ته داسې حکم نه ورکوی چې هغې باندې عمل کول ئې د وس څخه بهر وي. خو دا هم ټول ته معلومه ده چې الله ﷻ په دې جهان کښې داسې اسباب هم پيدا کړې دی چې هغه په پوره احتياط استعمال کړې شي ، نو انسان د خطا او هيرې څخه بچ پاتې کيدې شي هر کله چې پيغمبران ﷺ د الله ﷻ خاص نزديکان دی ځکه د هغوئ ګرفت په دومره خبره هم کيږی چې دغې اختياری اسبابو څخه يې ولې وانه خستو چې د هغې په ذريعه د هيرې څخه بچ کيدې شو ، چنانچه ډير ځل د بادشاه يو وزير دپاره داسې کار هم قابل ګرفت جوړيږی کوم چې عامو نوکرانو دپاره دانعام قابل وی په دې بنا جنيد بغدادی رحمه الله فرمائيلی دی چې : [حسنت الابرار سيات المقربين] د نيکانو خلقو د نيکۍ عمل ډير ځل د نزديکانو دپاره ښوئيدل او بد عمل حسابيږی. لهذا د آدم ﷺ دا واقعه خو اول د نبوت په دغې زمانه کښې د پيغمبرانو عليهم السلام نه ګناه صادريدل دهغوئ دشان خلاف نه ده ، بله خبره داده چې په حقيقت کښې هيره ده چې ګناه نه حسابيږی ، خو هر کله چې آدم ﷺ مقام اوچت وو او الله ﷻ ته نزدې وو ځکه دهغوئ په باره کښې داهم يو لغزش حساب شو او د الله ﷻ د طرفه پرې ورته زورنه ورکړې شوه ، اودهغوئ د خبرداره کولو دپاره دغې لغزش ته عصيان اووئيلې شو څنګه چې وراندې به راشي.

بل دا اوفرمائيلې شو چې د آدم ﷺ عزم بيا نه موندې شو چې ګنی په لوظ ، قول باندې کلک پاتې شوې وو ، مطلب دا چې د کلکه اراده خو يې کړې وه خو شيطانی وسوسو دغه کلک والی کښې فرق راستو او دهيرې په وجه يې په دغه کلک والی باندې جخت پرې نه ښو [والله اعلم]
[وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ] دا دهغه لوظ مختصر بيان دې کومې چې الله ﷻ د آدم ﷺ څخه اخستې وو ، هر کله چې آدم ﷺ الله ﷻ پيدا کړو نو ټولو فرښتو ته يې آدم ﷺ ته د سجدې کولو حکم اوکړو ، دغه حکم لاندې ابليس هم ځکه راغلو چې تر دغې وخته پورې فرښتو سره په جنت کښې يو ځائې اوسيدو ، پدې بنا ټولو فرښتو سجده اوکړه ليکن ابليس د تکبر او غرور په

(۱) كنز العمال رقم الحديث:[۱۰۳۰۷]

وجه انكار اوكړو. چې زه د اور څخه پيدا يم او آدم ﷺ د خاورې څخه پيدا دي او هغه د اور څخه په درجه كښې كمه ده ، په دې جرم كښې شيطان د جنت څخه ويستلې شو ، او آدم ﷺ او حوا عليهما السلام دپاره د جنت ټول باغونه او انعامونه آزاد كړې شو ، او دجنت د هر يو څيز استعمالولو اجازت وركړې شو ، صرف يوه ونه ورته اوښودلې شوه چې دهغې هيڅ حصه به نه استعمالوئى ، او نزدې به هم نه ورځى ، د امضمون په سورة بقره كښې او سورة اعراف كښې راغلي دي . دې دلته ددې د يادګيرنې كولو په ځائې ددې عهد د محفوظ ساتلو او په دې باندې د كلك پاتې كيدو په پاره كښې اوفرمائيلې شو چې د شيطان د سجدې د نه كولو په وخت تاسو ته د شيطان دښمنى ښه په ډاګه شوېده ، هسې نه چې په څه چل ول سره مو ددې لوظ نه واړوى او په نتيجه كښې د جنت نه اوښكلې شئ:

[فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقٰى ۝] [ هسې نه چې تاسو دواړه دجنت نه اوباسى او په مصيبت كښې ګير شئ]

[فَتَشْقٰى] د شقاوت نه مشتق دي ، يو شقاوت ددنيا دي چې مراد ترې په مصيبت كښې اخته كيدل دى ، او بل شقاوت د آخرت دې چې مراد ترې بدبختى ده ، دلته ترې رومبى معنى اخستل دى چې دويمه معنى پيغمبر دپاره خو لاڅه كوې چې يو عام نيك مسلمان دپاره هم نشى اخستې چنانچه فراء ددې شقاوت تفسير داسې كړې دې چې:

[هو ان ياكل من كيد يديه] [د محنت خوارى ،روزى حاصلول دى] [قرطبى] (١).

دلته دا تفسير څكه ښه لګيدې شى چې دې پسې آيت كښې د جنت هغه څلور نعمتونه بيان كړې شوى دى چې انسانى ژوند دپاره بنيادى شان لرى يعنى خوراك ، څكاك ، جامه واستوګنه .

مطلب دا شو چې دلته په جنت كښې دغه څيزونه به ډير درته بې محنته او بې خوارئ ملاويږى ، په دې سره اشارې دې ته شوه چې كه جنت نه اووتئ نو دا نعمتونه بۀ تاسو څخه اخستلې شى ، كيدې شى چې هم ددې اشارې په غرض د جنت لوې لوې نعمتونه بيان نه كړې شو صرف هغه نعمتونه بيان كړې شو چې انسانى ژوند پرې روان دې او دا ويره وركړې شوه چې دشيطان په لمسولو دجنت څخه اونه ځى نو دغه نعمتونه بۀ تاسو څخه واخستې شى او په زمكه به دغه نعمتونه درته په ډيرې خوارى او محنت سره حاصليږى ، هم دغه وجه ده چې جمهورو مفسرينو د [فَتَشْقٰى] دا تفسير اختيار كړې دې ، امام قرطبى ﷫ دلته دا هم ذكر كړى دى چې كله آدم ﷺ زمكې ته تشريف راوړولو نو جبرائيل ﷺ ورته څو دانې د غنمو ،وريژو وغيره راوړې چې دا په زمكه كښې اوكرى چې ددې بوټې زرغن شى ، دانې اوكرى او پوخ شى . نو وې ريبى اورې يې كړى ، روټى ترې جوړه كړې او په اور يې پخه كړى او ددې ټولو كارونو طريقې يې هم آدم ﷺ ته اوښودلې ، د هغې مطابق چې آدم ﷺ روټى پخه كړه ، خوراك ته يې ناست وو چې يوه نمړى ترې دلاسه د غرۀ لاندې ته راؤغورزيده ، آدم ﷺ هغې پسې راكوز شو ، او په ډير تكليف يې پورته كړه ، دغه وخت ورته جبرائيل ﷺ اوفرمائيل چې اې آدم ﷺ! په زمكه باندې ستاسو او ستاسو د اولاد روزى به په داسې طريقه په محنت

(١) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١١ص:٢٥٣]

او مشقت سره تر لاسه کیږي .(قرطبي)(۱)

**د ښځې نه بې ضرور اخراجات پوره کول خاوند ذمه داري ده** :: دلته [اِنَّ هٰذَا عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقٰى] کښې داوښودلې شو چې شیطان ستاسو ﷺ او ستاسو ﷺ د بي بي دواړو دښمن دې هسې نه چې د جنت څخه مو رابهر کړل خو په آخر کښې یې په لفظ د مفرد سره [فَتَشْقٰى] اوفرمائیل ، بي بي یې ورسره په کښې شریکه نه کړه ، په دې بنا قرطبي ﷫ ترې دا مسئله راویستلې ده چې د بي بي دژوند ضروریات پوره کول د هغې دخاوند په ذمه دي ، دهغې په تر لاسه کولو کښې د محنت او مشقت یوازې ذمه د سړي ده .

واجب اخراجات صرف څلور څیزونه دي :: قرطبي ﷫ فرمائیلي دي چې په دې آیت مبارک کښې مونږ ته دا اوښودلې شو چې دبي بي د اخراجاتو د څلورو څیزونو ذمه دار سړې یعنی خاوند دې ، دخوراك ، څكاك ، جامې او استوګنې ، ددې څخه زیات څیزونه خپلې بي ته ورکول د هغه د طرفه نیکي او احسان ورسره کول دي .(۲) دې نه دا هم معلومه شوه چې د بل چا واجب اخراجات هم دا څلور څیزونه دي ، لکه د مور پلار دهغې دوخت اخراجات پوره کول دهغوئ په مالدار اولاد باندې کله چې هغوئ بې وسه او حاجت مند وي ، تفصیل یې د فقهې په کتابونو کښې شته دې :

[اِنَّ لَكَ اَلَّا تَجُوْعَ فِيْهَا وَلَا تَعْرٰى] ددې مطلب دادې چې د ژوند دا ضروریات به په جنت کښې بې خوارئ او بې محنته صرف ورته په خواهش کولو جنتي ته ملاویږي . دا مطلب نه دې چې لوږه تنده بۀ د سره نه وي څك چې د خوراك ، څكاك خوند ترهغې پورې نه وي تر څو چې لوږه تنده نه وي .

[فَوَسْوَسَ اِلَيْهِ الشَّيْطٰنُ] تر [وَعَصٰۤى اٰدَمُ رَبَّهٗ فَغَوٰى] دې آیت څخه د اسوالونه راپورته کیږي چې آدم ﷺ او حواء هر کله چې الله ﷻ د یوخاص ونې د خوړلو اودهغې خواته د تلو څخه منع کړې وو او ورسره په دې هم خبرداره کړې شوې وو چې شیطان ستاسو ښکاره دښمن دې د هغه د مرك اوفریب څخه خان ساتئ ، هسې نه چې د جنت نه مو اوباسي .

ددې باوجود ددې دغه اولو العزم د لوړې درجې پیغمبر د شیطان په دهوکه کولو کښې څنګه راغلو ، ولې چې دا ښکاره نافرماني اوګناه ده حالانکه جمهور امت پدې اتفاق لري چې پیغمبران ﷺ د هرې وړې او لوې ګناه څخه محفوظ وي .

ددې ټولو سوالونو جوابونه هم په دې تفسیر معارف القرآن کښې سورهٔ بقره اوله سیپاره کښې ورکړې شوي دي ، هلته یې اوګورئ .

دلته د [عَصٰى] او [غَوٰى] صفا الفاظ د آدم ﷺ دپاره استعمال شوي دي ، ددې وجه هم په سورة بقره کښې بیان شوې ده ، هغه داسې چې اګر که د آدم ﷺ دغه عمل د شرعي قانون تر مخه په ګناه کښې داخل نه وو لیکن آدم ﷺ رسول او په خاص نزدیکانو د الله ﷻ کښې حساب وو څکه دهغوئ ﷺ معمولي ښوئېدو ته هم عصیان اوفرمائیلې شو ، او په هغې زورنه ورکړې شوه ، دغه شان د غوی لفظ د دوؤ معنو دپاره استعمالیږي ، یو دې دپاره چې دنیوي ژوند لند

(۱) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۱ص:۲۵۳]
(۲) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۱ص:۲۵۳]

تنګ شي او عیش او روزګار وغیره یې خراب شي، بله معنی یې ګمراه کیدل یا غافله کیدل دي، د تفسیر امامانو قشیري رحمه الله او قرطبي رحمه الله وغیره دلته د غوی لفظ ړومبۍ معنی اختیار کړې ده ، مراد دادې چې دآدم علیه السلام د جنت د مزو د ژوند په ځائې دمحنت مشقت ژوند شو.[1]

د پیغمبرانو علیهم السلام باره کښې یو ضروری هدایت د هغوئ د ادب او احترام حفاظت کول دعصی وغیره قسم الفاظ د قرآن کریم چې د آدم علیه السلام په باره کښې استعمال شوی دی، قاضي ابوبکر ابن عربي په خپلو الفاظو کښې دهغې متعلق داسې رائې ښکاره کوي:

لا یجوز لاحدنا الیوم ان یخبر بذلك عن ادم الا اذ ذکرناه في اثناء قوله تعالی عنه اوقول نبیه فاما ان یبتدي ذلك من قبل نفسه فلیس بجائز لنا في اٰبآئنا الادنین الینا المماثلین لنا فکیف اٰبینا الاقدام الاعظم الاکرام النبي المقدام الذي عذره الله سبحانه وتعالی وتاب علیه وغفرله

نن هیڅوا دپاره دا جائز نه دی چې آدم علیه السلام ته د عصیان لفظ منسوب دی ، سوا دهغې ځخه چې د قرآن کریم ددې ایت یا د حدیث نبوی په ضمن کښې راغلې وی ولې چې داسې قسم الفاظ منسوب کول د خپل طرفنه خپلو نزدې پلرونو نیکونو ته هم جائز نه دی بیا هغه ړومبې پلار ته یې د ټولو پلرونو نیکونو نه وړاندې لوې او عزت مند او دالله ﷻ عزت مند پیغمبر دې ، الله ﷻ یې عذر قبول کړو د معافی اعلان یې دده دپاره اوکړو[تفسیر قرطبي و بحر محیط][2]

ځکه قشیري ابو نصر فرمائیلی دی چې ددې لفظ په وجه آدم علیه السلام ته عاصي او غاوي وئیل جائز نه دی چرته چې په قرآن پاك کښې د یو پیغمبر دپاره دغه شان الفاظ راغلی دی یا خو د خلاف اولی په باره کښې دی یا د پیغمبر کیدو نه وړاندې وخت دپاره دی ، لهذا دقرآني آیتونو او دحدیث پاك د روایاتو په ضمن کښې خو دهغې بیانول صحیح دی ، خو دخپله طرفه د هغوئ علیه السلام په شان کښې دداسې لفظونو د استعمال اجازت نشته دې [قرطبي][3]

[اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا] [کوز شئ د جنت ځخه] دا خطاب آدم علیه السلام او ابلیس دواړو دپاره کیدې په دې بنا د [بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ] مطلب داسې واضح وی چې په دناې کښې به هم انسان سره دشیطان دښمنی جاری وی او کله چې دا اوئیلې شی چې شیطان خو د وړاندې ځخه جنت نه اوښکلې شوې وو نو په دغه بنا د [بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ] داخطاب آدم علیه السلام او حوا ته وی ، او مطلب به یې دا وی چې ستاسو د اولاد ترمینځه به پخپلو کښې سره د ښمنی وی چې په دې قسم سره هم د مور پلار ژوند بې آرامه اوتریخ جوړیږی.

[وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي] دلته د ذکر ځخه مراد قرآن کریم هم کیدې شی او درسول کریم ﷺ ذات مبارك هم کیدې شی لکه په نورو آیتونو کښې چې [ذکرا رسولا] راغلې دې ، د دواړو حاصل دا راوځی چې څوك د قرآت کریم یا رسول کریم ﷺ ځخه مه واړوی ، په قران کریم عمل نه کوی او تلاوت یې نه کوی یا درسول کریم ﷺ تابعداری ځخه مخ اړوی نو انجام ئې دادې چې [فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَىٰ] [د هغه ژوند به تنګ وی او دقیامت په ورځ به ړوند راپورته کولې شی ، ړومبې عذاب ددنیا دې او دویم عذاب دآخرت دې]

---

[1] تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۱ص:۲۵۷]
[2] تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۱ص:۲۵۵ ، ۲۵۶] و أحکام القرآن لابن العربي [ج: ۵ص:۳۶۰]
[3] تفسیر القرطبي [ ج:۱۱ص:۲۵۷]

**په دنيا کښې د کافرانو اوبدکارو د ژوند د تريخوالي اوتنګوالي حقيقت:** دلته دا سوال پيدا کيږي چې په دنيا کښې خو يوازې د کافرانو اوبدکارو خلقو ژوند لنډ ، تنګ نه وي ، د نيکانو ، مؤمنانو ، لنډ تنګ ژوند ليدلې کيږي ، بلکه د ټولو څخه زياتې سختې پيغمبرانو ﷺ هم تيرې کړې دي ، په صحيح بخاري او د حديث په ټولو کتابونو کښې د سعد ﷺ وغيره په حواله سره دا روايت منقول دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل : د دنيا غمونه او مصيبتونه د ټولو څخه زيات په پيغمبرانو ﷺ باندې سخت وي ، دهغوئ څخه وروستو په نيکانو او اولياء کرامو خلقو باندې د درجو په مناسبت سره سخت وي ،(۱) بل طرفته عام طور د کافرانو اوبدکارو خلقو ژوند د خوشحالۍ او مزو چرچو وي ، په دې بنا دا قرآني ارشاد چې ژوند به يې لنډ تنګ وي آخرت دپاره خو دا کيدې شي ليکن په دنيا کښې د ليدلو کتلو خلاف معلوميږي.

ددې صفا واضحه جواب دادې چې دلته ددنيا د عذاب څخه د قبر عذاب مراد دې چې د قبر ژوند به يې لنډ ، تنګ او سخت وي. پخپله خپل قبر به يې دومره زور وي چې پښتۍ به يې يو بل کښې ورننوځي او هډوکي به يې ماتوي څنګه چې په ځينې احاديثو کښې ښکاره بيان راغلې دې.(۲) او مسند بزار کښې په جيد سند سره د ابوهريره ﷺ په روايت دا حديث پاك منقول دې چې رسول کريم ﷺ پخپله د [مَعِيشَةً ضَنكًا] تفسير دا فرمائيلې دې چې دې څخه مراد د قبر ژوند او حالت دې. [مظهري](۳)

او سعيد بن جبير ﷺ د ژوند د تنګوالي دا مطلب هم بيان کړې دې چې هغه نه د قناعت صفت واخستې شي او ددنيا لالچ او حرص يې زيات شي ، [مظهري](۴) نيتجه يې دا وي چې سره د ډير مال دولت به يې زړه جمع نه وي په هيڅ حالت به ورته آرام نه نصيب کيږي ، هميشه به د مال زياتولو په غم کښې وي او دمال د نقصان خطره او غم به يې مل وي ، څنګه چې د عامو مالدارانو دا حال ليدلې شي ، مطلب دا چې د آرام او راحت سامان به اګر چې ورسره ډير وي خو زړونو ته به يې آرام او تسلي نه نصيب کيږي.

<table dir="rtl">
<tr><td>اَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ اَهْلَكْنَا</td></tr>
<tr><td>آيا ښکاره شوې نه ده | دوئ ته | چې څومره ډير | هلاك کړل مونږه</td></tr>
<tr><td>آيا ددې نه هم سبق وانه خستلو چې مونږ تراوسه دد وئ نه وړاندې څومره ډير قومونه تباه کړې دي</td></tr>
<tr><td>قَبْلَهُمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ يَمْشُوْنَ فِيْ مَسٰكِنِهِمْ ؕ اِنَّ</td></tr>
<tr><td>مخکښې ددوئ نه | دزمانې دخلقو نه | چې [نن] ګرزي دوئ | په کورونو دهغوئ کښې | بيشکه</td></tr>
<tr><td>چې دهغوئ په کورونو کښې اوس دوئ ګرځي | بيشکه په دې کښې</td></tr>
</table>

(۱) جامع الترمذي ، ابواب الزهد باب الصبر علي البلاء [ج:۲ ص:۶۵]
(۲) جامع الترمذي ، ابواب الجنائز باب ماجاء في عذاب القبر [ج:۲ ص:۲۰۵]
(۳) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۶ ص:۱۷۱، ۱۷۲] والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳۴۳۹] و مجمع الزوائد رقم الحديث :[۱۱۱۷۰]
(۴) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۶ ص:۱۷۱، ۱۷۲]

فِي ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِي النُّهٰى ۝١٢٨ وَلَوْلَا

په دې [هلاکت دمنکرینو] کښې | ډیرې نښې دي | دپاره دخاوندانو | دعقلونو | او که چرې نه وې

دعقل دخاوندانو دپاره نخښې پرتې دي اوکه چرې ستا درب

كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَكَانَ لِزَامًا

خبره | چې مخکښې شوې ده | دطرفه د رب ستا نه | نو خامخا وۀ به | [عذاب] لازم |

د طرفنه یوه خبره داول نه خلاصه شوې نه وې اویو وخت مقرر نه وې نو په دوئ به

وَّاَجَلٌ مُّسَمًّى ۝١٢٩ فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ

او که نۀ وې يوه نيټه | مقرره | نو صبر کوه | په هغه څه باند | چې وائی دوئ | او تسبیح وایه |

عذاب راتلل لازم شوی وونوته ددوئ په خبرو باندې صبر اوکړه اودخپل رب پاکی دهغه

بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا

سره دحمد | درب خپل | مخکښې | د راختلو | د نمر نه | او مخکښې | دپریوتلو دهغې نه |

دتعریفونو سره بیانوه دنمر دختلو نه مخکښې اود ډوبیدو نه وړاندې

وَمِنْ اٰنَآئِ الَّيْلِ فَسَبِّحْ وَاَطْرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ

او په ځینو وختونو دشپې کښی | نو تسبیح وایه | او په طرفونو | د ورځ کښې | شاید چې تۀ |

اودشپې په ځینو وختونو کښې ئې هم تسبیح کوه او د ورځې په اول او په آخر کښې هم دپاره ددې

تَرْضٰى ۝١٣٠ وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ اِلٰى مَا مَتَّعْنَا بِهٖٓ

راضی شې | او مۀ اوږدوه | سترګې خپلې | هغه څیزونو ته | چې نفع ورکړې ده مونږه | په هغه څیز سره

چې خوشحاله اوسیږې اوهیچرې په هغه څیزونو پسې سترګې مه پورته کوه چې

اَزْوَاجًا مِّنْهُمْ زَهْرَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ لِنَفْتِنَهُمْ

مختلف قسم خلقو ته | ددوئ نه | شان وشوکت | د ژوند دد نیا | دپاره ددې چې امتحان اوکړو په دوئ

مونږ ددوئ ځینو ټولګو له ورکړی دا تش ددنیا دژوند رونق دې چې مونږ په دې کښې

فِيْهِ ؕ وَرِزْقُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ۝١٣١ وَاْمُرْ

په هغې سره | او رزق | درب ستا | بهتر دې | او باقی پاتې کیدونکې دې | او حکم کوه |

ددوئ آزمیښت اوکړو اوستا د رب ورکړې رزق غوره او زیات باقی پاتې کیدونکې دې

اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا ؕ لَا نَسْـَٔلُكَ رِزْقًا ؕ

بال بچ خپل ته | د مانځه | او پاپند اوسه | په هغې باند | نۀ غواړو مونږه ستا نه | رزق |

او خپلو خپلوانوته دمونځ حکم ورکوه او پخپله هم د مونځ پابند اوسیږه مونږ ستا نه روزی نه غواړو

نَحْنُ نَرْزُقُكَ ؕ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى ۝١٣٢ وَقَالُوْا لَوْلَا يَاْتِيْنَا

مونږه | رزق درکوو تاته | او ښۀ انجام | دپاره دتقوی دې | او وائی دوئ | ولې نۀ راوړی دې مونږ ته

بلکه مونږ تاته رزق درکوو اوښه انجام دپرهیزګارئ دې اودا خلق وائی چې دې مونږ ته دخپل

بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ اَوَلَمْ تَاْتِهِمْ بَيِّنَةُ مَا فِي الصُّحُفِ

يوه نښه | د طرفه درب خپل نه | آيا رانغي دوئ ته | واضحه بيان | دهغي ټولو تعليماتو | چې په صحيفو

رب د طرفنه يوه نخښنه ولې نه راوړي آيا دوئ ته هغه خبرې څرګند رانغلې چې پخوانو صحيفو کښې

الْاُوْلٰى ۝ وَلَوْ اَنَّآ اَهْلَكْنٰهُمْ بِعَذَابٍ مِّنْ قَبْلِهٖ

اولنو کښې وو | او که چرې مونږه | هلاک کړې وې دوئ | په عذاب سره | مخکښې دراتلو ددې قرآن نه

ليکلې شوې پرتې وې او که مونږ دوئ ددې [قرآن پاک] نه وړاندې په عذب باندې هلاک کړې وې

لَقَالُوْا رَبَّنَا لَوْلَآ اَرْسَلْتَ اِلَيْنَا رَسُوْلًا

نو خامخا به وئيل دوئ | اے ربه زمونږه | ولې رااونه ليږو تا | مونږ ته | يو رسول

نو دوئ بۀ وئيل چې اے زمونږه ربه ! تا مونږ ته ولې يو رسول رانه ليږلو چې مونږ ستا

فَنَتَّبِعَ اٰيٰتِكَ مِنْ قَبْلِ اَنْ نَّذِلَّ

چې تابعداری کړې وې مونږه | دآيتونو ستا | مخکښې ددې نه | چې ذليله شوې وې مونږه

دحکم پيروی کړې وې وړاندې ددې نه چې بې قدره او رسوا

وَنَخْزٰى ۝ قُلْ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ فَتَرَبَّصُوْا ۚ

اوشرمنده شوې وې مونږه | ورته اووايه | هرسړې | انتظارکونکې دې | [دانجام] | نو تاسو هم انتظار کوئ

دې شو ورته اووايه چې هريو انتظار کونکی دی نو تاسو هم انتظار کوئ ډير زر به درته

فَسَتَعْلَمُوْنَ مَنْ اَصْحٰبُ الصِّرَاطِ السَّوِيِّ وَمَنِ

ډير زر به معلوم شی تاسو ته | چې څوک دی | ملګری | دلارې | نيغې | او څوک دې

معلوم شی چې څوک په سمه لاره روان دې او څوک هدايت

اهْتَدٰى ۝ ع

چې روان دې په نيغه لار |

موندونکی دی

## آسان ترجمه قرآن

بيا آيا دې خلقو ته دې خبرې هم د هدايت څه سبق ورنکړو چه دهغوی نه مخکښې څومره نسلونه وو کوم چه مونږ هلاک کړې دی دچا په علاقو کښې چه دا خلق ګرځی هم. يقيناً د کومو خلقو سره چه عقل دې، هغوی دپاره په دې کښې د عبرت لوئې سامان دې او که ستا د رب د طرف نه يو خبره د مخکښې نه فيصله شوې نه وه، او (دهغې په نتيجه کښې د عذاب) يو نيټه مقرر نه وې نو لازمی طوربه عذاب (په هغوی پورې) پيوست شوې وې لهٰذا (اې پيغمبره!) دا خلق چه کومې خبرې کوی، ته په هغې باندې صبر کوه او د نمر د راختلو نه مخکښې او دهغه د پريوتلو نه مخکښې د خپل رب تسبيح کوه.او د شپې په اوقاتو کښې هم تسبيح کوه او د ورځې په ارخونو کښې هم. چه ته خوشحاله شې او د دنيوی ژوند هغه سهرلی ته سترګې هم مه اوچتوه کوم چه مونږ (دې کفارو کښې) مختلفو خلقو ته د مزو اوچتولو دپاره

ورکړي دي، چه مونږ ددوئ د هغې په ذريعه ازمېښت اُوکړو. او ستا د رب رزق ډېر غوره او دتولو نه زيات باقي پاتې کيدونکې دې. او دخپل کور خلقو ته د مانځه حکم کوه، او په خپله هم پرې ثابت قدم اوسيږه. مونږ ستا نه رزق نه غواړو، رزق خو به مونږ درکوو. او غوره انجام د تقوٰی دی. او دا خلق وائي چه: دا (نبي) مونږ ته د خپل طرف نه څه نخښه ولې نه راوړي؟ آيا دوئ ته د مخکښ (آسماني) صحيفو د مضامينو گواهي نه ده راغلې؟ او که مونږ دوئ ددې (قرآن) نه مخکښ دوئ په څه عذاب بانديې هلاک کړې وې نو دې خلقو به وئيلې چه: اې زمونږ ربه! تا مونږ ته يو پيغمبر ولې راو نه ليږلو، چه مونږ د ذليل او رسوا کيدو نه مخکښ ستا د آيتونو تابعداري کړې وې؟ (اې پيغمبره! دوی ته) اووايه چه: (مونږ) ټول انتظار کوو لهٰذا ته هم انتظار کوه، ځکه چه ډير زر به تاسو ته معلومه شي چه د ليغې لارې والا څوک دی، او چا هدايت بيا موندلې دې؟

## خلاصه تفسير

دا اعتراض کوونکې چه په مخه باند ډېره کوی نو ﴿أَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ الْقُرُونِ﴾ [ايا دې خلقوته ] تراوسه [ په دې هم هدايت ونه شو چه مونږ ددوی نه وړاند ډيرو ډلو لره ] ددې ډدې کولو په سبب په عذاب سره [ هلاك کړې دی ﴿يَمْشُونَ فِي مَسَاكِنِهِمْ﴾ چه دهغوی ] ځنو [ داوسيدو په ځايونو باندې داخلق هم ګرځي ] راګرځي ځکه چه دمکې نه شام ته په تلو کښې دځنو دغو قومونو مکانات راتلل﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّأُولِي النُّهَىٰ﴾ [ په دې ] ذکرشوی کار [ کښې خو دپوهانو خلقو ] دپوهې [ دپاره ] کافی [ دليلونه ] دمخ اړولو دبدو نتيجو [ موجود دی او] په دوی چه فورا عذاب نه راځي او ددې نه دوی ته دخپل مذهب دنه بدوالي شبهه ده نو ددې حقيقت دادې چه ﴿وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ﴾ [ که ستا درب دطرف نه يوه خبره د وړاندې نه فرمائيلې شوې نه وی ] هغه داچه دځنې مصلحتونو په وجه دوی ته مهلت ورکولې شی [ او] عذاب دپاره ﴿لَكَانَ لِزَامًا وَأَجَلٌ مُّسَمًّى﴾ [ يو ميعاد معين نه وی ] چه هغه دقيامت ورځ ده [ نو] ددوی دکفر او اعراض په مقتضاء به [ عذاب په لازمی طور راغلې وو ] لنډه داچه کفر خو مقتضی دعذاب دې ليکن ديو مانع په وجه سره صبر کولې شی پس ددوی دغه شبهه او په فوری عذاب نه راتلو سره دخپلو ځانونو په حق باند دکيدو دليل نيول غلط دی غرض دادې چه په مهلت سره سستی نه ده پکار [پس ] هر کله چه عذاب راتلل يقينی دی نو ﴿فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ﴾ [ته ددوی په کفرياتو [ خبرو باند صبر کوه ] او دالله تعالی دپاره چه په دوی تاله کومه غصه راځي او په دوی دعذاب نه راتلو په وجه تاته کومه پريشاني رسيږی ته دغه پريشانی پريږده ﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾ [ او دخپل رب حمد] اوثناء [سره] دهغه [تسبيح ] او پاکی [کوه ] په دې کښې مونځ هم راغلې ﴿قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ﴾ [دنمرختونه اول ] مثلاً دسحر مونځ﴿وَقَبْلَ غُرُوبِهَا﴾ [ او دنمر پريوتو نه وړاند] مثلاً دماسپخين او مازيګر مونځ ﴿وَمِنْ آنَاءِ اللَّيْلِ فَسَبِّحْ﴾ [ او دشپې په وختونو کښې ] هم [کوه] مثلاً دماښام ماسختن مونځ ﴿وَأَطْرَافَ النَّهَارِ﴾ [ اود ورځې په اول او اخر کښې ] دتسبيح کولو داهتمام دپاره مکرر وئيلې شی چه په دې سره دسحر او ماښام دمونځونو ذکر هم په اهتمام سره مکرر شو ﴿لَعَلَّكَ تَرْضَىٰ﴾ [ ددې دپاره چه ] تاته ثواب ملاوشی [ته ] په دې سره خوشحاله شې مطلب دادې چه ته خپله توجه معبود حقيقی طرف ته کړه دخلقو فکر مه کوه ﴿وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ﴾ [ اوته هرګز هغه څيزونوته سترګې مه اړوه﴿إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِ﴾ مه

کوره ورته ] لکه چه تر اوسه د ورته نه دی کتلی ﴿أَزْوَاجًا مِّنْهُمْ﴾ [ په کومو سره چه مونږ دکفارو مختلفو ډلونه ] مثلا يهودو نصاراؤ اومشرکانوته [ ددوی د ازمائش دپاره نفع ورکړې ده چه دغه ] محض ﴿زَهْرَةَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا لِنَفْتِنَهُمْ فِيهِ﴾ [ ددنیا دژوند بنائست دې] مطلب نوروته اؤرول دی چه کله دمعصوم نبی دپاره دا ممانعت دې چه په هغه کښې ئې احتمال هم نشته نو غير معصوم لره به ددې اهتمام ولې ضروری نه وی او ازمائش داچه څوك احسان منی او څوك سرکشی کوی ﴿وَرِزْقُ رَبِّكَ﴾ [ اوستا درب بخشش ] کوم چه په اخرت کښې به ملاویږی ﴿خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ﴾ [ په ډيرو درجو] ددې نه [ غوره او قائم پاتې کيدونکې دې ] چه چرې به نه فنا کيږی نچوړ دخبرې داشو چه نه ددوی مخ اړولو طرف ته نظر کول يعنې کتل پکاردی او نه ددوی سامان دعيش ته کتل پکاردی چه دتولو انجام عذاب دې ﴿وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَوٰةِ﴾ [ او خپلو متعلقينو ته ] يعنې دکور خلقو ته يا مؤمنانو ته [هم دمونځ حکم کوه ﴿وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا﴾ او په خپله ] هم [ ددې پابند اوسه ] يعنی زيات دتوجه قابل دا کارونه دی ﴿لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا﴾[مونږ ستانه او دغسې دنورو] نه داسې د[ معاش ] کټل [ نه غواړو ] کوم چه دضروری اطاعت نه مانع وی﴿نَّحْنُ نَرْزُقُكَ﴾ [ معاش خوتاته ] او دغسې نوروته [ مونږ ورکوو] يعنی اصل مقصود کسب کول نه دی بلکه دين او اطاعت دې دکسب کولو خو په هغه حالتونو کښې اجازت يا حکم دې چه په ضروری اطاعت اوعبادت کښې خلل نه اچوی ﴿وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوَىٰ﴾[ اوغوره انجام خود پرهيزکارئ دې ] په دې وجه مونږ حکم درکوو چه [لاتمدن الخ] او [وامر اهلك الخ]

او دمعترضينوخنې حالات او خبرې کومې چه بره ذکرشوې دغه شان ددوی يوه بله خبره هم ذکر کيږی چه [ دغه خلق ] دعنادنه ﴿وَقَالُوا لَوْلَا يَأْتِينَا بِآيَةٍ مِّن رَّبِّهِ﴾ [ داسې وائی چه دا رسول مونږ ته څه نښه ] دخپل نبوت [ ولې نه راوړی ] وړاندې جواب دې چه ﴿أَوَلَمْ تَأْتِهِم بَيِّنَةُ مَا فِي الصُّحُفِ الْأُولَىٰ﴾ [ايا دوی ته دتيرو کتابونو دمضمون اظها نه دې رسيدلې ] مراد ددې نه قرآن دې چه په دې سره دتيرو کتابونو دپيشگويئ دمضمون تصديق ظاهر شو مطلب داچه ايا دوی ته قرآن نه دې راغلې چه ددې د وړاندنه شهرت وو چه دغه په نبوت کافی دليل دې ﴿وَلَوْ أَنَّا أَهْلَكْنَاهُم بِعَذَابٍ مِّن قَبْلِهِ﴾[ اوکه مونږ دوی لره دقرآن نه وړاند] دکفر په سزا کښې [ په څه عذاب هلاك کړی وی ] او بيا ورته دقيامت په ورځ دکفر اصلی سزا ورکولې چه دغه به لازمی وه ﴿لَقَالُوا رَبَّنَا لَوْلَا أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا﴾[نو دې خلقو به ] په طور دعذر[ داسې وئيل چه اے زمونږ ربه تا مونږ ته څوك رسول] په دنيا کښې [ ولې نه دې رااليږلې﴿فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ مِن قَبْلِ أَن﴾ چه مونږ ستا احکام منلی وې وړانددې نه چه ﴿نَّذِلَّ وَنَخْزَىٰ﴾ مونږ] دلته په خپله [بې قدره شو او] دخلقو په نظر کښې [ رسواشو ] پس اوس ددې عذر هم گنجائش پاتې نه شو که دوی دا وائی چه دغه عذاب به کله وی نو﴿قُلْ﴾[ته ووايه چه ] ﴿كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ﴾ مونږ [ ټول انتظار کوو پس ] ترڅه وخته ﴿فَتَرَبَّصُوا فَسَتَعْلَمُونَ﴾[نور انتظار وکړئ اوس به ډير زر تاسو ته ] هم [معلومه شی﴿مَنْ أَصْحَابُ الصِّرَاطِ السَّوِيِّ﴾ چه نيغې لارې والا څوك دی ﴿وَمَنِ اهْتَدَىٰ﴾ او هغه څوك دې کوم چه ] منزل [مقصود ته ورسيدو ] يعنی دغه فيصله به ډيره زر پس دمرگه يا پس دحشر نه ظاهره شی .

## معارف او مسائل

﴿أَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ﴾ يهد ضمير د فاعل هدى ته راجع دي چې ددې لفظ په ترڅ کښې راغلي دي. د هدى نه مراد قرآن عظيم الشان يا رسول دې ، نو معنى ئې دا شوه چې آيا قرآن عظيم الشان يا نبى اكرم ﷺ دوئ يعنى مکې والو ته دا هدايت نه دې کړې او په دې ئې نه دى خبر کړي چې تاسو نه مخکې څومره امتونه او ډلې د خپلې نافرمانۍ په وجه د الله ﷻ په عذاب کښې د ګرفتاريدو په وجه هلاك شوى دى چې د هغوئ په کورونو او زمکو کښې اوس تاسو ګرځئ او دا هم کيديشى چې په دې کښې ضمير د فاعل الله ﷻ ته راجع وى چې معنى به ئې داسې جوړيږى ، آيا الله ﷻ دې خلقو ته هدايت نه دې کړې الخ ؟

﴿فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ﴾ مکې والو به چې د ايمان نه تښتيدو د پاره قسما قسم حيلې بهانې لټولې او نبى اكرم ﷺ به ئې په خرابو الفاظو سره يادولو ، چا به ورته ساحر ، چا شاعر او چا كاذب وئيلو. د دوئ د ژبانونو وركولو علاج قرآن عظيم الشان دلته په دوؤ څيزونو سره خودلې دى ، اول دا چې تاسو ﷺ ددوئ خبرو پسې مخه مه اوړئى ، بلکه صبر کوئى ، بل څيز د الله ﷻ په عبادت کښې لګيا کيدل دى چې په راتلونکې جمله کښې ﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾ الفاظو سره بيان کړې شوې دې.

**د دښمنانو د ضررونو نه د ځان ساتلو علاج دادې چې صبر کولې او الله تعالى يادولې شى ::** په دې دنيا کښې هيڅوك بې دښمنه نشى کيدې هغه ورکوټې وى که هغه لوئې ، ښه وى او که خراب ، نو دښمن که هر څومره کمزورې او سپك وى هغه خپل مخالف ته څه نه څه ضرر خامخا رسوى. اګر چې صرف په کنځلو ئې وس و رسى ، که مخامخ ئې وس نه رسى پشې شا ورته ضرر رسوى. ځکه هر څوك د دښمن د ضررونو نه د ځان بچ کولو په فکر کښې وى ، قرآن عظيم الشان ددې زياته غوره او کاميابه نسخه د دوؤ څيزونو نه مرکبه بيان کړې ده. يو جز د هغې صبر کول ، او دبدل اخستلو تکل نه کول ، او بل جز ئې د الله ﷻ په ياد او عبادت کښې اخته کيدل دى ، تجربه ګواه ده چې يوازې هم په دې نسخې سره ددغې ضررونو نه خلاصې بيا مونديې شى. ګنى نو بدل اخستونکې که هر څومره طاقتور ، لوئې او د مرتبې خاوند وى ، ډير ځله هغه د خپل مخالف نه په بدلې اخستو باندې قابو نه بيا مومى. او د بدل اخستو په فکر کښې پاتې کيدل هغه د پاره يو مستقل عذاب جوړ شى. او کله چې انسان خپله مخه خالص الله ﷻ ته راواړى او دا عقيده لرى چې الله ﷻ ته د منظوريدو نه بغير هيڅوك هم چاته څه زيان نشى رسولې ، او د الله ﷻ هر عمل او فعل دهغه په حکمت باندې بنا وى ځکه دا راپيښ صورت د حکمت دالله نه خالى نشى کيدې ، په دې شان د انسان هغه غصه بالکل سړيږى کومه چې د مخالف د زيان رسولو په وجه راپاره شوى وى ځکه په آخر کښې فرمائى چې ﴿لَعَلَّكَ تَرْضَىٰ۝﴾ يعنى په دې شان به ستاسو وخت په خوشحالۍ سره تيريږى.

﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾ يعنى تاسو ﷺ د الله ﷻ پاکى بيانوئى دهغه د حمد اوشکر سره. دې کښې اشاره ده چې د الله ﷻ د يادولو او عبادت کولو توفيق موندلو سره انسان پخپل فخر باندې د فخر او ناز په ځائې د الله ﷻ شکر او حمد ادا کول خپله وظيفه جوړه کړه دا ذکرالله يا عبادت دهغه د توفيق ثمره وى.

﴿وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ﴾ نه مراد د ماسپخين او مازيگر او د [وَمِنۡ اٰنَآئِ الَّيۡلِ] څخه مراد عام ذکر او حمد هم اخستې شي او خاص مونځ هم د لته عموما مفسرينو د مونځ په معنى څکه اخستې دى چې دې نه پس بيان شوى وختونه هم د مونځ وختونه دى ، لکه ﴿قَبۡلَ طُلُوۡعِ الشَّمۡسِ﴾ نه مراد د ماسپخين او مازيگر او د ﴿وَقَبۡلَ غُرُوۡبِهَا﴾ نه مراد د شپې ټول مونځونه د ماښام او ماسختن تر دې چې د تهجدو مونځ هم په کښې شامل دې ، بيا په ﴿وَاَطۡرَافَ النَّهَارِ﴾ سره ددې زيات تاکيد شوې دې .

دنيوى دولت د ځو ورځو دې د ا د الله تعالى په نزد د مقبوليت نخښه نه ده بلکه مؤمن دپاره دخطرې ځيز دې : [وَلَا تَمُدَّنَّ عَيۡنَيۡكَ) دې سره نبى اکرم ﷺ ته خطاب دې او په اصل کښې هدايت کول امت ته دى چې د دنيا مالدارو او سرمايه دارو ته قسماقسم دنيوى رونقونه او نعمتونه حاصل دى تاسو هغوئ طرفته مه گورئ څکه چې دا ټول هر څه فناکيدونکى او د څور ورځو دى ، الله ﷻ چې کوم نعمت تاسو ﷺ ته او ستاسو ﷺ په واسطه مؤمانو ته ورکړې دې هغه په ډيرو درجو ددنيوى ژوند د څو ورځنى رونق څخه زيات غوره دې .

په دنيا کښې دکافرانو او بدکارو خلقو عيش ، عشرت ، مال دولت ، رعب او مرتبه هميشه د هر چا دپاره دا سوال جوړ شوې دې چې هر کله داخلق د الله ﷻ په نزد خراب ، ذليله ناخوښه دى نو دا نعمتونه ورته ولې ورکړې شوى دى ، او حکم منونکي مؤمنان ، بندگان په خوارى غريبى کښې ولې راگير دى ؟ تر دې پورې چې فاروق أعظم ﷛ پشان د لوړې مرتبې برزگ ته هم داسوال راپورته شو کله چې هغوئ ﷛ د رسول کريم ﷺ خاص حجرې مبارکې ته ورغلل چرته چې نبى کريم ﷺ خلوت نشين وو او هلته يې دا اوليدل چې د غبو تيلو پوزکى باندې نبى کريم ﷺ ملاست وو او دهغې نخښې او چاپونه يې په بدن مبارك باندې جوړ شوى وو نو بې اختياره په ژړا شو او عرض يې اوکړو چې يارسول الله ﷺ ! دا قيصر او کسرى او ددوئ اميران په څومره څومره نعمتونو او راحتونو کښې پراته دى ، او تاسو ﷺ په ټول مخلوق کښې د الله ﷻ منتخب شوى رسول يې او محبوب يې ، او ستاسو د ژوند تيريدون دا حال دې؟

رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې ايې ابن خطاب ﷛ ! آيا ته تر اوسه پورې شك شبه لرې ، داخلق خو هغه دى چې ددووئ د خوښې او خوندور څيزونه الله ﷻ په دنيا کښې ورکړى دى ، چې ددوئ هيڅ حصه نشته هلته به ورته سراسر عذاب وى ،(١) او د مؤمنانو معامله ددې په برعکس ده ، هم دغه وجه ده چې رسول کريم ﷺ به ددنيا د زينت او آرام تلاش نه کولو او بې تکلفه ژوند به يې خوښولو ، سره ددې چې خپل ځان دپاره يې د زيات ښکلى سامان د آرام او خوند برابر وس لرلو ، خو بيا هم کله چې به يې بې محنته ددنيا سامان تر لاسه شو نو زر تر زره به يې د الله ﷻ په لار کښې په غريبانانو او فقيرانو باندې خرچ کولو ، تر دې چې خپل ځان دپاره به يې ترې هيڅ هم نه پريښودل ، د ابن ابى حاتم په روايت د ابوسعيد خدرى ﷛ څخه نقل شوى دى چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل :

---

(١) صحيح البخاري كتاب النكاح ،باب موعظة الرجل إلخ(بإختصار) [ج:١ص:٧٨٢]

[ان اخوف ما اخاف عليكم ما يفتح الله لكم من زهرة الدنيا] ([1]) په تاسو باندې چې د كوم څيزونو نه زه د ټولو څخه زيات ويريږم هغه دولت او زينت د دنيا دې چې په تاسو به پرانستې شي.

دې حديث پاك كښې نبي اكرم ﷺ خپل امت ته د ړومبې نه دا خبر هم وركړې دې چې كله به تاسو په دنيا كښې فتح حاصلوئ ، او مال او دولت د عيش عشرت سامان در سره ډير شي ، هغه زيات خوشحالوونكې صورت حال نه دې بلكه د ويريدو څيز څكه دې چې په هغې كښې اخته كيدو سره به د الله ﷻ د يادولو او د هغه د احكامو نه غافله شئ .

**خپل بال بچ او متعلقين ته د مونځ د پابندئ تاكيدې او د دې حكمت:** ﴿وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَوٰةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا﴾ [ خپل اهل ته هم د مونځ حكم كوئ او پخپله هم پرې كلك اوسيږئ] دا په ظاهره دوه بيل بيل حكمونه دى ، يو خپل بال بچ ته د مونځ كولو تاكيد او دويم پخپله د دې پابندى كول ، ليكن كه غور اوكړو نو پخپله د خپل مونځ پوره پابندئ د پاره هم دا ضرورى دى چې ستاسو چاپيرچل ستاسو بال بچ او متعلقين د مونځ پابند وى څكه چې هر كله چاپيرچل د دې خلاف وى نو په طبعى ډول انسان پخپله هم د كوتاهئ ښكار كيږى .

په لفظ د اهل كښې بى بى اولاد او متعلقين ټول داخل دى ، د كوم نه چې د انسان چاپيريال او ماحول او معاشره جوړيږى ، كله چې رسول كريم ﷺ باندې دا آيت مبارك نازل شو نو نبى اكرم ﷺ به هره ورځ د سحر د مونځ په وخت د على ﷛ او فاطمه ﷞ كور ته ورتلو او هلته به ئې دا آواز كولو ﴿الصلوٰة الصلوٰة﴾ [قرطبى] .([2])

او عروه بن زبير ﷛ به چې كله د اميرانو او بادشاهانو دولت او دبدبه اوليدله نو سمدستى به خپل كور ته راغلو او د كور خلقو ته به ئې د مونځ بلنه وركوله او دا آيت مبارك به ئې ورته په لوستلو آؤرولو ، د غه شان كله به چې فاروق اعظم په شپه كښې تهجد مونځ له پاسيدل نو د خپل كور خلق به ئې هم رابيدار كړل او دا آيت مبارك ئې ورته آؤرولو .[قرطبى]([3])

**خولـ چې په مونځ او د الله تعالى په عبادت كښې لګيا شى الله تعالى ورته د روزئ معامله آسانوى:** ﴿لَا نَسْـَٔلُكَ رِزْقًا﴾ يعنى مونږ تا نه دا نه غواړو چې خپل او د خپل بال بچ روزى د خپل علم او عمل په زور پيدا كوه بلكه دا معامله مونږ پخپله ذمه لګولې ده ولې چې د روزئ حاصلول در اصل د انسان په وس كښې نه دى هغه زيات نه زيات دومره كولې شى چې زمكه پسته او د كروندې جوګه كړى او څه دانې تخم په كښې واچوى مګر د غه دانې او تخم نه بوټې راززغونول او پيدا كول د انسان كار دې ، او نه د انسان په دې كښې څه معمولى دخل شته هغه براه راست د الله ﷻ كار دې . د ونې راززغونيدو نه پس هم د انسان ټول عمل صرف د هغې حفاظت

---

[1] ) صحيح مسلم كتاب الزكوة، باب التحذير من الاغترار بزينة الدنيا إلخ [ج:۱ص:۳۳۶]

[2] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۱ص:۲٦۳]

[3] ) كنز العمال رقم الحديث:[۳۵۷۵۸] و موطا مالك رقم الحديث [۳۸۹] ، كتاب النداء للصلاة ، باب ماجاء في صلاة الليل.

کول او دهغې ګلونه ، دانو او میوؤ نه فائده حاصلول دی چې الله ﷻ په دې کښې پیدا کړی دی ، او څوک چې د الله ﷻ په عبادت کښې مشغول شی الله ﷻ دهغه د محنت دا پیتې هم هغه دپاره آسان او سپک کړی .

ترمذی او ابن ما جه د ابی هریره رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې چې نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چې : ﴿ یقول الله تعالی یاابن ادم تفرغ لعبادتی املاً صدرك غنی واسد فقرك وان لم تفعل ملات صدرك شغلا ولم اسد فقرك ﴾(۱) څوك چې د خپلو ټولو فکرونو څخه یو فکر د آخرت جوړ کړی نو الله ﷻ د هغه د دنیا د فکرونو پخپله ذمه واری اخلی ، او د چا فکر چې ددنیا په ګنړ فکرونو کښې بوښت وی نو د الله ﷻ هیڅ پرواه نشته که هغه د دې فکرونو په یو ځنګل کښې هلاك شی [ ابن کثیر ]

او عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائیلی دی چې ما نبی اکرم ﷺ نه آؤریدلی دی چې : ﴿من جعل هومه هما واحدا هم المعاد کفاه الله هم دنیاه ومن تشعبت به الهموم فی احوال الدنیا لم یبال الله فی ای اودیة هلك ﴾(۲) دا حدیث د ابن ماجه په حواله ابن کثیرنقل کړې دې.

﴿بَیِّنَةُ مَا فِی الصُّحُفِ الْاُوْلٰی﴾ یعنی پخوانی ټول آسمانی کتابونو تورات ، انجیل او د ابراهیم علیه السلام صحیفې وغیره ټول په ټوله د رسول آخر الزمان محمد ﷺ د پیغمبرئ ګواهی ورکوئنکی راغلی دی آیا دغه ، بینات دغې منکرانو لره د کافی نه هم زیات ثبوت نه دې ؟

﴿فَسَتَعْلَمُوْنَ مَنْ اَصْحٰبُ الصِّرَاطِ السَّوِیِّ وَمَنِ اهْتَدٰی﴾ یعنی نن خو الله ﷻ هر چاته ژبه ورکړې ده ، هر څوك د خپل عمل او خپلې طریقې د زیات غور والی او صحیحوالی د عوی کولې شی خو دا دعوی هیڅ پکار نه رازی زیاته غوره او صحیح طریقه هم هغه کیدېشی چې د الله ﷻ په نزد مقبوله او صحیح وی او د هغې پته به د قیامت په ورځ ټولو ته اولګی چې څوك په غلطه او په ګمراهئ وو او څوك په صحیح او سمې لارې باندې وو.

اللهم اهدنا لما اختلف فیه الی الحق باذنك

ولاحول ولا قوة الا بك ولا ملجا ولا منجا منك الا الیك

..................

الحمد لله الذی وفقنی لتکمیل سورة طٰهٰ ضحیٰ

یوم الخمیس لاربعة عشر خلت من ذالحجة الحرام سنة ۱۳۹۰ هجری

والله سبحانه وتعالی اسال التکمیل باقی القرآن والله المستعان وعلیه التکلان

..................

۱) سنن ابن ماجة، ابواب الزهد، باب الهم بالدنیا [ ص:۳۰۲ ] و جامع الترمذي ، ابواب صفة القیامة باب [ج:۲ ص:۷۳] وتفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص:۳۲۸]

۲) سنن ابن ماجة، ابواب الزهد، باب الهم بالدنیا [ ص:۳۰۲ ] و تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص:۳۲۸].

| آیاتونه | | سورة الانبياء مكية وهي مائة واثنا عشرة اية وسبع ركوعات | | ركوع گڼاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۱۱۲ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ۷ |

اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِيْ غَفْلَةٍ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۱﴾

نژدې شو | خلقو ته | [وخت د] حساب ددوئ | او دوئ | په غفلت كښې | مخ اړونكې دي |

خلقو ته ددوئ [دعملونود] حساب [وخت] رانژدې شو | او دوئ په غفلت كښې مخ اړولې پراته دي

مَا يَأْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنْ رَّبِّهِمْ مُّحْدَثٍ اِلَّا اسْتَمَعُوْهُ

نه راځي دوئ ته | يو نصيحت | دطرفه درب ددوئ نه | نوې [تازه] | مگر | اوري دوئ هغه |

دوئ ته چې ددوئ درب د طرفه كوم يو نوې نصيحت هم راشي نو دوئ ئې واوري خوداسې لكه

وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ ﴿۲﴾ لَاهِيَةً قُلُوْبُهُمْ ۗ وَاَسَرُّوا النَّجْوَى ۗ الَّذِيْنَ

حال دا چې دوئ | لوبې كوي | بې پروا دي | زړونه ددوئ | او پټې كوي | دغوږ خبرې | هغه كسان

چې دوئ په لوبو كښې مشغوله وي | ددوئ زړونه غافله دي | او دې ظالمانو پټې پټې مشورې اوكړې

ظَلَمُوْا ۗ هَلْ هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۚ اَفَتَأْتُوْنَ

چې ظلم ئې كړې دې | نه دې دا سړې | مگر | يو انسان دې | په شان ستاسو | آيا نو راځئ تاسو |

چې دې خو بس هم ستاسو په شان يو سړې دې | نو آيا تاسود جادو په خبرو پسې روان ئې

السِّحْرَ وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ ﴿۳﴾ قٰلَ رَبِّيْ يَعْلَمُ

جادوته | حال داچې تاسو | بنۀ گورئ [چې جادو دې ] | اووئيل رسول | رب زما | علم لري |

حال دا چې تاسو ئې په سترگو وينئ گورئ | .......... پيغمبر اووئيل چې زما رب داسمان اوزمكې

الْقَوْلَ فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ۫ وَهُوَ السَّمِيْعُ

په هغه خبره | چې اوشي په آسمان كښې | او په زمكه كښې | او هغه | هر څه اوريدونكې دې |

په هره خبره باندې عالم دې | .......... او هغه هر څه اوريدونكې

الْعَلِيْمُ ﴿۴﴾ بَلْ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍۭ بَلِ افْتَرٰىهُ

او په هر څه پوهه دې | بلكه | وائي دوئ | [دا قران] گډوډ خوبونو دی | بلكه | دۀ دخانه جوړ كړې دې

په هر څه عالم دې | بلكه دوئ خو وائي چې دا [قران ] بعضې گډوډ خوبونه دی | بلكه [پيغمبر] دخانه

بَلْ هُوَ شَاعِرٌ ۚۖ فَلْيَأْتِنَا بِاٰيَةٍ كَمَآ اُرْسِلَ

بلكه دې | شاعر دې | پس رادوړې دې مونږ ته | څه نښه | لكه څنگه چې | راليږلې شوى وو |

جوړ كړې دې | بلكه دې شاعر دې | نو ده دپاره پكار دی چې داسې نښه مونږ ته راوړی | لكه څنگه چې

الْاَوَّلُوْنَ ﴿۵﴾ مَآ اٰمَنَتْ قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْيَةٍ

اولنی [پيغمبران دنښو سره ] | نه وو راوړې ايمان | مخكښې ددوئ نه | هيڅ يو كلي |

پخوانو پيغمبرانو راوړې وې | ددوئ نه وړاندې چه كوم خلق مونږ هلاک كړی وو هغوی خو هم

أَهْلَكْنٰهَا ۚ　أَفَهُمْ　يُؤْمِنُوْنَ ⑥　وَمَآ أَرْسَلْنَا

چې هلاك كړو مونږ هغه كلي | آيا نو دوئ [به كنى] | ايمان راوړي | اونه وو ليږلي مونږه |

ايمان نه وو راوړي | ........نو آيا دا خلق بۀ ايمان راوړي څۀ؟ | او ستا نه وړاندې مونږ هم سړي

قَبْلَكَ　إِلَّا　رِجَالًا　نُّوْحِيْٓ　إِلَيْهِمْ　فَاسْـَٔلُوْٓا

مخكښې ستا نه | مګر | انسانان | چې مونږ به وحى كوله | هغوئ ته | پس تپوس اوكړئ |

پيغمبران جوړكړى ليږلي وو | چا ته چې مونږ وحى ليږله وه | كه چرې تاسو په دې خبره

أَهْلَ الذِّكْرِ　إِنْ كُنْتُمْ　لَا تَعْلَمُوْنَ ⑦　وَمَا جَعَلْنٰهُمْ　جَسَدًا

داهل كتابونه | كه يئ تاسو | چى نۀ پوهيږئ | اونۀ وو جوړ كړي مونږ هغوئ لره | داسې بدن

نه پوهيږئ | نو دعلم د خاوندانو تپوس اوكړئ | او مونږ ددې پيغمبرانو داسې بدنونه نه دى جوړ كړي

لَا يَأْكُلُوْنَ　الطَّعَامَ　وَمَا كَانُوْا　خٰلِدِيْنَ ⑧　ثُمَّ　صَدَقْنٰهُمُ

چې نۀ به ئې خوړو | خوراك | اونۀ وو هغوئ | هميشه ژوندى | بيا | رښتيا كړه مونږه دهغوئ سره

چې ګنې خوراكونه دې نه كوى | اونه هغوى هميشه دپاره ژوندى پاتې شوى دى | بيا مونږ هغوى سره

الْوَعْدَ　فَأَنْجَيْنٰهُمْ　وَمَنْ　نَّشَآءُ　وَأَهْلَكْنَا

وعده | نو بچ كړل مونږه هغوئ | او هغه څوك | چې غوښتلو مونږه نجات دهغوئ | او هلاك كړل مونږه

خپله وعده رښتيا كړه | نو هغوئ ته او نورو هغه چا ته چه مونږ غوښتله نجات وركړو | او دحد نه

الْمُسْرِفِيْنَ ⑨　لَقَدْ أَنْزَلْنَآ　إِلَيْكُمْ　كِتٰبًا　فِيْهِ

دحد نه اوړيدونكى خلق | نازل كړې دې مونږ | تاسو ته | يو كتاب | چې په هغې كښې

تيريدونكى مو هلاك كړل | [خلقو] مونږ په تاسو يو كتاب [قران پاك] نازل كړې دې | په كوم كښې چې

ذِكْرُكُمْ ۗ　أَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ⑩

ذكر ستاسو دې | آيا نۀ پوهيږې تاسو |

ستاسو دپاره نصيحت دې | نو آيا تاسو پوهيږئ نه؟ | چه نصيحت قبول كړئ!

## آسان ترجمه قرآن

دخلقو دپاره دهغوى دحساب وخت نژدې راغلې دې، او هغوى دى چه دغفلت په حالت كښې ئې اعراض كړې دې چه كله هم دهغوى د رب د طرف نه د نصيحت څه نوې خبره هغوى ته راشى نو هغوى دهغې نه مسخره جوړولو سره داسې حالت كښې اورى. چه دهغوى زړونه په فضولياتو كښې ښتو څې. او دا ظالمان خلق په پټه پټه (د يو بل سره) پټې خبرې كوى چه: دا سړې (يعنى محمد (ص)) ستاسو په شان يو انسان نه دې نور څه دې؟ آيا بيا به هم تاسو سره د پوهې د جادو خبره اورئ؟ پيغمبر (جواب كښې) اووئيل چه: په آسمان او زمكه كښې چه څه وئيلې شى، زما رب په هغه ټولو باندې عالم دې او هغه هره خبره اورى، او د هرڅه نه باخبر دې صرف دا نه بلكه هغه خلقو دا هم اووئيل چه: دا (قرآن) د بې جوړه خوبونو مجموعه

ده. بلکه دا دې صاحب خپله جوړ کړې دې، بلکه دا يو شاعر دې، دې دِ هم زمونږ مخې ته يو نخښه راوړي څنګه چه مخکښ پيغمبران (د نخښو سره) ليږلې شوې ووا حال دا چه د هغوی نه مخکښ چه کوم کلي هم مونږ هلاک کړې دې، هغوی ايمان نه وو راوړې، اوس به آيا دا خلق ايمان راوړي؟ او (اې پيغمبره!) مونږ ستا نه مخکښ بل څوک نه، هم سړی پيغمبران جوړولو سره ليږلې دی په چا باندې چه به مونږ وحی نازلوله لهٰذا (کافرانو ته اووايه چه) که تاسوته خپله علم نشته نود نصيحت دعلم لرونکوله تپوس اوکړه او مونږ دا (رسولان) داسې بدنوله نه وو پيدا کړې چه هغوی دې خوراک نه کوی، او نه داسې وو چه هميشه به ژوندی وې. بيا مونږ چه هغوی سره کومه وعده کړې وه، هغه مو رشتيا کړه او هغوی مو هم بچ کړل. او (د هغوی نه علاوه) څوک چه مونږ غوښتل هغوی هم او کوم خلق چه د حد نه تير شوې وو، هغوی مو هلاک کړل. (اوس) مونږ تاسو ته يو داسې کتاب نازل کړې دې چه په هغې کښ ستاسو دپاره نصيحت دې آيا بيا هم تاسو نه پوهيږئ؟

## خلاصه تفسير

﴿اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ﴾ [دغو] منکرانو [خلقو ته ددوی] د [حساب] وخت [نژدې راورسيدو] يعنی قيامت وخت په وخت رانژدې کيږی ﴿وَهُمْ فِيْ غَفْلَةٍ﴾ اودوی ] تراوسه [په غفلت کښې ] پراته [دی] او په دۀ ديقين کولو او ددۀ دپاره دتياری کولو نه ﴿مُّعْرِضُوْنَ﴾ [دِدِه کوونکی دی ﴿مَا يَأْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنْ رَّبِّهِمْ مُّحْدَثٍ﴾ [ اوددوی غفلت دوومره زيات شوې دې چه دوی ته درب دطرف نه چه کوم تازه نصيحت ] ددوی دحال موافق [راځی ] په ځای ددې چه دوی پرې پوه شی ﴿اِلَّا اسْتَمَعُوْهُ﴾ [ دوی هغه لره په داسې طورسره اوزی چه] ﴿وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ﴾ وريورې [خنداګانې کوی] او ﴿لَاهِيَةً قُلُوْبُهُمْ﴾ [ددوی زړونه ] هرګزهغې ته [نه متوجه کيږی ﴿وَاَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا﴾ او دا خلق يعنی ظالمان او کافران [خلق ] په خپل مينځ کښې [پټې پټې مشورې کوی ] په دې وجه نه چه مسلمانانونه دوی ته خطره وه ځکه چه په مکه کښې کفار کمزوری نه وو بلکه ددې دپاره چه داسلام خلاف پټ سازش وکړی او ختم ئ کړی [چه دا] ﴿هَلْ هٰذَا اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾ يعنی محمد ﷺ [محض ستاسو په شان يو ] معمولی [سړی دې ] يعنی نبی نه دې او دا کوم زړۀ راښکونکې کلام چه اوزوی په دې داعجاز شبهه او په دې اعجازسره دنبوت خيال مه کوئ ځکه چه دغه په حقيقت کښې سحرآميز کلام دې [نو ايا] سره ددې خبرې ﴿اَفَتَاْتُوْنَ السِّحْرَ﴾ [بياهم تاسو دجادو خبرې د اوزيدو دپاره] ددۀ خواته [ځئ ؟حال دا دې ﴿وَاَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ﴾ چه تاسو] داخبره ښه [پيژنئ ] پرې پوهيږئ [پيغمبر] ﷺ ته دجواب ورکولو حکم وشو او دوی ﷺ موافق دحکم په جواب کښې ﴿قٰلَ رَبِّيْ يَعْلَمُ الْقَوْلَ فِي السَّمَآءِ﴾ [اوفرمائيل چه زما رب هرې خبرې لره] خواه [په اسمان کښې وی اوکه ] خواه ﴿وَالْاَرْضِ﴾ [په زمکې کښې ] وی اوکه خواه ظاهر وی او که پټ ښه [پيژنی ﴿وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ﴾ او هغه ښه اوزيدونکې او ښه پوهيدونکې [دې ] پس ستاسو دکفر دې خبرو لره هم پيژنی او تاسو له به ښه سزا درکړی او دوی حق کلام ته صرف په جادو وئيلو باند صبر ونه کړو ﴿بَلْ قَالُوْٓا﴾ [بلکه داسې ئ] هم [ووئيل چه دا] قرآن ﴿اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ﴾ [ پريشانه خيالات دی ] چه په واقع کښې زړۀ راښکونکی هم نه دی ﴿بَلِ افْتَرٰىهُ﴾ [بلکه] ددې نه زياته داده چه [دوی] يعنی پيغمبر ﷺ [دې لره] په قصد او اختيارسره په

خپل زړه کښې [جوړ کړی] د خوب په خیالاتو کښې خو انسان څه اندازه بې اختیاره او معذور او په اشتباه کښې اخته کیدې هم شي او دا دځانه جوړول څه دقرآن سره مخصوص نه دی ﴿بَلْ هُوَ شَاعِرٌ﴾ [بلکه دې خو یو شاعر سړې دې ] دده ټولې خبرې هم دغسې خیالي او دځانه جوړې شوې دی لنډه داچه رسول نه دې اولوئ مدعي درسالت دې ﴿فَلْيَأْتِنَا بِآيَةٍ﴾ [نو دهٔ له پکار دی چه داسې څه] لویه[ نښه راوړی ﴿كَمَا أُرْسِلَ الْأَوَّلُونَ﴾ لکه وړاندې رسولانو چه راوړې دی] او لوئ لوئ معجزې ئې ښکاره کړې دی نو دغه وخت به مونږ دې رسول ومنو او ایمان به راوړو او دا وینا هم ددوی یوه بهانه وه ګنی دوی خو تیر پیغمبران ﷺ هم نه منل الله تعالی په جواب کښې فرمائي چه ﴿مَا آمَنَتْ قَبْلَهُمْ مِنْ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا﴾ [ددوی نه وړاندې دڅه کلي خلقو لره چه مونږ هلاك کړې دی ] سره ددې چه ددوی فرمائشي معجزې ظاهرې هم شوې خو دوی [ ایمان رانه وړو ﴿أَفَهُمْ يُؤْمِنُونَ﴾ پس ایا داخلق به ] ددې معجزو په ظاهریدو [ایمان راوړې ] او په داسې حالت کښې به په ایمان نه راوړو عذاب نازل شي په دې وجه مونږ دغه معجزې نه ظاهر وو او دقرآن معجزه کافي ده [ او ] درسالت متعلق چه کومه ددوی داشبهه ده چې رسول بشر نه دې پکار دهغې جواب دادې چه ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ إِلَّا رِجَالًا نُوحِي إِلَيْهِمْ﴾ [مونږ تانه وړاندې صرف سړو لره پیغمبران جوړ کړې دی کومو ته چه به مونږ وحی لیږله پس ] اے منکرانو ﴿فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾ [ که تاسو ته ] داخبره [معلومه نه وی نو داهل کتابو نه تپوس وکړئ ] خکه چه داخلق اګر چه کافران دی مګر په خبر متواتر کښې د راوی مسلمان والې او ثقه والې شرط نه دې بیا تاسو خو دوی لره خپل دوستان ګڼړئ نو په ستاسو نزد ددوی په خبره اعتبار پکار دې [ او] دغه شان درسالت متعلق کوم چه ددې شبهې دویم تقریر دې چه رسول فرښته پکارده دهغې جواب دا دې چه ﴿وَمَا جَعَلْنَاهُمْ جَسَدًا﴾ [مونږ ددې رسولانو ] کوم چه تیر شوی دی [داسې بدن نه وو جوړ کړې ﴿لَا يَأْكُلُونَ الطَّعَامَ﴾ چه خوراك به ئې نه خوړلو] یعنی فرښتې نه وی [او] داخلق کوم چه ستا دوفات په انتظار کښې خوشحالئ کوی لکه چه دقول دا الله تعالی دې [نَتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ](۱) لکه چه داسې په معالم کښې دی دا وفات هم دنبوت نه منافي نه دې خکه چه [دغه] تیرشوی [حضرات] هم په دنیا کښې ﴿وَمَا كَانُوا خَالِدِينَ﴾ [همیشه پاتې کیدونکی شوی نه دی ] پس که ته هم وفات شې نو ستا په نبوت به څه اعتراض لازم شي غرض دا چه لکه څنګه وړاندې رسولان وو داسې ته هم ئې او داخلق لکه چه څنګه تا دروغژن کوی دغه شان ددغو حضراتو هم دهغې زمانې کافرانو دروغژن والې کړې دې ﴿ثُمَّ صَدَقْنَاهُمُ الْوَعْدَ﴾ [ بیا مونږ چه کومه ددوی سره وعده کړې وه ] چه دروغژن کوونکی به په عذاب سره هلاك کړواو تاسو او مومنان به محفوظ پریږدو مونږ [دغې ] وعدې [ لره رښتونې کړه ﴿فَأَنْجَيْنَاهُمْ وَمَنْ نَشَاءُ﴾ [یعنی دوی لره اوکومو کومو لره] نجات ورکول چه [ منظور وو] هغوی لره دعذاب نه [مونږ نجات ورکړو ﴿وَأَهْلَكْنَا الْمُسْرِفِينَ﴾ او] په دې عذاب سره [ دحد ] اطاعت [ نه تیریدونکو لره هلاك کړل ] پس دې خلقو له ویریدل پکاردی اے منکرانو ددې دروغژن کولو نه پس په تاسو که په دنیا او اخرت کښې عذاب راشي نو تعجب نه دې خکه چه ﴿لَقَدْ أَنْزَلْنَا إِلَيْكُمْ كِتَابًا﴾ [مونږ تاسو ته داسې کتاب رالیږلې دې ﴿فِيهِ ذِكْرُكُمْ﴾ چه په دې کښې ستاسو ] کافي [ نصیحت موجود دې

(۱) ترجمه:- مونږ ددوئ باره کښې د مرګ د حادثې په انتظار کښې یو.

ايا] سره ددې تبليغ او وعظ نصيحت ﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾[ بياهم تاسو نه پوهيږئ ] او نه منئ.

## معارف او مسائل

**دسورة انبياء څوره والي** :*: عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمائيلي دي چې سورة كهف ، مريم ، طه او انبياء دا څلور واړه سورتونه هغه دي چې په ابتداء كښې نازل شوي دي اودا زما پخواني دولت او پخوانئ ګټه دی چې هميشه دپاره ئې حفاظت كوم . [قرطبي] .[1]

[اقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ] [ هغه وخت نزدې راغلو چې په كښې به خلقو سره د هغوئ د عملونو حساب كيږي] مراد ترې قيامت دې او ددې نزدې راتلل د آخرې زمانې په لحاظ سره دی ولې چې دا امت په ټولو كښې آخرى دې كه عام حساب ترې مراد واخستې شي نو د قبر حساب هم په دې كښې شامل دې چې هر څوك به ئې د مرګ نه پس وركوى او هم دغه وجه ده چې د هر انسان مرګ ته دهغه خانى قيامت وئيلې شوى دې . [من مات فقد قامت قيامته] [څوك چې مړ شو نو دهغه قيامت خو هم دغه وخت قائم شو][2] ددې معنى په لحاظ سره د حساب د وخت نزدې راتلل خو بالكل په ښكاره څكه دى چې د هر عمر د انسان مرګ راتلل څه لرې خبره نه ده . ولې چې د عمر انتها معلومه نه ده او هره ورځ ، هر ساعت د مرګ ويره مخې ته وى.

ددې آيت مبارك څخه مقصود بې پروا خلقو ته خبردارى وركول دى چې مؤمنان اوكافران ټول په كښې داخل دى چې ددنيا په خواهشاتو كښې په اخته كيدو سره ددې حساب ورځ هيره نكړى ولې چې ددې هيرول د ټولو خرابيانو اوګناهو نو جرړه ده .

[مَا يَأْتِيهِم مِّن ذِكْرٍ مِّن رَّبِّهِم مُّحْدَثٍ إِلَّا اسْتَمَعُوهُ وَهُمْ يَلْعَبُونَ ۝ لَاهِيَةً قُلُوبُهُمْ] يعنى كوم خلق چې د آخرت او قبر د عذاب څخه بې پرواه دى ، او ددې دپاره د تيارئ كولو څخه مخه اړوى ، دادهغوئ د حال بيان دې چې كله دهغوئ په وړاندې د قرآن عظيم الشان څه نوې آيت راشى او دوئ ته لوستلې شي نو هغوئ ئې د لوبو او ټوقو په شان كښې آورى . او زړونه ئې د الله ﷻ او دآخرت څخه بالكل غافله وى . ددې مطلب دا هم كيدې شى چې د قرآنى آيتونو د آوريدو په وخت داسې خلق پخپلو لوبو او ټوقو كښې داشان لګيا وى چې قرآن عظيم الشان طرفته هيڅ خيال نه كوى ، اودا مطلب ئې هم كيدې شى چې پخپله د قرآنى آيتونو څخه لوبې جوړوى .

[أَفَتَأْتُونَ السِّحْرَ وَأَنتُمْ تُبْصِرُونَ ۝] يعنى دا خلق پخپل مينځ كښې پټې پټې خبرو كولو سره دا وائى چې دا كس چې خپل ځان ته نبى او رسول وائى ، دا خو زمونږ پشان انسان دې ، فرښته نه دې چې مونږ ئې خبره اومنو ، او بيا دا كلام الهى به چې د دوئ په مخكښې لوستلې شو ، دهغې د خوږوالى او په زړونو كښې د تاثير كولو څخه خو هيڅ كافر هم انكار نشو كولې هغې څخه ئې د خلقو د مخې اړولو دپاره دا صورت راؤښكلو چې سحر او جادو ئې اوبللو . او د اسلام څخه د ايسارولو دپاره به ئې خلقو ته دا وئيل چې هر كله پوهه شوئ چې دا كلام جادو دې نو بيا پيغمبر ته ورتلل او دغه كلام ئې آوريدل د هوښيارتيا څخه خلاف دى ، دا خبرې په پټه كول دا مطلب هم لرى چې مسلمانان به ددې په آوريدو باندې د دوئ د شوده توب او كم عقل توب جال سيرى كړى .

---

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۱ص:۲۶۶]
[2] ) كنز العمال رقم الحديث:[۴۲۷۴۸] والمقاصد الحسنة [ج:۱ ص:۴۲۴] حرف الميم.

[بَلْ قَالُوٓا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍ] اضغاث او احلام هغه خوبونو ته وئیلې شي چې په کښې څه نفساني یا شیطاني خیالونه شامليږي . څکه ددې ترجمه پریشانه خیالاتو سره اوکړې شوه. یعنې دې منکرانو خو اول دې قرآن پاك ته جادو اووئيل ، بیا چې کله لږ وراندې شو نو وې وئیل چې دا پرشانه خوبونه دی ، بیا ددې څخه وروستو یې اووئیل چې دا په الله تعالی باندې افتراء او بهتان دې چې دې ته دالله تعالی کلام وئيلې کيږي ، بیا یې اووئيل چې دا يو شاعر دې ، دده په کلام کښې شاعرانه خیالات دی .

[فَلْيَاْتِنَا بِاٰيَةٍ] یعنی که واقعي نبی او رسول وی نو زمونږ فرمائشی خاص معجزې دې راته څر ګندې کړی ، ددې په جواب کښې الله ﷻ فرمائی چې په پخوانو امتونو کښې ددې مشاهده اوشوه او دا تجربه اوشوه چې هر کله هغوئ ته خپله فرمائشی معجزه ښکاره کړې شوه او بیا ئې هم ایمان راؤنړو نو الله ﷻ د خپل قانون مطابق په هغوئ عذاب راوستو او بالکل نیست اونابود ئې کړل ، خو هر کله چې الله ﷻ د رسول کريم ﷺ په خاطر دا امت ددنیا دعام عذاب څخه محفوظ کړې دې څکه ورته فرمائشي معجزې ښکاره کول دښیګړې کار نه دې .

وریسې [اَفَهُمْ يُؤْمِنُوْنَ] کښې دې طرفته اشاره ده چې آیا په فرمائشی معجزو لیدلو سره بهٔ دوئ ایمان راوړی څه؟ ددې مطلب دادې چې هر کله د دوئ د ایمان راوړو امید نشي کیدې څکه ورته فرمائشي معجزې نشي ښکاره کولې .

[فَسْئَلُوٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ] دلته د [اَهْلَ الذِّكْرِ] څخه مراد د تورات او انجيل هغه عالمان دی چې په رسول کریم ﷺ باندې ئې ایمان راوړې وو ، مطلب دادې که تاسو ته پخپله د پخوانو پیغمبرانو حال معلومه نه وی چې هغوئ انسانان وو که فرښتې ؟نو د تورات اوانجیل د عالمانو نه معلومه کړئ ، ولې چې هغوئ ټول پوهيږی چې پخوانی پیغمبران هم انسانان وو ، په دې بنا که د [اَهْلَ الذِّكْرِ] څخه مراد مطلق اهل کتاب ، یهود او نصاری وی نو لرې خبره نه ده ولې چې په دې باندې دغه ټول ګواهان دی، د تفسیر په خلاصه کښې دا احتمال اختیار کړې شو او تشریح اوکړې شوه.

**مسئله**: تفسير قرطبی کښې راغلی دی چې دې آیت مبارك څخه معلومه شوه چې يو بې علمه بندد ته د شریعت احکام معلومه نه وی هغه دپاره دعالم تقلید کول واجب دی ، یعنی هغه دپاه دا واجب دی چې د عالم څخه په تپوس کولو سره دې دهغې مطابق عمل کوی .(۱)

**قرآن عظیم الشان عربو دپاره یو عزت او فخر دې**: [كِتٰبًا فِيْهِ ذِكْرُكُمْ] د کتاب څخه مراد قرآن عظیم الشان دې او ذکر دلته دشرف فضیلت او مشهورتیا په معنی اخستې شوې دې ، مراد دادې چې په عربی ژبه کښې دقرآن عظیم الشان نازليدل ستاسو دپاره د لوئې عزت اودهمیشه مشهورتیا څیز دې. تاسو لره پکار دی چې ددې قدر اوکړئ څنګه چې دنیا اولیدل چې عرب خلق الله ﷻ د قرآن کریم په برکت په ټولې دنیا باندې غالب راوستل ، فتح او برې موندونکی ئې جوړ کړل او په ټوله دنیا کښې ددوئ عزت اومشهورتیا اوشوه، او داهم ټولو ته معلوم شو چې ددې عزت اومشهورتیا موجب د عربو مقامی، قبائلی یا لسانی خصوصیت نه دې بلکه صرف قرآن عظیم الشان دې، که داقرآن عظیم الشان نه وې نو په د نیا کښې به چا د عربو نوم نه وو اخستې.

---

(۱) تفسیر القرطبي [ ج:۱۱ص:۲۷۲]

وَكَمْ قَصَمْنَا مِنْ قَرْيَةٍ

او څومره ډير | ريز مريز كړل موږ | دكلونه |

|نو آيا تاسو پوهيږئ نه ؟|چه نصيحت قبول كړئ| او موږ ډير كلي تباه كړل

كَانَتْ ظَالِمَةً وَّاَنْشَاْنَا بَعْدَهَا قَوْمًا اٰخَرِيْنَ﴿۱۱﴾ فَلَمَّآ

چې وو | ظالمان | او راپورته كړل موږ | روستو دهغې نه | قوم | نور | پس هر كله چې

چې دهغې خلق ظالمان وو |او دهغوئ نه پس مو يو بل قوم پيدا كړو |نو هر كله چې

اَحَسُّوْا بَاْسَنَآ اِذَا هُمْ مِّنْهَا يَرْكُضُوْنَ﴿۱۲﴾ لَا تَرْكُضُوْا

اوليدو هغوئ | عذاب زموږ | نو بيا | هغوئ | دهغې نه | تبنتيدل | مه تبنتئ

هغوئ زموږ عذاب اوليدو | نو دهغه كلي نه په تيښته شروع شول| [موږ ورته او وئيل اوس] مه تبنتئ

وَارْجِعُوْٓا اِلٰى مَآ اُتْرِفْتُمْ فِيْهِ وَمَسٰكِنِكُمْ

او واپس لاړ شئ| هغه خانې ته | چې ښه ژوند دركړې شوې وو | په هغې كښې | او كورونو خپلو ته |

او كوم نعمتونه چې تاسو ته دركړې شوي وو| هغې ته او خپلو كورونو طرفته واپس لاړشئ

لَعَلَّكُمْ تُسْـَٔلُوْنَ﴿۱۳﴾ قَالُوْا يٰوَيْلَنَآ اِنَّا كُنَّا

شايد چې ستاسو نه | تپوس اوكړې شي | اووئيل هغوئ | اے هلاكته زموږ ه | بيشكه موږ ه | وو

كيديشي چې ستاسو نه تپوس اوشي | هغوئ اووئيل چې افسوس بيشكه هم موږ

ظٰلِمِيْنَ﴿۱۴﴾ فَمَا زَالَتْ تِّلْكَ دَعْوٰىهُمْ حَتّٰى جَعَلْنٰهُمْ

ظالمان | پس هميشه وه | دغه | بلنه دهغوئ | تر دې پورې | چې كړل موږه هغوئ

ظالمان وو| نو هم دغه شان چغې ئې وهلې |تر دې چې هغوئ مو دريبلي شوي

حَصِيْدًا خٰمِدِيْنَ﴿۱۵﴾

ريبلي شوی| يخ پراته |

فصل او د مراور په شان كړل|

## آسان ترجمه قرآن

او موږ څومره كلي تباه كړل چه ظالمان وو او دهغوی نه پس موږ نور نسلونه پيدا كړل. پس كله چه هغوی زموږ عذاب محسوس كړو نو ناڅاپه دهغه ځائې نه په تيخته شو (هغوی ته اووئيلې شو:) تختئ مهٔ، او واپس شئ خپلو هغه كورونو او هم هغه دمزو سامان ته چه د هغې مزې به تاسو اخستلې كيدې شی چه تاسو نه څه تپوس اوكړې شي هغوی اووئيل : افسوس هلاكت دې موږ لره! رشتيا خبره دا ده چه موږ ظالمان وو دهغوی هم دا چغې جاری وې تر دې چه موږ هغوی ديو لوګ كړې شوی پټی، او دمړ شوی اوږ په شان كړل.

## خلاصه تفسیر

﴿وَكَمْ قَصَمْنَا مِنْ قَرْيَةٍ كَانَتْ ظَالِمَةً﴾ [ اومونږ ډیر کلي دکومو اوسیدونکي چه ظالمان] یعني کافران [وو تباه کړي دی ﴿وَأَنْشَأْنَا بَعْدَهَا قَوْمًا آخَرِينَ﴾ او دهغوی نه پس موبل قوم پیدا کړې دې ﴿فَلَمَّا أَحَسُّوا بَأْسَنَا﴾ نو کله چه دغو ظالمانو به زمونږ عذاب راتلونکې ولیدو ﴿إِذَا هُمْ مِنْهَا يَرْكُضُونَ﴾ نو ددغه کلی نه به یې تیښتنه شروع کړه ] چه دعذاب نه بچ شي الله تعالی فرمائی چه ﴿لَا تَرْكُضُوا﴾ [ تښتئ مه ﴿وَارْجِعُوا إِلَىٰ مَا أُتْرِفْتُمْ فِيهِ وَمَسَاكِنِكُمْ﴾ خپل دعیش سامان او خپلو کورونو ته واپس شئ ﴿لَعَلَّكُمْ تُسْأَلُونَ﴾ شاید چه تاسو نه څوك تپوس وکړی] چه په تاسو څه تیرشول مقصود ددې نه په طور د تعریض یعني په کنایه سره دوی په خپله احمقانه زړ ورتیا باندې پوهول دی چه په کوم سامان او مکان باند ستاسو ناز وو اوس نه هغه سامان دې اونه مکان دې اونه دڅه دوست همدرد نوم اونښه شته [ دغوخلقو] دعذاب دنازلیدو په وخت کښې ﴿قَالُوا يَا وَيْلَنَا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ﴾ [ ووئیل چه هائې زمونږ کم بختئ بیشکه مونږ ووظالمان خلق ﴿فَمَا زَالَتْ تِلْكَ دَعْوَاهُمْ﴾ ددوی دا شور فریاد ﴿حَتَّىٰ جَعَلْنَاهُمْ حَصِيدًا خَامِدِينَ﴾ تر هغې پورې وو چه مونږ دوی لره داسې] نیست ونابود [کړل لکه څنګه چه کټ شوې فصل وی یا اور سورکړې شوې وی ]

## معارف او مسائل

دې آیتونو کښې د تباه شوؤ ودانو څخه مراد ځینې مفسرینو د یمن ودانئ حضوراء او قلابه اخستی دی چرته چې الله ﷻ یو رسول ﷺ لیږلې وو چې په نوم کښې یې روایتونه مختلف دی ، ځینې روایتونو کښې د هغوئ ﷺ نوم موسی بن میشا او ځینې کښې شعیب ﷺ راغلي دې خو دا د مدین هغه شعیب ﷺ نه دې ، دغې خلقو د الله ﷻ رسول اووژلو ، الله ﷻ دوئ لره د یو کافر بادشاه بخت نصر د لاسه تباه وبرباد کړل ، بخت نصر یې په دوئ مسلط کړو ، لکه څنګه چې یې فلسطین کښې سره کشه کیدو په بنی اسرائیلو باندې بخت نصر مسلط کړې وو چې دوئ ته سزا ورکړي. خو صفا خبره داده چې قرآن پاك څه کلې نه دې ټاکلې ، دا عام دې ، په دې کښې به د یمن کلی هم شاملې وی ، والله اعلم.

وَمَا خَلَقْنَا　السَّمَاءَ　وَالْأَرْضَ　وَمَا

| اونه دې پیدا کړې مونږه | اسمان | او زمکه | او هغه |

| اومونږ اسمان اوزمکه اوڅه چې ددې په مینځ کښې دی

بَيْنَهُمَا　لَاعِبِينَ　لَوْ أَرَدْنَا　أَنْ نَتَّخِذَ　لَهْوًا

چې په منځ ددواړو کښې دی | لوبې کونکی | که اراده لرلې مونږه | چې اونیسو مونږه | لوبه

لوبه تماشه نه ده جوړه کړې | ..............که چرې لوبه تماشه مو جوړول غوښتلې

لَاتَّخَذْنَاهُ　مِنْ لَدُنَّا　إِنْ كُنَّا　فَاعِلِينَ

نو خامخا نیولې به وې مونږه هغه لوبه | دخپل طرف نه دخان سره | که وې مونږه | کونکی ددې کار

نو هم دخپل خان نه به مو جوړه کړې وې | که مونږ خامخا داسې کونکي وو

بَلْ نَقْذِفُ　بِالْحَقِّ　عَلَى الْبَاطِلِ　فَيَدْمَغُهُ　فَإِذَا　هُوَ

بلکه مونږه ګوزار ورکوو | په حق سره | په باطل باندې | نو سرماتوی دهغه [باطل] | نو بیا | هغه

بلکه مونږ خو حق د باطل دپاسه وراچوو | نو هغه دهغې سرماتوی | نوهغه [باطل] ورک شی

زَاهِقٌ ط وَلَكُمُ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُوْنَ ۝١٨ وَلَهٗ

په خاني ورك شي | او ستاسو دپاره | تباهي ده | دهغې خبرو | چې تاسو ئې بيانوئ | او هغه لره دي

.........اوتاسو چه كوم تاسو دروغ بيانوئی د هغې په وجه به هلاک شئ | ...........او په آسمانونو

مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط وَمَنْ عِنْدَهٗ

هغه مخلوق | چې په آسمانونو كښې دی | او په زمكه كښې دی | او هغه [فرښتې] | چې دهغه سره دي

اوزمكه كښې ټول هرڅه دهغه ملكيت دي | او كومې [فرښتې] چې هغه سره دي

لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَلَا يَسْتَحْسِرُوْنَ ۝١٩ يُسَبِّحُوْنَ

ځان غټ نۀ ګڼړي | دعبادت دهغه نه | او نۀ ستومانه كيږي | هغوئ تسبيح وائي

نه دهغه دعبادت نه ځان لوئي حسابوي | اونه [د هغه په عبادت] ستړي كيږي | د شپې او ورځې د

الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُوْنَ ۝٢٠ اَمِ اتَّخَذُوْٓا اٰلِهَةً مِّنَ الْاَرْضِ هُمْ

دشپې | او دورځې | سستي نۀ كوي | آيا نيولي دي دوئ | خدايان | دزمكې نه | چې هغوئ

هغه پاكي بيانوي | او سستي نه كوي | ........... آيا دې خلقو په زمكه كښې داسې څيزونه

يُنْشِرُوْنَ ۝٢١ لَوْ كَانَ فِيْهِمَآ اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ

را ژوندي كوي مړي | كه چرې وې | په دې دواړو كښې | نور خدايان | ماسوا دالله نه |

معبودان جوړ كړي دی | چې هغوی پيدا كولې شي؟ كه چرې په زمكه او آسمان كښې دالله نه سوا نور

لَفَسَدَتَا ج فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا

نو خامخا به خراب شوې وې نظام ددواړو | پس پاكي ده الله لره | چې رب دعرش دی | دهغې خبرونه

معبودان وې | نودواړه به تباه شوې وو | الله دهغه خبرو نه پاک دې كومې چې دهغه دپاره بيانوی | دعرش مالک

يَصِفُوْنَ ۝٢٢ لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْئَلُوْنَ ۝٢٣

چې دوئ ئې بيانوي | تپوس نۀ كيږي | دهغه كارونو | چې كوي ئې هغه | او ددوئ نه به تپوس كيږي

.........هغه ذات دې چې هر څه كوي نو پوښتنه ترې نه نشی كيدې | اودخلقو نه به تپوس پوښتنه كولی شی

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً ط قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ ج هٰذَا

يا نيولي دي دوئ | بې دهغه نه | نور خدايان | ورته اووايه | راوړئ | دليل خپل | دا قرآن

آيا دوئ دالله ﷻ نه سوا [ځان دپاره] نور معبودان جوړ كړی دی | ته ورته اووايه چې تاسو خپل يو دليل

ذِكْرُ مَنْ مَّعِيَ وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِيْ ط

نصيحت دې | هغه چاته | چې زما سره دی | او نصيحت دې | هغه چاته | چې مخكښې زمانه وو

خو پيش كړئ | دا دهغه خلقو ذكر دې چې ماسره دی | اودهغوئ ذكر دې كوم چې زما نه وړاندې وو

بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ لا الْحَقَّ فَهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ۝٢٤

بلكه زيات خلق | ددوئ نه | نۀ پوهيږي | په حق باندې | نو هغوئ | مخ اړونكي دی [دقرآن نه]

خو په دوئ كښې زيات خلق په حقه خبره نه پوهيږی | نو [ځكه] دهغې نه مخ اړوی.

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ

اونه دي لیږلي مونږه | مخکښې ستا نه | یو رسول | مگر | مونږه وحی کړي ده | هغه ته

اومونږ ستا نه وړاندې داسې هیڅ یو پیغمبر نه دې لیږلي|مگر هغه ته مو دا وحی کړې وی

اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ ﴿٢٥﴾ وَقَالُوا اتَّخَذَ

چې بیشکه | نشته لائق دعبادت | مگر زهٔ یم | نو خاص زما عبادت کوئ |او وائی دوئ| نیولي دي

چې زما نه سوا بل معبود نشته |نو صرف هم زما عبادت کوئی| اودوئ وائی چې رحمن [الله ﷻ]

الرَّحْمٰنُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ط بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُوْنَ ﴿٢٦﴾ لا

رحمان | اولاد [فرښتو لره] | پاک دې هغه [ددې نه] | بلکه | هغوئ خو بندگان دی |چې عزت ورکړې شوې دي

اولاد نیولي دي |حال دا چې هغه ددې نه پاک دې |بلکه [فرښتې خو] دهغه ډیر معزز مخلوق دي

لَا يَسْبِقُوْنَهٗ بِالْقَوْلِ وَهُمْ بِاَمْرِهٖ يَعْمَلُوْنَ ﴿٢٧﴾ يَعْلَمُ

نهٔ رومبني کیږي دهغه نه | په خبره سره | او هغوئ | په حکم دهغه | عمل کوی | معلوم دی هغه ته

دهغه نه وړاندې خبره قدر نه کوی |اود هغه په حکم پوره پوره عمل کوی | هغه ته هر هغه څه معلوم دي

مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يَشْفَعُوْنَ لا

هغه څه | چې وړاند ددوئ دی | او هغه څه | چې روستو ددوئ دی | او نهٔ هغوئ سفارش کوی [دچا]

کوم چه د دوی نه وړاندې دی |اوکوم چې ترې شاته دی | او هغوئ دچا سفارش هم نه کوی

اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى وَهُمْ مِّنْ خَشْيَتِهٖ مُشْفِقُوْنَ ﴿٢٨﴾

مگر کوی | دپاره دهغه چا | چې راضي وی ترې الله | او هغوئ | دهیبت دهغه نه | ډیرې یریدونکی دی

سوا د هغه چا نه دچا چې الله ﷻ راضی وی| او هغوئ تل دالله ﷻ دهیبت نه همیشه یریدونکی وی

وَمَنْ يَّقُلْ مِنْهُمْ اِنِّيْٓ اِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهٖ فَذٰلِكَ

اوهغه څوک چې اووائی |دهغوئ نه |چې بیشکه زهٔ |معبود یم |سوا دهغه نه |نو دغه ویونکي چې دې

اوپه دوئ کښې چې څوک داسې اووائی چې دهغه نه سوا زه معبود یم | نو هغه له مو مونږ

نَجْزِيْهِ جَهَنَّمَ ط كَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ﴿٢٩﴾ ع

بدله به ورکوؤ مونږ هغه له | دوزخ | دارنگې | بدله ورکوؤ مونږه | ظالمانو له

ددوزخ سزا ورکووا| مونږ ظالمانو ته هم دغه شان سزا ورکووا|

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ آسمان، زمکه، اوڅه چه دهغې ترمینځه دی، ددې دپاره نه دی پیدا کړی چه مونږڅه لوبې کول غواړو که مونږڅه لوبې کولې نوخپله به مو دخپل طرف نه جوړکړې وې، که مونږ داسې کول بلکه مونږخو په حق باندې باطل اولو کوم چه د هغه سر ماتوی، او هغه ناڅاپه ختم شی او کومې خبرې چه تاسو جوړوئ، د هغې د وجې نه ستاسو دپاره هلاکت دې او په آسمانونو او زمکه کښې چه کوم خلق هم دی، د الله پاک دی، اوکوم (ملائک) چه الله پاک سره دی، هغوی نه د هغه د عبادت نه سرکشی کوی، نه

ستړي کيږي. هغوی شپه ورځ د هغه تسبيح کوي، او سستي نه کوي آيا دې خلقوپه زمکه کښې داسې خدايان نيولي دی چه نوي ژوندي ورکوي؟ که په زمکه او آسمان کښې د الله پاک نه سوا نور خدايان وې نو دواړه به تباه شوي وې لهٰذا دعرش مالک د هغه خبرو نه بالکل پاک دې کومې چه دا خلق جوړوي. هغه چه څه کوي، دهغې چاته هم جواب ورکونکې نه دې، اوهغوی ټول به جواب ورکوي. آيا هغه لره پريخودلو سره دوئ نور خدايان جوړ کړی دی؟ (اې پيغمبره!) دوئ ته اووايه چه : راوړئ خپل دليل! دا (قرآن) هم موجود دې چه په هغې کښې زما د ملګرو دپاره نصيحت دې، اوهغه (کتابونه) هم موجود دی چه په هغې کښې زما نه د مخکښې خلقو دپاره نصيحت وو خو حقيقت دا دې چه په دوئ کښې اکثر خلق د حق خبرې يقين نه کوي، په دې وجه اعراض کوي. او ستا نه مخکښې مونږ داسې رسول نه دې ليږلې چه هغه ته مونږ دا وحی نه وی کړې چه : زما نه سوا بل معبود نشته، لهٰذا زما بندګی کوه. دا خلق وائی چه :الله پاک د (ملائکو په شکل کښې) اولاد لری سبحان الله! بلکه (ملائک خو د الله پاک) بندګان دی چه هغوی ته عزت ورکړې شوې دې او دهغه نه وړاندې هيڅ خبره نه کوي، اوهغوی دچا سفارش هم نه شي کولې، او هم دهغه په حکم باندې عمل کوي هغه دهغوی په ټولو مخکينو روستنو خبرو باندې پوهه دې، اوهغوی دچا سفارش نه شي کولې، سوا دهغه چا نه چه دچا دپاره د الله پاک مرضی وی، او دهغه د ويرې نه بوګنيدونکې اوسي. او که په هغوی کښې څوک (بالفرض) دا اوائی چه : د الله پاک نه سوا زه معبود يم، نو هغه ته به مونږ د جهنم سزا ورکوو. داسې ظالمانو ته مونږ هم داسې سزا ورکوو.

## خلاصه تفسير

[ او] زما په يو والی زما دا جوړکړی څيزونه دلالت کوی ځکه چه ﴿وَمَا خَلَقْنَا السَّمَآءَ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ﴾ [مونږ اسمان او زمکې لره اوځه چه ددوی په مينځ کښې دی داپه [ داسې طورسره نه دی جوړ کړی چه مونږه عبث کارکونکی يو ] بلکه په دې کښې ډير حکمتونودی چه په دې کښې لوئ حکمت دتوحيد په حقوالی دلالت دې او﴿لَوْ اَرَدْنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ لَهْوًا﴾ [که چرې مونږ ته ] داسمان او زمکې په جوړولو کښې څه حکمت مقصود نه وې بلکه دا محض [يو مشغولا جوړول منظور وې ] چه څه عادتی فائده ترې مقصود نه وې محض زړۀ مشغولول منظور وې ﴿لَّاتَّخَذْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّآ﴾ [ نومونږ به خاص دخپلې خواپه څيزکښې مشغولا جوړه کړې وه ] مثلاً خپلو صفتونو دکمال لره ﴿اِنْ كُنَّا فٰعِلِيْنَ﴾ [که مونږه داسې کولې ] چه مشغولا له دمشغولا کوونکو دشان سره مناسب پکار دې نو چرته ذات دکائناتو دخالق او چرته دا جوړشوی حادث څيزونه البته صفاتو له په وجه ددې چه د ذات سره په قديم والی او لازم والی کښې مناسب دې پس هر کله چه په دليلونو دعقل او اجماع دملتونو دخاندانو ددې هم مشغولا مقررول محال دی نو حادثو څيزونو لره خو دچاپه وهم کښې هم راتلل نه دی پکار پس ثابته شوه چه مونږ عبث يعنی فضول نه دی پيدا کړی ﴿بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ﴾ [ بلکه دحق دثابتولو او دباطل دباطلولو دپاره مو پيدا کړی دی او[ مونږه ] دغې [حقې خبرې لره ] دکومې په ثبوت چه دا مصنوعات دلالت کوی [ په باطله خبره ] داسې غالب کوو لکه داسې وګڼړئ چه مونږ دغې حق لره په دې باطل [ وروليږو] ﴿فَيَدْمَغُهٗ﴾ هغه ] حق [ ددې ] باطل [مازغه وباسی ] يعنی مغلوبه يې کړی [ پس دغه ] باطل مغلوب شی ﴿فَاِذَا هُوَ زَاهِقٌ﴾ [فورا ختم شی ] يعنی دتوحيد

دليلونه كوم چه ددې جوړ شوو څيزونو نه حاصليږي دشرك بلكل نفي وكړي چه دمخالف
جانب هډو څه احتمال پاتې نه شي [ او] تاسو كوم چه سره ددې زبردستو دليلونو شرك كوئ
نو﴿وَلَكُمُ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُونَ۝﴾[ ستاسو دپاره ددې خبرې نه لويه خرابي ده كومه چه تاسو] دحق
خلاف [ جوړوئ او] دالله تعالى هغه شان دې چه ﴿وَلَهُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾[ څومره څه چه په
اسمانونو او په مزكه كښې دی ټول دهغه ] مملوك [دی او] په دوی كښې ﴿وَمَنْ عِنْدَهٗ﴾ [ كوم
چه دالله تعالى په نزد ] مقبول او مقرب [دی ] دهغوی د بندګئ خو داحال دې چه ﴿لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ
عَنْ عِبَادَتِهٖ وَلَا يَسْتَحْسِرُوْنَ۝﴾[ دوئ دهغه دعبادت نه شرم نه كوی اونه ستړی كيږی ] بلكه
﴿يُسَبِّحُوْنَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُوْنَ۝﴾[شپه او ورځ ] دالله تعالى [تسبيح ] اوياكی [كوی] څه وخت [
نه بس كوی ترې] هركله چه دهغوی دا حالت دې نو عام مخلوق په څه شمير كښې دی پس لائق
دعبادت هغه دې او هركله چه څوك بل داسې نشته نو بيا دهغه سره شريك ګڼړل څومره بې
عقلي ده [ ايا] سره ددې دليلونو دتوحيدنه﴿اَمِ اتَّخَذُوْٓا اٰلِهَةً مِّنَ الْاَرْضِ﴾[دې خلقو دالله تعالى نه
سوا نور معبودان جوړ كړی دی ] خاصكر [د زمكې دڅيزونونه ] كوم چه نور هم زيات ادنى او
زيات لاندې دی لكه دګټو او نورو معدنى څيزونو بتان ﴿هُمْ يُنْشِرُوْنَ۝﴾[كوم چه چالره به ژوندی
كړی ] يعنى كوم چه روح هم په چاكښې نه شي اچولې نو داسې عاجز دمعبود كيدو كله قابل
دی او﴿لَوْ كَانَ فِيْهِمَآ اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا﴾ [په مزكه كښې يا آسمان كښې كه د الله تعالى نه سوی نور
معبودان د واجب والوجود وی نو دواړه به ] د مخكښې نه [ درهم برهم وی ] ځكه چه عادتا د
دواړو په ارادو او كارونو كښې به مزاحمت راتلو ديوبل سره به ټكراويدول او ددې سره خو
فساد لازم دې مګر فساد واقع نه دې په دې وجه ډير معبودان هم نه شي كيدې [پس] ددې
تقريرونونه ثابته شوه چه ﴿فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُوْنَ۝﴾[ الله تعالى كوم چه مالك دې
دعرش د هغو كارونونه پاك دې كوم چه دا خلق بيانوی ] چه نعوذبالله دهغه سره نور شريكان
هم شته حال دادې چه هغه داسې لوئ دې چه ﴿لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْئَلُوْنَ۝﴾[هغه څه چه كوی
دهغه نه څوك تپوس نه شي كولې او ددوئ نه تپوس كولې شی ] يعنى الله تعالى تپوس كولې
شي پس په لويئ كښې څوك دهغه سره شريك نه شو نو بيا په معبوديت كښې ورسره څوك
څنګه شريكيدې شي تردې پورې خو كلام په طور دباطلولو او ماتولو او دمحال دلازم والی وو
وړاندې كلام په طور دسوال اومنع دې چه ﴿اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً﴾[ ايا دوی دخدائ نه سوا نور
معبودان جوړ كړی دی ] دوی ته﴿قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ﴾ [ ووايه چه تاسو خپل دليل ] په دې
دعوى باند[ پيش كړئ ] تردې پورې خو دشرك باطلوالې په طور دسوال او عقلى دليل وو
وړاندې دليل نقلى پيش كوی چه ﴿هٰذَا ذِكْرُ مَنْ مَّعِيَ﴾[ دا زما د ملګرو كتاب] يعنى قرآن ﴿وَذِكْرُ
مَنْ قَبْلِيْ﴾[او زما نه د وړاندې خلقو كتابونه] يعنى تورات انجيل او زبور [ موجود دی ] چه
ددې په رښتونوالی او دالله تعالى د طرفه په نازليدو ئې عقلى دليل ثابت دې او په نورو كښې
اګرچه تحريف شوې دې مګر په قرآن كښې خو دتحريف دسره احتمال نشته پس كوم مضمون
چه ددغو كتابونو دقرآن مطابق وی هغه يقينا صحيح دې او ددې ټولو ذكر شوو دليلونو
مقتضاء دا وه چه دا خلق د توحيد قائل شوی وې ليكن بيا هم قائل نه دی ﴿بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا
يَعْلَمُوْنَ الْحَقَّ﴾ [ بلكه په دوی كښې زيات هغه دی كوم چه په حق كارباند يقين نه كوی پس ]

په دې وجه سره ﴿فَهُمْ مُعْرِضُونَ﴾ [دغه خلق ددې د قبلولو نه ډډه کوی او] دا توحيد څه نوي خبره نه ده چه ويره ترې کيدې شي بلکه دا خو پخوانې شريعت دې چنانچه ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا نُوحِي إِلَيْهِ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا﴾ [مونږ تانه وړاندې يو داسې پيغمبر نه دې ليږلې کوم ته چه مونږ دا وحي نه وی ليږلي چه زما نه سوا څوك معبود] لائق دعبادت [ نشته پس] خاص ﴿فَاعْبُدُونِ﴾ [ زما عبادت کوئ او دا] مشرکان [ خلق ] چه کوم دی په دوی کښې څنې ﴿وَقَالُوا﴾ [ داسې وائی چه ] نعوذ بالله ﴿اتَّخَذَ الرَّحْمَنُ وَلَدًا﴾ [الله تعالى ] فرشتولره [ اولاد جوړ کړې دې ] توبه توبه ﴿سُبْحَانَهُ﴾ [ دغه ] الله تعالى ددې نه [ پاك دې ] او دغه فرښتې د هغه اولاد نه دې ﴿بَلْ عِبَادٌ﴾ [بلکه ] د هغه [بندګان دی ] البته ﴿مُكْرَمُونَ﴾ [عزتمند] بندګان دی په دې سره بې عقلو ته اشتباه وشوه او ددغو د بندګئ او دحکم لاند کيدو او ادب دا حال دې چه ﴿لَا يَسْبِقُونَهُ بِالْقَوْلِ﴾ هغوی د هغه په وړاندې خبره نه شي .کولې بلکه د حکم منتظره اوسيږی ﴿وَهُمْ بِأَمْرِهِ يَعْمَلُونَ﴾ [ او هغوی د هغه دحکم موافق کارکوی ] دهغه نه خلاف نه شی کولې ځکه چه هغوی پوهيږی چه ﴿وَهُمْ بِأَمْرِهِ يَعْمَلُونَ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ [ الله تعالى ددوی د وړاندې وروستو حالاتو لره ] ښه [پيژني ] پس چه څه حکم وی اوکله چه حکم وی موافق د حکمت وی په دې وجه نه عملي مخالفت کوی او نه قولي وړاندې والې کوی [ او] ددوی د ادب دا حال دې چه ﴿وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ارْتَضَى﴾ [ هغوی بغير دهغه ] سړی [ نه دچا دپاره چه د] شفاعت کولو د [ الله تعالى مرضي وی دبل چا سفارش نه شي کولې ﴿وَهُمْ مِنْ خَشْيَتِهِ مُشْفِقُونَ﴾ او دغه ټول دالله تعالى دهيبت نه په ويره کښې وسيږی او] دا خو بيان وو ددوی دمغلوبيت او محکوميت وړاندې بيان دې دالله تعالى دغالب والي او حالم والي اګر چه مطلب د دواړو يو بل ته نزدې دې يعنی ﴿وَمَنْ يَقُلْ مِنْهُمْ﴾ [په دوی کښې کوم سړې چه ] بالفرض [ داسې ووائی چه ] نعوذ بالله ﴿إِنِّي إِلَهٌ مِنْ دُونِهِ فَذَلِكَ نَجْزِيهِ جَهَنَّمَ﴾ [زۀ د خدائ نه سوا معبود يم پس مونږ به دۀ لره دجهنم سزا ورکړو ] او﴿كَذَلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ﴾[ مونږ ظالمانو ته خاص داسې سزا ورکوو ] يعنی دالله تعالى په دوی پوره وس چليږی لکه په نورو مخلوقاتو بيادغه د خدائ اولاد چه خدائ کيدل ورله ضروری دی څنګه کيدې شي؟

## معارف او مسائل

[﴿وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَاعِبِينَ﴾] يعنی [مونږ آسمان او زمکه او ددې دواړو مينځ کښې څيزونه د لوبو دپاره نه دی جوړ کړی] تيرو شوؤ آيتونو مبارکو کښې د څينو آباديانو د تباه کولو او هلاکولو بيان شوې وو ، اوس دې آيت مبارك کښې دې طرفته اشاره ده چې څنګه د آسمانونو او زمکې او ددې د ټولو مخلوقاتو پيدا کول په ډيرو حکمتونو او ښيګړو باندې انحصار لری ، دغه شان ددغې آباديانو تباه کول هم خالص حکمت وو ، دا مضمون په دې آيت مبارك کښې دې شان سره بيان شو ېدې چې د توحيد يا پيغمبرئ څخه چې کوم خلق منکر دی ، هغوئ زمونږ د قدرت ، علم او بصيرت هغې ښکاره نښو ته نه ګوری او په دې نه پوهيږی ، يا دا ګنړی چې مونږ دا ټول څيزونه بې فائدې دې پيدا کړی. ا و خالص دلوبو دپاره مو پيدا کړی دی کومې چې د زمکې او آسمانونو په پيدا کولو او د ټول مخلوق په کاريګرئ کښې ليدلې کتلې شی.

[لٰعِبِیْنَ] دلعب څخه مشتق دې ، لعب داسې يو کار ته وائی چې څه صحيح مقصد ورسره نه وی [راغب][1] او لهوهغې کار ته وائی چې هيڅ مقصد ورسره تړلې نه وی. خالص د وخت اړولو يو شغل وی ، د اسلام هغه منکران چې په رسول کريم ﷺ اوپه قرآن عظيم الشان باندې اعتراضونه کوی او دتوحيد څخه انکار کوی او د الله ﷻ د قدرت دې عظيم الشانه ښنو په کتلو سره ئې هم منی نو د دوئ دا رويه لرل ګويا که دا دعوی کول دی چې دا ټول څيزونه عبث دی ، او خاص د لوبو دپاره جوړ کړې شوی دی. څکه ددې جواب کښې دا فرمائيلی شوی دی چې دا لوبې او فضول نه دی ، لږ شان د غور فکر کولو څخه کار واخلئ نو دکائناتو په يوې يوې ذره کښې او د قدرت په يوې يوې کاريګرئ کښې به ورته په زرګونو حکمتونه ښکاره شی چې ټول په ټوله دالله ﷻ دمعرفت اودهغه د توحيد خاموش سبقونه دی.

هرگيا هي كه از زمين رويد　　وحده لا شريك له گويد

[ هره زرغنه چې د زمکې څخه راټوکيږی هغه د الله ﷻ بې شريکه يو والې بيانوی]

[لَوْ اَرَدْنَاۤ اَنْ نَّتَّخِذَ لَهْوًا لَّاتَّخَذْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّاۤ ۖ اِنْ كُنَّا فٰعِلِیْنَ] [که مونږ د لوبو په ډول څه مشغولا جوړل غوښتلې او داکار کول زمونږ غرض وې نو دزمکې او آسمانونو وغيره پيدا کولو ضرورت مونږ ته څه وو ، داسې خو مونږ په هغه څيزونو هم کولې شو چې مونږ سره دی]

عربی ژبه کښې دلَوْ لفظ د فرضی څيزونو دپاره مستعمليږی چې هيڅ وجود نه لری ، دلته هم په دې لفظ سره هم دغه مضمون بيان شوې دې چې کوم شوده ګان برنی او ښکتنی مخلوقات او جوړ کړې شوی عجيبه څيزونه لوبې ټوقې ګڼړی ، آيا دوئ دومره هم نه پوهيږی چې دومره لوئې لوئې کارونه د لوبو ټوقو دپاره څوك نه کوی ؟

دې کښې دې خبرې ته هم اشاره ده چې لوبې او ټوقې کول د الله ﷻ دلوئې شان سره هيڅ قسم سمون اوجوړښت نه لری.بلکه داسې کول د يو ښه او معقول بنده د شان څخه هم لرې خبره ده.

د لهو اصلی او مشهوره معنی يو بې مطلبه کار کول دی ، په دغې بنا ددې تفسير پورته بيان شو ، څينو مفسرينو حضراتو فرمائيلی دی چې د لهو لفظ کله د خپلې ښځې او اولاد دپاره هم استعماليږی. دلته چې ترې دا مراد واخستې شی نو د آيت مبارك مطلب به په يهودو او نصاراؤ باندې رد کول وی چې مسيح ؑ عزيز ؑ د الله ﷻ څوئې بولی. الله ﷻ ددې جواب ورکوی چې که مونږ لره څوك اولاد جوړول وې نو دهغې مخلوق څينې به مو جوړ کړې وو کوم چې مونږ سره دې انسان مخلوق بۀ مو ولې جوړولو. [والله اعلم].

[بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهٗ فَاِذَا هُوَ زَاهِقٌ] د قذف لغوی معنی غورزول او ويشتل دی ، د يدمغ معنی په مازغو باندې ګزار کول دی ، د زاهق معنی تلونکې او داسې خرابيدونکې ده چې نوم نشان ئې پاتې نشی. د آيت مبارك مطلب دا شو چې د آسمانونو او زمکې عجيبه مخلوقات مونږ لوبو دپاره نه دی جوړ کړی بلکه په ډيرو حکمتونو باندې بنا کړی او موجود کړی دی، دهغې څينې يو حکمت داهم دې چې ددې په ذريعه دحق اوباطل ترمينځه بيلتون رازی.د قدرت د جوړ کړی څيزونو ليدل کتل انسان ته دحق داسې لارښائی چې باطل دهغې په وړاندې نشی ايساريدلې، نودا مضمون په دې شان سره اداکړې شوې دې چې حق په باطل

[1]) مفردات القرآن للراغب [ج:۱ ص:۴۵۰]

باندې داسې ورویشتلې شي چې په هغې سره د باطل مازغه راوزي او نوم نشان ئې پاتې نشي [وَمَنْ عِنْدَهُ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَلَا يَسْتَحْسِرُوْنَ] یعنی زمونږ خواته بندګان یعنی فرښتې هر وخت زمونږ په عبادت کښې بې د څه دمې څخه همیشه د پاره مشغول پاتې کیږي ، که تاسو زمونږ عبادت نه کوئی نو زمونږ په خدایئ کښې هیڅ فرق نه رازی ، انسان عام طور نور مخلوق هم په ځان باندې قیاس کوی انسان لره په مخه د عبادت کولو څخه دوه څیزونه منع کوی ، یو دا چې خپله مرتبه او درجه دومره لوړه اوګڼړی چې د عبادت کولو څخه پاتې شي، بل دا چې په مخه د عبادت کولو توفیق څکه نه لری چې ستړې کیږي ، د آرام دمې کولو او اوده کیدو پام لری، څکه په آخری آیت مبارك کښې د فرښتو څخه دا دواړه نفی کړې شوی دی ،نو وې فرمائیل چې نه خو هغوئ د ځان غټ ګنړلو په وجه زمونږ د عبادت څخه ډډه کوی او نه په عبادت کولو سره ستړی کیږي. بیا ددې مضمون تکمیل ئې په ورپسې آیت مبارك کښې داسې اوکړو چې [يُسَبِّحُوْنَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُوْنَ] شپه او ورځ تسبیح کوی چرته سستی په کښې هم نه رازی] .

عبدالله بن حارث وائی چې ما کعب احبار څخه تپوس اوکړو چې د تسبیح کولو څخه بغیر د فرښتو بل څه کار نشته ؟ که شته دې نو هغه ئې بیا په مخه د تسبیح کولو څخه څنګه نه ایساروی ؟ کعب اوفرمائیل چې ائې زما وراره ، آیا ستا څه کار کول تا د ساه اخستلو څخه ایساروی ؟ حقیقت دا دې چې فرښتو د پاره د تسبیح کولو مثال زمونږ د ساه اخستلو یا سترګو رپولو دې چې د اهر وخت جاری وی او په څه کار کولو کښې هیڅ قسم خنډ نه جوړیږي ، [قرطبی و بحر محیط].([1])

[اَمِ اتَّخَذُوْٓا اٰلِهَةً مِّنَ الْاَرْضِ هُمْ يُنْشِرُوْنَ] په دې کښې د مشرکانو جهالت په ګڼړو طریقو سره ښکاره کړې شوې دې. اول دا چې څومره بې عقل دې چې د زمکې ښکتنې مخلوق ئې الله ﷻ جوړ کړو چې د برتنې مخلوق څخه په هر شان سره کمزورې او بې کاره دې ، دویم دا چې دوئ دا خپل جوړ کړئی معبودان د چا په ژوندی کولو یا په کښې په ساه اچولو چرته لیدلی دی؟ څکه دا ضروری ده چې د معبود په قبضه کښې د مخلوق مرګ او ژوند دواړه وی.

[لَوْ كَانَ فِيْهِمَآ اٰلِهَةٌ] دا د توحید دلیل دې چې په عامو عادتونو باندې انحصار لری ، دلیل عقلی ته په کښې هم اشاره ده چې مختلف تقریرونه ئې د علم کلام په کتابونو کښې راغلی دی. دا دلیل په عادت باندې داسې انحصار لری چې که په زمکه او آسمانونو کښې دوه خدایان وې نو دواړه به مالکان او کُل مختاره وې نو د دواړو حکمونه به شان په زمکه او آسمانونو کښې جاری کیدل پکار وو ، خو د عادت تر مخې داسې څکه نشی کیدې چې ګنی دواړه دې یو شان حکم په یو وخت کښې ورکوی. یا د یو ورکړې حکم دې بل هم ګنی خوښوی. خامخا به د یو بل څخه مخالفت حکم کول راتلل ، داسې صورت کښې د زمکې او آسمانونو تباه کیدل وو ولې چې کومه یوه ورځ غوښتلې نو بل به شپه کول غوښتل ، یو به باران کول غوښتل او بل به باران نه کول غوښتل ، نو په یو وخت به دا خلاف حکمونه څنګه جاری کیدلې شو؟ که یو په حکم جاری کولو کښې پاتې راغلې وې نو مالك ، کُل اختیاره او خدائې به نه وو. که دا شبهه اوکړې شی چې په مشورې سره د دواړو یو حکم جاری کیدل څه لرې خبره نه ده.

---

[1]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۱ص:۲۸۷] و تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآية [ج:۸ ص:۱۴۷]

نو ددې جوابونه د علم کلام په کتابونو کښې په تفصيل سره راغلي دی. د لته هم څه قدرې
خان پوهول پکار دی، چې د يوبل د مشورې پابند کيدل، ددې خبرې ثبوت دې چې يو هم
مالك او خپل اختيار نه دې، دواړو کښې کمې دې او د کمئ خاوند خدائې هيڅرې نشی
کيدې په را تلونکی آيت :[لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُوْنَ] کښې هم دې ته اشاره دا شان موندې شی
چې څوك د څه قانون پابند وی او بل څوك د هغه په څه کار باندې د گرفت کولو حق لری،
هغه خدائې نشی کيدې، خدائې هم هغه دې چې هيڅ قسم پابند نه وی، او څوك ترې د
تپوس کولو حق نه لری، که دواړه خدايان د مشورې پابند وې نو يو به د بل څخه تپوس
کولې شو او په مشورې باندې د عمل نه کولو په صورت کښې به په هغه بل گرفت کولې شو،
نو دا خو د خدايئ مرتبې سره هيڅ سمون نه خوری.

[هٰذَا ذِكْرُ مَنْ مَّعِيَ وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِيْ] ددې مطلب هغه دې کوم چې د تفسير په خلاصه کښې داسې بيان
شوې دې چې [ذِكْرُ مَنْ مَّعِيَ] څخه مراد قرآن عظيم الشان او [وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِيْ] څخه مراد تورات،
انجيل او زبور وغيره پخوانی کتابونه دی، په دې بنا د آيت مبارك معنی به دا شی چې زما او
ماسره د يو ځائې کيدونکو خلقو قرآن عظيم الشان او د پخوانو امتونو کتابونو تورات،
انجيل وغيره موجود وی، آيا په دې يو کتاب کښې هم د الله ﷻ څخه سوا د چا د عبادت
تلقين موجود دې؟ تورات، انجيل وغيره کښې سره د بدلون راتلو څخه بيا هم په صفا تکو
کښې دا چرته نه دی بيان شوی چې الله ﷻ سره بل څوك شريك او منئ او معبود ئې جوړ کړئی.
په بحر محيط کښې ددې مطلب دا بيان کړې شوې دې چې دا قرآن عظيم الشان ذکر دې
ماسره د يو ځائې خلقو دپاره هم او ذکر دې ما نه د وړاندې خلقو دپاره هم، مطلب دادې چې
ما سره د يو ځائې خلقو دپاره ذکر په دې اعتبار سره دې چې په دې سره ورته بلنه ورکړې شوې
ده او د حکمونو تشريح ورته په کښې بيان شوېده او پخوانو خلقو دپاره ذکر په دې معنی
سره دې چې ددې په ذريعه د پخوانو خلقو حالات، معاملې او قيصې ژوندئ دی.

[لَا يَسْبِقُوْنَهٗ بِالْقَوْلِ وَهُمْ بِاَمْرِهٖ يَعْمَلُوْنَ] يعنی فرښتې د الله ﷻ څنګه اولاد جوړيدې شی چې هغوئ
دومره په ويره او آدب کښې پاتې کيږی چې نه په وئيلو کښې د الله ﷻ څخه وړاندې کيږی او
نه په عمل کښې د هغه خلاف څه کوی، په خبره کښې د وړاندې نه کيدو مطلب دادې چې تر
څو ورته د الله ﷻ حکم نه وی شوې پخپله دڅه خبرې کولو همت نشی کولې، دې څخه دا هم
معلومه شوه چې د مشرانو يو ادب دا هم دې چې په يو مجلس کښې څه خبره راپيښه شی نو
دهغې مجلس د مشرانو د کلام انتظار دې کولې شی دې څخه بغير څه خبره کول بې ادبی ده.

| اَوَلَمْ يَرَ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْٓا | اَنَّ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | كَانَتَا |
|---|---|---|---|---|
| آيا نه گوری هغه کسان | چی دمنلو نه ئې انکار کړې دې | چی بيشکه آسمانونه | او زمکه | وو دواړه |

آيا کافرانو ته دا خبره نه ده معلومه چې آسمانونه او زمکه په خپل مينځ کښې ملاؤ وو

| رَتْقًا | فَفَتَقْنٰهُمَا ؕ | وَجَعَلْنَا | مِنَ الْمَآءِ | كُلَّ شَيْءٍ | حَيٍّ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| پيوست | پس جدا جدا کړل مونږه هغه | او پيدا کړل مونږه | داوبو نه | هر څيز | ژوندې |

نو بيا مونږ هغه جدا جدا کړل | او مونږ داوبو نه هر ژوندې څيز را پيدا کړې دې

أَفَلَا يُؤْمِنُونَ ۝ وَجَعَلْنَا فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِهِمْ

آیا نو نهٔ منی دوئ | او ودرول مونږه | په زمکه کښې | غرونه | چې اونهٔ خوزی [دا زمکه په دوئ باند

نوآیا دوئ ایمان نه راوړی | او مونږ په زمکه کښې غرونه جوړکړل | ددې دپاره چې اونه خوزی

وَجَعَلْنَا فِيهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ۝

او جوړې کړې مونږه | په دې زمکه کښې | فراخه | لارې | دپاره ددې چې دوئ لارې معلوم کړی

اوپه دې زمکه کښې مو ارتې بیرته لارې جوړې کړې دی | دې دپاره چې خلق پرې خې راخی

وَجَعَلْنَا السَّمَاءَ سَقْفًا مَحْفُوظًا ۖ وَهُمْ عَنْ آيَاتِهَا مُعْرِضُونَ ۝

او جوړکړو مونږه | آسمان چت | محفوظ [دپریوتلونه] | او دوئ | دنښو دهغې نه | مخ اوړونکی دی

اومونږ آسمان یو محفوظ چت جوړکړو | په دې باندې هم دوئ [آسمانی]نښو نه ډډه کوی [اوسوچ فکر نکوی]

وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۖ كُلٌّ

او هغه | هغه ذات دې | چې پیدا ئې کړه | شپه | او ورځ | او نمر | او سپوږمئ | دا ټول

اوالله ﷻ هغه ذات دې چې شپه ورځ او نمر او سپوږمئ ئې پیدا کړی دی | هریو په خپله

فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ ۝

په فلك کښې [لامبو وهی یعنی گرزی

خپله دائره کښې لامبووهی |

## آسان ترجمه قرآن

کومو خلقو چه کفر خپل کړې دې، هغوی ته دا معلومه نه ده چه ټول آسمانونه او زمکې بند وو، بیا مونږ هغه پرانستل، او د اوبو نه مو هر ساه لرونکې څیز پیدا کړو. آیا بیا هم دا خلق ایمان نه راوړی؟ او مونږ په زمکه باندې مضبوط غرونه پیدا کړی دی، چه په دوئ باندې او نه خوزیږی او په هغې کښې مونږ پلنې پلنې لارې جوړې کړې دی چه دوئ منزل ته اورسیدلې شی. او مونږ آسمان یو محفوظ چهت جوړ کړې دې او دا خلق د هغې د نخښو نه مخ اړوی. او هم هغه (الله) دې چه شپه او ورځ او نمر او سپوږمی ئې پیدا کړی دی. ټول په یوله یومَدار کښې لامبو وهی.

## خلاصه تفسیر

﴿أَوَلَمْ يَرَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ﴾ [ ایا دې کافرانو ته دا خبره معلومه نهٔ شوه چه اسمان او مزکه ] اول ﴿كَانَتَا رَتْقًا﴾ [ بند وو] یعنی نه داسمان نه باران کیدو نه دٔ زمکې نه پیداوار دې ته ئ بند والې فرمائیلې دې لکه چه اوس هم که په څه خائ یا په څه وخت کښې داسمان نه باران او د زمکې نه پیداوار نه وی نو ددغه خائ یا ددغه زمانې په اعتبار سره دوی ته بند وئیلې شی ﴿فَفَتَقْنَاهُمَا﴾ [ بیا مونږ دواړو لره ] په خپل قدرت سره [ وسپړدل ] چه داسمان نه باران او د زمکې فصلونه ټوکیدل شروع شول [ او] په باران سره صرف شنه بوټی ترقی نه کوی بلکه ﴿وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَاءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ﴾ [ مونږه ] دباران [ په اوبوسره هر ورح لرونکی لره جوړ کړې دې ] یعنی دهر ژوندی او روح لرونکی په ژوند اوباقی پاتې کیدو کښې داوبو دخل خامخا دې خواه

بې واسطه وی اوکه په څه واسطه سره لکه چه په بل ایت کښې دې [ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ ](¹) [ ایا ] ددې خبرو داوریدونه پس ﴿أَفَلَا يُؤْمِنُونَ﴾ [ بیا هم ایمان نه راوړی اومونږ ] په خپل قدرت سره ﴿وَجَعَلْنَا فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِهِمْ﴾ [ په زمکه کښې غرونه څکه جوړکړل چه زمکه په دې خلقو ونه خوزی ﴿وَجَعَلْنَا فِيهَا فِجَاجًا سُبُلًا﴾ اومونږ په دې ] زمکه [ کښې ارتې لارې جوړې کړې ﴿لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ﴾ چه خلق ] ددې په ذریعه سره [ منزل ] مقصول [ ته ورسیږی اومونږ ] په خپل قدرت سره ﴿وَجَعَلْنَا السَّمَاءَ﴾ [اسمان لره ] په مقابله د زمکې ددې دپاسه ﴿سَقْفًا مَحْفُوظًا﴾ په مثل د [یو چت جوړکړو کوم چه ] په هرشان [ محفوظ دې ] یعنی دراغورزیدو نه هم دماتیدو نه هم او ددې نه هم چه شیطان هلته ورسیږی داسمان خبرې واوری مګر دا داسمان محفوظ والې او مضبوط والې هم دائمی نه دې دیوې زمانې معینې پورې دې ﴿وَهُمْ﴾ [ او داخلق د ] اسمان د [ دې ] موجوده ﴿عَنْ آيَاتِهَا مُعْرِضُونَ﴾ [نښو نه ډډه کوی ] یعنی غورو فکر په کښې نه کوی ﴿وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ﴾ [ او هغه داسې ] قادر [ دې چه هغه شپه او ورځ اونمر او سپوږمۍ جوړکړل ] دغه نښې داسمان هم دادی او په نمر سپوږمۍ کښې هر یو په یوه دائره کښې داسې روان دی چه ګویا ﴿كُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ﴾ [ لامبو وهی ]

## معارف او مسائل

[أَوَلَمْ يَرَ الَّذِينَ كَفَرُوا] دې ځائې کښې لفظ د رؤیت په معنی د عام علم دې ، که سترګو سره په کتلو وی یا عقلی استدلال سره وی ، ځکه د راتلونکی مضمون تعلق څه په سترګو کتلو سره دې او څه علم استدلالی سره.

[أَنَّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنَاهُمَا] لفظ د [رَتْقٌ] معنی بندیدل او د [فَتْقٌ] معنی پرانستل دی. ددې دواړو لفظونو مجموعه [رَتْقٌ وفَتْقٌ] ده ، او ددې معنی د یو کار انتظام کول او ددې د پوره اختیار په معنی کښې استعمالیږی . د آیت د الفاظو ترجمه دا شوه چې آسمانونه او زمکې بند وو مونږ دا پرانستل . په دې کښې د بندیدو او د پرانستو څخه څه مراد دې ؟ ددې په مراد کښې حضرات مفسرینو ډیر اقوال بیان کړی دی . خو په هغه ټولو کښې چې کومه معنی صحابه کرامو او جمهورو مفسرینو اختیار کړې ده هغه هم هغه معنی ده کومه چې په خلاصه تفسیر کښې بیان شوې ده چې د بندیدو څخه د آسمان باران دې او د زمکې د پیداوار بندیدل دی . او پرانستو څخه مراد ددې دواړو پرانستل دی .

ابن کثیر کښې د ابن ابی حاتم سند سره عبدالله بن عمر ﷺ څخه دا واقعه نقل کړې ده چې دوۍ ته یوکس راغلو او ددوۍ څخه یې ددې آیت مبارك د تفسیر پوښتنه اوکړه. هغوۍ ابن عباس ﷺ ته اشاره اوکړه چې دې شیخ ته ورشه او ددۀ څخه تپوس اوکړه او هغه چې درته څه جواب درکړی ماته هم هغه اووایه ، دا کس ابن عباس ﷺ ته ورغلو او هغوۍ څخه یې تپوس اوکړو چې په دې آیت مبارك کښې د ،،رتقا،، او ،،فتقنا،، څخه څه مراد دی ؟ ابن عباس ﷺ اوفرمائیل چې اول آسمانونه بند وو او باران به ترې نه کیدو ، او زمکه بنده وه او په دې کښې

¹ ) ترجمه:- اوبه چې الله تعالی جل شانه د آسمان نه اورولې، بیا ئې په دې سره زمکه زرخیزه کړه ددې د اوچیدنه پس ، اوپه دې کښې یې هرقسمه حیوانات خواره کړل.

به پیداوار نه کیدو ، کله چې الله تعالی په زمکه باندې انسان آباد کړو نو د آسمان څخه یې باران راؤرولو ، او زمکې پیداوار شروع کړو. دې کس ددې آیت مبارك تفسیر معلومیدو څخه وروستو عبدالله بن عمر رضي الله عنه ته ورغلو او څه چې یې د ابن عباس رضي الله عنه څخه آؤریدلی وو هغه یې عبدالله بن عمر رضي الله عنه ته بیان کړل. نو عبدالله بن عمر رضي الله عنه اوفرمائیل چې ماته واقعی دا ثابت شو چې ابن عباس رضي الله عنه ته د قرآن پاك علم ورکړې شوی دې. ددې څخه وړاندې به ما د ابن عباس رضي الله عنه بیانات یو جرات ګڼړلو او زما داخوښ نه وو ، اوس راته معلومه شوه چې الله تعالی دوئ ته د قرآن پاك علم ورکړې دې ، هغوئ د رتق او فتق تفسیر بالکل صحیح کړې دې. (١)

روح المعانی کښې ابن عباس رضي الله عنه دا روایت ابن المنذر او ابو نعیم او یو جماعت دمحدثینو حوالې سره نقل کړې دې. په هغې کښې د منکرینو خلاف عبرت او حجت هم دې. او د الله ﷻ د خاص نعمتونو او کامل قدرت اظهار هم دې او هم دا د توحید او معرفت بنیاد دې. او دې څخه وروستوئې آیت مبارك [وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ] فرمائیلې دې. دې سره ددې معنی اعتبار سره مناسبت دې. بحر محیط کښې هم دا اختیار کړې شوی دی. قرطبی دې ته د عکرمه قول وئیلې دې او فرمائیلی یې دی چې د یو بل آیت څخه هم ددې د معنی تائید کیږی یعنی [وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الرَّجْعِ ۝ وَالْأَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ ۝] (٢) ، طبری هم دا تفسیر اختیار کړې دې. (٣)

[وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ] ددې څخه مراد دادې چې د هر ساه لرونکی څیز په تخلیق کښې د اوبو دخل ضروری دی. او ساه لرونکی او ذی روح د اهل تحقیق په نزد صرف انسانان او حیوانات نه دی بلکه نباتات او جماداتو کښې روح اوحیات د محققینو په نزد ثابت دی. او ښکاره ده چې اوبه ددې ټولو څیزونو په تخلیق او ایجاد او ارتقاء کښې لوی دخل دې.

ابن کثیر رحمة الله د امام احمد سند سره یو روایت د ابوهریره رضي الله عنه څخه نقل کړې دې چې ابوهریره رضي الله عنه فرمائی چې ما نبی کریم ﷺ ته عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ زه چې کله ستاسو زیارت کوم زما زړه ډیر زیات خوشحاله شی او سترګې مې درباندې یخې شی ، یارسول ﷺ تاسو ماته دهر څیز د تخلیق باره کښې اوفرمائې ، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې هر څیز د اوبو څخه پیدا شوی دې. دې څخه وروستو ابوهریره رضي الله عنه سوال اوکړو چې یارسول الله ﷺ ما ته یو داسې عمل اوښائی چې په هغې عمل کولو سره زۀ جنت ته داخل شم ، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې : افش السلام واطعم الطعام وصل الارحام وقم بالليل والناس نيام ثم ادخل الجنة بسلام تفرد به احمد وهذا اسناد على شرط الشيخين الخ (٤)

سلام کول عام کړه [اګر چې مخاطب اجنبی وی] ، او په بل خوراك كول عام کړه [دې ته هم حدیث پاك کښې د عام کولو حکم شوی دی ، چې په هر چا خوراك کوه اګر چې کافر فاسق ولې نه وی دا د ثواب څخه خالی نه دی] ، او صله رحمی کوه او د شپې د تهجد و مونځ کوه کله چې خلق اوده وی ، نو جنت ته به سلامتیا سره داخل شې

---

(١) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:٣٣٩]

(٢) ترجمه:- قسم دې په آسمان چې باران ترې وریږی او په زمکه چې شلیږی.

(٣) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج: ١٨ص:٤٣٢] و تفسير القرطبي [ج:١١ص:٢٨٤] و تفسير البحر المحيط [ج: ٨ ص:١٥٥]

(٤) ترجمه:- قسم دې په آسمان چې باران ترې وریږی او په زمکه چې شلیږی.

[وَجَعَلْنَا فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِهِمْ] لفظ د ،،ميد،، په عربي ژبه كښې د پريشانئ حالت ته وئيلې شى، او ددې آيت مبارك مطلب دادې چې الله ﷻ په زمكه باندې د غرونو بوج اچولې دې او ددې توازن يې برقرار ساتلې دې چې دې سره يې اضطرابى حالت پيدا نه شي او چې دې سره ددې دپاسه چې كوم خلق اوسيږى هغوئ ته نقصان اونشى . ددې تفصيل په تفسير كبير كښې اهل علم كتلې شى او د ضرورت په قدر د سورة نمل په تفسير كښې حكيم الامت په تفسير بيان القرآن كښې هم ليكلې دې .

[كُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ] لفظ د فلك په اصل كښې هرې دائرې او هر گول څيز ته وئيلې كيږى . په دې وجه چرخه كښې چې كومه گول څرمن وى هغې ته فلكة المغزل وئيلې كيږى . [روح][1] او په دې وجه آسمان ته هم فلك وئيلې كيږى . دې كښې مراد د نمر او سپوږمئ هغه مدارونه دى چې په كومو باندې حركت كوى . د قرآن پاك په الفاظو كښې ددې څه وضاحت نشته دى چې دا مدارونه آسمان كښې دننه دى او كه بهر فضاء كښې دى . دې اوسنى خلائى تحقيقاتو دا واضح كړې دى چې دا مدارونه په خلاء او فضاء كښې د آسمان څخه ډير اوچت دى .

ددې آيت مبارك د ظاهر څخه دا مضمون هم واضح دې چې نمر هم په يو مدار باندې حركت كوى . او نوى فلاسفران ددې څخه منكر وو خو اوس هغوئ هم ددې قائل دى . د نورو تفصيلاتو دپاره دا ځائې مناسب نه دې . والله تعالى اعلم.

وَمَا جَعَلْنَا | لِبَشَرٍ | مِّنْ قَبْلِكَ

او نه دې جوړ كړې مونږه | دپاره ديو انسان | مخكښې ستا نه

او مونږ ستا نه وړاندې هم دهيڅ يو انسان دپاره هميشه پاتې كيدل نه دې

الْخُلْدَ | أَفَإِنْ | مِّتَّ | فَهُمُ | الْخٰلِدُونَ | كُلُّ نَفْسٍ | ذَائِقَةُ

هميشوالې | آيا پس كه چرى | مړ شې ته | نو دوئ به كښې | هميشه وى | هر نفس | څكونكې

جوړ كړې | نو آيا كه ته وفات شې | نو دا خلق به دلته هميشه پاتې شى | هريو نفس به د مرګ

الْمَوْتِ | وَنَبْلُوكُمْ | بِالشَّرِّ | وَالْخَيْرِ | فِتْنَةً

د مرګ دې | او آزمايو مونږ تاسو | په بدو حالاتو كښې | او په ښه حالاتو كښې | په آزمائيلو سره

مزه څكى | او مونږ د امتحان دپاره په تاسو باندې سختى او راحت راولو | او زمونږ طرف ته به

وَإِلَيْنَا | تُرْجَعُونَ | وَإِذَا | رَاٰكَ | الَّذِينَ | كَفَرُوْا

او خاص مونږ ته به | راوستلې كيږئ تاسو | او كله چې | اووينى تا | هغه كسان | چې دحق نه انكاريان دى

تاسو ټول راواپس كيږئ | ..................او هر كله چې كافران تا اووينى نو نور څه نه

إِنْ يَتَّخِذُونَكَ | إِلَّا | هُزُوًا | أَهٰذَا | الَّذِي | يَذْكُرُ | اٰلِهَتَكُمْ

نه نيسى دوئ تا لره | مګر | په ټوقو سره | آيا دا دې | هغه څوك | چې يادوى | خدايان ستاسو

خو ټوقې درپورې شروع كوى | چې آيا دا هغه اسرې ادې چې ستاسو د معبودانو ذكر [په بدئى] كوى

[1] تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٧ ص: ٤٠]

وَهُمْ بِذِكْرِ الرَّحْمٰنِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ۞ خُلِقَ الْاِنْسَانُ

او حال دا چي دوئ | په ذكر درحمان سره | پخپله | انكاريان دي | پيدا كړے شوے دے | انسان

او حال دادے چي دوئ پخپله د رحمان د ياد نه انكار يان دي | د انسان په پيدائش [فطرت] كښې

مِنْ عَجَلٍ ط سَاُورِيْكُمْ اٰيٰتِيْ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْنِ ۞

دتلوار [بې صبرئ] نه | ډير زر به اوښايم زه تاسو ته | نښې زما | پس تلوار مهٔ كوئ [دعذاب] زما

تُندي ايښودے شوے ده | زه به ډير زر تاسو ته خپلې نخښې اوښايم | نو تاسو تندي مه كوئ

وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۞ لَوْ يَعْلَمُ

او وائي دا خلق | كله به وي | دا وعده | كه يئ تاسو | رښتيني | افسوس كه معلوم وي

او دوئ وائي چي دا وعده بهٔ كله پوره كيږي كه تاسو رېښتوني يئ [نورانې ولئ] | كاش ! منكرانو ته

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا حِيْنَ لَا يَكُفُّوْنَ عَنْ وُّجُوْهِهِمُ النَّارَ

هغه كسانو ته | چې كافران دي | كوم وخت چي | نهٔ به شي منع كولې | دمخونو خپلو نه | وور

هغه وخت معلوم وے | چي دوئ به نه دخپلو مخونو نه اور منع كولې شي

وَلَا عَنْ ظُهُوْرِهِمْ وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ۞ بَلْ تَاْتِيْهِمْ

او نهٔ دشاګانو خپلو نه | او نهٔ به ددوئ سره | امداد اوكړے شي | بلكه رابه شي دوئ ته |

او نه به دخپلو شاګانو نه نه | او نه بهٔ ورسره څه قسم مدد كولې شي | نور څه نه خو دغه اور

بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ رَدَّهَا

[عذاب] ناڅاپه | پس حيران به كړي دوئ | او طاقت به نشي لرلې دوئ | د واپس كولو دهغې |

به پرې ناګهانه راشي | او دوئ بهٔ حيران كړي | نو بيا به ترې نه هغه اور لرې كولې شي | او نه به ورته

وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ۞ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ

اونهٔ به دوئ ته | مهلت وركړے شي | او بيشكه توقې شوې دي | په رسولانو پورې | مخكښې ستا نه

[دتوبې ويستلو ] مهلت وركولې شي | او ستانه وړاندې هم دپيغمبرانو پورې توقې شوې دي

فَحَاقَ بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ مَّا كَانُوْا

پس چاپيره شو | په هغه كسانو باندې | چې توقې ئې كولې | په دوئ پورې | هغه څيز | چې وو هغوئ

نو چا چې ورپورې خندګانې كولې | دهغوئ نه هم هغه عذاب راتاؤ شو | په كوم پورې

بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۞ قُلْ مَنْ يَّكْلَؤُكُمْ بِالَّيْلِ

په هغې پورې | چي توقې به ئې كولې | ورته اووايه | څوك دے | چي بچ كوي تاسو | په شپه كښې

چې دوئ خندل | [اے پيغمبره] ورته اووايه چي څوك به د رحمان دعذاب نه ستاسو د شپې

وَالنَّهَارِ مِنَ الرَّحْمٰنِ ط بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ مُّعْرِضُوْنَ ۞

او په ورځ كښې | درحمان نه | بلكه دوئ | دذكر | درب خپل نه | مخ اړونكي دي

او د ورځې حفاظت اوكړي | [كه هغه اوغواړي ] خبره داده چي دوئ دخپل رب د ياد نه مخونه اړوي

اَمْ لَهُمْ اٰلِهَةٌ تَمْنَعُهُمْ مِّنْ دُوْنِنَا ۭ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَ

آیا | شته دوئ لره | خدایان | چی منع کړی دوئ | زمونږ نه | دوئ طاقت نه لری | دامداد

آیا دوئ سره زمونږ نه سوا داسې معبودان شته | چې ددوئ حفاظت او کړی ؟ هغوئ

اَنْفُسِهِمْ وَلَا هُمْ مِّنَّا يُصْحَبُوْنَ ۝ بَلْ

دنفسونو خپلو | اونه به ددوئ سره | دطرفه زمونږ نه | ملګرتیا اوکړې شی | بلکه

خو دخپلو خانونو مدد هم نشی کولې | اونه زمونږ په مقابله کښې دهغوی ملګرتیا کولې شی .

مَتَّعْنَا هٰٓؤُلَاۗءِ وَاٰبَاۗءَهُمْ حَتّٰى طَالَ عَلَيْهِمُ

بنه سامانونه ورکول مونږ | دوئ ته | او پلارانو ددوئ ته | تر دې پورې | چې اوږده شو | په دوئ باند

مونږ دوئ او ددوئ پلار نیکه ته دنیاوی نعمتونه ورکړل | تردې چې په دوی باندې یوه اوږده موده تیره

الْعُمُرُ ۭ اَفَلَا يَرَوْنَ اَنَّا نَاْتِي الْاَرْضَ نَنْقُصُهَا

عمرونه | آیا نهٔ وینی دوئ | چی بیشکه مونږه | راځو زمکې ته | چی کموؤ مونږه هغه |

شوه | آیا دوئ نه ګوری چې مونږ [ددوئ دقبضې لاندې] زمکه [په اسلامی فتوحاتو سره] د هرطرفه

مِنْ اَطْرَافِهَا ۭ اَفَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ ۝ قُلْ اِنَّمَآ اُنْذِرُكُمْ

دطرفونو دهغې نه | آیا نو ګنی دوئ به | غالب شی | دوئ ته اووایه | بیشکه چی | زهٔ یروم تاسو

راتنګوؤ | نو آیا د دې باوجود هم دوئ غلبه بیاموندې شی | ته ورته اووایه چې زه خو تاسو صرف

بِالْوَحْيِ ڮ وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَاۗءَ اِذَا مَا يُنْذَرُوْنَ ۝ وَلَىِٕنْ

په ذریعه دوحی | اونه اوری | کانړه خلق | آواز [بلنه] | کله چی | هغوئ یرولې کیږی | او که چری

د وحی په ذریعه [دالله ﷻ دعذاب نه یروم] | او کانړه چې څه وخت ویرولې شی انو هغوی هډو آواز نه

مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ لَيَقُوْلُنَّ يٰوَيْلَنَآ

اورسیږی دوئ ته | لږ شان | دعذاب درب ستا نه | نو خامخا وائی دوئ | اے هلاکته زمونږه |

اوری | اوکه چرې ستادرب له طرفنه دوئ ته دعذاب یوه چپه راشی | نو دوئ وائی چې هائې زمونږ

اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ۝ وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ

بیشکه مونږه | وؤ | ظالمان | او مونږه به کیږدو | تلې | دانصاف | دپاره دورځې

بدبختئ | بیشکه مونږ په خانونو باندې ظلم کړې وو | اومونږ به دقیامت په ورځ د انصاف تلې اولګوو

الْقِيٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْـًٔا ۭ وَاِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ

دقیامت | پس ظلم به نهٔ کیږی | دیو نفس سره | هیڅ قدرله | او که چری وی | په قدر | دیوې دانې |

نو په چا به ذره برابر هم ظلم نشی کولې | اوکه [دچا عمل] دا اوری ددانې هومره هم وړوکې وی انو هم

مِّنْ خَرْدَلٍ اَتَيْنَا بِهَا ۭ وَكَفٰى بِنَا حٰسِبِيْنَ ۝

داوری | رابه وړو مونږه | هغه | او کافی یو مونږه | حساب کونکی |

به هغه بیش کړو | اود حساب اخستلو دپاره مونږ یو ازې بس یو |

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پيغمبره!) ستا نه مخکښې هم مونږ هميشه ژوندي پاتې کيدل دچا دپاره نه دي مقرر کړي پس که ته وفات شوې نو آيا دا خلق داسې دي چه هميشه به ژوندي وي؟ هر ساه لرونکې به مرګ څکي. او مونږ تاسو د ازميښت دپاره په ښه او بدو حالتونو باندې اخته کوو، او تاسو ټول به مونږ ته واپس کولې شئ. او کوم خلقو چه کفر خپل کړې دې، هغوي چه کله تا وينی نو د دې نه سوا د هغوي بل څه کار نه وي چه بس په تا پورې ټوقې کوي (او وائي:) آيا هم دا سړې دې کوم چه ستاسو د خدايانو ذکر کوي؟ (يعنې دې وائي چه د هغوي څه حقيقت نشته) حال دا چه (د دې کافرانو) خپله دا حالت دې چه هغوي د رحمٰن ذات د ذکر کولو نه انکار کړې دې انسان د ګُنديځ خوئې اخستلو سره پيدا شوې دې، زه به ډير زر تاسو ته خپلې نخښې ښائم، لهٰذا په ما باندې تندي مه کوئ او دا خلق (مسلمانانو ته) وائي چه: که تاسو رشتينې يئ نو آخر دا (د عذاب) وعده به کله پوره کيږي؟ کاش چه دې کافرانو ته د هغه وخت څه خبر ملاؤ شي چه دوي به نه د خپلو مخونو نه اور لرې کړې شي، او نه د خپلو ډډو نه، او نه به دوي ته څه مدد ملاؤ شي. بلکه هغه (اور) به هغوي ته ناڅاپه راشي، او د هغوي حواس به ورک کړي بيا به ئې نه دوي شاته کړې شي، او نه به ورته څه مهلت ورکړې شي. او (اې پيغمبره!) ستا نه مخکښې هم دِ پيغمبرانو پورې ټوقې کړې شوې دي، بيا په هغوي پورې ټوقې کونکې هم هغه څيز راګير کړل په څۀ پورې چه به هغوي ټوقې کولې اووايه چه: څوک دې چه په ورځ او شپه کښې د رحمٰن ذات (د عذاب) نه تاسو بچ کړي؟ خو دوي دي چه د خپل رب د ذکر نه ئې مخ اړولې دې. آيا دوئ سره زمونږ نه سوا داسې خدايان دي چه د دوئ حفاظت کوي؟ هغوي خوخپله خپل مدد نه شي کولې، او نه زمونږ په مقابله کښې څوک د هغوي ملګرتيا کولې شي. بلکه معامله دا ده چه مونږ دوئ ته او د دوئ پلار نيکه ته د مزو سامان ورکړو، تردې چه (هم هغه حالت باندې) په هغوي باندې يو عمر تير شو آيا دوئ ته دا په نظر نه راځي چه مونږ زمکه د هغې د مختلفو اړخونو نه راکموو ، بيا آيا دوئ به غالب شي؟ اووايه چه: زه خو تاسو د وحي په ذريعه ويروم، خو کاڼره خلق داسې دي چه کله هغوي اويرولې شي نو هغوي هيڅ بلنه نه اوري او که ستا د رب د عذاب يو چپه هم په هغوي راشي نو وائي به چه: افسوس دې په مونږ، يقيناً مونږ ظالمان وو او مونږ به د قيامت په ورځ باندې داسې تله کيږدو کومه چه به دا انصاف نه ډکه وي پس په چا باندې به هيڅ ظلم نه کيږي او که يو عمل د اوري د دالې برابر هم وي، نو مونږ به هغه مخامخ راوړو. او د حساب اخستلو دپاره مونږ کافي يو.

### خلاصه تفسير

[او] داخلق کوم چه ستا دوفات خوشحالئ کوي لکه دا قول دالله تعالى [نتربص به ريب المنون ][1] دا وفات هم منافي دنبوت نه دي ځکه چه ﴿وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّن قَبْلِكَ الْخُلْدَ﴾ [مونږ تانه وړاندې هم چابنده لره] خواه هغه نبي وي او که غير نبي په دنيا کښې [هميشه پاتې کيدل نه دي تجويز کړي لکه چه دا قول دالله تعالى دې [وَمَا كَانُوا خَالِدِينَ ][2] پس لکه څنګه چه ستا نه

---

[1] ترجمه:- مونږ ددوئ باره کښې د مرګ د حادثې په انتظار کښې يو.
[2] ) او هغه حضرات هميشه اوسيدونکي نه دي.

ورانديږ پيغمبرانو تـه مـرګ راغلي دي او پـه دي سره ددوی پـه نبوت کښي دچا شك نـه دي راغلي دغه شان ستا په وفات سره ستا په نبوت کښي هيڅ شك نه شي کيدي لنډه دا ده چه نبوت او مرګ دواړه په يو سړی کښي جمع کيدي شی [بيا ] داچـه ﴿اَفَاۡىِٕنْ مِّتَّ فَهُمُ﴾[ کـه چرې ستا انتقال وشی نو ايا داخلق به ] په دنيا کښي ﴿الْخٰلِدُوْنَ﴾[ هميشه پاتې وی ؟ ] اخر دوی بـه هم مری بيا دخوشحالئ څه ځایٔ دي مطلب دادي چه ستا پـه وفـات سره ددوی خوشحالی کـه دنبوت دباطليدو دپاره وی نـو [ ماجعلنا لبشر الخ ] ددې جواب دي اوکـه پـه ذاتـی بغض او دښمنئ سره وی نو [اَفَاۡىِٕنْ مِّتَّ الخ] ددي جواب دي غرض په هر حال کښي دا انتظار مهمل او عبث دي اومرګ خو داسې شې دي چه په تاسو کښي ﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ﴾[ هر جانداربه دمرګ مزه وڅکی او] داچه کوم يو څوورخې مونږ تاسو تـه ژونـد درکړې دي نـو ددې مقصود محض دادي چه ﴿وَنَبْلُوْكُمْ بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً﴾[ مونږ تاسو پـه بـد او ښـه حـالـتونو سره وازمـايو ] دبدحالت نه مراد کوم چه دمزاج نه خلاف وی لکـه مرض فقر او دښه حالت نـه مـراد کـوم چه دمزاج موافق وی لکه صحت او غنا پـه ژونـد کـښي دا حالتونـه پـه مختلف طورسره راپيښيږی څوك په دي کښي ايمان او اطاعت پـه ځـایٔ راوړی او څوك کفر اونافرمـانی کـوی مطلب دادي چه ژوند په دي وجه درکړې شوې دي چه وګورو چه څنګه څنګه عمل کوئ [ او ددي ژونـد پـه ختميدو به ﴿وَاِلَيْنَا تُرْجَعُوْنَ﴾ [بيا تاسو ټول مونږ ته راواپس کيږئ راځئ به ] او هر يو ته بـه ددهٔ مناسب سزا او جزا ورکوو پس اهم کـار خو مـرګ او دمـرګ نـه پس شـو او ژونـد خـو محض عارضی شو بيا داخلق په دي ولې مستی کوی او دپيغمبر په وفـات خوشحالئ کـوی ؟ داسـې ولې ونه شوه چه په دي عارضی ژوند کښې ئې دولت دايمـان او طاعـت ګټلي کـوم چـه بـه ددوی په کـار راغلي وو او اولتيه خپله عملنامـه توره او د آخرت منزل درنـوی ويريږی نـه [ او] ددي منکرانو دا حالت دي چه ﴿وَاِذَا رَاٰكَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ يَّتَّخِذُوْنَكَ اِلَّا هُزُوًا﴾[ دا کـافـران خلق کله چـه تـا ويني نو بس په تا پورې خنداګاني او ټوقې شروع کړی ] او پـه خپـل مـينځ کـښي وائـي ﴿اَهٰذَا الَّذِيْ﴾[ چه ايا دا هغه ] صاحب [دي ﴿يَذْكُرُ اٰلِهَتَكُمْ﴾ کوم چه ستاسو دمعبودانو ] په بدئ سره [ ذکرکوی ] پس په تـاخو دبتانونـه د انكـار هـم اعتـراض دي [او] پـه خپلـه ﴿وَهُمْ﴾[ دا] خلق دا] ﴿بِذِكْرِ الرَّحْمٰنِ﴾[درحمن ] جَلَّ ﴿هُمْ كٰفِرُوْنَ﴾[په ذکر بانـد انكـار] او کفر [کوی ] نـو د اعـتـراض خبره خو په حقيقت کښي داده په دي وجه دوی لره په خپل دي حالت پورې مسخرې کـول پکـار وو او ددوی حالت دادي چه کلـه دکفر دسزا مضمون اوری لکـه چـه بره ذکـر شـوې دي [ اليـنـا ترجعون ] نو په دي وجه چه دروغژن ئې ګنړی ددې خبرې تقاضاکوی چه داسزا زر راشـی او دا تقاضا او تلوار کول څه د انسانی طبيعت خاصه اکثريه هم ده پس ددې طبعـی کيـدل داسـې دی لکه چه ګويا ﴿خُلِقَ الْاِنْسَانُ مِنْ عَجَلٍ﴾[ انسان دجلدبازئ ] دخميرا نه جوړ دي ] يعنـی تلـوار او جلدبازی ګويا که د دهٔ اجزاء ترکيبيه دی په دي وجه دا خلق عذاب زر زر غـوارې او ددې پـه ژر نه راتللو بانـد دوی دليل نيسی چه دا به نه واقع کيږی ليکن اے کـافـرانو دا ستاسو غلطی ده څکه چه ددې وخت معين دي پس لږ صبر وکړئ ﴿سَاُورِيْكُمْ اٰيٰتِيْ﴾[ مونږ ډير زر] ددغې پـه وخـت راتلو [ تاسو ته خپلې نښې ] دقهر يعنی سزاګانې [ ښايو﴿فَلَا تَسْتَعْجِلُوْنِ﴾ پس تاسو پـه مـا جلدی مه کوئ ] څکـه چـه عـذاب د وخت نـه وړانـدې نـه راځـی او چـه وخـت ئې راشی نـو واپـس کيږی نه [ او داخلق ] کله چه دامضمون اوری چه په وعده شوی وخت به عذاب راځـی نـو رسـول

او مومنانو ته داسې ﴿وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ﴾ [ وائي چه دا وعده به څه وخت راځي ﴿اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ﴾ كه تاسو] دعذاب دواقع كيدو په خبر كښې [رښتوني يئ] نو توقف په كښې ولې دې زر ولې نه راځي؟ اصل خبره داده چه دوی ددغې مصيبت نه خبرنه دي چه داسې بې فكره خبرې كوي ﴿لَوْ يَعْلَمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا حِيْنَ﴾ [ كاش چه دا كافران دهغې وخت نه خبر وې كله چه ] دوی لـه دهرطرف نـه ددوزخ اور راګير كړي او ﴿لَا يَكُفُّوْنَ عَنْ وُّجُوْهِهِمُ النَّارَ وَلَا عَنْ ظُهُوْرِهِمْ وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ﴾ [ داخلق بـه نـه دغـه اور دخپلې مخې نـه منع كولې شي اونـه دخپلې شانه اونه به ددوی څوك حمايت كوی ] يعنی كه ددې مصيبت نه خبر وې نو داسې خبرې به يئ نه جوړولې او دا چه كوم په دنيا كښې د اور عذاب دپاره فرمائش كوی پس دا ضروری نه ده چه ددوی دفرمائش مطابق د اور عذاب راشي ﴿بَلْ تَأْتِيْهِمْ بَغْتَةً﴾ [ بلكه دغه اور ] خو [ به دوی لره يو دم راونيسي ﴿فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ رَدَّهَا وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ﴾ پس دوی لره به بد حواسه كړي بيا به نه دهغې دلرې كولو ددوی قدرت وی اونه به دوی ته مهلت وركولې شي او] كه دغه خلق داسې ووائي چه ددغې عذاب وعده خو په اخرت كښې ده په دنيا كښې نه شي راتلې نو ښه په دنيا كښې خو يئ څه نمونه وښايئ نو اګر چه دنمونې دپاره دهغې ښودل ضروری نه دی ليكن بيا هم دوی ته دنمونې ليدلو دپاره پته وركوو هغه داچه ﴿وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ﴾ [تانه وړاندې كوم پيغمبران تيرشوی دی دهغوی سره هم ] دكفارو دطرف نه [مسخرې وشوې ﴿فَحَاقَ بِالَّذِيْنَ سَخِرُوْا مِنْهُمْ﴾ پس كوم خلقو چه ددوی سره مسخرې كړې وې په هغوی هغه عذاب واقع شو ﴿مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ﴾ په كوم پورې چه به يئ مسخرې كولې ] چه عذاب كوم دې پس ددې نه معلومه شوه چه كفر موجب دعذاب دې نو كه په دنيا كښې واقع نه شي نو په اخرت كښې به وی او داهم دوی ته ﴿قُلْ﴾ [ ووايه ] چه په دنيا كښې كوم تاسو دعذاب نه محفوظ يئ نودا حفاظت هم حضرت رحمن كوی په دې كښې هم دهغه احسان او په توحيد دلالت دې اوكه تاسو دانه منئ نو بيا وښايئ ﴿مَنْ يَّكْلَؤُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ مِنَ الرَّحْمٰنِ﴾ [ چه هغه څوك دې كوم چه دشپې او ورځې درحمن ] دعذاب [نه ستاسو حفاظت كوی ] او ددې مضمون منلې شوې مقتضا دا وه چه په توحيد قائله شوی وې مګر دغه اوس هم قايل نـه شو ﴿بَلْ هُمْ﴾ [بلكه دغه خلق ] اوس هم په خپل دستور دخپل ] حقيقي ﴿عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ﴾ [ رب دذكر ] دتوحيد قبلولو ﴿مُّعْرِضُوْنَ﴾ [ نه مخ اړوي ] البته مونږ د ﴿مَنْ يَّكْلَؤُكُمْ﴾ دمصداق دوضاحت دپاره په وضاحت سره تپوس كوو چه ﴿اَمْ لَهُمْ اٰلِهَةٌ تَمْنَعُهُمْ مِّنْ دُوْنِنَا﴾ [ ايا ددوی زمونږ نه سوا نور داسې معبودان شته چه ] دذكر شوی عذاب نه [ددوی حفاظت كوی ] دغه عاجزان به ددوی څه حفاظت وكړي دهغوی دعاجزئ او بې وسئ خو دا حالت دې چه ﴿لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَ اَنْفُسِهِمْ﴾ [هغه خو په خپله دخپل حفاظت قدرت نه لري ] مثلا كه څوك ددوی په ماتولو شروع شي نو خپل خان تري هم نه شي خلاصولې لكه دالله تعالى دا قول [ وان يسلبهم الذباب الخ ] پس نه دغه ددوی معبودان ددوی حفاظت كولې شي ﴿وَلَا هُمْ مِّنَّا يُصْحَبُوْنَ﴾ [ او نه زمونږ په مقابله كښې څوك ددوی ملګرتيا كولې شي ] او دا خلق سره ددې قوی دليلونو كوم چه حق نه قبلوی نو دا وجه نه ده چه په دعوی يا دليل كښې څه خلل دې [بلكه] اصل وجه ددې داده چه ﴿بَلْ مَتَّعْنَا هٰؤُلَاءِ وَاٰبَآءَهُمْ﴾ [ مادوی لره او ددوی پلارانو نيكونو لره ] ددنيا [ ښه سامان وركړو ﴿حَتّٰى طَالَ

عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ﴾ تردې چه په دوی ] په دې حالت کښې [ يوه اوږده زمانه تيره شوه] چه پشت په پشت عيش او ارام کوی راوان دې پس دوی مغروره شول او سترګې ئې پټې شوې مطلب دادې چه په دوی کښې دغفلت خلل دې ليکن ددُومره تشريعی او تکوينی پوهولو باوجود داسې غفلت نه دې پکار چنانچه دپوهولويو بل کار ذکر کولې شی هغه دا چه ﴿أَفَلَا يَرَوْنَ أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ﴾[ايا دوی ته دا په نظرنه راځی چه مونږ ] ددوی [زمکې لره] په ذريعه داسلامی فتوحاتو﴿نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا﴾ [ دهر څلور طرفه نه برابر کموو پس ﴿أَفَهُمُ الْغَالِبُونَ﴾ ايا دا خلق] دا توقع لری چه په نبی کريم ﷺ او مؤمنانو [ به غالب شی ] ځکه چه عادتی قرينې او دليلونه نازليدونکی په دې متفق دی چه دوی به مغلوب او اهل حق به غالب وی تر هغه وخته پورې چه مسلمانان دالله تعالى دا طاعت نه مخ وانه روی او د اسلام حمايت پرې نه بږدی پس په دې کار کښې تامل کول هم د پوهيدو دپاره کافي دی که په دې باند هم دعنا د اوجهالت په وجه دعذاب واقع کيدو فرمائش کوی نو ﴿قُلْ إِنَّمَا أُنذِرُكُم بِالْوَحْيِ﴾[ته ووايه چه زه خو صرف د وحی په ذريعه سره تاسو لره ويروم ] دعذاب راوستل زما دوس نه بهر دی [او] اګر چه دا طريقه حق ته ددعوت ورکولو او د ويرولو دپاره کافي ده مګر ﴿وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَاءَ﴾[ دا کاڼره څه وخت چه ] حق ته رابللو دپاره دعذاب نه ﴿إِذَا مَا يُنذَرُونَ﴾ [ويرولې شي نو نه اورې ] او دحق دواضحه کيدو په طريقه تامل نه کوی مګر هم داسې په مخه عذاب غواړی [او] ددوی دلويئ همت حال خو دادې چه ﴿وَلَئِن مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ﴾[که دوی ته ستا درب دعذاب يو ذره قدرې چپه هم ور ورسی نو] ټوله بهادری به ئې ختمه شي او ﴿لَيَقُولُنَّ يَا وَيْلَنَا﴾[داسې به وائي چه هائې زمونږ کم بختئ ] ځنګه مونږ ته مخې له راغلې ﴿إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ﴾[واقعې مونږه خطا کار وو ] بس په دې همت باند دعذاب فرمائشونه کوی واقعی دشرارت هم دا مقتضا وه چه په دنيا کښې فيصله شوې وې مګر مونږ د ډيرو حکمتونو په وجه په دنيا کښې وعده شوې سزا نه غواړو چه وشی بلکه د اخرت دپاره ئې ساتو [او ] هلته ﴿وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾[ دقيامت په ورځ به مونږ ميزان دعدل قائم کړو] او دټولو عملونو به وزن کوو ﴿فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا﴾[پس په چا به هرګز ظلم نه شي کيدې ] او دظلم نه کيدو به دا فائده وی چه [ اوکه دچا څه ﴿وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ﴾[ عمل د اوری دانې برابر هم وی ﴿أَتَيْنَا بِهَا﴾ خو مونږ به هغه لره] هلته [ حاضر کړو] او دهغه به هم وزن وکړو ﴿وَكَفَىٰ بِنَا حَاسِبِينَ﴾[ اومونږ حساب اخستونکی کافي يو ] زمونږ ددې وزن او حساب نه پس به بيا دڅه حساب او کتاب ضرورت پاتې نه شی بلکه په دغه باند به ټوله فيصله وشی پس هلته به د خلقو د شرارتونو هم کافي او مناسب سزا جاری کړې شی.

## معارف او مسائل

[وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّن قَبْلِكَ الْخُلْدَ] ددې څخه مخکښې آيتونو کښې د کفارو او مشرکانو د باطلو عقيدو او د شرکيه عقائدو او ګمراه کوونکو عقيدو ترديدو او باطل والې په واضحو دلائلو سره کړې دې چې په [هغه عقيدو او شرکونو کښې دا وو چې] مسيح عليه السلام او عزيز عليه السلام يې الله ﷻ سره شريك ګڼړل اويا فرښتو او مسيح عليه السلام ته يې دالله ﷻ زوئې وئيلو، او ددې مخالفينو سره هيڅ جواب نه وو . کله چې په د اسې موقعه باندې مخالف په دليل او حجت سره مغلوب

شي نودې سره اضطراب پيدا كيږي ، او ددې نتجه هم دا وه چې دمكې مشركانو دا خواهش كول چې نبی كريم ﷺ زر تر زره وفات شي . لكه څنګه چې په بعض آيتونو مباركو كښې راغلي دي چې [نَتَرَبَّصُ بِهٖ رَيْبَ الْمَنُوْنِ] (۱) دې آيت مبارك كښې الله ﷻ ددغې خراب خواهش دوه جوابونه وركړي دي ، يعنى كه رسول الله ﷺ زر وفات شي نو تاسو ته څه فائده ده ، كه چرې ستاسو مقصد دا وي چې د نبی كريم ﷺ په وفات كيدو سره به تاسو دا اووايې چې مونږ به خلقو ته دا اووايو چې كه دې پيغمبر وې نو دې به وفات كيدو نه ، نو ددې جواب يې دا وركړو چې د كومو پيغمبرانو پيغمبري تاسو هم منئ هغوئ خو هم وفات شوي دي او بيا يې هم تاسو پيغمبران منئ . نو ددوئ ﷺ په وفات به تاسو ددوئ ﷺ د پيغمبرئ څنګه پراپيګنده كولې شئ ، اوكه په زر وفات كيدو سره ستاسو غصه سړيږي نو دا ياد ساتئ چې تاسو به هم وفات كيږئ . نو د بل په مړ كيدو د خوشحالئ څه معنى ده ؟

اگر بمرد عدد جائے شادمانی نیست     که زندگانی مانیز جاودانی نیست(۲)

**مرګ څه څيز دې ؟** بيا يې اوفرمائيل چې [كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ] [هر څوك به د مرګ مزه څكي] دلته د نفس څخه مراد د زمكې ساه لرونكي څيزونه دي . چې ټول به خامخا مړۀ كيږي . فرښتې په دې كښې نه دي شاملې ، په دې كښې اختلاف دې چې يو ساعت دپاره خو به به هر ساه لرونكئ څيز مړ كيږي كه دزمكې مخلوق وي او كه د آسمانونو فرښتې وي . بعضې حضراتو فرمائيلي دي چې فرښتې او دجنت حورې او غلمان به د مړ كيدو نه خلاص وي [والله اعلم][روح المعاني](۳)

د جمهورو عالمانو په نزد د مرګ حقيقت دادې چې د عنصرى بدن څخه روح اوځى ، او روح پخپله يو نورانى لطيف بدن دې چې ژوندې په كښې شته او حركت كوى ، دا د انسان په ټول بدن كښې داسې خور دې لكه د ګلابو عرق چې په ټول ګلاب كښې خوره وى ، ابن قيم د روح حقيقت بيان كړې دې او په سلو دليلونو سره يې ثابت كړې دې ، [روح المعاني](۴)

[ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ] دې كښې يوه اشاره موندې شي چې هر ساه لرونكئ څيز به د مرګ تكليف محسوسوي . څكه چې مزه څكل هم داسې موقعو دپاره استعماليږي . ولې چې دا خبر هم ښكاره چې هر كله روح ، بده سره يو ځائې شي نو ددې د وتلو په وخت كښې خامخا تكليف به محسوسيږي و چرته چې دا وئيلې شوي دي چې د ځينې الله والا خلق په مرګ كښې خوند محسوسوي ، هغوئ ته څكه آرام رسى چې ددنيا د تنګسو نه بې غمه شي او محبوب اكبر سره يې ملاقات نصيب كيږي . خو ددې مطلب دا نه دې چې هغوئ ته دمرګ طبعى او بدنى هيڅ تكليف نه وي بلكه مطلب يې دادې چې په دې لوې راحت او خوشحالئ په مقابله كښې هغوئ ته د مرګ تكليف هيڅ نه ښكاري ، نو ځينې الله والا خلقو ددنيا غمونو ، تكليفونو او مصيبتونو ته محبوب وئيلي دي .

---

(۱) ترجمه:- مونږ ددوئ باره كښې د مرګ د حادثې په انتظار كښې يو.
(۲) ترجمه:- كه دښمن مړ شي نو داد خوشحالئ موقعه نه ده څكه چې زمونږ ژوند هم هميشه پاتې كيدونكې نه دې.
(۳) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۷ ص:٤٦]
(۴) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۷ ص:٤٦]

از محبت تلخها شيرين شوند

[څه سره چې د چا مينه وي نو په هغې لار کښې هر قسم تکليفونه ورته آرام ښکاري]

غم چه استاده تو بردرما اندر آيار ما برادر ما

[غمه! څه د پاره زمونږ دروازې نه بهر ولاړ يې ، رادننه شه زمونږ دوسته او روره!]

دغه شان مولانا رومي هم فرمائيلي دي چې :

رنج راحت شد چو مطلب شد بزرگ گرد گله تو تيائے چشم گرگ

[کله چې مقصد لوړ او اعلى وي نو ددغې لارې راپيښ شوي غمونه او تکليفونه آرام او راحت جوړيږي څنګه چې د ګډوبيز د رمې دوړې د ليوه د سترګو رانجه ، کاجل او يخوالې وي]

**ددنيا هر تکليف او راحت کښې يو آزميښت وي:** [وَنَبْلُوكُمْ بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً ۭ] [او مونږ په خير او شر سره د انسان آزميښت کوؤ] د لته د شر څخه مراد د طبيعت څخه خلاف څيزونه دي لکه مرض ، بيماري ، غمونه ، لوږه ، تنده ، نيستي شوه او شتمني او د عيش عشرت سامانونه وغيره شو . دا دواړه قسمه څيزونه انسان ته د آزميښت د پاره راپيښيږي چې دې په خلاف طبع څيزونو باندې صبر کوي اوکه نه کوي ؟ او طبع ته په خوښو څيزونو باندې شکر ادا کوي او که نه ؟ بزرګانو فرمائيلي دي چې د شکر په حقونو باندې کلك پاتې کيدل ګران دي د حقونو د صبر څخه ، ولې چې انسان ته په تکليفونو باندې صبر کول دومره ګران نه دي څومره چې دمزو ، خوندونو او آرام او راحت په موقعه ددې شکر ادا کولو په حقونو باندې کلك پاتې کيدل دي ، په دې بنا فاروق اعظم ﷺ اوفرمائيل چې :بلينا بالضراء فصبرنا وبيننا بالسراء فلم تصبر[روح المعاني][1]

[د تکليفونو په آزميښت کښې مو صبر اوکړې شو خو د آرام او مزو اوخوندونو په آزميښت کښې مو صبر او نه کړې شو]

جلدي او تادي کول خراب عادت دې:: [خُلِقَ الْإِنْسَانُ مِنْ عَجَلٍ ۭ] عجل دعجلت او د جلدئې او تادئ په معنى کښې رازي . د يو خپل وخت څخه وړاندې د يو څيز غوښتل . ددې حقيقت دادې چې دا بده خبره ده ، چنانچه قرآن کريم په يو بل ځائې کښې فرمائي چې : [وَكَانَ الْإِنْسَانُ عَجُولًا۝] [او انسان ډير جلدي کوؤنکې دې] کله چې موسى ﷺ په جلدئې سره د د خپل قوم څخه وړاندې کوه طور ته ځان ور اورسولو نو په دغې جلدئې ورته زورنه ورکړې شوه ، چرته چې په جلدئ کولو سره د پيغمبرانو ﷺ او دنيکانو خلقو صفت بيان شوې دې نو هغه په نيکو کارونو کښې جلدي کول دي چې د وخت څخه وړاندې د يو څيز طلب کول نه دي بلکه په خپل وخت باندې د نيکيانو د زياتولو کوشش کول دي . والله اعلم .

د [خُلِقَ الْإِنْسَانُ مِنْ عَجَلٍ ۭ] مطلب دادې چې د انسان په طبيعت کښې د کمزوريانو څخه جلدي کول هم دي کوم څيز چې د چا په طبيعت او فطرت کښې داخل وي نو عرب وائي چې دغه انسان د دغې څخه جوړ دې لکه ډير غصه بنده ته چې وئيلې شي چې داهم د غصې څخه جوړ دې .

[سَاُورِيْكُمْ اٰيٰتِيْ] دلته د آيات څخه مراد معجزې او حالتونه دي چې د رسول کريم ﷺ په رښتينوالي او حقوالي باندې ګواهي ورکوي ، [قرطبي][2] لکه چې د بدر په غزا کښې دغسې

[1] روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۷ ص: ۱۴۶]
[2] تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۱ص:۲۸۹]

نخښې ښه په ښکاره شوې چې په انجام کښې د هغې مسلمانانو کامیابي ټولو خلقو پخپلو سترګو اولیده کوم چې د ټولو څخه کمزوري او ذلیل ګڼړلې شو.

**قیامت کښې د اعمالو تلل او ددې دپاره تله:** [وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيْمَةِ] موازين دميزان جمع ده، چې د تلې معنی ورکوي. دلته د موازین صیغې د جمعې راوړړو څینې مفسرینو حضراتو دا مطلب اخستې دې چې د عملونو تللو دپاره به د قیامت په ورځ ډیر قسمه تلې استعمالولې شی، یا خو به د هر چا دپاره جدا جدا تله وی او یا به د جدا جدا قسم عمل دپاره جدا جدا تله وی، خو جمهورو عالمانو په دې اتفاق کړې دې چې میزان خو ب هم یوه وی خو هر کله چې هغه به د ډیرو میزانونو کار ورکوی څکه ددې دپاره د جمع صیغه استعمال شوې ده، آدم علیه السلام څخه تر قیامته پورې د ټولو خلقو عملونه به هم په دې میزان تللې ش، د قسط معنی عدل او انصاف ده، مطلب یې دادې چې دغه میزان به په عدل او انصاف سره تلل کوی، هیڅ قسم کمې یا زیاتې به نه کوی.

مستدرك حاكم کښې د سلمان فارسی رضی الله عنه څخه روایت دې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې د قیامت په ورځ به کوم میزان د عملونو تللو دپاره اینبودلې شی هغه به دومره لوې وی چې که آسمانونه او زمکه په کښې تلل اوغوښتلې شی نو هغه به په کښې هم راتلې شی او تللې شی. [مظهری] (۱)

حافظ ابن ابوالقاسم لالکائی رحمه الله پخپل سنن کښې د انس رضی الله عنه څخه روایت نقل کوی چې په میزان کښې به یوه فرښته مقرره وی او هر انسان به ددې میزان مخې ته راوستې شی، د چا دنیکئ چابړې چې دروند شی نو فرښته به داسې آواز کوی چې د محشر ټول خلق به یې آوری چې فلانې کامیاب شو، اوس به چرې هم دا کس نه بې نصیبه کیږی او د چا د نیکئ چابړې چې سپك شی نو دغه فرښته به هم دغه شان آواز کوی چې فلانې بنده بدنصیبه شو څکه به کله هم کامیاب نشی او هم دې حافظ رحمه الله د حذیفه رضی الله عنه څخه روایت نقل کړې دې چې په میزان باندې دغه مقرره فرښته به جبرائیل علیه السلام وی. [قرطبی] (۲)

حاكم، بیهقی او اجری د عائشه صدیقه رضی الله عنها څخه روایت نقل کړې دې چې هغه فرمائی چې ما درسول کریم صلی الله علیه وسلم څخه تپوس اوکړو چې آیا د قیامت په ورځ به هم تاسو صلی الله علیه وسلم ته خپل آل او اولاد یاد وی؟ نو وې فرمائیل چې درې ځایونو کښې هیچا ته هیڅوك نه یادیږی، یو هغه وخت چې د میزان عدل په وړاندې د عملونو تللو دپاره حاضر وی تر هغې پورې چې عملونه یې نه وی تللې شوی، بل هغه ځائې کښې چې کله به عمل نامه راولوزولې شی تر څو چې دا معلومه نشی چې عمل نامه په ښی لاس کښې راغله یا په ګس لاس کښې، یا د چا طرفته راغله، او دریم مقام د پل صراط دې، تر څو چې دې څخه څوك پورې وتلی نه وی نو هیڅوك به چاته یاد نه وی. [مظهری] (۳)

[وَاِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ اَتَيْنَا بِهَا] یعنی د حساب په ورځ او دعملونو د تللو په وخت د انسان واړه لوې ښه او بد عملونه حاضر کړې شی چې حساب او تلل یې ا وکړې شی.

---

(۱) تفسیر المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٢٠٠] والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[٨٨٩١]

(۲) تفسیر القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١١ص:٢٩٣]

(۳) المستدرك للحاكم رقم الحديث:[٨٨٧٣]

**د عملونو د تول صورت**: دا هم کیدې شي چې د فرښتو هغه لیکلي عمل نامې به تللې شي څنګه چې د حدیث بطاقة څخه ورته اشاره شوې ده او داهم کیدې شي چې د جوثه دارو څیزونو په صورت به شي او تللې به شي، څنګه چې په عامو روایتونو کښې هم راغلي دي، او جمهورو عالمانو هم دا صورت اختیار کړې دې، چنانچه قرآن پاك د [وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا][1] وغیره آیتونو او حدیث پاك د ډیرو روایاتو څخه هم ددې تائید کیږي.

**د عملونو حساب کتاب کول**: ترمذي د عائشه صدیقه رضي الله عنها څخه روایت نقل کړې دې چې یو سړې د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د رسول کریم ﷺ مخې ته کښیناستو او دا بیان یې شروع کړو چې زما دوه غلامان دي هغوئ ماته دروغژن وائي او په معاملو کښې خیانت کوي، زما دحکمونو خلاف ورزی کوي چې دهغې په بدل کښې ورته په خله هم بدې ردې وایم او سزا هم ورکوم، نو زما او ددې غلامانو تر مینځه به څنګه انصاف کیږي؟ رسول اکرم ﷺ ورته اوفرمائیل چېد هغوئ نافرماني خیانت او سرکشي به تللې شي، بیا به ستا کنځل، بدې ردې او سزا هم تللې شي، که د هغوئ جرم او ستا سزا برابر وو نو د واړه خلاص یې، او که سزا دهغوئ دجرم څخه کمه وه نو هغه به ستا احسان شمارلې کیږي، او که د هغوئ دجرم څخه سزا زیاته وه نو تا سره به ددغې زیاتئ حساب کتاب کولې شي، او قصاص به اخستې شي، هغه سړې پورته شو او یو طرفته کښیناستو او په ژړا شو، نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چې آیا تا په قرآن پاك کښې نه دي لوستلي دي چې یې تپوس اوکړو چې [وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ]. هغه عرض او کړو چې اوس خو ما دپاره ددې څخه سوا بله لار پاتې نشوه چې زه یې آزاد کړم او د حساب کتاب ددغې غمه خلاص شم، [قرطبی][2]

| وَلَقَدْ | اٰتَيْنَا | مُوْسٰى | وَهٰرُوْنَ | الْفُرْقَانَ | وَضِيَاءً | وَّذِكْرًا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او په تحقیق ورکړي وو مونږه موسی او هارون ته | | | | فرق کونکي په منځ دحق او دباطل کښې | او رڼا | او نصیحت |
| اومونږ موسی علیه السلام اوهارون ته [تورات] ورکړې وو | | | | چې په حق اوباطل کښې فرق کوونکي او رڼا وه اود پرهیزګارو | | |

| لِلْمُتَّقِيْنَ | الَّذِيْنَ | يَخْشَوْنَ | رَبَّهُمْ | بِالْغَيْبِ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره دپرهیزګارانو | هغه پرهیزګاران | چې هغوئ یریږي | درب خپل نه | په غیب سره [بې لیدو] |
| دپاره نصیحت وو | ..............هغه خلق چې دخپل رب نه غائبانه ویریږي | | | |

| وَهُمْ | مِّنَ السَّاعَةِ | مُشْفِقُوْنَ | وَهٰذَا | ذِكْرٌ | مُّبٰرَكٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| او هغوئ | دحساب کتاب دوخت نه | یریدونکي وي | او دا [قران] | نصیحت دي | برکتناك |
| دقیامت نه هم ویره کوي | | | او دا [قران پاک] بابرکته نصیحت دې | | کوم چې مونږ نازل |

| اَنْزَلْنٰهُ | اَفَاَنْتُمْ | لَهٗ | مُنْكِرُوْنَ |
|---|---|---|---|
| نازل کړې دې مونږه دا | آیا تاسو | ددې نه | انکار کونکي یئ |
| کړې دې | نو آیا تاسو ددې نه انکار کوئی | | |

[1] ترجمه:- او څه چې دوئ کړي وو هغه به ددوئ په وړاندې حاضر وي.

[2] تفسیر القرطبي تحت هذه الآية [ج:١١ ص:٢٥٧] و جامع الترمذي ، ابواب التفسیر باب ومن تفسیر سورة الأنبیاء [ج:٢ ص:١٤٩]

## آسان ترجمه قرآن

اومونږ موسیٰ او هارون ته د حق او باطل یو معیار (د هدایت) یو رڼړا او د هغه متقیانو خلقو دپاره د نصیحت سامان ورکړی وو چه د لیدو نه بغیر د خپل رب نه اویریږی، او څوک چه د قیامت نه په ویره کښې وی. او اوس دا (قرآن) د برکتونو والا د نصیحت پیغام دې کوم چه مونږ نازل کړې دې. آیا بیا هم تاسو ددې د منلو نه انکار کوئ؟

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ﴾ [ اومونږ] تانه ورانديږ [موسى عليه السلام اوهارون ] عليه السلام ﴿الْفُرْقَانَ وَضِيَآءً وَّذِكْرًا لِّلْمُتَّقِيْنَ﴾ [ته يو دفيصلې او رڼړا اود متقضيا نو دپاره دنصيحت څيز] يعنى تورات [ورکړې وو چه کوم ] متقيان ﴿الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ﴾ [دخپل رب نه بې ليدو ويره کوى او] دالله تعالى نه د ويرې په سبب ﴿وَهُمْ مِّنَ السَّاعَةِ مُشْفِقُوْنَ﴾ [ دغه خلق دقيامت نه ] هم [ويره كوى ] ځکه چه په قيامت کښې ددې ويره ده چه د الله تعالى ناراضتيا او سزا ونه شى [ او لکه څنګه چه دغه کتاب مونږ هغوى ته ورکړې وو دغه شان ﴿وَهٰذَا ذِكْرٌ مُّبٰرَكٌ﴾[دا] قرآن هم [يو د ډيرو فائدو دنصيحت] کتاب [ دې کوم لره ﴿اَنْزَلْنٰهُ﴾ چه مونږ نازل کړو ﴿اَفَاَنْتُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ﴾ پس ايا] پس ددې کتابونو د نزول نه چه عادت الله معلوم شو او په خپله ددې د الله تعالى دطرف نه نازليدل په دليل سره ثابت دى [ بيا هم تاسو ددې ] دالله تعالى دطرف نه دنازليدو [ نه منكر يئ؟]

## معارف او مسائل

[﴿الْفُرْقَانَ وَضِيَآءً وَّذِكْرًا لِّلْمُتَّقِيْنَ﴾] دا درې صفتونه د تورات دى يعنى د باطل او حق ترمينځه بيلتون راوستونکې او زړونو دپاره ضياء او نور دې ، او خلقو دپاره ذکر او تذکير او د هدايت ذريعه دې ، ځينې حضراتو فرمائيلى دى چې فرقان څخه مراد د الله ﷻ مدد دې چې په هره موقعه باندې موسى عليه السلام سره داسې كيدو چې پالنه ئې هم د فرعون په كور كښې اوشوه او بيا هغه سره د مقابلې په وخت ئې موسى عليه السلام مخ رونړې او فرعون ئې ذليل كړو. بيا الله ﷻ موسى عليه السلام او ملګرو ته ئې په درياب كښې لارې جوړ كړې چې هغوئ ترې په خير خيريت پورې وتل او فرعونيانو چې پرې ورګډ شو نو غرق ئې كړل ، دې څخه روستو هم هغوئ عليه السلام سره په هر موقعه باندې د الله ﷻ امداد ليدلې كيدلې شو . ضياء او ذكر دواړه د تورات صفتونه دى ، قرطبى دا غوره کړې ده چې دا لفرقان څخه روستو په واؤ راوړو سره دې خبرې ته اشاره معلوميږى چې فرقان د تورات څخه علاوه څه بل څيز دې . والله اعلم.

وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ
او په تحقيق سره ورکړې وه مونږه | اومونږ ابراهيم عليه السلام ته د دې [قرآن] نه وړاندې

اِبْرٰهِيْمَ | رُشْدَهٗ | مِنْ قَبْلُ | وَكُنَّا | بِهٖ
ابراهيم عليه السلام ته | ښه پوهه دهغه | مخکښې دهغې نه هم | او وو مونږه | په ابراهيم عليه السلام باندې
هدايت وركړې ووا او مونږ د هغه [ابراهيم د صلاحيتونو] نه ښه خبر وو

عٰلِمِيْنَ ۞ إِذْ قَالَ لِأَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيْلُ

ښهٔ پوهه | کله چې | اووئیل هغه | پلار خپل ته | او قوم خپل ته | چې څه دي دا | شکلونه

هرکله چې ده خپل پلار اوخپل قوم ته اووئیل چې دا څه [واهیات] شکلونه دي

الَّتِيْ أَنْتُمْ لَهَا عٰكِفُوْنَ ۞ قَالُوْا وَجَدْنَا

هغه | چې تاسو | هغې ته | ټينګ ولاړ يئ په عبادت سره | اووئیل هغوئ | موندلي وو مونږه |

چې ددې دعبادت دپاره تاسو ډيرې لګولی دی | هغوئ ورته اووئیل چې مونږ خو خپل پلاران

اٰبَآءَنَا لَهَا عٰبِدِيْنَ ۞ قَالَ لَقَدْ كُنْتُمْ أَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ

پلاران خپل | دې ته | عبادت کونکی | اووئیل هغه | بیشکه يئ تاسو | او پلاران ستاسو

نیکونه ددوئ عبادت کونکی موندلي دی | ابراهيم ﷺ اووئیل چې تاسو اوستاسو پلاران نیکونه

فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۞ قَالُوْا أَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ أَمْ أَنْتَ

په ګمراهۍ ښکاره کښې | اووئیل هغوئ | آیا تاسو مونږ ته راوړې دې حق | یا ته ئې

هم په څرګنده ګمراهئ کښې پراته وو | هغوئ ورته اووئیل چې آیا ته مونږ ته رشتيا وايې

مِنَ اللّٰعِبِيْنَ ۞ قَالَ بَلْ رَّبُّكُمْ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

دلوبو کونکو نه | اووئیل هغه | بلکه رب ستاسو | رب داسمانونو | او دزمکې دې |

اوکه هسې ټوقې راسره کوئ؟ | ابراهيم ﷺ اووئیل چې [دڅه ټوقې] ستاسو رب خو

الَّذِيْ فَطَرَهُنَّ ۖ وَأَنَا عَلٰى ذٰلِكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ۞

هغه رب | چې پيدا کړي ئې دی دا | او زهٔ | په دې باند تاسو ته | دګواهي ګونکونه یم |

داسمانونو اودزمکې رب دې | چې هغه ټول ئې پيدا کړي دی | او زهٔ په دې خبره ګواه یم

وَتَاللّٰهِ لَأَكِيْدَنَّ أَصْنَامَكُمْ بَعْدَ أَنْ تُوَلُّوْا

او قسم دې په الله | خامخا به څه تدبير اوکړم | دبتانو ستاسو | روستو ددې نه چې | اوګرځئ تاسو |

اوپه الله ﷻ قسم کله چې تاسو [ددوئ نه بتانونه] لاړشئ | نو زهٔ بهٔ ستاسو بتانو سره يو چل

مُدْبِرِيْنَ ۞ فَجَعَلَهُمْ جُذٰذًا إِلَّا كَبِيْرًا لَّهُمْ

شاکونکی [بتانو ته] | نو کړل ئې هغه بتان | ټوټې ټوټې | مګر نهٔ | لوئ بت | دهغوئ |

کوم | .......... نو [ابراهيمﷺ] هغه بتان ټوټې ټوټې کړل | خو يو لوئې بت ئې سلامت پريخودو |

لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُوْنَ ۞ قَالُوْا مَنْ فَعَلَ هٰذَا

دپاره ددې چې هغوئ | دې [لوئ بت] ته | واپس راشي | اووئیل هغوئ | چاوکړو | دا کار |

کیدې شي چې خلق هغه ته رجوع اوکړی | هغوئ اووئیل زمونږ د معبودانو سره دا کار چا کړې دې

بِاٰلِهَتِنَآ إِنَّهٗ لَمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۞ قَالُوْا سَمِعْنَا

دخدايانو زمونږ سره | بیشکه هغه | دظالمانو نه دې | اووئیل هغوئ | اوريدلي وو مونږه

بیشکه هغه خو ډير لوئې ظالم دې | چا په کښې اووئیل چې مونږ ديوځلمي دخولې نه ددوئ

فَتًى يَّذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهٗٓ اِبْرٰهِيْمُ ؕ﴿٦٠﴾ قَالُوْا فَاْتُوْا بِهٖ

چی یو خلمئ | یادول دوئ | چی وئیلی شی | هغه ته | ابراهیم | اووئیل هغوئ | نو راولئ هغه

بدی آوریدلي وه | چي هغه ته ابراهیم ﷺ وئیلي شی | خلقو اووئیل چي بنه ده

عَلٰٓى اَعْيُنِ النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَشْهَدُوْنَ ﴿٦١﴾ قَالُوْٓا ءَاَنْتَ

په سترګو دخلقو | دپاره ددي چی خلق | اووینی [سزا دهغه] | تپوس تر اوکړو خلقو | آیا تا کړي دي

نو هغه دټولو مخامخ پیش کړئ | چيٓ هغوئ پرې ګواهان شی | هغوئ تپوس اوکړو چي ائي ابراهیم

فَعَلْتَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَا يٰٓاِبْرٰهِيْمُ ؕ﴿٦٢﴾ قَالَ بَلْ فَعَلَهٗ ۖ كَبِيْرُهُمْ

دا کار | دخدایانو زمونږ سره لے ابراهیمه | اووئیل ابراهیم | بلکه | کړي دي داکار | مشر ددوئ

ﷺ آیازمونږ دخدایانو سره داکار تا کړي دي | ده اووئیل چي نه دا کار دي لوئي [بت] کړي دي

هٰذَا فَسْـَٔلُوْهُمْ اِنْ كَانُوْا يَنْطِقُوْنَ ﴿٦٣﴾ فَرَجَعُوْٓا

چی دادي | نو تپوس اوکړئ ددوئ نه | که وی دوئ | چی خبری کوی | نو رجوع اوکړه هغوئ

که چرې دوئ خبرې کوی | نو ددوئ نه تپوس اوکړئ | هرکله چي هغوئ خپل مینځ کښي

اِلٰٓى اَنْفُسِهِمْ فَقَالُوْٓا اِنَّكُمْ اَنْتُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٦٤﴾ۙ ثُمَّ نُكِسُوْا

ځانونو خپلو ته | پس اووئیل هغوئ | بیشکه تاسو | یئ ظالمان | بیا | نسکور کړي شو هغوئ

سوچ اوکړو | نو وي وئیل چي بیشکه هم تاسو بیي انصافه یئ | بیا هغوئ [دشرم نه] خپل

عَلٰى رُءُوْسِهِمْ ۚ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا هٰٓؤُلَآءِ يَنْطِقُوْنَ ﴿٦٥﴾ قَالَ

په سرونو خپلو | [اووي وئیل] چي پوهه ئي تهٔ | چی نهٔ دی دا [بتان] | چی خبری کوی | اووئیل ابراهیم

سرونه ښکته کړل | [او وي وئیل] چي تا ته خو معلومه ده چي دوئ خبرې نشی کولي | ابراهیم ﷺ

اَفَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكُمْ شَيْـًٔا

آیا تاسو عبادت کوئ | ماسوا دالله نه | دهغه څیزونو | چی نفع نشی رسولي تاسو ته | دهیڅ څیز |

اووئیل چي آیا تاسو دالله ﷻ نه سوا دداسي څیزونو عبادت کوئ | چي نه فائده دررسوی

وَّلَا يَضُرُّكُمْ ؕ﴿٦٦﴾ اُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا

اونهٔ نقصان دررسولي شی تاسو ته | لعنت دوی | په تاسو باند | او په هغه معبودانو باند |

او نه نقصان درکولي شی | افسوس دي په تاسو او په هغه بتانو دکومو چي

تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٦٧﴾ قَالُوْا

چی تاسو ئي عبادت کوئ | بي دالله نه | آیا تاسو دعقل نه کارنهٔ اخلئ | اووئیل هغوئ |

تاسو دالله ﷻ نه سوا عبادت کوئ | آیا تاسو د سوچ او عقل نه کار نه اخلئ | هغوئ اووئیل چي

حَرِّقُوْهُ وَانْصُرُوْٓا اٰلِهَتَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ ﴿٦٨﴾ قُلْنَا

اوسوزوئ دي | او امداد اوکړئ | دخدایانو خپلو | که یئ تاسو | کونکی دځه کار | اووئیل مونږ |

دی [په اور کښي] اوسوزوئی | اودخپلو معبودانو مدد اوکړئ | که تاسو څه کول غواړئی | مونږ حکم

يٰنَارُ كُوْنِيْ بَرْدًا وَّسَلٰمًا عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ ﴿۶۹﴾ وَاَرَادُوْا بِهٖ

اے وورہ | شه ته | يخ | او سلامتيا والا | په ابراهيم باندي | او اراده اوکړه هغوئ | په ده باند

اوکړو انې اوره ته په ابراهيم باندې يخ شه | اوبې ضررشه | اوخلقوهغه ته د نقصان رسولو

كَيْدًا فَجَعَلْنٰهُمُ الْاَخْسَرِيْنَ ﴿۷۰﴾ وَنَجَّيْنٰهُ

دبدئ کولو | نو کړل مونږه هغوئ | نقصان موندونکی [ناکام] | او بچ اوویستل مونږه ابراهیم |

منصوبه جوړه کړه | خو مونږ هغوي نامراده کړل | اومونږ هغه اولوط دواړه

وَلُوْطًا اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا

اولوط | زمکې ته | هغه [زمکې ته] | چې برکت اېښې دې مونږه | په هغې کښې |

بچ اوویستل | داسې ملک ته چې مونږ د ټولې دنیا دخلقو دپاره برکتی کړې دې |

لِلْعٰلَمِيْنَ ﴿۷۱﴾ وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ ۭ وَيَعْقُوْبَ نَافِلَةً ۭ وَكُلًّا

دپاره دخلقو [ددنیا] | او ورکړو مونږ | هغه ته | اسحاق | او یعقوب | زیات دپاسه | او دا ټول

اومونږ ابراهیم ته اسحاق [ځوئې] ورکړو | اوددې نه علاوه یعقوب [نمسې] مو ورته هم دانعام په طور اوټول

جَعَلْنَا صٰلِحِيْنَ ﴿۷۲﴾ وَجَعَلْنٰهُمْ اَىِٕمَّةً يَّهْدُوْنَ

جوړ کړل مونږه | صالحان | او جوړ کړل مونږه هغوئ | اماماں | چې ] ددین[ لار به نې ښودله

نیکان کړل | اوهغوئ مو د [ټولو] خلقو پیشوایان جوړ کړل | چې زمونږ په حکم به ئې

بِاَمْرِنَا وَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرٰتِ وَاِقَامَ الصَّلٰوةِ

په حکم زمونږ سره | او وحی اوکړه مونږه | هغوئ ته | دکولو دنیکو کارونو | او دقائمولو دمونځ |

[ خلقو ته ] ددین لار خودله | اوهغوئ دوحی په ذریعه د نیکئ کارونه کول | دمونځ کولو

وَاِيْتَاۗءَ الزَّكٰوةِ ۚ وَكَانُوْا لَنَا عٰبِدِيْنَ ﴿۷۳﴾

او دورکولو دزکات | او وو هغوئ | مونږ لره | عبادت کونکی |

دزکوة ورکولو حکم مو ورته کړې وو | اوهغوئ هم زمونږ عبادت کولو |

## آسان ترجمه قرآن

او د دې نه مخکښ مونږ ابراهیم علیه السلام ته هغه پوهه ورکړې وه کومه چه هغه سره لائق وه، او مونږ هغه ښه پیژندلو. اوهغه وخت یاد کړه چه کله هغه خپل پلار اوخپل قوم ته اووئیل چه: دا څه شکلونه دی چه دهغې مخې ته تاسو پرلت غزونکی (منجوران) ناست یئ؟ هغوی اووئیل چه: مونږ خپل پلار نیکه د دې په عبادت کولو باندې موندلې دی. ابراهیم علیه السلام اوفرمائیل: یقیناً تاسو او ستاسو پلاران په ښکاره گمراهئ کښې پاتې شوی یئ. هغوی اووئیل چه: آیا ته مونږ ته حق خبره کوې که نه هسې ټوقې کوې؟ ابراهیم علیه السلام اووئیل: نه، بلکه ستاسو رب خو هغه دې چه د ټولو اسمانونو او زمکې مالک دې، چا چه دا ټول څیزونه پیدا کړی دی او اې خلقوا زه په دې باندې گواهی ورکوم. او قسم په الله! چه کله تاسو شاکونکی لاړ شئ نو زه به ستاسو بتانو سره یو (داسې) کار کوم (چه په هغې سره

په ټې حقيقت ښکاره شي). پس ابراهيم عليه السلام د هغوی د غټ بت نه سوا ټول بتان ټکړې ټکړې کړل، چه هغه خلق د دې طرف ته رجوع اوکړی. هغوی اووئيل چه: زمونږ د خدايانو سره دا حرکت چا کړې دې؟ هغه خو څوک لوئې ظالم وو. څه خلقو اووئيل: مونږ يو ځوان نه اوريدلې دې چه هغه د دې بتانو په باره کښې خبرې جوړوی هغه ته ابراهيم وائی. هغوی اووئيل: نو بيا هغه د ټولو خلقو مخکښې راولئ چه هغوی ټول ګواهان شي. (بيا چه کله ابراهيم عليه السلام راوستلې شو نو) هغوی اووئيل: اې ابراهيمه! آيا زمونږ د خدايانو سره دا حرکت هم تا کړې دې؟ ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل: نه بلکه دا د دوی مشر سردار کړې دې، اوس هم د هغې بتانو نه تپوس اوکړئ که دوی خبرې کوی په دې باندې هغه خلقو په زړه کښې سوچ اوکړو، او وې وئيل (خپل ځان سره) چه: رشتيا خبره خو دا ده چه تاسو خپله ظالمان يئ بيا هغوی خپل سرونه ښکته کړل او وې وئيل: تاته خو معلومه ده چه دوی خبرې نه کوی ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل: آيا نو تاسو د الله پاک نه سوا د داسې څيزونو عبادت کوئ چه تاسو ته نه فائده درکوی او نه نقصان؟ افسوس دې په تاسو او په هغه څيزونو چه تاسو ئې د الله پاک نه سوا بندګي کوئ، آيا تاسو دومره هم نه پوهيږئ؟ هغوی (يو بل ته) اووئيل: په اور کښې اوسيزئ دا سړې، او د خپل معبودانو مدد اوکړئ، که په تاسو کښې د څه کولو طاقت وی (پس هغوی ابراهيم عليه السلام په اور کښې واچولو، او) مونږ اووئيل: اې اوره! يخ شه، او د ابراهيم عليه السلام دپاره سلامتيا جوړ شه او هغه خلقو د ابراهيم عليه السلام دپاره د بدۍ منصوبه جوړه کړې وه، خو نتيجه دا شوه چه مونږ هغوی سخت ناکام کړل. او مونږ هغه او لوط عليه السلام بچ کولو سره هغه زمکې ته بوتلل چه په هغې کښې مونږ د عالَمو د خلقو دپاره برکتونه کيخودلې دی او مونږ هغه ته دا انعام په طور اسحاق او يعقوب ورکړل. او په دوی کښې مو هر يو نيک جوړ کړلو. او هغه ټول مونږ مشران جوړ کړې وو چه زمونږ په حکم باندې به ئې رهنمائی کوله. او مونږ د وی په ذريعه هغوی ته د نيکۍ کولو مونځ قائمولو او د زکوٰة د ادا کولو حکم کړې وو. او هغوی زمونږ عبادت کونکې وو.

## خلاصه تفسير

﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ مِنْ قَبْلُ﴾ [ اومونږ ددغې [زمانې دموسی عليه السلام ] نه وړاندې ابراهيم عليه السلام [ ته دده] د شان مناسب [ ښه پوه ورکړې وه او مونږ] علمی او عملی کمالاتو د ﴿وَكُنَّا بِهٖ عٰلِمِيْنَ﴾ [ هغه لره ښه پيژندل ] يعنی هغه ډير لوئ کامل وو دده هغه وخت ديادولو قابل دې ﴿اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ﴾ [کله چه دوی خپل پلار ته او خپلو خلقو ته ] چه دوی لره ئ په بت پرستۍ کښې مشغول وليدل ﴿مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيْلُ﴾ [ وفرمائيل چه دا څه ] عبث [ بتان دی په ﴿الَّتِيْٓ اَنْتُمْ لَهَا عٰكِفُوْنَ﴾ کومو چه] دعبادت دپاره [تاسو چيله شوی ناست يئ] يعنی دوی هرګز دعبادت قابل نه دی ﴿قَالُوْا﴾[ دغو خلقو] په جواب کښې [ووئيل ﴿وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا لَهَا عٰبِدِيْنَ﴾ چه مونږ خپلو مشرانولره ددوی په عبادت کولو باند ليدلی دی ] او هغه خلق هوښيار وو ددې نه معلوميږی چه دا بتان لائق د عبادت دی ﴿قَالَ﴾[ ابراهيم عليه السلام ] [ ووئيل ﴿لَقَدْ كُنْتُمْ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ﴾ چه بيشکه تاسو او ستاسو پلاران نيکونه] دوی لره دعبادت په لايقو ګڼړلو کښې ﴿فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ﴾[ په ښکاره غلطۍ کښې ] اخته [يئ ] يعنی په خپله دهغوی سره ددوی دمعبود والی

څه دليل او سند نشته هغوی خو ځکه په ګمراهۍ کښې دی او تاسو دداسې خلقو تقليد کوئ
کوم چه بې دليله او بې ثبوته په وهمونو پسې تلونکی دی [ په دې وجه تاسو په ګمراهۍ کښې
يئ چونکه دغو خلقو داسې خبره نه وه اورېدې نو ډېر په تعجب سره ئې ﴿قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا بِٱلْحَقِّ﴾
ووئيل چه ايا ته ] په خپل نزد [ رښتونې خبرې مونږ ته پيښ کوې ﴿أَمْ أَنتَ مِنَ ٱللَّٰعِبِينَ﴾ يا ] هم
هسې [ توقې کوې ابراهيم ] عليه السلام ﴿قَالَ﴾ [ وفرمائيل داسې نه ده ] توقې نه دی بلکه رښتونې
خبره ده او صرف زما په نزد نه بلکه په واقع کښې هم رښتونې خبره داده چه دا د عبادت قابل نه
دی ﴿بَل رَّبُّكُمْ﴾ [ بلکه ستاسو رب حقيقی کوم چه لايق دعبادت دې ﴿رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ٱلَّذِى
فَطَرَهُنَّ﴾ [ هغه دې کوم چه دټولو اسمانونو او زمکې رب دې چاچه ] علاوه دتربيت نه [ هغو
ټولو ] اسمانونو او زمکې او په دې کښې چه کوم مخلوق دې چه دابتان په کښې هم داخل دی
ټولو [ لره پيدا کړل ﴿وَأَنَا۠ عَلَىٰ ذَٰلِكُم مِّنَ ٱلشَّٰهِدِينَ﴾ او زه په دې ] دعوی [ دليل هم لرم ] ستاسو
په شان په ړندو سترګو تقليدنه کوم ﴿وَتَٱللَّهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَٰمَكُم﴾ [ اوپه الله تعالی قسم دې زه به
ستاسو ددې بتانو غور وکړم ﴿بَعْدَ أَن تُوَلُّوا۟ مُدْبِرِينَ﴾ کله چه تاسو ] ددوی د خوانه [ لاړشئ ]
ددې دپاره چه ددوی عاجز والې اوبې کاری زياته ښکاره شی هغو خلقو دا وګنړله چه دې به
يوازې زمونږ څه وکړې شی هيڅ پرواه ئې ونه ساتله او لاړل [ نو ] ددوی دتلو نه پس [ ده
هغوبتانو لره ] په تبر وغيره سره مات کړ ﴿فَجَعَلَهُمْ جُذَٰذًا إِلَّا كَبِيرًا﴾ [ ټکړې ټکړې ئې کړل بغير دهغه يو
لوئ بت نه ] کوم چه په جوثه کښې يا ددغو خلقو په نظر کښې په عظيم والی کښې لوئ وو
هغه ئې پرېښودو چه په دې سره ئې يو قسم له مسخره کول مقصود وو چه ديو په روغ پرېښودو
او دنورو په مات کړې سره دايو قسم له وهم کيدې شی چه چرته ده په داټول مات کړی وی پس
ابتداء خو وهم وو د چې کله دغه خلق دماتوونکی تحقيق کوی او په دغه لوئ بت خو به شك
هم نه کوی نو ددوی عاجز والې به ورته هم معلوم شی او حجت به نور زيات لازم شی پس دا به
اخر کښې په دوی باند الزام دې يعنی لاجوابه کول ئې دی او مقصود ئې په شريکه دعجز ثابتول
دی د خپنو نه ددوئ په انکار سره او ديو ددوی په اقرار سره غرض يولره ئې په دې مصلحت
سره پرېښودو او نور ټول ئې مات کړل ﴿لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُونَ﴾ [ چه شايد دغه خلق دابراهيم
عليه السلام [ طرف ته ] دتپوس کولو په طور [ رجوع اوکړی ] او بيا په دغه تقرير دجواب سره مکرر
حق ثابت کړې شی غرض دغه خلق چه بت خانې ته راغلل نو دبتانو بدل حال چه ئې وليدو په
خپل مينځ کښې ئې ﴿قَالُوا۟﴾ [ ووئيل چه دا ] د بې ادبئ کار ﴿مَن فَعَلَ هَٰذَا بِـَٔالِهَتِنَآ﴾ [ زمونږ دبتانو
سره چاکړې دې ﴿إِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ په دې کښې هيڅ شك نشته چه ده ډېرلوئ غضب کړې
دې ] ددې خبرې تپوس هغو خلقو وکړو کوم چه ددې قول نه نا خبره وو [ تاالله لاکيدن الخ ] يا
خو په دې وجه چه دوی به دغه وخت موجود نه وو ځکه چه ددغې مناظرې په وخت کښې دټول
قوم جمع کيدل ضروری نه دی او يا به موجود وو مګر اورېدلی ئې نه وو او ځنوبه اورېدلی وی
لکه په درمنثور کښې دابن مسعود رضی الله عنه نه داسې نقل دی ﴿قَالُوا۟﴾ [ ځنو ووئيل ] کوم چه ددې
قول نه خبر وو ﴿سَمِعْنَا فَتًى يَذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهُۥٓ إِبْرَٰهِيمُ﴾ [ چه مونږ يو خوان سړی لره کوم ته چه ابراهيم
وئيلې شی ددې بتانو ] په بدئ سره [ ذکر کول اورېدلی دی ] بيا [ هغو ] ټولو [ خلقو ] يا
کومو چه اول تپوس کړې وو ﴿قَالُوا۟﴾ [ ووئيل چه ] هرکله خبره داسې ده ﴿فَأْتُوا۟ بِهِۦ عَلَىٰٓ أَعْيُنِ
ٱلنَّاسِ﴾ [ نو ښه ده دې دټولو خلقو په وړاندې حاضرکړئ چه ] ﴿لَعَلَّهُمْ يَشْهَدُونَ﴾ شايد هغه

اقرار وکړي [ هغه خلق ] دده په اقرار [ ګواه شي ] بیا دحجت تمامیدو نه پس ورله سزا ورکړې شي چه بیا څوك ملامته کول ونه کړي غرض هغه دټولو په وړاندې راغې او هغه ته ﴿قَالُوٓا ءَاَنتَ فَعَلۡتَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَا یٰٓاِبۡرٰهِیۡمُ﴾ [ هغوخلقو ووئیل چه ایا زمونږ دبتانو سره دا حرکت تا کړې دې اے ابراهیمه ] ﵇ [هغه] جواب ورکړو ﴿قَالَ﴾ [ او وې فرمائیل چه ] تاسو دا احتمال ولې نه فرض کوئ چه دا حرکت ما [ نه دې کړې ﴿بَلۡ فَعَلَهٗ ۖ كَبِیۡرُهُمۡ هٰذَا﴾ بلکه ددوی دغه مشر] ګرو [ کړې دې ] او هر کله چه په دې مشر کښې دکار کولو احتمال کیدې شي نو په دې وړوکښې به دخبرو کولو هم احتمال وی ﴿فَسۡـَٔلُوۡهُمۡ اِنۡ كَانُوۡا یَنۡطِقُوۡنَ﴾ [ پس هم ددوی نه تپوس وکړئ که دوی خبرې کولې شی ] او که په لوئ بت کښې داکار کولو طاقت او په نورو بتانو کښې دخبرو کولو طاقت محال او باطل دې نو ددوی عجز خو ستاسو په نزد ومنلې شو بیا دمعبود والی عقیده لرل پرې څه معنی لری ﴿فَرَجَعُوۡۤا اِلٰۤی اَنۡفُسِهِمۡ﴾ [ په دې خبره هغو خلقو په خپل زړهٔ کښې ] سوچ وکړو بیا ئې په خپل مینځ کښې ﴿فَقَالُوۡۤا اِنَّكُمۡ اَنۡتُمُ الظّٰلِمُوۡنَ﴾ [ ووئیل چه په حقیقت کښې تاسو خلق په ناحقه یئ ] او ابراهیم ﵇ په حقه دې کوم چه داسې عاجز وی هغه به څه معبود شی [ بیا دشرم نه ﴿ثُمَّ نُكِسُوۡا عَلٰی رُءُوۡسِهِمۡ﴾ [ ئې خپل سرونه ښکته کړل ] ابراهیم ﵇ ته ئې په ډیره مغلوبانه لهجه کښې ووئیل چه [اے ابراهیم ] ﵇ ﴿لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَا هٰۤؤُلَآءِ﴾ [ تاته خو معلومه ده چه دابتان ] څه ﴿یَنۡطِقُوۡنَ﴾ [ خبرې نه شي کولې ] مونږ به ددوی نه څه تپوس وکړو او په دې سره د مشر دکارکولو نفی خو په درجه اولی وشوه دغه وخت ﴿قَالَ﴾ [ ابراهیم ] ﵇ [وفرمائیل چه ] افسوس هرکله چه خبره داسې ده ﴿اَفَتَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ﴾ [ نو ایا خدائ لره پریږدئ او تاسو دداسې شی عبادت کوئ ﴿مَا لَا یَنۡفَعُكُمۡ شَیۡـًٔا وَّلَا یَضُرُّكُمۡ﴾ کوم چه نه تاسو ته فائده رسولې شی اونه درته څه نقصان رسولې شی ﴿اُفٍّ لَّكُمۡ وَلِمَا تَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ﴾ اف په تاسو چه سره د واضحه کیدو دحق نه په باطل باند ټینګ یئ [ او په هغو] هم [ دکومو چه تاسو دخدائ نه سوا عبادت کوئ ﴿اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ﴾ ایا تاسو ] دومره هم [ نه پوهیږئ ] په دې ټول تقریر سره خاص دماتولونه ئې چه انکار هم ونه کړو سره ددې چه احتمال دبدل اخستو مقتضی دانکار وو دوی ته ثابته شوه چه داکار ده کړې دې او د تقریر څه جواب ترې جوړ نه شو نو په مقتضا ددې قول چه

چو حجت نماند جفا جوئے را  به پرخاموش درهم کشد روئے را

یعنی هرکله چه د جاهل سره بل څه دلیل پاتې نه شی او بې دلیله شی نو په غصه سره تاؤ راتاؤ شی مخ واړوی او مقابلې ته جوړ شی

په خپل مینځ کښې ﴿قَالُوۡا﴾ [ دغو خلقو ووئیل چه ﴿حَرِّقُوۡهُ وَانۡصُرُوۡۤا اٰلِهَتَكُمۡ﴾ ده ] ابراهیم ﵇ [لره په اور کښې وسیزئ او دخپلو معبودانو ] ددهٔ نه [بدله واخلئ ﴿اِنۡ كُنۡتُمۡ فٰعِلِیۡنَ﴾ که تاسو څه کول غواړئ ] نو داکار وکړئ ورنه بلکل خبره به ډوبه شی غرض ټول متفق شول او ددې سامان ئې تیار کړو او دې ئې سوزونکی بل اور ته واچولو دغه وخت ﴿قُلۡنَا یٰنَارُ كُوۡنِیۡ بَرۡدًا وَّسَلٰمًا عَلٰۤی اِبۡرٰهِیۡمَ﴾ [ مونږ] اورته [ حکم وکړو چه اے اوره ته یخ اوبې ضرره شه د ابراهیم ] ﵇ [په حق کښې ] یعنی مه داسې ګرمیږه چه وئ سیزې او مه داسې یخیږه چه واوره شې اوتکلیف ورته دیخنئ ورسیږی بلکه دمعتدلې هوا په شان شه نو چنانچه دغسې شو ﴿وَاَرَادُوۡا بِهٖ كَیۡدًا﴾ [ او هغو خلقو ددهٔ سره بد کول غوښتلی وو] چه هلاك شی ﴿فَجَعَلۡنٰهُمُ الۡاَخۡسَرِیۡنَ﴾ [ پس مونږ هغه خلق ناکام

کړل] چه ددوی مقصود حاصل نه شو بلکه الټه د ابراهیم ﷺ حقوالي زيات ثابت شو ﴿وَنَجَّيْنَٰهُ وَلُوطًا﴾ [ اومونږ ابراهیم ] ﷺ [ لره او] دده ورارهٔ [كذا في درمنثور].(١) دابن مسعود ؓ نه دی [ لوط ] ﷺ [ لره ] چه ده د قوم خلاف د ابرهیم ﷺ تصدیق کړې وو الله تعالی فرمائی [فامن له لوط](٢) اوپه دې وجه سره خلق دده هم مخالف شوی وو ﴿إِلَى الْأَرْضِ الَّتِي﴾ [ داسې ملك [ یعنی شام [ طرف ته ولیږل ] دکافرانو د شر او ازار نه مو [ بچ کړل ﴿بَٰرَكْنَا فِيهَا لِلْعَٰلَمِينَ﴾ په كوم کښې چه مونږ ددنیا د خلقو دپاره ] خیراو [ برکت اینبودې دې ] دنیوی هم چه هر قسم میوې ګلونه په کښې ډیر زیات پیداکیږی او نورو خلقوته هم ددې نه نفع رسیدې شی او دینی هم چه ډیر پیغمبران ﷺ دلته شوی دی چه دشریعتونو برکت ئې لرې لرې دنیا ته خور شو یعنی دوی دشام ملك طرف ته دالله تعالی په اجازت سره هجرت وفرمائیلو [ او] دهجرت نه پس ﴿وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ إِسْحَٰقَ﴾ [ مونږ ده ته اسحق ] ﷺ خوئ ﴿وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً﴾ [اويعقوب ] ﷺ نمسې [ورکړو﴿وَكُلًّا جَعَلْنَا﴾ اومونږ دې ټول ] پلار خوئ نمسی ] [ لره ] داعلی درجې ﴿صَٰلِحِينَ﴾ [نیکان کړل ] داعلی درجې دنیکئ مصداق عصمت دې کوم چه په بشریت کښې دنبوت دخواصونه دې پس مراد دادې چه ټولو لره مونږ نبیان جوړ کړل﴿وَجَعَلْنَٰهُمْ أَئِمَّةً﴾ [ اومونږ دوی ] ټولو [ لره مقتدا جوړ کړل]کوم چه دنبوت دلوازمونه دې ﴿يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا﴾[ چه زمونږ په حکم سره به ئې ] دالله تعالی مخلوق ته [ هدایت کولو ] کوم چه دنبوت دمنصبونو نه دی ﴿وَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرَٰتِ﴾ [اومونږ دوی ته دنیکو کارونو کولو او] خصوصا ﴿وَإِقَامَ الصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءَ الزَّكَوٰةِ﴾ [ دمونځ دپابندئ کولو او د زکوات د ادا کولو حکم ولیږلو] یعنی دا حکم مو ورته وکړو چه دا کارونه کوئ ﴿وَكَانُوا لَنَا عَٰبِدِينَ﴾ [ او دغو] حضراتو [ په زمونږ ] ښه [ عبادت کولو ] یعنی دوی ته چه کوم حکم شوې وو هغه به ئې په ښه شان سره پوره کولو پس په صالحین کښې کمال نبوت طرف ته او په [اوحينا اليهم فعل الخيرات] کښې کمال علم طرف ته او په [ كانو لناعبدين ] کښې کمال عمل طرف ته او په [ ائمة يهدون ] کښې دنورو دهدایت او تربیت طرف ته کافی اشاره ده.

## معارف او مسائل

[وَتَاللَّهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَٰمَكُم] د الفاظو د آیتونو څخه ښکاره هم داده چې دا خبره ابراهیم ﷺ د خپل خاندان د خلقو په وړاندې کړې وه خو په دې باندې داشبه کیدې شی چې ابراهیم ﷺ د [إِنِّى سَقِيمٌ] [زهٔ ناجوړه یم] په فرمائیلو سره ددغې اختر میلې نه دتلو څخه ځان پاتې کړې وو. او کله چې د بتانو د ماتیدو پیښه اوشوه نو د غه خلق په دې تلاش کښې شو چې داکار چا کړې دې ؟ مطلب دا چې بتانو سره د چل کولو داخبره که ابراهیم ﷺ د خپل خاندان سره کړې وی نو دا دوه خبرې بیا ولې اوشوې؟

ددې جواب د تفسیر په خلاص کښې دا ورکړې شوې دې چې صرف د ابراهیم ﷺ داسې خیالات وو ، ځکه کیدیشی چې د خپل خاندان خلق یې دې خبرې ته د سره توجه نه کړی یا ترې

(١) الدر المنثور تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:٦٤٢] والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[٤٠٥٢]و تفسير القرطبي، تفسير سورة الأنعام آيت نمبر٨٤ [ ج:٧ص:٣١].
(٢) ترجمه:-پس صرف لوط عليه السلام دهغوئ تصديق اوکړو.

هیر شوی وی ، [بیان القرآن]([1])

اودا هم کیدې شی چې تلاش کوؤنکی نور خلق وی چې د ابراهیم ﷺ ددې رومبئ خبرې څخه نه خبر نه وی . او په مفسرینو کښې د مجاهد او قتاده قول دادې چې دا خبره ابراهیم ﷺ د خپل خاندان دخلقو په مخکښې نه وه کړې پخپل زړه کښې یې کړې وه یا دټولو خلقو میلې ته د تلو څخه وروستو چې څه کس دوه کمزوری دغلته پاتې شوی وو ، دغه خبره یې دهغوئ په مخکښې کړې وه ، کله چې د بتانو د ماتیدو پیښه رامخې ته شوه او د خپل خاندان خلق ددې کار کوؤنکی په تلاش کښې شو نو دغې خلقو مخبری اوکړه . [قرطبی]([2])

[فَجَعَلَهُمْ جُذٰذًا] . جذاذ دجذ جمع ده ، معنی ټوټې ټوټې کول دی .

[اِلَّا كَبِيْرًا لَّهُمْ] یوازې غټ بت باندې یې څه غم غرض اونه کړو ، صحیح سالم یې پریښودو ، دې ته یا خو په بدنی او جسمانی لحاظ سره غټ اووئیلې شو یا په مرتبه کښې د ټولو څخه لویې گنړلې شو .

[لَعَلَّهُمْ اِلَيْهِ يَرْجِعُوْنَ] دلته د الیه په ضمیر راجع کیدو کښې دوه احتماله کیدیشی ، یو احتمال دادې چې د اضمیر ابراهیم ﷺ ته راجع دې لکه چې په تفسیر خلاصه کښې بیان کړې شو ، او د هغې په مناسب داتشریح اوکړې شوه چې داسې کولو څخه د ابراهیم ﷺ مقصد پخپله هم دا وو چې داخلق ماله راشی او تپوس اوکړی ، چې داسې دې ولې کړی دی ؟ نو زهٔ به دغه خلق ددوئ په کم عقل توب باندې پوهه کړم ، بل احتمال دا کیدې شی چې کله دا خلق دغه بتان مات اووینی صرف غټ بت روغ اووینی نو عقل به یې به ځائې شی او عبادت کولو څخه به منع شی ، نو د ابراهیم ﷺ دین ت به راواوړی ، او کلبی فرمائیلی دی چې الیه کښې ضمیر کبري یعنی غټ ته راجع دې ، په دې بنا معنی به یې داشی چې دا خلق ټول بتان مات او صرف یو غټ بت په کښې روغ اووینی چې تبر یې هم په اوږه پروت وی نو کیدې شی چې دغې بت څخه به په تپوس کولو مجبوره شی چې داسې ولې شوی دی ؟ کله چې دا غټ بت هم جواب ورنکړې شی نو د هغې بې وسی به ورته ښکاره شی .

**د ابراهیم ﷺ خبره دروغ نه وه بلکه یوه کنایه وه ، ددې تفصیل او تحقیق** : [قَالَ بَلْ فَعَلَهٗ ۖ كَبِيْرُهُمْ هٰذَا فَسْئَلُوْهُمْ اِنْ كَانُوْا يَنْطِقُوْنَ] کله چې ابراهیم ﷺ د خپل خاندان خلقو اونیولو او اقراری کولو یې چې دا کار تاسو ﷺ کړې دې نو ابراهیم ﷺ جواب ورکړو چې دا کار خو دې غټ کړې دې گنی تپوس ترې او کړئی که خبرې کولې شی ؟

دلته اوس دا سوال پیدا کیږی چې داسې خلاف واقعه خبره کول خو دروغ بللې شی ولې چې دا کار ابراهیم ﷺ پخپله کړې وو او نسبت یې غټ بت ته اوکړو حالانکه داسې خبره کول د ابراهیم ﷺ د شان سره نه ښائیږی . مفسرینو حضراتو ددې په جواب کښې ډیر احتمالات بیان کړی دی ، یو احتمال هغه دې چې د تفسیر بیان القرآن په خلاصه کښې داختیار کړې شوې دې ،([3]) هغه داسې چې دابراهیم ﷺ داخبره د فرض کولو په ډول وه څنګه چې په :

---

[1]) بیان القرآن تحت هذه الآیة [ج:۷ ص: ۵۱]

[2]) تفسیر القرطبي تحت هذه الآیة[ ج:۱۱ص:۲۶۰]

[3]) بیان القرآن تحت هذه الآیة [ج:۷ ص: ۵۱]

[اِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ ۖ فَاَنَا اَوَّلُ الْعٰبِدِيْنَ] كښې د رحمان د اولاد فرض كولو خبره شوې ده ، خو صفا بې داغه او بې تاويله توجيه هغه ده چې بحر محيط ، قرطبي او روح المعاني وغيره اختيار كړې ده ، او وئيلې يې دى چې دا سندونه مجازي داسې دي چې دا كار اګر چې ماكړې دې خو باعث يې هم دا غټ بت څكه وو چې تاسو خلقو په نا جائزه ددې غټ بت تعظيم كولو ،(۱) چنانچه داسې مثالونه د هرې ژبې په محاوره كښې استعمالولې شي ، او وئيلې شي چې د غل لاس هم دهغه عمل پريكړې دې ولې چې باعث پرې هم دده غلا كول وو.

ابراهيم ﷺ په عمل او قول دواړو سره غټ بت ته مجازى طور اسناد داسې كړې وو چې د وړو بتانو ماتولو نه پس يې د غټ بت په اوږه تبر په دې غرض اېښې وو چې ليدونكى دا خيال اوكړې چې دا كار هم دې غټ بت كړې دې . ددې مثال په عربئ كښې عام دې ، چنانچه مشهوره مقوله ده چې [انبت الربيع البقلة] [سپرلي زرغونه اوكړه ] حالانكه حقيقى زرغوونكې صرف الله ﷻ دې . غرض دا چې د ډيرو ديني ښيګړو په غرض د ابراهيم ﷺ خپله دا رائې ښكاره كول چې ليدونكى دا اوګڼړى چې غټ بت ګني غصه شوې دې او څكه يې دغه واړه بتان مات كړى دى ، چې ماسره په عبادت كښې دا واړه بتان ولې شريكولې شي ؟ اوداشان به د توحيد لار بيرته شي چې هر كله يو غټ بت پخپله مقابله كښې د وړو بتانو عبادت كيدل نشى برداشت كولې ، نو رب العالمين به د كاڼړو څخه وروستو په خپل لاس د جوړ كړو بتانو خان سره شريكيدل څنګه برداشت كولې شي ؟

دويمه داچې د غه رائې ددوئ قائميدل د عقل په بنياد داسې وو : كه دوئ هم لكه د الله ﷻ تول اختيار لرلې نو څنګه به ددې په ماتولو د چا وس بر شوې وو؟ دريمه دا چې كه دغه خلق د وړو بتانو ماتول ددغه غټ بت كار اوګڼړى نو پكار دى چې خبرې هم اوكړې شى كنه ، څكه يې اوفرمائيل چې [فَسْـَٔلُوْهُمْ اِنْ كَانُوْا يَنْطِقُوْنَ]

خلاصه دا شوه چې د ابراهيم ﷺ دغه خبره كول دروغ څكه نشى كيدې چې د اسناد مجازى په ډول يې غټ بت ته د وړو بتانو د ماتلو نسبت اوكړو ، دا دروغ نه وو بلكه توريه وه چې مطلب يې د بتانو بې وسى او ددغې كم عقل توب ښكاره كول وو ، والله اعلم

**حديث پاك كښې ابراهيم ﷺ ته د دريو دروغو د نسبت حقيقت:** يو سوال دا پيدا كيږى چې رسول كريم ﷺ په ديو صحيح حديث پاك كښې پخپله ابراهيم ﷺ ته دري دروغ منسوب كړى فرمائيلى دى : [ان ابراهيم عليه السلام لم يكذب غير ثلاث [بخاري ومسلم](۲) [ابراهيم ﷺ سوا د دريو ځايونو څخه بل ځائې دروغ نه دى وئيلى] هم په دې حديث پاك كښې دغه درې ځايونه داسې په ګوته كړى دى چې په دې كښې دوه دروغ خالص د الله ﷻ د پاره يې وئيلى وو يو دا چې :

[بَلْ فَعَلَهٗ ۖ كَبِيْرُهُمْ] دويم ددغې خلقو دا ختر د ميلې په ورځ هغوئ ته دا عذر كول چې [اِنِّيْ سَقِيْمٌ] [زهٔ بيمار يم] دريم دا چې د خپلې بى بى د حفاظت په غرض يې هغه وخت وئيلى وو چې د يو سفر په دوران كښې ددوئ بى بى ساره د يو داسې ظالم او بدكاره بادشاه په ګوتو كښې راغله چې هغه به د خپل معمول او عادت په جوړ ښځو سره بدكارى كوله كله به چې د چا په

(۱) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج.۸ ص:۱۷۱] و روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۷ ص:٦٥]
(۲) صحيح مسلم كتاب الفضائل، باب من فضائل ابراهيم خليل الله عليه السلام [ج.۲ص:۲٦٦]

نكاح كښې وه ، البته د چا لور ، خور سره به يې بد كارى نه كوله.
دغه بادشاه ته هغوئ ؏ خپله بى بى ساه خپله خور ښكاره كړه او ساره بى بى ته يې هم اوفرمائيل چې تاسو به هم داسې وايې چې مونږ دلته په دينى شان سره رورا وخور څكه يو چې صرف هم مونږ مسلمانان يو نور ټول كافران دى ، خو سره ددې هغه ظالم بادشاه د خپل بدنيت څخه منع نه شو ، ابراهيم ؏ چې مونځ اوكړو نو الله ﷻ څخه يې دعا اوغوښتله نو كله چې هغه بادشاه په بدنيت ساره بى بى ته وراوړاندې شو نو د الله ﷻ په قدرت هغه شل شو . هغه ساره بى بى ته خواست اوكړو چې ستا په دعا كه زه روغ شوم نو هيڅ به درته نه وايم ، د بى بى ساره په دعا روغ شونو بيا هم د پخلې بدې ارادې څخه منع نه شو ، الله ﷻ بيا شل كړو ، داسې چې درې ځل اوشو نو آخر يې ساره بى بى آزاده كړه.
بهر حال دې حديث پاك كښې شه په ښكاره ابراهيم ؏ ته د دروغو وئيلو نسبت كړې شوې دې چې د پيغمبرئ د شان سره نه ښائيږى خو ددې جواب پخپله هم په دې حديث پاك كښې داشان شته دې چې دا يو هم په حقيقت كښې دروغ نه وو بلكه دوه مطلبه خبره دې دپاره كول وو چې د ظلم څخه ځان اوساتى او دا جائز او حلال دى چې د دروغو په حكم كښې نه راځى ، لكه خپلې بى بى ته خور وئيل او هغې ته دداسې وئيلو هدايت كول په دې وجه وو چې مسلمانان ټول خپل مينځ كښې رونړه خويندې دى . دې ته په شريعت كښې توريه وئيلې شى مګر د شيعه ګانو تقيه دې نه مختلف څيز داسې دې چې هغه ښكاره دروغ وئيل او په هغې باندې عمل كول دى.
توريه د فقهاء كرامو په اتفاق سره جائز ده ولې چې ددې يو طرفته كوم چې د متكلم مراد وى هغه صحيح وى او تقيه كښې هيڅ طرف د رښتياؤ نشته بلكه سراسرى دروغ دى چې هيڅرې رواكيدې نشى ، داشان توجيه د ابراهيم ؏ د دوؤ نورو خبرو هم كيدې شى څنګه چې مونږ اوس اوس بيان كړل چې د اسنادو مجازى په ډول د [بَلْ فَعَلَهٗ ۖ كَبِيْرُهُمْ] نسبت يې غټ بت ته كړې وو ، دغه شان د [اِنِّىْ سَقِيْمٌ] مراد څنګه چې بدنى بيمارئ كيدې شى دغاه په غم ، خفګان كښې د ډوب معنى هم كيدې شى كومه چې د ابراهيم ؏ مراد وه ، دغه حديث پاك كښې دا هم راغلى دى چې دوه دروغه د الله ﷻ د ذات دپاره وو چې ددې قرينه ده چې دا څه ګناه كار نه وو څكه چې د ګناه كار دالله ﷻ د رضا او ذات دپاره كيدې شى.

**د ابراهيم ؏ د دريو دروغو باره كښې راغلى حديث پاك ته غلط وئيل جهالت دې** : مرزا قاديانى او څه نورو مستشرقينو څخه په اثر قبلولو كښې ځينې مغلوبو مسلمانانو دې حديث پاك ته څكه غلط او باطل وئيلى دى چې په دې كښې خليل الله ؏ ته د درغو نسبت شوې دې ، او دسند ټول راويانو ته د دروغژن وئيلو څخه خو دا زيات ښه دى چې ابراهيم ؏ دروغژن اومنلې شى ولې چې داد قرآن پاك څخه خلاف دى ، او بيا يې ددې څخه كليه او قاعده راؤښكله چې كوم حديث پاك دقرآن څخه خلاف وى كه هغه هر څومره قوى صحيح اومعتبرو اسنادو سره ثابت وى هغه دې غلط اوګرځولې شى . داخبره اګر چې بالكل صحيح او د ټول امت په نزد د فرض محال په ډول سره منلې شوې ده خو د امت د علماء كرامو د احاديثو ذخيره په ډيرې خوارئ سره چانړ كړې ده نو كوم حديث چې په صحيح او قوى اسنادو سره ثابت شى په هغې كښې يو هم داسې نشى كيدې چې د قرآن پاك خلاف ورته اووئيلې شى ، بلكه دا د كم فهمئ نتيجه وى چې يو حديث رد كول او باطلول اوغواړى نو قرآن پاك سره يې ټكراؤ ښكاره كړى او په دې

وینا سره خپل ځان خلاصول اوګڼړی چې دا حدیث پاك ځکه اعتباری نه دې چې دقرآن پاك خلاف دې ، که څوك دا اووائی چې هر کله دا توریه وه نو د درغو لفظ دې دپاره ولې استعمال کړې شو؟ ددې جواب دادې چې دې ته دروغ اووئیلې شو څنګه چې د آدم عليه السلام هیرې او بښوئیدو ته د عصی او غوی نسبت اوکړې شو ، چنانچه د موسی عليه السلام د سورة طٰهٰ په قیصه کښې تیر شوی دی چې د الله ﷻ د نزدیکانو معمول کمزوری ، خالص په رخصت او جائز باندې عمل کول او عزیمت پریښودل هم د ګرفت جوګه ګڼړلې شی . او په قرآن پاك کښې په داسې څیزونو کښې د الله ﷻ د طرفه د پیغمبرانو عليهم السلام په باره کښې ډیر ځله دملامتیا او زورنې بیان راغلې دې ، دغه شان په محشر کښې کله چې ټول خلق به راجمع شی او پیغمبرانو عليهم السلام ته به د آدم عليه السلام نه تر محمد ﷺ پورې د زر حساب کتاب کیدو دپاره دالله ﷻ په دربار کښې د شفاعت خواست اوکړی ، نو نمبر په نمبر په هر پیغمبر خپل قصور او کوتاهی بیان کړی او دشفاعت کولو څخه به په دغې بنا ډډه اوکړی ، صرف محمد ﷺ به دغې شفاعت ته غاړه کیږدی .(۱) هر کله چې په دغه موقعه به ابراهیم عليه السلام خپلې دغې توریه ته د دورغ وئیلو نو ورکوی او په دغې بنا به د شفاعت څخه ډډه کوی ځکه ورته په حدیث پاك کښې د اشارې کولو په غرض دروغ اووئیلې شو . دا حق صرف رسول کریم ﷺ ته وو او مونږ ته یې صرف د بیانولو تر حده پورې حق شته دې ، خو دا مونږ دپاره جائز کیدې نشی چې دخپله ځانه ابراهیم عليه السلام ته د دروغو وئیلو نسبت اوکړو ، څنګه چې د موسی عليه السلام په قیصه کښې د سورة طٰهٰ کښې د تفسیر قرطبی او بحر محیط په حواله بیان شوی دی چې په قرآن پاك یا حدیث پاك کښې دغه شان الفاظ د یو پیغمبر عليه السلام باره کښې د تلاوت یا تعلیم د قرآن یا دروایت د حدیث بیانولو په ډول خو کولې شی خو د خپله ځانه یې ورته منسوب کول بې ادبی ده هیڅ دپاره روا نه دی .

**تیر شوی حدیث پاك کښې یو ډیر زیات ضروری هدایت او دعمل د اخلاص د باریکی بیان :** حدیث پاك کښې د ابراهیم عليه السلام باره کښې د درې دروغو په څینې په دریو کښې خو دوه دروغ وئیل د الله ﷻ دپاره اوښودلې شو او دریم قسم دروغ د ساره بی بی باره کښې الله دپاره او نه ښودلې شو ، حالانکه د خپلې بی بی د ننګ ناموس حفاظت کول هم بعینه دین دې . په دې باندې تفسیر قر طبی کښې د قاضی ابی بکر بن عربی نه یوه اهمه نکته نقل کړې ده هغه داسې چې اګر که دهم یو دینی کار وو خو د خپلې بی بی د ننګ ناموس حفاظت کول یو خپل ذاتی غرض هم په کښې شامل وو ځکه ورته الله دپاره اونه وئیلې شو؟ ولې چې دالله ﷻ ارشاد هم دې چې : ﴿أَلَا لِلَّهِ الدِّينُ الْخَالِصُ﴾(۲) که مونږ یا بل څوك وې نو خامخا به مو دا معامله د الله ﷻ دپاره ګڼړلې وه ، مګر د پیغمبرانو عليهم السلام شان دومره لوړ دې چې لږ شان ذاتی غرض شاملیدو سره یې دغې معاملې ته دالله دپاره اونه وئیل . ولې چې کامل اخلاص سره یې پوره پوره سمون نه خوړو .(۳) والله اعلم ، الله ﷻ دې مونږ ته په هر نیك عمل کښې د اخلاص توفیق راکړی .

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الإیمان، باب إثبات الشفاعة إلخ [ج:۱ص:۱۰۸، ۱۰۹]

(۲) ترجمه:- یاد ساته عبادت چې خالص وی صرف الله جل شانه دپاره دي.

(۳) تفسیر القرطبي [ ج:۱۱ص:۳۰۱] و أحکام القرآن لابن العربي تحت هذه الآیة [ج: ٥ ص:۳٦۹] في تفسیر الآیة المذکورة.

**ابراهيم ﷺ دپاره د نمرود اور ګلزار جوړيدل او په دې کښې حقيقت:** د عادت څخه خلاف کارونو او معجزو انکار کوونکي خلق دې ځائې کښې عجيبه نکتې راؤباسي چې يو ذات سره لازم څيز دهغې نه هيڅرې نشي جدا کيدې لکه اور څخه چې سوزيدل نشي جدا کيدې ، حالانکه دا بالکل غلط څکه دی چې د هيڅ يو څيز ذات سره څه څيز لازم نه دې بلکه د الله ﷻ عادت دې چې اور څخه عمومي طور د سوزولو او ګرمولو کار اخلی او اوبو څخه ديخوالی او اور مږ کولو کار اخلی خو د اسې کله هم اوشی چې اور څخه يخوالی کار داسې اخستو چې که [بَرۡدًا] [وَّسَلٰمًا] يې نه وې وئيلې نو دواړې څخه به هم زيات يخ شوې وو چې نقصان به يې کړې وې ، او دغه شان د نوح ﷺ د طوفان په باره کښې قرآن پاک فرمائي چې : [أُغۡرِقُوۡا فَأُدۡخِلُوۡا نَارًا] [دغه خلق غرقيدو سره په اورکښې داخل شو] غرض دا چې دټولو معجزوشان هم دغه دې چې الله ﷻ کله اوغواړی نو دڅه حکمت په بنياد يو عادت بدل کړی چې ورسره عقلی محال نه لازميږی .

[حَرِّقُوۡهُ] [د ابراهيم ﷺ ټول خاندان او نمروديانو فيصله اوکړه چې دوئ ﷺ دې په اور کښې اوسوزولې شی]

په تاريخی روايتونو کښې راغلی دی چې د ټول ښار خلقو په جمع دې دپاره لرګی وغيره تر يوې مياشتې پورې راجمع کړل ، او ورته ئې اور ورته کړو ، او اووۀ ورځو پورې ددې د تيزولو دپاره د بنئ وهلو وغيره په کار کښې اخته وو ، تر دې پورې چې که يو مارغه به هر څومره لوړ پروازدې دپاسه کولونوهغه به پرې سوزيدو ،خوچې څه وخت ددوئ په خيال باندې اور ښه تيار شونودهغې دمينځ ته د ورغورزولوچل نه ورتلو ،شيطان ورته د منجنيق په ذريعه ددوئ ﷺ د ورغورزولو چل اوښودلو ،کله چې ابراهيم ﷺ په اورکښې ورغورزولې شو نو ټولو فرښتو بلکه دزمکې او آسمان ټول مخلوق په چغوشوچې ايې ربه ! ستا په خليل ﷺ باندې څه تيريږی ، الله ﷻ هر څه ته دمدد کولو اجازت ورکړو ، فرښتې چې ابراهيم ﷺ ته د مدد کولو دپاره حاضرې شوې او اجازت يې اوغوښتلو نو ابراهيم ﷺ ورته اوفرمائيل چې ما لره الله ﷻ کافی دې ، هغه زما حال ښه وينی ، جبرائيل ﷺ ورته د مدد کولو دپاره عرض اوکړو نو جواب يې ورکړو چې حاجت مې ستا دې خو تاته نه ، بلکه خپل رب ته مې حاجت شته دې. [مظهری] [1]

[قُلۡنَا يٰنَارُ كُوۡنِىۡ بَرۡدًا وَّسَلٰمًا عَلٰٓى اِبۡرٰهِيۡمَ] په څينې روايتونو کښې راغلی دی چې د اور حقيقت بالکل په هوا کښې بدل شو خ ښکاره خبره داده چې اور په حقيقت کښې د هر څه دپاره اور وو تر دې چې هغه رسئ او پړی يې هم اوسوزول په کومو چې تړلې شوې وو، اور ته ورګذار کړې شو وو خو د ابراهيم ﷺ بدن مبارک ته يې معمولی نقصان هم او نه رسولو.

په تاريخی روايتونو کښې راغلی دی چې تر اوۀ ورځو پورې ابراهيم ﷺ په دغه اور کښې پاتې شوې وو، هغوئ ﷺ به فرمائيل چې په ټول ژوند کښې ما ته داسې آرام نه وو څومره چې په دغه اوۀ ورځو کښې وو [مظهری]. [2]

[1] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٢٠٧، ٢٠٨]
[2] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٢٠٧، ٢٠٨]

[وَنَجَّيْنٰهُ وَلُوْطًا اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا لِلْعٰلَمِيْنَ] یعنی مونږ ابراهیم علیه السلام او لوط علیه السلام لره د نمرود د غلبې د زمکې ځخه په خلاصی ورکولو سره داسې زمکې ته وراورسول چې د ټول جهان په ظاهری او باطنی شان کښې ډیر برکتونه لری ، باطنی برکت خو دادې چې دا ګویا کښې د پیغمبرانو علیهم السلام خزانه ده ، ډیر پیغمبران دلته پیدا ، ظاهری برکت یې دا دې چې ښکلې آب و هوا لری ، نهرونه ، ولې او چینې په کښې ډیرې دی ، ګلونه او میوې او هر قسم بوټی وغیره په کښې ډیر قسمونه شته چې یوازې ددغې ښاورې خلقو دپاره مفید نه بلکه د ټولې دنیا د خلقو دپاره مفید دی چې ټولې دنیا ته رسی.

[وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ ۭ وَيَعْقُوْبَ نَافِلَةً] یعنی مونږ ورته زوئې اسحاق ورکړو ځنګه چې یې خواست کړې وو ، او زیاتی مور ورته نمسي یعنی یعقوب علیه السلام ورکړو ، مطلب دا چې دعا یې صرف زوئې دپاره کړې وه خو الله جل جلاله پخپل فضل سره د خپل طرفنه نمسې هم زیاتی ورکړو ځکه یې ورته [نَافِلَةً] اوفرمائیل.

| وَلُوْطًا | اٰتَيْنٰهُ | حُكْمًا | وَّعِلْمًا | وَّنَجَّيْنٰهُ | مِنَ الْقَرْيَةِ |
|---|---|---|---|---|---|
| او[اولیږو مونږه]لوط | اوورکړو مونږه هغه ته | حکم [نبوت] | او علم | او نجات ورکړو مونږ هغه لره | دکلی نه |
| اولوط علیه السلام ته مونږ حکمت او علم ورکړې وو او دهغه کلی نه مو بچ راوویستلو دکوم اوسیدونکی چې | | | | | |
| الَّتِيْ | كَانَتْ | تَّعْمَلُ | الْخَبٰۗىِٕثَ ۭ | اِنَّهُمْ | كَانُوْا |
| دهغه کلی نه | چې وو خلق دهغه کلی | چی کولې به ئې | بدکاریانې | بیشکه هغوئ | ووئ |
| د بې حیایې د کارونو کونکی وو ...... بیشکه هغه خراب او | | | | | |
| قَوْمَ سَوْءٍ | فٰسِقِيْنَ | وَاَدْخَلْنٰهُ | فِيْ رَحْمَتِنَا ۭ | اِنَّهٗ | |
| قوم دبدئ | فاسقان | او داخل کړو مونږ هغه | په رحمت خپل کښی | بیشکه هغه | |
| بدکاره خلق وو او هغه [لوط علیه السلام] مونږ پخپل رحمت کښې داخل کړو یقینی ده چه هغه په | | | | | |
| مِنَ الصّٰلِحِيْنَ | | | | | |
| دصالحانو نه ووځ | | | | | |
| نیکانو خلقو کښې شامل وو | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اولوط علیه السلام ته مونږ حکمت او علم ورکړو، او هغه ته مو د هغه کلی نه خلاصې ورکړو چه غلط کارونه به ئې کول. په حقیقت کښې هغوی ډیر ګناه کونکی او نافرمان قوم وو. اولوط علیه السلام مونږ په خپل رحمت کښې داخل کړو، او هغوی یقیناً په نیکانو خلقو کښې وو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلُوْطًا اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا﴾ [ اولوط ] علیه السلام [ ته مونږ حکمت اوعلم ] مناسب د شان د انبیاؤ علیهم السلام [ ورکړل ﴿وَنَجَّيْنٰهُ مِنَ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ كَانَتْ تَّعْمَلُ الْخَبٰۗىِٕثَ ۭ﴾ اومونږ ده له د هغه کلی نه نجات ورکړو دکومو اوسیدونکو چه ګنده ګنده کارونه کول ] چه په هغو کښې دټولو نه زیات ناکاره لواطت وو اونور هم د ډیر بې هوده او ناکاره کارونه دا خلق عادت وو شراب ځکل ګانې بجانې ګیره

خریل بریت اوږ دول کبتوتر بازی لوټي ویشتل شپیلی وهل ریښمي جامې او اغوستل [ اخرجه اسحق بن بشر والخطیب وابن عساکر عن الحسن مرفوعا کذا فی الروح ](١) ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمَ سَوْءٍ فَاسِقِينَ﴾ [دغه خلق لوئ بد ذاته بد کاره وو] ﴿وَأَدْخَلْنَاهُ فِي رَحْمَتِنَا﴾ او مونږ لوط ﷺ [لره په خپل رحمت کښې ] یعنې په کومو بندګانو چه رحمت کیږي په هغوی کښې [داخل کړو] ځکه چه ﴿إِنَّهُ مِنَ الصَّالِحِينَ﴾ [بیشکه هغه] د [لوئ] درجې [ دنکانو نه وو] دلوئ درجې دنیك نه مراد معصوم دې کوم چه د نبی خصوصیت دې

## معارف او مسائل

دکومې ودانئ د خلاصئ بیان چې په دې آیتونو کښې راغلې دې دهغې نوم سدوم وو چې ورسره نږلې نورې اووهٔ ودانئ وې چې جبرائیل ﷺ لاندې باندې الټه کړې او صرف یوه ودانئ یې ځکه محفوظ اوساتله چې په کښې لوط ﷺ سره د خپلو مؤمنانو او متعلقینو پاتې شی، [ابن عباس ﷺ، بحواله قرطبی](٢)

[تَعْمَلُ الْخَبَائِثَ] خبائث د خبیثة جمع ده ، ډیر خراب او ګنده او خراب عادتونه او کارونه دټولو څخه زیات ګنده او غلیظ کار او عادت ددوئ لواطت وه ، کوم چې ځنګلی ځناور هم نه کوی. دلته دا هم وئیلې شی چې هر کله دا یوکار د لواطت ډیر زیات ګنده کار وو ، ځکه ددې دپاره لفظ د جمع خبائث استعمال شو څنګه چې ځینې مفسرینو فرمائیلی دی، په روایتونو کښې ثابت دی چې نور ګنده ګنده کارونه به هم دوئ کول لکه چې دتفسیر په خلاصه کښې د روح المعانی په حواله تیر شوی دی ، نو په دغې بنا باندې خبائث ورته فرمائیل ظاهری خبره ده ، والله اعلم.

| وَنُوحًا إِذْ نَادَىٰ مِن قَبْلُ |
|---|
| [ او [دا نعمت مونږ ورکړو ] نوح ﷺ له \| کله چې \| آواز اوکړو هغه \| مخکښې دهغوئ نه |
| [او ددې نه وړاندې کله چې نوح ﷺ آواز اوکړو |
| فَاسْتَجَبْنَا لَهُ فَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ |
| نو دعا قبوله کړه مونږه \| هغه لره \| نو خلاصې ورکړو مونږ هغه ته \| او کوروالو دهغه ته \| |
| نو مونږ دهغه دعا قبوله کړه\| اومونږ هغه او د هغه اهل ته د ډیرلوئې غم |
| مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيمِ ۝ وَنَصَرْنَاهُ مِنَ الْقَوْمِ الَّذِينَ |
| دمصیبت \| لوئ نه \| او امداد اوکړو مونږ دهغه \| په مقابله دقوم کښې \| هغه قوم |
| نه نجات ورکړل \| اومونږ د نوح ﷺ بدله دهغه خلقو نه واخسته \| چې زمونږ حکمونه ئې دروغ |
| كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمَ سَوْءٍ فَأَغْرَقْنَاهُمْ أَجْمَعِينَ ۝ |
| چې دروغ اوګڼل هغوئ \| آیتونه زمونږه \| بیشکه هغوئ \| وو \| قوم بد \| نو غرق کړل مونږ هغوئ \| ټول |
| ګڼړل [بیشکه چې دغه خلق ډیر خراب خلق وو\| نومونږ دوئ ټول غرق کړل |

١) تفسیر روح المعاني تحت هذه الآیة [ج: ١٧ ص:٧١] وتاریخ دمشق، باب حرف اللام [ج: ٥٠ص:٣٢٢]
٢) تفسیر القرطبي [ ج:١١ص:٣٠٦]

## آسان ترجمه قرآن

او نوح عليه السلام ته هم (مونږ حکمت او علم ورکړو) هغه وخت ياد کړه چه کله د دې واقعې نه مخکښې هغه مونږ راوبللو، نو مونږ د هغه دعا قبوله کړه، او هغوی او د هغوی ملګری مو د ډير لوئې مصيبت نه خلاص کړل. او کوم قوم چه زمونږ نخښې دروغژنې ګڼړلې وې، دهغې په مقابله کښې مو دهغوی مدد اوکړو حقيقت دا دې چه هغوی ډير بد خلق وو، په دې وجه مونږ هغوی ټول غرق کړل.

## خلاصه تفسير

﴿وَنُوْحًا اِذْ نَادٰى مِنْ قَبْلُ﴾ [او د نوح ] ﷺ دقصې [ ذکر وکړه کله چه ددغې] زمانې دابراهيم ﷺ [ نه وړاندې دوی] ﷺ الله تعالى نه [ سوال وکړو] چه ددې کافرانو نه زما بدله واخلې ﴿فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ﴾ [پس مونږ ددوی دعا قبوله کړه او ده له او دده تابعدارو له مود لوئ دروند غم نه نجات ورکړو] دا غم دکفار ده له دروغژن کول او قسم قسم تکليفونه ورته رسول وو [ او] نجات مو داسې ورکړو چه ﴿وَنَصَرْنٰهُ مِنَ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ﴾ [ مونږ داسې خلقو نه ددوی بدله واخسته کومو چه ﴿كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا﴾ زمونږ حکمونو لره] کوم چه حضرت نوح ﷺ راوړي وو [دروغ کړل ﴿اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمَ سَوْءٍ فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ بيشکه دغه خلق ډير ناکاره وو په دې وجه مونږ دغه ټولو لره غرق کړل].

## معارف او مسائل

[وَنُوْحًا اِذْ نَادٰى مِنْ قَبْلُ] د [مِنْ قَبْلُ] څخه مراد د ابراهيم ﷺ او لوط ﷺ څخه وړاندې زمانه ده چې اوس يې دې سره وړاندې بيان راغلې دې ، د لته خو د نوح ﷺ د بلنې بيان مجمل راغلې دې او په سورة نوح ﷺ کښې يې ښکاره بيان داسې راغلې دې چې دې خپل قوم ته داسې ښيرې اوکړه [رَبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْاَرْضِ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ دَيَّارًا] [اې پروردګاره ! د ټولو اوسيدونکو کافرانو جرړې اوباسې] په بل ځائې کښې ددوئ ﷺ يو ه دعا قرآن کريم داسې بيان کړې ده چې [اِنِّيْ مَغْلُوْبٌ فَانْتَصِرْ] [اې الله ! زه پاتې راغلم د ې خلقو څخه زما بدله واخله]

[فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ] دلته د [الكرب العظيم] څخه مراد يا خو په طوفان نوح کښې غرقيدل دې چې ټول قوم په کښې غرق شو او يا ددغې قوم هغه نقصانونه مراد دې چې د طوفان نوح څخه مخکښې به يې نوح ﷺ او ددوئ ﷺ خاندان ته رسول

| وَدَاوٗدَ | وَسُلَيْمٰنَ | اِذْ | يَحْكُمٰنِ | | |
|---|---|---|---|---|---|
| او [دا نعمت مونږ ورکړو ] داود له | او سليمان له | کله چې | فيصله کوله دواړو | | |
| .........اوداود ﷺ او سليمان ﷺ هم يادکړه | کله چې دوئ د | | | | |
| فِي الْحَرْثِ | اِذْ | نَفَشَتْ | فِيْهِ | غَنَمُ الْقَوْمِ | وَكُنَّا |
| په باره دفصل کښې | کله چې | دشپې ورګډې شوې | په هغې کښې | ګډې ديو قوم | او وو مونږه |
| ......پټې په معامله کښې فيصله کوله | په کوم کښې چې د يوې دلې بيزې څريدلې وې | | | | |
| لِحُكْمِهِمْ | شٰهِدِيْنَ | فَفَهَّمْنٰهَا | سُلَيْمٰنَ | وَكُلًّا | |
| فيصلې دهغوئ ته | کتونکي [پخپله] | نو پوهه ورکړه مونږه دهغه فيصلې | سليمان له | او هر يو له | |
| اومونږ ته دهغوئ فيصله ښکاره وه | نومونږ دهغې فيصلې پوهه سليمان ته ورکړه | | | | |

اٰتَيْنَا حُكْمًا وَّعِلْمًا وَّسَخَّرْنَا مَعَ دَاوٗدَ الْجِبَالَ

وركړي وو مونږه | حكم او علم | او تابع كړي وو مونږه | دداود سره | غرونه |

اوحكمت اوعلم مو هريو ته وركړي وو | اومونږ داود ﷺ سره غرونه مسخر كړي وو

يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ ؕ وَكُنَّا فٰعِلِيْنَ ۝ وَعَلَّمْنٰهُ

چي تسبيح به ئې وئيله | او مارغان هم | او وو مونږه | كونكي [ددې كار] | او ښودلې وو مونږ هغه ته

چي هغې [غرونو] اومارغانو به زمونږ پاكي بيانوله | او دا كار مونږ [پخپل قدرت] كړي وو |

صَنْعَةَ لَبُوْسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُمْ مِّنْۢ بَاْسِكُمْ ۚ

جوړول | دجامو [زغرو] | ستاسو دپاره | دپاره ددې چي بچ كړي تاسو | دجنګ ستاسو نه

او مونږ هغه ته دزغرو جوړول ستاسو [دفائدې] دپاره خودلي وو | چي تاسو د حملونه بچ كوي

فَهَلْ اَنْتُمْ شٰكِرُوْنَ ۝ وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ عَاصِفَةً

نو آيا يئ تاسو | شكر ايستونكي | او دپاره دسليمان | مونږ مسخر كړې وه] هوا تيزه

نوآيا تاسو شكر نه اداكوئي | اومونږ د سليمان ﷺ دپاره تيزې هواګانې مسخر كړې وې

تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖٓ اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ

چي تلله به | په حكم دهغه سره | هغه زمكې ته | چي بركت اېښې وو مونږه | په هغې كښې

چي دهغه په حكم به هغې زمكې طرفته چليدې | په كومه كښې چي مونږ بركتونه اچولي وو

وَكُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عٰلِمِيْنَ ۝ وَمِنَ الشَّيٰطِيْنِ مَنْ

او وو مونږه | په هر څيز باندې | عالمان | او دشيطانانو نه [تابع كړئ وو مونږه] | څيني هغه

اومونږ ته خو هر يو څيز معلوم دې | او په شيطانانو كښې داسې هم وو | چي دهغه

يَّغُوْصُوْنَ لَهٗ وَيَعْمَلُوْنَ عَمَلًا دُوْنَ ذٰلِكَ ۚ وَكُنَّا

چي غوپې به ئې وهلې | دپاره دهغه | او كول به ئې | نور كارونه هم | علاوه ددې نه | او وو مونږ

دپاره ئې [په دريابونو كښې] غوپې وهلې | اوددې نه علاوه نور كارونه به ئې هم كول | اومونږ

لَهُمْ حٰفِظِيْنَ ۝

هغوئ لره | ساتونكي |

به دهغوئ حفاظت كولو

## آسان ترجمه قرآن

او داؤد او سليمان (ته هم مونږ حكمت او علم وركړي وو) چه كله هغوى دواړو د يو پټي د جهګړې فيصله كوله. څكه چه دڅه خلقو بيزې دشپې په وخت كښې هغه پټي ته وركډې شوې وې او دهغه خلقو په باره كښې چه څه فيصله اوشوه هغې ته مونږ كتل. پس د هغه فيصلې پوهه مونږ سليمان ته وركړه. او (هسې خو) مونږ دواړو ته علم او حكمت وركړي وو او مونږ د داؤد عليه السلام سره غرونه تابعدار كړي وو چه هغوى د مارغانو سره تسبيح كوى . او دا ټول كارونه كونكي مونږ وو. او مونږ هغه ته ستاسو د فائدې

دپاره ديو جنگي جامې (يعنى زغرې) جوړولو كسب اوښودلو چه هغه تاسو په جنگ كښې د يو بل د گزار نه بچ كړي اوس اوښايئ چه آيا تاسو شكر كوونكي يئ؟ او مونږ تيزه هوا د سليمان عليه السلام تابع كړه كومه چه به د هغه په حكم بانديې هغې زمكې طرف ته تلله چه په هغې كښې مونږ بركتونه كيخودلي دى. او مونږ ته د هرې خبرې پوره پوره علم دې اوبعض داسې شرارت كوونكي جنات هم مونږ دهغوى تابع كړې وو چه دهغوى (عليه السلام) د خاطره به ئې په اوبو كښې غوپې وهلې او ددې نه علاوه به ئې نور كارونه هم كول، اود هغوى ټولو حفاظت كوونكي مونږ وو.

## خلاصه تفسير

﴿وَدَاوُدَ وَسُلَيْمَانَ﴾[او د داود او سليمن ]عليهما السلام قصه [ ذكر كړه ﴿إِذْ يَحْكُمَانِ فِي الْحَرْثِ﴾هركله چه دواړو] حضراتو [ دفصل په باره كښې ] چه غله وه په كښې يا د انگور اونې وې لكه چه په درمنثور كښې دى [ فيصله كوله﴿إِذْ نَفَشَتْ فِيهِ غَنَمُ الْقَوْمِ﴾ كله چه په دې] فصل [ كښې دځه خلقو بيزې دشپې په وخت كښې ور وختې ] او په هغې كښې ځريدې ﴿وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شَاهِدِينَ﴾[ اومونږ دې فيصلې لره كومه چه د] مقدمه كوونكو [ خلقو متعلق وشوه ليدله ﴿فَفَهَّمْنَاهَا سُلَيْمَانَ﴾ پس مونږ ددې فيصلې ] داسان صورت [ پوهه سليمان] عليه السلام [ ته وركړه او] هسې هم ﴿وَكُلًّا آتَيْنَا حُكْمًا وَعِلْمًا﴾[ مونږ دواړو ته حكمت او علم وركړې وو] يعنى د داود عليه السلام فيصله هم د شريعت نه خلاف نه وه صورت دفيصلې دا وو چه څومره فصل نقصان شوې وو دهغې قيمت د بيزو د قيمت سره برابر وو داود عليه السلام په تاوان كښې دفصل خاوند ته هغه بيزې وركړې او اصل مقتضا هم د شرعى قانون دا وه چه په دى د مدعى يا مدعى عليه رضا مندى شرط نه ده مگر چونكه په دې كښې دبيزو دخاوندانو بلكل نقصان كيدو په دې وجه سليمان عليه السلام په طور دمصالحت كوم چه موقوف وو دجانبينو په رضا مندئ باند دا صورت په كوم كښې چه دواړو دپاره رعايت او اسانى وه تجويز وفرمائيلو چه دځو ورځو دپاره د بيزې د فصل خاوند ته وركړې شى چه په پيو وغيره ئې خپله گذاره كوى او دبيزو خاوندانو ته ددغه فصل اوسپارلې شى چه خدمت وغيره ئې كوى نو هركله چه فصل بيا په خپل زوړ حالت برابر شى بيا دې فصل او بيزې خپلو خپلو مالكانو ته واپس كړې شى لكه چه داسې درمنثور([1]) كښې دمره او ابن مسعود رضي الله عنه او مسروق او ابن عباس اومجاهد او قتاده او زهرى نه دى پس ددې نه معلومه شوه چه په دواړو فيصلو كښې څه تعارض نشته چه ديوې صحت اود بلې دعدم صحت مقتضى شى په دې وجه [كلا اتينا حكما وعلما]زيات كړو او دلته دې پورې خو عام كرامت ذكر وو كوم چه په دواړو حضراتو كښې مشترك وو وړاندې د دواړو حضراتو دخاصو كرامتونو بيان دې ﴿وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوُدَ الْجِبَالَ﴾[ مونږ داؤد] عليه السلام [سره تابع كړې شو غرونو لره چه ] دده دتسبيح سره به ﴿يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ﴾ [ هغو ] هم [ تسبيح كوله او] دغه شان [مارغانو هم ] لكه چه په سوره سبا كښې دى [يٰجِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ وَالطَّيْرَ]([2]) [او] څوك دې په دې خبرو باند تعجب نه كوى خكه چه ددې كارونو﴿وَكُنَّا فَاعِلِينَ﴾ [ كوونكى مونږ وو] او زمونږ د قدرت عظيموالې ظاهر

---

[1]) الدر المنثور تحت هذه الآية [ج: ۷ص:۷٦]ومصنف عبدالرزاق رقم الحديث [۱۸٤۳۳، ۱۸٤۳٤]

[2]) ترجمه:- اې غرونو! داؤد عليه السلام سره بيا بيا تسبيح وائې او مارغانو ته هم حكم وركړې شو (چې هغه سره تسبيح وائې).

دې بيا په دې معجزو كښې تعجب څه دې ﴿وَعَلَّمْنٰهُ صَنْعَةَ لَبُوْسٍ لَّكُمْ﴾ [ او مونږ دۀ ته د زغرو] جوړولو [ كارستاسو خلقو د] نفع د [ پاره ښودلې وو] يعنى ددې دپاره چه هغه زغرې ﴿لِتُحْصِنَكُمْ مِّنْۢ بَاْسِكُمْ﴾ [ تاسو لره ] په جنګ كښې [د يو بل دګذارنه بچ كړى ] او ددې لوئ نفع مقتضا داده چه تاسو شكر وكړئ ﴿فَهَلْ اَنْتُمْ شٰكِرُوْنَ﴾ [ پس آيا تاسو ] ددې نعمت [ شكر هم كوئ] اوكه نه ﴿وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ عَاصِفَةً﴾ [ اومونږ سليمان ] ﷺ [ لره تيزه هوا تابع كړې وه ﴿تَجْرِيْ بِاَمْرِهٖٓ اِلَى الْاَرْضِ الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا﴾ چې هغه به ددۀ په حكم سره هغې زمكې طرف ته تله په كومه كښې چې مونږ بركت اچولې وو او مراد ترې د شام ملك دې كوم چې ] ددۀ ځائ وو لكه چه داسې په درمنثور كښې دسدى نه دى او دلالت كوى په دې باندې آبادول د بيت المقدس يعنى كله چه به چرته دشام ملك ته تلو او بيا به راتلو نو داتلل راتلل به ئې د هوا په ذريعه سره وو لكه چه په درمنثور كښې په روايت او تصحيح دحاكم د حضرت ابن عباس ﷺ نه ددې دكيفيت روايت دې چه سليمان ﷺ به سره د سردارانو دحكومت په كرسو باند كښيناستل بيا به ئې هوا ته حكم وكړو هوا به دا ټول وچت كړل په لږ وخت كښې به ئې ديوې مياشتې مزل قطع كولو[1] ﴿وَكُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عٰلِمِيْنَ﴾ [ اومونږ هر شى لره پيژنو ] زمونږ په علم كښې سليمان ﷺ ته په دې څيزونو وركولو كښې حكمت وو په دې وجه مو وركړل ﴿وَمِنَ الشَّيٰطِيْنِ﴾ [ اوځنې ځنې شيطانان ] يعنى پيريان ﴿مَنْ يَّغُوْصُوْنَ لَهٗ﴾ [داسې وو چه دسليمان ] ﷺ [دپاره به ئې ] په درياب كښې [غوپې وهلې ] چه ملغلرې راوباسى او هغه له ئې راوړى ﴿وَيَعْمَلُوْنَ عَمَلًا دُوْنَ ذٰلِكَ﴾ [او هغو به نور كارونه هم ددې نه علاوه ] دسليمان ﷺ دپاره [كول او] اكر چه دغه پيريان ډير سركشه او شرارت كوونكى وو مګر ﴿وَكُنَّا لَهُمْ حٰفِظِيْنَ﴾ [ ددوى سنبالوونكى مونږه وو] په دې وجه هغوى حيلې بهانې نه شوې كولې

## معارف او مسائل

[اِذْ نَفَشَتْ فِيْهِ غَنَمُ الْقَوْمِ] عربى ژبه كښې د نفش معنى داده چې دشپې په وخت څاروى دچا په پټى كښې ورګډ شى او هغې ته نقصان اورسوى .

[فَفَهَّمْنٰهَا سُلَيْمٰنَ] دلته د ها ضمير په ښكاره مقدمې او ددې فيصلې ته راجع دې او معنى يې داده چې كومه فيصله د الله ﷻ په نزد خوښه وه په هغې باندې سليمان ﷺ ته پوهه وركړې شوه [ددې مقدمې او فيصلې صورت د تفسير په خلاصه كښې بيا شوې دې ] هغې څخه معلوميږى چې د داؤد ﷺ فيصله هم د شرعى قانون تر مخه غلطه نه وه خو د كومې فيصلې پوهه چې الله ﷻ سليمان ﷺ ته وركړه په هغې كښې د دواړو فريقو ښيګړه وه څكه د الله ﷻ په نزد خوښه اوګرځولې شوه ، امام بغوى رحمه الله د ابن عباس ﷺ ، قتاده رحمه الله او زهرى رحمه الله څخه ددې واقعې روايت داسې كړې دې چې دوه كسان د داؤد ﷺ په خدمت كښې حاضر شو ، يو كس په كښې د چيلو او بل كس د پټى مالك وو ، دپټى مالك دعوى كوله چې دوه چيلئ د شپې په وخت زما په پټى او فصل باندې ورګډې شوې او بالكل يې تباه كړو او هيڅ يې پرې نښنول ، [غالبا مدعا عليه به دغه منلې وى او دهغه دچيلو قيمت او دپټى د نقصان قيمت به يو شان او برابر وى څكه] داؤد ﷺ دا فيصله واؤروله چې دغه ټولې چيلئ به دې د پټى د خاوند په نقصان

[1] ) الدر المنثور تحت هذه الآية [ج: ٧ ص: ٨٠، ٨١] ومصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث [٣١٨٥٢].

کښې ورکړې شي. څنګه چې د ذوات القيم څيزونو د نقصان په باره کښې د فقهاء کرامو فصله هم دغه شان ده ، د داؤد ﷺ ددې فيصلې آؤرولو څخه وروستو کله چې د دربار په دروازه باندې دغه فريقينو د سليمان ﷺ دتپوس په جواب کښې هغوئ ﷺ ددې فيصلې څخه خبر کړل ، سليمان ﷺ ورته اوفرمائيل چې زما فيصله کول به ددې څخه زياته ښه وو چې دواړه فريقه به په نقصان کښې نه بلکه په فائده کښې به وو ، بيا دخپل باباجي داؤد ﷺ په خدمت کښې پخپله هم حاضر او هم دغه شان خبره يې هغوئ ﷺ ته هم اوکړه ، داؤد ﷺ ورته اوفرمائيل چې دغه فيصله دې مونږ ته هم راښکاره کړئ ، هغوئ ﷺ ورته اوفرمائيل چې ټولې چيلۍ د پټې خاوند ته ورکړئي ، هغه به يې د پيو وغيره څخه دخپل پټې نقصان پوره کړي او پټې د چيلو خاوند ته دې دپاره اوسپارئې چې هغه يې تر هغه وخته پورې خصمانه اوخدمت اوکړي چې پټې د نقصان کيدو څخه مخکښې خپل اصلي حالت ته راؤرسي . په دې شان چې دواړو ته خپل خپل مال او جائيداد واپس کړې شي نو يو به هم په نقصان کښې نه بلکه فائده کښې پاتې شي . د داؤد ﷺ هم دا فيصله خوښه شوه او فريقينو ته يې هم دا واؤروله او ددې جارې کيدو حکم يې ورکړو [مظهري و قرطبي وغيره]([1])

**چې قاضي يوه فيصله اوکړي نو آيا هغه ماتولې يا بدلولې شي** : دلته دا سوال پيدا کيږي چې آياسليمان ﷺ ته د داؤد ﷺ د کړې فيصلې يا د داؤد ﷺ ته د خپلې فيصلې د بدلون يا ماتولو حق حاصل وو ؟ قرطبي په دې باندې ډير تفصيل سره بحث کړې دې ، خلاصه يې داده چې که يو قاضي د شرعي نصونو او دجمهورو امت په خلاف څه فيصله خالص په اټکل سره کړې وي نو دغه فيصله د امت په اتفاق سره رد شوې او باطله ده . بل قاضي لره دهغې خلاف فيصله ورکول نو صرف جائز بلکه واجب دي . اودغه قاضي معزول کول هم واجب دي ، البته که قاضي د شرعي اجتهاد په بنياد باندې د اجتهاد د اصولو لاندې کړې وي نو بل قاضي لره د هغه فيصله ماتول جائز نه دي چې دې څخه لوئي فساد راپورته کيږي او اسلامي قانون لوبې توقې ګنړلې شي چې په دې بنا باندې امروزه حلال او حرام بدليږي رابدليږي ، که پخپله دغه قاضي ته خپله کړې فيصله د خپل اجتهاد تر مخه داسې ښکاره شي چې په دې کښې زما څخه غلطي شوې ده او زما اجتهاد غلط وو نو دهغې بدلول جائز بلکه زيات غوره دي ، چنانچه فاروق اعظم رضي الله عنه د ابي موسى اشعري رضي الله عنه په نوم دقاضي د ذمه دارو او مقدمو باره کښې يو تفصيلي خط ليږلې وو ، په هغې کښې دا خبره په ښکاره کړې شوې وه چې د يوې فيصلې ورکولو څخه وروستو چې اجتهاد بدل شي نو رومبئ فيصله بدلول پکار دي . دا خط دار قطني په سند سره نقل کړې دې ، [قرطبي]([2]) او شمس الائمه سرخسي رحمه الله په مبسوط باب القضا کښې هم دا خط په تفصيل سره نقل کړې دې

د تفسير امام مجاهد فرمائيلي دي چې د داؤد ﷺ او سليمان ﷺ فيصلې په خپل خپل ځائې صحيح وې ، ددغې دواړو حقيقت دا وو چې داؤد ﷺ د ضابطې مطابق فيصله کړې وه ، اود

[1]) تفسير البغوي تحت هذه الآية [ج:٥ ص:٣٣٢] و تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١١ص:٣٠٧، ٣٠٨] و تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٢١٢]

[2]) تفسير القرطبي [ ج:١١ص:٣١٢] وسنن الدار قطني رقم الحديث[٤٥٢٤]في تذكرة عمر رضي الله عنه ، باب في الإقضية والأحكام.

سلیمان ﷺ فیصله نه بلکه د فریقینو تر مینځه د صلح یو صورت وو ، هر کله چې په قرآن پاك کښې هم فرمائی: [وَالصُّلْحُ خَيْرٌ][1] ځکه دا صورت د الله ﷻ په نزد غوره اوګرځولې شو ،[مظهری][2]

دويم خليفه امير المؤمنين فاروق اعظم ﷺ خپلو قاضيانو ته دا هدايت کړې وو چې تاسو ته راغلې او پيش شوې مقدمې د فريقينو په رضا مندئ سره اول د صلح په ذريعه حل کوئ که داسې بالکل نشی کيدې هله خپله شرعی فيصله جاری کوئی ، او ددې حکمت يې دا بيان کړو چې کوم فريق فيصله اوبائيلی هغه وختی طور د عدالتی فيصلې په وجه غلې شی خو د هغه په زړه دښمنی او غصه بيا هم قائمه وی ، کوم چې د مسلمانانو ترمينځه نه دې کيدل پکار. البته د مصالحت په صورت سره د غه نفرت او دښمنی وغيره هم ختميږی [معين الحکام][3]

د مجاهد د قول په بنا دغه صورت د فيصلې بدلولو ياماتولو نه وو بلکه ددې د نافذ کيدو ځخه وړاندې وړاندې د صلح يو صورت داسې ښکاره شو چې دواړه د عدالت ځخه بهر نه وو وتلی او دواړه فريقه د صلح په دغې فيصله باندې راضی هم شو.

**د اجتهاد په بنياد د دوؤ مجتهدانو هغه دواړه فيصلې به صحيح وی چې يو بل نه مخالف وی اوکه يو به په کښې په غلطه وی؟** پدې موقعه باندې قرطبی په پوره تفصيل سره او نورو مفسرينو په تفصيل سره يا په مختصر طور دا بحث هم په دې شان کړې دې چې هر مجتهد هميشه دپاره پخپل اجتهاد کښې په حقه وی او که يو په حقه ی اوبل په غلطه ، کله چې ددې دواړو اجتهادونه د يو بل ځخه خلاف وی کوم علماء کرام چې دواړو ته په حقه وائی دهغویٔ دليل د آيت مبارك آخری جمله ده: [وَكُلًّا آتَيْنَا حُكْمًا وَعِلْمًا] چې ګويا که دواړو ته په حقه اوفرمائيلې شو البته د سليمان ﷺ فيصله ځکه غوره اوګرځولې شوه چې د دواړو فريقو ترمينځه دهغویٔ په خوښه په کښې صلح شوې وه ، اوکوم علماء کرام چې يو اړخ ته په حقه او بل اړخ ته په غلطه وائی نو دهغویٔ دليل د آيت مبارك رومبی جمله ده چې: [فَفَهَّمْنَاهَا سُلَيْمَانَ][4] چې د سليمان ﷺ فيصلې ته ګويا که په حقه اوونيلې شو البته بل طرفته که د داوُد ﷺ فيصله غلطه هم ښکاره شوه نو د هغې پرې ګرفت نشته چې دا اجتهادی غلطی ده ، دا بحث د اصول فقه په کتابونو کښې ډير په تفصيل سره راغلې دې دلته صرف دومره ځان پوهول پکار دی چې د رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې چا اجتهاد اوکړو او د اجتهادی اصولو په بنا يې يو دينی حکم بيان کړو نو که اجتهاد يې صحيح وو نو دومره اجرونه به ورته ځکه ملاويږی چې يو يې داجتهاد کولو محنت کړې دې او بل صحيح او درست حکم ته رسيدلې دې ، اوکه اجتهاد يې غلط وو نو د اجتهاد کولو د محنت صرف يو ثواب به ورته ملاويږی. [دا حديث اکثر په مستندو کتابونو دحديث کښې منقول دې][4]

---

[1] ) ترجمه:- اودا صلح بهتر ده.

[2] ) تفسير المظهري[ج:٦ص:٢١٤، ٢١٥]

[3] ) معين الأحكام، الباب السادي والعشرون القضاء بالصلح بين الخصمين [ج:٢ ص:٨٠]

[4] ) صحيح مسلم كتاب الأقضية، باب بيان أجزاء الحاكم إذا اجتهد إلخ [ج:٢ص:٧٦] و صحيح البخاري كتاب الإعتصام ،باب اجرا الحاكم إذا اجتهد إلخ [ج:٢ص:١٠٩٢]

په دې حديث پاك نظر اچولو سره نو په دې باره كښې اختلاف هم كول يو قسم نزاع لفظي ده ، ولې چې حق دواړه اجتهادونه دي ، د دواړو تابعداران هم په حقه دي چې په دې باندې عمل كولو سره به ورته نجات ملاويږي . صرف په ثوابونو يې فرق دې چې دكوم مجتهد اجتهاد په حقه وي نو دوه اودكوم مجتهد اجتهاد چې په غلطه وي نو يو ثواب به بيا ورته ملاويږي خو نه به دا ته گناهنگار وثيلې شي اونه به يې تابعداران اومقلدان په دې گناهنگار وي ، په تفسير قرطبي كښې دا ټول بحثونه په پوره تفصيل سره ليكلې شوي دي ، هلته كتلې شئ .[1]

**په د يو كس څناور د بل كس ځان ومال ته څه نقصان اورسوي نو د فقهې تر مخه ددې څه فيصله پكار ده ؟**

دداؤد ﷺ دفيصلې څخه دا ثابتيږي چې څناور دبل چا مال او ځان ته نقصان اورسوي نو د څناور مالك باندې به تاوان راځي كله چې د شپې په وخت يې نقصان رسولې وي خو دا ضروري نه ده چې د شريعت داؤدي ﷺ داحكم دې په شريعت محمدي ﷺ كښې هم چليږي . ځكه په دې مسئله كښې د مجتهدينو امامانو اختلاف دې ، د امام شافعي رحمه الله په نزد د شپې د نقصان رسولو تاوان په مالك شته ، دورځې د نقصان رسولو تاوان ذمه دار نه دې . دې يو دليل دغه داؤدي فيصله هم كيدې شي او دشريعت محمدي ﷺ د اصولو لاندې بل دليل يې هم مرسل حديث پاك هم كيدې شي چې په مؤطا امام مالك كښې داسې منقول دې چې د براء بن عازب رضي الله عنه اوښه د يو سړي په باغ كښې د شپې ورداخله شوه او هغه باغ ته يې نقصان اورسولو نو رسول كريم ﷺ د هغې فيصله داسې او كړه چې دپټو او د باغونو حفاظت كول ددې مالكانو په ذمه دي كله چې شپه وي ، خو سره ددې چه كه بيا هم ورته د چا څناور نقصان اورسولو نو د څناور مالك يې ذمه دار دې .[2] په دې باره كښې د امام اعظم ابى حنيفه رحمه الله اود كوفې د فقهاء كرامو مسلك دې چې كله څناورو سره څروونكې يا څارنه كوونكې موجود وى ، دهغه په بې احتياطۍ يا لاپرواهۍ سره د چا پټي يا باغ ته نقصان اورسولو نو ذمه دارى يې د څناور په مالك ده كه دا صورت د شپې راپيښ شوې وې . او كه د ورځې څناور پخپله د څه محافظ او څرونكي څخه نقصان اوكړى نو د څناورو مالك به يې ذمه دار نه وى ، په دې صور كښې هم شپه او ورځ دواړه برابر دى .

دامام اعظم رحمه الله دليل هغه حديث پاك دې چې بخارى شريف او مسلم شريف او ټولو محدثينو داسې روايت كړې دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې : [جرح العجماء جبار][3] يعنى د څاروؤ د كړې شوى نقصان مالك ذمه دار نه دې . خو هله چې څوك محافظ يا څرونكي ورسره نه وى او څاروى د خپل مالك څخه په تيښته وتلى وى .[4] او د براء بن عازب رضي الله عنه د واقعې د روايت په سند كښې حنفى فقهاء كرامو خبرې داسې كړى دى چې د صحيحينو دبيان شوى حديث په مقابله كښې د ا حديث پاك دليل نشى گرځيدلې والله اعلم.

---

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:١١ص:٣٠٩، ٣١٠]
[2] ) موطا مالك كتاب الأقضية باب القضاء في الضواري والحرسية رقم الحديث [٢٧٦٦]
[3] ) صحيح البخاري كتاب الزكوة باب في الركاز خمس (بالتقديم والتاخير) رقم الحديث [ج:١ ص:٢٠٣] و صحيح مسلم كتاب الحدود ، باب جرح العجماء إلخ [ج:٢ص:٧٣] (بالتقديم والتاخير)
[4] ) العناية شرح الهداية ، كتاب الديات ، باب جناية البهيمة ، وبدائع الصنائع ، كتاب الجنايات ، فصل في وجوب الضمان إلخ.

**دغرونو او مارغانو تسبيح وئيل:** [وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوُدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ ۚ وَكُنَّا فَاعِلِينَ] داؤد ﷺ ته په ظاهري كمالونو كښې يو كمال د خوش آوازئى هم الله ﷻ وركړې وو ، كله به چې هغوئ ﷺ زبور وئيلو نو مارغان به په هوا كښې پخپل ځاى اودريدل او ورسره به يې تسبيح وئيله . دغه شان به غرونو او نورو ونو بوټو څخه هم د تسبيح آواز راتلو ، ددوئ ﷺ خوش آوازى يو ظاهري كمال وو .د مارغانو او غرونو وغيره په تسبيح كښې ورسره شريكيدل يوه معجزه وه ، په معجزه كښې دا ضرورى نه دى چې په غرونو او ونو بوټو كښې هم ژوند او شعور وى ، بلكه د معجزې په ډول هر بې شعوره څيز كښې هم شعور پيدا كيدې شى ، خو ددې څخه علاوه تحقيق دا هم دې چې په غرونو او كاڼو كښې هم ددې د حيثيت او شان مطابق ژوند او شعور موجود دې . په صحابه كرامو كښې ابو موسى اشعرى ﷛ ډير خوش آوازه وو ، يوه ورځ يې د قرآن پاك تلاوت كولو ، رسول كريم ﷺ چې په دوئ تير شو نو دهغوئ ﷛ د تلاوت آوريدو دپاره اودريدل ، نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ دوئ ﷛ ته د داؤد ﷺ خوش آوازي وركړې ده. كله چې ابو موسى اشعرى ﷛ په دې خبر شو نو عرض يې اوكړو چې كه ماته دا معلومه شوې وې چې تاسو ﷺ زما تلاوت ته غوږ ايښې دې نو ما به په زيات ښكلى شان سره د تلاوت كولو كوشش كړې وو [ابن كثير] . (۱)

**فائده:** د ې څخه معلومه شوه چې قرآن پاك په ښه آواز ښه لجه كښې داسې وئيل چې زړه راكاږ په يوه درجه كښې مطلوب او محبوب دى ، خو شرط دادې چې د نن صبا د قاريانو پشان صرف آواز ښائسته كول او د خلقو خوشحالول يې مقصود نه وى كوم سرې چې د تلاوت اصل مقصد فوت كيږى ، والله اعلم.

**داؤد ﷺ ته د زغرو جوړولو فن دالله ﷻ د طرفه وركړې شو:** [وَعَلَّمْنَاهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ] لبوس په لغت كښې هر قسم وسلې ته وئيلې شى چې انسان يې اغوندى او كه په غاړه كوى يې ، دلته ترې مراد اوسپنې وغيره دى چې په جنګ كښې د خپل ځان د حفاظت دپاره اغوستې شى لكه په بل آيت مبارك كښې راځى چې : [وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ] [او مونږ ددۀ دپاره اوسپنه نرمه كړه] ددې نرمولو مطلب دادې چې لاس مبارك كښې بۀ يې اوسپنه راغله پخپله به نرمه شوه يا داسې چې په اور كښې د ويلى كول او نرمولو چل مو ورته اوښودلو څنګه چې نن صبا د اوسپنې په كارخانو كښې كولې شى .

**خلقو د فائدې رسولو كاريګرى به څيز او د پيغمبرانو ﷺ كار دې:** په دې آيت مبارك كښې داؤد ﷺ د زغرو د جوړيدو كاريګرى ښودل بيان شوى دى او ورسره دساې هم فرمائى چې [لِتُحْصِنَكُم مِّن بَأْسِكُمْ] [چې د جنګ په وخت كښې ستاسو حفاظت اوكړې شى] او دتيرې تورې د ګذار څخه پرې بچ شئ ، دا يو داسې ضرورت دې چې ديندارو او دنيادارو دواړو ته راپيښيږى ، څكه ددې كاريګرئى ښودلو ته الله ﷻ خپل يو انعام فرمائيلې دې ، د ې نه معلومه شوه چې خلقو ته د ضرورتونو پوره كولو په غرض څه كار كسب او كاريګرى ورزده كول د ثواب كار دې . خودا به په هغه صورت كښې وى چې ددې څخه مقصد يې د خلقو خدمت كول وى ، صرف ګټه كول يې مقصد نه وى . پيغمبران ﷺ نه مختلف قسمه كار كسب كول منقول دى ، دحضرت آدم ﷺ

۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۵ ص: ۳۵۸] و جامع الأصول رقم الحديث [۶۶۲۱].

د فصل کرلو ، ریبلو کسب کول منقول دی ، رسول کریم ﷺ فرمائیلي دي چې کوم کسب والا پخپل کولو کښې نیك نیت لري دهغه مثال د موسی ﷺ د مور بي بي پشان دي چې هم خپل بچي ته یې پي ورکول او د فرعون د طرفته به ورته مزدوري یا عوضانه ملاویدله . د غه شان د خلقو د خدمت په نیت سره یو کار کسب کول یو طرفته ثواب لري او بل طرفته دنیوی گټه هم ملاویږي ، دا حدیث پاك موسی ﷺ د سورة طٰهٰ په قیصه کښې تیر شوې دې .

**هوا د سلیمان ﷺ تابع کرځولې شوې وه او ددې متعلق نور مسائل** : د حسن بصري رحمه الله څخه منقول دي چې کله سلیمان ﷺ د خپلو آسونو په معائنه کښې کښې مصروف شو او ددې په وجه ترې د مازیگر مونځ قضا شو نو پخپل دغې غفلت باندې پښیمانه شو ، او هغه آسونه یې بیکاره کړل او هغه یې پریښودل دکوموپه وجه چې دا غفلت واقع شوې وو. هر کله چې دغه عمل یې دالله ﷻ د رضا دپاره کړې وو نو څکه ورته الله ﷻ د آسونو څخه زیاته تیزه هوا د سورلئ کولو دپاره په قابو کښې ورکړه ، په تفصیل سره دا واقعه او ددې سره د ترلو آیتونو تفسیر په سورة ص [صاد] کښې رأوران دې ، انشاء الله تعالی.

[وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ عَاصِفَةً] دا جمله په [سَخَّرْنَا مَعَ دَاوٗدَ] جمله باندې عطف ده ، مطلب یې دادې چې څنګه الله ﷻ داؤد ﷺ دپاره غرونه او مارغان تابع کرځولي وو چې دهغوئ ﷺ آواز سره به یې تسبیح کولو دغه شان یې سلیمان ﷺ دپاره هوا تابع کرځولې وه چې په هغې به سور شو نو د خپلې خوښې ځائې ته به ډیر زر په آسانئ سره رسیدلو ، دلته چې فکر اوکړې شي نو داؤد ﷺ لره تابع کول یې په [مَعَ] سره او سلیمان سره تابع کول یې په [لِ] سره بیانکړل ، دې کښې یوه لطیفه اوبارېکه اشاره داده چې داؤد ﷺ سره به غرونو او مارغانو پخپله بې د څه حکم نه تسبیح کول او هوا به د سیلمان ﷺ په حکم چلیده ، د تگ راتگ ، د ا ودریدو ، روانیدو ، کوزیدو او پورته کیدو حکم به یې ورکولو چې هغه شان به ئي کول [روح عن بیضاوی][1]

تفسیر ابن کثیر کښې په هوا باندې د سلیمان ﷺ تحت چلیدل ، داشان بیان شوی دي چې هغوئ ﷺ د لرگې یو لوئې تخت جوړ کړې وو ، سره د خپلو دحکومت خاصو خلقو ، لښکر او وسلو به پرې تول سوارهٔ وو ، بیا به یې هوا ته حکم اوکړو چې چرته به یې کوزیدل غوښتل هلته به یې کوز کړل ، دې تخت به د صبا څخه تر غرمې پورې د یوې میاشتې مزل کولو او د غرمې څخه تر ماښام پورې به یې د بلې میاشتې مزل کولو ، ابن ابی حاتم د سعید بن جبیر رحمه الله څخه نقل کړې دی چې په دې تخت باندې به شپږ لکهه کرسئ ایښودې شوې په هغې باندې به ورسره ایماندار انسانان سوریدل ، ورپسې به مسلمانان پیریان ورسره کښیناستل ، مارغانو ته به یې حکم اوکړو چې د پاسه پرې د چترئ پشان د سایې سیورۍ جوړ کړې چې د نمر د گرمۍ ورته تکلیف نه وی.

ځینې روایتونو کښې راغلی دی چې ددې هوائی سفر په وخت به په ټوله لار کښې سلیمان ﷺ سرښکته کړې دالله ﷻ په ذکر ، شکر کښې به مشغول وو ، یو خوا بل خوا به یې نه کتل اوداشان به ئي عملي عاجزي ښکاره کوله [ابن کثیر][2]

---

[1] ) تفسیر روح المعاني تحت هذه الآیة [ج ۱۷ ص ۷۷]
[2] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج ۵ ص ۳۵۸]

[عَاصِفَةً] ددې لفظي معنی سخته او تیزه هوا ده ، بل ځائې کښې ددغې هوا صفت رخاء بیان کړې شوې دې ، چې معنی یې نرمه هوا ده ، ددې دواړو جمع کیدل به داسې وو چې تلل به یې تیز وو خو دیکې به یې نه وهلې او ګرد غبار به یې نه الوزولو ، تر دې چې چرې ئې هم په فضا کښې څه مارغه ته ضرر نه وو ورکړې.

**پیریان او شیطانان دسلیمان ﷺ په قابو کښې** :: [وَمِنَ الشَّيٰطِيْنِ مَنْ يَّغُوْصُوْنَ لَهٗ وَيَعْمَلُوْنَ عَمَلًا دُوْنَ ذٰلِكَ ۚ وَكُنَّا لَهُمْ حٰفِظِيْنَ] [ او په شیطانانو کښې داسې هم ووا چې دهغه دپاره ئې [په دریابونو کښې] غوپې وهلې ا اوددې نه علاوه نور کارونه به ئې هم کول ا اومونږ به دهغوئ حفاظت کولو] لکه فرمائې چې [يَعْمَلُوْنَ لَهٗ مَا يَشَآءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ] [جوړول به یې سلیمان ﷺ دپاره محرابونه ، شاندار مکانونه ، کالبوتونه ، اود کانړي غټې غټې پیالې چې د تلاؤ پشان به یې کار کولو ] هغوئ څخه سلیمان ﷺ ډیر کار واخستو او د عجیبه عجیبه کاریګرئ کارونه هم او هم مونږ د هغوئ محافظ وو.

[الشَّيٰطِيْنِ] دا د اورنه جوړشوی لطیف او باریك جسمونه دی چې عقل او شعور لری او د بنیادمو پشان د حکمونو مکلف دی ، دې ذات دپاره اصل لفظ جن یا جنات استعمالیږی ، خو څوك چې په کښې ایمان قبول نه کړی او کافر پاتې شی هغوئ ته شیطان وئیلې شی ، ښکاره خبره ده چې مسلمانان پیریان خو هسې د عقیدت او پیرزونې په وجه هم سلیمان ﷺ تابع وو چې دا به یې خپل مذهبی فرض ګڼړل ځکه ددوئ د تابع کولو بیان او نه شو چې ضرورت یې هم نه وو ، مطلب دادې چې صرف دهغې جناتو او شیطانانو د تابع کولو ذکر اوکړې شو چې کوم په زور ، زبردستئ سره تابع ګرځولې شوی وو ، غالبا د آیت مبارك په آخر کښې دا جمله : هم مونږ په هغوئ نظر ساتلو ، دې دپاره راوړې شوه چې د نقصان رسولو خطره بیاهم دوئ نه کیدې شوه خو دالله ﷻ د نظر ساتلو په وجه یې څه زیان نه شو رسولې.

**لطیفه** :: یو خوالله ﷻ زیات سخت او پیر څیزونه د داؤد ﷺ تابع کړل لکه غرونه او اوسپنه وغیره بل طرفته یې سلیمان ﷺ دپاره داسې نرم او باریك څیزونه تابع کړل چې په سترګو هم نشی لیدلې لکه هوا ، پیریان ، دې سره په ډاګه کړې شو چې د الله ﷻ کامل قدرت هر قسم مخلوق باندې راچاپیره دې ، [تفسیر کبیر عن امام رازی ﷫] (۱)

| وَاَيُّوْبَ | اِذْ |
|---|---|
| او [دحکم او دعلم دا نعمت مونږ ورکړې وو] ایوب له | کله چې |
| .......... اوایوب ﷺ یاد کړه | ..........څه وخت چه |

| نَادٰى | رَبَّهٗۤ | اَنِّيْ | مَسَّنِيَ | الضُّرُّ | وَاَنْتَ |
|---|---|---|---|---|---|
| آواز اوکړو هغه | رب خپل ته | بیشکه زه چې یم | رسیدلې دې ماته | ضرر [تکلیف] | او ته |

هغه خپل رب ته زاری اوکړه | چې ماته تکلیف رارسیدلې دې | و ته دټولونه زیات

(۱) تفسیر کبیر تحت هذه الآیة [ج:۱۲ ص:۱۰۴]

| فَكَشَفْنَا | لَهٗ | فَاسْتَجَبْنَا | الرّٰحِمِيْنَ | اَرْحَمُ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| نو لرې کړو مونږه | دعا دهغه | پس قبوله کړه مونږه | دټولو مهربانانو نه | ډير مهربانه ئې |
| او هغه ته | او دهغه تکليف مو لرې کړو | دهغه دعا قبوله کړه | نومونږ | رحم کونکې ئې |

| وَمِثْلَهُمْ | اَهْلَهٗ | وَاٰتَيْنٰهُ | مِنْ ضُرٍّ | بِهٖ | مَا |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| او په مثل دهغوئ | اهل وعيال دهغه | او ورکړو مونږ هغه ته | دضرر نه | | هغه چې وو په هغه |
| | خلق هم ورته | او ددوئ په شان مور نور | واپس کړه | کورنئ | مو خپله |

| لِلْعٰبِدِيْنَ | وَذِكْرٰى | مِّنْ عِنْدِنَا | رَحْمَةً | مَّعَهُمْ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| دپاره دعبادت کونکو | او نصيحت | دطرفه زمونږ نه | خاص درحمت په طور | مو ورسره نور هم ورکړل |
| نصيحت وو | دپاره | کونکو | او دعبادت | په خپل رحمت سره ورکړل |

## آسان ترجمه قرآن

او ايوب ته اوګوره! چه کله هغه خپل رب راوبللو چه: ماته دا تکليف رارسيدلې دې او ته د ټولو رحم کونکو نه زيات رحم کونکې ئې بيا مونږ دهغوی دعا قبوله کړه، اوهغوی ته چه کوم تکليف رارسيدلې وو، هغه مو لرې کړو، او هغوی ته مو دهغوی کور والا هم ورکړل او د هغې هومره خلق نور هم، چه زمونږ دطرف نه درحمت مظاهره اوشي، او عبادت کونکو ته يو يادګار عبرت حاصل شي.

## خلاصه تفسير

﴿وَاَيُّوْبَ﴾ [ اود ايوب ] عليه السلام [دقصې ذکر وکړه کله چه دهٔ ] په سخت مرض کښې داخته کيدو نه پس [﴿اِذْ نَادٰى رَبَّهٗٓ اَنِّيْ مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ﴾ خپل رب ته آواز وکړو چه ماته دا تکليف رسيدلې دې او ته دټولو مهربانو نه زيات مهربان يې] نوپه خپله مهربانۍ سره زما دتکليف لرې کړې ﴿فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَكَشَفْنَا مَا بِهٖ مِنْ ضُرٍّ﴾ [ نو مونږ ددهٔ دعا قبوله کړه او دهٔ ته چه کوم تکليف وو هغه مولرې کړو او] بغير ددهٔ د درخواست نه ﴿وَاٰتَيْنٰهُ اَهْلَهٗ﴾ [ مونږ ددهٔ کورنی ] يعنی اولاد کوم چه ددهٔ نه غائب شوې وو [ قاله الحسن کذافی الدرالمنثور[1] ] يامړهٔ شوی وو [کما قاله الغير] [ ورکړل ] داسې چه هغوی دهٔ ته راغلل يا په دې معنی چه دومره نور پيدا شول قاله عکرمه رحمه الله کمافی فتح المنان ﴿وَمِثْلَهُمْ مَّعَهُمْ﴾ [ او ددوی سره ] په شمير کښې [ ددوی برابر نور هم ] ورکړل يعنی څومره اولاد چه يې اول وو دهغې برابر مو نور هم ورکړل خواه په خپله ددهٔ نه وشو يا د اولاد نه يې اولاد پيدا شو [کذافی فتح المنان من کتاب ايوب ] ﴿رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا وَذِكْرٰى لِلْعٰبِدِيْنَ﴾ [ دخپل خاص رحمت په سبب سره او د عبارت کوونکو دپاره ديو ياد ګار پاتې کيدو په سبب سره].

## معارف ا ومسائل

**د ايوب عليه السلام قيصه**: هسې خو د ايوب عليه السلام په قيصه کښې ډير اوږده اسرائيلي روايتونه راغلی دی خو دلته ترې صرف هغه نقل کولې شی چې محدثينو حضراتو په تاريخی درجه کښې

[1] ) الدر المنثور تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۸٤]

اعتباري گنړلی دی. قرآن پاك نه خو صرف دومره قدري ثابته ده چې ډير زيات ناروغه شو، په هغې يې صبر كولو، په آخر كښې الله ﷻ ځخه يې دعا اوكړه نو روغ شو. او د بيمارئى په دوران كښې يې ټول اولاد دوستان وغيره غائب شوى وو. خواه د مرګ په وجه يا به بل څه وجه، بيا چې الله ﷻ ورته صحت ورکړو نو د وړاندې په شان اولاد يې هم ورکړو بلكه دهغې په شان نور اولاد يې هم ورکړو، دقيصې ياتې نورې حصې يا خو په مستند احاديثو كښې موجود دی چې زيات په كښې تاريخى روايتونه دى، حافظ ابن كثير رحمه الله د دې قيصې تفصيل داسې ليكلې دی.
الله ﷻ ايوب عليه السلام ته په اول كښې ډير مال دولت، جائيداد شاندار مكانونه، سورلئ، اولاد، نوكران، وينځې، غلامان وركړې وو. بيا پرې الله ﷻ دا آزمينبت داسې اوكړو چې دغه ټول ځيزونه ترې لاړل، او په داسې بدنى بيمارئى كښې اخته شو ځنكه چې جذام بيمارى ده. سوا د ژبې او زړۀ ځخه دغه بيمارئى كښې ټول بدن مبارك راګير شو، په داسې حالت كښې يې ژبه او زړۀ مبارك د الله ﷻ په ذكر، شكر كښې مشغول ساتلو، د دغې بيمارئ په وجه ټولو خپلوانو، دوستانو، او ګاونډيانو د آبادئى ځخه بهر د ګند غورزولو په يو ځائې كښې ورواچولو. (١) هيڅوك به هم دغلته نه ورتلل، صرف خپلې بى بى به يې تپوس كولو چې د يوسف عليه السلام لور يا نمسئ وه، نوم يې نيابنت يوسف عليه السلام ياديږى [ابن كثير]. (٢)
مال جائيداد وغيره يې هر څه ختم شوى وو، د دوئ بى بى به محنت مزدورى كوله خپل ځان او د هغوئ عليه السلام خدمت به يې كولو، دايوب عليه السلام دا آزمينبت او امتحان ځخه د حيرانئ او تعجب خبره نه و، د رسول كريم ﷺ ارساد دې چې:
[اشد الناس بلآء الانبياء ثم الصالحون ثم الامثل فالامثل] (٣) [د ټولو ځخه زيات مصيبتونه او آزمينبتونه په پيغمبرانو رازى، وروسې نورو نيكانو خلقو ته، درجه په درجه راپيښيږى] او په يو روايت كښې راغلى دى چې هر انسان آزمينبت دهغه د دينى مضبوط والى په اندازه كيږى، ځومره چې ځوك په دين كښې مضبوط وى نو هغه شان پرې تكليفونه رازى او آزمينبتونه پرې كيږى، ايوب عليه السلام ته الله ﷻ په پيغمبرانو كښې د دين مضبوطوالى او صبر يو جدا مقام وركړې وو. په مصيبتونو او سختو باندې صبر كولو كښې د ايوب عليه السلام د ايوب عليه السلام مثال وركولې شى، يزيد بن ميسره فرمائيلى دى چې كله الله ﷻ د ايوب عليه السلام ځخه مال واخستو، اولاد وغيره هر څه د آزمينبت كولو دپاره واخستل نو هغوئ عليه السلام د دې اوزګارتيا ځخه فائده واخستله چې د الله ﷻ ذكر او عبادت كولو ته يې نور هم زيات زور وركړو. الله ﷻ ته يې عرض اوكړو چې ايې زما ربه ﷻ! زه ستا شكر ادا كوم چې راته دې مال، جائيداد، دنيا، دولت او اولاد راكړو چې د دې مينه زما د بدن په هره برخه كښې خوره وه، بيا په دې هم شكر كوم چې زه دې د دغې ټول ځيزونو نه اوزګار كړم او اوس زما او ستا تر مينځه هيڅ ځيز روكاوټ جوړيدونكې پاتې نشو.

(١) ترجمه:- د حضرت ايوب دبيمارئ باره كښې د دې روايت د اصل وضاحت دپاره معارف القرآن جلد نمبر ٧ صفحه نمبر ٥٧٨ د سورة ص لاندې اوګورئ، محمد تقى عثمانى ١٤٢٦/٣/١٨ هجري
(٢) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص: ٣٦٢]
(٣) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث [٢٠٠٩٦]، ومسند احمد رقم الحديث [١٤٨١]، مسند سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه.

حافظ ابن کثیر رحمه الله ددې بیان شوؤ روایتونو نقل کولو څخه وروستو لیکي چې د وهب بن منبه څخه په دې قیصه کښې ډیر اوږده روایتونه منقول دي چې عجیبه دي ځکه مو پریښودل.[۱]

**د ایوب علیه السلام دعا کول د صبر خلاف نه دي:** ایوب علیه السلام څخه چې الله ﷻ ټول هر څه واخستل، په بیمارۍ او مصیبتونو کښې یې د آزمیښت دپاره اخته کړو، خلق به یې خواته ورتلو څخه هم ویریدل، د آبادئ څخه بهر د ګند غورزلو په ځائې کښې اوه کاله او څو میاشتې په دغه شان حالت کښې پروت وو، هیڅ قسم فریاد او ګیله یې په ژبه نه وه کړې. خپلې بی بی نیا روغ عرض اوکړو چې ډیر زیات تکلیف دې درته، ددې دلرې کولو دپاره د الله ﷻ څخه دعا اوکړه، هغوئ علیه السلام اوفرمائیل چې اویا کاله مې دبیمارۍ او دالله ﷻ د بې شمیره نعمتونو په ډیر والي کښې تیر کړي دي، آیا دهغې په مقابله کښې اوه کاله په تکلیف کښې تیرول هم څه لویه خبره ده؟ د پیغمبرئ، مضبوط والي، صبر او مستقل مزاجئ داحالت یې وو چې دعا کولو ته بهٔ یې هم عاره ځکه نه ایښوده چې هسې نه د صبر خلاف کار را اڅخه اونشي. آخر داسې څه وجه راپیښه شوه چې په دعا کولو مجبوره شو، څنګه چې پورته بیان شو، دا خالص دعا وه څه بې صبري نه وه، چنانچه الله ﷻ پخپله د هغوئ علیه السلام په کامل صبر باندې پخپل کلام پاک کښې مهر داسې لګولې دې، [اِنَّا وَجَدۡنٰهُ صَابِرًا ؕ][۲]

ابن ابی حاتم د ابن عباس څخه نقل کړې دی چې کله د ایوب علیه السلام دعا قبوله شوه نو ورته حکم اوشو چې په زمکه باندې پونده اووهه، دغه ځایې کښې به دصفا اوبو یوه چینه راجاري شي، په هغې اولامبئ، اوبه یې اوڅکئ، ټوله بیماري به دې ختمه شي، هغوئ علیه السلام په دې عمل اوکړو، ټول بدن مبارک یې بیکاره شوې وو، صرف هډوکي یې پاتې وو، په دغې اوبو باندې یې غسل اوکړو، زر تر زره یې ټول بدن، څرمن او ویښته روغ جوړ شو، او په اصلي حالت کښې راغلل، الله ﷻ هغوئ دپاره دجنت یو لباس راؤلیږلو، هغه یې واغوستو، د ګند دغه ځائې څخه یو طرفته په یو ګوټ کښې کښیناستل، خپله بی بی یې چې کله راغله، ایوب علیه السلام یې د ګند په ځائې کښې اونه لیدو، نو په ژړا شوه و د هغې څخه یو طرفته ناست ایوب علیه السلام یې اونه پیژندو، هغوئ علیه السلام څخه تپوس اوکړو چې اې دالله ﷻ بنده، دلته پروت هغه بیمار چرته لاړو؟ آیا سپو یا شرمخانو اوخوړو؟ او څه وخته پورې یې ورسره په دې باب کښې خبرې کولې، د هغې ټولو خبرو په آوریدو ورته اوفرمائیل چې هم زه ایوب علیه السلام یم، خو هر کله چې ترې دغه وخت پورې هم خپلې بی بی لا نه وو پیژندلې، ځکه یې اووئیل چې اې دالله ﷻ بنده! آیا تاسو علیه السلام راسره ټوقې کوئې؟ ایوب علیه السلام ورته اوفرمائیل چې ،ښهٔ راته اوګوره، هم زه ایوب علیه السلام یم، الله ﷻ مې دعا قبوله کړه، زما بدن یې دوباره روغ جوړ کړو. ابن عباس رضی الله عنه فرمائیلي دي چې دې څخه وروستو الله ﷻ د هغوئ علیه السلام مال، دولت هم هغوئ علیه السلام ته واپس کړو او اولاد هم او دهغې رومبي اولاد په شان نور زیات اولاد یې ورکړو [ابن کثیر][۳]

---

[۱] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص:۳۵۹، ۳۶۰]

[۲] ترجمه:- بیشکه مونږ هغه صبر کوؤنکې بیامونډو.

[۳] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص:۳۶۲] و تفسیر ابن ابي حاتم رقم الحدیث [۱٤٥٦٤] [ج: ۹ ص:۳۳۶]

ابن مسعود رضي الله عنه فرمائيلي دي چې د ايوب عليه السلام رومبي اولاد اوه نارينه او اوه زنانه وو ، ددغې آزميښت په زمانه کښې دغه ټول مړه شوی وو ، کله چې الله ﷻ صحت ورکړو نو د غه اولاد يې هم ورته دوباره ژوندي کړو او دهغوئ عليه السلام بی بی څخه هغه شان نور اولاد يې هم ورکړو څنګه چې قرآن پاك کښې د [مثلهم معهم] څخه ثابتيږی . ثعلبی رحمه الله فرمائيلي دی چې دا قول د قرآن پاك د آيت مبارك ظاهر سره زيات نزدې دې ،[قرطبی]([1])

ځيني حضراتو اوفرمائيل چې خپل اولاد يې هغه شان ورکړو څومره چې مخکښې وو او دهغې په شان د نور اولاد څخه مراد داولاد ، اولاد يعني نمسی دی [والله اعلم]

| وَاِسۡمٰعِيۡلَ وَاِدۡرِيۡسَ | وَذَا الۡكِفۡلِ ؕ | كُلٌّ | مِّنَ الصّٰبِرِيۡنَ ۚ‌ۖ |
|---|---|---|---|
| او [دا نعمت مونږه] اسماعيل او ادريس له ورکړو | او ذوالکفل له هم | دا ټول وو | دصبر کونکو نه |

او اسماعيل عليه السلام او ادريس عليه السلام او ذالکفل عليه السلام يادکړه [داټول د صبرکونکو ځنی وو

| وَاَدۡخَلۡنٰهُمۡ | فِىۡ رَحۡمَتِنَا ؕ | اِنَّهُمۡ | مِّنَ الصّٰلِحِيۡنَ ۝ |
|---|---|---|---|
| او داخل کړل مونږه هغوئ | په رحمت خپل کښی | بيشکه هغوئ | وو دصالحانونه |

اودوئ مونږ په خپل رحمت کښې داخل کړل [بيشکه چې دغه ټول نيکان خلق وو

### آسان ترجمه قرآن

**او اسماعيل او ادريس او ذوالکفل ته اوګوره! دا ټول صبر کونکی وو او دوی مونږ په خپل رحمت کښ داخل کړي وو. يقيناً د دوی شمار په نيکو خلقو کښ دې.**

### خلاصه تفسير

﴿وَاِسۡمٰعِيۡلَ وَاِدۡرِيۡسَ وَذَا الۡكِفۡلِ ؕ﴾ [ او د اسماعيل] عليه السلام [او ادريس] عليه السلام [ اوذوالکفل ] دقصې [ ذکر وکړه دا ټول ] دالله تعالى په تشريعي او تکويني احکامو باند ﴿كُلٌّ مِّنَ الصّٰبِرِيۡنَ ۚ‌ۖ﴾ [ ثابت قدم پاتې کيدونکو خلق نه وو ﴿وَاَدۡخَلۡنٰهُمۡ فِىۡ رَحۡمَتِنَا ؕ﴾ اومونږ دوی ] ټولو [ لره په خپل ] خاص [ رحمت کښې داخل کړی وو ﴿اِنَّهُمۡ مِّنَ الصّٰلِحِيۡنَ ۝﴾ بيشکه دوی ] ټول [ دکاملو صالحانونه وو]

### معارف او مسائل

**دذوالکفل پيغمبر وو که ولی؟ دهغوئ يوه عجيبه شان واقعه:** په دې آيتونو کښې د دريو حضراتو بيان دې چې په کښې دوه اسماعيل او ادريس عليه السلام پيغمبران وو څنګه چې دقرآن پاك دډيرو آيتونو څخه ثابت دی ، او ځائې په ځائې قرآن پاك کښې يې بيان هم راغلي دې ، دريم بزرګ ذو الکفل دې.

ابن کثير فرمائيلي دی چې د دوؤ پيغمبرانو عليهما السلام سره د ذوالکفل يو ځائې بيانولو څخه دا معلوميږي چې دوئ هم پيغمبر وو. خو ځيني نورو روايتونو کښې راغلي دی چې د دوئ پيغمبر نه وو بلکه يو نيك د الله تعالى بنده ولی وو .([2]) د تفسير امام ابن جرير رحمه الله پخپل سند سره د مجاهد رحمه الله څخه نقل کړی دی چې هر کله يسع عليه السلام پيغمبر کمزوري او بوډا شو نو

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۱ص:۳۲٦]

[2]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:۳٦۳]

چاره د خپل قائمقام جوړولو اراده یې اوکړه چې دهغوي ﷺ په ژوند ټول هغه کارونه کوي کوم چې د پیغمبر په فرائضو کښې شامل دی.
په دې غرض یسع ﷺ خپل ټول صحابه راجمع کړل چې زه خپل خلیفه جوړول غواړم خو دې دپاره درې شرطونه دی ، چا کښې چې دا درې واړه موجود وی هم هغه به خپل خلیفه جوړوم. یو دا چې همیشه روژه ساتی ، بل دا چې ټوله شپه د الله ﷻ عبادت دپاره بیدار اوسیږی دریم دا چې چرې غصه نه کوی. په ټولوخلقو کښې داسې یو کس راپاسیدو چې مشهور نه وو او خلقو به سپك ګڼړلو ، هغه اووئیل چې دې کار دپاره زه حاضر یم ، یسع ﷺ ترې تپوس اوکړو چې آیا ته دا درې واړه شرطونهع پوره کوې ؟ هغه اووئیل چې بیشکه زه یې پوره کوم. په دغه ورځ یې واپس کړو ، بیا په یوه بله ورځ په جمع کښې هم هغه شان اوفرمائیل ، جمع ټول خاموش وه ، هم هغه سړی په کښې بیا راپورته شو نو یسع ﷺ خپل خلیفه مقرر کړو ، شیطان چې د ذی الکفل کامیابیدل اولیدل نو خپل ماتحت شیطانان یې راؤبلل او ورته یې اووئیل چې دده د ناکامه کولو کوشش کوئی چې مرته ترې واپس واخستې شی ، وړو شیطانانو اووئیل چې داسې کول زمونږ د وس کار نه دې. ځکه چې دې زمونږ په قابو کښې نه رازی. ابلیس اووئیل چې ښه دا کار زما په ذمه شو ، ذوالکفل به د خپل اقرار په جوړ د ورځې روژه نیوله او ټوله شپه به ویښ وو عبادت به یې کولو. صرف دغرمې به یې لږ شان آرام کولو. شیطان دوئ ته خاص دغرمې په وخت کښې راغلو او دروازه یې ورته اوټکوله چې رابیدار شو نو تپوس یې ترې اوکړو چې څوك یې ؟ شیطان اووئیل چې یو بوډا مظلوم یم ، هغوئ دروازه خلاصه کړه ، شیطان چې دننه ورغلو نو یوه اوږده قصه یې شروع کړه چې زما د عزیزانو ماسره جګړه ده ، راباندې یې دا دا ظلم کړې دې او په دې شان یې د هغوئ د غرمې د خوب وخت ختم کړو ، ذوالکلفل ورته اووئیل چې زه بهر ته درشم نو ستا حق به ستا رشته دارانو څخه واخلم. ذوی الکفل بهر راؤوتو او خپل عدالت کښې یې د هغه انتظار کولو ، خو هغه رانغلو ، په بله ورځ یې هم په عدالت کښې د هغه انتظار کولو خو رانغلو ، کله چې ذوالکفل د غرمې دخوب دپاره خپل کور ته لاړو نو بیا هم دغه سړی دروازه اوټکوله ، د ذی الکفل په تپوس یې جواب ورکړو چې مظلو بوډا یم ، کله چې یې ورته دروازه خلاصه کړه نو وې وئیل چې پرون مې درته وئیلی نه وو چې د عدالت په وخت کښې به راځې. ته پرون رانغلې ، او نن هم د صبا په وخت کښې رانغلې ، شیطان اووئیل چې صاحبه ، زما مخالفین ډیر خبیثان دی کله چې پوهه شوی چې د عدالت په وخت کښې زه درشم نو تاسو به ما دپاره د هغوئ څخه زما حق خامخا واخلئ ، ځکه یې ما ته دخپل حق راکولو اقرار اوکړو خو چې د عدالت څخه پورته شوئ نو د حلق راکولو څخه یې انکار اوکړو. هغوئ ورته اووئیل چې اوس ځه او دعدالت په وخت کښې راځه. په دې طریقه یې د دویمې ورځې دهغوئ آرام هم خراب کړو. کله چې صبا له عدالت ته لاړل هلته هغه بوډا رانغلو ، په دریمه ورځ چې کله بیا یې د. غرمې دآرام دپاره کور ته تشریف یوړو او د ورځې یې خوب نه وو کړی ، نن پرې خوب زور کړې وو ځکه یې کور اوفرمائیل چې خیال ساتئ څوك راته دروازه او نه ټکوی ، په دغه ورځ چې خلقو دروازې ټکولو ته بوډا پرې ننبودو نو د روشندان په لار ذی الکفل ته دننه ورغلو او د کمرې دروازه یې اوټکوله ، ذی الکفل چې رابیدار شو نو وې کتل چې هم هغه سړې کورته رادننه شوې دې ، سره ددې چې د کور دروازه

بنده ده ، ورته يې اوفرمائيل چې څنګه دننه راغلې ؟ دغه وخت ذوالکفل او پیژندو چې شيطان دې . وې فرمائیل چې د الله دښمن ابلیس یې؟ هغه او منل او وې وئیل چې زه دې ډیر ستړې کړم ، ډیر وس مې درباندې اوکړو خو ما خپل دام کښې راګیر نه کړې شوې ، اوسنې کوشش مې دا وو چې یسع ﷺ نبی سره په کړی اقرار کښې دروغژن شې چې دا مرتبه دې د ګوتو اووځی ، دې کښې هم کامیاب نه شوم .

چنانچه ددې خصوصیاتو په وجه ذی الکفل ته دا خطاب ورکړې شو ، چې ذوالکفل هغه چاته وئیلې شی چې خپل لوظ ، قول او ذمه دارئ پوره سرته رسوی . [ابن کثیر](۱)

په مسند احمد کښې یو روایت بل هم شته دې خو هغې کښې د ذی الکفل په ځائې صرف الکفل نوم راغلې دې ، څکه ابن کثیر رحمه الله ددغې روایت نقل کولو نه پس فرمائیلی دی چې دا هغه ذوالکفل نه دې کوم چې په دې آیت مبارك کښې ذکر شوې دې بلکه دا کفل نوم څوك بل څوك سړې دې ، هغه دادې چې :

عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمائیلی دی چې ما رسول کریم ﷺ څخه یو حدیث یو ځل نه ، دوه نه ، د اوؤ ځلو څخه مې زیات ځل آوریدلې دې ، وې فرمائیل چې کفل د نبی اسرائیلو یو داسې سړې وو چې د هیڅ ګناه نه به یې مخ نه اړولو ، هغه یوې ښځې ته شپیته دیناره په دې غرض ورکړل چې هغه سره دې بد کاری اوکی کله چې هغې سره بدکارئی کولو ته چې پرې راضی شوې وه کښیناستو نو ښځه اورپیده و په ژړا شوه ، ده ورته اووئیل چې ژاړې ولې دا خو راته هم تا وئیلی وو ، ما خو درباندې څه زور ظلم نه وو کړې ، هغې ورته اوئیل چې خبره دې سمه ده خو ما په ټول عمر کښې دا ګناه نه ده کړې ، دا وخت د یو ضرورت څخه مجبوره یم ، څکه دې دپاره راضی شوم ، ددې په آوریدو سره ترې کفل اوچت پاسیدو ، ورته ئې اووئیل چې شپیته دیناره هسې ستا شو خو کفل به هم دې څخه وروستو ګناه نه کوی ، اوشوه داسې چې هم په د غه شپه کفل وفات شو ، او صبا له دهغه په دروازه باندې دا غیبی لیکل شوی وو چې غفرالله للکفل [الله تعالی کفل او بخښلو](۲)

دمسند احمد رحمه الله ددې روایت د نقل کولو څخه وروستو ابن کثیر رحمه الله اوفرمائیل چې په صحاح سته کښې هیڅ یو کتاب ، دا روایت نه دې راخستې ، ددې اسناد غریب دی ، که روایت ثابت هم دې خو ذکر په دکفل دې ، د ذی الکفل نه دې ، چې څوك بل سړې معلومیږی ، والله اعلم (۳)

خلاصه د کلام دا شوه چې ذوالکفل د یسع خلیفه ، د الله ﷻ ولی او نیك سړې وو ، دهغه د خاصو خوښ کړې شوؤ عملونو په وجه کیدې شی چې په دې آیت مبارك کښې د پیغمبرانو ﷺ په ډله کښې یې بیان اوکړې شو ، او دا هم څه لرې خبره نه ده چې اول سر کښې د یسع ﷺ خلیفه وی او بیا وروستو پیغمبری ورکړې شوی وی . والله اعلم.

---

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ۵ ص: ۳٦٤] و تفسیر الطبري تحت هذه الآية [ج: ۱۸ ص: ۵۰۸ ، ۵۰۹]
(۲) مسند احمد ، مسند عبدالله بن عمر رضي الله عنهما رقم الحديث: [٤٨٥٠]
(۳) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ۵ ص: ۳٦۵]

| وَذَا النُّوْنِ | اِذْ | ذَّهَبَ | مُغَاضِبًا | فَظَنَّ |
|---|---|---|---|---|
| او دا [نعمت مونږ ورکړو] مهی والاله | کله چې | لاړو هغه | په غصه | نو گمان ئې اوکړو |
| اودمهی والا یونس ﷺ یادکړه \| څهٔ وخت چې هغه خفه ګهریدلې روان شو او داخیال ئې اوکړو چې مونږ | | | | |
| اَنْ لَّنْ نَّقْدِرَ | عَلَيْهِ | فَنَادٰى | فِي الظُّلُمٰتِ | |
| چې هر گز تنګسيا رانولو | په ده باندې | نو آواز اوکړو هغه | په تيرو کښې | |
| به په ده تنګسيا نه راولو \|........ نو په تورو تيارو کښې ئې آواز اوکړو \| چې [ائې الله ﷻ] | | | | |
| اَنْ لَّآ اِلٰهَ | اِلَّآ | اَنْتَ | سُبْحٰنَكَ | اِنِّيْ | كُنْتُ |
| چې نشته لائق دعبادت | مګر | هم ته ئې | پاك دې ذات ستا | بيشكه زهٔ | ووم |
| ستا نه بغير بل معبود نشته \| ته پاك ئې \| بيشكه چې هم زه زياتي كونكې يم | | | | | |
| مِنَ الظّٰلِمِيْنَ | فَاسْتَجَبْنَا | لَهٗ | وَنَجَّيْنٰهُ | مِنَ الْغَمِّ |
| دظالمانو نه | پس دعا قبوله كړه مونږه | دهغه | او خلاصې وركړو مونږ هغه لره | دغم نه |
| نو مونږ دهغه دعا قبوله كړه \|................او هغه مو دغم نه خلاص كړو | | | | |
| وَكَذٰلِكَ | نُنْجِي | الْمُؤْمِنِيْنَ | | |
| او دارنګې | خلاصې وركوؤ مونږ | مومنانو له | | |
| اومونږ ايماندار خلق هم داشان د غم نه خلاصوؤ \| | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اودمهی والا (پیغمبر یعنی یونس علیه السلام) ته اوګوره! چه کله هغه خفه کیدو سره روان شوې وو، اوخیال ئې دا وو چه مونږ به هغه نه رانیسو بیا هغوی په تیرو کښې دا آواز اوکړو چه: (یا الله) ستا نه سوا بل معبود نشته، ته د هر عیب نه پاک ئې، بیشکه زه قصوروار یم په دې بانديې مونږ د هغه دعا قبوله کړه، او هغوی ته مو د غم نه خلاصې ورکړو، او هم دغه شان مونږ ایمان لرونکو ته خلاصې ورکوو.

## خلاصه تفسير

﴿وَذَا النُّوْنِ﴾ [او دمهی والا] پیغمبر یعنی دحضرت یونس ﷺ دقصې [ذکر وکړه ﴿اِذْ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا﴾ کله چه هغه] دخپل قوم نه چه هغوی ایمان رانه وړو [خفه شو روان شو] او دهٔ دقوم نه چه عذاب واپس شو نو بیا هم پخپله واپس نه شو او ددې سفر دپاره ئې زمونږ دحکم انتظار ونه کړو [اودهٔ] په خپل اجتهاد سره ﴿فَظَنَّ اَنْ لَّنْ نَّقْدِرَ عَلَيْهِ﴾ [داسې وګڼړله چه مونږ به] ددهٔ په تلو بانديې [به ددهٔ څه مؤاخذه نه کوو] چونکه دا تیښته دهٔ په خپل اجتهاد سره جائز وګڼړله او په دې وجه ئې د وحی انتظار اونه کړو لیکن چونکه د وحی تر امید پورې د وحی انتظار د انبیاؤ دپاره مناسب دې او دا مناسب کار ددهٔ نه ترک شو په دې وجه دهٔ ته دا ازمائش راپیښ شو چه په لاره کښې دهٔ ته څه دریاب راغې او هلته په کشتئ کښې سور شو کشتئ تله تله چه اودریده حضرت یونس ﷺ پوهه شو چه زما دابې اجازته تیښته دالله تعالی خوښه نه شوه ددې په وجه سره دا کشتئ ودریده کشتئ والؤ ته ئې ووئیل چه ما دریاب ته وغورزوئ هغو راضی نه

شول اخر اتفاق ئې په خسنړې وشو بيا هم دده نوم راو ختلو او دې ئې دریاب [ ته وغورزولو او دخدائ په حکم سره دې يو مهی تير کړو ] اخر جه ابن ابی حاتم عن ابن عباس رضی الله عنهما كذا فى الدرمنثور(۱) ﴿فَنَادَىٰ فِي الظُّلُمَٰتِ﴾[ پس دوی په تیارو کښې اواز وکړو ] یوه تیاره دمهی دګیډې بله د دریاب د اوبو دواړه غتې تیارې چه د ډیرو تیارو قائمقامې وی یا دریمه تیاره دشپې قاله ابن مسعود رضی الله عنه كما فى الدرمنثور(۲) غرض په دې تیارو کښې ئې دعا وکړه ﴿أَن لَّآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنتَ﴾[ چه ستانه سوا بل معبود نشته ] دا توحيد دې ﴿سُبْحَٰنَكَ﴾[ ته ] دټولو نقائصونه [ پاك يئ ] دا تنزيه ده ﴿إِنِّي كُنتُ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ [ زه بیشکه چه قصور وار یم ] دا استغفار دې چه په دې سره مقصود دادې چه زما قصور معاف کړې ددې سختې نه نجات راکړې ﴿فَٱسْتَجَبْنَا لَهُۥ﴾[ پس مونږ دده دعا قبوله کړه ﴿وَنَجَّيْنَٰهُ مِنَ ٱلْغَمِّ﴾ او ده له موددې غم نه نجات ورکړو ] چه قصه ئې په سوره صافات کښې [ فنبذ نه بالعراء الخ ](۳) کښې ذکر ده ﴿وَكَذَٰلِكَ نُـۨجِى ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ [او مونږ دغه شان ] نورو [ایماندارو ته ] هم دغم او تکلیف نه [ نجات ورکوو] چه څه ډیر وخت ئې په غم کښې لرل مصلحت نه وی.

## معارف او مسائل

[وَذَا ٱلنُّونِ] قرآن پاك ديونس علیه السلام قيصه په سورة يونس، سورة انبياء، سورة صافات، او په سورهٔ نون کښې بيان کړې ده. ځينو ځايونو کښې يې په خپل نوم سره او ځينو کښې يې په ذالنون او صاحب الحوت لقبونو سره ياد کړې دې. نون او حوت دواړه دکب معنی ورکوی، په دې بنا د ذوالنون او صاحب الحوت دواړه معنی د کب صاحب شوه. ذوالنون د الله جل جلاله په تقدير سره د کب په خيټه کښې پاتې شوې وو ځکه د ذی النون او صاحب الحوت لقب ورکړې شوې دې.

**د يونس علیه السلام قيصه** :: تفسير ابن كثير كښې دی چې يونس علیه السلام د موصل علاقې د ودانئ نينوی د خلقو دهدايت دپاره ليملې شوی وو، يونس علیه السلام هغوئ ته دايمان او نيك عمل بلنه وکړه نو هغوئ د سرتيزئی او بدمعاشئ څخه کار واخستو، په دې باندې يونس علیه السلام هغوئ څخه خفه شو او ددغې ودانئ څخه بهر لاړل او خلقو ته ئې اووئيل چې درې ورځو کښې به دريباندې عذاب راځی، يونس علیه السلام چې د ودانئ څخه اووتل نو ورسره فکر شو چې اوس خو به پرې خامخا عذاب راځی. ليکن هغوئ دشرك او كفر څخه توبه وکړه، ټول خلق سره د ټولو ځاروؤ، د خپلو او د ځاروؤ بچو او زنانوؤ، د ودانئ څخه بهر اووتل، ځاروؤ بچی يې د خپلو ميانډو څخه جدا کړل او ټولو زاری منت او ژړا شروع کړه، په ډيرې عاجزئی سره يې د الله جل جلاله پناه اوغوښتله، د ځاروؤ هغه جدا کړې شوؤ بچو هم ځان له شور و غوغا شروع کړه، الله جل جلاله دهغوئ رېښتونې توبه او زاری قبوله کړه، او عذاب يې ترې واپس کړو. بل طرفته د يونس علیه السلام دا يقين وو چې په د غه خلقو به عذاب راغلی وی او دغه خلق به هلاك شوی وی. ليکن د عذاب راتلو اودقوم صحيح سالم پاتې کيدو معلومات ورته اوشو خو بيا هم دوئ علیه السلام سره

---

۱) تفسير الدرالمنثور تحت تفسير سورة الصفت :۱۳۹ [ج: ۸ص:۳۵۹]

۲) الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج: ۷ص:۹٤]

۳) ترجمه:- پس مونږ هغوئ په يو ميدان کښې پريښودل.

نکر ووچې خلق به راته دروغژن وائي. اوځينې روايتونو کښې راغلي دي چې پدغه قوم کښې دا رسم وو چې څوك به دروغژن ثابت شو نو هغه ته به يې د وژلو سزا ورکوله . [مظهري][1]
په دې وجه يونس ﷺ سره د خپل ځان خطره پيدا شوه ، يونس ﷺ خپل قوم ته د واپس تللو په ځائې بل چرته د هجرت کولو په قصد سفر اختيار کړو، په لاره کښې يو درياب راغلو هغې نه د پورې وتلو دپاره په يو کشتۍ کښې سوارۀ شو ، کشتۍ چې د اوبو په چورلك کښې ګيره شوه چې د غرقيدو خطره يې وه ، مانړګيانو فيصله اوکړه چې يو کس درياب کښې ورګذار کړې شي نو کشتۍ به د غرقيدو څخه بچ شي ، دې دپاره چې خسنړې واچولې شو نو هغه د يونس ﷺ په نوم رااوختلو ، ددوئ ﷺ په نوم راختلی خسنړی باندې يې عمل اونکړو او دويم خسنړې يې واچولو ، هغه هم د دوئ ﷺ په نوم رااوختلو ، بيا يې هم ددوئ په ګذارولو باندې صلاح رانغله ، دريم ځل بيا خسنړې د هغوئ ﷺ په نوم رااوختلو، ددې خسنړې اچولو بيان په قرآن پاك کښې داسې راغلې دې چې : [فَسَاهَمَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِينَ] [په خسنړې به هم دددوئ ﷺ نوم راختو] دغه وخت يونس ﷺ پورته شو ، خپلې بې ضرورته جامې يې اوويستلې اوپخپله يې درياب ته اودانګل ، بل طرفته الله ﷻ د بحر خضر يو کب ته حکم اوکړو چې په ډيرې تيزئې اوجلدئې سره هلته ځان اورسوه [ابن مسعود ﷺ] او يونس ﷺ هغې کب خپل ځان سره په خيټه کښې واخستو ، الله ﷻ دغې کب ته هدايت اوکړو چې ددوئ ﷺ د بدن مبارك غوښې ، هيڅ اندام او هډوکی ته دې څه نقصان او نه رسی ولې چې دا ستاسو خوراك نه دې بلکه ستاسو خيټۀ ددوئ ﷺ دپاره څو ورځې قيد خانه ده ، دقرآن پاك د اشارو او ځينو ښکاره الفاظو څخه معلوميږی چې کله يونس ﷺ د الله ﷻ د ښکاره حکم ملاويدو څخه بغير د خپل قوم د ودانۍ څخه بهر لاړو نو دغه حرکت يې دالله ﷻ خوښ نه شو په هغې زورنه ورکړې شوه او په درياب کښې بيا د کب په خيټه کښې پاتې کيدو ته خبره رااورسيده .
ددې څخه اګاهو چې يونس ﷺ خپل قوم د الله ﷻ دعذاب څخه ويرولې وو ، ښکاره ده چې دا د هغوئ خپله رائې نه وه بلکه دالله ﷻ په وحی يې کړې وو ، دغه وخت خپل قوم پريښودل هم دالله ﷻ په حکم معلوميږی څنګه چې نورو پيغمبرانو عليهم السلام طريقه پاتې شوې ده ، خو کله چې الله ﷻ ددغې قوم زاری او منت قبول کړل او عذاب يې ترې واپس اوګرځولو نو د هغې څخه وروستو د يونس ﷺ خپل قوم ته واپس نه راتلل د اجتهاد په وجه داسې وو چې که سفر اختيار نه کړم نو قوم به راته دروغژن وائي او زما د پيغمبرئی بلنه به اثرناکه پاتې نشی ، بلکه د خپل ځان خطره يې هم وه ، په دې بنا يې دغه ځائې پريښودل عذر اوګڼل او رايې يې دا قائمه کړه چې الله ﷻ به مې په دې باندې نه نيسی ، حقيقت هم دا دې چې اجتهادی غلطی ګناه او د ګرفت کولو جوګه نه وی ، خو کله چې د پيغمبرانو ﷺ شان ډير لوړ وی ، الله ﷻ ته زيات نزدې بندګان وی چې مزاج شناسی ددۀ دپاره ضرروی وی ، څکه د هغوئ معمولی لغزش هم د ګرفت او ملامتيا کولو جوګه وی څنګه چې يونس ﷺ سره هم اوشو.
تفسير قرطبی کښې د قشيری نه دا هم نقل شوی دی چې د يونس ﷺ د غضب د اصورت هغه راپيښ شو چې قوم نه يې عذاب واپس کړې شو او ددوئ ﷺ دا خوښه نه وه ، دغه شان د کب

[1]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٢٣٢]

په خيته کښې څو ورځو دپاره لرل يې عذابول نه بلکه ادب ورکول وو څنګه چې خپلو ماشومانو سره داسې داسې څه کول هغوئ ته ادب ورکول وى چې بيا دپاره احتياط کوى ، [قرطبى] [1] په واقعه باندې دپوهيدو څخه وروستو د آيتونو په تفسير باندې ځان پوهه کړئى :

[ذَّهَبَ مُغَاضِبًا] په غصه کښې روان شو ، دې څخه مراد قوم ته غصه کول دى ، او چا چې ددې مفعول رب ګرځولې دې نود هغې مطلب هم دا [ذَّهَبَ مُغَاضِبًا لربه] [دخپل رب په خاطر په غصه روان شو] او په کافرانو باندې د الله ﷻ په خاطر غصه کيدل خالص دايمان نخښه ده.

[قرطبى ، بحر المحيط] [2]

[فَظَنَّ أَن لَّن نَّقْدِرَ عَلَيْهِ] دلته د نقدر فعل که مصدر څخه واخستې شى نو مطلب به ئې دا شى چې الله ﷻ به راباندې قدرت او قابو او نه کړې شى، داسې مطلب اخستل غلط څه چې ښکاره کفر دې ، ولې چې دا خيال لرل د يو عام مسلمان کار نشى کيدې ، پيغمبر به داسې څنګه اوکړى ؟ اوکه نقدر فعل د قدر مصدر څخه واخستې شى نو مطلب به يې دا شى چې الله ﷻ به راباندې تنګى نه راولى ، سختى به راباندې نه کوى ، څنګه چې بل ځائې کښې قرآن پاک د قدر معنى تنګى کړې شوې ده ، لکه فرمائى چې [اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ] [يعنى الله ﷻ د بعضې بندګانو په روزئ کښې فراخى راولى او د بعضو په روزئ کښې تنګى راولى چې يې اوغواړى]

چنانچه دتفسير په امامانو کښې عطاء رحمه الله ، سعيد بن جبير رحمه الله ، حسن بصرى رحمه الله او نورو ډيرو علماء کرامو ددې آيت مبارک هم دا معنى اخستې ده ، مطلب يې دا شو چې يونس عليه السلام د خپل قياس او اجتهاد په وجه دا ګمان کړې وو چې د قوم پريښودو او بل چرته د تللو په وجه به مې الله ﷻ نه ملامته کوى ، دريم احتمال دا هم کيدې شى چې هغه قدر څخه مشتق واخستې شى د کوم معنى چې تقدير ، حکم او فيصله کول دى ، په دې وجه د دغې آيت مبارک معنى به داسې شى چې د يونس عليه السلام ګمان دا وو چې په دې باندې به مې الله ﷻ نه نيسى ، چنانچه د تفسير امامانو کښې قتاده رحمه الله ، مجاهد رحمه الله او فراء رحمه الله دا معنى اختيار کړې ده ، بهرحال دلته د رومبئ معنى هيڅ احتمال نشى کيدې، دويمه يا دريمه معنى صحيح کيدې شى

**د يونس عليه السلام دعا په هره زمانه کښې هر چا دپاره د هر مقصد دپاره قبوله ده:** [وَكَذٰلِكَ نُـْۨجِي الْمُؤْمِنِيْنَ] څنګه چې يونس عليه السلام د غم او مصيبت څخه خلاص کړو دغه شان تول مؤمنان هم خلاصوؤ ، کله چې په صدق او اخلاص سره مونږ ته مخه کړى او پناه راڅخه اوغواړى .

نبى کريم ﷺ اوفرمائيل چې ذولنون عليه السلام کومه دعا د کب په خيته کښې کړې وه ، دغه شان چې هر څوک مسلمان د خپل مقصد دپاره کوى ، الله ﷻ به ئې قبلوى و هغه دعا داده : [لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ] [احمد ، ترمذى ، حاکم ، او صحيح ئې ورته وئيلى دى ، عن حديث سعد بن ابى وقاص رضى الله عنه ] [ازمظهرى] [3]

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١١ص: ٣٣٠ ، ٣٣١]

[2] ) تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية [ج: ٨ص:١٨٤] و تفسير القرطبي [ ج:١١ص:٣٢٩]

[3] ) تفسير المظهري [ج:٦ص:٢٣٣ ، ٢٣٤] والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[١٨٦٢] كتاب الدعاء إلخ ، و مسند احمد رقم الحديث:[١٤٧٩] ،مسند سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه و جامع الترمذي ، ابواب الدعوات باب(دعوة ذي النون في بطن الحوت) [ج: ٢ ص:١٨٨].

وَزَكَرِيَّآ إِذْ

او [دا نعمت ورکړو مونږ] زکریا له | کله چي |

او زکریا ﷺ یاد کړه څه وخت چي |

نَادٰى رَبَّهٗ رَبِّ لَا تَذَرْنِيْ فَرْدًا وَّاَنْتَ

آواز اوکړو هغه | رب خپل ته | اے ربه زما | مه پریږده ما | یوازې | او هم ته ئې

هغه دخپل رب نه دعا اوکړه | چې ائې زما ربه ! ما یوازې لاوارثه مه پریږده | اوهم ته

خَيْرُ الْوٰرِثِيْنَ ﴿۸۹﴾ فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ وَوَهَبْنَا لَهٗ يَحْيٰى

بهتره دوارثانو نه | نو دعا قبوله کړه مونږه | دهغه | او ورکړو مونږ | هغه ته | یحیی

دټولو نه بهتر وارث ئې | نومونږ دهغه دعا قبوله کړه | او ورته مو یحیی ﷺ ورکړو

وَاَصْلَحْنَا لَهٗ زَوْجَهٗ اِنَّهُمْ كَانُوْا يُسٰرِعُوْنَ

اواصلاح اوکړه مونږ | دده دپاره | ددهٔ دښځې | بیشکه هغوئ | وو | چې تلوار به ئې کوله |

اوده بی بی مو ددهٔ دپاره داولاد قابله کړه | بیشکه هغوی به دنیکئ په کارونو کښې

فِي الْخَيْرٰتِ وَيَدْعُوْنَنَا رَغَبًا وَّرَهَبًا وَكَانُوْا لَنَا

په نیکو کارونو کښې | او آواز به ئې کوو مونږ ته | په مینه | او په یره سره | او وو هغوئ | مونږ ته

تلوار کولو | ......اومونږ به ئې په امید اوویره سره یادولو | او مونږ ته به ئې عاجزی

خٰشِعِيْنَ ﴿۹۰﴾

تیتیدونکی |

کوله |

## آسان ترجمه قرآن

او زکریا ته اوګوره! چه کله هغه خپل رب رابللې وو چه : یا ربه! ما یواځې مه پرېږده او ته د ټولو نه بهترین وارث ئې پس مونږ د هغوی دعا قبوله کړه، او هغوی ته مو یحيٰ (غوندې) ځوئې ورکړو، او د هغوی د پاره مو د هغوی ښځه ښه کړه . یقیناً دې خلقو به د نیکئ په کارونو کښې تیزی کوله، او مونږ به ئې د رغبت او ویرې په حالت کښې رابللو، او د هغوی زړونه مونږ ته ښکته کیدونکی وو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَزَكَرِيَّآ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ﴾ [ او دزکریا ] ﷺ دقصې [ ذکر وکړه کله چه دوی خپل رب لره وبللو ﴿رَبِّ لَا تَذَرْنِيْ فَرْدًا وَّاَنْتَ﴾ چه اے زما ربه مالره لاوارثه مه پرېږ دې ] یعنی ماله خوئ راکړې چه زما وارث شی [ او] هسې خوته ﴿خَيْرُ الْوٰرِثِيْنَ﴾ [ دټولو وارثانونه غوره ] یعنی حقیقی وارث [ خاص ته ئې ] په دې وجه خوئ هم حقیقی وارث نه وی بلکه یو وخت به هغه هم فنا کیږی لیکن په دې ظاهری وارث سره به ختې دینی فائدې او نفعې حاصلې شی په دې وجه ئې غوارم ﴿فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ وَوَهَبْنَا لَهٗ يَحْيٰى﴾ [ پس مونږ ددهٔ دعا قبوله کړه او مونږ دهٔ ته یحیی ] خوئ [ ورکړو ﴿وَاَصْلَحْنَا لَهٗ

﴿زَوْجَهٗ﴾ او دهٔ په خاطر سره مونږ دهٔ بی بی هم ] کومه چه شنډه وه [د اولاد قابله کړه ﴿اِنَّهُمْ كَانُوْا يُسٰرِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ﴾ دا ټول ] انبياء دکومو چه په دې سوره کښې ذکر شوې دې [ نيکوکارونو ته به ئې منډې وهلې ﴿وَيَدْعُوْنَنَا رَغَبًا وَّرَهَبًا﴾ او په اميد او ويره سره به ئې زمونږ عبادت کولو ﴿وَكَانُوْا لَنَا خٰشِعِيْنَ﴾ او زمونږ په وړاندې عاجزي کوونکي وو].

## معارف او مسائل

زکريا ﷺ دا خواهش کولو چې يو زما يو ځوېې وارث جوړ شي خو د ځوېې د وارث کېدو دپاره کولو سره سره يې دا عرض هم کول چې [اَنْتَ خَيْرُ الْوٰرِثِيْنَ] يعنی که ځوې راکړې نو اوکه رانکې خو په هر حال ته زيات غوره وارث يې ، دا دپيغمبرئی ادب او طريقه ده چې د پيغمبرانو ﷺ اصلی مخه دې هر وخت الله ﷻ ته وی په هغه صورت کښې هم چې څه وخت په عارضی طور سره يې مخه الله ﷻ ته را اوګرځی .

[وَيَدْعُوْنَنَا رَغَبًا وَّرَهَبًا] هغوئ ﷺ د شوق او ويرې يعنی د آرام او تکليف په هر حالت کښې الله ﷻ لره بلی او ددې معنی دا هم کېدې شي چې هغوئ د خپل عبادت او دعا په وخت د اميد او ويرې دواړو تر مينځه پاتې کېږی ، الله ﷻ څخه د دعا قبليدو او ثواب اميد لری او د خپلو ګناهونو او کوتاهيانو په وجه ويره ترې هم کوی [قرطبی] (۱)

| فَنَفَخْنَا | فَرْجَهَا | اَحْصَنَتْ | وَالَّتِيْ |
|---|---|---|---|
| نو مونږ په | دشرم دځائې خپل | چې حفاظت ئې کړې وو | او ياده کړه قيصه دهغه جينی |
| | چا چې خپل عزت بچ کړې وو | | ....او د هغې زنانه [مريم] ذکر اوکړه |

| لِّلْعٰلَمِيْنَ | اٰيَةً | وَابْنَهَآ | وَجَعَلْنٰهَا | مِنْ رُّوْحِنَا | فِيْهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دخلقو | نښه | او ځوئې دهغې | او اوګرزوله مونږه هغه | دروح خپل نه | په هغې کښی |
| | | | اوهغه ښځه اودهغې ځوئې مو دټولې دنيا دپاره يو نښه اوګرځوله | | هغې کښې خپل روح پوک وهل |

## آسان ترجمه قرآن

اوهغه زنانه ته اوګوره چا چه د خپلې شرمګاه حفاظت اوکړو، بيا مونږ په هغې کښ خپل روح اوپوکلو، او هغه او دهغې ځوئې مو د ټولو جهان د خلقو دپاره يو نخښه جوړه کړه.

## خلاصه تفسير

﴿وَالَّتِيْٓ اَحْصَنَتْ فَرْجَهَا﴾ [ او دهغې بی بی] مريم دقصې [ ذکر وکړه کومې چه خپل ناموس لره ] دسړونه [ وساتلو ] دنکاح نه هم او ناجائزو نه هم ﴿فَنَفَخْنَا فِيْهَا مِنْ رُّوْحِنَا﴾ [ بيا مونږ په دې کښې ] په واسطه دحضرت جبرائيل ﷺ [ خپل روح پوك وهلو ] چه په دې سره ددې بې دخاوند نه حمل شو ﴿وَجَعَلْنٰهَا وَابْنَهَآ﴾ [اومونږ دې لره او ددې ځوئ ] عيسی ﷺ ﴿اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ﴾ [ لره ددنيا دخلقو دپاره ] د خپل کامل قدرت [ نشانی جوړه کړله ] چه دا واوری ووينی پوهه شی چه الله تعالی په هر څه باند قادر دې هغه بغير دپلار نه هم اولاد پيدا کولې شی او بغير دمور او پلار نه هم لکه حضرت ادم ﷺ .

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۳۳۶]

إِنَّ هٰذِهٖٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَّاحِدَةً ۖ وَّأَنَا رَبُّكُمْ فَاعْبُدُونِ ﴿۹۲﴾

بیشکه | دا امت ستاسو | امت یو دې | او زه | رب ستاسو یم | نو پس عبادت کوئ زما

بیشکه ستاسو دا امت هم یو امت دې | او زه ستاسو رب یم | نو تاسو هم زما عبادت کوئی

وَتَقَطَّعُوٓا أَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ ۖ كُلٌّ إِلَيْنَا رٰجِعُونَ ﴿۹۳﴾

او ټوټې ټوټې کړو دې خلقو | کار د دین خپل | په منځ خپل کښې | ټول | مونږ ته | واپس راتلونکي دي

اودې خلقو په خپل دین کښې اختلافات اوکړو | ............ هر یو به مونږ ته پیش کیږی

فَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا كُفْرَانَ

نو څوک چې عمل کوی | دنیکو کارونو نه | او هغه وی | مومن | پس نۀ به کیږی ناقدری

نو څوک چې دنیکئ کارونه کوی | او هغه مومن هم وی | نو دهغه د کوشش به هیڅکله ناقدری اونشی

لِسَعْيِهٖ ۚ وَإِنَّا لَهٗ كٰتِبُونَ ﴿۹۴﴾ وَحَرٰمٌ عَلٰى قَرْيَةٍ

دکوشش دهغه | او بیشکه مونږه | دغه کار لره | لیکونکی یو | او حرام دی | په هغه کلی باند

او مونږ دهغه عملونه لیکو | ............ او کومه ښاریه چې مونږ تباه کړې ده

أَهْلَكْنٰهَآ أَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴿۹۵﴾ حَتّٰٓى إِذَا

چې هلاك کړې وی مونږ هغه | چې بیشکه هغوئ | به واپس نۀ راځی | تر هغې پورې | کله چې

دهغې داوسیدونکو دپاره ممکن نه ده | چې هغوئ به بیا دنیا ته واپس راشی | تر دې چې

فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُمْ مِّنْ كُلِّ حَدَبٍ

پرانستې شی | یاجوج او ماجوج | او هغوئ | دهرې لورې نه | په جلتی راکوزیږی |

یاجوج او ماجوج راخواره شی | او هغوئ به د هرې لورې نه په منډه کوزیږی

يَّنْسِلُونَ ﴿۹۶﴾ وَاقْتَرَبَ الْوَعْدُ الْحَقُّ فَإِذَا هِيَ شَاخِصَةٌ

او رانزدې شی | وعده حقه [قیامت] | نو یو دم به | حالت داسې وی | چې ټیغی به راوتلی وی

او رښتینې وعده رانزدې شوه | نو د دغې کافرانو خلقو سترګې بۀ وازې پاتې شی

أَبْصَارُ الَّذِينَ كَفَرُوا ۖ يٰوَيْلَنَا قَدْ كُنَّا

سترګې | دهغه کسانو | چې کفر ئې کړې وی | [او وائی به ] اے هلاکته زمونږه | وو مونږه

............ [بیا به هغوئ وائی چې] افسوس مونږ د دې حقیقت نه په غفلت کښې پاتې شوې وو

فِي غَفْلَةٍ مِّنْ هٰذَا بَلْ كُنَّا ظٰلِمِينَ ﴿۹۷﴾ إِنَّكُمْ وَمَا

په غفلت کښې | د دې [بدانجام ] نه | بلکه وو مونږه | ظالمان | بیشکه تاسو | او هغه خدایان

............ نه ؛ بلکه په خان مونږ ظلم کړې وو | بیشکه چې تاسو او د الله ﷻ

تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ۖ أَنْتُمْ لَهَا

چې تاسو ئې عبادت کوئ | ماسوا د الله نه | خشاك دي | دوزخ | تاسو | دغه دوزخ ته

نه بغیر چې تاسو د چا عبادت کوئی | هغه ټول هم د دوزخ خشاک دی | تاسو ټول

وٰرِدُوْنَ ﴿۹۸﴾ لَوْ كَانَ هٰٓؤُلَآءِ اٰلِهَةً مَّا وَرَدُوْهَا ؕ وَكُلٌّ

ورتلونكي يئ | كه چرې وې | دوئ | معبودان | نه به وو ننوتي هغې ته | او ټول به |

به هغې ته ننوځئ | ......... كه دوئ په [رښتيا] خدايان وې نو [دوزخ] ته به ولې ورننوتل | خو ټول

فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۹۹﴾ لَهُمْ فِيْهَا زَفِيْرٌ

په دې دوزخ كښې | هميشه [پراته وي] | وي به دپاره دهغوئ | په دغه دوزخ كښې | زبيرګي [فرياد]

به په كښې هميشه هميشه اوسيږي | په هغې كښې دننه به چغې سورې وهي

وَّهُمْ فِيْهَا لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿۱۰۰﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ سَبَقَتْ

او هغوئ به | په هغې كښې | هيڅ نه اورې [دشور دلاسه] | بيشكه هغه كسان | چې داول نه به شوې وې

او بل هيڅ خبره به نه اورې | هغه خلق د كومو دپاره چې زمونږ

لَهُمْ مِّنَّا الْحُسْنٰٓى ۙ اُولٰٓئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُوْنَ ﴿۱۰۱﴾ ۙ

په حق دهغوئ كښې | دطرفه زمونږ نه | فيصله دخير | هغوئ به | دهغې عذاب نه لرې ساتلي كيږي

د طرف د وړاندې نه دنيكئ فيصله شوې ده | هغوئ بهٔ ددې عذاب نه لرې ساتلي شي

لَا يَسْمَعُوْنَ حَسِيْسَهَا ۚ وَهُمْ فِيْ مَا اشْتَهَتْ

نهٔ به اورې هغوئ | كشار دهغې | او هغوئ به | په هغه څيزونو كښې | چې غواړي ئې

دهغې كشار قدرې به هم نه آورې | او دخپلې خوښې په ژوند كښې به هميشه دپاره

اَنْفُسُهُمْ خٰلِدُوْنَ ﴿۱۰۲﴾ ۚ لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْاَكْبَرُ

زړونه دهغوئ | هميشه اوسيږي | نهٔ به غمژن كوي هغوئ لره | دغه وخت لويه ويره

اوسيږي | دقيامت لويه ويره به ئې [دذرې هومره] په غم كښې نه غورزوي

وَتَتَلَقّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ؕ هٰذَا يَوْمُكُمُ الَّذِيْ كُنْتُمْ

او ملاقات به كوي دهغوئ سره | فرښتې | [او ورته وائي به] دا ستاسو ورځ ده | هغه | چې وئ تاسو

او فرښتې بهٔ ورله مخې ته راځي | چې دائ ستاسو هغه ورځ ده چې وعده بهٔ

تُوْعَدُوْنَ ﴿۱۰۳﴾ يَوْمَ نَطْوِي السَّمَآءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ

چې ستاسو سره به وعده كيدې شوه دهغې | هغه ورځ | چې راونغاړو مونږ | آسمان | پشان د رانغښتلو

د رسره كولې شوه | هغه ورځ ياده كړه | چې مونږ بهٔ آسمان راونغاړو | لكه چې ليكلې شوې كاغذ

لِلْكُتُبِ ؕ كَمَا بَدَاْنَآ اَوَّلَ خَلْقٍ

د كاغذ دپاره دليكلو | لكه څنګه چې شروع كړې ده مونږه | داول | پيداوښت

رانغښتلې شي | ......... څنګه چې مو اول خل پيدا كړې وو

نُّعِيْدُهٗ ؕ وَعْدًا عَلَيْنَا ؕ اِنَّا كُنَّا فٰعِلِيْنَ ﴿۱۰۴﴾

دغه شان به ئې دوباره پيدا كوؤ مونږ | داوعده ده | په ذمه زمونږ | بيشكه يو مونږه | كوونكي ددې كار

دغسې به ئې دوباره پيدا كړو | دا زمونږ په ذمه پرته وعده دهٔ | چې مونږ به ئې خامخا پوره كوو

| وَلَقَدْ كَتَبْنَا | فِي الزَّبُورِ | مِنْ بَعْدِ الذِّكْرِ | أَنَّ الْأَرْضَ |
|---|---|---|---|
| او لیکلي دي مونږه | په زبور کښې | روستو دنصیحت نه | چې بیشکه دا زمکه چې ده |
| او مونږ د لوح محفوظ د لیک نه پس په آسماني کتابونو کښې لیکلي دي چې [دجنت] دزمکې وارثان | | | |
| يَرِثُهَا | عِبَادِيَ | الصَّالِحُونَ | |
| وارثان کیږي به ددې | بندګان زما | نیکان | |
| به [صرف] زما نیکان بندګان وي | | | |

## آسان ترجمه قرآن

(خلقو!) یقین ساتئ چه دا (دین د کومو چه ټولو انبیاء کرامو علیه السلام دعوت ورکولو) ستاسو دین دې چه یو دین دې، او زه ستاسو رب یم، لهٰذا تاسو زما عبادت کوئ اوخلقو خپل دین خپل مینځ کښې ټکړې ټکړې کولوسره تقسیم کړو، (مګر) ټول مونږ ته واپس کیدونکی دی. بیا چه څوک مومن کیدو سره نیک عمل کوی نو د هغه د کوشش به ناقدری نه شی کولې، او مونږ د هغوی کوشش لیکو اوکومې علاقې چه (دهغې خلق) مونږ هلاک کړل، دهغوی دپاره ناممکن دی چه هغوی واپس (دنیا ته) راشي تر دې چه کله یاجوج ماجوج پرانستلې شی، او د اوچتو ځایونو نه راخوئیدونکی به راروان وی ،او د رشتینې وعدې د پوره کیدو وخت به نزدې راشی نو ناڅاپه حالت به دا شی چه کومو خلقو کفرخپل کړې وو دهغوی سترګې به پرانستلې پاتې شی (او هغوی به وائی چه:) افسوس دې په مونږه بانديې! مونږ د دې نه بالکل په غفلت کښې وو، بلکه مونږ ډیر ظلم کړې وو (اې شرک کونکو!) یقین ساتئ چه تاسو او د کومو څیزونوچه تاسو د الله پاک نه سوا عبادت کوئ هغه به ټول د جهنم خشاک وی تاسو به هم دې جهنم ته کوزیږئ. که دا واقعی خدایان وې نو دې (جهنم) ته به نه تلې. او ټول په ټول به همیشه هغې کښې اوسیږی. هلته به د هغوی چغې راوځی، او هلته به هغوی هیڅ نه شی اوریدې. (بیشکه) د کومو خلقو دپاره چه زمونږ د طرف نه د مخکښې نه ښه بدله لیکلې شوې ده (یعنی نیک مومنان) هغوئ به د هغه جهنم نه لرې ساتلې شی. او د هغې آواز به هم نه اوری، او هغوی به همیشه د خپلې خوښې د څیزونو ترمینځه اوسیږی. هغوی به هغه (د قیامت) د ټولو نه لویه پریشانی نه غمژن کوی، او ملائک به د هغوی (په دې وئیلو سره) استقبال کوی (چه:) دا ستاسو هغه ورځ ده چه د هغې به تاسو سره وعده کولې شوه. هغه ورځ (یاد ساته) چه کله به مونږ آسمان داسې راغونډ کړو لکه راټولول د مُنشی لیکلو شوؤ کاغزونو لره، څنګه چه مونږ په اول کرت د تخلیق ابتداء کړې وه، دغه شان به ئې مونږ دوباره هم پیدا کړو دا یو وعده ده چه د هغې د پوره کولو مونږ ذمه اخستلې ده. مونږ به یقینًا دا کار کوو. او مونږ په زبور کښې د نصیحت نه پس لیکلې وو چه د زمکې وارثان به زمونږ نیکان بندګان وی.

**د آیتونو ربط:** تردې پورې دانبیاء علیهم السلام قصې او واقعات او ددې په ضمن کښې ډیرو اصولی او فروعی مسئلو بیان وو اصول مثلا توحید ،رسالت ،عقیده ،داخرت ، په ټولو انبیاء علیهم السلام کښې اصول مشترك دی کوم چه ددوی د دعوت بنیاد دې لکه چه په ذکر شوو واقعاتو کښې ددې حضراتو د ټولو کوششونو محور دحق سبحانه تعالی د توحید مضمون وو په راتلو نکو ایتونو کښې په طور دنتیجې د قصو ، دتوحید اثبات او د شرك دبد والی بیان دې

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً﴾ [ اے خلقو] بره چه کومه د انبياء ﷺ طريقه او عقيده دتوحيد معلومه شوې ده [ داستاسو طريقه ده ] په کومه چه تاسو له پاتې کيدل واجب دي [ چه دغه يوه طريقه ده] چه په دې کښې يو نبي او يو شريعت اختلاف نه دې کړې [او] نچوړ ددې طريقې دادې چه ﴿وَأَنَا۠ رَبُّكُمْ فَٱعْبُدُونِ﴾ [ زۀ ستاسو رب يم نو تاسو زما عبادت کوئ او] خلقو لره پکار وو چه کله دا ثابته شوه چه ټول انبياء او ټول اسماني کتابونه اوشريعتونه ددې طريقې دعوت ورکونکي دي نو چه دوی هم په دې طريقه وې مګر داسې ئې ونه کړل بلکه ﴿وَتَقَطَّعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ﴾ [ دې خلقو په خپل دين کښې اختلاف پيداکړو ] مګر ددې سزا به ووينی ځکه چه ﴿كُلٌّ إِلَيْنَا رَٰجِعُونَ﴾ [ټول مونږته راتلونکي دي] او دراتلونه پس به هر يو ته ددوی دعمل بدله ملاويږي ﴿فَمَن يَعْمَلْ مِنَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ﴾ [ نوکوم سړي چه نيک کار کړې وي او دۀ ايمان هم راوړې وي ﴿فَلَا كُفْرَانَ لِسَعْيِهِۦ وَإِنَّا لَهُۥ كَٰتِبُونَ﴾ نو ددۀ محنت عبث کيدونکې نه دې او مونږ دغې لره ليکو] چه په دې کښې دهيرې او خطا امکان نشته ددغو ليکلومطابق به دۀ ته ثواب ملاويږي [ او] مونږ چه کوم دا وئيلی دی چه ټول مونږ ته راتلونکي دی په دې کښې منکران دا شبهه کوی چه د دنيا دومره عمر تيرشوې دې تر اوسه پورې خو داسې ونه شوه چه مړی ژوندی شوی وی او ددوی حساب شوې وی ددوی دا شبهه ځکه غلطه ده چه دالله تعالی طرف ته د واپسئ دپاره يوه ورځ دقيامت مقرره ده دهغې نه وړاندې هيڅوک نه شی واپس کيدې دا وجه ده چه ﴿وَحَرَٰمٌ عَلَىٰ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَٰهَآ﴾ [ مونږ کومو کلو لره ] په عذاب يا مرګ سره [ فنا کړی دی ددوی دپاره دا خبره ] په شرعی ممانعت سره [ناممکنه ده چه وی] په دنيا کښې دحساب کتاب دپاره ﴿أَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُونَ﴾ [ بيا واپس راشی ] مګر دانه واپس کيدل هميشه نه دی بلکه د وعده شوی وخت يعنی قيامته پورې دی ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ﴾ [ تردې چه کله ] دغه وعده شوې وخت راشی چه دهغې ابتدائی سامان به داسې وی چه [ يا جوج ماجوج ] دکومو چه اوس دسد ذوالقرنين په ذريعه لاره بنده شوې ده هغه [راپرانيستې شی ﴿وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ﴾ او هغوی]دانتهائی زيات والی په سبب [دهرې اوچتې ] ډير کړئ او غر [ نه راکوزيدونکی] راخوئيدونکی معلوم [ وی او] الله تعالی طرف ته د واپس کيدو رښتوني وعده ﴿وَٱقْتَرَبَ ٱلْوَعْدُ ٱلْحَقُّ﴾ [ چه نزدې راورسيږي ﴿فَإِذَا هِىَ شَٰخِصَةٌ أَبْصَٰرُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ نو بس بيا به يکدم دا حالت شی چه د منکرانو سترګې به باتې پاتې شی ] او دوی به داسې ښکاری چه وائی به ﴿يَٰوَيْلَنَا قَدْ كُنَّا فِى غَفْلَةٍ مِّنْ هَٰذَا﴾ [ هائې زمونږ کم بختئ مونږ ددې نه په غفلت کښې وو] بيا به څه سوچ وکړی نو اوبه وائی چه غفلت خو به دې ته هله وئيلې شو چه که چامونږ خبرکړی نه وې ﴿بَلْ﴾ [ بلکه ] حقيقت دادې چه ﴿كُنَّا ظَٰلِمِينَ﴾ [ مونږ قصور وار وو] مطلب داشو چه کوم خلق په قيامت کښې ددوباره ژوندې کيدونه منکر وو هغوی به دغه وخت ددې قائل شی وړاندې دمشرکانو دپاره وعيد دې ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ [ بيشکه تاسو او چالره چه تاسو دالله تعالی نه سوا عبادت کولو ټول به جهنم ته وغورزولې شئ ] او ﴿أَنتُمْ لَهَا وَٰرِدُونَ﴾ [ ټول به په کښې داخل شئ ] په دې کښې هغه انبياء ﷺ او هغه فرښتې نه شی داخليدې کومو لره چه په دنيا کښې ځنو مشرکانو خدائ او معبود جوړ کړی وو ځکه چه په

هغوی کښې يو شرعی مانع موجود دې چه هغوی ددې مستحق نه دی اونه په هغې کښې ددوی څه قصور شته وراندې يې په ايت کښې په [ ان الذين سبقت لهم ] سره هم ددې شبهې دفع شوې ده او داخبره دپوهيدو ده چه ﴿لَوْكَانَ هٰٓؤُلَآءِ اٰلِهَةً﴾[که چرې ] دا ستاسو معبودان [ واقعی معبودان وې﴿مَّاوَرَدُوْهَا﴾ نو دې ] جهنم [ ته به ولې تلل او ] پوهيدل هم داسې چه څو ورځو دپاره نه بلکه ﴿وَكُلٌّ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ﴾[ ټول] معبودان او عابدان [ به په دې کښې هميشه وسيږی ] او﴿لَهُمْ فِيْهَا زَفِيْرٌ﴾[ ددوی به په دې کښې شور فرياد وی﴿وَهُمْ فِيْهَا لَا يَسْمَعُوْنَ﴾ او هلته به ] دخپل شور فرياد په وجه [ دچا څه خبره هم نه اوری ] دا خو ددوزخيانو حال شو او﴿اِنَّ الَّذِيْنَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِّنَّا الْحُسْنٰٓى﴾ [ دکومو دپاره چه زمونږ دطرف نه ښيګړه مقرر شوې ده ] او دغه ددوی په عملونو او کارونو سره ظاهره شوه﴿اُولٰٓئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُوْنَ﴾ [ دغه خلق به ددې ] دوزخ [ نه ] دومره [ لرې وساتلې شی ﴿لَا يَسْمَعُوْنَ حَسِيْسَهَا﴾ چه ددهٔ کش به هم نه اوری ] څکه چه داخلق به په جنت کښې وی او جنت او دوزخ ډير لرې لرې دی ﴿وَهُمْ فِيْ مَا اشْتَهَتْ اَنْفُسُهُمْ خٰلِدُوْنَ﴾[ او هغه خلق به دخپل زړهٔ په غوښتلو څيزونو کښې هميشه وسيږی ] او ﴿لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْاَكْبَرُ﴾[ دوی لره به لويه ويره ] يعنی په قيامت کښې ژوندی کيدو او دمحشر دهيبتناك منظرونو ليدوحالت [ په غم کښې نه اچوی او] دقبر نه د وتوسره ﴿وَتَتَلَقّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ﴾ [ فرښتې به ددوی استقبال کوی] او وائی به ﴿هٰذَا يَوْمُكُمُ الَّذِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ﴾[ داده ستاسو هغه ورځ دکومې چه تاسو سره وعده کولې شوه ] داد عزتونو معامله او خوشخبرئ به ددوی دپاره د زياتې خوشحالئ سبب شی په يو روايت سره که چرته دا ثابته شی چه دقيامت دهيبت او خوف نه هيڅوك مستثنی نه دې ټولو ته به راپيښيږی نو چونکه دنيکو بندګانو دپاره به ددې وخت ډير لږ وی په دې وجه دنشت برابر دې او﴿يَوْمَ نَطْوِي السَّمَآءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ﴾[ هغه ورځ ] هم [ يادولو قابله ده په کومه ورځ چه مونږ ] د اولې شپيلئ نه پس اسمانونو لره داسې راټول کړو لکه څنګه چه دليکلې شوی مضمون کاغذ راټولولې شی ] بيا دراټولونه پس خواه محض معدوم کړې شی يا ددويمې شپيلئ پورې هم په دې حالت وی دواړه خبرې ممکنې دی او ﴿كَمَا بَدَاْنَآ اَوَّلَ خَلْقٍ نُّعِيْدُهٗ﴾[مونږ لکه څنګه چه اول ځل دپيداکولو په وخت کښې ] دهر شی [ابتداء کړې وه دغه شان ] په اسانئ سره [ به دوئ دوباره پيدا کړو﴿وَعْدًا عَلَيْنَا﴾ دا زمونږ په ذمه وعده ده ﴿اِنَّا كُنَّا فٰعِلِيْنَ﴾ مونږ به خامخا ] دې لره[پوره کړو او] بره چونکه دنيکو بندګانو سره دثواب اونعمت وعده شوې ده دغه ډيره پخوانئ او کلکه وعده ده چنانچه ﴿وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُوْرِ مِنْۢ بَعْدِ الذِّكْرِ﴾ [ مونږ په ] ټولواسمانی [ کتابونو کښې په لوح محفوظ ] کښې دليکلو [ نه پس ليکلی دی ﴿اَنَّ الْاَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصّٰلِحُوْنَ﴾ چه ددې زمکې ] دجنت [ مالکان به زما نيك بنداګان وی] دوعدې زوږ والې خو ددې نه معلوم دې چه په لوح محفوظ کښې ليکلې شوې ده او تاکيدئ په دې خبره سره معلوم دې چه يو اسمانی کتاب هم ددې نه خالی نه دې.

## معارف او مسائل

﴿وَحَرٰمٌ عَلٰى قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَآ اَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ﴾ دلته حرام په معنی د شرعی ممتنع دې چې په حديث کښې يې هيڅ ګنجائش نه وی چې د تفسير په خلاصه کښې يې د ،،ناممکن،، ترجمه شوې ده او د اکثرو مفسرينو په نزد په [لَا يَرْجِعُوْنَ] کښې صرف [لَا] زيات دې ، د آيت معنی داسې ده چې د

تباه شوي آبادئ خلقو دنيا ته دوباره راتلل ناممکن دي او بعضي مفسرينو د حرام لفظ د واجب په معنیٰ اخستي دي او د [لَا يَرْجِعُوْنَ] ، لا يې د نفی په خپلې معنیٰ اخستي دي ، په دې بنا د آيت مطلب داشو چې د تباه شوي آبادئ خلقو لره دې دنيا ته دوباره نه راتلل واجب دي. [قرطبي] (۱)

د آيت مبارك مطلب دادې چې د مرګ څخه پس د توبې دروازه بنده شي ، که څوك د مرګ څخه پس دوباره دنيا ته په راتلو سره نيك عمل کول غواړي نو داسې نشی کيدې بلکه دوباره ژوندی کيدل به صرف د قيامت په ورځ وي.

[حَتّٰۤى اِذَا فُتِحَتْ يَاْجُوْجُ وَمَاْجُوْجُ وَهُمْ مِّنْ كُلِّ حَدَبٍ يَّنْسِلُوْنَ] ، [حَتّٰى] سره اشاره دې ته ده چې دا جمله په وړاندې مضمون باندې تفريع اوترتيب شوې ده ، نو په ړومبی آيت مبارك کښې وئيلې شوی دی چې کوم خلق په کفر باندې مړهٔ شوی دی ، دنيا ته په راتلو دوباره راژوندی کيدو سره د هغوئ دوباره راتلل ناممکن دی ، ددې ناممکن کيدو انتها دا اوښودلې شوه چې په دوباره راژوندی کيدو سره دې دنيا ته واپس راتلل تر هغې وخته پورې ممکن نه وی چې د ياجوج ماجوج واقعه راپيښه نشی چې د قيامت نزدې نخښه ده ، لکه په صحيح مسلم کښې د حذيفه ﷺ په روايت منقول دی چې هغه فرمائي : مونږ يوڅو صحابه کرامو خپل مينځ کښې څه بحث کولو رسول کريم ﷺ تشريف راوړو ، تپوس يې اوکړو چې تاسو څه بحث کولو ، مونږ عرض اوکړو چې د قيامت خبرې مو کولې ، هغوئ ﷺ اوفرمائيل چې قيامت به تر هغې قائم نشی چې تر څو پورې لس نخښې دهغې څخه وړاندې ښکاره نشی ، په هغه لسو نخښو کښې يوه نخښه يې د ياجوج ماجوج آزاديدل هم بيان کړل. (۲)

په دې آيت مبارك کښې د ياجوج ماجوج د پاره فتحت لفظ استعمال شوې دې ، ددې ظاهری معنیٰ هم دا معلوميږی چې دغې وخت څخه وړاندې به ددوئ راوتلو کښې څه بنديز وی ، قيامت ته نزدې کله چې الله ﷻ ته ددوئ راوتل منظور شی نو دغه بنديز به يې دلارې برته کړې شی او ظاهر د قران څخه دغه بنديز سدی ذی القرنين دې چې قيامت ته نزدې وخت کښې به په دې شان ختم شی چې هم دغه وخت به مات شی يا مات شوې خوبه ړومبې وی خو د راوتلو لار به په کښې دغه وخت ورته هواره شی ، په سورهٔ کهف کښې د ياجوج ماجوج اود سد ذی القرنين د محل وقوع او دنورو تړلو مسئلو په باره کښې په تفصيل سره بحث شوې دې هلته يې اوګورئ.

[مِّنْ كُلِّ حَدَبٍ يَّنْسِلُوْنَ] حدب لوړ ځائې ته وئيلې شی ، خواه هغه غر وی او که وړې وړې غونډئی وی ، په سورهٔ کهف کښې چرته چې د ياجوج ماجوج دمحل وقوع باره کښې خبرې شوی دی ، دهغې څخه معلومه شويده چې د دغه ځائې دقطبی غرونو څخه روستو دې ځکه به د راوتلو په وخت ددغې طرف د غرونو او غونډو نه ټول راخلاص ښکاريږی.

[اِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ] [يعنی تاسو اوستاسو معبودان سوا د الله ﷻ څخه به ټول په ټوله دجهنم خشاك جوړيږی] په دې آيت مبارك کښې هغه ټول باطل معبودان د جهنم خشاك ښودلې شوی دی چې د کومو ناجائز عبادت د کافرانو مختلفو ډلو کړې دې.

---

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۱ص:۳٤۰]

(۲) صحيح مسلم كتاب الفتن واشتراط الساعة ، فصل من اشراط الساعة خروج ياجوج وماجوج [ج:۲ص:۳۸۸]

په دې بنا باندې دا شبه کېدې شوه چې عیسی ﷺ او دفرښتو هم په ناجائزه عبادت کړې شوی دې نوآیا دوئ به هم جهنم ته ځي ؟ ددې جواب ابن عباس رضي الله عنه د تفسیر قرطبي په حواله سره ورکړې دې چې هغوئ رضي الله عنه یو ځل اوفرمائیل چې د قرآن پاك په یو آیت مبارك باندې خلق شبهې کوی خو عجیبه راپیښه داسې ده چې ددې په باره کښې ما څخه څوك تپوس نه کوی ، معلومه نه ده چې ددې شبهو جواب خلقو ته معلوم شوې دې څکه یې رانه تپوس نه کوی ، یا ددې جواب ته یې د سره خیال شوې نه دې. خلقو عرض اوکړو چې دغه جواب څه دې ؟ هغوئ رضي الله عنه اوفرمائیل چې دغه آیت : [اِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُوْنَ] دې ، کله چې دا آیت مبارك نازل شو د قریشو په کافرانو بد څکه اولګېدو چې هغوئ په کښې دخپلو معبودانو سپکاوې لیدلو ، د اخلق ابن الزبعری ته لاړل، اودا شکایت یې ورته مخکښې کړو، هغه ورته اووئیل چې که زه هلته وې نو ددې جواب به مې ورته ورکړې وو ، خلقو ترې تپوس اوکړو چې څنګه جواب دې ورکړې وو؟ هغوئ اوفرمائیل چې نصاری د عیسی ﷺ او یهود د عزیز ﷺ عبادت کوی ، د هغوئ باره کښې به تاسو څه وایئ ؟ د قریشو کافرانو چې دا واؤریدل نو ډیر خوشحاله شو چې واقعی ، ددې جواب به محمد ﷺ ورنکړې شی ، پدې باندې هغه آیت نازل شو چې کوم دې پسې دې : [اِنَّ الَّذِيْنَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِّنَّا الْحُسْنٰۤى اُولٰٓئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُوْنَ] [چا دپاره چې زمونږ د طرفه ښیګړه او ښه نتیجه په تقدیر کښې لیکلې شوې ده هغوئ به ددې جهنم نه ډیر لرې وی ] اود دغې ابن الزبعری په باره کښې د قرآن پاك دا آیت مبارك نازل شو چې : [وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا اِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّوْنَ] [کله چې ابن الزبعری د ابن مریم مثال پیش کړو نو ستاسو د قوم خلقو یعنی قریشو د خوشحالۍ نه شور جوړ کړو]

[لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْاَكْبَرُ] ابن عباس رضي الله عنه فرمائیلی دی چې دلته د الفزع الاکبر څخه مراد دویم ځل شپیلئ پوك وهل دی چې په دې سره ټول مړی راژوندی شی او حساب کتاب دپاره به ا ودریږی ، ځینو حضراتو ترې رومبی شپیلۍ پوك وهل مراد اخستی دی ، دابن عربی قول دادې چې شپیلۍ به درې ځل پوك وهلې شی ، رومبی ځل سره به ټول خلق په هیبت شی چې نفخه فزع ورته وئیلې کیږی ، دې ته فزع الاکبر اووئیلې شو ، د دویم ځل پوك وهل نفخه بعث په نوم سره ده چې ټول مړی به ورسره راژوندی کیږی ، ددې په ګواهئ کښې د مسند ابی یعلی ، بیهقی ، عبد بن حمید ، ابی الشیخ ، ابن جریر طبری وغیره نه د ابوهریره رضي الله عنه یو حدیث نقل کړې شوې دې [مظهری ] [1] والله اعلم.

[يَوْمَ نَطْوِي السَّمَآءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ] د ابن عباس رضي الله عنه نه د سجل معنی صحیفه یعنی سیپاره نقل ده، چنانچه علی بن طلحه عوفی رحمه الله ، مجاهد رحمه الله ، قتاده رحمه الله وغیره هم دغه معنی بیان کړې ده . ابن جریر او ابن کثیر هم دا معنی اختیار کړې ده ، او ،،کتب،، دلته د مکتوب معنی ورکوی ، ټوله معنی یې داشوه چې آسمان به داسې راؤنغښتې شی څنګه چې یو صحیفه هغې تحریر او لیك سره رانغښتې شی کوم چې په کښې شوې وی ، [ابن کثیر بحواله روح]

[1]) تفسیر المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٢٣٩ تا ٢٤١] و تفسیر الطبري تحت هذه الآية [ج:١٨ ص:٥٤٤] و مسند اسحاق بن راهوية رقم الحديث [١٠]

هغه نور روایتونه دمحدثینو په نزد ثابت نه دي په کومو کښې چې د سجل معنی سړی یا فرښته بیان کړې شوي ده ، [ابن کثیر په تفصیل سره بیان کړی] (۱) د آیت مبارك مفهوم باره کښې په صحیح بخاری کښې د عبد الله بن عمر ﷠ څخه روایت دي چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ به دقیامت په ورځ ټول آسمانونه او زمکې راؤنغاړی او پخپل لاس کښې به یې اوساتی ، (۲) ابن ابی حاتم پخپل سند سره ابن عباس ﷠ څخه روایت کړی دي چې د قیامت په ورځ به الله ﷻ اووه واړه آسمانونه سره ددې د مخلوقاتو او اووه واړه زمکې سره ددې د مخلوقاتو انغښتې رایوځائې کړی چې دا ټول هر څه به دالله ﷻ په لاس د اوری د یوې دانې پشان وی [ابن کثیر] (۳)

[وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِنْ بَعْدِ الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ] زبور د زُبُرْ جمع ده چې معنی یې کتاب ده ، او زبور د هغې خاص آسمانی کتاب نوم ههم دي چې په داؤد ﷺ باندې نازل شوې وو ، دلته د زبور په معنی اخستو کښې ګڼ اقوال راغلی دی ، د ابن عباس ﷠ په روایت کښې دی چې پدې آیت مبارك کښې د ذکر څخه مراد تورات او د زبور څخه مراد هغه ټول کتابونه دی چې تورات څخه پس نازل شوی دی. یعنی انجیل ، زبور د داؤد ﷺ او قرآن پاك کریم [اخرجه ابن جریر] (۴) هم دا تفسیر د ضحاك څخه هم نقل دې ، او ابن زید فرمائیلی دی چې د ،،ذکر،، څخه مراد لوح محفوظ دې ، او د زبور څخه مراد هغه ټول آسمانی کتابونه دی چې په پیغمبرانو ﷺ باندې نازل شوی دی. زجاج دا قول اختیار کړې دې. [روح المعانی] (۵)

[الْأَرْضَ] د جمهورو مفسرینو په نزد دلته د ،،ارض،، څخه مراد زمکه د جنت ده ، ابن جریر د ابن عباس ﷠ څخه دا تفسیر نقل کړي دي او هم دا تفسیر د مجاهد ﷫ ، ابن جبیر ﷫ ، عکرمه ﷫ ، سدي ﷫ او ابو العالیه ﷫ څخه هم منقول دې . امام رازی ﷫ فرمائیلی دی چې د قرآن کریم بل آیت مبارك ددې تائید کوی لکه فرمائی چې :

(۶) [وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَاءُ] او دا فرمائیل چې ددې زمکې وارثان به نیکان خلق وی ، ددې قرینه ده چې د ،،ارض،، څخه مراد د جنت زمکه ده ، (۷) ځکه چې ددنیا دزمکې وارثان خو هر څوك کیدې شی که هغه مؤمنان وی او که کافران وی ، بله دا چې د نیکانو خلقو دزمکې وارث کیدل د قیامت د بیان څخه پس راغلی دی ، او د قیامت څخه پس د جنت د زمکې څخه سوا بله زمکه نشته دې ، او ابن عباس ﷠ څخه یو روایت دا هم دې چې د دې ،،ارض،، څخه مراد عامه زمکه ده ، که هغه د دنیا زمکه وی او که د جنت.

د جنت د زمکې یوازې صالحان وارثان کیدل خو ښکاره خبره ده خو ددې هم وعده شوې ده چې د دنیا د ټولې زمکې وارثان به څه وخت مؤمنان نیکان جوړیږی چې بیان یې د قرآن پاك په

---

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص:۳۸۲، ۳۸۳]
(۲) صحیح البخاري کتاب التوحید ،باب قول الله تعالی خلقت بیدي إلخ [ج:۲ص:۱۱۰۱]
(۳) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۵ ص:۳۸۲، ۳۸۳]
(۴) تفسیر الطبري تحت هذه الآیة [ج: ۱۸ ص:۵۴۷]
(۵) روح المعاني تحت هذه الآیة [ج: ۱۲ ص:۴۸۴]
(۶) ترجمه:- اومونږ یې ددې زمکې مالکان جوړ کړو او چرته چې جنت مونږ غواړو نو قیام به کوؤ.
(۷) تفسیر الطبري تحت هذه الآیة [ج: ۱۸ ص:۵۴۹]

کنړو آيتونو کښې راغلې دي ، يو آيت مبارك کښې فرمائی چې : (١)[اِنَّ الۡاَرۡضَ لِلّٰهِ ۙ یُوۡرِثُهَا مَنۡ یَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِهٖ ؕ وَالۡعَاقِبَةُ لِلۡمُتَّقِیۡنَ] الاية. بل آيت مبارك کښې فرمائی چې : (٢)[وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا مِنۡکُمۡ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَیَسۡتَخۡلِفَنَّهُمۡ فِی الۡاَرۡضِ] ، په دريم آيت مبارك کښې فرمائی چې : (٣)[اِنَّا لَنَنۡصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا فِی الۡحَیٰوةِ الدُّنۡیَا وَیَوۡمَ یَقُوۡمُ الۡاَشۡهَادُ] دنيا يو ځل وړاندې ليدلې دی چې الله ﷻ ددنيا په لويې ودانې باندې خپل مؤمنان نيکان بندګان وارثان ګرځولي دی چې ډيرې زمانې پورې دغه صورت قائم وو او بيا به هم د مهدی ؑ په زمانه کښې همداشان کيږی [روح المعانی ، ابن کثير](٤)

اِنَّ فِیۡ هٰذَا | لَبَلٰغًا

| بيشکه په دې [بيان] کښې | يو لوئ خبر دې

| په دې [قران پاک] کښې دعبادت کونکو دپاره ډير کافی

لِّقَوۡمٍ | عٰبِدِیۡنَ ؕ | وَمَاۤ اَرۡسَلۡنٰكَ | اِلَّا | رَحۡمَةً | لِّلۡعٰلَمِیۡنَ

دپاره دخلقو | عبادت کونکو | اونۀ ئې ليږلې مونږ ته | مګر | رحمت ئې | دپاره دمخلوقاتو

مضمون دې | ............او مونږ ته دټولو جهانونو دپاره رحمت جوړ کړې ليږلې ئې |

قُلۡ | اِنَّمَا | یُوۡحٰۤی | اِلَیَّ | اَنَّمَاۤ اِلٰـهُکُمۡ | اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ | فَهَلۡ اَنۡتُمۡ

ورته اووايه | بيشکه | وحی کيږی | ماته | چې بيشکه معبود ستاسو | معبود يو دې | نو آيا تاسو

[ائې پيمغبره] ته اووايه چې ما ته خو بس دا وحی راغلې ده | چې ستاسو معبود بس يو معبود دې | نو

مُّسۡلِمُوۡنَ | فَاِنۡ تَوَلَّوۡا | فَقُلۡ | اٰذَنۡتُکُمۡ | عَلٰی سَوَآءٍ ؕ

منونکی يئ | نو که مخ واړوؤ دوئ | نو ورته اووايه | چې خبردار کړی يئ ما تاسو | برابر بنګاره

آيا تاسو هم منئ که نه ؟ | نو که بيا هم مخ ونه واړوی | نو ته ورته اووايه چې ما خو تاسو پوره

وَاِنۡ اَدۡرِیۡۤ | اَقَرِیۡبٌ | اَمۡ بَعِیۡدٌ | مَّا | تُوۡعَدُوۡنَ

اونۀ پوهيږم زۀ | چې آيا نږدې دې | يا لرې دې | هغه څيز | چې تاسو سره ئې وعده کيږی

خبرکړئی | اوماته دامعلومه نه ده چې کومه وعدۀ تاسو سره شوې ده چې هغه نږدې ده او که لرې

اِنَّهٗ | یَعۡلَمُ | الۡجَهۡرَ | مِنَ الۡقَوۡلِ | وَیَعۡلَمُ | مَا | تَکۡتُمُوۡنَ

بيشکه الله | پوهيږی | په اوچت آواز | دخبری نه | او پوهيږی | په هغه خبرو | چې پټوئ ئې تاسو

بيشکه چې الله ﷻ په ښکاره خبره هم پوهه دې | او په هغې هم پوهه دې چې تاسوئې پټوئی

---

(١) ترجمه:-دا زمکه دالله تعالي ده، څوك چې غواړی نو ددې مالك جوړوی دخپلو بندګانونه ، او اخير کاميابي هغوئ ته حاصليږی څوك چې دالله تعالي نه ويريږی.

(٢) ترجمه:- تاسو کښې چې څوك ايمان راوړی او نيکو علمونه کوی ،هغوئ سره دالله تعالي وعده ده چې هغوئ ته به په زمکه کښې حکومت ورکوی.

(٣) ترجمه:- مونږ د خپل پيغمبرانو او د ايماندارو په دنياوی ژوند کښې هم مدد کوؤ او په هغه ورځ هم چې په کومه ورځ ګواهی ورکوؤنکی خلق ولاړ روی.

(٤) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٢ ص:٤٨٤] و تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:٣٨٤]

وَاِنْ اَدْرِیْ لَعَلَّهٗ فِتْنَةٌ لَّكُمْ وَمَتَاعٌ

او خومره چی پوهیږم زهٔ | نو شاید چی دا تا خیر | یوه فتنه ده | ستاسو دپاره | او سامان دژوند دي

اوزهٔ نه پوهیږم |کیدي شی چې دا [تاخیر] ستاسو دپاره یو امتحان وی او تاسو ته ترځهٔ

اِلٰی حِیْنٍ۝ قٰلَ رَبِّ احْكُمْ بِالْحَقِّ ط وَرَبُّنَا

دخاص وخته پورې | آخر اووئیل رسول | اے ربه | فیصله اوکړه | په حقه سره| او رب زمونږه

وخت پورې فائده رسول دی | پیغمبر اووئیل چې ائي زما ربه ! ته دحق مطابق فیصله کوه| اوزما رب

الرَّحْمٰنُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰی مَا تَصِفُوْنَ۝ ع

رحمان دي | چی امداد تر غوښتلي کیږی | په مقابله دهغه خبرو کښی | چی تاسو ئې بیانوئ

درحمتونو خاوند دي | مونږ ترې نه مدد غواړو | دهغې خبرو په مقابله کښې چې کومې تاسو بیانوئ

## آسان ترجمه قرآن

بیشکه په دې (قرآن) کښې دعبادت کونکو دپاره کافي پیغام دې.او (اې پیغمبره!) مونږ ته د ټولو جهانونو دپاره رحمت لیږلې ئې اووایه چه : په ما باندې خو دا وحی راځی چه ستاسو معبود بس یو معبود دې، نو آیا تاسو اطاعت قبلوئ؟ بیا هم که دا خلق مخ واړوی نو اووایه چه : ما تاسو علی الاعلان خبردار کړی یئ. او ماته دا معلومه نه ده چه د کومې سزا چه تاسو سره وعده کولې شی هغه نزدې ده که لرې.بیشکه الله پاک ته هغه خبرې هم معلومې دی کومې چه په تیز آواز سره کولې شی اوهغه خبرو باندې هم پوهیږی کومې، چه تاسو پټوئ. او ماته معلومه نه ده کیدې شی (په سزا کښې) دا (روستو والې) ستاسو دپاره یو آزمیښت دې،او د یوخاص وخته پورې د فائدو اخستلو موقع درکول دی. (آخر دا چه) پیغمبر اووئیل چه: اې زما ربه! د حق فیصله اوکړې، او زمونږ رب د لوئې رحمت والا دې، او کومې خبرې چه تاسو جوړوئ، دهغې په مقابله کښې هم د هغه نه مدد طلب کولې شی.

## خلاصه تفسیر

﴿ اِنَّ فِیْ هٰذَا لَبَلٰغًا لِّقَوْمٍ عٰبِدِیْنَ۝ؕ﴾ [بیشکه په دې ] قرآن یا ئې په یو جزء یعنی ذکر شوی صورت [کښې پوره مضمون دې دهغو خلقو دپاره کوم چه عبادت کوونکی دی ] اوکوم چه دعبادت نه سرکشی کوونکی دی دا هدایت خوددوی دپاره هم دې مګر په دوی کښې دهدایت طلب نشته په دې وجه ددې دفاندې نه محرومه دی ﴿وَمَاۤ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِیْنَ۝﴾ [ اومونږ تالره دخه بلې خبرې دپاره ] رسول جوړ کړې [نه دې لیږلې مګر دجهان په خلقو باند د] خپلې [ مهربانئ کولو دپاره] دغه مهروبانی داده چه خلق درسول نه ددې مضامین قبول کړی او دهدایت فائدې حاصلې کړی او څوك چه ئې قبول نه کړی هغه دهغه قصور دې په دې سره ددې مضمون په صحت هیڅ اثرنه پریوځی ﴿قُلْ﴾[ ته دې خلقو ته ] په لتده سره بیا بیا [ وفرمایه چه ماته خو] دموحدینو او مشرکینو په مینځ کښې د اختلاف په باره کښې ﴿اِنَّمَا یُوْحٰۤی اِلَیَّ اَنَّمَاۤ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ﴾ [ صرف دا وحی راغلې ده چه ستاسو معبود یو معبود دې ] نو ددهٔ دحقوالی ثابتیدونه پس﴿فَهَلْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ۝﴾ [ اوس هم تاسو منئ ] اوکه نه منئ یعنی اوس خو ومنئ﴿فَاِنْ تَوَلَّوْا﴾ [ بیا هم که دا خلق ] ددې دقبلولونه [ مخ واړوی نو ته ] په طور دحجت تمامولو﴿فَقُلْ اٰذَنْتُكُمْ

﴿عَلٰى سَوَآءٍ﴾ [ وفرمایه چه ماتاسو ته نهایت واضح خبرې درکړې دي ] چه یوه ذره پټوالي په کښې نه دې پاتې شوې دتوحید او داسلام دحقوالي خبر هم او ددې نه په انکار چه کومه سزا ملاویږي هغه هم صفاصفا بیان شوې ده اوس په مانه دتبلیغ دحق څه ذمه واري باقي پاتې ده او نه ستاسو څه عذر باقي پاتې شوې دې [ اوکه چرې ] ددې په حقوالي کښې تاسو په دې وجه شبهه کړئ چه کومه سزا ښودلې کیږي هغه ملاویږي ولې نه نو پوه شئ چه دسزا ملاویدل خو یقیني دی مګر ﴿وَاِنْ اَدْرِيْٓ اَقَرِيْبٌ اَمْ بَعِيْدٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ﴾ [ زۀ په دې پوه نه یم چه دکومې] سزا [ تاسو سره وعده شوې ده ایا هغه نزدې ] واقع کیدونکې ده او که څه [ اوږده ] زما نه پس واقع کیدونکې [ ده] البته واقع کیدل ئې خامخا دی ځکه چه ﴿اِنَّهٗ يَعْلَمُ الْجَهْرَ مِنَ الْقَوْلِ﴾ [ الله تعالٰی ته ] ستاسو [ داوچت اواز باند د وئیلې شوې خبرې هم خبر شته ﴿وَيَعْلَمُ مَا تَكْتُمُوْنَ﴾ او کومه چه تاسو په زړه کښې ساتئ دهغې نه هم خبر دې او] په تا خیر دعذاب سره ددې دنه واقع کیدو په دوکه کښې مه راځئ دا تاخیر په څه مصلحت او حکمت سره کیدې شي ﴿وَاِنْ اَدْرِيْ﴾ [ زۀ نه پوهیږم ] چه هغه مصلحت څه دې البته دومره وئیلې شم چه ﴿لَعَلَّهٗ فِتْنَةٌ لَّكُمْ﴾ [شاید] دا تاخیر دعذاب [ستاسو دپاره امتحان وی ] چه شاید که پوه شئ او ایمان راوړئ ﴿وَمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ﴾ [ اوتر یو وخت ] محدود یعنی تر وخته دمرګ پورې [ فائده رسول وی ] چه غفلت ئې ښه اوږد شي او عذاب ئې زیات شي اوله معامله یعنی امتحان رحمت دې او دویمه معامله یعنی عمر اوږدیدل او سهولتونه ئې ملاویدل عذاب او سزا ده او هر کله چه په دې ټولو مضامینو سره هدایت ونه شونو [ پیغمبر] ﷺ دالله تعالٰی په اذن ﴿قٰلَ رَبِّ﴾ [ ووئیل چه اے زما ربه] زما اودقوم په مینځ کښې ﴿احْكُمْ بِالْحَقِّ﴾ [ فیصله وکړه] کومه چه همیشه [ دحق موافق ] وی مطلب دادې چه عملی فیصله وکړې چه دمسلمانانو سره دکومې فتح او نصرت وعدې دی هغه واقع کړې چه په دوی باند نور زیات حجت تمام شي [او] رسول الله ﷺ کفاروته دا هم وفرمائیل چه ﴿وَرَبُّنَا الرَّحْمٰنُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ﴾ [ زما رب لوئ مهربان دې چه دهغه نه دهغوخبرو په مقابله کښې مدد غوښتې شي کومې چه تاسو جوړوئ ] چه مسلمانان به زر ورک شي یعنی مونږ دهغه مهربان رب نه ستاسو په مقابله کښې مدد غواړو.

## معارف او مسائل

[﴿وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ﴾] عالمین د عالم جمع ده ، عالم ټولو مخلوقاتو ته وئیلې شي که هغه پیریان او انسانان وی ، او که حیوانات او نباتات او جمادات وی ، رسول کریم ﷺ دې ټول مخلوق دپاره رحمت په د ې شان دې چې د ټول مخلوقاتو حقیقی روح د الله ﷻ ذکر او د هغه عبادت دې ، کله چې په دنیا کښې دا پاتې نشی یعنی دلته څوک الله، الله ویونکې پاتې نشی نو ددې ټولو څیزونو مرګ به رشی ، کله چې حقیقی روح د الله ﷻ ذکر او عبادت دې چې هغه درسول کریم ﷺ په برکت او تعلیماتو سره دلته تر قیامت پورې قائم دې نو د هغوئ رحمت کیدل ترې پخپله ښکاره شو ځکه چې هغوئ پخپله فرمائیلی دی چې [انا رحمة مهداة] [زۀ د

الله ﷺ د طرفه راليږلې شوي رحمت يم [ابن عساكر عن ابى اهريره] [1] داشان د ابن عمر رضي الله عنه په روايت بل ځائې کښې فرمائيلى دى چې [انا رحمة مهداة برفع قوم وخفض اخرين] [زۀ د الله ﷺ رحمت په دې شان يم چې يو قوم [حکم منوونکې] سربالا کړم او بل قوم [د الله د حکم نامنونکې] سرښکته کړم] [ابن کثير] [2]

دې ځخه معلومه شوه چې د کفر او شرك د ختمولو دپاره کفار ذليله کول او دهغوئ په مقابله کښې جهاد کول هم خالص رحمت دې چې ددې په ذريعه د متکبرو خلقو عقل په سر کښې راځي ، او د ايمان او نيك عمل د پابند کيدو اميد ترې کيدې شي ، والله سبحانه وتعالى اعلم

تمت سورة الانبياء بحمد الله والله المستعان لاتمام بقية التفسير وترجمته

| آياتونه | | | | رکوع گانې |
|---|---|---|---|---|
| | | سورة الحج مدنية وهى ثمان وسبعون اية وعشر ركوعات | | |
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۷۸ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ۱۰ |

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ ۚ اِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيْمٌ ①

اے خلقو | اويريږئ | دغضب درب خپل نه | بيشکه | زلزله دقيامت | ځيز دې | لوئ [هيبتناك]

اې خلقو! دخپل رب نه ويره کوئ | ځکه چې] دقيامت [دورځې] زلزله يو ډير لوئې ځيز دې

يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّآ

په کومه ورځ | چې تاسو اووينئ هغه زلزله | ناخبره به شي | هره تى ورکونکى ښځه | دهغه بچى نه |

په کومه ورځ چې به تاسو هغه [زلزله] اووينئ [نوهره يوه تى ورکونکې [مور] به خپل

اَرْضَعَتْ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى النَّاسَ

چې تې ئې ورکوى هغه ته | او اوبه غورزوى | هره | حملداره ښځه | حمل خپل | او تاته به خلق

دتى ماشوم نه غافله شي | اوهره حملداره زنانه به خپل حمل اوغورزوى | او ته به خلق نشه

سُكٰرٰى وَمَا هُمْ بِسُكٰرٰى وَلٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيْدٌ ②

بې هوشه ښکارى | اونۀ به وى هغوئ | بې هوشه | ليکن | عذاب دالله | دې ډير سخت

نشه وينئ | خو هغوى به نشه نه وى | ليکن دالله ﷻ عذاب به ډير سخت وى

**آسان ترجمه قرآن**

اې خلقوا د خپل رب (د غضب) نه اويريږئ. يقين اوساتئ چه د قيامت زلزله ډير زبردست ځيز دې. په کومه ورځ چه هغه تاسو ته په نظر راشي، هغه ورځ به هره پئ ورکونکې هغه ماشوم (هم) هير کړی چاته چه ئې پئ ورکړې وی او حمل والا به خپل حمل اوغورځوی، او خلق به تاسو ته په نظر راځي چه هغوی په

[1] ) المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۹۹] وشعب الإيمان للبيقهي رقم الحديث [۱۳۸۷]
[2] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۵ ص:۳۸۶] و كنز العمال رقم الحديث:[۳۲۰۹۷] وجامع الأحاديث للسيوطي رقم الحديث [۶۷۳۲]

نشه کښې بد حواس دي، حال دا چه هغوی به په نشه کښې نه وي، بلکه د الله پاک عذاب به ډیر سخت وي.

## خلاصه تفسیر

﴿يَاأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ﴾ [ اے خلقو دخپل رب نه وویریږئ ] او ایمان او اطاعت اختیار کړئ ځکه چه ﴿إِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ﴾ [ یقینا دقیامت زلزله به ډیر دروند څیز وي] چه راتلل ئې خامخا دي ددغې ورځې دسختنو نه دبچ کیدو اوس فکر وکړئ چه طریقه ئې تقوی ده وړاندې ددغه سختئ بیان دې ﴿يَوْمَ تَرَوْنَهَا﴾ [ په کومه ورځ چه تاسو خلق دغې ] زلزلې [ لره ووینئ دغه ورځ به ] دا حال وي چه ﴿تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ﴾ [ تولې پئ ورکونکې ] د هیبت او ویرې په وجه سره ﴿عَمَّا أَرْضَعَتْ﴾ [ خپل پئ خوړونکی ] بچی [ لره هیر کړی ﴿وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا﴾ او ټولې حملدارې به خپل حمل ] دورخوپوره کیدونه وړاندې [ وغورزوی ﴿وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى﴾ اوتاته ] اے مخاطبه [ به خلق دنشې په شان په حالت کښې ښکاریږی﴿وَمَا هُمْ بِسُكَارَى﴾حال دادې چه هغوی به په نشه کښې نه وی ] ځکه چه هغه وخت دنشې دڅه شی داستعمالولو هیڅ امکان او احتمال نشته ﴿وَلَكِنَّ عَذَابَ اللَّهِ شَدِيدٌ﴾ [ لیکن دالله تعالی عذاب ډیر سخت څیز دې ] چه هغې نه د ویرې په وجه سره به ددوی حالت دنشې والا په شان شی.

## معارف او مسائل

**سورة خصوصیات:**: د مفسرینو په دې کښې اختلاف دې چې دا سورة مکی دې او که مدنی . د ابن عباس رضي الله عنه څخه دواړه روایات منقول دی . د جمهورو مفسرینو قول دادې چې دا سورت مکی او مدنی دواړه قسمه آیتونه لری ، قرطبی رحمه الله دې ته زیات صحیح قول وئیلې دې . دا سې ئې هم وئیلی دی چې ددې سورت عجیبه خبره داده چې ددې ځینې آیتونه په شپه کښې ، ځینې په ورځ کښې ، ځینې په سفر کښې ، ځینې په حضر کښې ، ځینې په مکه مکرمه کښې ، ځینې په مدینه منوره کښې ، ځینې د جنګ په حالت کښې ، ځینې د صلح په حالت کښې نازل شوی دی . دې کښې ځینې آیتونه ناسخ او ځینې منسوخ ، ځینې محکم او ځینې متشابه دی ، غرض دا چې دې سورت کښې نازلیدونکی ټول قسمه څیزونه شته دې .[1]

﴿يَاأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ﴾ هرکله چې په رسول کریم صلی الله علیه وسلم باندې دا آیت مبارك نازل شو نو د سفر په دوران کښې نازل شو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم په اوچت آواز سره ددې تلاوت کول شروع کړل ، ددې په آوریدو سره ددغې سفر ټول صحابه کرام رضي الله عنهم نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته راغلل ، نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل چې تاسو ته معلومه ده چې دقیامت د ازلزله به په کومه ورځ وی ؟ صحابه کرام رضي الله عنهم عرض اوکړو چې الله تعالی او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم په دې ډیر ښه پوهیږی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې دا به په هغه ورځ وی چې الله تعالی به آدم علیه السلام ته اوفرمائی چې جهنم ته تلونکی خلق راپورته کړه ، آدم علیه السلام به عرض اوکړی چې دا به څوك وی . الله جل جلاله به ورته اوفرمائی چې په زرو کسانو کښې یو کم زر کسان. نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې دا به هغه وخت وی چې د ویرې او هیبت څخه به ماشومان بوډاګان شی ، بارداری ښځې به دخیتې بار اوغورزوی.

[1]) تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۱]

صحابهٔ کرامو ﷺ تپوس اوکړو چې یارسول الله ﷺ ابیا به په مونږ کښې خلاصي موندونکی څوك نه وی ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې تاسو فکر مه کوئ ، په زرو کښې به ټول یاجوج ماجوج جهنم ته زی ، او تا سو کښې به صرف یو کس په زرو کښې جهنم ته ځی. [صحیح مسلم وغیره د ابی سعید ﷺ څخه روایت کړې دی] (۱)

ځینو روایاتو کښې داسې هم راغلی دی چې په دغه ورځ به تاسو داسې دوه قسمه مخلوق سره یئ چې هغوئ به کومې ډلې سره وی نو په شمیر کښې به هم هغوئ پرې زیات وی یو یاجوج ماجوج ، دویم ابلیس او دهغه ملګری او تابعدار او د آدم ﷺ په اولاد کښې چې کوم خلق وړاندې مړهٔ شوی دی. [ځکه په تحفه سره نهه نوی کښې زیات تعداد به دهغوئ وی] دا ټول روایات په تفسیر قرطبی وغیره کښې نقل کړې شوی دی. (۲)

**دقیامت زلزله به کله وی ؟** آیا دا زلزله به د خلقو د دوباره راژوندی کیدو څخه روستو وی اوکه ددې څخه وړاندې په دې دنیا کښې به وی چې د قیامت د راتلو آخری نخښه به وی ؟ ځینو په کښې دا دویم قول غوره کړې دی ځکه چې د قرآن عظیمُ الشان په ډیرو آیتونو کښې ددې بیان راغلې دې. لکه فرمائی چې (۳)[اِذَا زُلْزِلَتِ الْاَرْضُ زِلْزَالَهَا] ، (۴)[وَّحُمِلَتِ الْاَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً] (۵)[اِذَا رُجَّتِ الْاَرْضُ رَجًّا] وغیره.

ځینو حضراتو فرمائیلی دی چې دغه زلزله به د دوباره ژوندی کیدو څخه روستو وی ، دهغوئ دلیل هغه حدیث پاك دې په کوم کښې چې آدم ﷺ ته د خطاب کولو بیان دې. خو په حقیقت کښې دا دواړه روایتونه پخپل مینځ کښې داسې سمون خوړې شی چې د قرآن عظیم الشان او د صحیح احادیثو تر مخه د حشر نشر څخه وړاندې د زلزلې راتلل هم ثابت دی او ددغې حدیث پاك تر مخه روستو راتلل ئې هم ثابت دی. والله اعلم.

دې پسې آیت مبارك کښې دا بیان راغلې دې چې پئ ورکوونکې ښځه به خپل تی ورکوونکی ماشوم ته پام نشی کولې ، او بارداره ښځې به د هیبت په وجه خپل د خیټې بچې ګذار کړی که داشان د قیامت قائمیدو څخه اول د زلزلې وی نو دې کښې خو هیڅ شك نشته او که د قیامت قائمیدو څخه روستو وی نو ددې مطلب به دا وی چې کومه ښځه بارداره مړهٔ شی نو هغه به خپل د خیټې دغه بچې ګذار کړی. اوکه د تی ورکولو په حالت کښې مړهٔ شوې وی نو سره ددغې بچی به راپورته شی خو بیا هم ورته د هیبت په وجه پام نشی کولې. [قرطبی] (۶) والله اعلم.

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الإیمان ، باب بیان کون هذه الأمة نصف اهل الجنة [ج:۱ص:۱۱۸] و جامع الترمذي ، ابواب التفسیر باب ومن سورة الحج [ج:۲ ص:۱۵۰]

(۲) تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۳] و جامع الترمذي ، ابواب التفسیر باب ومن سورة الحج [ج:۲ ص:۱۵۰]

(۳) ترجمه:-کله چې زمکه به خپلو غوڅیدول سره اوخوځولې شی.

(۴) ترجمه:- او زمکه او غرونه به پورته کړې شی بیا به دواړه په یو ځل ریزه ریزه کړې شی.

(۵) ترجمه:-هر کله چې په زمکه سخته زلزله راشی.

(۶) تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۶]

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّيَتَّبِعُ

او خینی دخلقو نه | هغه دی | چی جګړه کوی | په باره دالله کښي | بغیر دعلم نه | او پیروی کوی |

اوبعضي خلق داسي هم دي | چي دالله ﷻ په باره کښي بغير د علم [اودليل] نه جګړي کوی | او

كُلَّ شَيْطٰنٍ مَّرِيْدٍ ۙ كُتِبَ عَلَيْهِ

دهر شیطان | سرکشه | حال دا چي ليکلي شوی ده [دا خبره] | په حق ددغه شيطان کښي |

دهر يو سرکش شيطان تابعداری کوی | چي چا په باره کښي چي دا ليکلي شوي دي چي

اَنَّهٗ مَنْ تَوَلَّاهُ فَاَنَّهٗ يُضِلُّهٗ

چي بيشکه | هغه څوک | چي دوست کوی ده لره | نو بيشکه | به بي لاري کوی هغه [تابع خپل] |

څوک هغه سره ملګري شي | .........نو هغه ئي ګمراه کړي

وَيَهْدِيْهِ اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ ۝ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ

اولار به ښائی هغه ته | دعذاب د وورګرم | اے خلقو | که يئ تاسو | په شك کښي |

اود دوزخ د عذاب لار ورته سموی | .........ائي خلقو! که تاسو دبيا ژوند په باره کښي شکمن

مِّنَ الْبَعْثِ فَاِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ

ددوباره ژوندی کيدونه | پس بيشکه | پيدا کړی يئ مونږ تاسو | دخاورو نه | بيا | دنطفي نه

يئ | نو [لږ فکر اوکړئ] چي مونږ تاسو [اول] دخاوري نه پيدا کړئ | بيا د يو څاڅکي اوبو نه

ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَّغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ

بيا دويني دټوټي نه | بيا دغوښي دټوټي نه | چي پوره شکل والا هم وی | او نيمګړی شکل والا هم وی

بيا د چکه ويني نه | بيا دغوښي دټوټي نه | چي [بعضي] پوره وی او [بعضي] ناپوره وی

لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ ؕ وَنُقِرُّ فِي الْاَرْحَامِ

دپاره ددې چي واضحه کړو مونږ | تاسو ته [حقيقت] | او قرار ورکوو مونږ | په رحمونو [دميندو] کښي

چي تاسو ته خپل قدرتونه اوښائی | او مونږ چي دچا په باره کښي اوغواړو نو تر

مَا نَشَآءُ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا

هغه چي خوښه شي زمونږه | دنيټي خاصي پوري | بيا | را اوباسو مونږ تاسو | په شکل دبچي کښي

يوې مودې پورې هغه دمور په رحم کښي ځائي کړو | بيا تاسو د پوره ماشوم په صورت کښي پيدا کړو

ثُمَّ لِتَبْلُغُوْۤا اَشُدَّكُمْ ۚ وَمِنْكُمْ مَّنْ

بيا [پالو تاسو] | دپاره ددې چي اورسئ تاسو | پوره ځواني خپلې ته | او خيني ستاسو نه | هغه دی

او چي بيا د ځوانئ زور ته اورسئ | او په تاسو کښي څوک داسي دی | چي [په پوخ عمر کښي] مړه شي

يُّتَوَفّٰى وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ الْعُمُرِ

چي وفات کړې کيږی | او خيني ستاسو نه | هغه دی | چي واپس کړې کيږی | بدترين عمر ته

اوبعضي داسي وی | چي [دبوډاتوب] غورزيدلی عمر ته اورسي

لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْـًٔا ۭ وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً

دپاره ددې چې پوهه نشي | روستو دپوهيدو نه | په څه څيز باند | او ته وينې | زمکه | اوچه کلکه

چې دپوهې نه پس يو ځل بيا په څه نه پوهيږي |..........اوته وينې گورې چې زمکه اوچه مړه پرته وي

فَإِذَآ أَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنْبَتَتْ

نو هر کله چې | نازل کړو مونږه | په هغې باند | اوبۀ | نو اوخوزيږي | او اوپړسيږي | او زرغون کړي

نو کله چې مونږ په هغې اوبه راوروؤ | نو راويښه شي | او زرغونه شي | اودهر قسم

مِنْ كُلِّ زَوْجٍۭ بَهِيجٍ ۝ ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ

دهر قسم | بوټو ښائيستو نه | دا کار | په سبب ددې چې بيشکه | الله | هم هغه حق دي |

ښائسته شينکئ راوټوکوي | داځکه چې الله ﷻ حق دي | اوهم هغه پخپله

وَأَنَّهُ يُحْيِ الْمَوْتَىٰ وَأَنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝ وَأَنَّ

او بيشکه هغه | ژوندي کوی | مړي | او بيشکه هغه | په هر څيز باند | قادر دي | او بيشکه

مړو کې ساه اچوی | اوهغه په هر څيز باندې قدرت لري | اودا [ځکه] چې

السَّاعَةَ آتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا وَأَنَّ اللَّهَ يَبْعَثُ

قيامت | راتلونکې دې | نشته هيڅ شك | په راتلودهغې کښې | او بيشکه چې الله | به راژوندی کوی

قيامت راتلونکې دې | په دې کښې هيڅ شک نشته | اوالله ﷻ به په قبرونو کښې پراته مړي

مَنْ فِي الْقُبُورِ ۝ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُجَادِلُ

هغه خوك | چې په قبرونو کښی دی | او ځينی دخلقو نه | هغه خوك دی | چې جگړه کوی

يوځل بيا راژوندی کوی | اوپه خلقو کښې بعضې داسې هم شته | چې دالله ﷻ په باره کښې

فِي اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى وَلَا كِتَابٍ مُّنِيرٍ ۝ ثَانِيَ

په باره دالله کښی | بغير دعلم نه | او بغير دهدايت نه | او بغير دکتاب روښانه نه | تا وونکې وي

بې دڅه علم نه اوبې د څه دليل نه اوبې د يوروښانه کتاب نه جگړې کوی |.............. په تکبر سره

عِطْفِهِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ ۭ لَهُ فِي الدُّنْيَا

ډډې خپلې لره | دپاره ددې چې بې لارې کړی خلق | دالله دلارې نه | دپاره دهغه | په دنيا کښی

څټ گرځوی |........... چې [خلق] دالله ﷻ دلارې نه گمراه کړي | داسې بنده دپاره په دنيا کښې

خِزْيٌ وَنُذِيقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَذَابَ الْحَرِيقِ ۝

شرمندگی ده | اواوبه څکوؤ مونږ هغه ته مزه | په ورځ دقيامت | دعذاب سوزونکی |

هم رسوائی ده | او دقيامت په ورځ به مونږ دوئ ته د سوزونکی عذاب مزه اوڅکوو

ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدَاكَ وَأَنَّ اللَّهَ

دا عذاب | په سبب دهغې عمل دې | چې مخکښی ليږلي وو | لاسونو ستا | او بيشکه چې الله |

دادهغه عملونو سزا ده | چې تا وړاندې ليږلی وو | اوالله ﷻ په خپلو بندگانو چرې هم

| لَيْسَ | بِظَلَّامٍ | لِّلْعَبِيدِ ﴿١٠﴾ |
|---|---|---|
| نه دي | ظلم کونکي | په بندګانو [خپلو] باندي |
| ظلم نه کوی | | |

**آسان ترجمه قرآن**

او په دې خلقو کښې بعض داسې دی چه د الله پاک په باره کښې بغير د علم نه جهګړې کوی، او هغه سرکش شيطان پسې روان شی. چه دچا په تقدير کښې دا ليکلې شوې دی چه څوک هم هغه دوست جوړ کړی، نو هغه به هغه لره ګمراه کړی، او هغه به د بليدونکی دوزخ د عذاب طرف ته بوځی. اې خلقوا که ستاسو د دوباره ژوندی کيدو په باره کښې څه شک وی نو (لږ سوچ اوکړئ) مونږ تاسو د خاورې نه پيدا کړی يئ بيا د نطفې نه، بيا د چکه وينې نه، بيا د غوښې د يوې ټکړې نه چه (کله) پوره جوړ شی، او (کله) پوره جوړ نه شی، چه تاسو ته ستاسو (حقيقت) ښکاره بيان کړی، او مونږ (تاسو) د ميندو په خيټو کښې چه ترڅو پورې غواړو د يوې مقرر مودې پورې پاتې کوو، بيا تاسو د يوماشوم په شکل کښې بهر راولو بيا (تاسو پالو) چه تاسو خپل پوره عمر ته اورسيږئ، او په تاسو کښې بعض هغه دی کوم چه (مخکښې) د دنيا نه اوچت کړې شی او هم په تاسو کښې بعض هغه وی کوم چه بدترين عمر (يعنی انتهائی بوډاتوب) ته واپس کړې شی، ترڅو چه هغه دهرڅه پيژندلو نه پس هم په هيڅ نه پوهيږی. او ته به ګورې چه زمکه به اوچه شوې وی، بيا چه کله مونږ په هغې باندې اوبه راوروو نو هغه په حرکت کښې راځی، او په هغې کښې غټيدل (بوګه والې) پيدا کيږی، او هغه هر قسم مزيدار څيزونه راټوکوی دا هرڅه په دې وجه دی چه د الله پاک وجود برحق دې او هم هغه په مړو کښې ساه اچوی، او هغه په هرڅيز باندې مکمل قدرت لری، او په دې وجه چه قيامت راتلونکې دې، چه په هغې کښې هيڅ شک نشته، او په دې وجه چه الله پاک به هغه ټول خلق دوباره ژوندی کوی کوم چه په قبرونو کښې دی او په خلقو کښې څه خلق داسې دی چه د الله پاک په باره کښې جهګړې کوی، حال دا چه هغوی سره نه علم شته، نه هدايت او نه رڼرا وړکونکې کتاب. هغوی په تکبر سره اعراض کونکی دی، چه نور خلق هم د الله پاک د لارې نه ګمراه کړی دهم داسې انسان دپاره په دنيا کښې رسوائی ده، او د قيامت په ورځ به مونږ هغه ته د سوزونکی اور مزه ور اوڅکوو (چه) دا ستا د هغه بدو عملونو بدله ده کوم چه ستا لاسونو وړاندې راليږلې وو، او دا خبره فيصله شوې ده چه الله پاک په بندګانو باندې ظلم کونکې نه دې.

**خلاصه تفسير**

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِى اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ [ او څنې خلق داسې دی چه دالله تعالى په باره کښې ] يعنی د هغه ذات يا صفتونو يا کارونو متعلق [ بې دپوهې نه جګړې کوی ﴿وَيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطٰنٍ مَّرِيْدٍ﴾ او په هر شيطان سرکش پسې کيږی ] يعنی دګمراهی قابليت ئې داسې دې چه کوم شيطان ئې کوم طرف ته لمسوی دهغه په لمسه کښې راځی پس په داسې سړی کښې انتهائی درجه ګمراهی ده چه په دهٔ د هر شيطان لاس رسيږی ﴿كُتِبَ عَلَيْهِ اَنَّهٗ مَنْ تَوَلَّاهُ﴾ [ د کوم په نسبت ] چه دالله تعالى دطرف نه [ دا خبره ليکلې شوې ده ] او مقرر شوې ده [ چه کوم سړې ددهٔ سره تعلق ساتی ] يعنی تابعداری ئې کوی ﴿فَاَنَّهٗ يُضِلُّهٗ﴾ [ نو دهغه کار دادې چه هغه دهٔ لره ] دحقې

لارې نه [ بې لارې کوی ﴿وَيَهْدِيهِ إِلَىٰ عَذَابِ السَّعِيرِ﴾ او دهٔ ته د دوزخ دعذاب لار ښائی ] وړاندې دې جګړه کونکوته خطاب دې چه ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ﴾ [ اے خلقو ﴿إِن كُنتُمْ فِي رَيْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ﴾ که تاسو ] دقیامت په ورځ [ دوباره ژوندی کیدو ] دامکان [ نه په شك کښې يئ نو] لږ شان په راتلونکی مضمون کښې غور وکړئ چه شك مو لرې شی او هغه دا چه ﴿فَإِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن تُرَابٍ﴾ [ مونږ] اول وار [ تاسولره دخاوړې نه جوړل کړ ] ځکه چه خوراك دکوم نه چه نطفه جوړيږی اول دعناصرونه پيداکيږی چه يو جزء په کښې دخاوړې هم دې ﴿ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ﴾ [ بيا دنطفې نه ] کوم چه دخوراك نه پيدا کيږی ﴿ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ﴾ [ بيا دوينې دټکړې نه ] چه په نطفه کښې په سختئ او سرخئ راتلو سره جوړيږی ﴿ثُمَّ مِن مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ﴾ [ بيا دغوښې ټکړې نه ] کله چه ددغې وينې د زياتې سختيدونه جوړيږی [چه] ځنې [ پوره وی] چه پوره اندامونه ئ جوړشی [ او] ځنې ﴿وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ﴾ [ نیمګړی هم ] وی چه ځنې اندامونه ئ ناقص پاتې شی داپه داسې ساخت او ترتيب او تفاوت سره ئ ځکه جوړکړل ﴿لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ﴾ [ چه مونږ تاسو ته ] خپل قدرت [ ظاهرکړو] او په دې سره دابښکاره خبره ده چه هغه په دوباره پيدا کولو هم قادر دې [ او] تتمه ددې مضمون داده چه په دې سره نور زيات قدرت ظاهريږی چه ﴿وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ﴾ [ مونږ] دمور [ په رحم کښې کومې ] نطفې [ لره غواړو ﴿إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ ديوې مقررې نيټې ] يعنی دحمل دپيدا کيدو تر وخته [پورې ساتو] او کومې لره چه پاتې کول نه غواړو د هغې اسقاط وشی ﴿ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا﴾ [ بيا] ددې مقررې نيټې نه پس [مونږ تاسو لره بچی ] دمور دګيډې نه [ بهر راوباسو بيا] ددې نه پس درې قسمونه شی يو قسم داچه په تاسو کښې ځنو لره تر ځوانئ پورې مهلت ورکوو ﴿ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ﴾ [ چه تاسو خپلې دځوانئ پوره ] عمر [ته ورسيږئ ﴿وَمِنكُم مَّن﴾ او ځنې په تاسو کښې هغه هم دی کوم چه ] دځوانئ نه وړاندې ﴿يُتَوَفَّىٰ﴾ [مړهٔ شی] دا دويم قسم شو ﴿وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ﴾ [ او ځنې په تاسو کښې هغه دی کوم چه ارذل عمر] يعنی زيات زوړ والی [ ته رسولې شی ﴿لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِن بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا﴾ چه ددې اثر دادې چه ديوشی نه سره ددې چه خبردار وی بيا ناخبره شی ] لکه د اکثرو بوډاګانو دا حال ليدې شی چه اوس به ورته يو خبره وښائ او اوس به ئ بيا تپوس کوی دا دريم قسم شو دا ټول حالات هم دالله تعالی دعظيم قدرت نښې دی يو استدلال خو دا وو [ او] وړاندې بل استدلال دې چه ﴿وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً﴾ [ اے مخاطبه ته زمکې لره وينې چه اوچه ] پرته [ وی ﴿فَإِذَا أَنزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ﴾ بيا کله چه مونږ په دې اوبه وورو وو نو دغه راوپړسيږی او شنه شی او ﴿وَأَنبَتَتْ مِن كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ﴾ د هر قسم ] يعنی قسمونو [ ښائسته بوټی په کښې راپيدا شی ] پس دا هم دليل دې دکامل قدرت وړاندې استدلال لره دنور واضحه کولو دپاره د ذکرشوو تصرفاتو وجه او حکمت بيان فرمائی يعنی [ دا] چه بره دواړو استدلالونو په ضمن کښې چه د ذکر شوو څيزونو ايجاد او اظهار ذکر شو ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ﴾ دا ټول [ په دې سبب سره وشو چه صرف دالله تعالی ذات يو کامله هستی ده ] داخوئ ذاتی کمال شو ﴿وَأَنَّهُ يُحْيِي الْمَوْتَىٰ﴾ [ او هغه بې روحو لره روح ورکوونکې دې ] دائ فعلی کمال دې ﴿وَأَنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ [ او هغه په هر څه قادر دې ] دائ وصفی کمال دې او دا درې واړه کارونه په جمع د ذکر شوو کارونو علتونه دی ځکه چه په دې درې واړو کمالونو کښې که يو هم غيرمتحقق وې نو ايجاد به نه وو شوې چنانچه ظاهره ده [

او] دارنګ په دې سبب سره وشو چه ﴿وَأَنَّ السَّاعَةَ آتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا﴾ [قيامت راتلونکې دې په دې کښې يوه ذره شک نشته ﴿وَأَنَّ اللَّهَ يَبْعَثُ مَن فِي الْقُبُورِ﴾ او الله تعالى به ] په قيامت کښې [قبرونو والولره دوباره پيدا کړی] دا د ذکر شوو کارونو حکمت دې يعنی مونږ دغه ذکر شوی تصرفات په دې وجه ظاهر کړل چه په دې کښې منجمله دټولو حکمتونو نه يو حکمت او اصل مقصد دا وو چه مونږ ته دقيامت راوستل او مړولره دوباره ژوندی کول منظور وو نو په دې تصرفاتو کولو سره به ددغې امکان خلقو ته ظاهرشي پس دمذکوره څيزونو درې علتونه او دوه حکمتونه ذکر شول او سبب په عامه معنی سره ټولو دپاره عام شو په دې وجه د[بأن الله بأسبية] په ټولو داخله شوه [او] تردې پورې خو د جګړې کوونکو دګمراهئ او د دوی په رد کښې استدلال ذکر وو وړاندې ددوی نور دګمراه کولو او خپلې ګمراهئ او نور لره دګمراه کولو دعظيم وبال ذکر دې ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَن يُجَادِلُ فِي اللَّهِ﴾ [ځنې دخلقو نه داسې دی چه دالله تعالى په باره کښې ] يعنی د هغه په ذات يا صفتونو يا په تيرو کارونو کښې ﴿بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ [بغير پوهې ] يعنی علم ضروری [نه ﴿وَلَا هُدًى﴾ او بغير د دليل ] يعنی علم استدلال عقلی [نه ﴿وَلَا كِتَابٍ مُّنِيرٍ﴾ او بغير دځه روښانه کتاب ] يعنی علم استدلالی نقلي [نه ] او دنور تحقيق کوونکو د اتباع او تقليدنه ﴿ثَانِيَ عِطْفِهِ﴾ [په تکبر سره جګړې کوی ﴿لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ﴾ ددې دپاره چه ] نورو خلقو لره هم [ دالله تعالى دلارې نه ] يعنی حق دين نه [ بې لارې کړی ﴿لَهُ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ﴾ دداسې سړې دپاره رسوائی ده په دنيا کښې ] خواه هر قسم رسوائی چه وی چنانچه ځنې ګمراهان په قتل او قيد وغيره سره ذليله کيږی ځنې داهل حقو سره په مناظره کښې مغلوب شی او دعاقلانو په نظر کښې بې عزته شی ﴿وَنُذِيقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَذَابَ الْحَرِيقِ﴾ [او دقيامت په ورځ به مونږ دوی ته دسيزونکې اور عذاب وڅکوو ] او دوی ته به ووئيلې شی ﴿ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدَاكَ﴾ [ چه دا ستاسو دلاسونو دکړوکارونو بدله ده ﴿وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ﴾ او دا خبره ثابته ده چه الله تعالى په ] خپلو [ بندګانو ظلم کوونکې نه دې ] پس تاسو له بې دجرم نه سزا نه درکړې شوه،

## معارف او مسائل

[وَمِنَ النَّاسِ مَن يُجَادِلُ فِي اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ] دا آيت مبارک د يو داسې سړې باره کښې نازل شو چې هغه به هر وخت جګړې کولې ، فرښتو ته به ئې د الله ﷻ لونړه وئيل او قرآن عظيم الشان ته به ئې د پخوانو خلقو افسانې وئيلې . د قيامت او د دوباره ژوند نه منکر وو. [ابن ابی حاتم عن مالک ، مظهری] [1]

اګر چې دا آيت مبارک ددغې خاص سړی باره کښې نازل شو خو حکم ئې دهغې ټولو دپاره عام دې چې داقسم عادتونه او خويونه په کښې موندې شي .

**د مور په خيټه کښې د انسان د پيدا کيدو درجې او مختلف حالات:** [فَإِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن تُرَابٍ] دې آيت مبارک کښې د انسان د پيدا کيدو د هغه مختلفې درجې بيان شوی دی کومې چې د مور په خيټه کښې پرې تيريږی . ددې تفصيل د صحيح بخاری په يو حديث پاک کښې راغلې دې کوم چې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې . هغوئ رضي الله عنه فرمائيلی دی چې رسول کريم ﷺ

[1] تفسير المظهري[ج:٦ص:٢٥٣]وتفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[١٤٦٣٠]

او فرمائیل او هغوئ ﷺ ربنتیا ویونکی دی او ربنتونې کنړلې شی ، چې تر څلویښتو پورې د انسان ماده د مور په رحم کښې پرته وی بیا څلویښت ورځې پس ترې چکه وینه جوړه شی بیا هم په څلویښتو ورځو کښې هغې نه غوښه جوړه شی بیا د الله ﷻ د طرفه یوه فرښته راؤلیږلای شی چې په کښې روح پوک وهی او دهغه متعلق څلور خبرې دغه وخت په فرښتې باندې لیکلې شی ، اول دا عمر به ئې څومره وی ؟ دویم دا چې روزی به ئې څومره وی ؟ دریم دا چې څه عمل به کوی ؟ څلورم دا چې په آخری انجام کښې به دا شقی اوبدبخت وی او که سعید او نیک بخت به وی [قرطبی].[1]

بل یو روایت کښې ابن ابی حاتم او ابن جریر د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه په روایت داسې نقل کړې دې چې کله په نطفه باندې د څو ورځو تیریدو نه پس مضغه یعنی غوښه شی نو هغه وخت هغه فرښته د الله ﷻ نه تپوس اوکړی کومه چې د هر انسان په پیدا کولو باندې مقرره د شوې وی چې [یارب مُخَلَّقَةٌ اوغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ] [ اې ربه ددې مضغې نه انسان پیدا کول ستا په تقدیر کی شته او که نشته] که الله ﷻ په جواب کښې اوفرمائیی چې دا به غیر مخلقه وی نو رحم ئې ګذار کړی او نورو مرتبو ته نشی رسیدې اوکه حکم ورته اوشی چې دا به مخلقه وی نو بیا ترې فرښته تپوس کوی چې هلک به وی او که جینئ ،نیک بخت به وی که بدبخت.دده عمربه څومره وی،عمل به ئې څنګه وی اوچرته به مرکیږی؟ [داټول څیزونه دغه وخت فرښتې ته اوخودلې شی ،ابن کثیر][2] د [مُخَلَّقَةٍ] او [غَيْرِ مُخَلَّقَةٍ] دا تفسیر د ابن عباس رضي الله عنه نه هم منقول دې [قرطبی].[3]

ددې بیان شوی حدیث نه د [مُخَلَّقَةٍ] او [غَيْرِ مُخَلَّقَةٍ] تفسیر دا معلوم شو چې د کومې نطفې نه انسان پیدا کیدل مقدر وی هغه [مُخَلَّقَةٍ] د او د کومې نه چې انسان پیدا کیدل مقدر نه وی بلکه دهغې ضائع کیدل او غورځیدل ئې مقدر وی هغه [غَيْرِ مُخَلَّقَةٍ] ده . او ځینې مفسرینو ئې دا تفسیر کوی چې د کوم ماشوم مکمل پیدا کول وی ټول اندامونه صحیح سالم او په سمون سره وی هغه [مُخَلَّقَةٍ] او چې اندامونه ئې ځینې نیمګړی یا قد ، رنګ وغیره ئې خپل مینځ کښې بې سمونه وی ، هغه [غَيْرِ مُخَلَّقَةٍ] ده ، د تفسیر په خلاصه کښې هم دا تفسیر اخستې شوی دې ، والله سبحانه وتعالی اعلم.

د [ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا] بیا وروسته د مور د خیټې نه تاسو د یو کمزوری ماشوم په شکل کښې راؤباسو چې بدن مو هم کمزورې وی ، آؤریدل او لیدل مو هم کمزوری وی ، په حواسو ، عقلونو ، حرکتونو او نیولو کښې مو هم طاقت نه وی ، غرض دا چې ټول طاقتونه مو ډیر زیات ضعیف او کمزوری وی ، بیا درجه په درجه په دې کښې وده ورکولې شی تر دې چې پوره طاقت ته اورسیږی .

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١٢ص:٧]و صحيح البخاري كتاب بدء الخلق ،باب ذ كر الملائكة [ج:١ص:٤٥٦]

[2] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:٣٩٦]و ابن ابي حاتم تحت هذه الآية رقم الحديث [١٤٦٣٥] وفتح الباري رقم الحديث :[٣٠٧ ج:١ ص:٤٩٧]

[3] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١٢ص:٩]

[ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ] هم دا معنی ده د لفظ [أَشُدَّ] . د شدة جمع ده ، څنګه چې لفظ د انعم د نعمة جمع ده ، مطلب دا چې طاقت مو درجه په درجه تر هغې زیاتولې شي تر څو چې مکمل شئ ا تاسو ځوانئ ته او رسئ.
[أَرْذَلِ الْعُمُرِ] یعنی هغه عمر چې د انسان په عقل ، شعور او حواسو کښې خلل راشي ، رسول کریم ﷺ دداسې عمر نه پناه غوښتلې ده . د نسائی په حواله د سعد رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ به دا لاندې ذکر شوې دعا ډیره ډیره لوستله . او ددې حدیث پاک راوی سعد رضی الله عنه به دا دعا خپل اولاد ته ډیره ډیره یادوله ،هغه دعا داده ::
(۱) [اللهم انی اعوذبك من البخل واعوذبك من الجبن واعوذبك من ان اردالی ارذل العمر واعوذبك من فتنة الدنیا وعذاب القبر] [قرطبی] . (۲)

**د انسان د ابتدائي پیدائش نه پس دعمر مختلف مراحل او حالات::** د مسند احمد او مسند ابی یعلی حواله د انس بن مالک نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې څومره پورې ماشوم بالغ شوی نه وی نو دهغه نیک عمل د پلار یا دمور پلار دواړو په حساب کښې لیکلې شي. اود هغه کړې خراب عمل نه دهغه په عمل نامنه کښې اونه ئې د مور پلار په عمل نامه کښې لیکلې شي. کله چې بالغ شي نو د حساب قلم ددهٔ دپاره جاری شي. او دهٔ سره موجود اوسېدونکو دوؤ فرښتو ته حکم ورکړې شي چې ددهٔ حفاظت دې کوی او طاقت دې ورته وررسوی. کله چې د اسلام په حالت کښې د څلویښتو کالو عمر ته ور اورسی نو الله ﷻ هغه د درې قسمه بیمارو څخه محفوظ کوی یعنی لیونتوب ، جذام او برص څخه ، کله چې پنځوسو کالو ته اورسی نو الله ﷻ دهغه حساب سپک کړی ، کله چې شپیتو کالوته اورسي نو الله ﷻ ورته خپل ځان ته د ماتې کولو توفیق ورکړی ، کله چې عمر ئې اویا کاله شي نو دآسمان ټول مخلوق ورسره مینه شروع کړی ، کله چې عمر اتیاؤ کالو ته اورسی نو الله تعالی ئې نیکی لیکی او بد نه. کله چې عمر ئې نوی کالو ته اورسی نو الله ﷻ ئې ټولې وړاندې روستو ګناهونه معاف کوی او ورته د خپل کور د خلقو په باره کښې د شفاعت کولو حق ورکړی ، او شفاعت ئ قبلوی او دهغه لقب امین الله او اسیر الله فی الارض شی[یعنی په زمکه کښې دالله قیدی] . ځکه چې په دې عمر کښې عام طور د انسان طاقت ختم شي ، هیڅ څیز ورته خوند نه ورکوی ، او د قیدی په حیثیت سره عمر تیروی ، او کله چې زیات ذلیل عمر ته اورسي نو دهغه ،هغه ټول نیک عملونه ئې په عمل نامه کښې لیکلې شي کوم بهٔ ئې چې د خپلې روغتیا او طاقت په زمانه کښې کول خو ددهٔ کړې ګناه دسره نشی لیکلې . (۳)
دا روایت حافظ ابن کثیر رحمه الله د مسند ابی یعلی نه نقل کړو او وې فرمائیل چې [هذاحدیث غریب جدا وفیه نکارة شدیدة] [ دا حدیث پاک غریب دې او په دې کښې سخت نکارت دې ،] بیا ئې اوفرمائیل چې:

(۱) ترجمه:- اې الله جل شانهٔ! زه تاسره پناه غواړم دبخل نه ، دبزدلئ نه ، او تاسره پناه غواړم ددې چې ناکاره عمر ته اورسیږم ، او زه تاسره پناه غواړم د دنیا دفتنې نه او د قبر د عذاب نه.
(۲) تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۱۲] وسنن النسائی کتاب الإستعاذة ، باب الإستعاذة من البخل [ج:۲، ص: ۳۱۳]
(۳) مسند احمد رقم الحدیث:[۵۷۵۹] ، مسند عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ، ومسند ابي یعلي الموصلي رقم الحدیث [٤١٣٦]

[ومع هذا قد رواه الامام احمد بن حنبل في مسنده موقوفا ومرفوعا] [يعنى اګر چې دا غريب دي او په دي کښې نکارت دي خو باوجود ددې دا امام احمد رحمه الله پخپل مسند کښې دموقوفا او مرفوعا په دواړو طريقو سره روايت کړې دې]. بيا ابن کثير رحمه الله د مسند احمد نه دغه دواړه قسمه روايتونه نقل کړي دی چې مضمون ئې تقريبا هم هغه دې کوم چې د مسند ابى يعلى په حواله لږ شان وړاندې نقل شو .([1]) والله اعلم.

[ثَانِيَ عِطْفِهٖ] د عطف معنى ډډه او طرف دې ، طرف کوږنى نه مراد نامنونکې دې.

| |
|---|
| وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ |
| او څينى دخلقو نه \| هغه څوك دى \| چې بندګى كوى دالله |
| او په خلقو کښې بعضې هغه هم شته \| چې دالله عبادت [دشک شبهې] په غاړه [ولاړ] کوى |
| عَلٰى حَرْفٍ ۚ فَاِنْ اَصَابَهٗ خَيْرُ اِطْمَاَنَّ بِهٖ ۚ وَاِنْ اَصَابَتْهُ |
| په غاړه باند \| نو كه اورسيږى ده ته \| فائده \| نو مطمئن شى په هغې باند \| او كه اورسيږى ده ته |
| [داسې کس ته] که چرې فائده اورسيږى \| نو هغه ددې نه مطمئن شى \| او كه چرې په څه مصيبت كښې |
| فِتْنَةٌ انْقَلَبَ عَلٰى وَجْهِهٖ ۚ خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةَ ۭ ذٰلِكَ |
| مصيبت \| نو واپس اوګرځى \| په مخ خپل باند \| نقصانى شو دې په دنيا \| او په آخرت کښې \| دادې |
| اخته شى \| نو مخ اوچت كړى \| [او دكفر طرفته] بيرته ګرځى \| نو ده په دنيا کښې او آخرت دواړو کښې نقصان |
| هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ⑪ يَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَضُرُّهٗ |
| هغه نقصان \| ښكاره \| رابلى هغه \| ماسوا دالله نه \| هغه څه \| چې نه ضرر رسولې شى هغه ته |
| بيامونډو \| هم دا ښکاره نقصان دې \| دوى دالله ﷻ نه سوا داسې [معبودان] رابلى \| چې نه ده ته نقصان |
| وَمَا لَا يَنْفَعُهٗ ۭ ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ ⑫ يَدْعُوْا |
| او هغه څه \| چې نه نفع رسولې شى هغه ته \| داده \| هغه ګمراهى \| لرې \| عبادت كوى هغه |
| رسولې شى \| او نه ورته نفع رسولې شى \| هم دغه يوه لويه ګمراهى ده \| هغه داسې [ددروغو معبود] بلى |
| لَمَنْ ضَرُّهٗٓ اَقْرَبُ مِنْ نَّفْعِهٖ ۭ لَبِئْسَ الْمَوْلٰى |
| دهغه چا \| چې نقصان دهغه \| ډير نزدې دې \| دفائدې دهغه نه \| ډير بد دې \| دا مددګار \| |
| دكوم نقصان چې ددهٔ دنفعې نه زيات نزدې دې \| ..........بې كاره مولى دې |
| وَلَبِئْسَ الْعَشِيْرُ ⑬ |
| او ډير بد دې \| دا ملګرې \| |
| او داسې ملګرې بد ملګرې دې \| |

[1]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص: ٣٩٧]

## آسان ترجمه قرآن

او په خلقو کښې هغه سړي هم دي چه په يو غاړه باندې د الله پاک عبادت کوي پس که هغه ته (په دنيا کښې) څه فائده ورسيږي نو هغه پرې مطمئن شي، او که هغه ته څه ازميښت پيښ شي نو هغه مخ اړولو سره (د کفر طرف ته) روان شي . داسې انسان دنيا او آخرت دواړه بائيلل، هم دا خو ښکاره تاوان دې هغوی د الله پاک نه سوا د هغه څيزونو عبادت کوي چه نه ورته نقصان رسولې شي او نه څه فائده ورکولې شي. هم دا خو ګمراهي ده لرې دوی داسې (د دروغو خدائې) رابلي چه د هغه نقصان د هغه د فائدې نه زيات نزدې دې . داسې مددګار هم څومره بد دې او داسې ملګرې هم څومره بد،

## خلاصه تفسير

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللهَ عَلٰى حَرْفٍ﴾ [ اوځنې خلق د الله تعالى عبادت ] په داسې طورکوی لکه څوك چه د يو څيز [کناره باند] ولاړ وی او په موقع موندو سره تلوته تيار وی ﴿فَاِنْ اَصَابَهٗ خَيْرُ اطْمَاَنَّ بِهٖ﴾ [ بيا که ده ته څه ] دنيوی [ نفع ورسيږی نو ددې په وجه سره ] په ظاهره [ قرار بيامومی ﴿وَاِنْ اَصَابَتْهُ فِتْنَةُ انْقَلَبَ عَلٰى وَجْهِهٖ﴾ اوکه په ده څه ازمائش راشی نو مخ وچت کړی ] کفر طرف ته [ روان شی ] چه په دې سره ئې ﴿خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةَ﴾ [ دنيا اواخرت دواړه يې تاوانی شی ﴿ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ﴾ دادې ښکاره نقصان ] ددنيا نقصان خو په دنيا وی ازمائش کوم چه په څه مصيبت سره وی دغه ښکاره ده او داخرت نقصان ئې داشو چه اسلام او [خدائې لره ئې پريښودو او ﴿يَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللهِ مَا﴾ دداسې شی په عبادت شروع شو کوم چه ] دومره عاجز اوبې وسه دې چه ﴿لَا يَضُرُّهٗ وَمَا لَا يَنْفَعُهٗ﴾ [ نه ده ته نقصان رسولې شی او نه نفع رسولې شی ] يعنی که عبادت ئې نه کوی نو دڅه نقصان رسولو اوکه کوی ئې نو دنفع رسولو څه قدرت ئې نشته ظاهره خبره ده چه قادر مطلق لره پريښودل او داسې بې وسه څيز اختياورل سوده تاوان دی ﴿ذٰلِكَ هُوَ الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ﴾ [ دا انتهائی درجه ګمراهی ده ] صرف دانه چه د دغې په عبادت سره څه نفع نه رسيږی بلکه البته ضرر او نقصان دې څکه چه ﴿يَدْعُوْا لَمَنْ ضَرُّهٗۤ اَقْرَبُ مِنْ نَّفْعِهٖ﴾ [ هغه دداسې څيز عبادت کوی چه دهغه ضرر د هغه دنفع نه زيات نزدې دې ﴿لَبِئْسَ الْمَوْلٰى وَلَبِئْسَ الْعَشِيْرُ﴾ داسې کارساز هم ناکاره او داسې ملګرې هم ناکاره ] کوم چه په هيڅ شان په هيڅ حال په هيڅ کارنه راځی چه مولی او اقا جوړ کړې شی يا دوست اوملګرې جوړ کړې شی په هيڅ حال کښې ددهٔ نه څه نفع نشته

## معارف او مسائل

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللهَ عَلٰى حَرْفٍ﴾ بخاری او ابن ابی حاتم د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کړې دې چې کله نبی کريم ﷺ هجرت اوفرمائيلو او په مدينه منوره کښې ئې قيام اوکړو نو ځينې داسې خلق به هم د ايمان راوړلو په غرض ورته راتلل چې ايمان به ئې پوخ نه وو . که د اسلام قبلولو څخه روستو به ئې مال او اولاد کښې څه زياتې اوشو نو دې دين ته به ئې ښه وئيل او که داسې به اونشو نو دې دين ته به ئې بد وئيل [۱] نو هم دداسې خلقو باره کښې دا

---

[۱] تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث :[١٤٦٥٣،ج:٩ ص:٣٥٩]و صحيح البخاري كتاب التفسير تفسير سورة الحج باب ومن الناس من يعبدالله على حرف إلخ [ج:٢ص:٦٩٤].

آیت مبارك نازل شو چې دا خلق په يوه غاړه ولاړ دي كه دوئ د ايمان څخه روستو دنيوي آرام او مال سامان ملاؤ شو نو اسلام باندې به پاتې شي او كه د آزميښت په ډول به په تكليف او پريشانئ كښې اخته شو نو دين به ئې پرېښودو.

إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا

| بيشكه الله | دا خلوي | هغه كسان | چې ايمان ئې راوړو |

| بيشكه الله ﷻ به هغه خلق چې ايمان ئې راوړي دي

وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

او عملونه ئې اوكړل | نيك نيك | داسې باغونو ته | چې بهيږي به | لاندې دهغې نه | نهرونه

او نيك كارونه ئې كوي داسې باغونو ته داخل كړي | چې لاندې به ترې ولې بهيږي

إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ ۝ مَنْ كَانَ يَظُنُّ

بيشكه الله | كوي | هغه څه | چې غواړي ئې هغه | هغه څوك | چې گمان لري |

بيشكه الله چې څه غواړي هغه كوي | څوك چې دا خيال كوي چې الله ﷻ به دنيا

أَنْ لَنْ يَنْصُرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ فَلْيَمْدُدْ

چې هر گز به امداداونه كړي دهغه سره الله | په دنيا كښې | او په آخرت كښې | نو پكار دي چې اورسي

او آخرت كښې دخپل پيغمبر مدد نه كوي | نو هغه له پكار دي چې يوه رسئ تر آسمانه

بِسَبَبٍ إِلَى السَّمَاءِ ثُمَّ لْيَقْطَعْ فَلْيَنْظُرْ هَلْ يُذْهِبَنَّ

په يوه ذريعه رسئ سره | آسمان ته | بيا | دپرېكړي [دغه رسئ] | بيا داوگوري | چې آيا لرې كولې شي

پورې اوغزوي | بيا دې اوخيژي او | دوحي سلسله دې پرېكړي | بيا دې اوگوري چې آيا دهغه دا طريقه

كَيْدُهُ مَا يَغِيظُ ۝ وَكَذَٰلِكَ أَنْزَلْنَاهُ آيَاتٍ

تدبير دده | هغه څيز لره | چې غصه كوي دې | او دارنگې | نازل كړي دي مونږ دا قرآن | آيتونه

هغه څيز ختمولې شي چې دې ئې په غصه كړي دي؟ | اوهم دغه شان مونږ دا [قرآن] د ښكاره ښنو په صورت

بَيِّنَاتٍ وَأَنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يُرِيدُ ۝

واضحه | او بيشكه الله | هدايت كوي | هغه چاته | چې اراده اوكړي هغه | |

كښې نازل كړي دي | اوچاته چې الله او غواړي هدايت ورته كوي |

## آسان ترجمه قرآن

كومو خلقو چه ايمان راوړې دې، او هغوی نيک اعمال كړی دی، الله پاک به هغوی يقيناً داسې باغونو ته داخل كړی چه د هغې د لاندې به نهرونه بهيږی. يقيناً الله پاک هر هغه كار كوی چه اراده ئې اوكړی. دچا چه داگمان كولو چه الله پاک په دنيا او آخرت كښې د دې (پيغمبر) مدد نه كوی نو هغه دې د اسمان پورې يو رسئ ځوړولو نه پس رابطه پرې كړی، بيا دې اوگوری چه آيا د هغه تدبير دهغه غصه ختمولې شی او مونږ دا (قرآن) د ښكاره ښكاره نخښنو په صورت كښې هم داسې نازل كړې دې، او الله پاک چه چاته اوغواړی هدايت كوی.

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ [بيشكه الله تعالى داسې خلقو لره كوم چه ايمان راوړى او نيك كارونه وكړى] ﴿جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ دجنت [ داسې باغونوته داخلوى كړى دكومو لاند چه به نهرونه بهيږى] او الله تعالى كوم سړى يا قوم له چه څه ثواب يا عذاب وركول وغواړى نو څوك يې منع كوونكې نشته ځكه چه ﴿إِنَّ اللَّهَ﴾ [ الله تعالى ] قادر مطلق دى ﴿يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ﴾ [ چه څه اراده وكړى كوى يې ] او دكومو خلقو چه په دين حق كښې دجګړې كولو ذكر راغلې دې په راتلونكى ايت كښې دهغوئ دمحرومۍ او ناكامۍ بيان دې فرمائى ﴿مَن كَانَ يَظُنُّ﴾ [ كوم سړې چه [ نبى كريم ﷺ سره مخالفت او دښمنى لرى [ددې خبرې خيال ساتى چه] زه به غالب شم او دده ددين ترقى به منع كړم او دا چه ﴿أَن لَّن يَنصُرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ [ الله تعالى به] درسول الله ﷺ او دده ددين [ په دنيا او آخرت كښې مدد ونه كړى ﴿فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ إِلَى السَّمَاءِ﴾ نو ده له پكار دى چه يوه رسۍ اسمان ته وغزوى ] او د اسمان سره يې وتړى [ بيا] ددې رسۍ په ذريعه كه اسمان ته رسيدې شى نو ودرسيږى دې دپاره چه ﴿ثُمَّ لْيَقْطَعْ﴾ [ دې وحى لره دبندده كړى ] او ظاهره ده چه داسې هيڅوك نه شى كولې ﴿فَلْيَنظُرْ هَلْ يُذْهِبَنَّ كَيْدُهُ مَا يَغِيظُ﴾ [ نو بيا غور كول پكاردى ايا دده په ] دې [ تدبير سره ] دكوم نه چه دې بلكل عاجز دې [دده غصه او غضب څه شى لره ] يعنى وحى لره [ موقوف كولې شى ﴿وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَاهُ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ﴾ او مونږ دې ] قرآن لره داسې نازل كړې دى ] چه په دې كښې زمونږ د ارادې او قدرت نه سوا دهيڅ دخل نشته [ چه په دې كښې ښكاره ښكاره دليلونه ] دحق دتعين [دى ﴿وَأَنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَن يُرِيدُ﴾ او الله تعالى چا لره چه غواړى هدايت ورته كوى.

## معارف اومسائل

[مَن كَانَ يَظُنُّ] مقصد دادې چې د اسلام د لارې بندونكې عنادى غواړى چې الله ﷻ دې د خپل رسول ﷺ اودهغه د دين مدد اونكړى نو هغه دې ځان پوهه كړى چې داسې هله كيدې شى چې معاذ الله د رسول كريم ﷺ څخه دپيغمبرۍ مرتبه واخستې شى. او په هغوئ باندې وحى راتلل بند شى ځكه چې الله ﷻ چاته نبوت او رسالت وركوى نو هغه ته خپله وحى هم كوى او دهغه مدد په دنيا او آخرت كښې كوى اودا دالله ﷻ پخه وعده ده. نو عقلى لحاظ سره هم ددې خلاف كيدل نه دى پكار. بيا هم كه څوك نبى كريم ﷺ اوددوى ﷺ دين پرمختګ نه غواړى كه د هغه په وس كښې وى نو داسې تدبير كول پكار دې چې دا منصب نبوت ترې واخستې شى او د الله تعالى وحى بنده شى نود دې مضمون نه يې د فرض محال په عنوان سره دا شان تعبير كړې دې چې درسول كريم ﷺ څخه د وحى منقطع كولو كار كول غواړى. نوپه څه طريقه دې آسمان ته ورشى او وحى راتلل دې په پيغمبر ﷺ باندې بند كړى، او دا ښكاره خبره ده چې نه څوك داشان آسمان ته ختلې شى او نه دا ممكن دى او نه د الله ﷻ وحى ختمول ممكن دى،نوهركله چې داسې دسره كيدې نشى نوداسلام اوايمان خلاف د قهراوغصې نتيجه څه راوتې شى. داتفسير بالكل په درمنثوركښې د ابن زيد څخه روايت كړې شوې دې.[1]

[1] الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۱۲۶]

چې زما په نزد د ټولو څخه زيات غوره او صفا تفسير دې ، [بيان القرآن مع تسهيل] ([1])
قرطبي دا تفسير د ابي جعفر نحاس څخه نقل کړو او وې فرمائيل چې داد ټولو څخه زيات ښکلي تفسير دې او د ابن عباس رضي الله عنهما نه ئې هم دا تفسير نقل کړې دې ([2]) او ځينې حضراتو ددې آيت مبارک تفسير داسې کړې دې چې سماء نه مراد د خپل کور چت ئې دې ، په دې شان د ټول آيت مبارک مراد به داشي چې که يو عنادي جاهل دا خواهش لرې چې الله تعالى دې د خپل رسول ﷺ اودهغه ددين نه مدد نه کوى ، او اسلام ته په قهر ، غصه وى نو هغه دې پوهه شي چې دهغه دا مراد به هيچرې هم پوره نشي ، نو ددې بې وقوفئ ، د قهر ، غصې علاج هم دادې چې د خپل کور په چت کښې رسئ غوټه کړى په هغې دې ځان پانسى کړى او مړ دې شي [مظهرى و غيره]. ([3])

| إِنَّ الَّذِينَ | آمَنُوا | وَالَّذِينَ | هَادُوا | وَالصَّابِئِينَ | وَالنَّصَارَىٰ |
|---|---|---|---|---|---|
| بيشکه هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | او هغه کسان | چې يهوديان شو | او صابيان | او نصارى |
| بيشکه کوم خلق چې مومنان دى اوکوم چې يهوديان دى او صابيان او عيسايان دى | | | | | |

| وَالْمَجُوسَ | وَالَّذِينَ | أَشْرَكُوا | إِنَّ اللَّهَ | يَفْصِلُ | بَيْنَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اومجوسيان | او هغه کسان | چې شرك ئې اوکړو | بيشکه الله | فيصله به اوکړى | په منځ ددوئ کښې |
| اود اورعبادت ګذار دى او ځوک چې مشرکان دى الله ﷻ به دقيامت په ورځ ددې ټولو په مينځ | | | | | |

| يَوْمَ الْقِيَامَةِ | إِنَّ اللَّهَ | عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ | شَهِيدٌ | أَلَمْ تَرَ | أَنَّ اللَّهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| په ورځ دقيامت | بيشکه الله | په هر ځيز باند | نظر لرونکي دې | آيا نه وينې ته | چې بيشکه الله چې دې |
| کښې فيصله اوکړى الله ﷻ ته هر ځيز ښکاره دې آيا ته نه ګورې چې ټول الله ﷻ | | | | | |

| يَسْجُدُ | لَهُ | مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ | وَمَنْ | فِي الْأَرْضِ |
|---|---|---|---|---|
| سجده کوى هغه ته | هغه ټول | چې په آسمانونو کښې دى | او ځوک چې | په زمکه کښې دى |
| ته سجده [اطاعت] کوى اکوم مخلوقات چې په آسمانونو او زمکه کښې دى | | | | |

| وَالشَّمْسُ | وَالْقَمَرُ | وَالنُّجُومُ | وَالْجِبَالُ | وَالشَّجَرُ | وَالدَّوَابُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| او نمر | او سپوږمئ | او ستورى | او غرونه | او ونې | او ځناور |
| اونمر او سپوږمئ اوستورى اوغرونه او ونې او ځاروى | | | | | |

| وَكَثِيرٌ | مِنَ النَّاسِ | وَكَثِيرٌ | حَقَّ | عَلَيْهِ | الْعَذَابُ |
|---|---|---|---|---|---|
| او ډير | دخلقو نه | او ډير [هغه خلق هم] | چې ثابت شوې دې | په هغه باند | عذاب |
| اوډير انسانان هم سجده کوى اوډير په کښې داسې هم دى چې عذاب پرې ثابت شوې دې | | | | | |

[1]) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٧ ص:٦٥]
[2]) تفسير القرطبي [ ج:١٢ص:٢١]
[3]) تفسير المظهري[ج:٦ ص:٢٥٩]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ | فَمَا لَهٗ | مِنْ | مُّكْرِمٍ | اِنَّ اللّٰهَ |
| او هغه څوک چې ذليله ئې كړي الله | نو نشته | هغه لره | څوک عزت وركونكي | بيشكه الله |
| او څوک چې الله ﷻ ذليله كړي | نو هغه له څوک عزت وركونكي نشته | | | الله ﷻ |
| يَفْعَلُ | مَا يَشَآءُ ۩ | | | |
| كوي هغه | چې غواړي هغه | | | |
| چې څه غواړي نو هغه كوي | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

بيشكه كه مومنان وي يا يهوديان، صابيان وي يا نصرانيان او مجوسيان او ځا چه شرک اختيار كړې دي، الله پاک به د قيامت په ورځ د دې ټولو ترمينځه فيصله اوكړي. يقيناً الله پاک په هر څيز باندې گواه دې. آيا ته نه گورې چه الله پاک ته سجده كوي هغه ټول څيزونه چه په آسمانونو كښې دي او هغه ټول چه په زمكه كښې دي، او نمر او سپوږمۍ، او ستوري او غرونه، او ونې او ځاروي، او ډير انسانان هم، او ډير هغه هم دي چه په هغوى باندې عذاب فيصله شوې دې، او څوک چه الله پاک ذليل كړي، نو څوک هم نشته چه هغه ته عزت وركړې شي. يقيناً الله پاک هم هغه كوي چه څه اوغواړي.

## خلاصه تفسير

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالصّٰبِئِيْنَ وَالنَّصٰرٰى وَالْمَجُوْسَ﴾ [په دې كښې هيڅ شک نشته چه مسلمانان او يهوديان او صابئين او نصارا او مجوسيان ﴿وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا﴾ او مشركان ﴿اِنَّ اللّٰهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ الله تعالى به ددې ټولو په مينځ كښې په ورځ دقيامت] عملي [فيصله وكړي] چه مسلمانان به په جنت كښې او دكافرانو دا ټول قسمونه به په دوزخ كښې داخل كړي ﴿اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ﴾ [بيشكه الله تعالى دهر څه نه خبر دې] ﴿اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَسْجُدُ لَهٗ﴾ [اے مخاطبه ايا تاته دا خبره نه ده معلومه چه دالله تعالى په وړاندې] د خپل خپل حالت په مناسبت سره [ټول عاجزي كوي ﴿مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالنُّجُوْمُ وَالْجِبَالُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَآبُّ﴾ كوم څه چه په آسمانونو كښې دي او كوم څه چه په زمكه كښې دي او نمر او سپوږمۍ او ستوري او غرونه او ونې او ځاروي او] دټولو مخلوقاتو د تابعدار او فرمانبردار كيدو باوجود انسانان كوم چه په خاص درجه كښې عقل هم لري دا ټول په جمع تابعدار او فرمانبردار نه دي بلكه ﴿وَكَثِيْرٌ مِّنَ النَّاسِ﴾ [ډير] خو [بنيادم هم] فرمانبرداري او عاجزي كوي ﴿وَكَثِيْرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ﴾ [او ډيرداسې دي په كومو چه دعذاب استحقاق ثابت شوې دې او] ربنتيا خو داده چه ﴿وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ﴾ [كوم چالره الله تعالى ذليل كړي] چه دهدايت توفيق ورته اونه شي [هغه له هيڅوک عزت وركوونكې نشته] او ﴿اِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ﴾ [الله تعالى] ته اختيار دې په خپل حكمت سره [چه څه غواړي كوي].

## معارف او مسائل

رومبى آيت مبارک كښې ددنيا د ټولو قومونو، مؤمنانو، كافرانو، او بيا دكافرانو دمختلفو عقيدو د ډلو په باره كښې اوفرمائيلې شو چې الله ﷻ به ددې ټولو فيصله كوي او هغه د هر يو ظاهر، باطن، نه خبر دې، فيصله به څه وي؟ ددې بيان بيا بيا په قرآن عظيم الشان كښې

راغلي دي چي نيكانو مؤمنانو لره به تل دپاره نه ختميدونكي راحت وي او كافرانو دپاره به دهميشه عذاب وي ، په دويم آيت مبارك كښې دټولو مخلوقاتو خواه هغه ژوندي ساخستونكي وي يا جمادات او نباتات وي ، دسجد په عنوان سره د الله ﷻ دپاره ددې ټولو فرمانبردار كيدل بيان شو چې په كښې د انسانانو دوه قسمه بيان اوشو ، يو قسم تابعدار او فرمانبردار چې په سجده كښې ټولو سره شريك دى او بل قسم سر تيزه باغيان چې د سجدې نه اعراض كوى ، د فرمان تابعدار كيدلو نه په سجده كولو سره تعبير كړې شوې دې چې ددې ترجمه د تفسير په خلاصه كښې په عاجزئ كولو سره شوې ده ، دپاره ددې چې د ټولو مخلوقاتو هر شان او هر قسم سجدې لره شامل شى ولې چې د هر يو څيز سجده كول د هغه د شان او حال مناسب وى او د انسان سجده كول دادى چې تندې په زمكه كيږدى او د نورو مخلوقاتو سجده كول دادى چې هغه خدمت ترسره كړى كوم دپاره چې پيدا شوى وى.

**دټولو مخلوقاتو فرمانبرداره كيدلو حقيقت:** د الله ﷻ فرمانبرداره كيدل دوه قسمه دى يو قسم تكوينى او تقديرى دى چې هغې كښې د مخلوق هيڅ اختيار نه وى بلكه خالص د الله ﷻ په حكم او ارادې باندې انحصار لرى ، دې قسم ته تابعدارئ نه هيڅ مخلوق خلاص نه دې ، خواه هغه انسان وى ، مؤمن وى يا كافر ، ژوندې وى كه مړ ، كاڼړى وى او كه بوټى وغيره يو هم مستثنى ، په دې حيثيت سره ټول په ټوله يو شان د الله ﷻ د حكم او ارادې تابع وى ، ددنيا يوه ذره يا غر د هغه د حكم او ارادې نه بغير معمولى قدرې حركت هم نشى كولې . بل قسم اختيارى فرمانبردارى ده چې څوك پخپله خوښۀ او اختيار كوى او څوك ئې په خپله خوښه او اختيار نه كوى ، اول قسم مؤمن او دويم قسم كافر بللې شى ، دلته په آيت مبارك كښې هر كله چې د مؤمن او كافر فرق بيان شوې دې څكه ترې تكوينى او تقديرى فرمانبردارئ نه بلكه اختيارى او ارادى فرمانبردارى مراد ده ولې چې د قرآن عظيم الشان دبې شميره نصونو او تصريحاتو نه ثابته ده چې هر يو مخلوق كښې عقل ، شعور ، قصد او اراده شته چا كښې زيات او چا كښې كم ، په انسان او پيريانو كښې پوره عقل او شعور شته څكه دوئ مكلف ګرځولې شوى دى ، د امر او نهى پابند دى ، پاتې نورو مخلوقاتو ته دخپل خپل ضرورت مطابق عقل او شعور وركړې شوې دې ، د انسان نه پس د ټولو نه زيات عقل او شعور په حيواناتو كښې دې ، بيا په نباتاتو كښې دريم نمبر په جماداتو كښې دې ،د حيواناتو عقل او شعور عام طور محسوس كيدشى ، د نباتاتو عقل او شعور هم په لږ شان غور او تحقيق كولو سره پيژندلې شى ، مګر د جماداتو عقل او شعور دومره كم او پټ دې چې عام انسان ئې نشى پيژندې . خو ددې خالق او مالك خبر وركړې دې چې دا عقل او شعور او قصد او اراده لرى لكه قرآن عظيم الشان كښې د زمكې اوآسمان په باره كښې فرمائى چې :

[قَالَتَآ أَتَيْنَا طَآئِعِينَ۝] يعنى كله چې الله ﷻ آسمان او زمكې ته اوفرمائيل چې تاسو لره زما تابعدار او فرمانبردار اوسيدل دى كه په خوښه او اختيار سره ئې نه كوئى نو په جبر او حكم سره به تابعدار كړې شئ ، ددې په جواب كښې دواړو اووئيل چې په خوشحالئ او اختيار سره ستا فرمانبردارى قبلوؤ .

بل ځائې كښې د غرونو او كاڼړو باره كښې الله ﷻ فرمائى چې : [وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ] ځينې كاڼړى داسې دى چې د الله ﷻ د ويرې دپوزته نه ښكته رارغړى ، دغه شان په ګنړو

احاديثو کښې خپل مينځ کښې د غرونو دخبرو اترو ذکر هم شوې دې او په نورو مخلوقاتو کښې د عقل اوشعور ګنړ احاديث موندې شي.(۱)

اوس دلته په آيت مبارک کښې کومه تابعداري او فرمانبرداري چې د سجدې په لفظ سره تعبير کړې شوې ده دهغې نه اختياري او ارادي فرمانبرداري مراد ده ، په دې بنا معنی د آيت مبارک دا شوه چې د انسانانو نه علاوه ټول مخلوقات په خپل قصد او اختيار سره د الله ﷻ په درګاه کښې سجده کوونکې دی ، صرف د انسانانو اوپيريانو په کښې دوه قسمونه داسې شو چې يو مؤمن ، فرمانبردار او سجده کوونکې او بل کافر نافرمانه او سجدې نه ډډه کوونکې کوم چې الله ﷻ ذليله کړې دې ، او د سجدې توفيق ئې نه دې ورکړې ، والله اعلم.

هٰذٰنِ | خَصۡمٰنِ | اخۡتَصَمُوۡا
دا دوه ډلې دی | جګړه کونکی | چې جګړه ئې اوکړه
دا دواړه ډلې دی چې د خپل رب په باره کښې

فِىۡ رَبِّهِمۡ | فَالَّذِيۡنَ | كَفَرُوۡا | قُطِّعَتۡ | لَهُمۡ
په باره درب خپل کښې | نو هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو | پريکړې شوی دی | دهغوئ دپاره
جګړه کوی | نو ځوک چې کافران دی | هغوئ دپاره به داور جامې

ثِيَابٌ | مِّنۡ نَّارٍ | يُصَبُّ | مِنۡ فَوۡقِ | رُءُوۡسِهِمُ | الۡحَمِيۡمُ ۝ | يُصۡهَرُ
جامې | داور نه | اچولې کيږی به | دپاسه | دسرونو دهغوئ | اوبه يشيدلې | چې ويلی کيږی به
کټ کړې شی | د سرونو دپاسه په پرې [ختکيدلې] تودې اوبه واچولې شی | په هغې سره به

بِهٖ | مَا | فِىۡ بُطُوۡنِهِمۡ | وَالۡجُلُوۡدُ ۝ | وَلَهُمۡ
په هغې سره | هغه څه | چې په ګيډو دهغوئ کښې وی | او څرمنې هم | اووی به دپاره دهغوئ
ددوئ دخيټې دننه کولمې اوددوئ څرمنې ويلی کيږی | .........او د دوئ د وهلو دپاره

مَّقَامِعُ | مِنۡ حَدِيۡدٍ ۝ | كُلَّمَاۤ | اَرَادُوۡۤا | اَنۡ يَّخۡرُجُوۡا | مِنۡهَا | مِنۡ غَمٍّ
ګرزونه | داوسپنې | هر کله چې | اراده اوکړه هغوئ | چې وځی | د[دوزخ] نه | دغم نه
به ورته داوسپنې ګرزونه پراته وی | کله چې ترې د غم د وجې بهرته وتل غواړی | .........نو بيا

اُعِيۡدُوۡا | فِيۡهَا | وَذُوۡقُوۡا | عَذَابَ الۡحَرِيۡقِ ۝ | اِنَّ اللّٰهَ
نو واپس به ورديکه کړې شی | په هغې کښې | چې اوڅکئ مزه | دعذاب دسوزيدو | بيشکه الله
به ورواپس کولې شی | او ورته به اووئيلې شی چې دسوزيدو عذاب اوڅکئ | ..............الله ﷻ به

يُدۡخِلُ | الَّذِيۡنَ | اٰمَنُوۡا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | جَنّٰتٍ
به داخل کړی | هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نيک | داسې جنتونو ته
هغه کسان چې ايماندار دی او د نيکئ کارونه کوی داسې باغونو ته داخل

۱) اوګورئ: مجمع الزوائد تحت رقم الحديث: [۱۶۷۸۳]

تَجۡرِیۡ　مِنۡ تَحۡتِهَا　الۡاَنۡهٰرُ　یُحَلَّوۡنَ　فِیۡهَا　مِنۡ اَسَاوِرَ

چې بهیږي به | لاندې دهغې نه | نهرونه | وابه چوليې شي هغوئ ته | په هغې کښې | بنګړي

کړي | چې دهغې لاندې به نهرونه بهیږي | هلته به ورته دسرو زرو

مِنۡ ذَهَبٍ　وَّلُؤۡلُؤًا ؕ　وَلِبَاسُهُمۡ　فِیۡهَا　حَرِیۡرٌ ۝　وَهُدُوۡۤا

دسروزرو | او ملغلرې | او جامې دهغوئ به | په هغې کښې | دریښمووی | او هدایت اوکړې شو هغوئ ته

بنګړي اوملغلرې اچولې شي | اوهلته به دهغوئ جامې د ریښمو وی | او [داځکه چې په دنیا کښې]

اِلَی الطَّیِّبِ　مِنَ الۡقَوۡلِ ۚۖ　وَهُدُوۡۤا　اِلٰی صِرَاطِ　الۡحَمِیۡدِ ۝

پاکې ته | دخبرې نه [پاکې قبلولوته] | او اوښودلې شوه هغوئ ته | لاره | دستائیلی شوی الله

دوئ ته دپاکیزه خبرې هدایت شوې وو | او د ستائیلې شوی [الله ﷻ] لار ورته خودلې شوې وه

## آسان ترجمه قرآن

دا (مومنان او کافران) دوه ډلې دی چا چه د خپل رب په باره کښې د یو بل سره جهګړه کړې ده. اوس (ددې فیصله به داسې وی چه) چا چه کفر خپل کړې دی، د هغوی دپاره به د اور جامې کټ کیږی. د هغوی په سرونو باندې به ویشیدلې اوبه اچولې شی چه په هغې سره به د هغوی د خیټو دننه څیزونه او څرمنې اوسولې شی. او دهغوی دپاره به د اوسپنې ستکان وی چه کله د تکلیف نه تنګ راتلو سره دهغې نه وتل غواړی، نو هغوی به بیا په هغې کښې واپس کړې شی چه اوڅکئ د بلیدونکی اور مزه ا (بل طرف ته) کومو خلقو چه ایمان راوړې دې، او چا چه نیک کارونه کړې دی، الله پاک به هغوی داسې جنتونو ته داخل کړی چه د هغې د لاندې به نهرونه بهیږی، چرته چه به هغوی د سرو زرو په کړو باندې ډولی کولې شی، او چرته به چه د هغوی جامه د ریښمو وی. او (وجه دا ده چه) د هغه خلقو رسیدنه پاکې خبرې (یعنی کلمه توحید) ته شوې وه، او هغوی د هغه الله پاک لارې ته رسیدلې وو کوم چه د تعریف مستحق دې.

## خلاصه تفسیر

دکومو ذکرچه بره په ایت [ ان الذین امنو ] کښې شوې دې ﴿هٰذٰنِ خَصۡمٰنِ﴾ [ دا دوه فریقه دی ] یوه مؤمنه اوبله کافره بیا دکافرانو ډیر قسمونه دی یهود، نصارا، صابئین، مجوسیان، او بت پرست ﴿اخۡتَصَمُوۡا فِیۡ رَبِّهِمۡ﴾ [ کومو چه دخپل رب په باره کښې ] اعتقادا اوکله کله مباحثه هم [ د یو بل سره اختلاف وکړو ] ددې اختلاف فیصله به په قیامت کښې داسې وی چه ﴿فَالَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا﴾ [کوم خلق کارفران وو ددوی ] دا غوستلو دپاره ﴿قُطِّعَتۡ لَهُمۡ ثِیَابٌ مِّنۡ نَّارٍ﴾ [ به د اور جامې قطع کړې شی ] یعنی اور به ددوی ټول بدن داسې راګیر کړې وی لکه جامې ﴿یُصَبُّ مِنۡ فَوۡقِ رُءُوۡسِهِمُ الۡحَمِیۡمُ ۝﴾ [ او ددوی دسر دپاسه به تیز ګرمې اوبه اړولې شی ﴿یُصۡهَرُ بِهٖ مَا فِیۡ بُطُوۡنِهِمۡ وَالۡجُلُوۡدُ ۝﴾ چه په دې سره به د دوی دګیډې څیزونه ] یعنی کولمې [ او څرمن ټول وراته کړې شی ] یعنی دا جوشیدلې تیزې اوبه به څه ګیډې ته دننه لاړې شی چه کولمې او په ګیډه کښې دننه ټول څیزونه به ئې پرې وسوزی او څه به پرې دپاسه وبهیږی چه څرمن به ورله وسیزی ﴿وَلَهُمۡ مَّقَامِعُ مِنۡ حَدِیۡدٍ ۝﴾ [ او ددوی ] دوهلو دپاره [ به د اوسپنې ګرزونه وی ] او ددې مصبت نه به چرې نجات نه مومی ﴿کُلَّمَاۤ اَرَادُوۡۤا اَنۡ یَّخۡرُجُوۡا مِنۡهَا مِنۡ غَمٍّ﴾ [ دغه خلق چه کله ] په دوزخ کښې

[دغم] په وجه وویریږي او [ددې نه بهر وتل وغواړي ﴿أُعِيدُوا فِيهَا﴾ نو بیا به ورته وردیکه کولې شي ﴿وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ﴾ او ورته به ووئیلې شي چه د سوزیدو عذاب] دهمیشه دپاره [څکئ] چرې به ترې نه ستاسو وتل نصیب نه شي او ﴿إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ [الله تعالی به هغو خلقو لره کوم چه ایمان راوړي او هغوی نیك عمل کړی] دجنت ﴿جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ [په داسې باغونو کښې به داخل کړي دکومو لاند چه به نهرونه بهیږي ﴿يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا﴾ دوی ته به هلته دسرو زرو کنګړ اوملغلرې اغوستولې شي ﴿وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ﴾ او کپړې به ددوی هلته د ریخمو وی او] دا ټول انعام او اکرام ددوی دپاره په دې سبب سره دی چه په دنیا کښې ﴿وَهُدُوا إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ﴾ دوی ته [دکلمې طیبې] دعقیدې [هدایت شوې وو ﴿وَهُدُوا إِلَى صِرَاطِ الْحَمِيدِ﴾ او دوی ته دهغه] الله تعالی [دلارې هدایت شوې وو کوم چه لائق دحمد دې] هغه داسلام لاره ده.

**معارف او مسائل**

[هَذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا] دې آیت مبارك کښې ذکر شوې دوه ډلې یو خوا عام مؤمنان دی او بل طرفته ددوئ په مقابله کښې د کافرانو ټولې ډلې دی خو اه هغه د اولی قرن سرې وی او که وروستنو قرنونو وی البته داد هغه دواړو ډلو باره کښې نازل شوی دی چې دبدر په غزا کښې د یو بل په مقابله کښې راغلې وو د مسلمانانو نه علی رضی الله عنه، حمزه رضی الله عنه اوعبیده رضی الله عنه وو او د کافرانو ن عتبه بن ربیعه، ددهٔ څوئي ولید او ددهٔ رور شیبه وو. په دې موقعه درې واړه کافران اووژلې شو، په مسلمانانو کښې علی رضی الله عنه او حمزه رضی الله عنه صحیح سالم راواپس شو، عبیده رضی الله عنه سخت زخمی شوې راغلو او درسول کریم ﷺ په قدمونو مبارکو کښې ئې ساه ورکړ. [بحواله بخاري ومسلم] [1] خو ددې حکم هم دوئ پورې خاص نه دې بلکه ټول امت دپاره عام دې خو اه په هره زمانه کښې وی.

**جنتیانو ته د بنګړو اچولو حکمت:-** دلته دا شبه کیږي چې په لاسونو کښې بنګړی اچول خو د زنانو کار دې او دا خو هم د دوی زینت دې د سړو دپاره بد ګڼړلې شي جواب دا دې چې د دنیاوی بادشاهانو دا امتیازی شان پاتې شوې دې چې په سر باندې تاج او په لاسونو کښې بنګړی اچوی لکه څنګه چې په حدیث کښې دی چې رسول الله ﷺ سراقه بن مالك ته په کوم وخت کښې چې هغه لا مسلمان شوې نه وو او د هجرت په سفر کښې د نبی کریم ﷺ د نیولو دپاره په دوی پسې راوتلې وو څه وخت چې د هغه اس د الله تعالی په حکم سره په زمکه کښې ورخخ شو او هغه توبه اوویستله نو د نبی کریم ﷺ په دعا سره اس د زمکې نه راووتل نو په هغه وخت کښې یې د سراقه بن ملك رضی الله عنه سره وعده کړې وه چې د فارس د بادشاه بنګړی به په مال غنیمت کښې مسلمانانو ته په لاس راځی هغه به تاته درکولې شي او کله چې د فاروق اعظم رضی الله عنه په زمانه کښې د فارس ملك فتح شو او د ایران دا بنګړی د نور مال غنیمت سره په مال غنیمت کښې راغلل نو سراقه بن مالك رضی الله عنه مطالبه اوکړه او هغه ته ورکړې شو

[1]) صحیح البخاري کتاب المغازي، باب قتل ابي جهل [ج:٢ص:٥٦٥] و صحیح مسلم کتاب التفسیر، باب في قوله تعالی هَذَانِ خَصْمَانِ الآیة [ج:٢ص:٤٢٢]

خلاصه دا چې لکه څنګه په سر باندې تاج اچول په عامو خلقو کښې رواج نه دې خوشاهي عزت دې دغه شان په لاسونو کښې بنګړي اچول هم شاهي اعزاز ګڼړلې شي د دې وجې به جنتيانو ته بنګړي اچولې شي

**بوتعارض او دهغې جواب:-** د بنګړو په باره :کښې په دې آيت کښې او په سورة فاطر کښې خو دا دي چې هغه به د سرو زرو وي او په سورة دهر کښې دا بنګړي د سپينو زرو خودلې شوي دي د دې وجې حضرات مفسرينو دا فرمائيلي دي چې د جنتيانو په لاسونو کښې به درې قسمه بنګړي اچولې شي يو د سرو زرو دويم د سپينو زرو او دريم د ملغلرو لکه څنګه چې په دې آيت کښې د ملغلرو ذکر هم شته [قرطبي]([1])

**د ريښمو جامې د نارينؤ دپاره حرامې دي:-** په ذکر شوي آيت کښې دي چې د جنتيانو لباس به ريښم وي مراد دا دې چې د هغوی ټول ملبوسات فرشونه پردې وغيره به د ريښمو وي کوم چې په دنيا کښې دټولونه زيات غوره جامې ګڼړلې شي اودجنت ريښم به ښکاره ده چې د دنيا د ريښمو سره صرف په نوم کښې مشترك دي څکه چې د هغې د غوره والي او ښه والي د دنيا د ريښمو سره څه مناسبت نشته [بلکه د جنت ريښم د دنيا د ريښمو نه په درجها غوره او بهتردي]

**په جنت کښې د ريښمو وونه:-** امام نسائي بزار او بيهقي په جيد سند سره د عبدالله بن عمر ﷺ نه دا روايت نقل کړې دې چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چې د جنتيانو د ريښمو جامې به د ګلولو نه راوتلې شي([2]) اودحضرت جابر ﷺ په يو روايت کښې دي چې په جنت کښې به يوه وونه داسې وي چې د هغې نه به ريښم پيدا کيږي د جنتيانو جامې به هم دهغې نه تيارېږي. [مظهري]([3])

**په دنيا کښې د ريښمو استعمالونکې په جنت کښې د دې نه محروم:-** په حديث کښې امام نسائي د ابوهريره ﷺ نه روايت کړې دې چې نبي کريم ﷺ فرمائيلي دي [من لبس الحرير في الدنيا لم يلبسه في الآخرة ومن شرب الخمر في الدنيا لم يشربها في الآخرة ومن شرب في آنية الذهب والفضة لم يشرب فيها في الآخرة ثم قال رسول الله ﷺ هذه لباس لباس اهل الجنة وشراب اهل الجنة وآنية اهل الجنة] [ازقرطبي بحواله د نسائي]([4])

**ترجمه:-**کوم کس چې په دنيا کښې د ريښمو جاجې واغوندی هغه به يې په آخرت کښې نه اغوندي.او څوك چې په دنيا کښې شراب اوڅکی نو هغه به په آخرت کښې د شرابو نه محروم وي او چا چې په دنيا کښې د سرو زرو او سپينو زرو په لوښو کښې خوراك څکاك اوکړل نو هغه به ئې په آخرت کښې د سرو او سپينو زرو په لوښو کښې نه څکي بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل دا درې واړه څيزونه د جنتيانو دپاره مخصوص دي.

**دحديث مقصد:-** مراد دا دې چې کوم کس په دنيا کښې دا کارونه اوکړل اوتوبه ئې اونه ويستله نو هغه بهٔ د جنت د دې درې واړه څيزونو نه محروم وي اګرچې جنت ته داخل هم شي لکه څنګه چې د عبدالله بن عمر ﷺ په روايت کښې دي چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي کوم کس چې په

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۲ص:۲۸، ۲۹]
[2]) مسند البزار رقم الحديث: [۲۴۳۴]،و مجمع الزوائد رقم الحديث :[۱۸۷۳۶]
[3]) تفسير المظهري[ج:٦ ص:۲٦۷]
[4]) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۲۹] و السنن الكبري للنسائي رقم الحديث:[٦٨٦٩]

دنیا کښې شراب اوڅکل او بیا ئې د هغې نه توبه اونه ویستله نو هغه به آخرت کښې د جنت د شرابو نه محروم وی [رواه ائمه – قرطبی] (۱)

داشان د ابی سعید خدری ﷺ نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې:

من لبس الحرير في الدنيا لم يلبسه في الاخرة وان دخل الجنة لبسه اهل الجنة ولم يلبسه هو [روه ابوداود الطيالسي في مسنده، وقال القرطبي اسناده صحيح] (۲)

څوک چې دريښمو جامې په دنيا کښې اغوندی هغه به ئې په آخرت کښې نه اغوندی ، اګر چې جنت ته داخل شي . نور جنتيان بـه ريښمی جامې اغوندی خودې به ئې نشي اچولې

دلته دا شبه کيدې شی چې يو جنتی د څه جنتی څيز نه محروم کول خو هغه دپاره افسوس او ارمان جوړيږی حالانکه جنت ددې ځائې نه دې هيڅ قسم افسوس او غم به جنتی ته هلته نه وی، که دغه افسوس او غم نه وی نو ددغه څيزونو نه د جنتی د محرومولو بيا څه فائده نه معلوميږی . [قرطبی].

ددې بنه جواب داسې ورکړې دې چې څنګه د لاندې درجې جنتی به د پورته درجې جنتی ته نه پسخيږی او نه به ورته زهيريږی . داسې بۀ ددغاې څيزونو په باره کښې څه افسوس او ارمان ورته ځکه نه راځی چې الله ﷻ بۀ د هر جنتی د زړونو نه افسوس ارمان اوښکلې وی او بل جنتی بنده يا جنتی څيزونو ته به نه پسخيږی . والله سبحانه وتعالى اعلم.

[وَهُدُوٓا۟ إِلَى ٱلطَّيِّبِ مِنَ ٱلْقَوْلِ] ابن عباس ﷺ فرمائيلی دی چې دې نه مراد کلمه طيبه لا اله الا الله ده ، ځينو فرمائيلی دی چې دې نه مراد قرآن عظيم الشان دې . [قرطبی] (۳) صحيح خبره داده چې دا ټول څيزونه په دې کښې داخل دی

| إِنَّ ٱلَّذِينَ | كَفَرُوا۟ | وَيَصُدُّونَ | عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ | وَٱلْمَسْجِدِ |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه هغه کسان | چی کفر ئې اوکړو | او منع کوی خلق | دلارې دالله نه | او دمسجد |
| بيشکه هغه خلق چې کومو کفر کړې دې | او چې خلق د الله ﷻ دلارې نه او مسجد | | | |
| ٱلْحَرَامِ | ٱلَّذِى | جَعَلْنَٰهُ | لِلنَّاسِ | سَوَآءً |
| حرام نه | هغه [مسجد حرام] | چی جوړ کړې دې مونږ هغه | دپاره دخلقو | برابر حقونه |
| حرام نه منع کوی | کوم چې مونږ دټولو دپاره مقرر کړې دې | چې په هغې کښې | | |
| ٱلْعَٰكِفُ | فِيهِ | وَٱلْبَادِ | وَمَن | يُرِدْ |
| دمقامی خلقو | په هغې کښې | او دبهر نه دراتلو نکو خلقو | او هغه څوک | چی اراده لری |
| کښې اوسيدونکې [کوربه] اود بهر نه راتلونکې [مسافر] يو برابر دی | او څوک چې | | | |

---

۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۳۰] و صحيح البخاري كتاب الأشربة ،باب قوله إنما الخمر والميسر الخ [ج:۲ص:۸۳۶]

۲) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۳۰]و مسند الطيالسى رقم الحديث:[۲۳۱۹] و ما روي ابو سعيد الخدري رضي الله عنه.

۳) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۳۰]

| فِيۡهِ | بِاِلۡحَادٍۭ | بِظُلۡمٍ | نُّذِقۡهُ |
|---|---|---|---|
| په دې مسجدحرام کښې \| دحق نه په مخ اړولو سره \| په ظلم سره \| مونږ به اوڅکوو هغه ته مزه | | | |
| په ظلم سره په دې ځائې کښې د ګناه کولو اراده اوکړي \| نو مونږ بۀ پرې دردناک | | | |

| مِنۡ عَذَابٍ اَلِيۡمٍ |
|---|
| دعذاب دردناك نه \| |
| عذاب اوڅکوو \| |

## آسان ترجمه قرآن

بیشکه هغه خلق (د سزا لائق دی) چا چه کفر خپل کړې دې، او څوک چه نور خلق د الله پاک د لارې او د مسجد حرام نه منع کوی کوم چه مونږ دخلقو دپاره داسې جوړ کړې دې چه په هغې کښې دهغه ځائې اوسیدونکی او د بهرنه راتلونکی ټول برابر دی او کوم انسان چه په دې کښې ظلم کولو سره کږه لاره اوباسی، مونږ به هغه ته د دردناک عذاب مزه ورڅکوو.

## خلاصه تفسير

﴿اِنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا﴾ [ بیشکه کوم خلق چه کافر شول او] مسلمانانو لره ﴿وَيَصُدُّوۡنَ عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَالۡمَسۡجِدِ الۡحَرَامِ﴾ [ دالله تعالی دلارې او دمسجد حرام نه منع کوی ] چه مسلمانان عمرې ونه کړی حال دادې چه د حرم حیثیت دادې چه په دې کښې د چا خصوصیت نشته بلکه ﴿الَّذِىۡ جَعَلۡنٰهُ لِلنَّاسِ سَوَآءَ﴾ [ دې لره مونږ دټولو بنیادمو دپاره مقرر کړې دې چه په دې کښې ټول برابر دی په دې ] حرم حدونو کښې دننه ﴿الۡعَاكِفُ فِيۡهِ وَالۡبَادِ﴾ [ کښې اوسیدونکي هم ] یعنی کوم خلق چه هلته مقیم دی [ او دبهر نه راتلونکې ] مسافر [ هم ﴿وَمَنۡ يُّرِدۡ فِيۡهِ بِاِلۡحَادٍۭ بِظُلۡمٍ﴾ او څوک چه په دې کښې ] یعنی په حرم شریف کښې [ دظلم سره دبې دینۍ دڅه کار کولو اراده وکړی ﴿نُّذِقۡهُ مِنۡ عَذَابٍ اَلِيۡمٍ﴾ نو مونږ به هغه سړی ته دردناك عذاب وڅکوو ]

## معارف او مسائل

په تیرشوی آیت مبارك کښې د مؤمنانو او کافرانو دوؤ جماعتونو تر مینځه د جنګ بیان وو، ددغې جنګ یو خاص صورت په دې آیت مبارك کښې داسې بیانیږی چې په دوئ کښې ځینې کفار داسې هم دی چې پخپله په ګمراهۍ باندې کلك دی. نور خلق هم د الله ﷻ د لارې څخه اړوی هم دا خلق دی چې رسول کریم ﷺ او د هغه صحابه کرامو ﷺ ئې په مسجد حرام کښې د داخلیدو څخه ایسار کړل چا چې د عمرې احرام تړلې وو. او مسجد حرام ته داخلیدل ئې غوښتل، سره ددې چې د حرم شریف هغه حصه د دوئ په ملکیت کښې داخله نه وه کومې سره د خلقو عبادت، عمره او حج چې تړون لری، څکه په هغې کښې د مداخلت کولو هیڅ حق نه لرلو. هغه د ټولو خلقو دپاره یو شان ده چرته چې د حرم اوسیدونکی، دبهر مسافر، ښاریان او ناپیژندو خلق برابر دی. دې پسې د هغې سزا بیان دې کومه چې د مسجد حرام څخه دخلقو په بندولو او د بیدینۍ په کارونو کولو باندې مرتب کیږی چې د غه دردناك عذاب څکول دی. خاص کر کله چې دغې دبیدینۍ کارونو سره ظلم، یعنی شرك هم یو ځائې کړې شی

ځکه چې د مکې د مشرکانو حال وو چې مسلمانان ئې په حرم شریف کښې د داخلیدو څخه منع کړل ، د دوئ دغه عمل هم ددین څخه خلاف او ناروا او سره ددې دوئ په کفر او شرك کښې هم اخته وو ، او اګر که ددین خلاف هر یو کار خصوصا شرك او کفر هر چرته په هره زمانه کښې حرام او بې حده زیاته ګناه او جرم دې چې د عذاب باعث جوړیږي ، مګر په حرم مبارك کښې دغسې ناکاره کار کول غبرګ جرم جوړیږي ځکه دلته د حرم تخصیص اوکړې شو.

[وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ] سبیل الله څخه مراد اسلام دې ، په دې بنا د آیت مبارك معنی دا شوه چې داخلق پخپله د اسلام څخه لرې دی او نور خلق هم د اسلام څخه منع کوی.

[وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ] دا د هغوئ دوئمه ګناه ده چې مسلمانان مسجد حرام ته د داخلیدو څخه منع کوی ، مسجد حرام په اصل کښې د هغې مسجد نوم دې چې بیت الله شریف څخه ګیرچاپیره پروت دې چې د مکې د حرم یوه مهمه حصه ده. لیکن کله د مسجد حرام څخه دمکې ټول حرام مراد اخستې شی. ځکه چې په دې موقع باندې مسلمانان یوازې د مسجد حرام څخه نه بلکه د مکې د حرم شریف په حدودو کښې د داخلیدو څخه منع کړې شوی وو. چې د صحیح احادیثو څخه ثابت دی او قرآن عظیم الشان په دې واقعه کښې د مسجد حرام لفظ د مطلق حرم په معنی استعمال کړې دې لکه فرمائی چې [وَصَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ] [1] ځکه چې د ابن عباس رضي الله عنه په روایت په تفسیر در منثور کښې منقول دی [2]

**د مکې په حرم کښې د ټولو مسلمانانو د یوشان حق مطلب څه دې** :: په دومره خبره باندې د ټول امت او د فقهاء کرامو او امامانو اتفاق دې چې مسجد حرام او د مکې د حرم شریف هغه ټولې حصې چې ورسره د حج د کارونو تعلق دې ، لکه د صفا ،مروه ترمینځه میدان چې په کښې سعی کولې شی ، دمنی ، عرفات او مزدلفې پوره میدان ،دا ټولې زمکې د مسلمانانو د پاره په عام طور سره وقف دی ، یو خاص بنده نه ددې مالک جوړ شوې دې او نه جوړې دې شی ، دې نه علاوه د مکې مکرمې عام مکانات او د حرم د زمکې نورې زمکې هم ددې متعلق هم د ځینو فقهاء کرامو هم دا قول دې چې دا هم وقف عام دی. د هغې اخستل ، خرڅول او په کرایه ورکول حرام دی هر مسلمان هر ځائې اوسیدې شی.مګر د نورو فقهاء کرامو مختار مسلك دادې چې د مکې مکانات خاص ملکیت کیدې شی ، ددې اخستل او خرڅو اودا په کرایه باندې ورکول جائز دی. فاروق اعظم رضي الله عنه نه ثابت دی چې هغوئ رضي الله عنه په مکه مکرمه کښې د صفوان بن امیه مکان په بیعه واخستو اودمجرمانو د پاره ئې ترې قید خانه جوړه کړه ، امام اعظم رحمه الله نه دې باره کښې دوه روایات نقل دی ، یو د ړومبی قول مطابق او بل د دویم قول مطابق. خو فتوی په دویم قول ده. [روح المعانی] [3] دابحث په تفصیل سره د فقه په کتابونو کښې شوې دې. [4]

مګر پدې آیت مبارک کښې د حرم شریف د کومو حصو نه د ایسارولو بیان چې راغلې دې هغه حصې په هر حال کښې د ټولو په نزد وقف عام دی ، د هغې نه بندول حرام دی ، ددې آیت

---

[1] ترجمه:- او تاسو یې د مسجد حرام نه منع کړئ.

[2] الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٢٤]

[3] تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٣ ص:٣٩، ٤٠]

[4] تفصيل دپاره اوګورئ:- الدر المختار ، كتاب الحظر والإباحة [ج: ٦ ص:٧١١] وبدائع الصنائع ، كتاب البيوع ، فصل في الشرط الذي يرجع إلى المعقود عليه.

مبارک نه ئي هم حراموالي ثابتيږي ، والله اعلم.

[وَمَنْ يُّرِدْ فِيْهِ بِاِلْحَادٍۢ بِظُلْمٍ] الحاد په لغت کښې د سمې لارې نه د اوړيدلو معنی ورکوی ، دلته دالحاد نه مراد د مجاهد رحمه الله اوقتاده رحمه الله په نزد کفر او شرک دې ،خو نورو مفسرينو ددې خپله عامه معنی مراد اخستې ده چې په کښې هرقسم ګناه،اود الله ﷻ او رسول کريم ﷺ نافرمانی داخله ده، تر دې چې خپل خادم ته هم کنځل کول او بدرد ورته وئيل داخل په کښې دی ، او ددې معنی په لحاظ عطاء رحمه الله اوفرمائيل چې په حرم کښې د الحاد معنی داده چې په دې کښې د شريعت ترمخه دهغې کول منع شوی دی لکه په حرم مبارک کښې ښکار کول يا دهغې نه ونه وغيره پريکول ، په شريعت کښې منع شوی څيزونه په هر ځائې کښې دګناه کار او دعذاب باعث دی. د حرم تخصيص په دې بنا اوکړې شو چې څنګه دلته د نيکئ ثواب ډير زيات وی دغه شان دګناه عذاب هم ډير زيات وی ، [مجاهد]. او د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه ددې يو تفسير د اهم منقول دې چې د حرم نه علاوه په نورو ځايونو کښې صرف د ګناه په ارادې کولو سره ګناه نشی ليکلې تر څو چې د هغې عمل ئې نه وی کړې او په حرم کښې صرف په کلکې ارادې کولو باندې هم ګناه ليکلې شي. قرطبی هم دغه تفسير د ابن عمر رضي الله عنه نه نقل کړې ي ، او ورته ئې صحيح وئيلی دی.[1] عبدالله بن عمر رضي الله عنه به چې حج له تلل نو دوه خيمې به ئې لګولې ، يو په حرم کښې دننه او بله بهر ، که په حرم کښې دننه خپل بال بچ يا خادمانو اتو متعلقينو ته به ئې په څه خبره سزا ورکول راپيښ شو نو د حرم نه بهر خيمې ته به ئې بوتلل او هلته به ئې سزا ورکړه. خلقو تر ددې وجه اوپوښتله ، نوې وې فرمائيل چې مونږ ته به دا بيانولې شو چې انسان ته د سزا ورکولو يا ناراضګئ په موقعه کلا والله يا بلی والله وايئ نو داهم په حرم کښې الحاد کول دی [مظهری].[2]

| | وَاِذْ | بَوَّاْنَا | لِاِبْرٰهِيْمَ | مَكَانَ | الْبَيْتِ |
|---|---|---|---|---|---|
| | اوکله چې | اوښودو مونږه | ابراهيم ته | ځائې | ددې کور [کعبې] |
| | اوهرکله چې مونږ ابراهيم عليه السلام ته دبيت الله شريف [دجوړولو] ځائې په ښه کړو | | | | |

| اَنْ لَّا تُشْرِكْ | بِيْ | شَيْـًٔا | وَّطَهِّرْ | بَيْتِيَ | لِلطَّآئِفِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې مه شريکوه | زما سره | هيڅ څيز | او پاك اوساته | کور زما | دپاره دطواف کونکو خلقو |
| [اوحکم مو ورته اوکړو] چې ماسره هيڅ څيزمه شريکوه | اوزماکور د طواف کوونکو | | | | |

| وَالْقَآئِمِيْنَ | وَالرُّكَّعِ | السُّجُوْدِ ﴿۲۶﴾ | وَاَذِّنْ | فِي النَّاسِ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره دقيام کونکو | او رکوع کونکو | سجده کونکو خلقو | او اعلان اوکړه | په خلقو کښی |
| اوقيام کونکو او رکوع کونکو او سجده کونکو دپاره پاک کړه | ............ او په خلقو کښې د | | | |

| بِالْحَجِّ | يَاْتُوْكَ | رِجَالًا | وَّعَلٰى كُلِّ ضَامِرٍ | يَّاْتِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| په کولو دحج سره | چې راشی تاته | پياده | او په هر اوښ باند سواره | چې راځی |
| حج اعلان اوکړه | خلق به درته پياده هم راځی | او په تيوتيو اوښو باندې سوارهٔ هم | چې په | |

---

[1] تفسير القرطبي [ ج:١٢ص:٣١]

[2] تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٢٧٤] والدر المنثور [ج:٦ ص:٢٨] واخبار مكة للأرزقي رقم الحديث:[٧٣٩]

| مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيْقٍ ۙ | لِيَشْهَدُوْا | مَنَافِعَ لَهُمْ | وَيَذْكُرُوا | اسْمَ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|
| دهرې لارې ژورې نه | دپاره ددې چې حاضر شي | فائدو خپلو ته | او چې ياد کړي | نوم دالله |
| لويو اوږدو لارو به خان رارسوي | دپاره ددې چې دلته خپلو فائدوته حاضر شي اوپه مقررو ورځو کښې | | | |

| فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ | عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ | مِّنْۢ بَهِيْمَةِ | الْاَنْعَامِ ۚ |
|---|---|---|---|
| په ورځو معلومو کښې | په هغه څاروو باندې | چې ورکړي دی الله هغوئ ته | د څريدونکو څاروو نه |
| دالله ﷻ نوم ياد کړی | په هغو څاروو کوم چې ورته الله ﷻ ورکړي دی | | |

| فَكُلُوْا | مِنْهَا | وَاَطْعِمُوا | الْبَآئِسَ | الْفَقِيْرَ ۫ | ثُمَّ لْيَقْضُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| پس خورئ په خپله هم | دهغې نه | اوخوروئ ئې | په تنگ دسته | فقير باندې هم | بيا د لرې کړي هغوئ |
| نو تاسوترې پخپله هم خورئی | او په بدحالو فقيرانو باندې هم خوروئی | بيا پکار دی | | | |

| تَفَثَهُمْ | وَلْيُوْفُوْا | نُذُوْرَهُمْ | وَلْيَطَّوَّفُوْا | بِالْبَيْتِ | الْعَتِيْقِ ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| خيرې خپلې | او پوره دکړي | نذرونه خپل | او اوکړي طواف | دکور | پخوانی |
| چې خلق خپلې خيرې لرې کړی | اوخپل نذرونه پوره کړی | اوپکار دی چې ددې زوړ کور طواف اوکړی | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او ياد کړه هغه وخت چه کله مونږ ابراهيم ته د دې ځائې (يعنی د خانه کعبې) ځائې اوښودلو (او دا هدايت مو ورکړې وو چه) ما سره هيڅوک مه شريکوه، او زما کور د هغه خلقو دپاره پاک ساته کوم چه (دلته) طواف کوی، او د عبادت دپاره اودريږی او رکوع او سجدې کوی. او په خلقو کښې د حج اعلان اوکړه، چه هغوی به تا ته پيدل راځی، او د لرې لرې لارو نه سفر کولو سره په هغه اوښو باندې سوريدو سره به راځی چه (په اوږد سفر سره) ماندهٔ شوې وی، چه هغوی د دې فوائدو په خپلو سترګو باندې ووينی کوم چه هغوی دپاره کيخودلې شوې دی، او په مقررو ورځو کښې په څاروو باندې د الله پاک نوم واخلی کوم چه الله پاک هغوی ته ورکړې دی پس (اې مسلمانانو) په هغه څاروو کښې خپله هم خورئ او غريب او محتاج باندې هم خوروئ. بيا (حج کونکو له) پکار دی چه هغوی خپل خيری لرې کړی، او خپل نذرونه پوره کړی، او د دې بيت عتيق طواف اوکړی.

## خلاصه تفسير

[ او] ددې قصې ذکر وکړه ﴿وَاِذْ بَوَّاْنَا لِاِبْرٰهِيْمَ مَكَانَ الْبَيْتِ﴾ [ کله چه مونږه ابراهيم ] عليه السلام [ تـه دخانـه کعبې ځائ وخودلو] خکه چه دغه وخت خانه کعبه جوړه نه وه او حکم مو ورته وکړو [ چه ] دامکان دعبادت دپاره تيارکړه او په دې عبادت کښې ﴿اَنْ لَّا تُشْرِكْ بِيْ شَيْـًٔا﴾ [ ماسره هيڅـا لره مه شريکوه ] دا په اصل کښې ددوی نه پس خلقو ته اورول وو او دبيت الله دجوړولو سره دشرك دممانعت يو خاص وجه دا هم ده چه بيت الله طرف ته په مونځ کولو او ددې نه په طواف کولو سره څوك جاهل دا شبهه ونه کړی چه دا معبود دې ﴿وَّطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْقَآئِمِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ۝﴾ [ او زما کـور لـره د طـواف کوونکـواو] پـه مانځـه کښې [ دقيـام او رکـوع اوسـجده کوونکو دپاره ] دباطنی او ظاهری پليتيو يعنی کفر او شرك نه [ پاك ساته ] دا هم په اصل

کښې نوروته اوړول وو دحضرت ابراهیم علیه السلام نه خود دې نه دخلاف کولو دسره احتمال نه وو
او] حضرت ابراهیم علیه السلام ته داهم ووئیلې شول چه ﴿وَأَذِّنْ فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ﴾ [ په خلقو کښې دحج ]
فرض کیدو [ اعلان وکړه] په دې اعلان سره ﴿يَأْتُوكَ رِجَالًا﴾ [خلق به تاته ] یعنی ستا دې مقدسې
ابادۍ طرف ته [ راځي پیاده هم او] د اوږد سفر ﴿وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ﴾ [ په وجه خوارو شوو اوښو
باندې هم ﴿يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ﴾ کومې چه دلرو لرو لارو نه رارسیدلې وی ] او دغه خلق به
خکه راځي ﴿لِيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ﴾ [ چه دخپلو ] دیني او دنیوی [ فائدو دپاره حاضرشی ] دینی
فائدې خوۍ معلومې او مشهورې دی دنیوی فائدې هم که ئ مقصود نه وی مثلا اخستل
خرخول دقربانۍ غوښې وغیره نو داهم څه بدې نه دی [ او] ددې دپاره به راځي ﴿وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ
فِي أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ﴾ [ چه په مقررو ورځو کښې ] کومې چه دقربانۍ ورځې دلسم نه تر دولسم تاریخ
پورې دی ﴿عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ﴾ [ په هغو مخصوصو څاروُو باند] یعنی دقربانۍ په
څاروُو د ذبح په وخت [ دالله تعالی نوم واخلی کوم چه الله تعالی دوی ته ورکړی دی ] حضرت
ابراهیم علیه السلام ته دخطاب مضمون پورته شو وړاندې امت محمدی ﷺ ته خطاب دې ﴿فَكُلُوا مِنْهَا
وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ﴾ [ ددې ] قربانۍ د [څاروُو نه تاسو هم خورۍ ] چه دا جائز دی او
مستحب دادی چه [ بد حاله محتاج باندې هم خوروۍ بیا] دقربانۍ نه پس خلقو لره پکار دی
چه خپل خیرې لرې کړی ] یعنی احرام وسپړی سر اوخروی[او خپلو واجباتو لره خواه په نذر
سره ئ قربانی وغیره واجب کړی وی ﴿ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ﴾ یا بغیر دنذر نه کوم چه دحج
واجب کارونه دی هغه ټولو لره [ پوره کړی او] په دغو معلومو ورځو کښې ﴿وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ
الْعَتِيقِ﴾ [ ددې مامون او محفوظ کور]یعنی بیت الله شریف [طواف وکړی ]دې ته طواف
زیارت وائی.

## معارف او مسائل

دې نه مخکښې آیت مبارک کښې په هغې خلقو باندې د سخت عذاب راوستو زورنه کړې
شوې ده څوک چې مسلمانان د مسجد حرام او حرم نه منع کوی ، اوس دې پسې په دغې
مناسبت سره د بیت الله شریف خاص فضائلو او لوئ بیان دې چې ذهغې نه د هغوئ د
کارناکاروالې نور زیات ښکاره شی.

**د بیت الله شریف د جوړولو آغاز :** [وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ] د بوء لفظ په لغت کښې چاته د
استوګنې د مکان ورکولو په معنی راځی ، په دې بنا د آیت مبارک معنی دا شوه چې دا خبره د
یادولو او یاد لرلو قابله ده چې مونږ ابراهیم علیه السلام ته د هغې ځائې استوګنه ورکړه چرته چې بیت
الله شریف دې ، په دې کښې اشاره ده چې ابراهیم علیه السلام رومبې نه دغه ځائې کښې آباد نه وو
څنګه چې د روایتونو نه هم ثابتیږی چې د شام ملک نه دهجرت حکم ورته اوکړې شو ، او دغه
ځائې ته راوړرسولې شو، په مکان البیت کښې دې خبرې ته اشاره ده چې بیت الله شریف د
ابراهیم علیه السلام نه مخکښې موجود وو څنګه چې د معتبرو روایتونو نه ثابت دی چې بیت الله
شریف په اول ځل هغه وخت جوړ شوې دې چې آدم علیه السلام زمکې ته نه وو راوستې شوې یا د دوئ
علیه السلام د راوستو سره جوړ شوې وو ، آدم علیه السلام او وروسته ټولو پیغمبرانو علیهم السلام ددې طواف کړې
دې ، د نوح علیه السلام د طوفان په موقعه د بیت الله شریف آبادی پورته کړې شوه خو بنیادونه او

اصلي ځائې موجود وو ، ابراهيم ﷺ دغه ځائې کښې استوګن کړې شو[1] او حکم ورته اوشو چې : [اَنْ لَّا تُشْرِكْ بِيْ شَيْئًا] [زما په عبادت کښې هيڅ شريک مه ګرځوئی] ابراهيم ﷺ نه د شرک کولو هيڅ احتمال نشی کيدې. د هغوئ ﷺ دا واقعات ښهٔ مشهور دی چې ددې نه اول ئې بتان مات کړی وو ، د شرک کوؤنکو مقابله ئې کړې وه او په سختو سختو آزميښتونو کښې پوره ختلې وو ، ځکه ددې نه مطلب عامو خلقو ته آؤرول دی چې شرک نه دې ځان ساتی ، دويم حکم ورته دا ورکړې شو چې: [وَطَهِّرْ بَيْتِيَ] [زما کور پاک کړئی] دغه وخت اګر چې دبيت الله شريف د عمارت وغيره نوم نه بلکه د هغې پاکې زمکې نوم دې چرته چې مخکښې بيت الله شريف جوړ شوې وو ، او اوس ئې د دوباره جوړولو حکم ورکولې شی ، خو هغه ځائې او مکان بهر حال موجودوو دهغه د پاکولو حکم ځکه ورته اوشو چې په هغه زمانه هم جرهم او عمالقه قوم څه بتان اينبودی وو چې دهغې عبادت به ئې کولو. [قرطبی] .([2]) او دا هم کيدې شی چې دا حکم راتلونکو خلقو ته آؤرول ووا و د پاک لرلو نه مطلب دشرک او کفر پشان ځيزونو نه ئې پاک لرل وو دغه شان د ظاهری پليتو او ګندګو نه ئې پاک لرل هم مراد وو ، خو ابراهيم ﷺ ته ددې خطاب کولو مطلب نور خلق دې انتظام ته تيارول او اومضبوطول دی. ولې چې ابراهيم ﷺ خو رومبې نه په دې کار کښې اوچته سرګرمی ښکاره کړې وه ، بيا هم چې کله هغوئ ته ددې حکم اوشو نو نور خلق دې ددې زيات فکر اوکړی.

ابراهيم ﷺ ته دريم حکم دا ورکړې شوې وو چې : [وَاَذِّنْ فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ] [خلقو ته دا اعلان اوکړئی چې حج درباندې فرض دې ] [بغوی]([3])

ابن ابی حاتم د ابن عباس ﷺ نه نقل کړی دی چې کله ابراهيم ﷺ ته د حج د فرض کيدو د اعلان کولو حکم اوشو نو هغوئ ﷺ الله ﷻ ته عرض اوکړو ،چې دلته خو ځنګلی ميدان دې څوك آوريدلو والا نشته چيرته چې آيا آبادنې به زما آواز څنګه رسی ؟ الله ﷻ ورته اوفرمائيل چې اعلان کول ستاسو ﷺ ذمه داری ده او ټولې دنيا ته دهغې رسول او خورول زما ذمه داری ده ، ا براهيم ﷺ په مقام ابراهيم باندې اودريدل او دغه اعلان ئې اوکړو چې الله ﷻ ډير پورته کړو([4]) او په ځينې رواياتو کښې راځی چې هغوئ ﷺ ابی قيس غره ته اوختل او هغه ځائې نه ئې په دې شان اعلان اوکړو چې په غوږنو مبارکو کښې ئې ګوتې کيخودې ، ښی ، ګس ، مشرق او مغرب طرته ئې دا آواز اوکړو چې ائې خلقو ، ستاسو رب خپل کور جوړ کړې دې ، او تاسو باندې ئې ددې بيت الله شريف حج فرض کړې دې . نو تاسو ټول د خپل رب حکم باندې عمل اوکړئی .

په دغه روايت کښې داهم دی چې د ابراهيم ﷺ دغه آواز الله ﷻ ټولې دنيا ته اورسولو ، صرف ددغه وخت ژوندو بنيادمو نه بلکه تر قيامته پورې پيدا کيدونکو بنيادمو ته ئې د معجزې په طور دا آواز اورسولو او د چا په قسمت کښې چې حج ادا کول نصيب شوی وو

---

[1] ) نور تفصيل دپاره اوګورئی:- روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:٤٤] والتفسير الكبير للرازي تحت تفسير سورة آل عمران رقم الآية: ۹۶ [ج: ٤ص:۳۰٦]

[2] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۳۷]

[3] ) تفسير البغوي تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:۳۷۸]

[4] ) المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳٤٦٤] و مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث:[۳۱۸۱۸](بلإختصار)

هغوئ هر یو ددې په جواب کښې لبیک اللهم لبیک اوونیل . یعنی د خپلو حاضریدو اقرار ئې اوکړو ، ابن عباس ﷺ فرمائیلی دی چې د حج د تلبیې اصل بنیاد ددغې ابراهیمی ﷺ آواز جواب ورکول دی [قرطبی و مظهری].([1])

دې پسې آیت مبارک کښې دهغې تاثیر بیان دې کوم چې دابراهیم ﷺ په اعلان باندې الله ﷻ تر قیامته پورې مرتب کړې دې ، فرمایی چې : [يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ ۝ لِّيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ] [خلق به ددنیا د ګوټ ګوټ [کونج کونج] نه بیت الله شریف ته پیاده اوسوارهٔ د لرې لرې ملکونو نه راځی چې د هغې په وجه به یې سورلئ هم مانده [ډنګری] شوی وی]

دهغه وخت نه تر اوسه پورې زرګونه کالونو پس اوس هم حج ته د راتلونکو هغه شان حال جاری دې،ابراهیم ﷺ نه پس راتلونکی پیغمبران ﷺ اود هغوئ امتونه هم ددې پابند وو ، دعیسی ﷺ نه پس د جاهلیت په هغه اوږده زمانه کښې هم عرب خلق اګر چې په بت پرستئ کښې اخته وومګردحج دارکانوهم هغه شان پابندووځنګه چې دابراهیم ﷺ نه نقل شوی راغلی دی.

[لِّيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ] یعنی دلرې لرې ملکونو نه د خلقو دغه حاضریدل ددوئ دفائدې دپاره دی ، قرآن عظیم الشان د منافع لفظ نکرې راؤړلو سره عامو فائدو ته اشاره کړې ده که هغه دینی وی او که دنیوی وی ، یعنی دینی فائدې خو په کښې بې شمیره شته دې او سره ددې دنیوی فائدې هم په ګڼ شمیر کښې لیدلې شی ، کم ناکم دا خبره خو د ډیر تعجب او حیرانتیا ده چې دحج په سفر باندې خلق عام طور غټ غټ خرچونه کوی ، د ټول ژوند دمحنت ، مشقت لږې لږې پسې ئې راجمع کړې وی او دلته ئې په یو وخت خرچ کړی ، خو دټولې دنیا په تاریخ کښې داسې څه واقعه څوک نشی خودلې چې څوک د عمرې یا د حج کولو په وجه فقیر یا محتاج شوې وی ، لیکن ددنیا په نورو کارونو کښې د خرچ په وجه ډیر خلق غریبانان شوی دی ، لکه د واده ښادئی په رسمونو رواجونو او د کورونو حجرو په آبادلو باندې د خرچ په وجه هم داسې کیږی ، الله ﷻ د حج او عمرې په سفر کښې دا خصوصیت هم ایښودې دې چې دې سره هیڅوک په دنیوی نیستئ او لوږو تندو کښې اخته نه دی لیدلې شوی ، بلکه په ځینې روایتونو کښې راغلی دی چې حج او عمره با فقر ومحتاجی لرې کوی([2]) که غور اوکړې شی نو ددې مشاهده هم عام طور لیدلې کیږی ، د حج دینی فائدې بې شمیره دی دهغې ځینې دا یوه فائده هم څه کمه نه ده :

چې د ابی هریره ﷺ په روایت کښې دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې چا د الله تعالی دپاره حج اوکړو اوپه هغې کښې دبې حیایئ د خبرو اودګناه د کارونو نه ئې ځان ساتلو هغه به د حج نه په داسې حالت کښې واپس راځی لکه چې نن د مور د خیټې نه پیدا شوې وی ، یعنی ځنګه چې اوس پیدا شوې ماشوم ځنګه دګناه نه پاک وی دغه شان به دغه حاجی هم وی[بخاری و مظهری]([3])

---

[1]) تفسیر ابن ابي حاتم رقم الحدیث:[۱۴۷۱۱، ۱۴۷۱۲ ج:۹ ص:۲۷۳]و تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۳۸]و تفسیر المظهري[ج:۶ص:۲۷۵]

[2]) ددې مفهوم یو بل حدیث مبارك اوګورئ په:- جامع الترمذي ، ابواب الحج باب ماجاء في ثواب الحج والعمرة [ج:۱ ص:۱۶۷]

[3]) صحیح البخاري ابواب العمرة ،باب قول الله تعالي عزوجل ولا فسوق ولا جدال في الحج [ج:۱ص:۲۴۵] و صحیح مسلم کتاب الحج باب فضل الحج[ج:۱ص:۴۳۶]و تفسیر المظهري[ج:۶ص:۲۷۶]

بیت الله شریف ته د راجمع کیدونکو حاجیانو یوه فائده خو پورته بیان شوه چې دغه ځائې کښې حاجیان د خپلې دینی ، دنیوی فائدې مشاهده اوکړی او بله فائده ئې دا اوخودلې شوه چې : [وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ فِيٓ اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ] [یعنی دپاره ددې چې د الله ﷻ نوم یادکړی په معلومو ورځو کښې په هغه چارپایه څاروؤ باندې چې الله ﷻ ورکړی دی ] په دې کښې د ټولونه اول خبره داده چې د قربانۍ په غوښو او هغې نه په حاصلولو شوؤ فوائدو باندې نظر کول پکار نه دی ولې چې اصل څیز د الله ﷻ ذکر دې چې په دغې ورځو کښې د قربانۍ کولو په وخت په څاروؤ باندې کولې شی کوم چې د عبادت روح دې ، دقربانۍ غوښه پخپله هم دوئ دپاره حلالول زیاتی انعام دې . د [اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ] نه مراد هم دغه ورځې دی په کومو کښې چې قربانی جائز ده یعنی د ذوالحجې د میاشتې لسمه ، یولسمه او دولسمه ورځ او د [مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ] الفاظ عام دی ، په دې کښې هر قسم قربانی داخله ده که هغه واجبه وی اوکه مستحب . [فَكُلُوْا مِنْهَا] دلته د [كُلُوْا] [امر] مطلب مباحوالې او جائز والې دې ،واجبوالې نه دې څنګه چې :(١)[وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا] کښې د ښکار کولو حکم د اجازت په معنی دې .

**مسئله** :: په مکه مکرمه او دحج په زمانه کښې مختلف قسمه څاروی ذبح کولې شی ، یو قسم قربانی هغه ده چې د څه جرم په عوض کښې واجب شوی وی ، لکه چا د حرم شریف په حدونو کښې دننه څه کار کړې وی نو هغه باندې د څاروی قربانی کول واجبیږی . تفصیل ئې د فقه په کتابونو کښې موجود دې چې دکوم قسم ځناور د وژلو په بدله کښې کوم قسم قربانی کول واجب دی . دغه شان کوم کارونه کول چې داحرام په حالت کښې منع کړې شوې دی نو دهغې په کولو باندې هم د څاروی قربانی ورکول واجبیږی . کومې ته چې د فقهاء کرامو په اصطلاح دم جنایت وئیلې شی ، په دې کښې هم څه تفصیل شته ، د ځینې ممنوعاتو دکولو په صورت کښې د غوایانو ، اوښ قربانی ورکول ضروری دی او په ځینې صورتونو کښې د چیلۍ یا ګډ قربانی ورکول هم کافی کیږی . په ځینې صورتونو کښې د قربانۍ ورکولو په ځائې صرف صدقه ورکول کافی کیږی دلته ددې د تفصیل بیانولو ګنجائش نشته ، احقر پخپله رساله احکام الحج کښې دضرورت په اندازه لیکلی دی ، هغه قسم دم یعنی قربانی چې د څه جنایت او جرم په سزا کښې لازم شوی وی دهغې غوښه خوړل پخپله دغه کس له جائز نه دی بلکه دا صرف د فقیرانو او مسکینانو حق دې ، بل هیڅ مالدار لره ئې خوړل نه روا کیږی . په دې باندې د امت فقهاء کرام متفق دی . دې نه سوا د نور قسمه واجب یا نفلی د احنافو ، مالکیانو ، او شوافعو(٢) په نزد دم تمتع او دم قران هم واجب دې قربانۍ غوښه قربانی کوؤنکې بنده پخپله هم خوړلې شی دهغه دوستان ، رشته داران هم خوړلې شی اګر چې مالدار وی ، ، په دې آیت مبارک کښې ددې بیان دې او ددې پوره تفصیل او مسائل د فقهې په کتابونو کښې اوکتلې شئ ، د عامې قربانۍ یا خاص د حج د قربانۍ حکم هم دغه دې چې

(١) ترجمه:- او کله چې تاسو احرام پرانیزئ نو ښکار کولې شئ.

(٢) ترجمه:- دلته د شوافعو د مسلك په ذ کر کولو کښې سهو یا غلطی شوې دې. دشوافعو په نزد د دم تمتع او دم قران غوښه د دم ورکوؤنکی دپاره جائز نه ده( المجموعة شرح المهذب [ج:۸ ص:٤١٧] ) تفسیر مظهری کښې هم ددې مطابق مسئله لیکلې شوې ده. ددې نه علاوه د احنافو په نزد د نذرقربانۍ غوښه خوړل هم جائز نه دی. (فتح القدیر [ج:۳ ص:۸۰]) والبحر الرائق [ج: ۳ص:۷٦]

قرباني كوونكي پخپله او هر مسلمان ئې خوړې شي كه هغه غني وي او كه فقير، ليكن مستحب دادى چې كم ناكم دريمه حصه ئې غريبانانو ته وركړې شي، ددې مستحب بيان په راتلونكې جمله كښې داسې فرمائى چې: [وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ] دبائس معنى بالكل تش لاسې غم زپلې او د فقير معنى حاجت مند ده، مطلب دادې چې د قربانئ غوښې نه دوئ باندې هم خوړول او ورهت ئې وركول مستحب او مطلوب دى.

[ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ] تفث په لغت كښې هغه خيرى ته وئيلې شي چې د انسان په بدن باندې جمع كيږى، داحرام په حالت كښې هر كله چې سرخرئيل ويښته ئې پريكول، په نوسى ئې اوښكل، نوكونه پريكول او خوشبو، ئې لگول، دا ټول څيزونه حرام دى، اوته دې لاندې خيرې راجمع كيدل طبعى خبره ده څكه په دې آيت مبارك كښې فرمائى چې هر كله په حج كښې د قربانئ نه فارغ شوئ نو دغه خيرې وغيره لرې كړئى مطلب دا شو چې اوس احرام پرانيځئ، سر اوخرئ، نوكونه پريكړئى، د نوم نه لاندې ويښته صفا كړئى، په دې آيت مبارك كښې اول دقربانئ كولو بيان راغلو، دې پسې د احرام پرانستوڅكه ترتيب هم دغه شان لرل پكار دى مطلب دا چې قرباني كولو وړاندې سرخرئيل يا نوكونه پريكول منع دى كه چا داسې اوكړل په هغه باندې د جنايت دم واجب شو.

**د حج په كارونو كښې د ترتيب درجه:** د حج دكارونو كوم ترتيب چې په قرآن عظيم الشان كښې او حديث پاک كښې راغلې دې او فقهاء كرامو هغه په ضبط كښې راوستې دې په دغې ترتيب سره ادا كول په اتفاق دامت سره كم ناكم سنت ضرور دى په واجبوالى كښې ئې اختلاف دې، د امام اعظم رحمة الله عليه اوامام مالک رحمة الله عليه په د واجب دى چې دهغې نه په خلاف كولو سره ئې دم واجبيږى خو د امام شافعى رحمة الله عليه په نزد سنت دى څكه ددې پخلاف كولو سره په ثواب كښې كمى راځى خو دم نه لازميږى، دابن عباس رضي الله عنه په حديث پاک كښې راغلى دى چې:

[من قدم شيئا من نسكه اواخره فليهرق دما] [ابن ابى شيبه موقوف روايت كړو، خو دا په حكم د مرفوع حديث كښې راغلې دې، مظهرى][1]

يعنى چاچې د حج دكارونو په ترتيب كښې وړاندې والې، روستوالې راوستو نو په هغه باندې يو دم وركول لازم دى، دا روايت طحاوى هم په مختلفو طريقو سره نقل كړيدې او د سعيد بن جبير رضي الله عنه قتاده رحمة الله عليه، نخعى رحمة الله عليه، او حسن بصرى رحمة الله عليه هم دغه مذهب دې چې د ترتيب نه په خلاف كولو سره پرې دم لازموى، په تفسير مظهرى كښې دلته دې د مسئلې پوره تفصيل او تحقيق بيان شوې دې، داشان د حج نور مسائل هم په تفصيل سره ليكلى دى.[2]

[وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ] نذور، د نذر جمع ده چې پښتو كښې ورته منښته وئيلې شى، ددې حقيقت دادې چې په خپلې وينا سره د يو كار كولو منښته اوكړى يا داسې اووائى چې د الله تعالى دپاره په ما باندې فلانې كار كول لازم دى و دا نذر شى چې ددې سرته رسول واجب شى اگر

---

[1] تفسير المظهري[ج:٦ص:٢٨٠] ومصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث [١٤٩٥٨](باختلاف يسير)

[2] تفسير المظهري[ج:٦ص:٢٧٧ تا ٢٨٣]

چې په اصل او حقيقت کښې دا واجب نه وو خو په اتفاق دامت سره دا هله واجبيږي چې په شريعت کښې د ګناه يا ناروا کار نه وي ، دګناه د کار په منښتې کولو سره دغه کار کول په هغه نه لازميږي ، بلکه دهغې خلاف کول واجب دي ، البته د قسم کفاره ورکول به پرې لازم شي ، دامام ابو حنيفه رحمة الله عليه وغيره فقهاء او امامانو په نزد دا شرط هم دې چې ددغې منښتې په جنس کښې څه شرعي مقصودي عبادت موندې شي لکه مونځ ، روژه ، صدقه ، قرباني ، وغيره چې ددې په جنس کښې څه شرعي واجبات او مقصودي عبادات شته ، په دې بنا که څوک څه نفلي عبادت لکه مونځ ، روژه او صدقه وغيره اومني نو دغه نفل پرې واجب شي ، دهغې سر ته رسول په دهٔ باندې لازم او واجب دي ، ددې آيت مبارک نه هم دا حکم ثابتيږي ولې چې پدې کښې د نذر د پوره کولو او سرته رسولو حکم ورکړې شوېدې.

**مسٔله** :: څو پورې چې په خله ئې د منښتې خبره نه وي کړې صرف په زړهٔ کښې ارادې کولو سره منښته نه شي کيدې ، په تفسير مظهري کښې د لته دنذر او منښتې احکام او مسائل بنه په تفصيل سره بيان کړې شوي دي چې پخپل ځائې ډيرې ضروري دي خو دلته ئې په دې تفسير کښې د بيانولو ګنجائش نشته.[1]

**يو سوال او د هغې جواب** :: دې آيت مبارک نه مخکښې هم د حج د کارونو د قربانئ او احرام پرانستو بيان شوېدې او بيا وروسته هم د طواف زيارت بيان دې نو په مينځ مينځ کښې دمنښتې پوره کولو بيان دې سره ربط او مناسبت نه لري ځکه چې منښته پوره کول خان له يو مستقل حکم دې چې د حج او حرم شريف سره څه خصوصيت نه لري بلکه په هره موقعه او په هر ځائې کښې کيدې شي ؟

جواب ئې دادې چې اګر چې دنذر پوره کول يو مستقل شرعي حکم دې د ايام حج او افعالو د حج سره مخصوص نه دې ليکن ددې ذکر دلته د حج کارونو په بيان کښې ددې د بيانولو وجه داوې چې انسان کله حج ته اوځي نو زړهٔ ئې دا غواړي چې پدې سفر کښې زيات نه زيات نيک کارونه او عبادات اداکړي ، په دې کښې د ډيرو څيزونو منښته هم اوکړي ، خصوصا د څارووُ د قرباني کولو خو عام رواج دې ، ابن عباس رضي الله عنهما دلته د نذر نه مراد هم د قربانئ نذر اخستې دې ، د حج حکمونو سره د نذر يو ربط داهم دې چې څنګه په نذر او قسم سره په انسان باندې ډير داسې څيزونه ناجائز او واجبيږي کوم چې د شريعت تر مخه واجب نه وو او ډير داسې څيزونه او حرام ګرځي چې د اصلي حکمونو د شرع تر مخه حرام او ناجائز نه وو بلکه دا حرام ټول احکام تقريبا هم دغسې دي چې ګنډلې جامې به نه اغوندي ، خوشبوئي به نه استعمالوي ، ويښته به نه خرائي ، نه به ئې پريکوي اونه به نوکونه پريکوي ، يعنې په اصل شريعت کښې دا څيزونه حرام نه وو خو په احرام تړلو سره ئې دغه ټول کارونه په ځان حرام کړل ، دغه شان د حج نور کارونه چې په عمر کښې يو ځل فرض کيږي مګر ددې نه پس د حج او عمرې په احرام تړلو سره داټول کارونه فرض کيږي، په دې وجه عکرمه دلته د نذور په تفسير کښې هم دا اوفرمائيل چې دې نه د حج هغه واجب څيزونه مراد دي چې د حج په وجه په ده باندې لازم شوي دي .

---

[1]) تفسير المظهري [ج:۶ ص:۲۸۴ تا ۳۰۵]

[وَلْيَطَّوَّفُوْا بِالْبَيْتِ الْعَتِيْقِ] دلته د طواف نه مراد طواف زيارت دې چې د ذالحجې د مياشتې په لسم تاريخ د جمرو ويشتلو او قربانۍ كولو نه پس كولې شي ، دا طواف د حج دويم ركن او فرض دې ، ړومبې ركن په عرفات باندې وقوف كول دي چې دې نه وړاندې ادا كولې شي ، په طواف باندې د احرام ټول احكام مكمل شي او پوره احرام پرانستې شي [ابن عباس رضي الله عنهما اوضحاك او كړې دلې نه روايت شو بلكه طبرى فرمائيلي دى چې اګر كه په آيت مبارك كښې ددې تاريخ نه وو ياكلي شويدې خو د تاويل كوؤنكو په دې كښې خلاف نشته چې دې نه مراد طواف افاضه يعنى طواف زيارت دې چې هم دلوئې اختر په ورځ وى ][روح المعانى ]([1])

[بِالْبَيْتِ الْعَتِيْقِ] بيت الله شريف ته ځكه بيت عتيق وئيلې شى چې د عتيق معنى آزاد شوې ده، او ځنګه چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ د خپل كور نوم بيت عتيق ځكه اينښودې دې چې هغه د كافرانو او جابرانو د غلبې او قبضې نه آزاد كړې دې . [عن ترمذى ، او دې ته ئې صحيح اووئيلو ، او دغه حاكم هم روايت كړې دې او ورته ئې صحيح اووئيل او ابن جرير وغيره هم روايت كړې دې ، روح المعانى].([2]) د هيڅ كافر پدې باندې دغلبې او قبضې كولو وس نه شى رسيدې ، د اصحاب فيل واقعه ددې ثبوت دې ، والله اعلم ، په تفسير مظهرى كښې په دې موقعه د طواف تفصيلى احكام او مسئلې جمع كړى دى چې ډيرې اهمې او د كتو قابل دى ،([3]) والله اعلم.

| ذٰلِكَ ق | وَمَنْ يُّعَظِّمْ | حُرُمٰتِ اللّٰهِ | فَهُوَ خَيْرٌ |
|---|---|---|---|
| دا وو [مقصد دكعبې دجوړولو] | او څوك چې عزت كوي | دحرمتونو دالله | نو دا كار \| بهتر دې |
| داخبره اوشوه او څوك چې دالله ﷻ د درنو حكمونو ادب كوي | نو داكار د هغه دپاره د هغه د رب | | |

| لَّهٗ | عِنْدَ رَبِّهٖ ط | وَاُحِلَّتْ | لَكُمُ | الْاَنْعَامُ | اِلَّا مَا |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دهغه | په نز درب دهغه | او حلال كړې شو | ستاسو دپاره | څريدونكي څاروى | ماسوا دهغه څيزونو |
| په نيز ډير غوره دې | ......... اوستاسو دپاره ټول څاروى حلال دى | بغير دهغې نه چې دكومو | | | |

| يُتْلٰى عَلَيْكُمْ | فَاجْتَنِبُوا | الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ | وَاجْتَنِبُوْا |
|---|---|---|---|
| چې لوستلې شوي دي په تاسو باند | نو ځان ساتئ | دپليتئ دبتانو نه | او ځان ساتئ |
| [د حرمت احكام] چې به تاسو ته بيان كړى شي | نو تاسو د بتانو دپليتئ نه ځان | | |

| قَوْلَ الزُّوْرِ ۝ لا | حُنَفَآءَ لِلّٰهِ | غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ | بِهٖ ط |
|---|---|---|---|
| دخبرې ددروغو نه | يو مخيزې بندګان شئ دالله | چې نه يئ شريك كونكي | دهغه سره |
| ساتئ او د دروغو دخبرو نه ځان بچ كړئ | دالله اړخ ته مائله اوسيږئ | هغه سره څوك مه شريكوئ | |

[1]) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج: ۱۸ ص:۶۱۵، ۶۱۶] و روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۵۲]

[2]) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۵۲] والمعجم الكبير للطبراني رقم الحديث [۲۸] و جامع الترمذي، ابواب التفسير باب تفسير سورة الحج [ج:۲ ص:۱۵۰] والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳۴۲۲] تفسير سورة الحج.

[3]) تفسير المظهري[ج:۶ ص: ۳۰۵ تا ۳۱۷]

وَمَنْ يُّشْرِكْ | بِاللّٰهِ | فَكَاَنَّمَا | خَرَّ | مِنَ السَّمَآءِ | فَتَخْطَفُهُ

او څوك چي شريك كوي | د الله سره | نو لكه چي | را اوغورزيدو هغه | د آسمان نه | نو او تښتوي هغه لره

| .......... اوڅوک چې د الله ﷻ سره [بل څه] شريكوي | نو هغه داسې دې لكه چې د آسمان نه

الطَّيْرُ | اَوْ تَهْوِيْ | بِهِ | الرِّيْحُ | فِيْ مَكَانٍ سَحِيْقٍ ۝ | ذٰلِكَ

مارغان | يا | او غورزوی | هغه لره | هوا | | په يو خائي ژور كښي | دا ده اصل معامله |

راپريوتلو | يا مارغانو په [فضا كښې] اوتښتولو | يا سيلۍ چرته لرې په څه خائي كښې اوغورزولو

وَمَنْ يُّعَظِّمْ | شَعَآئِرَ اللّٰهِ | فَاِنَّهَا | مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ ۝

او څوك چي عزت كوي | دنښو د الله | نو بيشكه دا عزت | د تقوی د زړونو نه دې |

داخبره اوشوه | او څوک چې د الله ﷻ دنښو عزت كوي | نو دا خبره د زړونو د پرهيزګارۍ خبره ده

لَكُمْ | فِيْهَا | مَنَافِعُ | اِلٰۤى اَجَلٍ مُّسَمًّى | ثُمَّ | مَحِلُّهَاۤ

دی ستاسو دپاره | په دې كښی | ډيرې فائدې | د نيټې مقررې پورې | بيا | خائې د ذبحه كولو د هغې

ستاسو دپاره د څاروو نه يوې مقررې نيټې پورې فائده اخستل جائز دی | بيا د دغې څاروو د حلالې

اِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ ۝ع

د پخواني كور خواته دې |

خائې د زوړ كور [كعبې] په خوا كښې مقرر دې |

## آسان ترجمه قرآن

دا ټولې خبرې ياد ساتئ، او كوم انسان چه د هغه څيزونو تعظيم كوی كومو ته چه الله پاک حرمت وركړې دې، نو د هغه په حق كښې دا عمل د هغه د رب په نزد ډير غوره دې، ټول څاروی ستاسو دپاره حلال كړې شوې دی. سوا د هغه څاروو نه چه د هغې تفصيل په تاسو باندې لوستلې شوې دې. لهٰذا د بتانو د ګندګۍ نه او د دروغژلې خبرې نه داسې بچ اوسيږئ. چه مائل يئ تاسو خاص الله ته. څوک هم هغه سره شريک نه منئ. او څوک چه د الله پاک سره شريک اومنی نو ګويا هغه د آسمان نه راپريوتلو، بيا يا خو مرغانو اوچتولو سره يوړو، او يا هوا چرته لرې ځائې ته ګزار كړو دا ټولې خبرې ياد ساتئ. كوم انسان چه د الله پاک د شعائرو تعظيم كوی، نو دا خبره د زړونو په تقوٰی سره حاصليږی تاسو ته د يو مقرر وخته پورې (د دې څاروو نه) د فوائدو حاصلولو حق دې بيا د هغې د حلاليدو منزل هم هغه زوړ كور (يعنی خانه كعبې) سره دې.

## خلاصه تفسير

﴿ذٰلِكَ﴾ [دا خبره وشوه] كوم چه د حج مخصوص احكام وو [ او] اوس نور احكام چه په كومو كښې حج او علاوه د حج نه نورې مسئلې هم دی واوړئ چه ﴿وَمَنْ يُّعَظِّمْ حُرُمٰتِ اللّٰهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ﴾ [كوم سړې د الله تعالٰی د محترمو احكامو عزت كوی پس داد دهٔ په حق كښې د دهٔ د رب په نزد غوره ده ] دا احكامو په عزت كولو كښې دا هم داخله ده چه علم ئې هم حاصل كړی او دا هم

چه په دې دعمل کولو اهتمام کوی او دالله تعالی داحکامو عزت کول دده دپاره ځکه غوره دي
چه هغه دعذاب نه نجات او د دائمی راحت سامان دې ﴿وَاُحِلَّتۡ لَكُمُ الۡاَنۡعَامُ﴾[او دغو
مخصوصو څاروو لره په استثنا دهغو] څنو څنو ﴿اِلَّا مَا یُتۡلٰی عَلَیۡكُمۡ﴾[ کوم چه تاسو ته لوستلې شوي
دی ] یعنی دسوره انعام وغیره په ایت [ قل لا اجد فیما اوحی الی محرما ](١) کښې د حرامو څاروو
تفصیل ښودلې شوې دې دهغې نه سوا نور څاروی [ تاسو دپاره حلال کړې شوی دی ] په دې
ځای کښې دڅاروو دحلال والی ذکر ئې ځکه وکړو چه په حالت د احرام کښې دښکار په منع
کیدو سره چاته د احرام په حالت کښې دعامو څاروو څناورو دممانعت شبهه ونه شي او هرکله
چه ددین دنیا ښیګړه دالله تعالی دحکمونو په تعظیم کولو کښې ده ﴿فَاجۡتَنِبُوا الرِّجۡسَ مِنَ
الۡاَوۡثَانِ﴾[ نو تاسو خلق ډکندګئ نه یعنی دبتانو نه په ډډه وسیږئ ] ځکه چه بتانو لره دالله
تعالی سره شریکول خو دحکم الهی نه ښکاره بغاوت دې دلته دشرك نه دبچ کیدو هدایت په
خاص طور سره ځکه وشو چه د مکې مشرکانو به په خپل حج کښې کومه تلبیه لوستله په هغې
کښې به ئې [ الا شریکا هو لك ] ملاوول یعنی دالله تعالی هیڅوك شریك بغیر دهغو بتانو نه
نشته کوم چه په خپله دالله دی ﴿وَاجۡتَنِبُوۡا قَوۡلَ الزُّوۡرِ﴾[ او د دروغو دخبرې نه ځان ساتئ] خواه
دعقیدو دروغ وی لکه دمشرکانو د شرك عقیده یا نور قسم دروغ وی ﴿حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَیۡرَ مُشۡرِكِیۡنَ
بِهٖ﴾ [ په دې طور سره چه الله تعالی ته ښکته کیږی د هغه سره] چالره شریك مه جوړ وئ
﴿وَمَنۡ یُّشۡرِكۡ بِاللّٰهِ﴾ او کوم سړې چه دالله تعالی سر شریك جوړوی نو] دهغه حالت به داسې وی
لکه چه ﴿فَكَاَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَآءِ﴾ [ ګویا دې داسمان نه راپریوتو ﴿فَتَخۡطَفُهُ الطَّیۡرُ اَوۡ تَهۡوِیۡ بِهِ الرِّیۡحُ فِیۡ مَكَانٍ
سَحِیۡقٍ﴾بیا الوتونکو مارغانو دده غوښې وشوکولې یا هوا چرته لرې ځای ته
غوزار کړو ﴿ذٰلِكَ﴾ داخبره هم ] کومه چه په طور دقاعدې کلئې وه [ وشوه او] اوس یوه ضروری
خبره دقربانئ د څاروو متعلق بله واورئ چه ﴿وَمَنۡ یُّعَظِّمۡ شَعَآئِرَ اللّٰهِ﴾ [ کوم سړې چه دالله تعالی
ددین ددې ] ذکرشوو [ یادګارونو پوره لحاظ وساتی ﴿فَاِنَّهَا مِنۡ تَقۡوَی الۡقُلُوۡبِ﴾ نو دده دا
لحاظ ساتل په زړه سره دالله تعالی نه ویره حاصلوی ] دیادګارونو دلحاظ ساتلو نه مراد دالله
تعالی د هغه احکامو پابندی ده چه دقربانئ متعلق دی خواه د ذبح نه وړاندې احکام وی یا
دذبح په وخت وی لکه په هغې دالله تعالی نوم اخستل یا پس د ذبح نه وی لکه دهغې خوړل چه
دکومو دپاره ئې خوړل حلال دی هغه ئې خوری دچا دپاره چه ئې خوړل حلال نه وی هغه ئې نه
خوری په دې احکامو کښې څه خو وړاندې ذکر شوی دی ﴿لَكُمۡ فِیۡهَا مَنَافِعُ اِلٰۤی اَجَلٍ مُّسَمًّی﴾
[او ځنې دادی چه تاسو لره د دوی نه تر یومقررو وخته پورې فائدې حاصلول جائز دی ] یعنی
تر څوپورې چه هغه د شرعی قاعدو مطابق هدی نه وی جوړه کړې نو ددې نه پئ یا سورلی یا
بار وړل وغیره فائدې اخستل جائز دی مګر هر کله چه دا دبیت الله او حج یا عمرې دپاره
هدی قربانی جوړه کړې شی نو بیا ددې نه څه نفع اخستل جائز نه دی [ بیا ] یعنی دقربانئ

---

(١) ترجمه:- ته اووایه چې څه احکام د وحی په ذریعه ماته راغلی دی په هغې ماڅه حرام خوراك نه دي موندلي

جوړيدونه پس ﴿ثُمَّ مَحِلُّهَآ اِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيْقِ﴾ [ ددې د ذبح حلاليدو موقع د بيت عتيق په خوا كښې ده ] مراد ترې نه پوره حرم دې يعني دحرم نه بهر دې ذبح نه كوي.

## معارف او مسائل

[حُرُمٰتِ اللهِ] دې څخه مراد هغه څيزونه دى چې الله ﷻ ورته احترام او عزت وركړې دې . يعنى دې څخه احكام شرعيه مراد دى د كومو چې تعظيم كول يعنى د هغې علم حاصلول او په هغې باندې عمل كول ددنيا او آخرت د نيك بختئ خزانه ده .

[وَاُحِلَّتْ لَكُمُ الْاَنْعَامُ اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ] د انعام څخه مراد ، اوښ ، غوا چلې ګډ وغيره دى چې د احرام په حالت كښې هم حلال دى ، او په [اِلَّا مَا يُتْلٰى] سره د مستثنى كړې شوؤ ځاروؤ بيان په نورو آيتونو مباركو كښې راغلې دې چې هغه مردار ځاروى موقوذه او داسې ځاروى دى چې د الله ﷻ نوم پرې نه وى اخستې شوى يا د الله ﷻ څخه بغير د بل چا نوم پرې اخستې شوې وى، هغه ټول هميشه دپاره حرام دى كه داحرام په حالت كښې وى او كه د غير احرام په حالت كښې وى. [فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ] د رجس معنى ناپاكى او ګندګى ده ، اوثان د وثن جمع ده او ددې معنى ده بت. بتانو ته ئې پليتى ځكه اووئيله چې هغه د انسان باطن لره د شرك د پليتئ څخه ډكوى.

[وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّوْرِ] ، [قَوْلَ الزُّوْرِ] څخه مراد دروغ دى ، يعنى د حق څخه خلاف هر څه چې وى هغه په باطلو او دروغو كښې داخل دى. خواه دغه دكفر او شرك فاسدې عقيدې يا په معاملو او ګواهئ وركولو كښې دروغ وئيل وى ، رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل چې د ټولو لويو لويو ګناهونو څخنې ډير لوئې ګناهونه دادى چې الله ﷻ سره څوك شريك اوكرځولې شى ، د مورپلار نافرمانى اوكړې شى ، د دروغو ګواهى اوكړې شى يا په عامو خبرو كښې دروغ اووئيلې شى ، رسول اكرم ﷺ آخرى لفظ [قَوْلَ الزُّوْرِ] بيا بيا اوفرمائيلو. [رواه البخارى][1]

[وَمَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللهِ] ، [شَعَآئِرَ] د شعيرة جمع ده چې معنى ئې علامت او نخښه ده يعنى هغه څيزونو ته شعائر وئيلې شى چې د يو خاص مذهب يا ډلې خاص نښې وى ، په دې بنا داسلام شعائر هغه خاص احكام دى چې په عرف كښې د مسلمانئ خاص نخښې ګڼړلې شى، نو د حج اكثر احكام هم داسې دى.

[مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ] يعنى د شعائرو تعظيم كول د زړۀ د تقوى نخښه ده ، ددې تعظيم هم هغه څوك كوى چې په زړۀ كښې ئې تقوى او د الله ﷻ ويره وى ، نو دهغې اثر په ټولو عملونو او كارونو كښې ليدلې كيديشى.

[لَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى] يعنى د چار پايو ځاروو څخه د پيئو اخستلو ، سورلئ كولو او دبار اوړلو هرقسم فائدې تر هغې پورې حاصلولې شئ تر څو پورې چې دغه ځاروى مو د مكې مكرمې په حرم كښې د ذبح كولو په غرض د هدى په ډول نه وى ټاكلى. هدى هغه ځاروى ته

[1] صحيح البخاري كتاب الشهادات ،باب ما قيل في شهادة الزور [ج:١ص:٣٦٢]

وئیلې شي چې حج یا عمره کوونکې ځان سره یو څاروې بوځی ، داسې څاروی څخه بغیر د څه مجبورئ فائده اخستل جائز نه ده. لکه د هدی د اوښ بغیر ورسره بل څاروي د سورلئ کولو څخه نه وی او پیاده تلل ورته مشکل وی نو په دغه اوښ هدی باندې سورلی کولې شی.

[ثُمَّ مَحِلُّهَا إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ] دلته د بیت عتیق څخه مراد ټول حرم شریف دې چې په حقیقت کښې د بیت الله شریف خاص حدود دی څنګه چې په تیر شوی آیت مبارک کښې د مسجد حرام دلفظ څخه ټول حرم مراد اخستې شوې دې، دغه شان دلته هم د بیت عتیق څخه پوره حرم مبارک مراد دې، په محلها کښې د محل معنی د اجل راتلوځائې ده چې مراد ترې د ذبح کولو ځائې دې. یعنی د هدی د ذبح کولو ځائې په حرم کښې دننه ضروری دې ، د حرم څخه بهر ذبح کول جائز نه دی. او بیا حرم عام دې که هغه منی وی یا د مکې مکرمې څه بل یو ځائې وی [روح المعانی].(۱)

وَلِكُلِّ أُمَّةٍ | جَعَلْنَا | مَنْسَكًا
او دپاره د هر امت | مقرر کړی ده مونږ | یوه طریقه دقربانئ
| اومونږ هریو امت دپاره یو د قربانی ځائې کړې دې

لِيَذْكُرُوا | اسْمَ اللَّهِ | عَلَى مَا | رَزَقَهُمْ
دپاره ددې چی یاد کړئ هغوئ | نوم دالله | په هغه [څاروو] باندې | چی ورکړی دی هغه هغوئ له
دې دپاره چې مونږ ورته کوم څاروی ورکړی دی | په هغې دالله ﷻ نوم واخلی |

مِنْ بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ ۗ | فَإِلَٰهُكُمْ | إِلَٰهٌ وَاحِدٌ | فَلَهُ | أَسْلِمُوا ۗ
دڅریدونکو څاروو نه | نو معبود ستاسو | معبود یو دې | او خاص هم هغه ته | غاړه کیږدئ
نوستاسو معبود صرف یو دې لله ﷻ دې | نو هم دهغه تابعداری کوئ |

وَبَشِّرِ | الْمُخْبِتِينَ | الَّذِينَ | إِذَا | ذُكِرَ اللَّهُ
او زیرې ورکړه | عاجزی کونکو خلقو لره | هغه [عاجزی کونکی] | کله چی | یاد کړې شی الله
او [ائې پیغمبره] عاجزی کونکو ته زیرې ورکړه | داهغه خلق دې چې کله دالله ﷻ نوم یاد شی نو ددوئ

وَجِلَتْ | قُلُوبُهُمْ | وَالصَّابِرِينَ | عَلَى مَا | أَصَابَهُمْ
نو ویریږئ | زړونه دهغوئ | او صبر کونکی وی | په هغه مصیبت باند | چی رسیږی هغوئ ته
زړونه یریږی | او کوم مصیبتونه چه ورته اورسی په هغې صبر کوی |

وَالْمُقِيمِي | الصَّلَاةِ | وَمِمَّا | رَزَقْنَاهُمْ | يُنْفِقُونَ
او قائیمونکی وی | دمانځه | او دهغې رزق نه | چی ورکړې دې مونږ هغوئ ته | خرچ کوی
اود مونځونو پابندی کوی | اوزمونږ د ورکړې روزئ نه [ دنیکئ | په لارکښې ] | خرچونه کوی |

(۱) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص: ۶۱ ، ۶۲]

| وَالْبُدْنَ | جَعَلْنٰهَا | لَكُمْ | مِّنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ | لَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او اوښان دقربانۍ | گرځولي دي مونږ هغه | دپاره ستاسو | دنښو دالله نه | دي ستاسو دپاره |
| اوښان مونږ ستاسو دپاره دالله [ددين] نښې مقرر کړي دي(۱) | | | | په دې کښې ستاسو خپل خير دې |

(۱) **د قربانۍ اهميت:** ارشاددې چه په ټولوامتونوکښې په هريوامت کښې اوهرې يوې ډلې ته مونږ د قربانۍ حکم ورکړې وو د هغوی د پاره يوه ورځ د اختر مقرر وه هغوی به هم د الله تعالى په لارکښې حلاله کوله ټول په ټولوبه خپلې قربانۍ مکې ته راليکلې دې د پاره چه د قربانۍ د څاروو د حلالې په وخت کښې د الله تعالى د نوم ذکر اوکړی. حضور ﷺ له هم دوه برګ ګډان لوی لوی ښکرو والا راوړلې شو هغوی دا راسملول اود هغې په مرئی ئې پښه مبارکه کيخوده اوبسم الله الله اکبر لوستلو سره ئې حلال کړل. (صحيح بخاري:۵۵۶۵،صحيح مسلم:۱۸۶۶) مسنداحمدکښې دی صحابه کرامو ﷺ دحضور ﷺ نه تپوس اوکړودا قربانی څه څيز دې؟ حضور ﷺ جواب ورکړو ستاسو د پلار ابراهيم ﷺ سنت دی. تپوس ئې اوکړو مونږ ته په دې کښې څه ملاويږي؟ وئې فرمائيل د هريوويښته په بدله کښې يوه نيکي. تپوس ئې اوکړود وړئې څه حکم دې؟ وئې فرمائيل د وړئې کولوسره د هريو ريښې په بدله کښې يوه نيکي.دا امام ابن ماجه ﷺهم راوړې دی. (احمد:۴/۳۶۸، ابن ماجه:۳۱۲۷) ستاسو د ټولوالله تعالى هم يودې سره د دې چه د شريعت بعضې احکام بدليږي رابدليږي خو په توحيد کښې د الله تعالى په يووالي کښې يورسول ته هم په نيک امت کښې اختلاف نه دې شوي ټول د الله تعالى توحيد اوهم د هغه دعبادت د پاره ټول جهان رابلې په ټولوباندې اول هم داوحی نازله شوې ده نوتاسو ټول د هغه طرف ته تيټ شئ اوهم د هغه شئ اوهم د هغه داحکامو پابندی اوکړئ هم د هغه په تابعدارئ کښې استحکام اوکړئ کوم خلق چه مطمئن دي کوم چه متواضع دی کوم چه د تقوئ والا دی څوك چه د ظلم نه ويزاره دی د مظلوميت په حالت کښې د بدلې اخستلونه دی د مولا په مرضئ اورب په رضا باندې راضی دی هغوی ته زيری واوروئ هغوی د مبارکوقابل دی. څوك چه د الله تعالى ذکر اوری زړه نرم کړی اود الله تعالى د ويرې نه زړه ډك کړی د رب طرف ته ښکته کيږی. په سختوکارونوباندې صبرکوی، په مصيبتونوباندې صبرکوی. امام حسن بصری ﷺ فرمائي والله که تاسو د صبر اوبرداشت عادت په خان کښې وانچولو نوتاسو به بربادکړې شئ. د﴿وَالْمُقِيْمِىْ﴾ قراءت په اضافت سره خود جمهورودې خوابن سميقع ﴿وَالْمُقِيْمِيْنَ﴾ لوستلې دې د ﴿الصَّلٰوةَ﴾ ئې زبر لوستلې دې. امام حسن ﷺ خولوستلې دې د نون په حذف او اضافت سره خو د ﴿الصَّلٰوةِ﴾ زبرئې لوستلې دې اوفرمائی چه د نون حذف دلته د تخفيف په وجه سره دې. څکه چه په وجه داضافت اومنلې شی نود دې زير لازم دې نوکيدې شی چه په وجه د نيزديکت وی مطلب دا چه د رب د فريضې پابند دی اود الله تعالى حق اداکونکی دی.اودالله تعالى ورکړې شوی ورکوی د خپلې کورنئ خلقو ته فقيرانو محتاجانوته اوټول مخلوق ته څوك چه ضرورت مندوی اوټولوسره په ښه سلوك اواحسان سره مخ کيږی. د الله تعالى د حدودو حفاظت کوی د منافقانو په شان نه دی چه يوکاراوکړی بل پريږدی. په سورت براءة کښې هم دا صفتونه بيان کړې شوی دی اوهلته د الله تعالى په حمد سره پوره تفسيرهم مونږ کړې دې.

**د قربانۍ فضائل:-** دا هم د الله تعالى احسان دې چه هغه څاروی پيداکړی اوهغه ئې په خپل نوم باندې قربانی کولو اوخپل کورته د قربانۍ په توګه باندې د رسولوحکم کړې دې او دائې شعائرالله اوګرځول بل حکم ئې فرمائيلې ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَآئِدَ وَلَآ آٰمِّيْنَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا ؕ وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا ؕ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۪ وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۪ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ﴾ (۵/المائدة:۲) مه د الله تعالى د دې عظمت والا د نښو بې ادبی کوئ اومه د حرمت والا د مياشتوګستاخی کوی الخ. هر اوښ او غوا چه د قربانۍ د پاره مقرر کړې شی هغه په بدن کښې داخل دی. (صحيح مسلم:۱۲۱۳، ابوداؤد:۲۸۰۹، ترمذی:۹۰۴) اګرچه بعضې خلقوصرف اوښ ته بدن وئيلې خوصحيح دا دی چه اوښ خودې ولې غوا هم په دې کښې شامله ده. حديث شريف کښې دی چه څنګه اوښ د اووه کسانو د طرف نه قربانی کيدې شی دغه شان غواهم. د جابربن عبدالله ﷺ نه په صحيح مسلم کښې روايت دې مونږ ته...[بقيه حاشيه په راروان مخ...

فِيهَا خَيْرٌ ۖ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَآفَّ ۖ فَإِذَا وَجَبَتْ

په هغې کښې | خير | پس ياد کړئ | نوم دالله | په هغې باند | په ولاړه | نو کله چې | اولړې

نو څه وخت چې تاسو دغه [ځاروی قربانئ ته] قطار کښې اودروئ [نو دالله ﷻ نوم پرې اخلئ [بيا چې

جُنُوبُهَا فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ

اړخونه دهغې | نو خورئ | دهغې نه [پخپله هم] | او خوروئ ئې | په صبر کونکې فقير باندې هم

هغوی په اړخونو پريوځی [نو دهغې نه خپله هم خورئی] او دصبر کونکو او غوښتونکو فقيرانو [دواړو] باندې

وَالْمُعْتَرَّ ۚ كَذٰلِكَ سَخَّرْنٰهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ

او په سوال کونکې باند هم | دارنګې [تابع کړی دی مونږ داځاروی] دپاره ستاسو [دپاره ددې چې تاسو

هم خوروئی [دغه شان مونږ داځاروی ستاسو دپاره تابع کړی دی [چې تاسو زمونږ شکر اداکړئ

تَشْكُرُونَ ۝ لَنْ يَّنَالَ اللّٰهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا وَلٰكِنْ يَّنَالُهُ

شکر اوباسئ | هر ګز نه رسی [الله ته [غوښې دهغې [اونه اووينې دهغې ا | وليکن رسی هغه ته |

الله ﷻ ته نه خو ددې [ځناورو ] غوښه رسيږی [اونه ئې وينه | بلکه هغه ته ستاسو صرف

التَّقْوٰى مِنْكُمْ ۗ كَذٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ

تقوی | ستاسو نه | دارنګې | تابع کړل هغه دا ځاروی | دپاره ستاسو

پرهيزګاری رسيږی [په دې شان هغه دا ځاروی ستاسو تابع کړی دی [چې تاسو

لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ ۗ

دپاره ددې چې تاسو لوئې بيان کړی دالله [په هغه هدايت باند | چې ښودلې ئې دې تاسو ته |

دالله ﷻ لوئې بيان کړئی | ........چې هغه تاسو ته لار خودلې ده

.....بقيه د تيرمخ] رسول الله ﷺ حکم راکړوچه مونږ په اوښ کښې اووه کسان شريك شو او په غواکښې دې هم اووه کسان سرې شريك شی. امام اسحاق بن راهويه رحمه الله وغيره فرمائی چه په دې دواړو ځاروو کښې لس لس کسان شريکيدلې شی. په مسنداحمد اوسنن نسائی کښې داسې حديث هم راغلې دې. والله اعلم.

بيافرمانی چه په دې ځناورو کښې ستاسو دَ آخرت ګټه ده. حضور ﷺ فرمائی چه دَ قربانئی دَ اختر په ورځ دَ انسان يوعمل هم دَ الله تعالی په نيز دَ قربانئی نه زيات خوښ ه دې ځاروي به دِ قيامت په ورځ دِ ځيلو ښکرو نوکو او ويښتوسره دَ انسان په نيکوکښې پيش کولې شی. يادساتئی دَ قربانئی دَ وينې دَ څاڅکی په زمکه باندې دَ پريوتلونه وړاندې الله تعالی ته رسی نو په ښخوزړونوسره قربانی کوئی. (ابن ماجه،ترمذی:۱٤۹۳،ابن حبان:۳۱۲۶)

حضرت سفيان ثوری رحمه الله خو به په قرض کولو سره هم قربانی کوله اودَ خلقو په تپوس کولو به ئې فرمائيل چه الله تعالی فرمائی په دې کښې ستاسو ښيګړه ده. رسولِ الله ﷺ فرمائی دَ يوې خرچې غوره والې دَ الله تعالی په نيز په نسبت دَ دغه خرچې چه دَ قربانئی دَ اختر په ورځ په قربانئی باندې کولې شی هيڅ شئ نه دې.( دارقطنی:۲۸۲/٤) (دارقطنی). الله تعالی فرمائی ستاسو دَ پاره په دې ځاروو کښې ثواب دې ګټه ده دِ ضرورت په وخت کښې پرې څکلې شنی سورلی کولې شنی اوبياد دې دَ قربانی کولو په وخت کښې دَ خپل نوم لوستلوهدايت کوی.

| |
|---|
| وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِينَ ۞ |
| او زیرې ورکړه [اے نبی ﷺ] نیکی کونکو خلقو له \| |
| او [ائې نبی ﷺ] نیکی کونکو ته زیرې ورکړه \| |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ د هر امت دپاره قربانی په دې غرض بانديږ مقرر کړې ده چه هغوی په هغو څارووبانديږ د الله پاک نوم واخلی کوم چه الله پاک هغوی ته ورکړې دی. لهٰذا ستاسو معبود بس یو معبود دې، پس تاسوهم د هغه فرمانبرداری کوئ، او زیرې ورکړه هغه خلقو ته چه د هغوی زړونه الله پاک ته ښکته کیدونکی دی. چه د هغوی حال دا دې چه کله د هغوی مخکښې د الله پاک ذکر کولې شی نو د هغوی په زړونو بانديږ رعب راخور شی، او په هغوی بانديږ راغلی هر مصیبت بانديږ صبر کوی او مونځ لره قائمونکی دی، او کوم رزق چه مونږ هغوی ته ورکړې دې د هغې نه (د الله پاک په لاره کښې) خرچ کوی او د قربانئ اوښان او غواګانې مونږ ستاسو دپاره د الله پاک په شعائرو کښې شامل کړې ده، ستاسو دپاره په دې کښې خیر دې پس کله چه هغه په یو قطار کښې ولاړې وی، په هغوی بانديږ د الله پاک نوم واخلئ. بیا چه کله (ذبح کیدو سره) د هغوی اړخونه په زمکه اولږی نو د هغې (د غوښې) نه خپله هم خورئ، او هغه محتاجو بانديږ هم اوخروئ کوم چه صبر کولکی ناست دی، اوهغوی بانديږ هم چه خپل حاجت ښکاره کړی. او دغه څاروی دغه شان مونږ ستاسو تابع کړې دی چه تاسو شکر ګزار شئ الله پاک ته نه د هغوی غوښه رسیږی، نه د هغوی وینه، خو هغه ته ستاسو تقویٰ رسیږی مونږ دا څاروی داسې ستاسو تابع کړې دی، چه تاسو په دې خبره بانديږ د الله پاک تکبیر اوکړئ چه هغه تاسو ته هدایت درکړو، او څوک چه په ښه طریقه بانديږ نیک عمل کوی، هغوی ته زیرې ورکړه.

## خلاصه تفسیر

[او] بره چه کوم په حرم کښې دقربانئ ذبح کولو حکم دې په دې سره دې څوك دانه ګنړی چه اصل مقصود د حرم تعظیم دې بلکه اصل مقصود دالله تعالی تعظیم او دهغه سره تقرب دې او مذبوح او مذبح ددې یو آله او ذریعه ده تخصیص د څنو حکمتونو په وجه سره دې او که دا تخصیصات اصلی مقصودونه وې نو په یو شریعت کښې به نه بدلیدل مګر ددې بدلیدل ظاهر دی البته تقرب الی الله کوم چه اصل مقصود وو هغه په ټولو شریعتونو کښې محفوظ پاتې شو چنانچه [مونږه] چه څومره اهل شرائع تیر شوی دی په دوی کښې ﴿وَلِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا لِّيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ﴾ [دهر امت دپاره قربانی کول په دې غرض سره مقرر کړی وو چه هغوی په دغو مخصوصو څاروو باند دالله تعالی نوم واخلی کوم چه هغه دوی ته ورکړی وو] پس اصل مقصود دا نوم اخستل وو [پس] ددې نه دا خبره راووته چه ﴿فَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ [ستاسو معبود] حقیقی] یوخدائ دې] چه دهغه په ذکر کولو سره ټولو ته دتقرب حکم کیږی ﴿فَلَهُ أَسْلِمُوا﴾ [نو تاسو همه تن دهغه شئ] یعنی خالص موحدین وسیږئ څه مکان وغیره په معظم بالذت ګنړلو دیوې ذرې قدرې دشرك شائبه په خپل عمل کښې رانه ولئ [او] اے محمد ﷺ کوم خلق چه زمونږ په دې تعلیم عمل کوی [ته] دداسې الهی احکامو په

وړاندې ﴿وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ﴾ [ ګردن ښکته کوونکو ته ] دجنت وغیره [ خوشخبری ورکړه کوم چه
] ددې توحید خالص په برکت سره [ داسې دی چه کله ] ددوی په وړاندې ﴿اَلَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ﴾ [
دالله تعالی ] داحکامو صفتونو وعدو وعیدونو [ ذکر کولې شی ﴿وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ﴾ نو ددوی زړونه
ویریږی ﴿وَالصّٰبِرِيْنَ عَلٰى مَآ اَصَابَهُمْ﴾ او کوم چه په هغو مصیبتونو چه په دوی پریوځی
صبر کوی ﴿وَالْمُقِيْمِي الصَّلٰوةِ﴾ او کوم چه دمونځ پابندی کوی ﴿وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ﴾ او څه چه مونږ
دوی لره ورکړی دی دهغې نه ] په قدر دحکم او توفیق [ خرڅ کوی یعنی خالص توحید داسې
برکت ناك څیز دې چه ددې په وجه سره بدنی او نفسانی او مالی کمالات پیداکیږی [ او ] دغه
شان بره چه کوم په تعظیم دشعائرالله الخ کښې دخونفعو اخستل ممنوع معلوم شوی دی په
دې سره هم په دې قربانو دمعظم بالذات شبهه ونه کړې شی ځکه چه دې سره هم اصل هغه
دالله تعالی او دهغه ددین تعظیم دې او دا تخصیصات ددې یوه طریقه ده پس ﴿وَالْبُدْنَ جَعَلْنٰهَا
لَكُمْ﴾ [ دقربانۍ اوښ او غوا لره ] او دغه شان بیزې [ چیلۍ ] ګډې لره هم ﴿مِّنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ﴾ [ مونږ
دالله تعالی ] ددین [ یادګار جوړ کړې دې ] چه ددې متعلق داحکامو په علم او عمل سره دالله
تعالی دعظمت او ددین عزت ظاهریږی چه دده دنامزد څیز نه نفع اخستو کښې دمجازی مالك
رایٔ قابل اعتبار پاتې نه شی چه په دې سره دده پوره بنده والې او دمالك حقیقی معبود والې
ظاهریږی او ددې دینی حکمت نه علاوه ﴿لَكُمْ فِيْهَا خَيْرٌ﴾ [ په دې څاروُو کښې کښې ستاسو ]
نورې هم [ فائدې دی ] مثلا دنیوی فائده په خپله خوړل او په نورو خوړول او اخروی فائده
ثواب دې [ پس ] هرکله چه په دې کښې دا حکمتونه دی نو ﴿فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَآفَّ﴾ [ تاسو
چه دوی ودروئ ] د ذبح کولو په وخت کښې [ دالله تعالی پرې نوم اخلئ ] دا صرف د اوښانو
په اعتبار سره فرمائی چه ددوی په ولاړې ذبح کول په وجه داسانۍ د ذبح او وتلو دروح غوره
دی پس په دې سره خو اوخروی فائده یعنی ثواب حاصل شو او دا رنګ دالله تعالی لوئی
ظاهره شوه چه دهغه په نوم باندیو روح قربان شو چه په دې سره دهغه خالق والې او دده مخلوق
والې ظاهر کړې شو ﴿فَاِذَا وَجَبَتْ جُنُوْبُهَا﴾ [ پس کله چه هغه په ] کومه [ ډډه وغورزیږی ] اوپخ
شی ﴿فَكُلُوْا مِنْهَا وَاَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ﴾ [ نو تاسو په خپله ترې نه هم خورئ او بې سوال کوونکی او
سوال کوونکی ] محتاج [ ته ] کوم چه د بائس او فقیر دوه قسمونه دی [ هم ورکوئ ] چه دا
دنیوی فائده هم ده او ﴿كَذٰلِكَ سَخَّرْنٰهَا لَكُمْ﴾ [ او مونږ دې څاروو لره دغه شان ستاسو دحکم لاندې
کړی دی ] چه تاسوسره دخپلې کمزورۍ او دهغوی دقوت دغه شان ددوی په ذبح قادر شوئ [
ددې دپاره چه تاسو ] په دې تسخیر باند دالله تعالی ﴿لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴾ [ شکرادا کړئ ] دا
حکمت مطلق په ذبح کښې دې قطع نظر ددې دقربانی کیدونه او وړاندې دذبح تخصیصات
مقصود بالذات نه کیدو لره په یوې عقلی قاعدې سره بیان فرمائی چه ګورئ ظاهری خبره خو
داده چه ﴿لَنْ يَّنَالَ اللّٰهَ لُحُوْمُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا﴾ [ الله تعالی ته نه ددې غوښه رسیږی او نه ددې
وینه ﴿وَلٰكِنْ يَّنَالُهُ التَّقْوٰى مِنْكُمْ﴾ لیکن هغه ته ستاسو تقوی ] چه نیت د تقرب او اخلاص ددې
دشعبونه دې البته [ رسیږی ] پس دغه تعظیم الهی مقصود والې ثابت شو او لکه څنګه چه بره
په [ كذالك سخرنها الخ ] کښې دتسخیر یوعام حکمت یعنی دقربانی کیدو په خصوصیت سره
دقطع نظر کولو په اعتبار سره بیان شوې وو وړاندې ددې تسخیر یو خاص حکمت یعنی په
لحاظ دقربانۍ کیدو ارشاد فرمائی چه ﴿كَذٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ﴾ [ دغه شان الله تعالی دې څاروو لره

ستاسو دحکم لاند کړل چه تاسو ] دالله تعالی په لاره کښې دوی لره قرباني کړئ ﴿لِتُكَبِّرُوا اللهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ﴾ [ په دې خبره دالله تعالى لوئى ] بيان [كړئ چه هغه تاسولره ] په داسې شان دقربانئ کولو [ توفیق درکړو ] ورنه دالله تعالى توفيق كه ستاسو رهبر نه وې نو په ذبح کولو کښې به تاسو شبهې راوستلې ددې عبادت نه به محرومه شوى وئ او يا به تاسو دغير الله په نوم ذبح كوله [ او] اے محمد ﷺ ﴿وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِيْنَ﴾ [ اخلاص والو ته خوشخبري واوړه ] ددې نه وړاندې خوشخبرى د اخلاص په شعبووه دا په خاص اخلاص باند ده.

## معارف او مسائل

[وَلِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا] ، [مَنْسَك] او [نُسُك] په عربى ژبه كښې درې معنو دپاره استعماليږى ، د څاروؤ دقربانئ ، دحج ، د ټولوكارونو او د مطلق عبادت دپاره . په مختلفو ځايونو د قرآن عظيم الشان کښې د درې واړو معنو دپاره استعمال شوې دې . دغه وجه ده چې د تفسير په امامانو کښې مجاهد وغيره دلته د منسک معنى قربانى اخستې ده ، په دې بنا د آيت مبارک معنى به داشى چې د قربانئ كوم حكم چې ددې امت خلقو ته وركړې شوې دې ، دا څه نوې حكم نه دې ولې چې پخوانو امتونو ټولو ته د قربانئ د عبادت حكم شوې وو. قتاده رحمه الله ددې دويمه معنى اخستې ده ، د آيت مبارک مراد دا ښائى چې څنګه د حج كارونه ددې امت په ذمه كړې شوې دى دغه شان په پخوانو امتونو باندې هم حج فرض كړې شوې وو ، ابن عرفه ، دلته دريمه معنى مراد اخستې ده ، په دې اعتبار سره د ايت مبارک مراد به دا وى چې د الله تعالى عبادت كول مونږ په ټولو پخوانو امتونو باندې هم فرض كړى وو ، اګر چې ددې په طريقو كښې دامتونو تر مينځه څه نه څه فرق پاتې شوې دې ، مګر اصل عبادت په ټولو کښې شريک پاتې شوې دې.

[وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ] عربى ژبه كښې خبت د ښكته زمكې معنى وركوى ، په دې بنا خبيت هغې انسان ته وئيلې شى چې خپل ځان کم ګڼرى ، څکه قتاده رحمه الله او مجاهد رحمه الله د مخبتين معنى مواضعين يعنى عاجزى كوؤنكى كړې ده . عمرو بن اوس فرمائيلى دى چې مخبتين هغه خلق دى چې په خلقو باندې ظلم نه كوى ، اوكه په دوئ باندې څوک ظلم کوى نو دهغې بدله ترې نه اخلى ، سفيان رحمه الله ، فرمائيلى دى چې د ا هغه خلق دى چې د الله ﷻ په تقدير باندې په هر حالت کښې راضى وى كه په دوئ آرام او فراخى وى يا تكليف او تنګى وى .[1]

[وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ] د وجل اصلى معنى هغه ويره او هيبت ده چې د چا دلويئ په وجه په زړه كښې پيدا كيږى ، د الله تعالى د نيكانو بندګانو حالت داوى چې دا الله ﷻ د يادګيرنې او د هغه د نوم په آوريدو سره دهغه عظمت او لويئ په وجه يو خاص قسم هيبت پرې راځى .

[وَالْبُدْنَ جَعَلْنٰهَا لَكُمْ مِّنْ شَعَآئِرِ اللهِ] وړاندې تير شوى دى چې شعائر د هغې خاصو حكمونو او عبادتونو نوم دې چې ددين اسلام نخښې ګڼرلې شى ، قربانى دهغې څينې يوه ده ، ددغې حكمونو پابندى كول زيارت ضرورى دى .

[1] تفسيرروح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص: ٦٤]

[فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَآفَّ] دصواف معنی مصفوفه یعنی صف تړلی ده ، عبدالله بن عمرو ددې تفسیر دا بیان کړې دې چې ړومبئ یوه پښه تړلې په درې پښو ولاړ[1] د اوښ د قربانئ مخصوص طریقه ده چې دغه شان په ولاړه ئې قربانی کول سنت او بهتر دی ،[2] نور څاروی قربانی کول او ذبح کول په دې شان سنت دی چې څملولې شی .

[فَإِذَا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا] د لته د [وَجَبَتْ] لفظ دسقطت معنی ورکوی لکه د و جبت الشمس محاوره چې مشهوره ده ، خو مراد ترې نه د څاروی ساه وتل دی .

[الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ] ددې نه په مخکښې آیت مبارک کښې د قربانئ دغوښې حقدار بائس ، فقیر خودلې شوې دې چې معنی ئې مصیبت زپلې محتاج ده ، په ې آیت مبارک کښې دلته د هغې تفسیر او وضاحت په قائت او معتر دوؤ لفظونو سره کړې شوې دې ، د قانت نه مرادهغه محتاج او فقیر دې چې چا نه سوال نه کوی ، فقیر او غریب وی خو په خپل ځائې ناست وی چا نه سوال نه کوی او چې څۀ ورته په گوتو ورځی په هغې صبر کوی . او د معتر نه مراد داسې کس دې چې دطمع ځایونو ته ورځی خواه په ژبه سوال کوی او که نه کوی [مظهری].[3]

**دعبادت خاص صورتونه اصل مقصود نه دی بلکه د زړه اخلاص او حکم منل مقصود دی:** [لَنْ يَنَالَ اللّٰهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا] کښې دا خودل مقصود دی چې الله ﷻ ته د قربانئ د لوئې عبادت غوښه او وینه نه رسی ، او مقصودی څیز قربانی کول هم نه دی بلکه اصلی مقصود په دې باندې د الله ﷻ نوم اخستل او د الله ﷻ حکم د زړهٔ د اخلاصه په ځائې راوړل دی ، هم دغه حکم د نورو ټولو عبادتونو دې ، یعنی په مونځ کښې صرف کیناستل ، پاسیدل ، او په روژه کښې صرف اوږې تږې اوسیدل اصلی عبادت نه وی بلکه اصلی مقصود په کښې د زړهٔ داخلاصه د الله ﷻ حکم په ځائې راوړل دی که اخلاص او محبت په کښې نه وی نو دغه عبادتونه هسې بې روحه او بې ساه کالبوتونه دی ، مګر د عبادتونو شرعی صورت او کالبوت هم ځکه ضروری دې چې د الله ﷻ په حکم باندې د عمل کولو دپاره ، هم دغه صورتونه ټاکلې شوی دی ، والله اعلم.

| | | |
|---|---|---|
| عَنِ الَّذِيْنَ | يُدٰفِعُ | اِنَّ اللّٰهَ |
| دهغه خلقو دطرفنه | مدافعت کوی | بیشکه الله |
| | بیشکه چې الله ﷻ به دمومنانو نه | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَفُوْرٍ | خَوَّانٍ | كُلَّ | لَا يُحِبُّ | اِنَّ اللّٰهَ | اٰمَنُوْا |
| نعمت ناشکره | هر خیانتګر | نهٔ خوښوی | | بیشکه الله | چې ایمان ئې راوړې دې |
| [دمشرکانو غلبه] ختمه کړی | اوبیشکه الله ﷻ هیڅ خیانت ګر ناشکره نه خوښوی | | | | |

[1] ) تفسیر روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٣ ص: ٦٧]
[2] ) صحيح البخاري كتاب الحج ،باب نحر الإبل مقيدة [ج:١ص:٢٣١]و صحيح مسلم كتاب الحج، باب إستحباب نحر الإبل قياما معقولا [ج:١ص:٤٢٤]
[3] ) تفسير المظهري[ج:٦ص:٣٢٤]

### آسان ترجمه قرآن

بیشکه الله پاک به د هغه خلقو دفاع کوی چا چه ایمان راوړي دي يقين اوساتئ چه الله پاک هيڅ دهوکه کونکي ناشکره نه خوښوی.

### خلاصه تفسير

﴿إِنَّ اللَّهَ﴾ [ بیشکه الله تعالى به ] ددې مشرکانو غلبه او دتکلیف رسولو قدرت لره ﴿يُدَافِعُ عَنِ الَّذِينَ آمَنُوا﴾ [ دایماندارو نه ] ډیر زر [ لرې کړی ] چه بیا به ئې دحج وغیره نه نه شی منع کولی ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ﴾ [ بې شکه الله تعالى دوکه باز کفر کوونکی لره نه خوښوی ] بلکه دداسې خلقو نه ناراضه دې په دې وجه اخر به دغو خلقو لره مغلوبه او مؤمنانو مخلصانو لره به غالب کړی

### معارف او مسائل

وړاندې آیتونو کښې ددې بیان وو چې کله رسول اکرم ﷺ او صحابه کرام رضی الله عنهم د عمرې په احرام کښې مکې مکرمې ته نزدې شو ، دحديبيه مقام ته اورسيدل نو مشرکانو حرم شريف ته او مسجد حرام ته نه پرېښودل چې عمره ئې ادا کړې وې . څکه په دې آيت مبارك كښې مسلمانانو ته په دې خبره تسلی ورکړې شوې ده چې الله ﷻ به زر تر زره ددغې مشرکانو زور مات کړی کوم چې په مسلمانانو باندې زياتې کوی ، دا واقعه په شپږمه هجرئ کښې راپېښه شوې وه ، دې څخه روستو د کافرانو او مشرکانو زور اوطاقت په مخه کميدو او په مخه ئې بهادری ختمیدله ، ترد چې په اتمه هجرئ کښې مکه مکرمه فتح شوه ، دې پسې راتلونکو آیتونو کښې ددې تفصيل بيانيږي.

| أُذِنَ لِلَّذِينَ | يُقَاتَلُونَ | بِأَنَّهُمْ | ظُلِمُوا |
|---|---|---|---|
| اجازت ورکړې شو هغه کسانو ته | چې د چا خلاف جنگ کيږی | په سبب ددې چی په هغوئ باندې | ظلم شوې دې |
| هغه مسلمانانو ته کوم سره چې جنگ کولې شی اوس دجنگ کولو اجازت کولی شی | | | څکه چې په دوئ ظلم کيږی |

| وَإِنَّ اللَّهَ | عَلَىٰ نَصْرِهِمْ | لَقَدِيرٌ | الَّذِينَ | أُخْرِجُوا |
|---|---|---|---|---|
| او بیشکه الله | په مدد دهغوئ باند | خامخا قادر دې | دا هغه کسان دی | چی اوویستلې شو |
| اوبیشکه الله ﷻ ددوئ په مدد کولو باندې قادر دې | | | دا هغه خلق دی | کوم چې ددوئ |

| مِن دِيَارِهِم | بِغَيْرِ حَقٍّ | إِلَّا أَن | يَقُولُوا | رَبُّنَا اللَّهُ |
|---|---|---|---|---|
| دکورونو خپلو نه | په ناحقه | بل سبب نه وو مګر دا | چی ووئیل به هغوئ | رب زمونږ الله دې |
| دکورونو نه په ناحقه ويستلې شوی دی | | صرف په دې وجه چې دوئ دا وائی چې زمونږ رب الله ﷻ دې | | |

| وَلَوْلَا | دَفْعُ اللَّهِ | النَّاسَ | بَعْضَهُم | بِبَعْضٍ | لَّهُدِّمَتْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوکه نه وې | دفع کول دالله | خلقو لره | خینی دهغوئ لره | په خینو نورو باندې | انو نړولې شوی به وو |
| اوکه چرې الله ﷻ خلق دیو بل په ذریعه نه دفع کولې | | | | | انو [دراهبانو] خانقاهګانې او [دعيسايانو] |

| صَوَامِعُ | وَبِيَعٌ | وَّصَلَوٰتٌ | وَّمَسٰجِدُ |
|---|---|---|---|
| د راهبانو خانقاګاني | دعیسایانو ګرجي | او دیهودیانو عبادت خاني | او دمسلمانانو جوماتونه |

ګرجي او [دیهودیانو] عبادت خاني او [دمسلمانانو] جماتونه چي دالله ﷻ

| يُذْكَرُ | فِيهَا | اسْمُ اللّٰهِ | كَثِيرًا | وَلَيَنْصُرَنَّ | اللّٰهُ | مَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چي یادولې شي | په هغې کښې | نوم دالله | ډیر | او خامخا به امداد کوي | الله | دهغه چا |

نوم په کښې ډیر ډیر یادولی شي [داټول] به وران شوي وو | او الله ﷻ بهٔ دهغه چا مدد کوي

| يَنْصُرُهُ | إِنَّ اللّٰهَ | لَقَوِيٌّ | عَزِيزٌ | الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|
| چي مدد کوي دهغه | بیشکه الله | ډیر طاقتور دې | غالب دې | دا هغه خلق دي |

څوک چې دهغه [ددین] مدد کوي | بیشکه الله ﷻ زورآور او غالب دې | دغه [مظلومان]

| إِنْ مَكَّنّٰهُمْ | فِي الْأَرْضِ | أَقَامُوا | الصَّلٰوةَ | وَآتَوُا |
|---|---|---|---|---|
| چی که اقتدار ورکړو مونږ هغوئ لره | په زمکه کښې | نو قائیموی به | مانځه لره | او ورکوی به |

داسې خلق دي | که مونږ ورته دزمکې په مخ باندې حکومت ورکړو | نو دمونځ پابندي به کوي

| الزَّكٰوةَ | وَأَمَرُوا | بِالْمَعْرُوفِ | وَنَهَوْا | عَنِ الْمُنْكَرِ | وَلِلّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| زکات | او حکم به کوي | دنیکئ | او منع کوي | دبدئ نه | او دالله په لاس کښې دې |

او زکاتونه بهٔ ورکوي | اونورو ته به دنیکئ کولو حکم کوي | اوبدئی نه بهٔ ئې منع کوي

| عَاقِبَةُ | الْأُمُورِ |
|---|---|
| انجام | دټولو معاملاتو |

اودهر کار انجام دالله ﷻ په اختیار کښې دې |

## آسان ترجمه قرآن

د کومو خلقو سره چه جنګ کولې شي، هغوی ته اجازت ورکولې شي (چه په خپله دفاع کښې جنګ اوکړي) ځکه چه په هغوی باندې ظلم کړې شوې دې او یقین اوساتئ چه الله پاک هغوی ته په فتح ورکولو باندې پوره طریقې سره قادر دې دا هغه خلق دی څوک چه صرف په دومره خبره باندې د خپلو کورونو نه ناحق راویستلې شو چه هغوی دا وئیلې وو چه زمونږ رب الله دې. اوکه الله پاک یوه ډله (یعنی د هغې شر) د بلې په ذریعه نه دفع کولې نو خانقاه ګانې، او کلیساګانې او عبادت خانې او جوماتونه چه په هغې کښې د الله پاک ذکر په کثرت سره کولې شي، ټول به راغور ځولی شوی وو او الله پاک به ضرور د هغه خلقو مدد کوی کوم چه د هغه (د دین) مدد کړی. بیشکه الله پاک ډیر قوت والا. او لوئې اقتدار والا دې دا داسې خلق دی چه که مونږ هغوی ته اقتدار ورکړو نو هغوی به مونځ قائم کړی، او زکوة به ادا کړی، او خلقو ته به د نیکئ تاکید کوی، او د بدئ نه به منع کوی او د ټولو کارونو انجام د الله پاک په قبضه کښې دې

## خلاصه تفسير

اګر چه تر اوسه دځه مصلحتونو په وجه کفارو سره دجنګ ممانعت وو ليکن اوس ﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ﴾ [ دجنګ هغو خلقو ته اجازت ورکړې شو دکومو سره چه ] دکافرانو نه [ جنګ کولې شي په ﴿بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا ۚ﴾ دې وجه سره چه په دوی ] ډير [ظلم شوې دې ] دا علت دې دجائز کيدو دجهاد [ او] په دې حالت کښې چه اجازت دجهاد وشو دمسلمانانو لره والي او دکفارو ډير والي ته کتل نه دي پکار ځکه چه ﴿وَإِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ﴾ [بيشکه الله تعالى ددوی په غالب کولو باند قادر دې ] وړاندې دمسلمانانو دمظلوميت بيان دې چه [کوم] بې چاره ﴿الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِم بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا أَن يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ ۗ﴾ [دخپلو کورونو نه بې وجهې وويستلې شول محض په دې خبره چه هغوی دا وئيل چه زمونږ رب الله دې ] يعنى دکفارو دا ټوله غصه او غضب ددوی د توحيد دعقيدې په وجه باند په دوی باندې وو چه دوی ئې دومره پريشانه کړل چه وطن ئې پريښنو دو وړاندې دجهاد حکمت دې ﴿وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ﴾ [ اوکه دا خبره نه وې چه الله تعالى ] هميشه دخلقو د يويل د] لاسه [زورنه کمولې ] يعنى اهل حق ئې په اهل باطل وقتا فوقتا نه غالب کولې [ نو ] په خپلو خپلو زمانو کښې به ﴿لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ﴾ [ دنصاراؤ خلوت خانې او عبادت خانې او ديهودو عبادت خانې او] دمسلمانانو ﴿وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا ۗ﴾ [ جماتونه په کومو کښې چه دالله تعالى نوم ډير يادولې شي ټول به نړيدلې ] او وران شوی [ وو ] وړاندې په جهاد کښې داخلاص په وجه دغلبې خوشخبری ده ﴿وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ ۗ﴾ [ اوبې شکه الله تعالى دهغو مدد کوی کوم چه دالله تعالى ] ددين [مددکوی ] يعنى ددوئ په جنګ کښې نيت خالص دالله تعالى دکلمې اوچتوالې وی ﴿إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ﴾ [بيشکه الله تعالى قوت والا ] او[غلبې والادې ] هغه چې چالره غواړی قوت اوغلبه ورکولې شي وړاندې ددوی فضيلت دې ﴿الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ﴾ [ داخلق په خپله داسې دی چه که مونږ دوی ته په دنيا کښې حکومت ورکړو ﴿أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ﴾ نو داخلق په خپله هم دمونځ پابندی کوی او زکوات ورکوی او] نوروته هم ﴿وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ ۗ﴾ [دنيکو کارونو دکولو وائي او بدو کارونو نه ئې منع کوی ﴿وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ﴾ اود ټولو کارونو انجام خودالله تعالى په اختيارکښې دې] پس دمسلمانانو دموجوده حالت په ليدوداخوك ځنګه وئيلې شي چه انجام به ددوی دغه شان وی بلکه ممکنه ده چه ددې عکس وشي چنانچه وشوه

## معارف او مسائل

**کافرانو سره د جهاد کولو ومبې حکم:** مکه مکرمه کښې مسلمانانو باندې دکافرانو د ظلمونو کولو حال دا وو چې هر وخت به مسلمانانو ته د نقصان رسولو په تکل کښې وی او هرقسم نقصان به ئې ورته رسولو ، په مکه مکرمه کښې د اوسيدو په آخری دور کښې د مسلمانانو تعداد هم زيات شوې وو هغوئ به کافرانو نه د زور ظلم شکايت کولو او د هغې په مقابله کښې به ئې د جنګ ، جهاد اجازت اوغوښتو خو رسول کريم ﷺ به ورته په جواب کښې فرمائيل چې صبر کوئی ماته تر اوسه پورې دجهاد کولو اجازت نه دې راکړې شوې پدې حال

کښي لس کاله تير شو [قرطبی عن ابن عربی].[1]
کله چې رسول کريم ﷺ د خپل وطن مکې مکرمې په پرېښودو او په هجرت کولو باندې مجبور کړې شو ، اوصديق اکبر رضي الله عنه د رسول کريم ﷺ ملګرې وو د مکې مکرمې نه ددغې وتلو په موقعه ئې اوفرمائيل چې : [اخرجوهم انبئهم ليهلكن] [دوئ چې خپل پېغمبر ﷺ د وطن نه اوښکلو نو خامخا به هم دوئ هلاکيږي]. کله چې مدينې منورې ته رسول کريم ﷺ اورسيدلو نو دا آيت مبارک پرې نازل شو [ په کوم کښې چې مسلمانانو ته کافرانو سره دجهاد کولو اجازت ورکړې شوې دې ] [ نسائی ، ترمذی عن ابن عباس رضي الله عنه ، قرطبی].[2]
او ابن عباس رضي الله عنه نه ترمذی ، نسائی ، ابن ماجه ، ابن حبان او حاکم وغيره چې کوم روايت کړې دې ، او ترمذی ورته حسن وئيلی دی ، هغه روايت دادې چې ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چې دا ړومبې آيت دې چې کافرانو سره د جهاد کولو اجازت په کښې ورکړې شو ، کله چې ددې نه ړومبې د اويا آيتونو نه په زياتو کښې دجهاد کولو نه منع راغلې وه .[3]

**د جهاد او قتال يو حکمت:** [وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ] دې کښې د جهاد او قتال د حکمت او ددې خبرې بيان دې چې داځه نوې حکم نه دې ، پخوانو پېغمبرانو ﷺ اوددوئ امتونو ته هم ددې حکم ورکړې شوې وو ،که داسې نه وې شوې نو اوس به د يو دين نوم نشان هم نه وو او نه بهٔ ئې عبادت خانې چرته ددنيا په مخ موجود وې.

[لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَّصَلَوٰتٌ وَّمَسٰجِدُ] په دنيا کښې څومره دينونه او مذهبونه چې اصل بنياد ئې څه وخت د الله ﷻ د طرفه په وحی باندې قائم شوې وو چې بيا منسوخ شو او بيا په کښې بدلون راغلو دکفر او شرک صورت ئې اختيار کړې نو په دې آيت مبارک کښې ددغې ټولو دينونو د عبادت د ځائې بيان دې ، ولې چې په خپل خپل وخت کښې ددغې عبادت د ځايونو احترام او حفاظت کول فرض وو ، دهغې مذهبونو د عبادت خانو بيان ئې اونه کړو چې هيڅ وخت ئې هم په وحی باندې بنياد نه وو قائم کړې شوی لکه آتش پرست ، مجوس يا بت پرست هندوان شو چې هيڅ وخت ئې عبادت خانې د قدر او عزت وړ نه وې.

[صَوَامِعُ] د صومعة جمع ده ، د نصاراؤ هغه عبادت کولو خاص عبادت خانې ته وئيلې شی کوم چې تارک الدنيا بللې شی.

[بِيَعٌ] دبيعة جمع ده ، د نصاراؤ عامو عبادت خانې ته وئيلې شی.

[صَلَوٰتٌ] د صلوت جمع ده ، د يهودو عبادت ته وئيلې شی.

[مَسٰجِدُ] د مسلمانانو عبادت خانې ته وئيلې شی.

د آيت مبارک مطلب دا شو چې کافرانو سره د جهاد حکمونه که نه وې راغلې نو په هيڅ زمانه کښې به هيڅ يو مذهب په امن او حفاظت کښې نه وو پاتې شوې ، د موسی ﷺ په زمانه کښې

---

[1] تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۶۹] وأحكام القرآن لابن العربي [ج:۵ ص:۴۲۹] و سورة ال حج الآية الثالثة عشر.
[2] جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب ومن سورة الحج [ج:۲ ص:۱۵۰] والسنن النسائی كتاب الجهاد ، باب وجوب الجهاد[ج:۲ ص:۵۱]
[3] روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۷۵] و البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:۸ ص:۲۲۴]و تفسير المظهري[ج:۶ص:۳۲۶] والمستدرك للحاكم رقم الحديث:[۲۳۳۷](ناقصا)

به صلوات د عیسی ﷺ په زمانه کښې به صوامع ، بیع او د خاتم الانبیاء ﷺ په زمانه کښې به مسجدونه وران کړې شوی وو [قرطبی].(۱)

**د خلفاء راشدینو باره کښې د قران کریم پیشګوئی او دهغې ښکاره کیدل:** [اَلَّذِيْنَ اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ] په دې آیت مبارک کښې [اَلَّذِيْنَ] د هغه خلقو صفت دې چې ددې نه په وړاندې آیت مبارک کښې ئې داسې بیان راغلې دې.

[اَلَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ بِغَيْرِ حَقٍّ] [یعنی کوم خلق چې د خپلو کورونونه په ناحقه او ظلم سره اوښکلي شوی دی ] اوس په د ې آیت کښې ددوئ باره کښې فرمائی چې دا داسې خلق دی چې که په زمکه کښې ورته حکومت او اقتدار ورکړې شی نو دا خلق بهٔ خپل اقتدار په داسې کارونو کښې پکار راوالی چې مونځونه بهٔ قائم کړی ، زکوتونه به ادا کوی ، خلقو ته به نیکو کارونو بلنه ورکوی ، د بدو کارونو نه بهٔ ئې منع کوی ، او دا لړ شان مخکښې معلوم شوی دی چې دا آیتونه مدینې منورې ته دهجرت کولو نه پس سمدستی هغه وخت نازل شوی دی چې مسلمانانو ته په هیڅ زمکه کښې حکومت او اقتدار حاصل نه وو مکر الله ﷻ د هغوئ باره کښې دړومبې نه داخبر ورکړو چې اقتدار تر لاسه کړی نو دا خلق به دغه مهم دینی خدمتونه ترسره کوی ، عثمان غنی ﷛ دې باره کښې اوفرمائیل چې : [ثناء قبل بلآء] [الله تعالی ددې خلقو په داسې صفت کارونو کولو کوی چې لا تر اوسه ئې کړی نه دی] چې څه وخت ددوئ ﷛ دغه کارونه عمل ته راغلل نو ثابته شوه چې څلور واړه خلفاء راشدین او مهاجرین د [اَلَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ] صحیح مصداق وو ، ولې چې الله ﷻ د ټولو نه اول په زمکه کښې هم رسول کریم ﷺ ته حکومت او وس ځائې ورکړو ، او د قرآن عظیم الشان د پیشنګویئ په جوړ د دوئ عملونو ، کردار اوکارنامودنیا ته اوخودل چې دوئ خپل اقتدار په دې کار کښې استعمال کړو چې مونځونه ئې قائم کړل ، د زکوة نظام ئې مضبوط کړو ، خو کارونو له ئې رواج ورکړو د بدوکارونو لار ئې بنده کړه.

څکه علماء کرامو فرمائیلی دی چې دا آیت مبارک ددې دلیل دې چې خلفاء راشدین ټول په توله ددې زیری مصداق دی ، ددوئ ﷛ په زمانه کښې د خلافت قائم شوې نظام حق ، صحیح او بعینه د الله ﷻ د ارادې او د وړاندې ورکړې شوی خبر مطابق دې ، [روح المعانی](۲)

دا خو ددې آیت مبارک شان نزول د واقعاتو اړخ دې ، دا خبره ښکاره ده چې کله د قرآن عظیم الشان الفاظ عام دی نو حکم ئې هم عام دې څه خاص واقعې پورې منحصر نه دی ، په دې وجه د تفسیر په امامانو کښې ضحاک ﷬ فرمائیلی دی چې په دې آیت مبارک کښې هغې خلقو دپاره هم هدایت دې چې ورته الله تعالی ملک او بادشاهی ورکړی نو هغوئ دې خپل هم هغه قسم کارونه سرته رسوی کوم چې خلفاء راشدینوپه خپل وخت کښې سرته رسولی وو [قرطبی مع توضیح].(۳)

---

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۲ص:۷۰]
(۲) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۷۹]
(۳) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۷۳]

وَإِنْ يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ

| او كه دروغ گنړي دوئ تالره | نو دروغ گنړلي دي [ارسولان خپل] مخكښې ددوئ نه

| او كه نن دوئ تا درغڅن گنړي | نو [څه اوشو]

قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَثَمُودُ ۝ وَقَوْمُ إِبْرَاهِيمَ وَقَوْمُ لُوطٍ ۝

قوم دنوح | او عاديانو | او ثموديانو | او قوم دابراهيم | او قوم دلوط |

ددوی نه وړاندې د نوح ﷺ قوم او عاد او ثمود هم او دابراهيم ﷺ او د لوط ﷺ قوم او د مدين

وَأَصْحٰبُ مَدْيَنَ ۚ وَكُذِّبَ مُوسٰى فَأَمْلَيْتُ لِلْكٰفِرِينَ

او مدين والو | او دروغ گنړلي شوې دې | موسى | نو مهلت ورکړو ما | كافرانو لره

خلقو هم [خپل پيغمبران] دروغڅن گنړلی وو | اوموسی ﷺ هم دروغڅن گنړلي شوی وو | نو ما كافرانو

ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ ۚ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ۝ فَكَأَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ

بيا | رااونيول ما هغوئ | څرنگې وو | عذاب زما | پس ډير دی | دکلونه

له مهلت ورکړو | بيا ما دوئ راوونيول | نو [تااوليدل] چې زما عذاب څنگه وو | نو څومره کلي

أَهْلَكْنٰهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ فَهِيَ خَاوِيَةٌ

چې هلاك كړي دي مونږه هغه | حال دا چې هغه | ظالمان وو | پس هغه | پريوتي دی |

دی چې مونږ هغه هلاک کړل | ځکه چې هغوئ نافرمانه وو | نو اوس دهغوئ چتونه

عَلٰى عُرُوشِهَا وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَقَصْرٍ مَّشِيدٍ ۝

په چتونوخپلوباندې | اوډيرې كويان دی | چې شاړ پراته دی | او ډيرې ماڼۍ | اوچتې محكمې وراني دی

الته پراته دی | او شاړ كوهيان او څومره لوړلوړ محلونه [وران] پراته دی

أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ يَعْقِلُونَ

آيا دا خلق گرزيدلی نه دی | په زمكه كښې چې وې | دوئ لره | زړونه | چې پوهه ئې حاصلولې

نو آيا دوئ دزمكې په مخ تک راتگ نه كوی | چې د دوئ داسې زړونه وې | چې پوهه ئې

بِهَآ أَوْ آذَانٌ يَسْمَعُونَ بِهَا ۚ فَإِنَّهَا

په هغې سره | ياوې غوږونه دوئ لره | چې اوريدل كولې دوئ | په هغې سره | پس بيشكه حقيقت دادې

پرې كولې شوې | يا داسې غوږونه ئې وې چې په هغې ئې [حقه خبره] آوريدې شوی | خو حقيقت

لَا تَعْمَى الْأَبْصَارُ وَلٰكِنْ تَعْمَى الْقُلُوبُ الَّتِي فِي الصُّدُورِ ۝

چې ړندې نه دی | سترگې | وليكن | ړانده دی | زړونه | هغه | چې په سينو كښې وی

دا دې | چې سترگې نه ړندېږی بلكه هغه زړونه ړانده دی چې په سينو كښې پټ پراته دی

وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ وَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ وَعْدَهٗ ؕ

او تلوار کوی دا خلق په تا | په راوستلو د عذاب | او هر گز به خلاف نه کوی الله | دوعدې خپلې

او دا خلق له تانه زر عذاب غواړي او الله ﷻ به هیچرې دخپلې وعدې خلاف ورزی نه کوی

وَاِنَّ يَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ كَاَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ ۝

او بیشکه چې یوه ورځ | په نزدرب ستا | پشان دزرو کالو ده | دهغې کلونو نه | چې تاسو ئې شمارئ

او ستا درب یوه ورځ ستاسو دشمیر مطابق د زرو کالو سره برابره ده |

وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَمْلَيْتُ لَهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ ثُمَّ اَخَذْتُهَا ۚ

او ډیر دی | دکلونو | چې مهلت ورکړو ما | هغې ته | ظالمان وو | بیا | رااونیول ما هغه

او څومره ډیر کلی وو چې ما هغوئ ته مهلت ورکړې وو | او هغوئ ظالمان وو | بیا ما هغوئ رااونیول

وَاِلَيَّ الْمَصِيْرُ ۝ ع قُلْ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَاۤ اَنَا لَكُمْ

او خاص ما ته | راتلل دی دهر چا | او وایه اے نبی ﷺ | چې اے خلقو | بیشکه زهٔ | ستاسو دپاره

او هم زما طرفته دټولو واپس کیدل دی | او وایه چې ائې خلقو! زهٔ ستاسو دپاره ښکاره

نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ ج فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ

یرونکي ښکاره یم | نو هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیک | دهغوئ دپاره

یرونکي یم |............نو چاچې ایمان راوړې دې |..........او دنیکئ کارونه کوی | نو د هغوی دپاره

مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ۝ وَالَّذِيْنَ سَعَوْا فِيْۤ اٰيٰتِنَا

بخښانه ده | او رزق دې | عزتمند | او هغه کسان | چې کوشش کوی | په آیتونو زمونږ کښې |

ښښنه او دعزت روزی ده |.........ا او هغه کسان چې زمونږ د آیاتونو په حقله د هغې

مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ۝

عاجزه کونکی هغې لره | دغه کسان | ملګری ددوزخ دی |

دعاجزه کولو کوششونه کوی | نو هم دغه کسان جهنمیان دی |

**آسان ترجمه قرآن**

او (ای پیغمبره!) که دا خلق تا دروغژن ګنړی، نو د دې نه مخکښې د نوح علیه السلام قوم، او د عاد او ثمود قومونو هم (د خپلو پیغمبرانو علیه السلام تکذیب کړې دې، او د ابراهیم علیه السلام قوم، او د لوط علیه السلام قوم، او د مدین خلقو هم. او د موسٰی علیه السلام هم تکذیب کړې شوې وو، پس هغه کافرانو ته ما څه مهلت ورکړې وو، بیا ما هغوی اونیول، اوس اوګوره زما نیول څنګه وو! غرض دا چه څومره کلی وو کوم چه مونږ هغه وخت هلاک کړل چه ظلمونه ئې کول، پس هغه په خپلو چهتونو باندې پریوتلې وو او څومره کوهیان دی چه اوس بیکاره پراتهٔ دی، او څومره پاخهٔ محلونه (چه کهنډرې ترې نه جوړ شوې دې) نو آیا دا خلق په زمکه کښې نه دی ګرځیدلی چه په هغې سره هغوی ته داسې زړونه حاصل شوې وې چه هغوی ته ئې پوهه ورکړې وې، یا داسې غوږونه چه په هغې سره ئې اوریدل کولې؟ حقیقت دا دې چه

ستر ګې نه ړندیږي، بلکه هغه زړونه ړندیږي چه په سینو کښې دي. او دا خلق ستا نه د عذاب د زر راوستلو مطالبه کوي، حال دا چه الله پاک هرګز د خپلې وعدې خلاف نه کوي، او یقین ساته چه ستا د رب په نزد یو ورځ ستاسو د شمار مطابق د زرو کالو په شان ده او څومره کلي دي کومو ته چه ما مهلت ورکړې وو، او هغوی ظلمونه کول، بیا ما هغوی راونیول، او ټول به آخر ماته راواپس کیږي. (اې پیغمبره!) اووایه چه: اې خلقو! زه خو تاسو لره په وضاحت سره خبردار کونکې یم. بیا چه کومو خلقو ایمان راوړلو او نیک عمل ئې کولو، نو د هغوی دپاره بخښنه ده، او د عزت روزي ده. او کومو خلقو چه زمونږ د نخښو د کمزور کولو دپاره کوشش کړې دې، نو هغوی د دوزخ اوسیدونکي دي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَاِنْ يُكَذِّبُوْكَ﴾ [او دا] جګړه کوونکي خلق [که تا دروغژن کوي] نو ته مه غمژن کیږه ځکه چه ﴿فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّعَادٌ وَّثَمُوْدُ﴾ [ددې خلقو نه وړاندې قوم د نوح ؑ [او عادیانو او ثمودیانو ﴿وَقَوْمُ اِبْرٰهِيْمَ وَقَوْمُ لُوْطٍ﴾ او قوم د ابراهیم ؑ] [او قوم دلوط ؑ] ﴿وَّاَصْحٰبُ مَدْيَنَ﴾ [او اهل دمدین هم] خپلو خپلو انبیاؤ ؑ لره [دروغژن کړي دي (وَكُذِّبَ مُوْسٰى) او موسی ؑ] لره هم دروغژن کړې شوې دې] مګر د دروغژن کولو نه پس ﴿فَاَمْلَيْتُ لِلْكٰفِرِيْنَ﴾ [ما دې کافرانو ته] څو ورځې [مهلت ورکړو لکه نن چه منکرانو ته مهلت ورکړې شوې دې (ثُمَّ اَخَذْتُهُمْ) بیا ما دوی لره] په عذاب کښې [ونیول نو] ګوره ﴿فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ﴾ [زما عذاب څنګه شو (فَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا) غرض څومره کلي دي کومو لره چه مونږه] په عذاب سره [هلاك کړل (وَهِيَ ظَالِمَةٌ) دکومو چه داحالت وو چه دوی نافرمانئ کولې نو] اوس ددوی دا حال دې چه ﴿فَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا﴾ [هغه په خپلو چتونو پریوتي دي] یعنې ویران پراته دي ځکه چه عادتا اول چت غورزیږي بیا دیوالونه راغورزیږي [او] دغه شان په دغو کلو کښې ﴿وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ﴾ [ډیرې کاره کوهیان] کوم چه وړاندې اباد وو [﴿وَّقَصْرٍ مَّشِيْدٍ﴾ ډیر چونه شوې محلونه وو] کوم چه اوس نړیدلي دي داټول ددغو کلو سره تباه شول پس دغه شان په وعده شوي وخت به ددې زمانې داخلق هم په عذاب کښې ونیولې شي (اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ [نو ایا داخلق په ملك کښې نه دي ګرځیدلي ﴿فَتَكُوْنَ لَهُمْ قُلُوْبٌ يَّعْقِلُوْنَ بِهَا﴾ چه په دې سره ددوی زړونه داسې شي چه پوه شي ﴿اَوْ اٰذَانٌ يَّسْمَعُوْنَ بِهَا﴾ یائې غوږونه داسې شي چه واوري خبره دا ده چه] دنه پوهیدونکو څه ﴿فَاِنَّهَا لَا تَعْمَى الْاَبْصَارُ وَلٰكِنْ تَعْمَى الْقُلُوْبُ الَّتِيْ فِي الصُّدُوْرِ﴾ [ستر ګې ړندې نه دي بلکه زړونه ئې کوم چه په سینو کښې دي دغه ړندیږي] ددې موجوده منکرانو هم زړونه ړانده شوي دي ورنه دتیرو امتونو دحالاتو نه به ئې سبق اخستې وو ﴿وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ﴾ [او داخلق] په نبوت کښې دشبهې راویستو دپار [ستانه دعذاب تقاضا کوي] او دعذاب په ژر نه راتلو سره دا دلیل نیسي چه عذاب راتلونکې نه دې ﴿وَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ وَعْدَهٗ﴾ [حال دادې چه الله تعالی چرې خپلې وعدې نه خلاف نه کوي] یعنې دوعدې په وخت کښې به خامخا عذاب واقع کیږي (وَاِنَّ يَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ) [اوستا د رب په نزد یوه ورځ] په کومه کښې چه به عذاب واقع کیږي یعنې د قیامت ورځ په خپل اوږدوالي یا سخت والي کښې ﴿كَاَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ﴾ دیو زر کلونو برابره ده ستاسو خلقو دشمیر مطابق] نو دا ډیر بې وقوف دي چه د داسې مصیبت تقاضا کوي [او] د

ذکر شوی جواب نچوړ بیا واوری چه ﴿وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ أَمْلَيْتُ لَهَا﴾ [ ډیر کلي دی کومولـه چه ما مهلت ورکړې وو ﴿وَهِيَ ظَالِمَةٌ﴾ او هغوی بـه نافرمانئ کولې ﴿ثُمَّ أَخَذْتُهَا﴾ بیا مـا دوی لـره] په عذاب کښې [ونیول ﴿وَإِلَيَّ الْمَصِيرُ﴾ او ټولو لره بـه زمـا طرف تـه واپسی وی ] دغـه وخت بـه پوره سزا ملاویږی [ او ته] دا هم ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّمَا أَنَا لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ﴾ [ووایه چه اې خلقو زۀ تاسو دپاره یو صفا ویرونکې یم ] دعذاب په واقع کولو او نه واقع کولو کښې زما دخل نشته اونه ما ددې دعوی کړې ده ﴿فَالَّذِينَ﴾ [ نو کوم خلق ] چه دا ویره واوری ﴿آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ [ ایمان راوړی او نیک عملونه وکړی ﴿لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ﴾ ددوی دپاره مغفرت اود عزت رزق] یعنی جنت [ دې ﴿وَالَّذِينَ سَعَوْا فِي آيَاتِنَا﴾ اوکوم خلق چه زمونږ دایتونو متعلق ] ددوی دانکار او ابطال [ کوشش کوی ] نبی او ایماندارو لره ﴿مُعَاجِزِينَ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ﴾ [ دعـاجز کمزوری کولو دپاره داسې خلق به په دوزخ کښې ] اوسیدونکی [ وی ].

## معارف او مسائل

**د عبرت او دسترګو غړولو په خاطر په زمکه کښې سفر او ګرځیدل ددین مقصد دې** :: [أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ] دزمکې سفر او ګرځیدل کول کـه د عبرت حاصلولو او سترګو غړولو پـه غرض وی نو په دې آیت مبارك کښې د هغې شوق پیدا کول دی . نو [فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ] سره دې تـه اشاره شویده چې د پخوانئ زمانې او دپخوانو قومونو حـالات لیـدل کتـل د انسان عقـل او دبصیرت رابرڅیره کوی خو شرط دادې چې غرض ئې ترې عبرت حاصلول وی ، صرف سیل کول او په تاریخ باندې پوهیدل ئې غرض نه وی . ابن ابی حاتم په کتاب التفکر کښې د مالك بن دینار رحمه الله څخه نقل کړی دی چې الله ﷻ موسی علیه السلام تـه حکم ورکړو چې د اوسپنې پنړې جوړې کړه . د اوسپنې همسا په لاس کښې وا خله او د الله ﷻ په زمکه کښې دومره سفر اوکړه چې د اوسپنې د غه پنړې دې اوسولیږی او د اوسپنې همسا دې ماته شی [روح المعانی] [1] کـه دا روایت صحیح وی نو ددې مقصد هم هغه عبرت او بصیرت حاصلول دی .

**د اخرت ورځ به زرکاله وی ؟ ددې جملې څه مطلب دې** :: د [وَإِنَّ يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ] دوه مطلبونـه دی یو مطلب ئې دادې چې د قیامت د ورځې سختوالې او هیبت بـه دومره وی چې د زرو کـالو برابر به خلقو ته ښکاری څنګه چې د تفسیر پـه خلاصـه کښې دې تـه اشتداد وئیلې شوی دی . ډیرو مفسرینو ئې هم دا مطلب اخستې دې .

بل مطلب ئې دا کیدې شی چې په واقع کښې بـهٔ دغـه ورځ زر کالـه اوږده وی څنګه چې پـه دې باندې د حدیث پاك روایتونه دلیل دی . نو په مسند احمد ا وترمذی کښې د ابی هریره رضي الله عنه څخه روایت دې چې یوه ورځ رسول اکرم ﷺ مهاجرینو فقیرانو ته اوفرمائیل چې زه درتـه د قیامت په ورځ د مکمـل نـر ر زیـرې د رکـوم او داهـم چې تاسـو بـهٔ د مالـدارو څخـه نیمـه ورځ مخکښې جنت ته داخلیږئی . اود الله ﷻ په نزد به یوه ورځ زر کاله وی . په دې بنا به فقیران ، د مالدارو څخه پنځه سوه کاله مخکښې به جنت ته داخلیږی . [ترمذی روایت کړې دې ورتـه

[1] ) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۸۴]

حسن وئیلي دي ، مظهری] (١)
د تفسير په خلاصه کښې دا مطلب په لفظ د امتداد سره بيان کړې شويدې. [والله اعلم]

**د يو شبهې جواب** :: سورة معارج کښې چې د آخرت ورځې لره د پنځوس زره کالو برابره ګرځولې شوې ده :[كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِيْنَ أَلْفَ سَنَةٍ] (٢) په دې کښې هم دواړه تفسيرونه د اشتداد او امتداد کيدې شي.د هر کس د مصيبت سختوالي به دبل څخه مختلف وی نو په دې وجه به هغه چاته زر کاله معلومیږی ، چا ته به پنځوس زره کاله ، او که په بله معنی کښې واخستې شی چې په حقيقت کښې به دآخرت ورځ پنځوس زره کاله وی نو په ظاهره به په دې دواړو آيتونو کښې تعارض وی چې يو کښې پنځوس کاله او بل کښې زر کاله ذکر شوی دی ،ددې تطبيق حکيم الامت قدس سره په بيان القرآن کښې بيان فرمائيلې دې چې اهل علم حضرات دپاره د علمی او اصطلاحی الفاظو کښې نقل کيږی. هغه دا چې دا تفاوت د زرو کالو څخه تر پنځوس کالو پورې د اختلاف آفاق په اعتبار سره وی ، لکه څنګه چې په دنيا کښې د معدل النهار حرکت کله دولابی وی او کله حمائيلی ، چرته رحوی ، او هم په دې وجه په خط استواء باندې يوه شپه ورځ د ځليريشتو ګنټيو وی. او عرض تسعين يعنی قطب شمالي د يو کال او ددې په مينځ کښې مختلف مقاديرو باندې مختلف اندازو سره وی ، داشان ممکن دی که اول د نمر حرکت سره چې معدل سره دې ، په طور د خرق عادت او اعجاز داشان سست شی چې په يو افق باندې د يو زرو کالو ورځ وی ، چې د افق څخه پنځوس حصې لرې شوې وی ، په هغې باندې د پنځوسو زرو کالو وی ، او ددې په مينځ کښې دا په تفاوت سره وی . والله اعلم [بيان القرآن]

د آخرت ورځ زر کاله ده اوکه پنځوس زره کاله ؟ دا فرق د اطرافو او طرفونو په اعتبار سره داسې کيدې شی لکه په دنيا کښې د معدل النهار حرکت چې چرته رهټی دې ، چرته د اچولې پيټۍ په شان ، چرته د ميچنې پشان ، په دې بنا په خط استواء باندې يو شواروز د څليريشتو ګينټو جوړيږی او په عرض تسعين [قطب شمالی] باندې د يو کال او ددې دواړو تر مينځه په مختلفو اندازو سره مختلف جوړيږی ، په دې شان شان کيدې چې اول د نمر حرکت کوم چې معدل سره دې د عادت په خلاف د معجزې په ډول دومره سست شی چې په يوه غاړه باندې د زور کالو ورځ وی اوکومه غاړه چې پنځوس واره تری لرې وی او ددې تر مينځه په اندازه اندازه فرق وی ، والله اعلم ، بيان القرآن (٣)

| وَمَآ أَرْسَلْنَا | مِنْ قَبْلِكَ |
|---|---|
| اونۀ دې ليږلې مونږ | مخکښې ستا نه |
| اومونږ چې ستا نه وړاندې کوم رسول | |

(١) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٣٣٥] و جامع الترمذي ، ابواب الزهد باب ماجاء ان الفقراء والمهاجرين الخ (بالإختصار)[ج:٢ ص:٦٠] ومسنداحمد،مسند ابي سعيد الخدري رضي الله عنه رقم الحديث:[١١٩١٩] (بالإختصار)
(٢) ترجمه:- چې دهغې مقدار پنځوس زره کاله دې.
(٣) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٧ ص:٧٧ ]

مِنْ رَّسُوْلٍ وَّلَا نَبِيٍّ اِلَّآ اِذَا تَمَنّٰٓى اَلْقَى الشَّيْطٰنُ

بو رسول | او نه يو نبي | مګر | کله چي | تلاوت اوکړو هغه | نو واچوو خلل | شيطان |

يا نبي را لېږلي دي | خو کله چې به هغه د الله ﷻ حکمونه لوستل | نو شيطان د هغه په لوستلو په دوران

فِيْٓ اُمْنِيَّتِهٖ ۚ فَيَنْسَخُ اللّٰهُ مَا يُلْقِي الشَّيْطٰنُ ثُمَّ يُحْكِمُ اللّٰهُ

په تلاوت د هغه کښي | نو ختموي الله | هغه خلل | چي اچوي ئي شيطان | بيا | محکم کوي الله |

کښي [د کافرانو په زړونو کښي] وسوسه غورزولي ده | بيا الله د شيطان وسوسي ختمې کړي | بيا الله ﷻ خپل

اٰيٰتِهٖ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۙ لِّيَجْعَلَ مَا

ايتونه خپل | او الله | ښه پوهه دي | او حکمت والا دي | دپاره ددې چي جوړ کړي الله | هغه خلل |

ايتونه مضبوط کړي | او الله په هره خبره پوهه دي د صاحب د حکمت دي | او دا [هر څه] ځکه [کيږي] چي الله

يُلْقِي الشَّيْطٰنُ فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ

چي اچوي ئي شيطان | فتنه | دپاره د هغه خلقو | چي په زړونو د هغوئ کښي | مرض د نفاق وي |

د شيطان غورزلي وسوسي يو امتحان اوګرځوي | د هغه خلقو دپاره چي د هغوئ په زړونو کښي بيماري دي

وَّالْقَاسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ ؕ وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَفِيْ شِقَاقٍۢ بَعِيْدٍ ۙ

او چي سخت وي | زړونه د هغوئ | او بيشکه دا ظالمان خلق | په ضد [مخالفت] | لري کښي دي |

او زړونه ئې سخت شوي دي | او بيشکه ظالمان په ډيرلري مخالفت کښي اخته دي

وَّلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ اَنَّهُ الْحَقُّ

او دپاره ددې چي پوهه شي | هغه کسان | چي ورکړې شوي دي علم | چي بيشکه دا قران | حق دي |

او چي کومو خلقو ته علم ورکړې شوي دي | چي هغوئ ښه پوهه شي | چي دا ستا درب

مِنْ رَّبِّكَ فَيُؤْمِنُوْا بِهٖ فَتُخْبِتَ لَهٗ قُلُوْبُهُمْ ؕ

د طرفه درب ستا نه | او ايمان راوړي | په هغې | او نرم شي | هغې ته | زړونه د هغوئ |

طرفه حق دي | نو هغوئ په دې ايمان راوړي | او د هغوئ زړونه د الله ﷻ په حضور کښي تيټ شي

وَاِنَّ اللّٰهَ لَهَادِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝

او بيشکه الله | لاربنوونکي دي | هغه کسانو ته | چي ايمان ئې راوړې دې | لارې نيغې ته |

او بيشکه الله ﷻ ايمان دارو ته د نيغې لارې طرفته خودنه کوي ..................

وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْهُ حَتّٰى

او هميشه به وي | هغه کسان | چي انکارکونکي دي | په شک کښي ددې [دين] نه | تر هغه وخته پورې

او څوک چي کافران دي | هغوئ به د قران پاک په باره کښي هميشه په شک کښي پراته وي

تَاْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً اَوْ يَاْتِيَهُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيْمٍ ۝

چي راشي هغوئ ته | قيامت | ناساپه | يا راشي هغوئ ته | عذاب د ورځې | شنډې [منحوسې]

تردې چي ناګهانه به د وی ته قيامت راشي | يا د شنډې [بې برکته] ورځې عذاب به ئې په سر او دريږي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلْمُلْكُ | يَوْمَئِذٍ | لِلّٰهِ | يَحْكُمُ | بَيْنَهُمْ | فَالَّذِيْنَ |

بادشاهي به | په دغه ورځ | الله لره وي | فيصله به کوي هغه | په منځ دهغوئ کښي | نو هغه کسان

په دغه ورځ بهٔ بادشاهي صرف د يو الله ﷻ وي | هغه به د دوي په مينځ کښې فيصلې کوي | نو کومو

آمَنُوْا　وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ　فِيْ جَنّٰتِ　النَّعِيْمِ

چي ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نيك | هغوئ به په جنتونو | دنعمتونو کښي وي

کسانو چي ايمان راوړي دي | او نيک عملونه ئي کړي دي | هغوئ بهٔ دجنت په باغونو کښې وي

وَالَّذِيْنَ　كَفَرُوْا　وَكَذَّبُوْا　بِاٰيٰتِنَا　فَاُولٰٓئِكَ

او هغه کسان | چي کفر ئي اوکړو | او دروغ ئې اوګڼړل | آيتونه زمونږه | نو دغه کسان چي دي

او کومو خلقو چي کفر اختيار کړي دي | او زمونږ آيتونه ئې دروغ ګڼړلي دي | هغوی

لَهُمْ　عَذَابٌ مُّهِيْنٌ

دي دهغوئ دپاره | عذاب سپکونکي

دپاره سپکونکي عذاب مقرر دې

## آسان ترجمه قرآن

او (اې پيغمبره!) ستا نه مخکښې چه مونږ کوم رسول اولېږلې دي نو هغه سره دا واقعه ضرور راغلې ده چه کله هغه (د الله پاک کلام) اولوستلو نو شيطان د هغه د لوستلو سره (د کفارو په زړونو کښې) څه بنديز واچولو، بيا کوم بنديز چه شيطان اچوی، الله پاک هغه لرې کوی، بيا خپل آيتونه زيات مضبوطوی، او الله پاک د لوئې علم، او لوئې حکمت مالک دې. هغه (شيطان دا بنديز ځکه واچولو) چه کوم بنديز شيطان اچولې دې، الله پاک هغه د خلقو دپاره فتنه جوړه کړی چه د چا په زړونو کښې بيماری ده، او د چا زړونه چه سخت دی. او يقين ساته چه دا ظالمان خلق په مخالفت کښې ډير لرې تلې دی، او (هغه بنديز الله پاک په دې وجه لرې کړو) چه کومو خلقو ته علم ورکړې شوې دې، هغوی دې ځان پوهه کړی چه هم دا (کلام) حق دې کوم چه ستا د رب د طرف نه راغلې دې، پس هغوی په دې ايمان راوړی، او دهغوی زړونه هغه ته ښکته شی او يقين ساتئ چه الله پاک خلقو ته د نيغې لارې هدايت کونکې دې. او کوم خلق چه کفر کوی، هغوی د دې (کلام) د طرف نه برابر په شک کښې پراته دی تردې چه په هغوی باندې ناڅاپه قيامت راشی، يا د داسې ورځې عذاب راشی کومه چه (د هغوی دپاره) د خير راوړلو د صلاحيت نه خالی وی. بادشاهی به په هغه ورځ د الله پاک وی، هغه به د دوی ترمينځه فيصله کوی، پس کومو خلقو چه ايمان راوړې دې، او هغوی نيک عملونه کړې دی هغوی به د نعمتونو په باغونو کښې وی. او چا چه کفر خپل کړې دې، او زمونږ د آيتونو تکذيب ئې کړې دې، نو د داسې خلقو دپاره به د ذلت عذاب وی.

## خلاصه تفسير

[ او] اے محمد ﷺ داخلق کوم چه دشيطان په لمسه تاسره جګړه کوی داځه نوې خبره نه ده بلکه ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ وَّلَا نَبِيٍّ﴾ [ مونږه تانه وړاندې يورسول او يونبی داسې نه دې

ليږلي کوم ته چه دا قصه نه ده پيښه شوي ﴿إِلَّآ إِذَا تَمَنّٰىٓ﴾ چه کله ده ] دالله تعالي په احکاموکښې [څه ولوستل ] نو دغه وخت ﴿أَلۡقَى ٱلشَّيۡطَٰنُ فِيٓ أُمۡنِيَّتِهِۦ﴾ [ شيطان ددهٔ په لوستوکښې ] دکفارو په زړونوکښې [شبهه ] او اعتراض [ واچولو] اوکفارو به دغه شبهې او اعتراضونه پيش کول او دانبياؤ سره به ئې جګړې کولې لکه چه رو نو ايتونو کښې ارشاد دې [وَكَذَٰلِكَ جَعَلۡنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوّٗا شَيَٰطِينَ ٱلۡإِنسِ وَٱلۡجِنِّ يُوحِي بَعۡضُهُمۡ إِلَىٰ بَعۡضٖ زُخۡرُفَ ٱلۡقَوۡلِ غُرُورٗا](١) ﴿فَيَنسَخُ ٱللَّهُ مَا يُلۡقِي ٱلشَّيۡطَٰنُ﴾[بيا الله تعالى دشيطان غورزولو شوو شبهو لره] په قاطعه جوابونو او واضحه دليلونو سره[نيست و نابود کړي] لکه چه ظاهره ده چه دصحيح جواب نه پس اعتراض دفع کيږي ﴿ثُمَّ يُحۡكِمُ ٱللَّهُ ءَايَٰتِهِۦ﴾[ بيا الله تعالى خپل ايتونه] يعني مضامين ئې [ زيات مضبوط کړي ] اګر چه په خپله هم هغه مضبوط اومحکم وو ليکن د اعتراضونو په جوابونو سره دهغو استحکام زيات واضحه شو ﴿وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٞ﴾[ او الله تعالى ] ددې اعتراضونو متعلق [ ښه علم والا دې ] او ددوی دجواب په تعليم کښې [ ښه حکمت والا دې ] او دا ټوله قصه ئې ځکه بيان کړې ده ﴿لِّيَجۡعَلَ مَا يُلۡقِي ٱلشَّيۡطَٰنُ﴾[چه الله تعالى دشيطان غورزولو شوو شبهو لره دداسې خلقو دپاره ] د﴿فِتۡنَةٗ لِّلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٞ﴾[ آزمائش ] ذريعه [ کړي دکومو په زړهٔ کښې چه ] دشکونو [مرض دې(وَٱلۡقَاسِيَةِ قُلُوبُهُمۡ) او دکومو زړونه چه ] بالکل [ سخت دی ] چه دوی دشك نه زيات په باطل يقين کوونکی دی پس ددوی ازمائش کيږی چه وکتلې شي چه دجواب نه پس اوس هم دشبهاتو تابعداری کوی يا په جواب پوه شي او حق قبلوی ﴿وَإِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ [ او واقعی ] دا [ ظالمان خلق ] يعنی شکيان هم او په باطل يقين کوونکی هم(لَفِي شِقَاقِۭ بَعِيدٖ) [ په لوئ مخالفت کښې دی ] چه حق سره د واضح کيدو نه محض دعنا دپه سبب نه قبلوی شيطان ته د وسوسې اوچولو تصرف خو ځکه ورکړې شوې وو چه ازمائش وشی [او] ددې شبهو په صحيح جوابونو او دهدايت رڼرا سره باطلوالې ځکه کيږی[ ددې خبرې زيات يقين وکړی (وَلِيَعۡلَمَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَ)[چه کومو خلقو ته ] صحيح [پوهه ورکړې شوې ده هغوی ] په دې جوابونو اونور دهدايت سره ﴿أَنَّهُ ٱلۡحَقُّ مِن رَّبِّكَ﴾ چه دا ] کوم چه نبی لوستی دی هغه [ ستاد رب دطرف نه حق دی ﴿فَيُؤۡمِنُواْ بِهِۦ﴾ پس په ايمان زيات قائم شي بيا] دزيات يقين په برکت سره [ دهغې ] په عمل کولو﴿فَتُخۡبِتَ لَهُۥ قُلُوبُهُمۡ﴾ [دهغه طرف ته دهغوی زړونه نور هم مائله شی ﴿وَإِنَّ ٱللَّهَ لَهَادِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ﴾ او بې شکه ايماندارو ته الله تعالى نيغه لار ښائی ] بيا به دغو ته هدايت څنګه نه کيږی دا خو دايماندارو حالت شو ﴿وَلَا يَزَالُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فِي مِرۡيَةٖ مِّنۡهُ﴾[ او] پاتې شول [ کافران خلق ] پس هغوی [ هميشه دهغې ] لوستې شوی حکم [ دطرف نه په شك کښې وسيږی ] کوم چه ددوی په زړونو کښې شيطان اچولې وو﴿حَتَّىٰ تَأۡتِيَهُمُ ٱلسَّاعَةُ بَغۡتَةً﴾[ تردې چه په دوی ناڅاپه قيامت راشی] چه دهغې هغه ويره هم پوره ده خواه که عذاب وی او که نه [ياد] دې نه زياته دا چه﴿أَوۡ يَأۡتِيَهُمۡ عَذَابُ يَوۡمٍ عَقِيمٍ﴾ [په دوی دځه بې برکته ورځې ] چه دقيامت ورځ ده [ عذاب راشی ] او د دواړو جمع کيدل هم کوم چه په واقع کښې وی نور زيات سخت مصيبت دې مطلب دادې چه دوی بغير دليدلو دعذاب نه دکفر نه نه واپس کيږی مګر دغه وخت به

١) ترجمه:- او دا شان مونږ د هر نبي دښمنان ډير شيطانان پيدا کړي وو، څه د انسانانو نه او څه د جناتو نه، اوځينو به ځينو ته د دهوکې خبرې کولو سره وسوسې اچولې چې په دهوکه باندې راواړوی.

فانده مندنه وی (اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ لِّلّٰهِ)[ بادشاهی به په دغه ورځ دالله تعالی وی﴿يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ﴾ هغه به ددې تولو] ذکرشوو [ په مینځ کښې ] عملی [ فیصله وفرمائی (فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ) پس کومو خلقو چه ایمان راوړې وی او نیك عملونه ئې کړی وی هغوی به دارام په باغونو کښې وی (وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا فَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ)او کومو چه کفر کړې وی او زمونږ ایتونه ئې درغږن کړی وی دهغو دپاره به د ذلت عذاب وی ]

## معارف او مسائل

[مِنْ رَّسُوْلٍ وَّلَا نَبِيٍّ] دې الفاظو څخه معلومیږی چې رسول او نبی بیل بیل مطلب لری ، په دې دواړو کښې فرق څه دې ؟ په دې کښې مختلف اقوال ذکر شوی دی ،مشهور او واضح قول په کښې دادې چې نبی د الله ﷻ هغه پیغمبر وی چې مستقل کتاب او شریعت نه وی ورکړې شوې ، دپخوانو یا د خپلې زمانې د پیغمبر د کتاب اوشریعت په چلولو باندې مامور وی ، او رسول د مستقل کتاب او شریعت خاوند پیغمبر ته وئیلې شی . لکه موسی ؑ او عیسی ؑ او خاتم الانبیاء محمد ﷺ او د دومبی مثال لکه هارون ؑ شو ، په دې بنا هر رسول به نبی وی او هر نبی رسول نه وی. دا فرق د بنیادمو په پیغمبرانو ؑ کښې دې فرښتو کښې دا فرق نشته دې . د الله ﷻ هر پیغام راوړونکې فرښتې ته رسول هم وئیلې شی ، تفصیل ئې په سورة مریم کښې تیر شوې دې .

[اَلْقَى الشَّيْطٰنُ فِيْٓ اُمْنِيَّتِهٖ] دلته لفظ د [تَمَنّٰى] د قرء معنی ورکوی ، او [اُمْنِيَّتِهٖ] د قرآت یعنی لوستلو معنی ورکوی . د عربی لغت په اعتبار سره دا معنی هم مشهور او معروف ده لیکلې شوې تفسیر ډیر صفا او بې غباره دې ، ابو حیان په بحر محیط کښې او نورو ډیرو مفسرینو دې لره اختیار کړې دې ،(١) د حدیث په کتابونو کښې د غرانیق په نوم سره کومه واقعه چې په دې باره کښې نقل کړې شوې ده ، هغه د جمهورو محدثینو په نزد ثابته نده . نو ځینې حضراتو دې ته موضوع او د ملحدانو بیدینو او زندیقانو د ځانه جوړ کړې شوی حدیث بللې دې .اوکومو چې معتبر هم بللې دې سره دهغې ئې بیا هم دهغې شبهو مختلف جوابونه ورکړی دی کوم چې ددې دظاهری الفاظو څخه د قرآن عظیم الشان او سنت په قطعی اویقینی حکمونو باندې راپورته کیږی لیکن دومره خبره په ډاګه ده چې د قرآن عظیم الشان ددې آیت مبارك تفسیر په دې واقعه باندې څه اړه نه لری . بلکه ددې نیغ او ساده مطلب هغه دې چې کوم مخکښې بیان کړې شوې دې . هیڅ بې هیڅه دې واقعې لره ددې آیت مبارك تفسیر او حصه جوړول او د شکونو شبهو دروازه پرانستل او بیا دهغې جوابونه ورکولو ته تیاریدل څه فائده مند نه دی ، ځکه ئې مونږ هم پریږدو . والله سبحانه وتعالی اعلم

....

(١) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج: ٨ص:٣٣٥] و تفسير البغوي تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:٣٩٤] تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج: ١٨ص:٦٦٨]

| وَالَّذِيْنَ | هَاجَرُوْا | فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ |
|---|---|---|
| او هغه کسان | چې هجرت ني اوکړو | په لار دالله کښې |
| او کومو خلقو چې دالله ﷻ په لاره کښې هجرت کړې دي(١) | | |

(١) **دَ هجرت اوِ جهادَ ثواب:-** کوم خلق چه خپل وطنِ خپل بال بچ خپل يارانِ دوستان پريږدي اودَ الله تعالى دِ رضادِ پاره دَ هغه په لارکښې هِجرت اوکړی دَ هغه دِ رسول ﷺ اود هغه دَ دِين دِ امداد دَ پاره اورسی اوبيا دَ جنګ په ميدان کښې دَ دښمن په لاس شهيدِ کړې شی اويابې جنګه دَ خپلې قضاسره په خپله بستره هغه له مرګ راشي دَ هغه دَ پاره دَ الله تعالى دَ طرف نه ډير لوئ اجراو زبردست ثواب دى. لکه چه ارشاد دې ﴿وَمَنْ يَّخْرُجْ مِنْ بَيْتِهٖ مُهَاجِرًا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِـيْمًا﴾ (٤/النساء:١٠٠) کوم سړې چه خپل کور اوِ وطن پريږدی اودَ الله تعالى اود هغه دَ رسولِ ﷺ طرف ته هجرت اوکړی بيا هغه له مرګ راشی نودَ هغه اجر الله تعالى سره ثابت شو په هغه به دَ الله تعالى فضل وی هغه ته به د جنت نعمتونه ملاويږی په کوموسره چه به دهغه سترګې يخې وی الله تعالى بهترين رازق دې هغوی به پروردګار جنت ته رسوی کوم ځائ چه به دوی خوشحاله وی. لکه چه ارشاد دې کوم چه زمونږ په مقربوکښې دی دَ هغوی دَ پاره راحت او خوشبودار ګلونه اودَ نعمتونونه ډك باغونه دی داسې خلقو ته راحت رزق او جنت ملاويږی. (٥٦/الواقعه:٨٨-٨٩) په خپله لارکښې ربښتونی مهاجر په خپله لارکښې جهادکونکی اودَ خپلو نعمتونومستحق خلق الله تعالى ښه پيژنی. هغه دَ ډير حلم والا دې. دَ بنديګانو ګناه معاف کوی دَ هغوی دَخطاګانو نه تيريږی دَ هغوی هجرت قبلوی د هغوی توکل ښه پيژنی. کوم خلق چه دَ الله تعالى په لارکښې شهيدانِ وی که مهاجر وی اوکه نه وی هغه به رب سره ژوند او رزق بيامومی. لکه چه ارشاد دې ﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا ۭ بَلْ اَحْيَاۗءٌ عِنْدَ رَبِّھِمْ يُرْزَقُوْنَ﴾ (٣/آل عمران:١٦٩) دَالله تعالى دَ لارې شهيدان مړه مه ګڼرئ هغوی خپل رب سره ژوندی دی روزئې ورکولې شی. په دې باره کښې ډير احاديث دی کوم چه بيان شوی دی. دَ الله تعالى په لارکښې دَ شهيدانو اجر هم دَ الله تعالى په ذمه ثابت دې په دې آيت سره هم اودَ دې بارې کښې په احاديثوسره هم. حضرت شرجيل بن سمط رحمه الله فرمائی چه د روم د يوې قلعه په محاصره باندې زمونږ موده تيره شوه اتفاقی حضرت سلمان فارسی رضي الله عنه په هغه ځائ تيريدو وئې فرمائيل ما دَ رسولِ الله ﷺ نه اوريدلی دی کوم سړې چه دَ الله تعالى دَ لارې په تيارې کښې مړشی نودَ هغه اجر او رزق دَ الله تعالى دَ طرف نه د هميشه دَ پاره جاری وی اوهغه په فتنه کښې دَ اچونکو والا نه محفوظ وی که تاسو غواړئ نو آيت ﴿وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ قُتِلُوْٓا اَوْ مَاتُوْا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللّٰهُ رِزْقًا حَسَـنًا ۭ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ﴾ (٢٢/الحج:٥٧) اولولئ (صحيح مسلم:١٩١٣) حضرت ابوقبيل او ربيعه بن سيف معافری رحمهما الله وائی مونږه دَ رودس په جهادکښې وو مونږ سره حضرت فضاله بن عبيد رضي الله عنه هم وو زمونږ مخې ته دوه جنازې تيرې شوې په کوموکښې چه يو شهيد وو اوبه خپل مرګ مړشوې وو خلق دَ شهيد په جنازه وربنکته شو. حضرت فضاله رضي الله عنه اوفرمائيل دا څه خبره ده؟ خلقو وئيل حضرت دا شهيد دې اودابل دې نه محروم دې. هغوی اوفرمائيل والله ماته خودواړه خبرې برابر دی که دَ دې قبر نه پاسم اوکه دَ هغه قبر نه پاسم. واورئ دَ الله تعالى په کتاب کښې دی بيا هغوی د دې آيت تلاوت اوکړو. (الطبری:١٨٢/٩) يوبل روايت کښې دی چه هغوی هم په خپل مرګ دَ مړشوی په قبرباندې اودريدو او وئې فرمائيل تاسو له نور څه پکاردی په جنت کښې ځائ اورزق ښکلې. يوبل روايت کښې دی چه هغه دی وخت کښې امير وو. داآخری آيت دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم دَ يووړوکی لښکر باره کښې نازل شوې دې کوموسره چه دَ مشرکانو يولښکر سره دَ هغوی دَ منع کولودَ حرمت په مياشت کښې جنګ اوکړو. الله تعالى دَ مسلمانانو امداداوکړو اومخالفين ئې ښکته کړل الله تعالى معاف کونکی او ښښونکې دې. (الطبری:٦٧٤/١٨)

ثُمَّ　قُتِلُوْٓا　اَوْمَاتُوْا　لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللّٰهُ رِزْقًا　حَسَنًا ط　وَاِنَّ اللّٰهَ

بيا | قتل کړې شو | يا مړه شو | خامخا به رزق ورکوي هغوئ له الله | رزق ښه | او بيشکه الله |

بيا هغوئ شهيدان کړې شول | يا مړهٔ شول | نو الله به هغوئ ته خامخا رزق ورکړي | او [يادساتئ چې]

لَهُوَ　خَيْرُ　الرّٰزِقِيْنَ ۝　لَيُدْخِلَنَّهُمْ　مُّدْخَلًا

خامخا هغه | بهتره | رزق ورکونکې دې | خامخا به داخل کړي هغوئ لره | داسې ځائې دداخليدو ته

بيشکه الله ﷻ ښه رزق ورکونکي دې | هغه ذات به هغوئ يقيناً داسې ځائې ته داخل کړي

يَّرْضَوْنَهٗ ط　وَاِنَّ اللّٰهَ　لَعَلِيْمٌ　حَلِيْمٌ ۝

چې خوښ به کړي هغوئ هغه | او بيشکه الله | ډير پوهه دې | صبر ناک دې |

کوم چې به هغوئ خوښوي | او بيشکه الله ډير پوهه دې صبر ناک دې

### آسان ترجمه قرآن

**او کومو خلقو چه د الله پاک په لاره کښې هجرت اوکړو، بيا قتل کړې شو يا وفات شو، نو الله پاک به ضرور هغوی ته ښه رزق ورکوی، او يقين ساته چه الله پاک بهترين رزق ورکونکې دې. او هغهٔ به دوئ ضرور داسې ځائې ته رسوی چه په هغې سره به دوئ خوشحاله شی. او الله پاک يقيناً په هره خبره باندې پوهيدونکې دې، ډير صبر کونکې دې.**

### خلاصه تفسير

﴿وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ [او کومو خلقو چه دالله تعالى په لاره کښې] يعنى ددين دحفاظت دپاره [ خپل وطن پرينبودو] چه ذکرئ په تيرو ايتونو کښې هم په [ الذين اخرجوا من ديار هم ](1) الفاظو سره شوې دې ﴿ثُمَّ قُتِلُوْٓا﴾ [ بيا دغه خلق ] دکفارو په مقابله کښې [ قتل کړې شول يا ] هسې په طبعي مرګ سره (اَوْمَاتُوْا) [مړهٔ شول ] دغه ناکامه او محرومه نه دی اګر چه دوی ته ددنيا فائدې ملاوٓ نه شی مګر په اخرت کښې ﴿لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللّٰهُ رِزْقًا حَسَنًا ط﴾ [ الله تعالى به دوی ته خامخا يو ښه رزق ورکړی ] يعنى دجنت بې شميره نعمتونه (وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ۝) [ او يقينا الله تعالى دټولو ورکوونکونه ښه ] ورکونکې [ دې ] او ددې ښه رزق سره به ﴿لَيُدْخِلَنَّهُمْ مُّدْخَلًا﴾ [ الله تعالى دوی لره ] داوسيدو ځائ هم ښه ورکړی يعنى [ داسې ځائ ته به ئې داخل کړی کوم لره چه بهٔ هغوی ] ډير ﴿يَّرْضَوْنَهٗ ط﴾ [ خوښ کړی ] پاتې شوه داخبره چه ځنې مهاجرين دغسې ددنيوی فتح او نصرت او ددې دفائدونه محروم ولې شول او ددوی په مقابله کښې کفار ددوی په قتل کولو قادر ولې شول هغوی دالله تعالى په قهر ولې هلاک نه شول نو ددې وجه داده چه ﴿وَاِنَّ اللّٰهَ﴾ [بيشکه الله تعالى ] دهرکار حکمت او مصلحت لره ﴿لَعَلِيْمٌ﴾ [ ښه پيژنی ] ددوی په دې ظاهری ناکامئ کښې هم ډير مصلحتونه دی او (حَلِيْمٌ ۝) [ ډير بردباره دې ] په دې وجه دښمنانو ته فورا سزا نه ورکوی.

(1) ترجمه:-هغه کسان چې د خپلو کورنو نه اوويستلي شو.

ذٰلِكَ ۚ وَمَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ مَا عُوْقِبَ

دا خودې حال دهغوئ او چاچې بدل واغستو | په مثل| دهغې | لکه څنګه چې عذاب ورکړې شوې وو [ده لره]

هم داسې ده اوڅوک چې د ظلم صرف دومره بدله واخلي څومره ظلم چې ده سره شوې وی

بِهٖ ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ لَيَنْصُرَنَّهُ اللّٰهُ ۗ اِنَّ اللّٰهَ

په هغې | بیا زیاتې هم شوې وی | په هغه باند | نو خامخا به امداد کوی دهغه الله | بیشکه الله

اوبیا دوباره په ده ظلم اوشی | ...............نو الله ﷻ به ضرور دده مدد کوی | .......بیشکه الله ﷻ

لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ۝

خامخا معاف کونکې دې | ببنونکې دې |

ډیر معاف کونکې او بخښونکې دی

**آسان ترجمه قرآن**

دا خبره خو فیصله ده او (واندې دا هم واورئ چه) کوم انسان چه چاته په بدل کښې دومره تکلیف ورکړو کوم چه هغه ته رسولې شوې وو، د هغې نه پس هغه سره بیا زیاتې اوکړې شو. نو الله پاک به ضرور دهغه مدد کوی یقین ساته چه الله پاک ډیر معاف کونکې، ډیر بخښنه کونکې دې.

**خلاصه تفسیر**

﴿ذٰلِكَ ۚ﴾[ دا] مضمون خو[ وشو او] وړاندې دا واورئ چه ﴿وَمَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ مَا عُوْقِبَ بِهٖ﴾[کوم سړې ] چه دښمن ته [ دومره قدرې تکلیف ورسوی څومره چه [ دښمن دطرف نه [ ده ته تکلیف رسولې شوې وو بیا] ددې سر په سرکیدونه پس که دهغې دښمن دطرف نه ﴿ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ لَيَنْصُرَنَّهُ اللّٰهُ ۗ﴾[په دې سړی زیاتې وشونو الله تعالی به ددې سړی خامخا مدد وکړی ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ۝﴾بیشکه الله تعالی ډیر معاف کوونکې ډیر مغفرت کوونکې دې ]

**معارف او مسائل**

څو آیتونه وړاندې دا مضمون بیان شوې دې چې الله ﷻ د مظلوم مدد کوی ،[وَاِنَّ اللّٰهَ عَلٰى نَصْرِهِمْ لَقَدِيْرُ ۙ] خو مظلوم په دوه قسمه وو ، یو قسم هغه چې ظالم نه ئې د ظلم هیڅ بدله نه وی اخستې یا ئې بالکل معاف کړې وی ، دویم قسم هغه مظلوم دې چې سر په سر بدله ئې اخستې بلکه هغه وی ، پکار وو چې په دې سره دغه سلسله ختمه شوې وې خو دښمن د ده په بدل اخستلو زیات راپاره شی او دوباره پرې حمله اوکړی نور زیات زور ظلم ورسره اوکړی چې داشان هغه بیا مظلوم پاتې شی . نو په دې آیت مبارك کښې دداسې مظلوم د مدد کولو هم وعده شوې ده . خو د الله ﷻ خوښه داده چې وخت د سره انسان په اول ظلم باندې هم صبر اوکړی. معاف ئې کړی او بدل وانخلی ، څنګه چې په ګڼړو آیتونو مبارکو کښې ئې بیان راغلې دې. لکه یو ځائې کښې فرمائی چې :

[فَمَنْ عَفَا وَاَصْلَحَ فَاَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ۭ](۱) او [وَاَنْ تَعْفُوْٓا اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ۭ](۲)

---

۱) ترجمه:- بیا چې کوم سړې معاف اوکړی او اصلاح اوکړی نو دهغه د ثواب ذمه الله تعالي جل شانه اخستې ده.

۲) ترجمه:-اوستا معاف کول تقوی ته زیات نزدې دی.

او [وَلَمَنْ صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُوْرِ](۱)

دې آيات مبارکو کښې د خلقو مخه را گرځولې شوې ده چې د ظلم بدله دې نه اخلي بلکه معافي دې کوي او صبر زغملو نه دې کار اخلي چې دا ډير غوره کار دې، چا چې د ظالم نه سر په سر بدله واخستله گويا کښې هغه زيات غوره کار او د قرآن عظيم الشان په هدايتونو باندې ئې عمل اونه کړو نو دا شبه کيدې شوه چې اوس به شايد ورسره الله ﷻ مدد نه کوي ځکه په آخر د آيت کښې ارشاد دې چې [إِنَّ اللهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ] يعنى کله چې ده په ډيرې غوره طريقې باندې عمل اونه کړو او کوتاهي ترې اوشوه، نو بيا به ئې هم الله ﷻ گرفت نه کوي بلکه که مخالف پرې ددې ځخه روستو هم زور زياتې اوکړو نو الله ﷻ به ئې مدد کوي. [روح المعاني](۲)

| | | | |
|---|---|---|---|
| ذٰلِكَ | بِأَنَّ اللهَ | يُوْلِجُ | الَّيْلَ |
| دا کار | په سبب ددې چې بيشکه الله | ننباسي | شپه |
| ........دا په دې وجه چې الله ﷻ شپه په ورځ کښې داخلوي | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي النَّهَارِ | وَيُوْلِجُ | النَّهَارَ | فِي الَّيْلِ | وَأَنَّ اللهَ | سَمِيْعٌ | بَصِيْرٌ |
| په ورځ کښې | او ننباسي | ورځ | په شپه کښې | او بيشکه الله | اوريدونکې | ليدونکې دې |
| او ورځ په شپه کښې داخلوي .......... | اوبيشکه الله ﷻ هر ځۀ اورې هر څه وينې | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكَ | بِأَنَّ اللهَ | هُوَ | الْحَقُّ | وَأَنَّ | مَا يَدْعُوْنَ |
| دا ځکه | چې بيشکه الله | هم هغه | حق دې | او بيشکه | هغه تول · چې دوئ رابللې هغوئ |
| گورې دا مدد به [ځکه] کيږي | چې صرف الله ﷻ حق دې | اودا کافران چې د الله ﷻ نه سوا | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ دُوْنِهٖ | هُوَ الْبَاطِلُ | وَأَنَّ اللهَ | هُوَ الْعَلِيُّ | الْكَبِيْرُ |
| ماسوا د الله نه | هغه باطل دې | او بيشکه الله | خاص هم هغه داوچتې مرتبې والا دې | لوئ دې |
| نور معبودان رابللې | هغه باطل دې | او په دې کښې شک نشته | چې الله ﷻ اوچت دې لوئې دې | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ تَرَ | أَنَّ اللهَ | أَنْزَلَ | مِنَ السَّمَآءِ | مَآءً | فَتُصْبِحُ | الْأَرْضُ |
| ايا ته گورې نۀ | چې بيشکه الله | نازلوى | داسمان نه | اوبۀ | نوشى | زمکه |
| ايا ته دې ته نه گورى | چې الله ﷻ د پورته نه اوبه رانازلوى | نو په هغې باندې زمکه تکه | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُخْضَرَّةً | إِنَّ اللهَ | لَطِيْفٌ | خَبِيْرٌ | لَهٗ | مَا |
| شنه | بيشکه چې الله | مهربانه باريك بين دې | خبردار دې | هغه لره دى | هغه څه |
| شنه شي | بيشکه الله ﷻ ډير مهربان په هر څه خبر دې | ..................څه چې په اسمانونو کښې دى | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا فِي الْأَرْضِ | وَأَنَّ اللهَ | لَهُوَ | |
| چې په آسمانونو کښې دى | او هغه څه چې په زمکه کښې دې | او بيشکه الله | خامخا دې هغه | |
| او څه چې په زمکه کښې دى | ټول د الله ﷻ ملکيت دې | او الله ﷻ بې نيازه اودهر تعريف | | |

---

(۱) ترجمه:- او کوم کس چې صبر اوکړى او معاف اوکړى دا البته د همت والا کارونه دى.

(۲) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص: ۱۱۸]

الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٦٤﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ لَكُمْ

غني | او ستائيلي شوي | آيا تا نه گوري | چي بيشكه الله | تابع كړي دي | دپاره ستاسو |

مستحق دي | آيا تا نه دی كتلي چي الله ﷻ د زمكي ټول څيزونه ستاسو تابع كړي دي

مَّا فِي الْاَرْضِ وَالْفُلْكَ تَجْرِيْ فِي الْبَحْرِ بِاَمْرِهٖ

هغه ټول هر څه | چي په زمكه كښې دي | او كشتئ | چي چليږي | په درياب كښې | په حكم دهغه سره

او بيړئ هم چي د هغه په حكم سره په دريابونو كښې رواني دي

وَيُمْسِكُ السَّمَآءَ اَنْ تَقَعَ عَلَى الْاَرْضِ اِلَّا بِاِذْنِهٖ

او نيولي ئي دي | آسمان | ددي نه چي راپريوزي | په زمكه باند | مگر | په حكم دهغه سره

اوهم د هغه ذات په حكم سره آسمان په زمكه د راپريوتو نه ټينگ شوي دي | ......................

اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿٦٥﴾ وَهُوَ الَّذِيْٓ

بيشكه الله | په خلقو باند | خامخا مهربانه دي | رحم كونكي دي | او هغه | هغه ذات دي

بيشكه الله ﷻ په انسانانو ډير مهربان رحم كونكي دي | ..............او الله ﷻ هغه ذات دي چي كوم

اَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ اِنَّ الْاِنْسَانَ

چي ژوندي ئي كړئ تاسو | بيا به مړۀ كړي تاسو | بيا به ژوندي كړي تاسو | ربښتيا ده چي انسان

تاسو پيدا كړئي | بيا به درباندي مرگ راولي | بيا به مو ژوندي كړي | اخو په دي كښي شک نشته چي

لَكَفُوْرٌ ﴿٦٦﴾

ډيرناشكره دي |

انسان ډير ناشكره دي |

## آسان ترجمه قرآن

دا په دي وجه چه الله پاک (د داسي عظيم قدرت مالک دي چه) شپه په ورځ كښ داخلوي او ورځ په شپه كښ داخلوي او بيشكه الله پاک هره خبره اوري، هر څيز ويني. دا په دي وجه چه الله پاک حق دي، او دا خلق چه د هغه نه سوا د كومو څيزونو بندگي كوي، هغه ټول باطل دي، او الله پاک هغه دي چه د چا شان هم اوچت دي، او مرتبه ئي هم اوچته ده آيا تا نه دی كتلي چه الله پاک د آسمان نه اوبه نازلي كړي، چه په هغي سره زمكه شنه شي؟ حقيقت دا دي چه الله پاک ډير مهربان، د هري خبري نه خبردي. څه چه په آسمانونو كښ دي، او څه چه په زمكو كښ دی ټول هم د هغه دي. او يقين ساتئ چه الله پاک هغه ذات دي چه د ټولو نه بي نيازه دي، پخپله قابل تعريف دي. آيا تا نه دی ليدلي چه الله پاک د زمكي ټول څيزونه ستاسو په كار كښ لگولي دي، او هغه كشتئ هم كومي چه د هغه په حكم باندي په سمندر كښ رواني وي؟ او هغه آسمان داسي ټينگ كړي دي چه هغه دهغه د اجازت نه بغير په زمكه باندي نه شي غورځيدلي حقيقت دا دي چه الله پاک په خلقو باندي شفقت كونكي، ډير مهربان دي. او هم هغه دي

چا چه تاسو ته ژوند درکړو بیا به تاسو ته مرګ درکړي، بیا به تاسو ژوندي کوي. واقعي انسان ډیر ناشکره دي.

## خلاصه تفسیر

﴿ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ﴾ [ دا] مؤمنان غالب کول ځکه [ چه الله تعالی ] د کامل قدرت خاوند دي هغه ﴿يُولِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ﴾ [ دشپې ] اجزاء [ په ورځ کښې ﴿وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ﴾ او دورځ ] اجزاء [ په شپه کښې دننه کوي ] داد کائناتو انقلاب دیو قوم په بل قوم دغالب کوونکی انقلاب نه زیات عجیبه دي ﴿وَأَنَّ اللّٰهَ﴾ [ او په دې سبب سره دي چه الله تعالی ] ددې ټولو خبرو او حالاتو لره ښه ﴿سَمِيعٌ بَصِيرٌ﴾ اوریدونکې او ښه لیدونکې دې ] هغه دکافرانو ظلم او دمؤمنانو مظلومیت اوري ویني په دې وجه هغه د ټولو حالاتونه خبردار هم دې او قوت او قدرت هم دهغه دټولونه لوئ دې دا مجموعه سبب شو کمزورو لره دغالب کولو [او] درانګ ﴿ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ﴾ [ دا] نصرت [ په دې سبب سره ] یقیني [ دې چه ] په دې کښې دیو طاقت مجال نشته چه په دې دالله تعالی مزاحمت وکړي ځکه چه [ الله تعالی کامل هستی ده ﴿وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ هُوَ الْبَاطِلُ﴾ او دکومو څیزونو چه دالله تعالی نه سوا داخلق عبادت کوی هغه بالکل باطل دی ] چه هغوی په خپله په خپل وجود کښې محتاج هم دې کمزوری هم دی هغوی به څه دالله تعالی سره مزاحمت وکړې شی ﴿وَأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ﴾ [او الله عالی شان دټولو نه لوئ دې ] په دې کښې په غور کولو سره دتوحید په حقوالي او دشرك په باطلوالی باند هر سړې پوهیدې شی ددې نه علاوه ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللّٰهَ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً﴾ [ ایا تاته خبر نشته چه الله تعالی داسمان نه اوبه راوورولې ﴿فَتُصْبِحُ الْأَرْضُ مُخْضَرَّةً﴾ چه په دې سره مزکه سر سبزه شوه ] بیا ﴿إِنَّ اللّٰهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ﴾ [ بیشکه الله تعالی ډیر مهربانه دټولو خبرونه خبردار دې ] نو په دې وجه دبندګانو په ضرورتونو خبردار دې مناسب مهروبانی کوی ﴿لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ [ټوله هر څه دهغه دی څه چه په اسمانونو کښې دی او څه چه په مزکه کښې دی ﴿وَإِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ﴾ او بیشکه الله تعالی داسې دې چه دهیچا محتاج نه دې د هر قسم صفتونو لائق دې ] او اے مخاطبه ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَا فِي الْأَرْضِ وَالْفُلْكَ﴾ [ ایا ته نه ګورې چه الله تعالی ستاسو دخلقو په کار کښې لګولی دی د زمکې څیزونولره او کشتئ لره ] هم ﴿تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِأَمْرِهِ﴾ [ چه هغه په دریاب کښې دهغه په حکم سره چلیږی ﴿وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ أَنْ تَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ إِلَّا بِإِذْنِهِ﴾ او هغه اسمانونو لره په مزکه دغورزیدونه ټینګ کړی دی البته کله چه دهغه حکم اوشی ] نو دا هر څه کیدې شی او دبندګانو ګناهونه او بدعملونه اګر چه دداسې حکم کولو مقتضی دی مګر بیا هم چه داسې حکم نه کوی نو وجه داده چه ﴿إِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾ [بیشکه الله تعالی په خلقو لوئ شفقت او رحمت کوونکې دې ﴿وَهُوَ الَّذِي أَحْيَاكُمْ﴾ او هغه هغه ذات دې چاچه تاسوله ژوند درکړو بیا] په وعده شوی وخت [ به ﴿ثُمَّ يُمِيتُكُمْ﴾ تاسوله مرګ درکړی بیا] په قیامت کښې [ به ﴿ثُمَّ يُحْيِيكُمْ﴾ تاسو ژوندی کړی ] ددې انعاماتو او احساناتو تقاضا وه چه خلقو توحید او دالله تعالی شکر اختیار کړې وې مګر ﴿إِنَّ الْإِنْسَانَ لَكَفُورٌ﴾ [ واقعي انسان لوئ ناشکره دې ] چه اوس هم دکفر اوشرك نه نه واپس کیږی مرادټول انسان نه دی بلکه هغه دی کوم چه دهغه په ناشکرئ کښې اخته دی.

## معارف او مسائل

[سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ] د زمکې ټول څیزونه ئې د انسان تابعدار کړل. د انسان تابع جوړولو ظاهری او او عام معنی دا کیږی چې هغه دده د حکم تابع روان وی ، ددې معنی لحاظ سره دلته دا شبه پیدا کیږی چې گنی د زمکې څیزونه د انسان په حکم کار نه کوی ، حالانکه داسې نه ده بلکه تابع کول د لته دا مطلب لری چې دا څیزونه د الله ﷻ په حکم هر وخت د انسان په کار کښې اخته دی ، الله ﷻ دا قدرت هم لری چې دا څیزونه ئې د انسان داسې تابع کړې وې خو ددې په نتیجه کښې بهٔ انسان ته ضرر داسې وو چې هر کله انسانی طبیعتونه ، خواهشات او ضرورتونه مختلف دی نو یو انسان بهٔ ددې مطابق دریاب ته یو شان حکم ورکولو او بل انسان به هم په دغه وخت ورته بل حکم ورکولو. صرف د دوؤ انسانانو تر مینځه به نه تضاد وو بلکه په دغه وخت کښې به د زرگونو انسانانو دحکمونو تضاد خپل مینځ کښې راتلو چې نتیجه به ئې فساد وه ، ځکه الله تعالی دا ټول څیزونه یوازې د خپل حکم تابع کړل مگر د انسان د بنیگړې او فائدې په کارونو کښې اخته کړی دی.

لِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا هُمْ نَاسِكُوْهُ

| دپاره دهرامت |مقرر کړی ده مونږه |یوه طریقه دعبادت|چی هغوئ عمل کونکی دی په هغې

|مونږ دهرامت دپاره دعبادت طریقې مقرر کړی دی|په کومو چې هغوئ روان دی

فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي الْاَمْرِ وَادْعُ اِلٰى رَبِّكَ ؕ

|پس اے نبی دوئ دجگړه نهٔ کوی ستا سره | په کار ددین کښی | او تهٔ رابله خلق | رب خپل ته

نودوئ دی تا سره په دې باره کښې جنگ نه کوی | او ته لگیا اوسه دوئ الله ﷻ طرفته

اِنَّكَ لَعَلٰى هُدًى مُّسْتَقِيْمٍ ۝٦٧ وَاِنْ جٰدَلُوْكَ فَقُلِ

بیشکه تهٔ | په لاره نیغه باندې ئې | او که چرې | هغوئ جگړه کوی ستا سره | نو ورته اووایه

رابله | بیشکه ته په سمه لار ولاړ ئې | اوکه دوئ تاسره جگړه کوی |نو دوئ ته اووایه چې

اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ۝٦٨ اَللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ

الله ته ښه معلوم دی | هغه څه | چی تاسو ئې کوئ | الله به فیصله کوی | په منځ ستاسو کښی

تاسو څه کوئی الله ﷻ دهغې نه ښه خبر دې | الله ﷻ به ستاسو ترمینځه په هغې خبرو

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ۝٦٩

په ورځ دقیامت | په هغه ټولو خبرو کښی | چی وئ تاسو | په هغې کښی | چی اختلاف به مو کولو

کښې د قیامت په ورځ فیصله اوکړی| په کومو کښې چې تاسو اختلاف کوئ |

اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ

ایا تاته معلومه نهٔ ده |چی بیشکه الله |پوهیږی |په هغه هرڅه |چی په آسمان کښی دی|او په زمکه کښی دی

آیا تاسو نه پوهیږئ چې په آسمانونو اوزمکه کښې څه دی| هغه دالله ﷻ په علم کښې دی

| يَسِيْرٌ۝ | عَلَى اللّٰهِ | اِنَّ ذٰلِكَ | ذٰلِكَ فِيْ كِتٰبٍ ؕ | اِنَّ |
|---|---|---|---|---|
| آسان دی | په الله باندې | بیشکه دا ټول کارونه | دا ټول هر څه په کتاب کښې دی | بیشکه |

بیشکه دا ټولې خبرې په کتاب [لوح محفوظ] کښې لیک دی [بیشکه دا خبره په الله ډیره آسانه ده

### آسان ترجمه قرآن

مونږ د هر امت د خلقو دپاره د عبادت یو طریقه مقرر کړې ده، چه د هغې مطابق هغوی عبادت کوی لهٰذا (اې پیغمبره!) خلقو لره تاسره په دې معامله کښې جهګړه نه دی کول پکار، او ته خپل رب ته دعوت ورکوه. ته یقیناً په نیغه لاره باندې روان یې او که هغوی تاسره جهګړه کوی نو او وایه چه: څه چه تاسو کوئ، الله پاک ته ښه معلوم دی. الله پاک به د قیامت په ورځ باندې ستاسو ترمینځه د هغه خبرو فیصله اوکړی په کومو کښې چه تاسو اختلاف کولو آیا تا ته پته نشته چه د آسمان او زمکې ټول څیزونه د الله پاک علم کښې دی؟ دا ټولې خبرې په یو کتاب کښې محفوظ دی بیشکه دا ټول کارونه د الله پاک دپاره ډیر آسان دی.

### خلاصه تفسیر

څو مره امتونه چه د اهل شریعتو تیر شوی دی په دوی کښې ﴿لِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا هُمْ نَاسِكُوْهُ﴾ [مونږ دهر امت دپاره د ذبح کولو طریقې مقرر کړی دی چه هغوی به په دغو طریقو ذبح کولې نو] اعتراض کوونکو ﴿فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي الْاَمْرِ﴾ [خلقو لره پکار دی چه په دې کار] ذبح [ کښې تاسره جګړه نه کوی ] ددوی خو تاسره دبحث او دجګړې کولو حق نشته مګر ستا دپاره شته خکه [ ته] ددوی لره ﴿وَادْعُ اِلٰى رَبِّكَ ؕ﴾ [ دخپل رب ] یعنی دهغه ددین [ طرف ته بلنه ورکوه ﴿اِنَّكَ لَعَلٰى هُدًى مُّسْتَقِيْمٍ۝﴾ ته یقینا په صحیح لاره باند یئې ] په صحیح لاره تلونکو ته حق وی چه په غلطه لاره تلونکی خپل طرف ته راوبلی په غلطه لاره باند تلونکو ته دا حق نه وی ﴿وَاِنْ جٰدَلُوْكَ﴾ [او که چرې ] په دې هم [ داخلق تاسره جګړه کوی ﴿فَقُلِ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ۝﴾ نو ته د اوفرمایه چه الله تعالی ستاسو کارونو لره ښه پیژنی ] هغه به تاسو سره پوه شی وراندې ددې وضاحت دې چه ﴿اَللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ [ الله تعالی به ستاسو په مینځ کښې دقیامت په ورځ ] عملی [ فیصله وکړی ﴿فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ۝﴾ په کومو څیزونو کښې چه تاسو اختلاف ] کولو وراندې ددې تائید دې چه ﴿اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ﴾ [ اے مخاطبه ایا تاته معلومه نه ده چه الله تعالی ټولو څیزونو لره پیژنی څه چه په اسمان اوزمکه کښې دی ] او په علم الهی کښې دمحفوظ کیدو سره دا هم ﴿اِنَّ ذٰلِكَ فِيْ كِتٰبٍ ؕ﴾ [ یقینی خبره ده چه دا] یعنی ددوی ټولې خبرې او عملونه [ په عملنامه کښې ] هم محفوظ [دی] پس [ یقینا] ثابته شوه چه ﴿اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ۝﴾ [ دا] فیصله کول [ دالله تعالی په نزد اسان دی ].

### معارف او مسائل

[لِكُلِّ اُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنْسَكًا] ددې سورت په څلوردیرشم آیت مبارک کښې هم د امضمون تقریبا هم په دا شان الفاظو سره تیر شوېدې . مګر دواړو ځایونو کښې د منسک لفظ په معنی او مراد کښې فرق دې . هلته نسك او منسك د حج د احکامو په بحث کښې د قربانئ په معنی کښې راغلې

دي. څکه ورسره واؤ راوړي شوي دي او داسې اوفرمائيلي شو چې [وَلِكُلِّ أُمَّةٍ] او دلته د منسك بله معنى او بل مراد دې. هر كله چې دا يو مستقل حكم دې څكه د عطف په صورت كښې بيان نه كړې شو. ددې آيت مبارك په تفسير كښې يو قول خو هغه دې چې د تفسير په خلاصه كښې داسې بيان كړې شو چې ځينې كافرانو به مسلمانانو سره د دوئ د ذبيحو باره كښې فضول بحث كولو او جګړه به ئې كوله. دا به ئې وئيل چې ستاسو د مذهب دا يو عجيبه حكم دې چې كوم څاروې پخپل لاس اووژنئ نو هغه حلال ګڼړئ او كوم چې الله ﷻ نيغ په نيغه اووژني نو هغه حرام ګڼړئ. نو ددې فضول بحث او جګړې په جواب كښې دا آيت مبارك نازل شو. [حاكم روايت كړو او صحيح ئې ورته اووئيل او بيهقي په شعب الايمان كښې روايت كړو، د علي بن حسن او ابن عباس رضي الله عنهما څخه چې دا دبنى خزاعه د قول په سبب كښې نازل شوي دي [روح المعاني].(۱)

نو دلته به د منسك معنى د ذبح طريقه وى، حاصل د جواب به داوى چې الله ﷻ هر امت او شريعت دپاره د ذبيحې احكام جدا جدا مقرر كړي دى. د رسول اكرم ﷺ شريعت مبارك يو مستقل شريعت دې. ددې د احكامو مقابله د پخوانو شريعتونو احكامو سره كول جائز نه دى. نو د خپلې رائې او باطل خيال سره به ئې مقابله كول څنګه جائز شى؟ مطلب دا شو چې يوازې ددې امت اوشريعت خصوصيت نه دې چې مردار شوي څاروې په كښې حرام دې بلكه په پخوانو ټول شريعتونو كښې حرام پاتې شوې دې، هر كله چې ستاسو دا قول بالكل بې بنياده دې نو ددې په بنياد باندې د شريعت خاوند پيغمبر ﷺ سره جنګ كول بالكل غلط دى. [روح المعاني](۲)

جمهورو مفسرينو دلته لفظ د منسك د شريعت دعامو حكمونو په معنى اخستې دې، ولې چې په اصل لغت كښې د منسك معنى داسې يو ځائې دې چې د خير يا د شر يو خاص عمل دپاره تاكلې شوې وى. او هم په دې بنا احكام د حج ته مناسك څكه وئيلې شى چې په دې كښې خاص خاص مقامات، خاص خاص اعمال او احكامو دپاره مقرر دى. [ابن كثير].(۳)

او په قاموس(۴) كښې د نسك معنى عبادت ليكلې شوېده نو په قرآن عظيم الشان كښې [وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا](۵) هم دې معنى دپاره راغلې دې، د مناسك څخه مراد د عبادت شرعى احكام دى، د ابن عباس رضي الله عنهما نه دا دويم تفسير هم روايت كړې شوې دې.

ابن جرير رحمه الله، ابن كثير رحمه الله، قرطبى رحمه الله اور روح المعانى وغيره هم ددې عامې معنې تفسير اختيار كړې دې، (۶) د آيت مبارك روانى او وړاندې روستو بيان ددې قرينه ده چې منسك څخه مراد شريعت او ددې عام احكام دى، د آيت مبارك مطلب دا شو چې مشركين او

---

(۱) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۱۲۹] والمستدرك للحاكم رقم الحديث: [۳۴۷۸] (بالإختصار) وشعب الإيمان رقم الحديث[۷۰۷۳] (بالإختصار)
(۲) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۱۲۸]
(۳) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۵ ص:۴۵۱]
(۴) القاموس[ج:۳ ص:۴۳] (مادة نسك)
(۵) ترجمه:- او موږ ته زموږ د حج احكام هم اوښايه.
(۶) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۹۳]و تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۱۲۸]

د اسلام مخالفین چې د شریعت محمدیه ﷺ په احکامو کښې جنګ کوی او بنیاد ئې دا وی چې د دوئ د پلار نیکه په مذهب کښې دا احکام نه وو ، نو دوئ دې واؤری چې د پخوانی څه کتاب او شریعت سره دنوی کتاب یا شریعت معارضه او مجادله کول باطل ځکه دی چې الله ﷻ هر امت ته پخپل خپل وخت کښې یو خاص شریعت او کتاب ورکړې دې چې په هغې باندې عمل کول دغې امت دپاره تر هغې وخته پورې درست وو تر څو چې بل امت او شریعت د الله ﷻ د طرفه نه وو راغلې . د بل نوی شریعت په راتلو سره که ددې څه حکم دپخوانو شریعتونو سره مخالف وی نو دا به ناسخ او هغه به منسوخ ګنړلې شی . په دې وجه ددې نوی شریعت خاوند سره چاته د جنګ جګړې اجازت نشی ورکولې ځنګه چې د آیت مبارك د آخری الفاظو [فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي الْأَمْرِ] حاصل هم دادې .

دې څخه دا هم معلومه شوه چې په ړومبی او په دې دویم تفسیر کښې حقیقت کښې هیڅ اختلاف نشته ، کیدې شی چې دا آیت مبارك د ذبیحو د یو خاص جګړې په وجه نازل شوې وی ، خو د آیت مبارك عام الفاظ هر کله چې په ټولو شرعی احکامو باندې مشتمل دی ځکه به د دواړو تفسیرونو حاصل هم دا وی چې الله ﷻ هر امت ته بیل بیل شریعت ورکړې دې چې په کښې جزئی احکام مختلف وی ، نو دې کښې د جګړې جوړولو هیڅ حق د چا نشته دې بلکه د نوی شریعت تابعداری کول به واجب وی ځنګه چې په آخر د آیت مبارك کښې فرمائی چې : [وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ ۖ إِنَّكَ لَعَلَىٰ هُدًى مُّسْتَقِيمٍ] [تاسو دخلقو په خبرو او د جګړو په وجه بې زړه کیږئ مه ، بلکه پخپلو منصبی فرائضو کښې اخته اوسئ چې هغه حق ته رابلل دی ځکه چې تاسو په حقه او صراط مستقیم باندې یئ او ستاسو مخالفین بې لارې شوی دی]

**د یو شبهې جواب** :: دې سره دا خبر هم ښکاره شوه چې کله شریعت محمدیه نازل شو نو دې نه مخکښې د پخوانو شریعتونو د تابعدارئ دعویداران لکه یهود او نصاری ددې وئیلو حق نه لری چې پخپله قرآن عظیم الشان ددې آیت مبارک تر مخه زمونږ دپاره دا ګنجائش پریښودې دې چې هر شریعت دالله تعالی د طرفه دې . نو زه که د اسلام په زمانه کښې هم مونږ د موسی ﷺ یا عیسی ﷺ په شریعت باندې عمل کوؤ نو مسلمانان دې مونږ سره اختلاف نه کوی . یهود او نصاری دداسې وئیلو د سره ځکه حق نه لری چې په آیت مبارک کښې هر یو امت ته د یوخاص شریعت ورکولو بیان شوې دې او ددې نه پس د دنیا خلقو ته داحکم هم ورکړې شوې دې چې د محمدی ﷺ شریعت د قائمیدو نه پس دې دوئ ددې شریعت مخالفت نه کوی ، دائې نه دی فرمائیلی چې مسلمانان دې ددوئ د پخوانی شریعت دڅه حکم خلاف څه نه وائی ، ددې آیت مبارک نه پس آیتونو نه دا مضمون نور زیات واضح کیږی په کومو کښې چې د اسلامی شریعت په خلاف جګړې کوؤنکو ته خبرداری ورکړې شوې دې چې الله ﷻ ستاسو په دې حرکتونو باندې ښه پوهیږی هم هغه به ئې سزا درکوی [وَإِن جَادَلُوكَ فَقُلِ اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ]

| وَيَعْبُدُونَ | مِن دُونِ اللَّهِ | مَا | لَمْ يُنَزِّلْ | بِهِ |
|---|---|---|---|---|
| اوعبادت کوی دا خلق | ماسوا دالله نه | دهغه څیزونو | چې نه دې نازل کړې الله | په کولو دهغې باند |
| اودا [خلق] دالله ﷻ نه سوا دهغه بتانوعبادت کوی | | | اد چا د عبادت په جواز چې الله ﷻ څه | |

سُلْطٰنًا وَّمَا لَيْسَ لَهُمْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَمَا

هيڅ سند | او دهغه څيز | چي نشته | دپاره دهغوئ | په هغي باند | څه علم | او نشته |

دليل نه دي نازل کړي | او نه دوئ ته ددې څه علم شته | ............اود

لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ ۞ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا

دپاره ددې ظالمانو | هيڅوک مددګار | او هر کله چي | لوستلي کيږي | په دوئ باند | آيتونه زمونږ

ظالمانو دپاره څوک مددګار نشته | اوهر کله چي دوئ ته زمونږ ښکاره آيتونه لوستلي شي

بَيِّنٰتٍ تَعْرِفُ فِيْ وُجُوْهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا

واضحه صفا | ته پيژنې | په مخونو کښي | دهغه کسانو | چي دحق نه ني انکار کړې دې

نوته دکافرانو په مخونو باندې د خفګان آثار پيژندلي شي | [ترديې چي] نزدې وي

الْمُنْكَرَ ؕ يَكَادُوْنَ يَسْطُوْنَ بِالَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ

ناخوښتيا [بدشکلي] | نزدې وي دوئ | چي اوس به حمله کوي | په هغه کسانو باند | چي اوروي هغوئ

چي په هغو خلقو حمله اوکړي | څوک چه ورته زمونږ آياتونه اوروي

عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ؕ قُلْ اَفَاُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكُمْ ؕ

دوئ ته | آيتونه زمونږ | ورته اووايه | آياتوخبردرکړم زه تاسو ته | په ډيربدڅيزسره | ددې حملې ستاسو نه

............[ائي پيغمبره] ورته اووايه چي آيا دې نه زيات خراب څيز درته اوښايم

اَلنَّارُ ؕ وَعَدَهَا اللّٰهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۞ ع

وور دې | وعده کړې ده ددې الله | دهغه کسانو سره | چي کافران دي | او ډير بد ځائي دې | دورتلو

[واوړئ] هغه څيز اور دې | چي الله ﷻ کافرانو سره دهغي وعده کړې ده | اودغه ډيرخراب ځائي دې

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ

اے خلقو | بيانيږي | يو مثال | نو غوږ کيږدئ | هغې ته | بيشکه هغه [معبودان] |

ائي خلقو ! [اوس] يو لويه خبره آورولي شي | نوښه غوږونه ورته کيږدئي | تاسو چي دالله ﷻ

تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَنْ يَّخْلُقُوْا ذُبَابًا وَّلَوِاجْتَمَعُوْا

چي تاسو ني رابلئ | ماسوا دالله نه | هرګز نشي پيدا کولي هغوئ | يومچ [هم] | اواګر که راجمع شي ټول

نه بغير څوک رابلئ | هغوئ خويومچ قدر له هم نشي پيدا کولي | اګر که ټول پرې باندې راټول شي

لَهٗ ؕ وَاِنْ يَّسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْـًٔا لَّا يَسْتَنْقِذُوْهُ

پيدا کولو دهغې ته | اوکه اوتښتوي دهغوئ نه | يو مچ | څه څيز | نو نشي خلاصولي هغوئ هغه څيز

اوکه يو مچ ترې نه څه اوتښتوي | نو دوئ ټول ترې نه هغه خلاصولي قدرې هم نشي

مِنْهُ ؕ ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوْبُ ۞ مَا قَدَرُوا

دهغه [مچ] نه | نو کمزورې دې | غوښتونکي هم | اودچا نه چي مدد غوښتلي شي هغه هم | او نه پيژندو خلقو قدر

غوښتو والا [عابد] اودکوم [دروغژن معبود] نه چي غوښتنل کولی شي دواړه کمزورې دی | دې خلقو

| عَزِيْزٌ | لَقَوِيٌّ | اِنَّ اللّٰهَ | قَدْرِهٖ | حَقَّ | اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| غالب دي | ډير قوي دي | بيشکه الله | قدر پيژوندولو دهغه | پشان دحق | دالله |

دالله ﷻ هغه شان قدر اونکړو څنگه چې پکار وو | بيشکه الله ﷻ زورآور اوغالب دي |

## آسان ترجمه قرآن

او دا خلق د الله پاک نه سوا د هغه څيزونو عبادت کوي چه د هغوی (د معبود کيدو) الله پاک څه دليل نه دی نازل کړی، او خپله دې خلقو ته هم دهغې په باره کښې څه علم نه دی حاصل او ددې ظالمانو به په (آخرت کښې) څوک هم مددګار نه وی. او کله چه دوئ ته زمونږ آيتونه د خپلو پوره وضاحتونو سره اوروليې شي نوته به د دې کافرانو په مخونو باندې دخفګان اثرات صفا پيژنې، داسې ښکاره کيږی چه دوی به په هغه خلقو باندې حمله اوکړی کوم چه په دوی باندې زمونږ آيتونه لولی. اووايه چه: اې خلقو! آيا زه تاسو ته داسې څيز اوښايم کوم چه د دې نه زيات شری دې هغه اُور دې! الله پاک دهغې کافرانو سره وعده کړې ده، او هغه ډيره بده استوګنه ده. اې خلقو! يو مثال بيانولې شی، پس دې ته غوږ کيږدئ! تاسو چه د الله پاک نه سوا کوم کوم څيزونه رابلئ، هغوی يو مچ هم نه شی پيدا کولې، اګر که د دې کار دپاره ټول راجمع هم شی، او که مچ د هغوی نه څه څيز اوتختوی نو هغه هم ترې نه نهٔ شی اخستلې. داسې دعا کونکې هم کمزورې او د چا نه چه کولې شی هغه هُم کمزورې دې. دې خلقو د الله پاک صحيح قدر او نه پيژندلو. حقيقت دا دې چه الله پاک د قوت هم مالک دې او د اقتدار هم.

## خلاصه تفسير

﴿وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ [او دا ] مشرکان [ خلق دالله تعالی نه سوا دداسې څيزونو عبادت کوی ﴿مَالَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا﴾ دکومو ] دعبادت دجواز [ دپاره چه الله تعالی څه دليل ] په خپل کتاب کښې [ نه دې رالیږلې ﴿وَّمَا لَيْسَ لَهُمْ بِهٖ عِلْمٌ﴾ اونه ددوی سره ددې څه ] عقلی [ دليل شته او] په قيامت کښې [کله ] چه دوی ته په شرك سزا ورکولې شی نو﴿وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ﴾[ددې ظالمانو به هيڅوك مدد ګار نه وی ] نه قولا چه ددوی ددې کار په غوره والی باند څه دليل پيش کړی نه عملا چه دوی لره دعذاب نه بچ کړی [ او] دا خلق په دې ګمراهئ او داهل حقو سره په عناد ساتلو کښې دومره د حد نه اوړيدل دی چه ﴿وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ﴾[ کله ددې خلقو په وړاندې چه زمونږ ايتونه ] د توحيد وغيره متعلق [ کوم چه ] په خپلو مضامينو کښې [ ښه واضح دی ] داهل حقو د ژبې نه [ لوستلې اوږولې شی ﴿تَعْرِفُ فِيْ وُجُوْهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الْمُنْكَرَ﴾ نو تاسو به دکافرانو په مخونو کښې ] په زړونو د بد لګيدو په وجه [ بدې نخښې وينئ] لکه مخ کونجی کيدل پوزه تروهل وغيره او په دې نښو سره داسې معلوميږی چه ﴿يَكَادُوْنَ يَسْطُوْنَ﴾[ نږدې ده چه په دغو خلقو ] اوس [حمله وکړی ﴿بِالَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا﴾ کوم چه زمونږ ايتونه ددوی په وړاندې لولی] يعنی هميشه دحملې شبهه وی اوکله کله دا حمله واقع شوې هم ده پس [ يکادون ] ئ د استمرار په اعتبار سره وفرمائيلو [ ته ] دې مشرکانو ته [ ووايه چه ] په تاسو چه کوم ددې قرآن دا ايتو نه اوريدل بدلګی ﴿قُلْ اَفَاُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكُمْ ؕ اَلنَّارُ﴾ نوآيا زه تاسو ته ددې ] قرآن [ نه ] هم [ زيات دبد لګيدو څيز وښايم هغه

دوزخ دي ] چه ﴿وَعَدَهَا اللّٰهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ [ دهغې الله تعالی دکافرانو سره وعده کړې ده ﴿وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ﴾ اوهغه ډیر بدځایْ د اوسیدو دې ] یعنی دقرآن دبدلګیدو نتیجه بد لګیدونکې دوزخ دې ددې بدو لګیدو خو په غصه سره غضب سره په انتقام سره څه تدارك هم کولې شیْ مګر ددغه بد لګیدو به څه علاج وکړیْ کوم چه به په دوزخ سره وی وړاندې په یو بدیهی دلیل سره دشرك ابطال دې چه ﴿يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ﴾ [ اے خلقو یوه عجیبه خبره بیانولې شی دې ته غوږ کیږدیْ واوریْ] هغه داده چه ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾[ په دې کښې هیڅ شك نشته چه دکومو تاسوخلق د خدایْ نه سوا عبادت کویْ هغه خویو] ادنی ﴿لَنْ يَّخْلُقُوْا ذُبَابًا وَّلَوِ اجْتَمَعُوْا لَهٗ﴾ [ مچ قدرې نه شی پیدا کولې اګر که ټول جمع ] هم [ شی او] پیدا کول خو لویه خبره ده هغه خو داسې عاجزان دی چه ﴿وَاِنْ يَّسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْـًٔا﴾ [ که چرې ددوی نه مچ څه شې ] چه په دوی اینبودې شوې وی دهغه نه [ وتښتوی ﴿لَّا يَسْتَنْقِذُوْهُ مِنْهُ﴾ نو دغه خویْ دهغه نه ازاد کولې هم نه شی ﴿ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوْبُ﴾ داسې بې کاره عبادت کوونکې او داسې بې کاره معبود دې ] افسوس دې ﴿مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ﴾[چه دې خلقو دالله تعالی چه څنګه تعظیم پکار وو]چه دهغه نه سوایْ دچا عبادت نه کول وو [ هغه یْ ونه کړو ] چه شرك یْ شروع کړو حال دادې چه ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَقَوِيٌّ عَزِيْزٌ﴾[ الله تعالی لویْ قدرت والا په ټولو غالب دې ] نو عبادت خالص دهغه خلق وو نه چه دغیر قوی او غیر غالب دکوم چه نشتوالی دقوت په واضحو وجهو سره معلوم شو.

## معارف او مسائل

**د شرك اوبت پرستیْ یو مثال** :: [ضُرِبَ مَثَلٌ] دلته ترې دیوې مخصوص قیصې مثال مراد نه دې کوم چې په عام طور سره ددې لفظ ضرب مثل څخه مراد اخستې شی بلکه دشرك او بت پرستیْ بیوقوفی په یو ښکاره مثال سره بیانول دی چې کوم بتان تاسو خپل کار سازان ګڼړیْ هغه خو دومره بې وسه وی چې که ټول په ټوله راجمع شی نو یو مچ هم نشی پیدا کولې. او دا ډیر معمولی څیز دې. ددې پیدا کول خو لا څه کوې بلکه هغه ددهٔ څخه هغه خواږه څیزونه هم محفوظ نشی ساتلې کوم چې دهٔ ته خلقو دمنبتې دپاره اینبودی دی. هرکله چې خپل څه څیز د مچ څخه محفوظ نشی ساتلې نو تاسو بهٔ د څه آفت څخه څنګه اوساتلې شی ؟ نو ځکه په آخر کښې د آیت مبارك کښې دا شان ئې په دې الفاظ سره اوفرمائیل چې [ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوْبُ] ، مطلب ئې دا شو چې هر کله معبود دومر بې وسه دې نو ددې څیز عبادت کوؤنکې خو ددې څخه هم زیات بې وسه شو.

[مَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ] [یعنی د اخنګه بې قوفه احسان هیرونکی خلق دی چې د الله ﷻ هیڅ قدر ئې اونه پیژندو چې داسې د عظیم الشان قدرت خاوند سره ئې داسې بې وسه ا و بې شعوره کاڼړی برابر کړل]. والله اعلم.

| اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ | مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ | رُسُلًا | وَّمِنَ النَّاسِ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | سَمِيْعٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| الله غوره کوی | دفرښتو نه | استازی | او دانسانانونه هم | بیشکه الله | اوریدونکې |
| الله ﷻ په فرښتو کښې هم استاذې غوره کوی | اوپه انسانانو کښې هم | بیشکه الله ﷻ هرڅه آوری | | | |

بَصِيرٌ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا

ليدونكي دي | پوهيږي هغه | په هغه څه | چي په منځ دلاسونو ددوئ کښي دي | او په هغه څه

وينئ ګوری | هغه [الله تعالى] ته ددوئ وړاندې روستو هر څه معلوم دي

خَلْفَهُمْ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ

چي روستو ددوئ نه دي | او خاص الله ته | واپس کيږي | ټول کارونه | اے هغه کسانو

او ټول کارونه به د الله ﷻ طرفته واپس پيش کولې شي | ائې د ايمان خاوندانو!

آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا

چي ايمان موراوړې دي | رکوع کوئ | او سجده کوئ | او بندګي کوئ | درب خپل | او کوئ

دهغه په وړاندې ټيټ شئ | اوسجده کوئ | اودخپل رب عبادت کوئې | اودنيکئ کارونه کوئې

الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ وَجَاهِدُوا فِي اللَّهِ حَقَّ

نيکی | دپاره ددې | چي تاسو کامياب شئ | او جهاد کوئ | په لار دالله کښی | پشان دحق

........... چې تاسو کامياب شئ | ................ اودالله ﷻ په لار کښې داسې

جِهَادِهِ هُوَ اجْتَبَاكُمْ وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ

دجهاد کولو دهغه | هغه غوره کړی يئ تاسو | اونه ئي ده ايښي | په تاسو باند | په دين کښی

کوششونه کوئ | ځنګه چې پکار دي | ............هغه تاسوله عزت درکړو | اوپه تاسوئي د دين په

مِنْ حَرَجٍ مِلَّةَ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ هُوَ سَمَّاكُمُ

څه تنګسيا | پيروی اوکړئ ددين | دپلار خپل | ابراهيم | هغه | نوم ايښې دې ستاسو |

حقله هيڅ قسمه تنګسيا رانوستله | تاسودخپل پلار ابراهيم ﷺ په ملت [قائم اوسئ] | هغه په تاسو

الْمُسْلِمِينَ مِنْ قَبْلُ وَفِي هَٰذَا لِيَكُونَ الرَّسُولُ

مسلمان | مخکښی ددې قرآن نه | او په دې قرآن کښی هم | دپاره ددې چي شی | رسول

دمسلمانانو نوم ايښودې وو | پخوا هم او اوس هم په دې [قرآن پاک] کښې | ددې دپاره چې رسول

شَهِيدًا عَلَيْكُمْ وَتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ

ګواه | په تاسو باند | او شئ تاسو | ګواهان | په خلقو باندې | پس ودروئ مونځ

په تاسوباندې ګواه شي | اوتاسو په نورو خلقو ګواهان شئ | نو هميشه دمونځ پابندی کوئ

وَآتُوا الزَّكَاةَ وَاعْتَصِمُوا بِاللَّهِ هُوَ مَوْلَاكُمْ

او ورکړئ | زکات | او منګولې اولګوئ په دين دالله | هغه | مولی مالك ستاسو دې

او زکاة ورکوئی | اودالله ﷻ په [حکمونو] مضبوطتيا سره عمل کوئ | هغه ستاسو مالک دې

فَنِعْمَ الْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ النَّصِيرُ

پس ډير ښه مالك دې | او ډير ښه | مددګار دې [هغه] |

نو ځومره ښه آقا او ځومره ښه مددګار دې

## آسان ترجمه قرآن

الله پاک په ملائکو کښې هم خپل پیغامات رسولکې منتخب کوي، او په انسانانو کښې هم. یقیناً الله پاک هر څهٔ آوري په هر څیز بانديې پوهیږي. هغه د هغوي مخکښې او روستو ټولو خبرو بانديې پوهیږي، اوخاص په الله پاک بانديې د ټولو خبرو دارومدار دې. اې ایمان والو! رکوع کوئ، او سجده کوئ، او د خپل رب بندګي کوئ، او د نیکئ کاروئه کوئ، چه تاسو ته کامیابي ملاؤ شي. او د الله پاک په لاره کښې جهاد کوئ، څنګه چه د جهاد حق دې هغه تاسو (دخپل دین دپاره) منتخب کړي یئ، اوپه تاسو بانديې ئې د دین په معامله کښې څه تنګسیا نه ده ایخودلې د خپل پلار ابراهیم علیه السلام دین په مضبوطیا سره اونیسئ. هغه مخکښې هم ستاسو نوم مسلم کیخودلې وو، او په دې (قرآن) کښې هم دپاره ددې چه دا رسول ستاسو دپاره ګواه شي، او تاسو په نورو خلقو بانديې ګواه شئ. لهٰذا مونځ قائم کړئ، اوزکوة ادا کوئ، او الله پاک په مضبوطوالی سره اونیسئ. هغه ستاسو دوست دې، څه ښه دوست! او څه ښه مددګار دې!

## خلاصه تفسیر

(اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ) [ الله تعالى ] ته اختیار دې چه درسالت دپاره چالره غواړي [ منتخب کوی دفرښتونه ] کومو فرښتولره چه غواړي [ احکام ] دالله نبیانو ته ﴿رُسُلًا﴾[رسوونکی] مقرر کوی [ او ] دغه شان (وَّمِنَ النَّاسِ ؕ)[ دبنیادمونه هم ] چالره چه غواړي دعامو خلقو دپاره احکام رسوونکی مقرر کوی چه رسالت د الله تعالى هغه چالره ورکوی کومو لره چه هغه منتخب کړي په دې کښې څه دفرښته کیدو خصوصیت نشته یعنی لکه څنګه چه دفرښته کیدو سره رسالت جمع کیدې شی کوم چه مشرکان هم منی لکه چه دفرښتو رسول کیدل به دوی په خپله تجویز کولو دغه شان دبنیادم والی سره هم دغه جمع کیدې شی پاتې شوه دا خبره چه دا انتخاب په یو خاص پوریې څنګه واقع شو نو ظاهری سبب ئې خو خصوصیات د احوال ددغه رسولانو دی او دا (اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ؕ)[ یقینی خبره ده چه الله تعالى ښه اوریدونکې ښه لیدونکې دې ] یعنی ﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ؕ﴾[هغه ددغو] ټولو فرښتو او بنیادمو [راتلونکو اوتیرو حالتونو لره] ښه [ پیژنی] نو موجوده حالات خو به ئې په درجه اولی سره پیژنی غرض ټول حالات د اوریدو اولیدو هغه ته معلوم دی په دې کښې دځنو حال ددې انتخاب کولو مقتضی شو [ او ] حقیقی سبب ددې دادې چه (وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ۞)[ دټولو کارونو مدار په الله تعالى باند دې ] یعنی هغه مالك مستقل بالذات او فاعل مختار دې دهغه اراده مرجح بالذات د دغه ارادې دپاره دڅه مرجع ضرورت نشته پس حقیقی سبب اراده دالله تعالى ده او دهغې دسبب تپوس کول عبث دې او دا معنی ددې قول دالله تعالى ده [ لایسئل عما یفعل ] یعنی دالله تعالى نه دهغه دڅه کار دسبب دتپوس کولو هیچا ته حق نشته وراندې د سورت په ختمولو باند اول دفروعو او شرائعو بیان دې او په ملت ابراهیمی باند داستقامت حکم ئې ورکړې دې او ددې دترغیب دپاره ئې ځنې مضامین ارشاد فرمائیلی دی ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا﴾[ اے ایماندارو ] تاسو داصولو قبلولو نه پس د فروعو هم پابندی ساتئ خصوصا دمونځ پس تاسو (ارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا)[ركوع کوئ او سجده کوئ او] په عام طور سره فروع هم په ځای کوئ ﴿وَاعْبُدُوْا

رَبَّكُمْ﴾ [ دخپل رب عبادت کوئ﴿وَافْعَلُوا الْخَيْرَ﴾ اونيك كارونه كوئ اميد] يعني وعده [ ده﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ چه تاسو به فلاح بيا مومئ؛ ﴿وَجَاهِدُوا فِي اللَّهِ حَقَّ جِهَادِهِ﴾ او دالله تعالى په كاركښې ښه كوشش كوئ لكه چه دكوشش كولو حق دې ﴿هُوَ اجْتَبَاكُمْ﴾ هغه تاسولره ] دنورو امتونونه [ ممتاز فرمائيلى دى ] لكه چه په ايت [ جعلنكم امة وسطا ] ([1]) وغيره كښې ذكر دى ﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ﴾ [او په تاسو ئ په دين كښې دځه قسم تنگى نه ده راوستې] او اے ايماندارو دكوم اسلام چه تاسوته حكم شوې دې چه احكام ئ ټول پوره كول دى اوهم دا ملت ابراهيمي دې ﴿مِلَّةَ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ﴾ [تاسو دخپل پلار ابراهيم] عليه السلام [ په ملت قائم اوسئ ﴿هُوَ سَمَّاكُمُ الْمُسْلِمِينَ مِنْ قَبْلُ﴾هغه ستاسو لقب مسلمان اېښودې دې وړاندې هم ﴿وَفِي هَذَا﴾ او په دې] قرآن [ كښې هم﴿لِيَكُونَ الرَّسُولُ شَهِيدًا عَلَيْكُمْ﴾ چه تاسو دپاره رسول] عليه السلام [ گواه شى او] ددې گواهئ درسول الله ﷺ نه وړاندې [ تاسو] په يوه لويه مقدمه كښې په كومه كښې چه به يو فريق انبياء عليهم السلام وى او فريق ثانى به ددوى مخالف قومونه وى ددې مخالفو﴿وَتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ﴾[ خلقو په مقابله كښې گواه يئ] او درسول الله ﷺ په شهادت سره به ستاسو تصديق وشى او دانبياؤ عليهم السلام په حق كښې به فيصله وشى [ پس] زمونږ احكام پوره په ځائ كوئ پس [تاسو خلق ] په خصوصيت سره﴿فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾ [دمونځ پابندى ساتئ او زكوة وركوئ او] په باقى احكامو كښې هم ﴿وَاعْتَصِمُوا بِاللَّهِ﴾[ الله تعالى لره مضبوط ونيسئ] يعنى په عزم او همت سره ددين احكام په ځائ كوى دغيرالله رضا او عدم رضا او دخپل نفس مصلحت او مضرت طرف ته مه گورئ ﴿هُوَ مَوْلَاكُمْ فَنِعْمَ الْمَوْلَى وَنِعْمَ النَّصِيرُ﴾[ هغه ستاسو كارساز دې پس ځنگه ښه كارساز دې او ځنگه ښه مدد گاردې ] .

## معارف او مسائل

**دسورة حج سجدۀ تلاوت** :: [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ] دسورة حج د يوبل تير شوى آيت سجدۀ تلاوت كول په اتفاق سره واجب دى . ددې آيت مبارك په تلاوت كښې د سجدۀ تلاوت په واجبيدو كښې د امامانو اختلاف دې. د امام اعظم ابى حنيفه رحمه الله ، امام مالك رحمه الله او سفيان ثورى رحمه الله په نزد ددې آيت سجدۀ تلاوت كول واجب نه دى. ولې چې دې سره د ركوع ذكر هم راغلې دې چې دمونځ سجده ترې مراد كيدل ښكاره دى لكه بل ځائې كښې فرمائى چې : ([2])[وَاسْجُدِي وَارْكَعِي مَعَ الرَّاكِعِينَ] ([3]) چې د ټولو په اتفاق سره دې ځخه د مونځ سجده مراد ده د هغه په تلاوت كولو سره سجدۀ تلاوت نه واجبيږى همداشان ددې مذكوره آيت په تلاوت باندې سجدۀ تلاوت نه واجبيږى، خو امام شافعى رحمه الله او امام احمد رحمه الله ددې آيت سجده د تلاوت هم واجب بولى ، د دوئ رحمه الله دليل هغه حديث مبارك دې چې په كښې فرمائيلې شوى دى چې د سورۀ حج غوروالې په نورو سورتونو باندې ځكه دې چې دې كښې دوه سجدې د تلاوت دى ، خو امام اعظم رحمه الله په نزدې ددې روايت په ثبوت كښې كلام دې ، ددې تفصيل د

[1]) ترجمه:- او داشان مونږ تاسو يو داسې جماعت جوړ كړو چې په ډير اعتدال باندې.

[2]) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۱۴۹]

[3]) ترجمه:- او سجده كوئ او ركوع كوئ هغه خلقو سره چې ركوع كوونكى دى.

فقه او حدیث په کتابونو کښې کتلې شئ.(١)

[وَجَاهِدُوْا فِي اللهِ حَقَّ جِهَادِهٖ] د جهاد او مجاهده معنی داده چې د یو مقصد په حاصلولو کښې خپل پوره طاقت او مشقت څخه کار واخستې شي. نو کفارو سره په جنګ کښې هم مسلمانان د خپلو خبرو او طاقتونو استعمالولو سره ښه پوره کار اخلی څکه ورته جهاد وئیلی شی. د [حَقَّ جِهَادِهٖ] مطلب دادې چې په پوره اخلاص سره یعنی خالص د الله ﷻ دپاره اوکړې شی او په کښې دنیوی هیڅ غرض ، نوم ، نمائش او د غنیمت د مال طمع شامله نه وی.

ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائل چې [حَقَّ جِهَادِهٖ] دادې چې په جهاد کښې پوره طاقت خرچ کړی او د چا ملامت کوونکی ملامتیا پسې مخه نه اوړی. او ځینې مفسرینو حضراتو دلته د جهاد معنی د عام عبادتونو او د الله ﷻ د حکمونو په پوره کولو کښې د خپل طاقت او اخلاص سره ادا کول اخستی ده. ضحاك او مقاتل فرمائیلی دی چې مراد د آیت مبارك دادې چې [اعملوالله حق عمله واعبدوه حق عبادته] [ هغه الله ﷻ دپاره عمل کوئ څنګه چې حق دې] او په هغه شان د الله ﷻ عبادت کوئ څنګه ئې چې حق دې ، او عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما فرمائیلی دی چې دلته د جهاد څخه مراد د خپل نفس او ددې د بې ځایه خواهشونو په مقابله کښې جهاد کول دې هم دا حق جهاد دې. امام بغوی رحمه الله(٢) او نورو ددې قول په تائید کښې یو حدیث پاك هم د جابر بن عبدالله څخه نقل کړی دی چې هغه داسې دې چې یو ځل د صحابه کرامو رضی الله عنهم یوه ډله د کفارو سره جهاد کولو نه چې واپس شوه نو رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چې:

[قدمتم خیر مقدم من الجهاد الاصغر الی الجهاد الاکبر قال [یعنی الراوي] مجاهدة العبد هواه] [رواه البیهقی وقال هذا اسناد فیه ضعف] تاسو خلق د وړوکی جهاد څخه لوئې جهاد ته راواپس شوئ چې هغه د خپل نفس د بې ځایه خواهشاتو خلاف جهاد کول دی. [دا بیهقی روایت کړې دې او فرمائی چې ددې په اسناد کښې کمزوری ده].(٣)

**فائده:** تفسیر مظهری کښې دا دویم تفسیر اختیار کړې شو او دا مسئله ترې راؤښکلې شوې ده چې کله صحابه کرامو رضی الله عنهم کافرانو سره جهاد کولو ، هغه وخت هم د نفس په خلاف جهاد کښې اخته وو ، نو په حدیث پاك کښې اوفرمائیلې شو چې نفس سره جهاد هلته شروع شو چې کفارو سره جهاد نه راواپس شوئی په دې کښې اشاره دې خبرې ته شوه چې د نفس خواهشاتو سره جهاد کول اګر چې په میدان جنګ کښې هم جاری وو ، خو عادتا دا جهاد د کامل شیخ یعنی مرشد په صحبت باندې انحصار لری څکه د کافرانو د جهاد نه په واپسئ سره د رسول کریم ﷺ په خدمت کښې د حاضریدو په وخت شروع شو.(٤)

**د محمد ﷺ امت د الله ﷻ غوره کړې شوې امت دې:** [هُوَ اجْتَبٰىكُمْ] د واثله ابن ناسقع رضی الله عنه څخه روایت دې چې رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چې الله ﷻ په ټولو بنی اسماعیلو کښې کنانه

(١) فتح القدیر کتاب الصلاة باب سجود التلاوة [ج: ٣ ص:١١٦] والمرقاة کتاب الصلاة باب سجود القرآن [ج:٤ ص:١٣٣]

(٢) تفسیر البغوی تحت هذه الآیة [ج:٥ ص:٤٠٢]

(٣) الجامع الکبیر للسیوطي رقم الحدیث :[٢٨٠] والزهد الکبیر للبیهقي رقم الحدیث :[٣٨٤].

(٤) تفسیر المظهري تحت هذه الآیة [ج:٦ ص:٣٥٤]

چونړ کړو ، بیا په کنانه کښې ئې قریش ، بیا په قریشو کښې بنی هاشم او بنی هاشم کښې یې زه چونړ کړم .[مسلم په حواله د مظهری]([1])

[وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ] [د الله ﷻ د دین په مقابله کښې په تاسو څه تنګی نه ده اېښودې شوې ،] دتنګئ د نیشتوالی مطلب ځینې حضراتو دا بیان کړې دې چې د مسلمان داسې هیڅ یو ګناه بۀ نه وی چې په توبه به ګنی نه معاف کیږی . او د آخرت دعذاب څخه به ګنی په هیڅ شکل نه خلاصیږی ، پخلاف د پخوانو امتونو ځینې ګناهونه به یې داسې وو چې توبې سره هم نه معاف کیدل.

ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل چې د تنګئ څخه مراد هغه سخت احکام دی چې بنی اسرائیلو ته ورکړې شوی وو او قرآن عظیم الشان ورته اصر او اغلال وئیلی دی . ځینې حضراتو دلته د تنګئ څخه مراد هغه تنګی او سختی اخستې ده چې انسان ئې نشی برداشت کولې . نو په دې دین کښې هیڅ داسې حکم نشته دې چې په هغې باندې عمل کول د انسان د وس څخه بهر وی هسې خو څه لږ ډیر مشقت ددنیا په هر کار کښې وی ، که هغه د تعلیم حاصلولو کار وی او که د تجارت یا د کاریګرئی وغیره څه کار وی خو دهغې په وجه داسې نشی وئیلې چې دا کار ډیر سخت دې ، دغه شان چې په یو چاپیرچل کښې څه کار برابرې نه خوری یا د څه کار رواج په یو ځائې کښې نه وی نو دا د کار سختوالې او تنګی نشی ګڼلې کوڼنکی ته خو به په دغې حالاتو ګران کښې ځکه ښکاری چې ده سره به په کښې څوك ملګرتیا یا لاس یا مدد نه کوی . خو بیا هم دغې کار ته سخت نشی وئیلې لکه په یوه علاقه یا ملك کښې چې د روټئ پخولو او خوړلو رواج نه وی نو هلته اګر چې روټئ موندل ډیر ګران کار خو ضرور وی خو بیا هم داسې نشی وئیلې چې روټئ پخول ډیر سخت کار دې .

قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله په تفسیر مظهری کښې فرمائیلی دی چې په دین کښې د تنګئ د نیشتوالی دا مطلب هم کیدې شی چې الله ﷻ دا امت په ټولو امتونو کښې خپل ځان دپاره چونړ کړې دې چې ددې په برکت سره ددې امت خلقو ته ددین په لاره کښې لوئې لوئې سختئ په سر اخستل هم آسان بلکه خوندناکه جوړیږی . په دغې محنت کښې ورته آرام حاصلیږی ، خاص کر چې په زړه کښې د ایمان خوږوالې پیدا شی نو ټول درانه کارونه ورته هم آسان ښکاری([2]) لکه د انس رضی الله عنه څخه روایت دې چې رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل چې : [جعلت قرة عینی فی الصلوة] [مونځ سره زما سترګو ته یخوالې حاصلیږی] [احمد ، نسائی ، حاکم روایت کړې دې او دې ته ئې صحیح وئیلی دی ]([3])

[مِلَّةَ أَبِيْكُمْ إِبْرٰهِيْمَ] دا ستاسو د پلار د ابراهیم علیه السلام ملت دې . د ا خطاب اصل کښې د قریشو مؤمنانو ته دې چې د ابراهیم علیه السلام د نسل څخه دی ، بیا ټول خلق د قریشو په تبع ، په دې غورولی کښې شاملیږی ، لکه یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې : [الناس تبع لقریش فی هذا

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الفضائل، باب فضل نسب النبي صلي الله علیه وسلم إلخ [ج:۲ص:۲۴۵]

[2]) تفسیر المظهري تحت هذه الآیة [ج:٦ص:۳۵٤، ۳۵۵]

[3]) المستدرك للحاکم رقم الحدیث:[۲٦۲۷] و سنن النسائی کتاب عشرة النساء باب حب النساء [ج: ۲ ص:۹۳]، مسند انس بن مالك رقم الحدیث:[۱٤٤۰۱].

الشان مسلمهم تبع لمسلمهم وكافرهم تبع لكافرهم] [رواه البخاري ، ومسلم ، مظهري] [1] ټول خلق په دې دین کښې د قریشو تابع دی ، مسلمانانو د قریشي مسلمانانو تابع دي او کافر خلق د قریشي کافرانو خلقو تابع دی . او ځینې حضراتو فرمائیلی دی چې د [مِلَّةَ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ] خطاب د ټول امت مسلمانانو ته دې او ابراهیم ﷺ ته ئې ددې ټول امت پلار په هغې لحاظ سره وئیلی دی چې په کوم لحاظ سره نبی کریم ﷺ ته ددې امت روحانی پلار وئیلې شوی دی. لکه فرمائی چې : [وازواجه امهاتهم] د هغوئ بیبیانې د امت میندې دی. نو نبی کریم ﷺ خامخا پلار شو [2] او دابښکاره خبره ده چې رسول اکرم ﷺ دابراهیم ﷺ په نسلی اولاد کښې هم دې .

[هُوَ سَمَّاكُمُ الْمُسْلِمِينَ مِن قَبْلُ وَفِي هَٰذَا] ابراهیم ﷺ د قرآن عظیم الشان څخه وړاندې امت محمدیه او ټول اهل ایمان د مسلمانانو په نوم بللي دی لکه قرآن عظیم الشان هم د ابراهیم ﷺ دعا داسې نقل کوی چې :

[رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِن ذُرِّيَّتِنَا أُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ] [3] او قرآن پاك کښې چې د اهل ایمان نوم مسلم ایښودلې شوې دې ، ددې ایښودنکې اګر چې نیغ په نیغه ابراهیم نه دې ،خو د قرآن عظیم الشان څخه وړاندې دهغوئ دانوم تجویز کول په قرآن پاك کښې ددې نوم د ایښودو سبب جوړ شو ، په دې وجه ددې نسبت هم ابراهیم ﷺ ته شوې دې .

[لِيَكُونَ الرَّسُولُ شَهِيدًا عَلَيْكُمْ وَتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ] یعنی رسول اکرم ﷺ به په محشر کښې ګواهی ورکوی چې ما د الله تعالی حکمونه دې امت ته رسولی وو او امت محمدیه به ددې اقرار کوی مګر نور پیغمبران علیهم السلام به چې کله داسې اوفرمائی نو امتونه به ئې نه منی . دغه وخت به امت محمدیه ګواهی ورکوی چې بیشکه ټولو پیغمبرانو ﷺ خپل قوم ته د الله ﷻ احکام رسولی وو ، نور امتونه به د دوئ په ګواهئ باندې داسې اعتراض اوکړی چې زمونږ په زمانه کښې خو د محمد ﷺ امت نه وو ، نو دوئ په مونږ څنګه ګواهی ورکوی ؟ دوئ به عرض اوکړی چې بیشکه مونږ هغه وخت نه وو موجود خو مونږ د رسول اکرم ﷺ څخه داشان آوریدلی دی . او د رسول اکرم ﷺ په رښتیا وینا کښې هیڅ شك نشته . نو په دې وجه مونږ دا ګواهی ورکولې شو. نو دا ګواهی به ئې قبوله کړې شی . [د حدیث پاك دا مضمون بخاري شریف وغیره د ابی سعید خدری ﷺ څخه روایت کړې دې] [4]

[فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ] مراد دادې چې هر کله الله تعالی په تاسو خپل باندې داسې لوئې لوئې احسانونه کړی دی چې وړاندې ئې بیان اوشو نو ستاسو فرض دادی چې د الله ﷻ د احکامو په پابندئ کښې پوره کوشش کوئ دهغې ځینې دلته د مونځ او زکوة ذکر کول څکه کافی اوګڼلې شو چې دا په بدنی او مالی عبادتونو کښې د ټولو څخه غوره مونځ او زکوة دې ، نو ګویا کښې مراد د ټولو شرعی احکامو پابندی کول دی .

---

[1] ) صحیح البخاري كتاب المناقب وقول الله تعالي يايها الناس إنا خلقنكم ، الآية ، [ج:١ص:٤٩٦] و صحيح مسلم كتاب الإمارة، باب الناس تبع لقريش إلخ [ج:٢ص:١١٩]

[2] ) جاء في حديث: انما انا لكم مثل الوالد، السنن النسائی كتاب الطهارة ، باب النهي عن الاستطابة [ج:١ ص:١٦]

[3] ) ترجمه:- اې زمونږ پروردګاره! او مونږ خپل نور هم زیات تابعدار جوړ کړه، او زمونږ په اولاد کښې هم داسې یو جماعت جوړ کړه چې هغه ستا تابعدار وی.

[4] ) صحیح البخاري كتاب التفسير ،باب البقرة قوله: كذلكم جعلنكم امة وسطا [ج:٢ص:٦٤٤]

[وَاعْتَصِمُوْا بِاللّٰهِ] يعنى په ټولو كارونو كښې صرف په الله ﷻ باندې تكيه لرئ ، هم د هغه څخه مدد غواړئ ، او عبدالله بن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چې ددې اعتصام څخه مراد د الله ﷻ څخه دعا غوښتل دى چې ددنيا او آخرت د ناخوښو څيزونو څخه مو په امن كړى ، ځينې حضراتو فرمائيلى دى چې د [وَاعْتَصِمُوْا بِاللّٰهِ] معنى داده چې په قرآن عظيم الشان او سنت نبوى ﷺ باندې منګلې ولګوئ ، په هر حال كښې ددې پابندى كوئ څنګه چې رسول اكرم ﷺ فرمائيلى دى چې :

[تركت فيكم امرين لن تضلوا ما تمسكتم بهما كتاب الله وسنة رسوله] [رواه امام مالك فى الموطا مرسلا ، مظهرى] [1] ما تاسو ته داسې دوه څيزونه پريښودى دى چې تر څوپورې تاسو ددې پابندى كوئ نو ګمراه به نشئ ، يو دالله تعالى كتاب او بل دهغه د رسول ﷺ سنت.

تمت سورة الحج بعون الله سبحانه وبه نعتصم هو مولانا ونعم النصير

الحمد لله د سورة د تفسير اكثره حصه د اشهر حج په آخرى مياشت ذى الحجه كښې پوره شوه ، د ټول سورت تفسير په اووهٔ ورځو كښې ختم شو ، پنځه ورځې د ذى الحجه او دوه ورځې محرم ۱۳۹۱ هجرى ،

ولله الحمد اوله واخره وبه استعين فى تكميل الاباقى وما ذلك على الله العزيز

| ركوع ګانې | سورة المؤمنون مكية وهى مائة وثمان عشرة اية وست ركوعات | آياتونه |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ⑥ | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | ۱۱۸ |

| قَدْ اَفْلَحَ | الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ | الَّذِيْنَ | هُمْ | فِىْ صَلَاتِهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| كامياب شوى دى | مومنان | هغه [مؤمنان] | چى هغوئ | په مونځ خپل كښى |

يقينى ده چه هغه مومنان كامياب شول | كوم چى په خپلو مونځونو كښې

| خٰشِعُوْنَ ۝ | وَالَّذِيْنَ | هُمْ | عَنِ اللَّغْوِ | مُعْرِضُوْنَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| عاجزى كونكى دى | او هغه [مومنان] | چى هغوئ | دبدو كارونو نه | مخ اړونكى وى |

عاجزى كونكى دى | او [هغه مومنان كامياب شول ] كوم چې د فضول خبرو نه ځان ساتى

| وَالَّذِيْنَ | هُمْ | لِلزَّكٰوةِ | فٰعِلُوْنَ ۝ | وَالَّذِيْنَ هُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او هغه [مومنان] | چى هغوئ | دزكات طريقې لره | كونكى وى | او هغه [مومنان] چى هغوئ |

اوهغه [مومنان كامياب شول ]كوم چې زكوة ادا كونكى دى | او هغه چې

| لِفُرُوْجِهِمْ | حٰفِظُوْنَ ۝ | اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ | اَوْ مَا |
|---|---|---|---|
| دشرم ځايونو خپلو لره | حفاظت كونكى وى | ماسوا دښځو خپلو نه | يا هغه وينځې |

دخپلو شرمګاهونو حفاظت كونكى دى | .........مګر دخپلو ښځو او دخپلو

---

[1] موطا مالك رقم الحديث [۱۶۲۸]، كتاب القدر باب النهى عن القول بالقدر و تفسير المظهري [ج:۶ ص:۳۵۸]

مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ

چې مالکان شوي دي | ښي لاسونه دهغوئ | خکه چې هغوئ [دوئ ته په ورتلو سره] |

وينځو نه [دا احتياط ] نه کوی | ..................خکه چې په دې کښې دوی

غَيْرُ مَلُومِينَ ۝ فَمَنِ ابْتَغَىٰ وَرَاءَ

نه دی ملامت کړې شوی | نوهغه څوك | چې تلاش کړی | غير د دغه [ښځو او وينځو خپلو] نه |

نشی ملامته کولې | نو څوک چې ددې نه علاوه [د نورو ښځو وغيره]

ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْعَادُونَ ۝ وَالَّذِينَ هُمْ

نو دغه کسان چې دی | دوئ | اوړيدونکی دی دحد نه | او هغه [مومنان] | چې هغوئ

خواهش لری | نو داسې خلق دحدنه تيريدونکی دی | او هغه څوک چې هغوئ

لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ ۝ وَالَّذِينَ هُمْ

امانتونو خپلو لره | او وعده خپلو لره | لحاظ ساتونکی وی | او هغه [مومنان] | چې هغوئ

دخپلو امانتونو او د خپلو لوظونو خيال ساتی | او هغه څوک چې

عَلَىٰ صَلَوَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ ۝ أُولَٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ ۝

په مونځونو خپلو | ساتنه کوی | دا مومنان چې دی | هم دوئ وارثان دی |

دخپلو مونځونو حفاظت کوی | هم دا خلق حقيقی وارثان [او حقدار ] دی

الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۝

هغه [وارثان] | چې په ميراث کښې به اخلی | جنت فردوس | دوئ به | په هغې کښې | هميشه وی

چې جنت فردوس بۀ په ميراث کښې اوړی | او هميشه به په هغې کښې وی

**آسان ترجمه قرآن**

هغه ايمان والا يقيناً کامياب شو. کوم چه په خپلو مونځونو کښې په زړه سره ښکته کيدونکی دی او چا چه د لغوه شيزونو نه مخ اړولې دې. او کوم چه په زکوٰة پاندې عمل کونکی دی، او کوم چه د خپلو شرمګاهونو (او د نورو ټولو نه) حفاظت کوی او د خپلو ښځو او د هغه وينځو نه کومې چه د هغوی په ملکيت کښې راغلې وی. ځکه چه داسې خلق قابل ملامت نه دی خو که څوک د دې نه علاوه بل څه طريقه اختيارول غواړی نو داسې خلق د حد نه تيريدونکی دی او کوم خلق چه د خپلو امانتونو او لوظونو خيال ساتونکی دی، او کوم خلق چه د خپلو مونځونو نګرانی کونکی دی دا دی هغه وارثان، چاته چه به د جنت الفردوس ميراث ملاويږی. دوی به په هغې کښې هميشه هميشه اوسيږی.

**د سورۀ مؤمنون فضائل او خصوصيتونه:** مسند احمد کښې د عمر فاروق رضی الله عنه روايت منقول دې چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته دوحی د نازليدو په وخت به هلته د موجوو خلقو په غوږونو کښې د شاتو د مچو پشان آواز راتلو. يو ځل چې دغسې آواز مونږ واورېدونو ددغې وحې د آورېدو

په غرض هلته ایسار شو. کله چې دغه وحی ختمه شوه نو نبی کریم ﷺ مخ مبارك قبلې ته کړو او کیناستل او دا دعائې اوفرمائیل چې: [اللهم زدنا ولا تنقصنا واكرمنا ولا تهنا واعطنا ولا تحرمنا وأثرنا ولا تؤثر علينا وارض عنا وارضنا] یا الله! مونږ ته زیات راکړې، کم نه کړې، زمونږ عزت زیات کړې، ذلیل مو نه کړې، او په مونږ بخشیش اوکړې، بې نصیبه مو نه کړې، او مونږ د نورو څخه غوره کړې نور را څخه غوره مه کړې. زمونږ څخه راضی شې او مونږ هم په خپلې رضا سره راضی کړې. بیا ئې اوفرمائیل چې په ما باندې دا وخت داسې لس آیتونه نازل شو چې پرې پوره عمل کولو والا به نیغ جنت ته داخلیږی. بیا ئې هم دا لس آیتونه مبارکه اولوستل. [ابن کثیر][1]

او نسائی په کتاب التفسیر کښې د یزید بابنوس څخه نقل کړی دی چې هغوئ ﷺ د عائشې ﷺ څخه تپوس اوکړو چې د نبی کریم ﷺ اخلاق مبارك څنګه او څه وو؟ عائشه صدیقه ﷺ ورته اوفرمائیل چې دهغوئ طبعی اخلاق دا وو چې په قرآن عظیم الشان کښې راغلی دی. او دا لس آیتونه ئې اولوستل. چې بس هم دا اخلاق مبارك ئې وو. [ابن کثیر][2]

**خلاصه تفسیر**

﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ﴾ [په تحقیق سره هغو مسلمانانو] په اخرت کښې کامیابی [بیاموندہ کوم چه] د صحیح عقیدو سره په دې لاندینو صفتونو باند هم موصوف وی یعنی هغوی ﴿الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ﴾ [په خپلو مونځونو کښې] خواه فرض وی یا غیر فرض [عاجزی کوونکی وی ﴿وَالَّذِينَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُونَ﴾ اوکوم چه دعبثو] یعنی فضول [خبرونه] خواه که هغه قولی وی اوکه فعلی [په ډډه اوسیدونکی وی ﴿وَالَّذِينَ هُمْ لِلزَّكَاةِ فَاعِلُونَ﴾ اوکوم چه] په عملونو او اخلاقو کښې [خپله پاکی کوونکی وی ﴿وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ﴾ او کوم چه دخپلو شرم ګاهونو] په حرامه طریقه دشهوتونو پوره کولونه [حفاظت کوونکی وی ﴿إِلَّا عَلَىٰ أَزْوَاجِهِمْ﴾ لیکن دخپلو بیبیانو یا ﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ﴾ [دخپلو] شرعی وینځونه [حفاظت نه کوی ﴿فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ﴾ [ځکه چه په دوی] په دې کښې [څه الزام نشته ﴿فَمَنِ ابْتَغَىٰ وَرَاءَ ذَٰلِكَ﴾ البته کوم چه ددې نه علاوه] بل ځائ دشهوت پوره کولو [طلبګارشول ﴿فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْعَادُونَ﴾ داسې خلق دحد] شرعی [نه وتونکی دی ﴿وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ﴾ اوکوم چه دخپلو] خانته حواله کړې شو [امانتونو او خپلو وعدو] کوم چه دځه عقد په ضمن کښې شوې وی یا هسې ابتداءً کړې وی ﴿رَاعُونَ﴾ [خیال ساتونکی وی ﴿وَالَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَوَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ﴾ او کوم چه دخپلو] فرض [مونځونو پابندی کوی ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ﴾ داسې خلق وارثان کیدونکی دی ﴿الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ﴾ کوم چه به د جنت] اوچتې طبقې [وارثان وی] او ﴿هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾ [هغوی به په دغه کښې همیشه وسیږی]

---

[1] ) مسند احمد، مسند عمر ابن الخطاب رضي الله عنه رقم الحديث:[۲۲۸] و تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٥ ص:۳۵۹]

[2] ) سنن النسائي الكبري، كتاب التفسير سورة المؤمن رقم الحديث :[۱۱۳۵۰]

## معارف او مسائل

**فلاح څه څيز دې دا چرته او څنګه حاصليږي** :: ﴿قَدۡ أَفۡلَحَ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ﴾ د فلاح لفظ په قرآن او سنت کښې ډير استعمال شوې دې په آذان او اقامت کښې پنځه وخته فلاح اړخ ته بلنه ورکولې شي د فلاح معنی داده چه هر مقصد حاصل او هر تکليف لرې شي [قاموس ] (۱) دا لفظ اګر چه لنډ دې مګر داسې ټول اړخيز دې چه هيڅ يو انسان دې نه دزيات بل څيز خواهش نشي کولې دا هم ښکاره خبره ده چه په دنيا کښې هيچا ته مکمل فلاح نشي حاصليدې چې داسې يو مقصد پاتې نشي چې هغه پوره نه شي او داسې يو تکليف نه وی چې هغه لرې نشي او دا دنيا ديو لوئې نه لوئې انسان د وس خبره نه ده . خواه هغه دټولې دنيا بادشاه هفت اقليم وی يا د ډيرې لوړې مرتبې پيغمبر وی ولې چه داسې کيدې نشی چه هغه ته دې د طبيعت خلاف څه څيز راپيښ نشي او د زړه هر خواهش ئې بغيرد تاخير نه پوره کيږی که داسې هيڅ نه وی نوکم نه کم دومره ويره خو ضروری وی چه دا شته نعمت به ترې لاړ شي او څه تکليف به ورته راپيښ شي .

د دې څخه معلومه شوه چې کامل فلاح خو داسې څيز دې چې په دې جهان او ملك کښې بالکل نشي په لاس راتلې څکه چې دنيا خو دار التکليف والمحنت هم ده .او د دې يو څيز هم باقی پاتې کيدونکې نه دې دا متاع په بل جهان کښې ملاويږی چې دهغې [جهان ] نوم جنت دې شی .هغه يو داسې ملك دې چرته به چه دانسان هر مراد هر وخت سمدستی حاصليدې شی ﴿وَلَهُم مَّا يَدَّعُونَ﴾ جنتيان به هر هغه څيز موندې شی کوم چه غواړی ، هلته به هيڅ قسم غم تکليف نه وی بلکه هر څوک به جنت ته د داخليدو په وخت داسې وائی ﴿ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِيٓ أَذۡهَبَ عَنَّا ٱلۡحَزَنَۖ إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُورٞ شَكُورٌ ٱلَّذِيٓ أَحَلَّنَا دَارَ ٱلۡمُقَامَةِ مِن فَضۡلِهِۦ﴾، يعنی الله تعالی لره شکر دې چا چه زمونږ نه غم لرې کړو بيشکه زمونږ رب معافی کوونکی او قدردان دې. او چا چې مونږه په خپل فضل سره داسې يو مقام ته اورسولو چه هر څيز ئې هميشه په ځائ ولاړ دی ] په دې آيت کښې دا اشاره هم موجوده ده چه په دنيا کښې هيڅوک دغم درد نه خالی نه وی څکه به جنتی کله چه جنت ته ورننوځی نو دا به وائی چه زمونږ غم لرې شو ..قرآن کريم په سورة اعلی کښې چه د فلاح حاصلولو کومه نسخه ښودلې ده لکه فرمائی (۲) ﴿قَدۡ أَفۡلَحَ مَن تَزَكَّىٰ﴾ [هغه چا فلاح بيا موندو چه ځان ئې دګناه نه پاک کړو ] دې سره ئې دا اشاره هم اوفرمائيله چه دکامل فلاح موندلو اصلی ځائې آخرت دې څوک چه فلاح غواړی هغه دې دنيا پورې زړه نه تړی وروسې فرمائی ﴿بَلۡ تُؤۡثِرُونَ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةُ خَيۡرٞ وَأَبۡقَىٰٓ﴾ تاسو دنيا د آخرت نه غوره ګڼئ سره د دې چه آخرت غوره او پائيدار دې هلته هر مراد حاصليږی او هرتکليف لرې کيږی او تل د پاره هم دغه حال پاتې کيدونکې هم دې خلاصه دا شوه چه کاميابی موندل صرف په جنت کښې کيدې شی دنيا د دې ځای نه دې البته د اکثری حالاتو په اعتبار سره فلاح موندل چه مرادونه پوره شی او د تکليفونو نه خلاص شی دا حالت الله تعالی په دنيا کښې هم په خپلو بندګانو باندې راولی.په دې آيتونو کښې الله تعالی د فلاح موندلو وعده هغه مؤمنانو سره کړيده چه اووه صفتو نه پکښې موجود وی کوم چه په دې آيتونو کښې راغلی دی دې فلاح نه مراد د دنيا او آخرت دواړو فلاح ده خو د آخرت فلاح به کامل او مکمل وی او د

---

۱) القاموس المحيط [ج:ص:](بالإختصار)

۲) ترجمه:- مراد ته اورسيدو هغه کس چې پاک شو.

دنيا فلاح به تر څه اندازې اوخه حده پورې وې .دلته يو سوال دا راپورته کيږي چه د آخرت کامله فلاح موندل خو يقيناً د نيکانو مؤمنانو په برخه به وي مګر د دنيا فلاح موندل اکثر د کافرانو فاجرانو او فاسقانو په برخه ليدلې کتلې شي ولې چه دهرې زمانې پيغمبران ﷺ او وريسې د امت نيکان خلق په مصيبتونو او تکليفونو کښې ګير پاتې شوې دي .

جواب ئې دادې چه په دنيا کښې څنګه چه کامله فلاح پيغمبرانو ﷺ بزرګانو او نيکانو مؤمنانو ته نۀ حاصليږي دغه شان کافرانو ،فاجرانو او فاسقانو ته هم نۀ حاصليږي دغه حالت د مطلب حاصليدو هم دې چه د هيڅ نيک و بد هر يو مراد نۀ حاصليږي لهذا په دنيا کښې فلاح موندل په آخر انجام باندې اړه لري ، په دنيا کښې تجربې او ليدل کتل ګواه دي چه ګوم خلق دا اووه صفتونه لري او په دې باندې ټينګ هم وي نو اګر چه د دنيا وختي تکليفونه هغوئ ته هم راپيښيږي خو په انجام کښې دهغوئ تکليفونه زر لرې اومراد ئې حاصل شي تولـه دنيا د هغوئ په عزت کولو باندې مجبوره وي او په دنيا کښې د هغوئ نيک نوم پاتې کيږي که په انصاف او غور سره د دنيا د حالاتو مطالعه اوکړې شي نو په هر دور هره زمانه او هره زمکه کښې د دې شهادتونه ملاويږي

**د کامل مؤمن هغه اوه صفتونه چه په دې آيتونو کښې د دنيا او آخرت د فلاح وعده پرې شوې ده:** د ټولو نه رومبې صفت دا دې چه مؤمن دې وي ،مګر هغه يو بنيادي څيز بلکه د بنيادونو بنياد دې ،څکه هغه جدا بيان شو نور اوه صفتونه دلته دا بيان شوي دي .اول په مونځ کښې خشوع د خشوع لغوي معنى سکون او قلارې ده او د شريعت په اصطلاح کښې خشوع داده چه په زړه کښې هم سکون او قلارې وي يعنې د غيرالله خيال په ارادې سره په زړۀ کښې نه راولي او د بدن په اندامونو کښې هم قلارې داسې وې چه عبث او بې فائدې حرکتونه نۀ کوي [بيان القرآن](1) خصوصاً هغه حرکتونه چه رسول الله ﷺ ترې په مونځ کښې منع فرمائيلې ده او فقهاؤ ﷺ د مونځ د مکروهاتو د عنوان لاندې جمع کړې دي په تفسير مظهری کښې د خشوع هم دا تعريف د حضرت عمرو بن دينار رحمه الله نه نقل شوې دې(2) او نورو بزرګانو ﷺ چه د خشوع په تعريف کښې مختلف ګوم څيزونه نقل کړي دي هغه په اصل کښې هم دزړه او د بدني اندامونو د دې قلارې تفصيلات دي مثلاً حضرت مجاهد رحمه الله فرئيلې دي چه نظر او آواز ښکته کول خشوع ده ، حضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل چه د سترګو په ګوټونو باندې يو خوا بل خوا د کتلو نه ځان ساتل خشوع ده حضرت عطاء رحمه الله فرمائيلې دي چه د بدن دڅه برخې سره لوبې نۀ کول خشوع ده د حضرت ابى ذر رضي الله عنه په روايت رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه الله تعالى د مونځ په وخت کښې خپل بنده ته په مخه متوجه وي تر څوچه هغه يو خوا بل خوا د ستر ګو په ګوټونو باندې نۀ ګوري خو کله چه دغسې بل خواته اوګوري نو الله تعالى ترې مخ واړوي [احمد ،نسائي ابوداود وغيرهم مظهري](3) اورسول الله ﷺ حضرت انس رضي الله عنه ته حکم ورکړو چه خپل نظر په هغه ځائ لره چرته چه سجده کوې او دا چه په مونځ کښې يو خوا بل خوا د ستر ګو په ګټونو مۀ ګوره [بيهقي په سنن

(1) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٧ ص:٨٦]

(2) تفسير المظهري[ج:٦ص:٣٦٢]

(3) مسند احمد، حديث ابي ذر رضي الله عنه رقم الحديث:[٢٢١٢٨]، وسنن النسائي كتاب السهو ، باب التشديد في الالتفات في الصلاة

کبرى کښې [مظهری] ([1])
او حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائیلی دی چه رسول الله ﷺ یو سړی ته اوکتل چه په مونځ کښې نې خپلې ږيرې سره لوبې کولې نو وې فرمائيل: لَوْخَشَعَ قَلْبُ هٰذا لخشعت جوارحه ، [حاکم او ترمذی په ضعیف سند سره ] ([2]) یعنی که د دې سړی په زړه کښې خشوع وې نو په اندامونو کښې به ئې هم قلاری وه [مظهری] ([3])

**په مونځ کښې د خشوع د ضرورت درجه**.. د امام غزالی رحمه الله ،قرطبی رحمه الله او دځنې نورو حضراتو رحمهم الله په نزد ،په مونځ کښې خشوع فرض ده .که ټول مونځ بې د خشوع نه اوکړې شي نو مونځ اونهٔ شو، نورو حضراتو رحمهم الله فرمائیلی دی چه اګر که خشوع د مونځ روح دې خو د رکن په حیثیت بې خشوع مونځ بیا هم مونځ دې چه اوشو نو دوباره ئې کول فرض نهٔ دی. حضرت سیدی حکیم الامت رحمه الله په بیان القرآن کښې فرمائیلی دی چه خشوع په مونځ کښې داسې فرض نهٔ ده چه ګنې بې د دې نه مونځ بیخی نهٔ کیږی البته د مونځ قبلیدل پرې اړه لری او په دې درجه کښې فرض ده ([4]) طبرانی په معجم کبیر کښې په حسن سند سره د ابی الدداء رضی الله عنه نه روایت کړی دی چه رسول الله ﷺ اوفر مائیل چه ، دې امت نه د ټولو نه اول کوم څیز چه به پورته کولې شی هغه به خشوع وی تر دې پورې چه په قوم کښې به هیڅوک خشوع کونکې په نظر نهٔ راځی [مجمع الزوائد [په حواله د بیان القرآن ] ([5])

**دکامل مؤمن دویم صفت** دا دې چه عبثیاتو نه پرهیز کوی لکه فرمائی ﴿وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ﴾ د لغو معنی هغه عبث خبره یا عبث کار دې چه څه دینی فائده پکښې نهٔ وی د لغو لویه درجه نافرمانی او ګناه کول دی چه دینی فائده پکښې نشته بلکه ورسره دینی ضرر او نقصان په کښې هم وی چه ځان ساتل ترې واجب دی او د دې ادنی درجه دا ده چه فائده او ضرر دواړه نهٔ لری د دې پریښول کم نه کم غوره او د ثنا صفت جوګه دی لکه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی [ من حُسْنِ اسلام المرء ترکه مالایعنیه] ([6]) انسان ښه مسلمان هله کیدې شی چه بې فائدې څیزونه پریږدی] نو په آیت کښې ښکه دا د کامل مؤمن خاص صفت ښودلې شویدې

**دریم صفت**.. ئې زکوة دې د زکوة لغوی معنی پاکول دی او د شریعت په اصطلاح کښې د مال یوه خاصه برخه د څه شرطونو سره خیرات کولو ته زکوة وئیلې شی چنانچه قرآن کریم کښې دا لفظ [زکوة] هم په دې اصطلاحی معنی کښې استعمالیږی ځکه دلته ترې هم دغه معنی مراد اخستې شی او په دې باندې دا سوال را پورته کول چه هر کله دا سورت مکی دې او په مکه کښې زکوة فرض شوې نهٔ وو بلکه پس د هجرت نه فرض شوې دې نو دلته ترې اصطلاحی معنی زکوة څنګه مراد اخستې شی ؟ ابن کثیر رحمه الله وغیره مفسرینو رحمهم الله د دې جواب دا ورکړیدې چه زکوة

---

[1]) السنن الكبري للبيهقي رقم الحديث :[٣٣٦٠]، و تفسير المظهري[ج:٦ ص:٣٦٣]
[2]) كنز العمال رقم الحديث:[٢٢٥٣٠]
[3]) تفسير المظهري[ج:٦ ص:٣٦٢]
[4]) تفسير بيان القران تحت هذه الآية [ج:٧ ص:٨٦]
[5]) مجمع الزوائد رقم الحديث :[٢٨١٣] والمعجم الكبير رقم الحديث :[٧١٨٣].
[6]) جامع الترمذي ، ابواب الزهد بابٌ [ج:٢ ص:٥٧]

هم په مکه کښې فرض شوې وو چنانچه په مکی سورت مزمل کښې (۱) ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ﴾ سره ، ﴿وَآتُوا الزَّكَوٰةَ﴾ هم ذکر شوې دې صرف خبره دا ده چه په مکه کښې د دې د وصولولو با قاعده انتظام نهٔ وو او نصابونه ئې هم د هجرت [مدینه ] نه پس تاکلې شوې دی خلاصه دا شوه چه کوم حضرات د زکوة فرض کیدل د مدینې منورې حکم گنړی نو هغوی په دې آیت کښې د زکوة لغوی معنی ، ، ځان پاکول ، ، مراد اخستی دی ځنګه چه د تفسیر په خلاصه کښې ئې هم دا معنی اخستې شویده د دې نشانه دا هم ده چه چرته هم په قرآن کریم کښې د فرض شوی مالی زکوة بیان راغلې دې نو هلته د ، ﴿إِيتَآءَ الزَّكَوٰةِ﴾ ، ﴿وَيُؤْتُونَ الزَّكَوٰةَ﴾ او ﴿وَآتُوا الزَّكَوٰةَ﴾ ، په عنوان سره راغلې دې ،او دلته ئې په بدل عنوان یعنی ﴿لِلزَّكَوٰةِ فَٰعِلُونَ﴾ ، ، ئې اوفرمائیل ، دلته د دې بله مضبوطه قرینه دا هم ده چه اصطلاحی زکوة د مال یو خاص برخه ده چه د الله تعالی په نوم خیرات کولې شی څه فعل نهٔ دې چه ګنی د ، ، ﴿فَٰعِلُونَ﴾ لفظ به ورله استعمال شوې وی .که په آیت کښې د زکوة اصطلاحی معنی ، ،زکوة ، ، مراد واخستې شی نو یقیناً چه دا په مؤمن باندې فرض دې ،اوکه ددې نه لغوی معنی ، ، ځان پاکول ، ،مراد واخستې شی نو دا هم ځکه فرض دې چه شرک ، خودنه ، تکبر ،حسد ،بغض ،حرص ،او بخل ،ټول عملونه حرام اوګناه کبیره دی چه ځان ترې پاک ساتل ضروری دی. او دې ته د نفس تزکیه وئیلې شی.

**څلورم صفت** :: د حرامو نه د پردې خپل اندامونه محفوظ لرل دی لکه فرمائی ، ، ﴿وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَٰفِظُونَ ۝ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزْوَٰجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُمْ﴾ یعنی هغه خلق چه د خپلو بیبیانو او شرعی وینځونه علاوه ټولو نه د پردې خپل اندامونه په حفاظت کښې ساتی ] یعنی خپل شهوت خالص هم د دوئ نه په شرعی طریقه پوره کوی، بل هیچانه ئې په ناجائز طریقه نهٔ پوره کوی د دې آیت په ختمیدو فرمائی ، ، ﴿فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ﴾ یعنی په شرعی طریقه د خپلې بی بی او وینځې نه چه خپل شهوت پوره کوی په هغوی هیڅ ملامتیا نشته. دې کښې اشاره دې خبرې ته هم ده چه دې ته د ضرورت درجه ورکول پکار دی د ژوند مقصدئې نهٔ دی ګرځول پکار، مطلب دا شو چه د دې کار کونکې د ملامتې جوګه نهٔ دې –والله اعلم

﴿فَمَنِ ابْتَغَىٰ وَرَآءَ ذَٰلِكَ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْعَادُونَ﴾ یعنی د خپلې نکاح کړې ښځې او د شرعی خپلې وینځې نه بغیرشهوت په بل هیڅ صورت کښې پوره کول جائز نه دی په دې کښې د زنا صورت هم داخل دې اوکومې زنانه سره چه د شریعت له مخې نکاح کول حرام دی هغه هم په حکم د زنا کښې شو ،دغه شان خپلې ښځې یاخپلې وینځې سره د حیض او نفاس په حالت کښې یا په غیر فطری ډول کور والې کول هم په دې کښې داخل دی -مثلاً یو نارینه ،هلک ،یا ځاروی ،ځناور سره دا کار کول هم په دې کښې داخل دی او د جمهورو په نزد په لاس سره شهوت پوره کولو سره ځان تشول هم په دې کښې داخل دی. [تفسیر بیان القرآن ،په حواله د قرطبی اود بحرمحیط وغیره] (۲)

**پنځم صفت**:: د امانت حق ادا کول دی لکه فرمائی : ﴿وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَٰنَٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَٰعُونَ﴾ . امانت په لغت کښې هر هغه څیز ته وئیلې شی چه د هغې ذمه داری یو کس اخستې وی او د دې اعتبار

---

۱) ترجمه:- او دمونځ پابندی کوئی او زکوة ورکوئی.

۲) تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۱۰۶] و البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۵۴۹] و بیان القرآن تحت هذه الآية [ج:۲ ص:۵۳۴]

پرې کړې شوې وی د دې قسمونه هر کله چه بې شمیره دی ځکه ئې په ځائې د مصدر د جمعې د صیغې سره ذکر کړو چه د امانت ټولو قسمونو لره شامل شی که هغه د الله تعالی حقونو سره تعلق لرې او که د بندیګانو حقونو سره ،چنانچه د الله تعالی حقونو سره تعلق لرونکی امانتونه په دې کښې داخلیدل خو مشهور دی ،یعنی چاسره د انسودلی مالی امانت پوره حفاظت کول او روغ جوړ ئې ورته رسول د امانتګر ذمه داری ده دغه شان د راز خبره هم ستاسره امانت دې ، بغیر د څه شرعی عذر نه چې راز ښکاره کړی په امانت کښې خیانت دې،مزدور،ملازم سره چه دکارکولوکوم وخت یا څومره وخت ټاکلې شوې وی په هغې پوره عمل نهٔ کول په امانت کښې خیانت کول او دکار غلا کول دی ، ددې نه معلومه شوه چه د امانت حفاظت کول او د هغې حق ادا کول ډیر جامع لفظ دې ټول بیان شوی تفصیلات په دې کښې داخل دی -

**څیرم صفت**.. لوظ ،[قول] پوره کول دی ،عهد ،دوه اړخیز لوظ او قول ته وئیلی شی چه د هغې پوره کول [دواړو اړخو د پاره ] فرض او د هغې خلاف کول ،ټګی کول او غولول دی چې شرعی لحاظ سره حرام دی ، یو اړخیز لوظ ته وعده وئیلې شی چه د هغې پوره کول هم لازم او واجب دی لکه په حدیث شریف کښې راغلې دی ..العدة دین [وعده یو قسم قرض دې ]یعنی څنګه چه د قرض اداکول واجب دی دغسې د وعدې پوره کول هم واجب دی بې د څه شرعی عذره د هغې نه خلاف کول ګناه ده د دوه اړخیزه لوظ ،قول [عهد] او یو اړخیزه لوظ [وعدې] تر منځه فرق دا دې چه اول قسم لوظ پوره کولوباندې د عدالت په ذریعه بل اړخ مجبوره کولې شی او په دویم قسم لوظ پوره کولو باندې نشی مجبوره کولې خو په دینی لحاظ سره د[یو اړخیزې]وعدې پوره کول هم واجب او بې د شرعی عذرنه خلاف کول ئې ګناه ده

**اووم صفت** :: د مونځ پابندی کول دی لکه فرمائی ، ،﴿وَالَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَوَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ﴾ د مونځ د پابندئی کولو مطلب دا دې چه هر مونځ په خپل مستحب وخت کښې په پابندئ سره ادا کړې شی څنګه چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ئې تفسیر کړې دې [روح] دلته ،،صلوات،، د جمع په صیغې سره دا مطلب لری چه د پنځو واړه مونځونو په خپل مستحب وخت کښې په پابندئې سره اداکول مقصود دی ، او په مونځ کښې د خشوع د پاره لفظ د ،،صلوة ،،مفردځکه راوړې شو چه په هر قسم مونځ [فرض،واجب،سنت ، او نقل ،] کښې د هر مونځ روح خشوع ده ،که ژور نظر واچولې شی نو په دغه بیان شوؤ اوؤ صفتونوکښې د الله تعالی او د بندګانو ټول حقونه او دې سره تړلې حکمونه راځی ،څوک چه د دغې صفتونو خاوند شی او مضبوط پرې پاتې شی نو هغه کامل مؤمن او د دنیا او آخرت د فلاح او کامیابئ حقدار دې. دې خبرې ته هم ژور فکر کول پکار دی چه د دې اوو صفتونو شروع هم د مونځ نه اوشوه او په مونځ سره ختم هم کړې شو ،په دې کښې اشاره دې ته وه چه څوک مونځ لره د مونځ پشان په پابندئې سره اداکوی پاتې نور صفتونه به په هغه کښې پخپله راپیدا کیږی [والله اعلم ]

﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ ۝ الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ﴾ دغه پورته بیان شوی صفتونه چه په چا کښې وی هغوی ته ئې د جنت فردوس وارثان ځکه اوفرمائیل چه اشاره دې خبرې ته شی چه څنګه چه د مورث مال د هغه وارث ته رسیدل قطعی اولازمی دی دغه شان دا صفت لرونکی به هم خامخا جنت کښې

داخلېږي او د ﴿قَدْ أَفْلَحَ﴾ نه پس، د مفلحينو، د پوره صفتونو ذکر کولو نه پس په دې جمله کښې اشاره دې ته ده چه د کاملې او اصلي فلاح ځائ جنت دې

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ ﴿۱۲﴾ ثُمَّ جَعَلْنٰهُ

او جوړ کړې دې مونږه | انسان | دست نه | دختې نه | بيا | جوړ کړو مونږ هغه

او مونږ انسان د خالصې خاورې نه پيدا کړو | ......... بيا مونږ د دې نه نطفه

نُطْفَةً فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ ﴿۱۳﴾ ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً

| يوه نطفه | په ځائې د قرار محکم کښې | بيا | جوړه کړه مونږه | د دغه نطفې نه | توته دويني

جوړه کړه | او په يو محفوظ ځائې [رحم] کښې مو اوساتله | بيا مو د هغه څاڅکي نه چکه وينه جوړه کړه

فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ

بيا جوړ کړو مونږه | د دغه ټوټې د وينې نه | بوټئ دغوښې | بيا جوړ کړو مونږه | د دغه بوټئ دغوښې نه

بيا مو د هغې چکه وينې نه [دغوښې] پوټئ جوړ کړه | ......... بيا مو هغه پوټې

عِظٰمًا فَكَسَوْنَا الْعِظٰمَ لَحْمًا ۗ ثُمَّ اَنْشَاْنٰهُ

هډوکي | بيا ورواغستوله مونږه | دغه هډوکو ته | غوښه | بيا | پيدا کړو مونږه ده لره

هډوکي کړل | بيا مو هغې هډوکو باندې غوښه او خيژوله | ......... بيا مو ترې نه يو بل

خَلْقًا اٰخَرَ ؕ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ ﴿۱۴﴾ ثُمَّ

په پيدا وښت بل سره | پس ډير برکت والا دې | الله | چې ډير ښه | پيدا کونکي دې | بيا

نوې مخلوق جوړ کړو | نو برکت اچونکي دې هغه الله ﷻ چې د ټولو نه ښه پيدا کونکي دې | بيا

اِنَّكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوْنَ ﴿۱۵﴾ ثُمَّ اِنَّكُمْ

بيشکه تاسو چې يئ | روستو د دې نه | خامخا مړه کيدونکي يئ | بيا | بيشکه تاسو

د دې نه پس به ضرور تاسو مرئ | بيا به د قيامت په ورځ

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ تُبْعَثُوْنَ ﴿۱۶﴾ وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ

په ورځ د قيامت | به راپاسولې کيږئ | او پيدا کړې دی مونږه | د پاسه ستاسو | اوه |

د نوی سره راژوندی کيږئ | او مونږ ستاسو د پاسه اووه

طَرَآئِقَ ۖ وَمَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ غٰفِلِيْنَ ﴿۱۷﴾ وَاَنْزَلْنَا

لارې | او نه وو مونږ | د پيدا کولو نه | ناخبره | او نازلې کړې مونږه |

آسمانونه جوړ کړل | او مونږ [د خپل] مخلوق نه بې خبره نه يو | او مونږ د آسمان

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً بِقَدَرٍ فَاَسْكَنّٰهُ فِى الْاَرْضِ

داسمان نه | اوبه | په يو خاص مقدار كښي | نو ودرولي مونږه هغه اوبه | په زمكه كښي

نه په يوه اندازه اوبه راوروو |بيا هغه مونږ په زمكه كښي ايساروو

وَاِنَّا عَلٰى ذَهَابٍ بِهٖ لَقٰدِرُوْنَ فَاَنْشَاْنَا لَكُمْ

او بيشكه مونږه | په غائبولو | ددي سره | خامخا قادر يو | بيا پيدا كړل مونږه | ستاسو دپاره

او بيشكه مونږ ددي په ختمولو باندي هم قادريو | بيامونږ ددي [اوبو] په

بِهٖ جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ لَكُمْ فِيْهَا

په دي [اوبو] سره | باغونه | دكجورو | او دانگورو | ستاسو دپاره | په دي كښي |

ذريعه ستاسو دپاره دكهجورو اوانگورو باغونه پيدا كړل

فَوَاكِهُ كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ وَشَجَرَةً

ميوي دي | ډيري | او ددي باغونونه | تاسو خوراك كوئ | او [پيدا كړه مونږه] هغه ونه هم |

چي په هغي كښي ډيري ميوي دی |اوله دي نه خوراكونه هم كوئی |او يوه بله ونه

تَخْرُجُ مِنْ طُوْرِ سَيْنَآءَ تَنْۢبُتُ بِالدُّهْنِ وَصِبْغٍ

چي راوځي | د طور سينا نه | چي زرغونيږی | دتيلو سره | او انگولي دي |

ئي پيدا كړه |چي په طور سينا كښي راټوكيږی | تيل په كښي پراته وی |او دا د خوړنكو

لِّلْاٰكِلِيْنَ وَاِنَّ لَكُمْ فِى الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً

دپاره دخوړونكو | او بيشكه | ستاسو دپاره | په څارووْ كښي | عبرت [سبق] دي |

دپاره تركاريده|اوستاسو دپاره په څارووْ كښي هم د عبرت اخستو موقع ده

نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِىْ بُطُوْنِهَا وَلَكُمْ

مونږه څكوؤ په تاسو باندي| دهغي نه | چي په خيټو دهغوئ كښي دي | او ستاسو دپاره |

مونږ په تاسو باندي د هغوئ د خيټو څيني څيزونه څكوو| ........ اوستاسو

فِيْهَا مَنَافِعُ كَثِيْرَةٌ وَّمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ

په دغه څارووْ كښي | [نوري ] فائدي هم دی | ډيري | او ددي نه خوري تاسو |

دپاره په دي كښي نوري فائدي هم پرتي دی |اوپه كښي بعضي تاسو خوري هم

وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُوْنَ

او په دغه څارووْ باندي| او په كشتئ باند| باروليْ كيږئ تاسو |

اوپه دي څاروا و بيړو باندي تاسو سورلي كوئی|

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ انسان د خاورې د ست (خالصې خاورې) نه پیدا کړې دې یا مونږ هغه د یو غور ځیدلی څاڅکی په شکل یو محفوظ ځائې کښې کیخودلو بیا مونږ هغه څاڅکی ته د چکه وینې شکل ورکړو، بیا مو دهغه چکه وینې نه د غوښې ټکړه جوړه کړه، بیا مو هغه ټکړه په هډوکو کښې بدله کړه، بیا مو هډوکو ته د غوښې جامه واچوله. بیا مو هغه داسې کړو چه د یو بل مخلوق په شان اودریدو. غرض ډیر لوئې شان دې د هغه الله پاک چه د ټولو کاریګرونه لوئې کاریګر دې.ا بیا د دې ټولو نه پس په تاسو بانديې یقینًا مرګ راروان دې. بیا به د قیامت په ورځ تاسو یقینًا دوباره ژوندی کولې شئ. او مونږ ستاسو دپاسه لاندې بانديې اووهٔ لارې پیدا کړې دی، او مونږ د مخلوق نه غافل نه یو او مونږ د آسمان نه د صحیح اندازې مطابق اوبه نازلې کړې، بیا مو هغه په زمکه کښې اودرولې او یقین ساته، مونږ د هغې په غائب کولو بانديې هم قادر یو. بیا مونږ په هغې سره ستاسو دپاره د کهجوور او انګورو باغونه پیدا کړل چه په هغې سره تاسو ته ډیرې میوې حاصلیږی،اوهم دهغې نه تاسو خوراک کوئ. او هغه اونه مو هم پیدا کړه کومه چه د طور سینا نه راوځی ، چه خپل ځان سره تیل راوباسی او د خوراک کونکو دپاره د ترکارئ سره راټوکیږی اوحقیقت دا دې چه ستاسو دپاره په څاروو کښې ډیر نصیحت دې. کوم (پئ) دهغوی په خیټه کښې دی، دهغې نه مونږ تاسو خروب کوو او په هغې کښې ستاسو دپاره ډیرې فائدې دی، او هم د هغې نه تاسو خوراک هم حاصلوئ. او هم په هغې بانديې او په کشتو بانديې تاسو سورولې شئ.

### خلاصه تفسیر

اول بیان دې دانسان د نوی پیدا کیدو ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ طِيْنٍ﴾ [او مونږ انسان لره دخاوړې دنچوړ] یعنی خوراك [نه جوړ کړو] یعنی اول خاوړه وی بیا ددې نه په ذریعه دشنو بوټو خوراك حاصل شی ﴿ثُمَّ جَعَلْنٰهُ نُطْفَةً﴾ [بیا مونږ ده لره د نطفې نه جوړ کړو کومه چه] دیوې مقررې نیتې پورې ﴿فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ﴾ [په یو محفوظ مقام] یعنی رحم یعنی بچی دانه [کښې پریږدو] اودغه نطفه دخوراك نه حاصله شوې وه ﴿ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً﴾ [بیا مونږ دغې نطفې لره د وینې ټکړه جوړه کړه ﴿فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً﴾ بیا مونږ ددغې وینې ټکړې لره] دغوښې [ټکړه جوړه کړه ﴿فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظٰمًا﴾ بیامونږ دغوښې ددې ټکړې ] دځنو اجزاؤ [نه هډوکی جوړ کړل ﴿فَكَسَوْنَا الْعِظٰمَ لَحْمًا﴾ بیا مونږ په دغو هډوکو باند غوښه وخیژوله ] چه دغه هډوکی پرې پټ شول [بیا] ددې ټولو بدلیدو رابدلیدو نه پس ﴿ثُمَّ أَنْشَأْنٰهُ خَلْقًا اٰخَرَ﴾ [مونږ] په دې کښې روح واچولو [ ده لره مویو بل ] قسم [ مخلوق جوړ کړو ] کوم چه د وړاند حالت نه ډیر په فرق او جدا دې ځکه چه ددې نه وړاند ټول ادلون بدلون په یو بې روحه [جماد] کښې کیدو او اوس ترې دروح خاوند یعنی ژوندې انسان جوړ شو ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ أَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ﴾ [پس ځنګه شان دې دالله تعالی چه دټولو جوړونکو نه لوئ دې ] ځکه چه نور جوړونکی خو دالله تعالی په پیدا کړې شوؤ څیزونو کښې جوړ توړ اوکړی او څیز جوړ کړی ژوند پیدا کول دا خاص دالله تعالی کاردې او په نطفه کښې ددې ذکر شوی ادلون بدلون تفصیل په دې ترتیب سره په قانون وغیره دطب په کتابونو کښې هم ذکر دې وړاند دانسان داخری انجام یعنی فنا بیان دې ﴿ثُمَّ إِنَّكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوْنَ﴾ [ بیاتاسو ورو ستو ددې] ټولې عجیبه قصې [ نه به خامخا

مرئ ] وراند بیان دي دا عادي [ بیا راپورته کیدو] یعنی ﴿ثُمَّ اِنَّکُمۡ یَوۡمَ الۡقِیٰمَۃِ تُبۡعَثُوۡنَ﴾ [ بیا به تاسو دقیامت په ورځ دوباره ژوندي کړې شئ ] او لکه څنګه چه مونږ تاسو لره اول وجود درکړي دي دغه شان موستاسو دباقي پاتي کیدو سامان هم کړي دي چه ﴿وَلَقَدۡ خَلَقۡنَا فَوۡقَکُمۡ سَبۡعَ طَرَآئِقَ﴾ [ مونږ ستاسو دپاسه اووه اسمانونه ] چه په دي کښي دملائکو دتلو راتلو دپاره لارې دي [جوړ موکړل ] چه په دي پورې ستاسوځني مصلحتونه تړلی دي ﴿وَمَا کُنَّا عَنِ الۡخَلۡقِ غٰفِلِیۡنَ﴾ [ او مونږ دمخلوق ] دمصلحتونو [نه بې خبره نه وو] بلکه دهر مخلوق دمصلحت او حکمت رعایت مووکړو جوړ کړل ﴿وَاَنۡزَلۡنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ﴾ [ او مونږ] دانسان دبقاء او نشونما دپاره [ داسمان نه په ] مناسب [ مقدار سره اوبه را وورولي ﴿فَاَسۡکَنّٰهُ فِی الۡاَرۡضِ﴾ بیا مونږ دغولره] تریوي مودي پوري [ په زمکه کښي ایساري کړي ] چنانچه څه اوبه دمزکي دپاسه وی او څه لاندکوزي شی کومي چه وخت په وخت بیا راوځي ﴿وَاِنَّا عَلٰی ذَهَابٍۭ بِهٖ﴾ [ اومونږ] لکه څنګه چه ددي په ورولو قادر یو دغه شان [ ددغو] اوبو [په ورکولو باندي] هم ﴿لَقٰدِرُوۡنَ﴾ [ قادر یو] خواه په هوا کښي ئې والوزوو یائې په زمکه کښي دومره لاندي کړو چه دالاتو په ذریعه ئې هم بیا راویستلې نه شی خو مونږه باقي پاتي کړي ﴿فَاَنۡشَاۡنَا لَکُمۡ بِهٖ جَنّٰتٍ مِّنۡ نَّخِیۡلٍ وَّاَعۡنَابٍ﴾ [ بیا مونږددي ] اوبو[ په ذریعه سره باغونه پیدا کړل دکجورو او انګورو ﴿لَکُمۡ فِیۡهَا﴾ستاسو دپاره په دغو ] کجورو او انګورو [ کښي﴿فَوَاکِهُ کَثِیۡرَۃٌ﴾ ډیري میوې هم دی ] هرکله چه تازه تازه او جوړي شی نومیوه ګنړلې شی ﴿وَّمِنۡهَا تَاۡکُلُوۡنَ﴾ [ او ددي نه ] چه کومي پاتي شی اوچي ئې کړئ نو هغه په طوردغلي [ خورئ هم او] په دغو اوبوسره [ یوه ] دزیتون ﴿وَشَجَرَۃً تَخۡرُجُ مِنۡ طُوۡرِ سَیۡنَآءَ﴾ [ اونه هم ] مونږ پیداکړه [کومه چه په طور سیناء کښي ] ډیري [پیدا کیږی ﴿تَنۡۢبُتُ بِالدُّهۡنِ وَصِبۡغٍ لِّلۡاٰکِلِیۡنَ﴾ کومه چه زرغونیږی دتیلو سره او دخوړنکودپاره سالن سره] یعنی ددي دمیوې نه دواړه فائدي حاصلیږی برابره خبره ده که د رڼا کولو او مالش په کارئ راولئ او که روټئ پوري ئې خورئ دا ذکر شوي سامان د اوبو او بوټونه حاصلیږی [ او] وراند دڅاروو په ذریعه دانسان دنفعو او اسانیو بیان دي چه ﴿وَاِنَّ لَکُمۡ فِی الۡاَنۡعَامِ﴾ [ ستاسو دپاره په څاروو کښي ] هم﴿لَعِبۡرَۃً﴾ [ دغور کولو موقع ده﴿نُسۡقِیۡکُمۡ مِّمَّا فِیۡ بُطُوۡنِهَا﴾ چه مونږ تاسوته ددوی دګیډي څیزونه ] یعنی پئ [ څښلو له درکوو ﴿وَلَکُمۡ فِیۡهَا مَنَافِعُ کَثِیۡرَۃٌ﴾ او ستاسو دپاره په دي کښي نورې هم ډیري فائدي دی ] چه وېښته او وړئ ئې پکار راځی او] دارنګ ﴿وَمِنۡهَا تَاۡکُلُوۡنَ﴾[ په دوي کښي خنولره خورئ هم او په دوی ] کښي چه کوم دباراوړلو قابل دی په ﴿وَعَلَیۡهَا وَعَلَی الۡفُلۡکِ تُحۡمَلُوۡنَ﴾ هغو [ باندي او کشتو باند سوارۀ کرځئ ]

## معارف او مسائل

په تیرو شوو آیتونو کښي د انسان د دنیا او آخرت دکامیابئ طریقه دا خودلې شوي وه چه هغه دي د الله تعالی عبادت کوی ،د هغه حکمونه دي په ځائې راوړی ،خپل ظاهر او باطن دي پاک لری او دټولو انسانانو حقونه دي اداکوی ،اوس په دي آیتونو کښي د الله تعالی کامل قدرت او د انسان په پیدا کولو کښي د هغه دکاریګرې خاص نندارې بیان شویدی ،دې سره دا خبره په داګه کیږی چه کوم انسان عقل او شعور لری ،هغه د دې نه سوا بله لار نشی اختیارولې.

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن سُلَالَةٍ مِّن طِينٍ﴾ د ﴿سُلَالَةٍ﴾ معنى خلاصه او د ﴿طِينٍ﴾ معنى لنده ختمه ده ،مطلب ئې دا شو چه د زمکې د خاوړې د خاص برخونه انسان پيدا کړې شو د ړومبی انسان حضرت آدم عليه السلام پيدا کيدل هر کله چه د خاوړې د خلاصې نه شوی وو نو ځکه دغه ړومبی پيدا کيدل خاوړې ته منسوب کړې شو ،بيا د يو انسان نطفه د بل انسان د پيدا کيدو سبب جوړه شوه په ورپسې آيت کښې د دې مرحلې بيان داسې راغلې دې ، ﴿ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً﴾ مطلب دا چه په اول سر کښې انسان د خاوړې نه پيداشو بيا د ده پيدا کيدل د خاوړې د نرئ برخې د لطيفې [نطفې] نه جاري شو ځنګه چه جمهورو مفسرينو رحمهم الله د دې آيت تفسير هم دا ليکلې دې او دا هم وئيلې شی چه د ﴿سُلَالَةٍ مِّن طِينٍ﴾ نه مراد هم انسانی نطفه ځکه ده چه دا د غذا نه پيدا کيږی او غذا د انسان خاوړې نه جوړيږی [والله اعلم]

**د انسانی پيدائش اوه پوړئ:** په دې آيتونو کښې د انسان د پيدا کيدو اووه دورونه بيان شويدې ، دټولونه ړومبې دور ﴿سُلَالَةٍ مِّن طِينٍ﴾ دويم نطفه ،دريم علقه ، څلورم مضغه، پنځم عظام، [هډوکی ] شپږم په هډوکو باندې غوښه خيژول ،اووم دور د پيدائش د مکمل کولو دې چه هغه د روح پوک وهلو دور دې

**د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه يوه عجيبه لطيفه** :: تفسير قرطبی د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه د معراج د شپې [شب قدر ] دټاکلو په باره کښې د دې آيت په دليل يوه عجيبه لطيفه نقل کړې ده چې يو ځل حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه د لويو صحابه کرامو په ډله دا سوال واچولو چه د ليلة القدر د روژې د مياشتې په کومه نيټه کښې ده ؟ټولو د دې جواب په ،، والله اعلم ،،سره ورکړو دغه وخت حضرت ابن عباس رضي الله عنه هلک وو او په دغه ډله کښې موجود وو،حضرت عمر رضي الله عنه د هغوی نه د دې په باره کښې تپوس اوکړو هغوی رضي الله عنه په جواب کښې اوفرمائيل چه اميرالمؤمنين ،الله تعالى آسمانونه اووه پيدا کړل ،زمکې ئې اوۀ پيدا کړې د انسان د پيدا کيدو اوۀ درجې ئې جوړې کړې د انسان غذائې اوۀ څيزونه جوړ کړل ،ځکه زما په پوهه کښې خودا راځی چه د شب قدر به هم په اوويشتم د رمضان شريف وی فاروق اعظم رضي الله عنه چه په عجيبه شان سره دا دليل نيول واؤ ريدل نو هغې لويو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته ئې اوفرمائيل چه ګورې تاسو چه کوم جواب ورنکړې شو هغه جواب دې هلک ورکړو چه تر اوسه ئې د سر ويښتۀ هم نه دې پوره شوې [دا اوږد حديث د ابن ابی شيبه په مسند کښې راخستې شو يدې] ابن عباس رضي الله عنه د انسانی پيدائش د اوو درجو نه هغه مراد اخستی دی کومې چه په دې آيت کښې راغلی دی او د انسانی غذا اوۀ څيزونه ئې هغه مراد اخستی دی کوم چه په سورۀ عبس کښې داسې راغلی دی .. ﴿فَأَنبَتْنَا فِيهَا حَبًّا ۝ وَعِنَبًا وَقَضْبًا ۝ وَزَيْتُونًا وَنَخْلًا ۝ وَحَدَائِقَ غُلْبًا ۝ وَفَاكِهَةً وَأَبًّا﴾[1] په دې آيت کښې ړومبئ اوه غذاګانې د انسان او يوه آخرنئ ،،اب،،دځاروو خوراکه ده [قرطبی][2]

د قرآن کريم دې بلاغت ته اوګورې چه د انسان د پيدائش پوړې ئې په يوه اندازه ذکر نه کړې بلکه ددې تر منځه چرته ﴿ثُمَّ﴾ راوړلې شويدې چه د زيات وخت اخستو دليل دې چرته ..فاء.. راوړې شويده چه په بلا تاخير کيدو باندې دليل دې. په دې لحاظ سره دې کښې هغې بدلون

---

[1] ترجمه:او بيا مونږ په هغې کښې غله او انګور اور زيتون اور کهجورې او ګڼړ باغونه اوميوې او وابنه پيدا کړل.
[2] تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص: ۱۱۰ ، ۱۱۱]

نه اشاره ده چه د دې تر منځه په فطري ډول مونډې شي ،هغه داسې چه ځنې بدلونونه د انساني عقل په لحاظ سره ډير مشکل وي او ډير مهلت غواړي او ځيني ډير وخت نه غواړي چنانچه قرآن پاك اول درې دورونه په لفظ د ثم سره بيان کړل. اول ﴿سُلَٰلَةٖ مِّن طِينٖ﴾ بيائې نطفة جوړول په لفظ د ثم بيان کړل لکه فرمائی ، ، ﴿ثُمَّ جَعَلۡنَٰهُ نُطۡفَةٗ﴾ ولې چه د خاورې نه غذا پيدا کيدل بيا غذاد بدن برخه جوړيدل ، بيا د هغې خاص برخې نه نطفه جوړيدل د انساني عقل او قياس له مخې ډير وخت غواړي دغه شان په دريمه درجه کښې د نطفې نه د غوښې ټوټه جوړيدل هم يو اوږد وخت غواړي ځکه ئې دلته هم ، ، ﴿ثُمَّ﴾ داسې راوړو ،فرمائي ، ﴿ثُمَّ خَلَقۡنَا ٱلنُّطۡفَةَ عَلَقَةٗ﴾ ورپسې درې دورونه علقې نه مضغه ،مضغې نه هډوکې ، او هډوکو باندې غوښه خيژول ئې ،فا،راوړلو سره ځکه ذکر کړل چه په لږه لږه موده کښې د دې سرته رسيدل څه لرې خبره نه معلوميږي دې نه پس روح اچولو د پاره ئې ﴿ثُمَّ﴾ ځکه راوړو چه بې ساه ځيز کښې ساه اچول د قياس او عقل له مخې لويه موده غواړي

خلاصه داده چې د يو دور څخه د بل دور طرفته چې انقلاب په کومو صورتونو کښې د انساني عقل اوقياس مطابق زر يا د مودې کار وو ، هغه ځائې کښې يې لفظ ثم سره دې طرفته اشاره کړې ده ، او کوم ځائې کښې چې د عام انساني قياس په وجه زياته موده نه وه پکار نو هغه ځائې کښې يې د فاء په حرف سره دې طرفته اشاره کړې ده. په دې وجه په هغه حديث پاك باندې شبهه نشي کيدې کوم کښې چې دا بيان فرمائيلې شوې دې چې د هر دور څخه تر بل دور پورې په بدليدو کښې څلويښت څلويښت ورځې لګی([1]) ځکه چې دا دالله ﷻ د کامل قدرت کار دې . او دا د انساني قياس تابع دې.

**[ د انساني پيدائش آخري مقام ،يعنې ساه او ژوند پکښې پيدا کول]**: د دې آخري مقام بيان ،قرآن کريم په يو خاص او جدا انداز سره داسې بيان کړ يدې ﴿ثُمَّ أَنشَأۡنَٰهُ خَلۡقًا ءَاخَرَ﴾ يعنې مونږه ورته بيا يو خاص قسم بل پيدائش ورکړو ،د بيان د دې بدلون وجه دا ده چه رومبنی د پيدائش شپږ دورونو عالم عناصر ،مادياتو ،او په دې کښې د بدلونونو راتللو سره تعلق لرلو او دې آخري اووم دور ،بل جهان يعنې عالم ارواح سره تعلق لرلو چه جسم ته د روح د رابد ليدو دور وو ځکه ئې ورته ،﴿ خَلۡقًا ءَاخَرَ﴾ ،اوفرمائيل.

**حقيقي او حيواني روح**: دلته حضرت ابن عباس رضي الله عنهما مجاهد رحمه الله ،شعبي رحمه الله ،عکرمه رحمه الله ضحاک او ابو العاليه وغيره ، د ﴿خَلۡقًا ءَاخَرَ﴾ تفسير په روح پوک وهلو سره کړيدې په تفسير مظهري کښې ليکي چه غالبا د دې روح نه مراد حيواني روح دې چه هغه هم مادی او يو لطيف جسم دې چه د حيواني جسم په هره برخه کښې ځائې شوې وې ،([2])کوم ته چه حکيمان او فلسفيان روح وائي . چه د ټولو انساني اندامونو پيدا کيدو نه وروستو پيدا کيږی ځکه ئې په ثم لفظ سره ذکر کړو ،او حقيقي روح چې دهغه تعلق دعالم ارواح سره دې الله تعالى د عالم ارواح نه په راوستو سره ئې ترون په څه شان باندې دې روح حيواني سره په خپل قدرت سره

[1]) صحيح البخاري كتاب بدء الخلق ،باب ذكر الملائكة [ج:١ص:٣٥٦] و صحيح مسلم كتاب القدر باب كيفية الخلق الآدمي ، باب [ج:٢ص:٣٣٢]

[2]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٣٦٩]

پیدا اکړو چه حقیقت پیژندل ئې د انسان د وس خبره نۀ ده ،د دې حقیقي روح پیدا کیدل خو د ټولو انسانانو د پیدا کولو نه ډېر وړاندې دی ،دا هغه روحونه دی چه الله تعالی په عالم ارواح کښې را جمع کړل او ورته ئې ﴿أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ﴾[1] اوفرمائېل ،او دغې ټولو روحونو د الله تعالی دربوالي اقرار په ﴿بَلَىٰ﴾ وئیلو سره اوکړو لیکن دبدن سره ددې تعلق د اندامونو د جوړیدو نه روستو کیږی،دلته د روح پوک وهلو نه که دا مراد واخستې شی چه روح حیوانی سره د روح حقیقي تعلق هم دغې وخت نه قائم شویدې نو دا هم کیدې شی خو په حقیقت کښې د انسان ژوند هم دې حقیقي روح سره تعلق لری خو کله ئې چه روح حیوانی سره تړون پیدا شی هله انسان ژوندې بللې شی او کله ئې چه تعلق ورسره ختم شی نو انسان ته مړ وئېلې شی او روح حیوانی هم کار کول پریږدی -

﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾ د خلق او تخلیق اصلی معنی د یو څیز په داسې شان سره پیدا کول دی چه د وړاندې نه ئې څه بنیاد او څه نمونه موجوده نۀ وی کوم چه د الله تعالی لی مخصوص صفت دې ،په دې لحاظ سره ،بغیر د الله تعالی نه بل هیڅوک مخلوق [انسان یا فرشته و غیره ] د یو معمولي څیز خالق هم نشی کیدې ،خو کله کله خلق او تخلیق د جوړولو او کاریګرې کولو په معنی هم استعمالیږی ،چه حقیقت ئې سوا د دې نه بل هیڅ نشی کیدې چه د الله تعالی پیدا کړی څیزونه رایو ځائ کولو یا د یو بل نه په بیلولو سره ترې بل څه څیز نوې جوړ کړی په دې بنا انسان هم د یو خاص څیز خالق بللې شی ، لکه په خپله قرآن کریم فرمائی ، ، ﴿تَخْلُقُونَ إِفْكًا﴾[2] دا شان د حضرت عیسی عليه السلام په باره کښې فرمائی: ﴿أَنِّي أَخْلُقُ لَكُم مِّنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ﴾[3] په داسې موقعو کښې د خلق مجازی معنی کاریګری کول اخستې شوې ده اوس دې ته خیال اوکړئ چه دلته د ، ﴿الْخَالِقِينَ﴾، لفظ ځکه راوړې شو چه که یو انسان وغیره ته په مجازی معنی سره خالق او وئیلې شی نو بیا هم الله تعالی د ټولو کاریګرانو نه زیات غوره کاریګر دې [والله اعلم

﴿ثُمَّ إِنَّكُم بَعْدَ ذَٰلِكَ لَمَيِّتُونَ﴾ په تیرو شوو درې آیتونو کښې د انسان د پیدائش د شروع بیان وو اوس په دوؤ آیتونو کښې د دې د آخر ،د انجام بیان داسې دې چه تاسو ټول به د شته کیدو او ژوندی پاتی کیدو نه څه موده پس مړه کیږئ ، هیڅ شې به د ختمیدو نه بغیر پاتې نشی ،بیا فرمائی ،﴿ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ﴾ یعنی د مرګ نه پس به بیا هم د قیامت په ورځ ژوندی را پورته کړې شئ چه ستا سو د حساب کتاب اخستو نه پس به تاسو خپلو خپلو اصلی ځایونو جنت یا دوزخ ته رسولې شی -- په دې شان هر کله چه د انسان د پیدائش د شروع او انجام بیان اوشو نو اوس د دې دواړو حالا تو تر منځه د انسان حالات او په دغه دوران کښې پرې د الله تعالی کړی شوی انعامونه او احسانونه څه قدرې تفصیل سره بیانو لې شی .چې هغه مینځنی د آسمان د پیدائش په ذکر سره په ور پسې آیت کښې داسې شروع کولې شی.

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَائِقَ﴾ ﴿طَرَائِقَ﴾ د طریقة ، ،جمع ده ،د دې معنی طبقه او درجه هم کیدې شی معنی به ئې دا شی چه قط په قط اوه آسمانونه تاسو د پاره جوړ کړې شو او که د ، ،طریقة

[1]) ترجمه:-آیا زه څه ستا رب نه یم.
[2]) ترجمه:- تاسو د دروغو خبرې جوړوئ.
[3]) ترجمه:- زه به تاسو خلقو لره د خټې نه داسې شکل جوړ کړم لکه څنګه چې د مرغۍ شکل وی.

,, مشهوره معنی ,,لارې ,,واخستې شی نو مطلب به ئې دا وی چه دغه ټول آسمانونه د فرشتو د تګ را تګ لا رې دی چه د الله تعالی د حکمونو وړلو راوړلو د پاره ئې استعمالوی.

﴿وَمَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ غٰفِلِيْنَ﴾ د دې مطلب دا دې چه د انسان د پیدا کولو نه پس مونږ انسان داسې خوشې نهٔ دې پرېښې بلکه د دهٔ د ودې [ترقۍ] ،استو ګنې او آرام سامانونه مو هم برابر کړل چه د هغې شروع د آسمانونو پیدا کول دی ، بیا د آسمان نه مو اوبه راوورولې د هغې په ذریعه مو د زمکې نه انسان د پاره د غذا او د دهٔ د آرام د سامان مثلا د میوؤ او ګولونو وغیره د را پیدا کولو انتظام یې اوکړو چې هغه ذکر یې په ورپسې آیت مبارك کښې داسې فرمائیلې دی.

﴿وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ فَاَسْكَنّٰهُ فِي الْاَرْضِ ۖ وَاِنَّا عَلٰى ذَهَابٍۢ بِهٖ لَقٰدِرُوْنَ﴾

**انسانانو ته د اوبو رسولو قدرتي عجيبه او نا آشنا انتظام** :: دلته د آسمان نه د اوبو نازلولو سره ئې بقدر.. لفظ زیات راوړلو سره دې ته اشاره ده چه انسان دومره یو ضعیف مخلوق دې چه په اوبو باندې د دهٔ ژوند اړه لری لیکن بیا هم که دا ، د اندازې نه زیاتې شی نو طوفان او سیلاب ترې جوړشی چه انسان او ضروری سامان د پاره ئې وبال او عذاب جوړشی البته که د الله تعالی پخپله د طوفان او عذاب جوړولو اراده اوشی نو هلته د اندازې نه زیات باران وروی که د انسان امروزه ضرورت د پاره امروزه باران وروليې .د هغه په میزاج به پیټې وو نور ضروریات به ئې په تپه ولاړ وو که د انسان میاشتیز دوه میاشتیز یا د زیاتې مودې د ضرورت د پاره ئې په یو ځل د ورانديې نه اوبه راوره ولې او خلقو ته دا حکم وې چه د دغې اوبو د ساتلو او محفوظ لرلو انتظام دې په خپله کوی نو هر چا به هم داسې نهٔ شو کولې که په ډنډونو او تالاؤنو کښې دومره مودې د پاره اوبه ساتل غوښتلې نو بیا به هم ترې سخا شوې او بې خونده شوې وې لهذا الله تعالی د دې د محفوظ ساتلو انتظام داسې اوفرمائیلو چه د باران د وریدو په وخت د زمکو او اونو بوټو وختی ضرورت پرې پوره شی بیا په مختلفو تالاؤنو او قدرتی ډنډونو کښې دغه اوبه څه وخت د پاره جمع پاتې کیږی چه د انسانانو او نورو حیواناتو ضرورتونه پرې پوره کیږی چه د وخت په تیریدو سره دغه اوبه ختمې شی ځکه الله تعالی د هر ځائ انسانانو ته هر وخت د تازه اوبو رسولو انتظام داسې اوکړو چه د واؤرو په شکل کښې ئې د غرونو په سرونو ځکه دا اوساتلې چه یو خو د ګرد و غبار او ګند ګریل نه محفوظې وی بل دا چه دغلته د انسانانو او نورو ځناورو د رسیدولو امکان نهٔ وی ، په داسې صورت کښې دغه واؤرې نهٔ سخا کیږی او نهٔ پلیتیږی او نهٔ ګنده کیږی او دغه اوبه په دمه دمه ویلی کیږی او راځاځی او د غرئیزو رګونو په واسطه د زمکې هرې برخې ته دغه اوبه چرته د چینو په شکل کښې راځر ګندې شی چه د لختو او د ولو په شکل کښې د زمکې په مخ باندې بهیږی په دې شان تازه تازه اوبه هر انسان او حیوان ته رسیدل آسان شو د واؤرې ځنې راڅڅیدلې اوبه زمکې ته ژورې ورښکته شی چه په کوهی کنیستو سره دغه اوبه حاصلولې شی چنانچه قرآن کریم دا ټول نظام په یو لفظ ، ﴿فَاَسْكَنّٰهُ فِي الْاَرْضِ﴾، کښې بیان کړیدې د آیت په آخر کښې دې ته اشاره او کړې شوه چه ستاسو د آسانۍ د پاره دغه اوبه د زمکې په نزدې حصه اولږ ژور والی کښې ساتلې شوې که دا ئې ډیر ژور والی د زمکې کښې ساتلې وې نو انسان به ورته رسیدې نهٔ شو چه خپل ضرورت ئې ترې پوره کړې وې، اود اوبو طبعی خاصیت هم دادې چې هغه د زمکې په ژوره حصه کښې ایسارې شی چې دانسان رسیدل ورته نه شی کیدې لکه قرآن کریم

دلته فرمائي ،، ﴿وَاِنَّا عَلٰى ذَهَابٍ بِهٖ لَقٰدِرُوْنَ﴾ وروسـتـي قرآن كريم د اوبو په ذريعه پيدا كيدونكي او د عربو د مزاج او طبيعت مطابق خاص خاص څيزونه مثلا د كجورو او انګوروباغونه راپيدا كول بيانوي او دې نه پس نورې ميوې په يو عام لفظ سره ذكر كړې لكه فرمائي ﴿لَكُمْ فِيْهَا فَوَاكِهُ كَثِيْرَةٌ﴾ يعنى په دغه باغونو كښې د كهجورو او انګورو نه علاوه بې شميره نورې ميوې پيدا كړلې چه څنې پكښې صرف د شوق پوره كولو او خوند اخستو د پاره خورئ ،او څنې ميوې پكښې خوندى كوئ او مستقل د غذا كار ترې اخلئ لكه فرمائي ﴿وَمِنْهَا تَأْكُلُوْنَ﴾ دې پسې الله تعالى د زيتون او دې نه د حاصليدونكو تيلو بيان په خصوصيت سره څكه فرمائي چه د دې فائدې ډيرې زياتې دى او دې ته ئې هم اشاره اوفرمائيله چه د زيتون اونې په كوه طور كښې زياتې پيدا كيږى لكه فرمائي ، ﴿وَشَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُوْرِ سَيْنَآءَ﴾ سَيْنَآءَ ،او ، سينين،، د هغې مقام نوم دې چرته چه كوه طور واقع دې د زيتون تيل د بدن د مالش او د رنړا د حاصلولو د پاره هم استعمالولې شي او د پخكړې يعنى سالن په حيثيت هم استعمالولې شى ، لكه دلته فرمائي ﴿تَنْۢبُتُ بِالدُّهْنِ وَصِبْغٍ لِّلْاٰكِلِيْنَ﴾ د زيتون اونې د پاره د كوه طور خصوصيت دا دې چه دا اونه د ټولو نه اول په كوه طور پيدا شوې ده - اوڅنې علماؤ ﷺ فرمائيلي دى چه د طوفان نوح نه پس په مخ د زمكې باندې د ټولو نه ړومبې راټوكيدونكې اونه د زيتون ده [مظهرى ] .([1])

وروسـتـې الله تعالى د هغې نعمتونو بيان فرمائي كوم چه انسان ته ئې د څناورو او څاروو په ذريعه وركړې دى الله تعالى دا غواړې چه په دې سره انسان د الله تعالى په كامل قدرت او په كامل رحمت دليل اونيسى او په توحيد او عبادت كښې مشغول پاتې شى چنانچه فرمائي ﴿وَاِنَّ لَكُمْ فِى الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً﴾ تاسو د پاره په څاروو كښې يو عبرت او نصيحت دې] وروسـتـې د دې تفصيل داسې ښائي ﴿نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِيْ بُطُوْنِهَا﴾ چې د دې څاروو په خيټو كښې موږه ،تاسو د پاره پاكيزه پئ تياركړل چه د انسان زيات غوره خوراك دې .وروسـتـې فرمائي چه يواځې پئ نۀ بلكه په دې څاروو كښې تاسو د پاره ډيرې [بې شميره ] فائدې دى ، چنانچه فرمائي ﴿وَلَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ كَثِيْرَةٌ﴾ چه غور اوكړې نو د څاروو د بدن هره يوه برخه د انسان پكار راځى ،د انسان د ژوند تيرولو د پاره بې شميره قسمه سامانونه ترې تيارولې شى ، د څاروو د ويښتو ،هډوكو ،كلمو او ټولو بر خونه ئې انسان خپل ځان د پاره ډير سامانونه جوړوى او تياروى چه شميرل ئې ګران دى . د دې بې شميره فائدو نه علاوه يوه لويه فائده ئې داهم ده چه په دې كښې د حلالو څاروو غوښې هم د انسان زياته غوره خوراكه ده لكه دلته فرمائي ﴿وَمِنْهَا تَأْكُلُوْنَ﴾ په آخر كښې د دغې څار وو يوه بله لويه فائده دا بيان كړې شوه چه تا سو په هغې باندې سورلى هم كوئ او د پيټى اوړلو كار ترې هم اخلئ ،هر كله چه دا فائده په درياب كښې د چليدونكو كشتو نه هم اخستې شى نو څكه ئې دې سره يو ځائ كشتئ هم ذكر كړې چنانچه فرمائي ﴿وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُوْنَ﴾ . دلته هغه سور لئ هم د كشتو په حكم كښې دى كومې چه د پايو په ذريعه چليږى -

[1]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٣٧٥ ، ٣٧٦]

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا

| او بیشکه اولیږلو مونږه | نوح علیه السلام

| او مونږ حضرت نوح علیه السلام د دهٔ

اِلٰى قَوْمِهٖ فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ

قوم دهغه ته | نو اوویل هغه | اے قومه زما | بندګی کوئ د الله | نشته تاسو لره | هیڅ یو معبود

قوم طرفته اولیږلو | نو دهٔ ورته اوویل چې ائي قومه! تاسو د الله ﷻ عبادت کوئی | او د

غَيْرُهٗ ۭ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ۝ فَقَالَ الْمَلَؤُا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

بې دهغه نه | آیا نو نهٔ یریږئ تاسو | نو اوویل سردارانو | هغه [سردارانو] | چې دمنلو نه انکار اوکړو هغوئ

هغه نه سوا ستاسو بل معبود نشته | نو آیا تاسو نه ویریږئی | نو دهغه دقوم سردارانو اوویل

مِنْ قَوْمِهٖ مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۙ يُرِيْدُ اَنْ يَّتَفَضَّلَ

دقوم دهغه نه | چې نهٔ دې دا | مګر | انسان دې | په مثل ستاسو | اراده لری دې | چې اوچت شي

کوم چې کافران وو | چې دې خو ستاسو په شان یو انسان دې | ادې غواړی چې تاسو باندې

عَلَيْكُمْ ۭ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً ښ مَّا سَمِعْنَا

په تاسو باندې | او که غوښتلې الله | نو خامخا رالیږلې به ئې وې | فرښتې | نهٔ دی اوریدلې مونږه

خپل خان اوچت کړی | او که الله [رسولان] رالیږل غوښتلې | نو فرښتې به ئې رالیږلې وې

بِهٰذَا فِيْٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِيْنَ ۝ اِنْ هُوَ اِلَّا رَجُلٌۢ بِهٖ

دا خبری | په پلارانو زمونږ اولنو کښې | نهٔ دې [دا نوح] | مګر یو سړې دې | چې په دهٔ باندې |

مونږ خو دا خبره دخپلو پخوانو مشرانو نه ده اوریدلې | ادې خویو داسې سړې دې

جِنَّةٌ فَتَرَبَّصُوْا بِهٖ حَتّٰى حِيْنٍ ۝ قَالَ رَبِّ

پیریان دی | پس انتظار اوکړئ | دهٔ ته | دڅه وخته پورې | اوویل [نوح] | اے ربه زما |

چې دلیونتوب اثر پرې راغلې دې | تر یو وخت پورې ورته | انتظار اوکړئی | نو نوح علیه السلام دعا

انْصُرْنِيْ بِمَا كَذَّبُوْنِ ۝ فَاَوْحَيْنَآ اِلَيْهِ

امداد اوکړې زما | په سبب دهغې | چې دروغ ئې اوګڼلم زهٔ | نو وحی اوکړه مونږه | هغه ته

اوکړه | چې ائي زما ربه ما سره مدد اوکړه | ځکه چې دوئ زه دروغژن اوګڼلم | نو مونږ ورته

اَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ بِاَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا فَاِذَا جَآءَ

چې جوړه کړه | کشتئ | په نګرانئ زمونږ کښې | او زمونږ دوحی مطابق | نو کله چې | راشي

حکم ورکړوا | چې ته زمونږ په نګرانئ کښې یوه بیړئ جوړه کړه | او زمونږ په حکم ئې

اَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّوْرُ ۙ فَاسْلُكْ فِيْهَا مِنْ كُلٍّ

حکم زمونږه | او رااوخوټکیږی تنور | نو سواره کړه | په دې کشتئ کښی | دهر قسم ځناور نه |
جوړه کړه | نو کله چې زمونږ حکم [دعذاب] راشی | اود زمکې نه اوبه راوخوټکیږی | نو

زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَاَهْلَكَ اِلَّا مَنْ سَبَقَ

جوړه جوړه | دوه دوه | او اهل وعيال خپل | مګر [مۀ سوروه] | هغه څوك | چی مخکښی شوی ده
دهر قسم ځناورو نه دوه دوه جوړئی په کښې کينوه | اوخپل د کور خلق هم | خو هغه څوک

عَلَيْهِ الْقَوْلُ مِنْهُمْ ۚ وَلَا تُخَاطِبْنِيْ فِي الَّذِيْنَ

په هغه باند | خبره دعذاب | دهغوئ نه | اومۀ کوه خبری زما سره | په معامله دهغه کسانو کښی |
په کښې مه پريږده | چې دډوبيدو حکم پرې شوې دې | او دهغه خلقو باره کښې ماسره

ظَلَمُوْا ۚ اِنَّهُمْ مُّغْرَقُوْنَ ﴿۲۷﴾ فَاِذَا اسْتَوَيْتَ

چی ظلم ئې کړې دې | بيشکه چی هغوئ | ډوبيدونکی دی | نو کله چی | برابر [سور] شی تۀ |
خبره مه کوه | څوک چې ظالمان دی | هغوئی غرقيدونکی دی | نوبيا څه وخت چې ته

اَنْتَ وَمَنْ مَّعَكَ عَلَى الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ

تۀ اوهغه څوك | چی ستا سره دی | په کشتئ باند | نو اووايه | ثناده | الله لره | هغه الله |
اوستاملګری په بيړئ کښې ځائې اونيسی | نو ته دا دعا اولوله چې دهرې ثناء لائق الله دی

نَجّٰىنَا مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۸﴾ وَقُلْ رَّبِّ اَنْزِلْنِيْ

چی خلاص ئې کړو مونږه | دقوم ظالم نه | او اووايه | اے ربه زما | كوز كړه ما |
چې مونږ ته ئې د ظالم قوم نه نجات راکړو | اودا دعا کوه | چې ائې زما ربه ما [د کشتئ نه]

مُنْزَلًا مُّبٰرَكًا وَّاَنْتَ خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ ﴿۲۹﴾ اِنَّ

په يو داسې ځائې کښی | چی برکتناك وی | او تۀ | بهتره ځائې ورکونکې ئې | بيشکه |
دبرکت په ځائې باندې کوز کړه |.................اوته د ټولو نه ښه کوزونکې ئې | بيشکه

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ وَّاِنْ كُنَّا لَمُبْتَلِيْنَ ﴿۳۰﴾

په دې قيصه کښی | ډيرې نښې دی | او بيشکه چی يو مونږه | خامخا آزميښت کونکی
دې [واقعه] کښې ډيرې [دعبرت] نخښې دی | اومونږ خو امتحان کونکی يو |

### آسان ترجمه قرآن

اومونږ نوح عليه السلام دهغه قوم ته ليږلې وو، پس هغوی (قوم ته) اووئيل چه: اې زما د قوم خلقوا دالله پاک عبادت کوئ دهغه نه سوا ستاسو بل څوک معبود نشته. آيا تاسو ويريږئ نه؟په دې باندې د هغه د قوم کافرانو سردارانو (يو بل ته) اووئيل: ددې سړی د دې نه سوا هيڅ حقيقت نشته چه دې هم

ستاسو په شان یو انسان دې چه په تاسو باندې خپل اوچتوالې ثابتول غواړي، او که الله پاک غوښتلې وې نو ملائک به ئې نازل کړې وې. دا خبره خو مونږ په خپلو مخکښینو مشرانو کښې هم نه ده اوریدلې. (پاتې شو داسړې نو) دا بل هیڅ نه دې، یو داسې سړې دې چه لیونتوب ورته رسیدلې دې، په دې وجه د څه وخته پورې انتظار کولو سره وَرته اوګورئ (چه کیدې شي په خپلو حواسو کښې راشي) نوح علیه السلام اوفرمائیل: یا ربه! دې خلقو چه څنګه زه دروغژن کړې یم، په هغې باندې ته زما مدد اوکړه. پس مونږ هغه ته وحی راولیږله چه: ته زمونږ په نګرانئ کښې او زمونږ د وحی مطابق یوه کشتئ جوړه کړه. بیا چه کله زمونږ حکم راشي، او تنور جوش اووهي او د هر قسم څناورو نه یَو یَو جوړه اخستلو سره هغه هم په کشتئ کښې سواره کړه او د خپل کور خلق هم سوا د هغې نه د چا خلاف چه د مخکښې نه حکم صادر شوې دې او د دې ظالمانو په باره کښې ماته هیڅ خبره مه کوه، دا خبره مقرر ده چه دوی ټول به غرق شي. بیا چه کله ته او ستا ملګری په کشتئ کښې برابر کینئ، نو اُووایئ: شکر دې الله پاک لره چا چه مونږ ته د ظالمانو خلقو نه خلاصې را کړو. او اووایه اې ربه ماته داسې کوزیدل نصیب کړه چه برکت والا وی او ته بهتر کوزولکې ئې په ټوله واقعه کښې لوئې نخښې دی او یقینی خبره ده چې مونږ خو ازمیښت کولکی یو.

## خلاصه تفسیر

هم ددې نه په وړاند ایتونو کښې دانسان دپیدائش او دده دبقاء او ارام دپاره دمختلف قسم دسامان پیدا کولو ذکر وو وړاند دده دروحانی تربیت او دینی فلاح چه کوم انتظام فرمائیلې دې دهغې ذکر دې ﴿وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰی قَوْمِهٖ﴾ [ اومونږ نوح علیه السلام [ لره دده د قوم طرف ته پیغمبر جوړ کړو ولیږلو پس دوې] خپل قوم ته ﴿فَقَالَ یٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ﴾ [ وفرمائیل چه اے زما قومه خاص دالله تعالی عبادت کوئ ﴿مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَیْرُهٗ﴾ د هغه نه سوا څوك ستاسو دپاره د معبودانو جوړولو لائق نشته] او هرکله چه دا یوه خبره ثابته ده نو ﴿اَفَلَا تَتَّقُوْنَ﴾ [ بیا ایاتاسو] دنورو دمعبود جوړولو نه [ نه ویریږئ پس] دنوح علیه السلام دا خبره ئې چه واوریده نو ﴿فَقَالَ الْمَلَؤُا الَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ﴾ [دده په قوم کښې چه کوم کافران سرداران وو] عوامو ته ئې [ووئیل ﴿مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ﴾ چه داسړې بغیر ددې نه چه ستاسو په شان یو] معمولی [ بنیادم دې او بل څه ] رسول وغیره [ نه دې] په دې دعوی سره ﴿یُرِیْدُ اَنْ یَّتَفَضَّلَ عَلَیْكُمْ﴾ [ دده ] اصل [ مطلب دادې چه تاسو نه خان لوئ کړی ] یعنی دده مقصد محض خپله مرتبه او عزت دې ﴿وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ﴾ [ او که الله تعالی ته ] رسول لیږل [ منظور وی نو] ددې کار دپاره ﴿لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً﴾ به ئې [ فرښتې رالیږلې وې ] پس دده دعوی غلطه ده دغه شان دده توحید طرف ته دعوت ورکول بله غلطی ده څکه چه ﴿مَّا سَمِعْنَا بِهٰذَا﴾ [ مونږه دا خبره ] چه بل څوك معبود مه جوړوئ ﴿فِیْٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِیْنَ﴾ [ په خپلو وړومبو مشرانو کښې ] چرې [ نه ده اوریدلې ﴿اِنْ هُوَ اِلَّا رَجُلٌۢ بِهٖ جِنَّةٌ﴾ بس دا یو سړې دې چه دې لیونې شوې دې ] په دې وجه دټولې دنیا نه خلاف خبرې کوی چه زه رسول یم او معبود یو دې ﴿فَتَرَبَّصُوْا بِهٖ حَتّٰی حِیْنٍ﴾ [ پس تریو خاص وخته] یعنی دده ترمرګه [ پورې دده ] ددې حالت [ نور انتظار کوئ ] اخر دې به یو وخت ته ورسیږی ختم به شی او ټوله معامله به سره پاتې شی ﴿قَالَ﴾ [ نوح علیه السلام چه ددوی دایمان راوړو نه نا امیده شو نو دالله تعالی په دربار کښې ئې [

عرض وکړو ﴿رَبِّ انْصُرْنِي﴾ چه اے زما ربه ] دوی نه [ زما بدله واخلې ﴿بِمَا كَذَّبُونِ﴾ په وجه د دې چه دوی زۀ دروغژن کړې یم ﴿فَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ﴾ بس مونږه ] ددۀ دعا قبوله کړه او[ دۀ ته ] مو [حکم ولیږلو ﴿أَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا﴾ چه ته کشتۍ جوړه کړه زمونږ په نګرانۍ کښې ﴿وَوَحْيِنَا﴾ او زمونږ په حکم سره ] چه اوس به طوفان راځی او تاسو او مؤمنان به ددغې په ذریعه محفوظ پاتې کیږئ ﴿فَإِذَا جَاءَ أَمْرُنَا﴾[ بیا چه څه وخت زمونږ حکم ] دعذاب نژدې [راشي او] نښه ئې داده چه ﴿وَفَارَ التَّنُّورُ﴾[ دزمکې نه اوبه خو ټکیدل شروع شي نو ] دغه وخت ﴿فَاسْلُكْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ﴾[ دهر قسم ] ځناورو[نه ] کوم چه دانسان په کار راځی او په اوبو کښې ژوندی نه شی پاتې کیدې لکه ګډه بیزه غوا ، غوائی ، اوښ ، آس او خر وغیره [ یویو نراویوه یوه ماده یعنی دوه دوه په شمیر په دې ] کشتۍ [کښې داخل کړه ﴿وَأَهْلَكَ﴾ اوخپل دکور خلقو لره هم ] سواره کړه ﴿إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ مِنْهُمْ﴾[ بغیر دهغونه په کومو چه ] دغرقیدو [ حکم نافذ شوې دې] یعنی ستاپه اهل وعیال کښې چه کوم کافران وی هغه مه سوروه [ او] دا واوره چه دعذاب راتلو په وخت کښې ﴿وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا﴾[ماسره دکافرانو] دنجات [ په باره کښې هیڅ خبرې مه کوه ] ځکه چه ﴿إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ﴾[دغه ټول به غرقیږی ﴿فَإِذَا اسْتَوَيْتَ أَنتَ وَمَن مَّعَكَ عَلَى الْفُلْكِ﴾ بیا چه څه وخت تاسو او ستاسو ملګری [ مسلمانان ] په کشتۍ کښې کښینئ ﴿فَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي نَجَّانَا مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ﴾ نو داسې وایئ چه شکر دې دالله تعالی چه مونږ له ئې دکافرانو خلقو نه ] یعنی ددوی دکارونو او ددوی دوبال نه [ نجات راکړو او]کله چه دطوفان ختمیدو نه ﴿وَقُل رَّبِّ أَنزِلْنِي مُنزَلًا مُّبَارَكًا﴾ پس زمکې ته دکشتۍ نه راکوزیږئ نو داسې وایئ چه اے زمونږه ربه مونږ لره ] په زمکه [ دبرکت په کوزیدوسره کوز کړې ] یعنی په باطنی او ظاهری اطمینان سره مو اوساتې ﴿وَأَنتَ﴾ [ او ته دټولو ] دښان سره په طور دمیلمستیا ﴿خَيْرُ الْمُنزِلِينَ﴾[ د ټولو کوزونکو نه غوره یې ] یعنی نور خلق چه کوم میلمانه دښان سره کوزوی هغوی دخپلو میلمنو په مقصدونو پوره کولو او دمصیبتونو نه په نجات ورکولو قدرت نه لری او ستا په دې ټولو څیزونو قدرت دې ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ﴾[ په دې ] ذکرشوې واقعه [ کښې] دعقل لرونکو دپاره زمونږ دقدرت [ ډیرې نښې دی ﴿وَإِن كُنَّا لَمُبْتَلِينَ﴾ او مونږ] دا نښې ښایو او خپلو بندګانو لره پرې [ ازمایو] یعنی ازمائش ئې کوو چه وګورو چه کوم ددې نه نفع اخلی اوکوم نه اخلی او نښې دادی رسول لیږل ایماندارو لره بچ کول کافرانو لره هلاکول او ناڅاپه طوفان پیداکول کشتۍ لره محفوظ ساتل وغیره وغیره

## معارف او مسائل

﴿وَفَارَ التَّنُّورُ﴾ د «تنور» یوه مشهوره معنی د روټۍ پخولو ځائې دې او هم دغه معنی مشهوره ده او ټولې زمکې ته هم تنور وئیلې شی ځنګه چه د تفسیر په خلاصه کښې ئې ترجمه شوې ده ، ځنې مفسرینو رحمهم الله ترې یو خاص ، تنور ، [د روټې پخولو ځائ ] مراد اخستې دې چه د کوفې په جمات کښې یا د شام ملک په یو بل ځائې کښې جوړوو ، دغې تنور نه اوبه راخوټ کیدل حضرت نوح علیه السلام ته د طوفان نښه ګرځولې شوې وه [مظهری[1] د حضرت نوح علیه السلام د هغوئ د طوفان او د کشتۍ قصه په تیرو شوؤ سورتونو کښې په تفصیل سره بیان شوې ده ]

[1] ) تفسیر المظهري[ج:٦ص:٣٧٨]

ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ ۝ فَاَرْسَلْنَا فِيْهِمْ

بیا پیدا کړو مونږه | روستو دهغوئ نه | يو قوم | بل (۱) | بيا اوليږو مونږه | په هغوئ کښې |

بیا ددوئ نه پس مونږ يو بل قوم راپیدا کړو | نو هغوئ ته مونږ دخپل [قوم] نه

رَسُوْلًا مِّنْهُمْ اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ط اَفَلَا

يورسول | دهغوئ نه | چې بندگی کوئ دالله | نشته تاسو لره | څوك معبود | بې دهغه نه | آيا نو تاسو

يو پیغمبر اوليږلو | نو [هغه پیغمبرا ووئیل] چې تاسو دالله ﷻ عبادت کوئی | دهغه نه سوا

تَتَّقُوْنَ ۝ وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

يريږئ نهٔ | او ووئيل سردارانو | دقوم دهغه نه | هغه کسانو | چې دمنلو نه ئې انکار اوکړو |

ستاسو بل معبود نشته | آيا تاسو نه يريږئ | او دهغه دقوم سردارانو ووئيل | کوم چې

وَكَذَّبُوْا بِلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ وَاَتْرَفْنٰهُمْ

او دروغ ئې اوګڼړله | پيښې دآخرت | او دخوشحالئ سامان ورکړې وؤ مونږ هغوئ ته |

کافران وو | او د آخرت راتلل ئې دروغ ګڼړل | او مونږ ورله په دنيا کښې

فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ۙ يَاْكُلُ

په ژوند ددنيا کښې | چې نهٔ دې دا [سړې] | مګر | انسان دې | په مثل ستاسو | دې خوری |

دراحت او عيش سامانونه ورکړی وو | چې دې ستاسو په شان سړې دې | کوم څيزونه

---

(۱) **دنوح ﷺ د قوم نه پس عاديان اونموديان:-** الله تعالى بيان فرمائى چه د حضرت نوح ﷺ نه پس هم ډير امتونه راغلل لکه عاديان هغوی سره متصل وو یا ثموديان چه په هغوی باندې د چغې عذاب راغلې وو لکه چه په آيت کښې دی هغوی له هم دالله تعالى رسول راغلې وو دالله تعالى دعبادت اودهغه دتوحيد تعليم ئې ورکړو خوهغوی تکذيب اوکړو اومخالفت ئې اوکړو. د تابعدارئی نه ئې انکار اوکړو صرف په دې وجه چه دا انسانان دی. قيامت ئې هم اونه منلو اودبدنی حشر نه هم منکر شو او وئې وئيل چه داخوبالکل د قياس نه هم لرې دی. بعث نشر حشر قيامت هيڅ څيز نشته. دې سړی دا تولې خبرې د ځان نه جوړې کړی دی مونږ د داسې فضول خبرو منونکی نه يو. نبی ﷺ دعا اوکړه او په هغوی باندې ئې امداد اوغوښتلو هم هغه وخت جواب ملاؤشو څوك چه ستا موافقت نه کوی په هغوی به هم اوس عذاب راشی اودوی به په چغو چغوژاړی آخر په يوه زبردسته چغه او آواز سره ټول ختم کړې شو اوهم د دې هغوی حقدار هم وو. ډيرې تيزې سيلئی او د هوا په پوره طاقت سره د فرښتو زړه ويستونکی او خطرناك آوازهغوی ذره ذره کړه او تباه برباد ئی کړل. بوس ترې والوتل او صرف د کورو کندرې پاتې شوې د خلقو د عبرت د پاره پاتې شواود ګندګريل په شان بې کار څيزونه شول. د داسې ظالمانو د پاره لريوالې دې په هغوی باندې رب ظلم نه دې کړې بلکه هم د هغوی کړه وو کوم چه د هغې مخې ته راغله نواې خلقو تاسو له هم د رسول ﷺ د مخالفت نه زيات ويريدل پکار دی.

مِمَّا | تَأْكُلُوْنَ | مِنْهُ | وَيَشْرَبُ | مِمَّا | تَشْرَبُوْنَ ﴿٣٣﴾ | وَلَئِنْ
دهغې نه | چې خورئ تاسو | دهغې نه | او دې څکې | دهغې نه | چې څکې ئې تاسو | او که چرې
چه تاسو خورئ هغه دې هم خوري | او دهغه څه نه څکاک کوي کوم چه تاسو څکئ | او که تاسو

أَطَعْتُمْ | بَشَرًا | مِّثْلَكُمْ | إِنَّكُمْ | إِذًا | لَّخٰسِرُوْنَ ﴿٣٤﴾
خبره اومنله تاسو | ديو بشر | چې ستاسو پشان دې | نو بيشكه تاسو | بيا | خامخا نقصان موندونكي يئ
دخان غوندې يو سړي تابعداري اوكړه | ..........نو بيا خو تاسو به په ښكاره تاوان كښې ئې

أَيَعِدُكُمْ | أَنَّكُمْ | إِذَا | مِتُّمْ | وَكُنْتُمْ | تُرَابًا
آيا دې وعده كوي ستاسو سره | چې بيشكه تاسو | كله | مړه شئ | او شئ تاسو | خاورې
داسړې خو تاسو ته وائي | چې هركله تاسو مړه شئ | او خاورې هډوكې شئ

وَّعِظَامًا | أَنَّكُمْ | مُّخْرَجُوْنَ ﴿٣٥﴾ | هَيْهَاتَ | هَيْهَاتَ
اوهډوكې | نو بيشكه تاسو به | راايستلې كيږئ [دقبرونو نه] | ډير لرې دې | ډير لرې دې
نو بيا به د نوي سره راويستلې شئ [ژوندي كيږئ] | [دعقل نه] ډيره لرې ده | ډيره لرې ده

لِمَا | تُوْعَدُوْنَ ﴿٣٦﴾ | إِنْ هِيَ | إِلَّا | حَيَاتُنَا الدُّنْيَا
هغه خيز | چې ستاسو سره ئې وعده كولې شي | نۀ دې دا ژوند | مګر | ژوند زمونږ ددنيا دې
داوعده چې تاسوسره كولې شي | زمونږ داژوند خوصرف هم ددنيا ژوندې دې

نَمُوْتُ | وَنَحْيَا | وَمَا نَحْنُ | بِمَبْعُوْثِيْنَ ﴿٣٧﴾ | إِنْ هُوَ
چې مونږ مرو مونږه | او ژوندي كيږو مونږه | اونۀ يو مونږه | راپاسيدونكي دقبرونونه | نۀ دې دا سړې
چې مونږ څوك مرو | او څوك پيداكيږو | اومونږ به دمرګ نه پس بيا هيچرې نه ژوند كيږو | داخو

إِلَّا | رَجُلُ | افْتَرٰى | عَلَى اللّٰهِ | كَذِبًا | وَّمَا نَحْنُ | لَهٗ
مګر | يو سړې دې | چې تړلې دی | په الله باندې | دروغ | اونۀ يو مونږه | دۀ لره
يو داسې سړې دې | چې په الله ﷻ باندې ئې دروغ جوړ كړي دی | اومونږ هيڅ كله ددۀ دخبرې

بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿٣٨﴾ | قَالَ | رَبِّ | انْصُرْنِيْ | بِمَا | كَذَّبُوْنِ ﴿٣٩﴾
منونكي | اووئيل رسول | اے ربه زما | امداد اوكړې زما | په سبب دهغې | چې دروغ ئې اوګڼرلم زۀ
منونكي نه يو | نو [پيغمبر] دعااوكړه چې ائې زماربه ته زما مدد اوكړه | څكه چې دوئ زه دروغژن كړې يم

قَالَ | عَمَّا قَلِيْلٍ | لَّيُصْبِحُنَّ | نٰدِمِيْنَ ﴿٤٠﴾ | فَأَخَذَتْهُمُ | الصَّيْحَةُ
اووئيل الله | چې دلږې مودې نه پس به | شي دوئ | پښيمانه | نو اونيول هغوئ | يوې چغې
[الله ﷻ ورته] اووئيل چې داخلق بۀ ډير زر [پخپلو خبرو] پښيمانه شي | نو بيا يو سخت آواز

بِالْحَقِّ　فَجَعَلْنٰهُمْ　غُثَآءً　فَبُعْدًا　لِّلْقَوْمِ

په حقه سره | نو جوړ كړل مونږه دهغوئ نه | خسنړې دسيلاب | پس لرې والې دوی | دپاره دقوم

په هغوئ باندې راغلو | نو مونږ دوئ ريزه ريزه كړل | نو د ظالمانو دپاره

الظّٰلِمِيْنَ۝

ظالم

هلاكت دې

## آسان ترجمه قرآن

بيا دهغوی نه پس مونږ نور نسلونه پيدا كړل، او په هغوی كښې مو هم دهغوی نسل نه يو سړې رسول اوليږلو (چا چه اووئيل) چه: د الله پاک عبادت كوئ . د هغه نه سوا ستاسو هيڅوک معبود نشته، آيا تاسو ويريږئ نه. د هغوی د قوم هغه سرداران چه كافر وو، او چا چه د آخرت د ملاقات تكذيب كړې وو، او چا ته چه مونږ په دنيوی ژوند كښې ښه مزې وركړې وې، هغوی (يو بل ته) اووئيل: د دې سړی حقيقت د دې نه سوا هيڅ نه دې چه دا هم ستاسو په شان انسان دې، څه چه تاسو خورئ، هغه دې هم خوری، او څه چه تاسو څكئ، دې هم څكی. او كه چرته تاسو د خپل ځان په شان د يو انسان تابعداری قبوله كړه نو تاسو به ډيره د تاوان سودا اوكړئ. آيا دا سړې تاسو د دې نه ويروی چه كله تاسو مړهٔ شئ، او په خاورو او هډوكو كښې بدل شئ، نو تاسو به دوباره د زمكې نه راويستلې شئ؟ د كومې خبرې نه چه تاسو ويرولې شئ، هغه خو ډيره لرې ده، د پوهې نه ډيره لرې! ژوند خو د دې دنيا د ژوند نه علاوه بل نشته، (هم دېكښې) مونږ مرو او ژوندی كيږو، او مونږ دوباره نه شو ژوندی كيدلې (پاتې شو دا سړې نو) هيڅ نه دې دې مگر يو داسې سړې چه په الله پاک باندې ئې دروغ بهتان تړلې دې، او مونږ په دهٔ باندې ايمان راوړونكی نه يو. پيغمبر اووئيل: يا ربه ! دې خلقو چه زهٔ څنگه دروغژن كړې يم، په هغې باندې ته زما امداد اوكړې الله پاک اوفرمائيل : اوس د لږ وخت خبره ده چه دا خلق به افسوس كونكی پاتې شی. پس د دې رشتينې وعدې مطابق هغوی يو هيبتی چغې راونيول، او مونږ هغوی نه خزله جوړه كړه، لعنت دې په داسې ظالمانو باندې!.

## خلاصه تفسير

[ بيا] دنوح ﷺ دقوم نه پس ﴿ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ۝﴾ [ مونږ بله ډله پيداكړه] مراد عاديان دی يا ثموديان ﴿فَاَرْسَلْنَا فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ﴾ [ بيامونږ په دوی كښې يو پيغمبر وليږلو كوم چه ددوی نه وو] مراد هود ﷺ يا صالح ﷺ دې دغې پيغمبرورته ووئيل ﴿اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ﴾ چه تاسو خلق دالله تعالی عبادت كوئ ﴿مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ﴾ دهغه نه سوا ستاسو بل څوك معبود] حقيقی [ نشته ﴿اَفَلَا تَتَّقُوْنَ۝﴾ ايا تاسو ] دشرك نه [نه ويريږی او] دهغه پيغمبرپه دې خبره اوزيدو ﴿وَقَالَ الْمَلَاُ مِنْ قَوْمِهِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ [ دهغوی په قوم كښې چه كوم سرداران وو كومو چه] خدائ او رسول سره [ كفر كړې وو ﴿وَكَذَّبُوْا بِلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ﴾ او داخرت راتلل ئې دروغژن كړی وو ﴿وَاَتْرَفْنٰهُمْ فِی الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ او مونږ دوی لره په دنيوی ژوند كښې فراخی هم وركړې وه اووئيل

﴿مَا هٰذَآ اِلَّا بَشَرٌ مِّثۡلُكُمۡ﴾ چه بس دا خو ستاسو په شان يو ] معمولي [ سړی دی ] چنانچه [ دی ﴿يَاۡكُلُ مِمَّا تَاۡكُلُوۡنَ مِنۡهُ﴾ هغه څه خوري كوم چه تاسو خورئ ﴿وَيَشۡرَبُ مِمَّا تَشۡرَبُوۡنَ﴾ او هغه څه څښي كوم چه تاسو څښئ او] هركله چه دې ستاسو په شان بشر[سړی] دی نو ﴿وَلَئِنۡ اَطَعۡتُمۡ بَشَرًا مِّثۡلَكُمۡ﴾ [ كه تاسو دخپل ځان په شان ديو] معمولي [سړی په خبره پسې لاړئ ﴿اِنَّكُمۡ اِذًا لَّخٰسِرُوۡنَ﴾ نو بيشكه تاسو به] دعقل [ په تاوان كښې شئ [يعنى دا لويه بې وقوفي ده ] ﴿اَيَعِدُكُمۡ اَنَّكُمۡ اِذَا مِتُّمۡ وَكُنۡتُمۡ تُرَابًا وَّعِظَامًا﴾ آيا دا سړی تاسو ته د اوائى چې كله تاسو مړهٔ شئ او ] دمرګ نه پس [ خاورې او هډوكى شئ ] مطلب داچه داد غوښې اجزاء خاورئ شى نو هډوكى بې غوښې پاتې شى بيا په څو ورځو كښې دغه هم خاورې شى نو داسړی وائى چه كله دې حالت ته ورسيږئ [ نو] بيا به دوباره ژوندى شئ او دزمكې نه ﴿اَنَّكُمۡ مُّخۡرَجُوۡنَ﴾ به [راوويستلې شئ ] نوايا داسې سړی هم چرې داطاعت او تابعدارئ قابل كيدې شى او ﴿هَيۡهَاتَ هَيۡهَاتَ لِمَا تُوۡعَدُوۡنَ﴾ [ ډيره لرې او ډيره لرې ده كومه خبره چه تاسوته كولې شى ﴿اِنۡ هِىَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنۡيَا﴾ بس ژوند خو زمونږ ددنيا دا ژوند دی ﴿نَمُوۡتُ وَنَحۡيَا﴾ چه په مونږ كښې څوك مري او څوك پيدا كيږي ﴿وَمَا نَحۡنُ بِمَبۡعُوۡثِيۡنَ﴾ اومونږ دوباره ژوندى كيدې نه شو ﴿اِنۡ هُوَ اِلَّا رَجُلُ اِفۡتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ بس دا يوداسې سړی دی كوم چه په الله تعالى باند دروغ جوړوی ] چه زهٔ رسول راليږلې يم او څوك بل معبود نشته او قيامت به راځى ﴿وَمَا نَحۡنُ لَهٗ بِمُؤۡمِنِيۡنَ﴾ [ او مونږ خو هركز دې ربنتونې نه شو ګنړلې ﴿قَالَ رَبِّ انۡصُرۡنِىۡ بِمَا كَذَّبُوۡنِ﴾ پيغمبر دعا وكړه چه اے زما ربه زما بدله واخله په دې وجه چه دوی زهٔ دروغژن كړم ﴿قَالَ عَمَّا قَلِيۡلٍ لَّيُصۡبِحُنَّ نٰدِمِيۡنَ﴾ ارشاد وشو چه داخلق به ډير زر پښمانه شى ﴿فَاَخَذَتۡهُمُ الصَّيۡحَةُ بِالۡحَقِّ﴾ چنانچه دوی لره يو سخت اواز ] ياسخت عذاب [د حقې وعدې موافق] چه [ ليصبحن ندمين ][1] [ ونيول ] چه په دې سره دوی ټول هلاك شول ﴿فَجَعَلۡنٰهُمۡ غُثَآءً﴾ [ بيا] دهلاكولو نه پس [مونږ دوی لره] د[خس وخاشاك ] په شان چخړوی [ كړل ﴿فَبُعۡدًا لِّلۡقَوۡمِ الظّٰلِمِيۡنَ﴾ پس دالله تعالى عذاب دې په كافرانو باندې]

## معارف او مسائل

د دې نه په وړاندې آيتونو كښې د هدايت په لړ كښې د حضرت نوح عليه السلام قيصه بيان كړې شوې ده اوس ورپسې د څنې نورو پيغمبرانو عليهم السلام او د هغوئ امتونو چې نوم ئې اګرچه ندې اخستې شوې ،خو د ښنو نښانو له مخې مفسرينو رحمهم الله فرمائيلې دې چه مراد ترې عاديان او ثموديان يا دواړه دی ، اجمالى حال ذكر كړې شوې دې .عاد قوم ته هود عليه السلام او ثمود قوم ته صالح عليه السلام د پيغمبر په حيثيت ليږلې شوې وو ،دلته د دوی هلاكيدل ،،صيحه،،[سخت آواز] سره بيان شوې دی چه په نورو آيتونو كښې په ،صيحه، سره هلاكيدل د ثموديانو بيان شوې دی ، په دې بنا څنې حضراتو رحمهم الله فرمائيلى دی چه په دې آيتونو كښې د ،،قرناً آخرين ،، نه مراد ثموديان دی ، مګر دا هم كيديشى چه د ،، صيحة ، ،لفظ نه مراد دلته كښې مطلق عذاب

[1] ترجمه:- او زر ده چې داخلق پښيمانه شي.

اخستې شوې وی نو بیا عادیانو سره هم دا لګیدې شی، والله اعلم،
﴿اِنْ هِیَ اِلَّا حَیَاتُنَا الدُّنْیَا نَمُوْتُ وَنَحْیَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِیْنَ﴾ [د دې دنیا د ژوند نه علاوه څه بل ژوند نشته نو مړ کیدل او ژوندی کیدل هم په دې دنیا کښې س دی، بیا دوباره ژوندی کیدل نشته] - هم دا وینا د عامو کافرانو ده چه د قیامت نه منکر دی، کوم چه په ژبې سره دا انکار کوی نو هغوئ خو د دیر یقیناً چه کافر دی، خو افسوس او فکر ځیز دا دې چه اوس خو د ډیرو مسلمانانو د قول او فعل نه په عملی ډول دغسې انکاربنکاره کیږی چه د آخرت او قیامت حساب کتاب ته نې هم فکر نهٔ ځی الله تعالی دې د ایمان خاوندانو ته د دې مصیبت نه خلاصې ورکړی.

| ثُمَّ | اَنْشَاْنَا | مِنْ بَعْدِهِمْ | قُرُوْنًا | اٰخَرِیْنَ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| بیا | پیدا کړل مونږه | روستو دهغوئ نه | قومونه | نور (۱) |
| ...... بیا مونږ دهغوئ نه پس نور قومونه پیدا کړل | | | | |

| مَا تَسْبِقُ | مِنْ اُمَّةٍ | اَجَلَهَا | وَمَا یَسْتَاْخِرُوْنَ | ثُمَّ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| نشی مخکښی کیدې | یو قوم | دنیټې خپلې نه | اونهٔ روستو کیدې شی | بیا |
| هیڅ یو امت نه خو د خپلې نیټې نه وړاندې کیدې شی | اونه روستو پاتې کیدې شی | بیا | | |

| اَرْسَلْنَا | رُسُلَنَا | تَتْرَا | کُلَّمَا | جَآءَ | اُمَّةً | رَّسُوْلُهَا |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| رالولیږل مونږه | رسولان خپل | پرلپسې | هر کله چې | راغې | یو امت ته | رسول دهغوئ |
| وریسې مونږ خپل پیغمبران پرله پسې راولیږل | څه وخت چې به یو امت ته خپل رسول | | | | | |

| کَذَّبُوْهُ | فَاَتْبَعْنَا | بَعْضَهُمْ | بَعْضًا |
| --- | --- | --- | --- |
| نو هغوئ دروغژن اوګڼړو هغه | پس راوستل مونږه | ځینې دهغوئ | په ځینې نورو پسې |
| ورغلو | اوهغوئ به دروغژن اوګڼړلو | نو مونږ به هم [پیغمبران] یو په بل پسې اولیږل | |

---

(۱) **د مختلفوامتونو ذکر:-** دَ دوی نه پس هم ډیر امتونه او مخلوق راغلوکوم چه مونږ پیداکړې وو دَ هغوی دَ پیداکولونه اول چه الله تعالی دَ هغوی اجل مقررکړې ووهغه الله تعالی پوره کړو نه وړاندیوالې اوشو اونه روستووالې. بیا مونږ یوبل پسې برابر رسولان راولیګل (الطبری:۳٤/۱۹) هریوامت ته پیغمبر راغلواوهغه خپل امت ته دَ رب پیغام اورسولوچه دَ یوالله تعالی عبادت کوئی دَ هغه نه بغیردَ بل چا عبادت مه کوئی بعضې په نیغه لارراغله او په بعضوباندې دَ کفر کلمه راست راغله (ثابته شوه) دَ ټولوامتونو اکثریت دَ انبیاء کرامو ﷺ منکر وولکه سورت یسٓ کښې چه فرمائی ﴿یٰحَسْرَةً عَلَی الْعِبَادِ مَا یَاْتِیْهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا کَانُوْا بِهٖ یَسْتَهْزِءُوْنَ﴾ (۳۶/یس:۳۰) افسوس دې په بنیادمانوباندې هغوی له چه کوم رسول راغلوهغه پسې ټوقې مسخرې اوکړې مونږ یوبل پسې ټول غرق اوفناکړل ﴿وَکَمْ اَهْلَکْنَا مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْۢ بَعْدِ نُوْحٍ وَکَفٰی بِرَبِّكَ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِیْرًا بَصِیْرًا﴾ (۱۷/الاسراء:۱۷) دَ نوح ﷺ نه پس هم مونږ ډیرکلی تباه کړل هغوی مونږ زړې قصې جوړې کړې. دَ هغوی قصې باقی پاتې شوې او هغوی تباه اوبربادشو ذره ذره کړې شودَ بې ایمانودَ پاره د رحمت نه لریوالې دې.

وَجَعَلْنٰهُمْ أَحَادِيثَ ۚ فَبُعْدًا لِّقَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿۴۴﴾

او جوړ کړل مونږه هغوئ | قیصې | پس لرې والې دې | دپاره دهغه قوم | چې ایمان نهٔ راوړي

اودهغې خلقو نه مو قصې جوړې کړې |نود هغه خلقو دپاره هلاکت دې چه ایمان نه راوړي

ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسٰى وَأَخَاهُ هٰرُونَ ۙ بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ

بیا | اولیږو مونږه | موسی عليه السلام | او رور دهغه | هارون عليه السلام | دنښو زمونږ سره | او ددلیل

بیا مونږ موسی عليه السلام اودهغه رور هارون عليه السلام راولیږل |دخپلو حکمونو اوښکاره

مُّبِينٍ ﴿۴۵﴾ إِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَاسْتَكْبَرُوا وَكَانُوا

ښکاره سره | فرعون ته | او دسلطنت واکدارانو دهغه ته | نو تکبر اوکړو هغوئ | او وؤ هغوئ

دلیلونو سره | فرعون ته اودهغه سردارا نو ته |خو هغوئ تکبر اوکړو | اوهغه

قَوْمًا عَالِينَ ﴿۴۶﴾ فَقَالُوا أَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ مِثْلِنَا

قوم | خان غټ ګنړونکی |نواووئیل هغوئ|آیا ایمان راوړومونږ په دوؤ سړو | چې زمونږ پشان دي

ډیر سرکشه خلق وو | نوهغوئ اووئیل چې آیا مونږ دې[هیله بیله] دخان غوندې په دوه کسانو

وَقَوْمُهُمَا لَنَا عٰبِدُونَ ﴿۴۷﴾ فَكَذَّبُوهُمَا فَكَانُوا

او حال دا چې قوم ددواړو | زمونږه | غلامان دي | نو دروغ اوګنړل هغوئ هغه دواړه | نو شو هغوئ

باندې ایمان راوړو | حال دادې چې ددوئ دقوم خلق زمونږ غلامان دی| نوهغوئ دواړه[پیغمبران]

مِنَ الْمُهْلَكِينَ ﴿۴۸﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوسَى الْكِتٰبَ لَعَلَّهُمْ

دهلاك كړې شوؤ نه| او بیشکه ورکړو مونږه | موسی عليه السلام | ته کتاب | دپاره ددې چې هغوئ

دروغژن کړل |نو هغوئ هلاک کړې شول |او مونږ موسی عليه السلام ته [تورات نومې] کتاب ورکړو

يَهْتَدُونَ ﴿۴۹﴾ وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهٗ اٰيَةً وَّاٰوَيْنٰهُمَا

نیغه لاربیا مومی | او جوړکړه مونږه | خوي دمریم | او مور دهغه | یوه نښه | او پناه ورکړه مونږه دواړو له

چې خلق ترې نه سمه لاربیا مومی|اومونږ د مریم ځوئي اودهغه مور یوه غټه اوځرګنده نخښهٔ اوګرځوله

إِلٰى رَبْوَةٍ ذَاتِ قَرَارٍ وَّمَعِينٍ ﴿۵۰﴾

یو لوړ ځائ ته | چې داطمینان ځائي وؤ | او دروانو اوبو ځائي وؤ |

اوهغوئ ته مو په یوه اوچته زمکه پناه ورکړې وه |چې داستوګنې قابله اوجاری اوبو والا وه|

**آسان ترجمه قرآن**

د دې نه پس مونږ نور نسلونه پیدا کړل. هیڅ امت نه د خپل مقرر وخت نه وړاندې تلې شي، نه دهغې نه پس ایساریدلې شي بیا مونږ پرله پسې خپل پیغمبران اولیږل.کله به هم چه یو قوم ته د هغوی پیغمبر راتلو نوهغوی به هغه دروغژن ګنړلو، پس مونږ هم د یو نه پس د بل (د هلاکولو) سلسله

اوترله، او دهغوی نه مو قصه جوړه کړه لعنت دې په هغه خلقو باندې چه ایمان نه راوړی! بیا مونږ موسٰی علیه السلام او دهغه ورور د خپلو نخښو او واضح ثبوت سره فرعون او د هغه سردارانو ته اولیږلو نو هغوی د تکبر مظاهره اوکړه، او هغوی ډیر د تکبر والا خلق وو. پس وې وئیل: آیا مونږ دځان په شان دوه سړو باندې ایمان راوړو حال دا چه د هغوی قوم زمونږ غلامی کوی؟ دغه شان هغوی د دواړو تکذیب اوکړو، او آخر هغوی هم د هغه خلقو سره ملاؤ شو کوم چه هلاک کړې شوې وو. او موسٰی علیه السلام ته مونږ کتاب ورکړو، چه د هغوی قوم ترې رهنمائی حاصله کړی. او د مریم ځوئې (عیسٰی علیه السلام) او دهغه مور مونږ یو نخښه جوړه کړې وه، او هغوی ته مو په داسې اوچت ځائې باندې پناه ورکړې وه کوم چه یو پُرسکون ځائې وو او چرته چه صفا اوبه بهیدلې.

## خلاصه تفسیر

﴿ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قُرُوْنًا اٰخَرِيْنَ﴾ [بیا ددې] عادیانو او ثمودیانو د هلاکیدو [نه پس مونږ نور امتونه پیداکړل] کوم چه درسولانو د دروغژن کولو په سبب دغه هم هلاك شول او ددوی دهلاکیدو چه کومه نیټه دالله تعالی په علم کښې مقرره وه ﴿مَا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّةٍ اَجَلَهَا﴾ [یو امت] هم په دې امتونو کښې [ دخپلې ] دې [معینې مودې نه] په هلاکیدو کښې [نه مخکښې والې کولې شو ﴿وَمَا يَسْتَاْخِرُوْنَ﴾ اونه ] ددغې مودې نه [دغه خلق وروستوکیدل شول ] بلکه په عین وخت باند هلاك كړې شول غرض دغه امتونه اول پیداکړې شوی وو [ بیا ] دوی به ته ﴿ثُمَّ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَا﴾ [ مونږ خپلو پیغمبرانو لره په یو بل پسې ] دهدایت دپاره [ ولیږل ] لکه څنګه چه دغه امتونه په یو بل پسې پیداشول مګر ددوی حالت داشو ﴿كُلَّمَا جَآءَ اُمَّةً رَّسُوْلُهَا﴾ [چه کله به یو امت ته ددغې امت ] خاص [ رسول ] دالله تعالی د احکامو سره [ راغې ﴿كَذَّبُوْهُ﴾ دوی هغه لره به دروغژن کړو ﴿فَاَتْبَعْنَا بَعْضَهُمْ بَعْضًا﴾ پس مونږه] هم په هلاکولوکښې [ دیونه پس دبل تار وترلو ﴿وَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ﴾ اومونږ دوی لره قصې جوړې کړې ] یعنې دوئ داسې نیست و ناوبود شول چه بغیر دقصونه ددوی څه نوم نښه پاتې نه شوه ﴿فَبُعْدًا لِّقَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ﴾ [پس دالله تعالی عذاب دې په هغو خلقو باندې کومو چه ] دانبیاؑ په پوهه کولو هم [ ایمان نه راوړو ﴿ثُمَّ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى وَاَخَاهُ هٰرُوْنَ ۙ بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ﴾ بیا مونږ موسیٰؑ [او ددهٔ ورور هارون ]ؑ [لره خپل احکام اوښکاره دلیلونه ] یعنی ښکاره معجزه چه دنبوت دلیل دې [ ورکړل ﴿اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ىِٕهٖ﴾ او فرعون او ددهٔ درباریانو ته ] هم پیغمبر جوړ کړو [ اومو لیږلو] اوبنی اسرائیلو ته ئې نبی جوړیدل هم معلوم دی ﴿فَاسْتَكْبَرُوْا﴾ [پس دغو خلقو] د دهٔ د تصدیق او اطاعت نه [ تکبر وکړو ﴿وَكَانُوْا قَوْمًا عَالِيْنَ﴾ او دغه خلق وو متکبره ] یعنی داول نه ددوی دماغ خراب وو [ چنانچه دوئ] ﴿فَقَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ مِثْلِنَا﴾ ته دیوبل سره [ووئیل چه ایا مونږ په داسې دوه سړو کوم چه زمونږ په شان بنیادم دی ] په دوی کښې دامتیاز څه خبره نشته [ایمان راوړو؟ ] او ددوی فرمانبردار جوړ شو؟ ﴿وَقَوْمُهُمَا لَنَا عٰبِدُوْنَ﴾ [حال دادې چه ددوی دقوم خلق] خو په خپله [ زمونږ دحکم لاند دی ] یعنی مونږ ته خو په خپله ددوئ په قوم باندریاست حاصل دې بیا ددې دواړو اقتدار او ریاست مونږ څنګه منلې شو؟ دغو خلقو دینی ریاست لره په دنیوی ریاست باندې قیاس کړو چه مونږ ته یو قسم حکمرانی ددنیا حکمرانی حاصل ده

نو د بل قسم هم مونږه مستحق یو او هر کله چه دوی ته دنیوی ریاست نه دې حاصل نو دینی ورته څنګه ملاویدې شی او فساد ددې قیاس ظاهر دې ﴿فَكَذَّبُوهُمَا﴾ [ غرض دوئ خلقو دې دواړو لره دروغژن کړل پس] ددې دروغژن کولو په وجه سره ﴿فَكَانُوا مِنَ الْمُهْلَكِينَ﴾ [ هلاك کړې شول او] ددوی دهلاکیدونه پس ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ﴾ [ مونږ موسی ] ﷺ [ ته کتاب] یعنی تورات [ ورکړوچه] ددې په ذریعه سره ﴿لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ﴾ [ دغه خلق] یعنی دموسی ﷺ قوم [بني اسرائیل [هدایت بیا مومی ﴿وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ﴾ او مونږه] په خپل توحید اود قدرت د دلیل دپاره او دارنګ دبنی اسرائیلو دهدایت دپاره [ دمریم ځوئ] عیسی ﷺ [ لره او ﴿وَأُمَّهُ﴾ ددهٔ مور ] حضرت بی بی مریمې [ لره ﴿آيَةً﴾ لوئ نښې ] دخپل قدرت او دهغه دصدق [ جوړې کړې ] چه بې پلاره پیداکیدل د دواړو دپاره عظیمې نښې دی [او] چونکه دې نبی جوړول منظور وو او یوظالم بادشاه په ورکوتوالی کښې ددهٔ په قتل پسې شوې وو په دې وجه [ مونږه ] ددهٔ نه بچ کړو ﴿وَآوَيْنَاهُمَا إِلَى رَبْوَةٍ﴾ [ دې دواړو لره مویو داسې اوچت ځائ ته بوتلل او پناه موورکړه ﴿ذَاتِ قَرَارٍ وَمَعِينٍ﴾ کوم چه] په وجه دغلو اومیوو پیداکیدو [ دپاتې کیدو قابل او] په وجه دجاری کیدو د نهر [ خړوبه ځائ وو] تردې چه په امن وامان سره ځوان شو او نبوت ورکړې شو نو په توحید او په دعوی درسالت کښې ددهٔ تصدیق ضروری وو مګر څنو ونه کړو.

يٰٓاَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوْا

| اے رسولانو | خورئ

| ائي زما پیغمبرانو!

مِنَ الطَّيِّبٰتِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ۭ اِنِّىْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ

دپاکو څیزونونه | او عمل کوئ نیک | بیشکه زهٔ | په هغې څه | چی کوئ ئې تاسو | ښه عالم یم

تاسو ټول پاکیزه څیزونه خورئی | او تل دنیکئ کارونه کوئی | زه ستاسو په کارونو ښه خبر یم

وَاِنَّ هٰذِهٖٓ اُمَّتُكُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّاَنَا رَبُّكُمْ فَاتَّقُوْنِ

او بیشکه | چی دا امت ستاسو | امت یو دې | او زهٔ رب ستاسو یم | نو اویریږئ زما نه |

اوبیشکه ستاسو دا امت یوامت دې | او زهٔ ستاسو رب یم | نو تاسو زما [دمخالفت] نه اوویریږئی

فَتَقَطَّعُوْٓا اَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ زُبُرًا ۭ كُلُّ حِزْبٍۢ بِمَا

پس پریکړو خلقو | دین خپل | په منځ خپل کښی | ټوټې ټوټې | هره ډله | په هغې سره |

بیا خلقو دخپل دین په معامله کښې اختلاف اوکړو | هره ډله هم په

لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ فَذَرْهُمْ فِيْ غَمْرَتِهِمْ حَتّٰى حِيْنٍ

چی دهغوئ سره دې | خوشحاله دی | نو پریږده دوئ | په غفلت ددوئ کښې | دیو خاص وخته پورې

خپله خبره باندې خوشحالی کونکې ده | نو ته دوئ تریو وخته پورې په خپل غفلت کښې پریږده

| بِهٖ | نُمِدُّهُمْ | اَنَّمَا | اَيَحْسَبُوْنَ |
|---|---|---|---|
| په هغې سره | چي مونږه امداد كوو ددوئ | چي بيشكه هغه څيز | آيا دوئ دا خيال كوي |

آيادوئ د اگمان كوي چي مونږ دوئ ته كوم خامن او مالونه وركړي دي

| فِي الْخَيْرٰتِ | لَهُمْ | نُسَارِعُ | وَّبَنِيْنَ | مِنْ مَّالٍ |
|---|---|---|---|---|
| په خير رسولو كښې | دپاره ددوئ | دا گني مونږ كوشش كوو | او دخامنونه | دمال نه |

نو دا ورته مونږ په فائده وركولو كښې تلوار كوو؟|

بَلْ لَّا يَشْعُرُوْنَ

بلكه نهٔ پوهيږي دوئ |

داخبره نه ده بلكه دوئ نه پوهيږي |

## آسان ترجمه قرآن

اې پيغمبرانو! د پاكو څيزونو نه (چه څه غواړئ) خورئ! او نيک عمل كوئ. يقين اوساتئ چه كوم عملونه تاسو كوئ، دهغې ما ته پوره پوره علم دې. اوحقيقت دا دې چه هم دا ستاسو دين دې، (د ټولو دپاره) يو دين، او زهٔ ستاسو رب يم، په دې وجه په زړه كښې (صرف) زما ويره ساتئ. بيا داسې اوشوه چه خلقو په خپل دين كښې اختلاف پيدا كولو سره ډلې جوړې كړې. هرې ډلې چه په خپل خيال باندې كومه لاره اختيار كړې ده هم په هغې خوشحاله دی. (اې پيغمبره!) هغوی تر يو خاص وخته پورې په خپل جهالت كښې ښخ پرېږده آيا دا خلق په دې خيال كښې دی چه مونږ دوی ته كوم مال او دولت وركوو، نو آيا هغوی ته د خير په رسولو كښې تندی كوو؟ نه! بلكه هغوی په حقيقت پوهيږی نه.

## خلاصه تفسير

مونږ چه څنگه تاسوته دخپلو نعمتونو داستعمال اجازت دركړې دې او دعبادت حكم مو دركړې دې دغه شان ټولو پيغمبرانو ته او ددوی په واسطه سره ددوئ امتونو ته مو هم حكم وركړې وو چه ﴿يٰاَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبٰتِ﴾ [ اې پيغمبرانو تاسو ] او ستاسو امتونه [ پاك څيزونوخورئ ] چه دخداې نعمتونه دی [ او] دخوراك شكر اداكوئ چه ﴿وَاعْمَلُوْا صَالِحًا﴾ [نيك كارونه كوئ ] يعنى عبادت او ﴿اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ﴾ [ زهٔ ستاسو ټول كړى كارونه ښه پيژنم ] نو په عبادت اونيكوكارونو به ددی او جزا ثوابونه د ركړم [ او] مونږ دوی ته دا هم ووئيل چه كومه طريقه تاسو ته تر اوسه ښودلې شوې ده ﴿وَاِنَّ هٰذِهٖٓ اُمَّتُكُمْ﴾ [ داده ستاسو طريقه ] په كومه چه تاسوله تلل او پاتې كيدل واجب دی ﴿اُمَّةً وَّاحِدَةً﴾ [ چه هغه يوه طريقه ده ] دټولو بيغمبرانو او ددوی دامتونو په يو شريعت كښې دا طريقه نه ده بدله شوې [ او] حاصل ددغې طريقې دادې چه ﴿وَّاَنَا رَبُّكُمْ فَاتَّقُوْنِ﴾ [ زهٔ ستاسو رب يم تاسوزمانه ويره كوئ ] يعنى زما داحكامو مخالفت مه كوئ ځكه چه درب والی په حيثيت سره څه ستاسو خالق او مالك هم يم او دمنعم والی په حيثت سره تاسو ته بې شميره نعمتونه هم دركوم ددې ټولو څيزونو تقاضا اطاعت او فرمانبر داری ده [ پس] ددې نتيجه خو دا پكاروه چه ټول په يوه طريقه چه دا ذكر شوه پاتې وې مگر

داسې ونه شوه بلکه ﴿فَتَقَطَّعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ زُبُرًا﴾ [ دغو خلقو خپل دين او خپله طريقه جدا جدا کړه او اختلاف ئې پيدا کړو ﴿كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ﴾ دهرې ډلې سره چه کوم دين ] يعنې خپله جوړه شوې طريقه [ ده چه هغه پرې خوشحاله اومين دې] او دباطوالی باوجود ئې حق گڼړی ﴿فَذَرْهُمْ فِى غَمْرَتِهِمْ حَتَّىٰ حِينٍ﴾ [ نو ته دوی لره ددوی په جهالت کښې تر يو خاص وخته پورې پرېږده ] يعنې ددوی په جهالت ته غم مه کوه کله چه په مقرر وخت ددوی دمرګ وخت راشی نو ټول حقيقت به ښکاره شي او اوس چه کوم په فوری طورپه دوی عذاب نه راځی نو [ايا] په دې سره ﴿أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم بِهِۦ مِن مَّالٍ وَبَنِينَ﴾ [ داخلق دا ګمان کوی چه مونږ دوی ته کوم مال او اولاد ورکوو ﴿نُسَارِعُ لَهُمْ فِى ٱلْخَيْرَٰتِ﴾ نو دامونږ دوی ته زر زر فائدې رسوو ] داخبره هر ګز نه ده ﴿بَل لَّا يَشْعُرُونَ﴾ [بلکه داخلق ] ددې مهلت په وجه سره [ نه پوهيږی ] يعنی دا مهلت خو دوی ته په طور داستدراج ورکولې شی کوم چه به اخرددوی دپاره نور زيات دعذاب سبب جوړيږی ځکه چه زمونږ په مهلت ورکولو سره به دوی نور مغروره شي په سرکشئ او ګناهونو کښې به نور زيات شي او عذاب به ئې زيات شي

## معارف او مسائل

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلرُّسُلُ كُلُوا۟ مِنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَٱعْمَلُوا۟ صَٰلِحًا﴾ د طيبات ،، لفظ لغوی معنی پاکيزه او ښکلې څيزونه دی ،چنانچه په اسلامی شريعت کښې حرام کړی شوی څيزونه نۀ خو پاکيزه دی او نۀ ئې هوښيار او عقلمند خلق خوښوی ځکه د ،، طيبات ،، نه مراد په ظاهری او باطنی هر اعتبار سره پاکيزه او عمده څيزونه دی ،په دې آيت کښې دا ښودلې شويدی چه ټولو پيغمبرانو ﷺ ته په خپل خپل وخت کښې دوه هدايتونه ورکړې شويدی ،اول دا چه حلال او پاکيزه څيزونه خورئ ، دويم دا چه نيک او صالح عمل کوئ ،هر کله چه الله تعالی پيغمبران ﷺ معصوم او د ګناه نه محفوظ ګرځولې دی او هغوئ ته داحکم اوشو نو امتيان خو ئې د دې زيات جوګه شو چه ورته دا هدايتونه وکړې شی بلکه د دې اصل مقصود امتيانو ته هدايتونه ورکول وی چه په دې حکمونو باندې عمل اوکړی –

علماء ﷺ فرمائی چه د دې دواړو هدايتونو په يو ځائ راوړل اشاره دې ته هم ده چه د حلال خوراک او څکاک سره نيک عمل زبردست جوړ او پيوند لری ،يعنی په حلال خوراک څکاک کولوسره د نيکو عملونو توفيق پخپله مونده شی او د حرام خوراک څکاک اثر دا وی چه د نيک کار په ارادې کولو سره هم د هغې په کولو کښې خنډونه را ولاړيږی ،په حديث شريف کښې راغلې دی چه څينې خلق اوږده اوږده سفرونه کوی ګرد او غبار نه ډک وی ،بيا الله تعالی ته دعا د پاره لاسونه پورته کوی او يا رب يا رب نعرې وهی خو چه خوراک څکاک ئې حرام وی ،جامه ئې حرامه وی ،او غذا ئې هم حرامه وی نو څنګه به ئې دعا قبوله شی ؟ [قرطبی ][۱]

دې نه معلومه شوه چه د هغه چا عبادت او دعا د قبليدو جوګه وی چه خوراک څکاک ئې حلال وی ، ورنه د قبليدو جوګه نه وی .

[۱]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۲ص:۱۲۷] و صحيح مسلم كتاب الزكوة ، باب بيان اسم الصدقة يقع على كل نوع من المعروف [ج:۱ص:۳۲۶]

﴿وَإِنَّ هَٰذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً﴾ ﴿أُمَّةً﴾، مشهوره معنى يوه ډله او د يو خاص پيغمبر قوم ،ده ،کله د طريقې او د دين معنى هم ورکوى لکه قرآن کريم په يو ځائ کښې فرمائى ﴿وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ﴾(١) دلته د امت نه مراد دين او طريقه ده او هم دغه معنى دلته مراد ده.

﴿فَتَقَطَّعُوا أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ زُبُرًا﴾ د ﴿ زبرا ﴾ د ﴿ زبور ﴾ جمع ده ، معنى ئې کتاب دى ،په دې لحاظ د آيت مراد دا دې چه الله تعالى خو ټول پيغمبران ﷺ او د هغوى امتونو ته د اصولو او عقيدو په مسئلو کښې هم په يو دين او يوه طريقه باندې د چليدو هدايت کړې وو خو امتونو او نهٔ منل او په خپل مينځ کښې مختلفې ټکرې [ډلې ] شوې هرې يوې ځان ځان له بيله طريقه او بيل کتاب جوړ کړو او ،،زبر،، کله د ،،زبرة ،،جمع هم راځى چه معنى ئې ټکړه او فرقه ده ، دلته دا معنى زياته واضحه ده .د آيت مراد دا دې چه دا خلق د اصولو او عقيدو په لحاظ هم مختلفې فرقې او ډلې جوړ شو ، خو دې کښې د مجتهدينو امامانو ﷺ فروعى اختلاف ځکه داخل نهٔ دى چه په دغې اختلاف سره نهٔ خو دين او ملت بيل جوړيږى او نهٔ په دغې بنياد باندې اختلاف لرونکى د يو بل نه بيلې ډلې بللې شى چنانچه اجتهادى او فروعى اختلاف ته د فرقه واريت رنګ ورکول خالص جهالت دې چه د هيڅ يو مجتهد په نزد نشى روا کيدې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | إِنَّ الَّذِينَ | هُم | مِّنْ خَشْيَةِ | رَبِّهِم |
| | بيشکه هغه کسان | چى هغوئ | ديرې | درب خپل نه |
| ابيشکه کوم کسان چې دخپل رب نه ديرې د وجې | | | | |
| مُّشْفِقُونَ | وَالَّذِينَ | هُم بِآيَاتِ | رَبِّهِمْ | يُؤْمِنُونَ |
| يريدونکى دى | او هغه کسان | چى هغوئ په ايتونو | درب خپل باندې | ايمان راوړى |
| يريږى ...........او کوم کسان چې دخپل رب په نښو باندې يقين کوى | | | | |
| وَالَّذِينَ | هُم | بِرَبِّهِمْ | لَا يُشْرِكُونَ | وَالَّذِينَ | يُؤْتُونَ |
| او هغه کسان | چى هغوئ | درب خپل سره | [هيڅوک] نه شريکوى | اوهغه کسان | چى ورکوى هغوئ |
| اوکوم کسان چې د خپل رب سره بل هيڅوک نه شريکوى ا اوکوم کسان چې ورکړه کوى | | | | | |
| مَا | آتَوا | وَّقُلُوبُهُمْ | وَجِلَةٌ | أَنَّهُمْ | إِلَىٰ رَبِّهِمْ |
| هغه څه | چى ورکوى | او زړونه دهغوئ | يريدونکى وى | چى بيشکه هغوئ | رب خپل ته |
| خومره چې ورکوى اوزړونه ئې د دې نه ويريږى چې دوئ به يوه ورځ خپل رب ته واپس | | | | | |
| رَاجِعُونَ | أُولَٰئِكَ | يُسَارِعُونَ | فِي الْخَيْرَاتِ | وَهُمْ | لَهَا |
| واپس تلونکى دى | دا کسان چى دى | دوئ منډې وهى | په نيکو کښى | او دوئ | هغې ته |
| کيږى ا همدغه خلق دې چې د نيکو په کولو کښې تلوار کوى اا وهم دا خلق دى چې | | | | | |

(١) ترجمه:- مونږ خپل پلار نکه په يو طريقه باندې اوموندل.

| وُسْعَهَا | اِلَّا | نَفْسًا | وَلَا نُكَلِّفُ | سٰبِقُوْنَ﴿۶۱﴾ |
|---|---|---|---|---|
| مطابق دطاقت دهغه | مگر | یو نفس ته | اونهٔ ورکوو تکلیف مونږه | خان مخکښې رسونکي دي |
| په دې کښې وړاندې کیدونکي دي \|\| او مونږ هیڅوا ته د وس نه زیات تکلیف نه ورکوو | | | | |

| لَا يُظْلَمُوْنَ﴿۶۲﴾ | وَهُمْ | بِالْحَقِّ | يَّنْطِقُ | كِتٰبٌ | وَلَدَيْنَا |
|---|---|---|---|---|---|
| هیڅ ظلم به نهٔ کیږي په دوئ باندې | او داخلق چې دي | حق | چې بیانوئ | یو کتاب دې | او زمونږ سره |
| او مونږ سره یو کتاب دې چې همیشه حق خبره کوي\| او په خلقو بهٔ دیوې ذرې هومره ظلم هم نه کیږي | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

حقیقت دا دې چه کوم خلق د خپل رب د رعب نه ویریږي. او کوم خلق چه د خپل رب په آیتونو باندې ایمان راوړي، او څوک چه د خپل رب سره هیڅوک شریک نه مني، او هغوی چه کوم عمل هم کوي، د هغې د کولو په وخت د هغوی زړونه په ویره کښې وي چه هغوی به خپل رب ته واپس کیږي هغه دي چه په نیکو حاصلولو کښې تیزي کوي، او هم هغوی دي چه د هغې طرف ته په تیزئ سره وړاندې کیږي. او مونږ چاته هم د هغه د طاقت نه زیات د یو کار ذمه داري نه ورکوو، او مونږ سره یو کتاب دې چه (د ټولو حال په) صحیح صحیح بیان کړي، او په هغوی باندې به هیڅ ظلم نه کیږي.

## خلاصه تفسیر

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ خَشْيَةِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ﴾ [په دې کښې هیڅ شك نشته چه کوم خلق دخپل رب دهیبت نه په ویره وسیږي ﴿وَالَّذِيْنَ هُمْ بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُوْنَ﴾ او کوم خلق چه دخپل رب په ایتونو ایمان لري ﴿وَالَّذِيْنَ هُمْ بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُوْنَ﴾ اوکوم خلق چه دخپل رب سره شرك نه کوي ﴿وَالَّذِيْنَ يُؤْتُوْنَ﴾ او کوم خلق چه ] دالله تعالی په لاره کښې [مال ورکوی ﴿مَآ اٰتَوْا﴾څه چه ورکوی او] سره ددې چه دالله په لاره کښې ورکوی او خرچ کوی﴿وَّقُلُوْبُهُمْ وَجِلَةٌ﴾ [ددوئ زړونه ددې نه په ویره کښې وی ﴿اَنَّهُمْ اِلٰى رَبِّهِمْ رٰجِعُوْنَ﴾چه دوی خپل رب ته تلونکی دی ] چه ګورئ هلته به ددوئ ددې صدقو څه فائده حاصله شي کنه؟ هسې نه چه دا صدقې ورکول دحکم موافق نه وی مثلا مال حلال نه وی یانیت دالله تعالی دپاره خالص نه وی او په نیت کښې دکامل اخلاص نشتوالې یا په مال کښې حراموالې مونږ ته معلوم نه وی او التهٔ موږ خذه راباند رانه شی نو په کومو خلقو کښې چه دا صفتونه وی ﴿اُولٰٓئِكَ يُسٰرِعُوْنَ فِى الْخَيْرٰتِ﴾[داخلق خپلې فائدې زر زر حاصلوی﴿وَهُمْ لَهَا سٰبِقُوْنَ﴾ او هغه دهغوی طرف ته منډې وهی او] دا ذکر شوی عملونه څه سخت هم نه دی چه کول ئې مشکل وی ځکه چه ﴿وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا﴾[ مونږ په چا دهغه دطاقت نه زیات کار بوج نه اچوؤ] په دې وجه دا ټول کارونه اسان دی او دې سره ددوی ښه انجام او ثمره یقینی ده ځکه چه ﴿وَلَدَيْنَا كِتٰبٌ يَّنْطِقُ بِالْحَقِّ﴾[ مونږ سره یو کتاب دې ] عملنامه محفوظ ده [ کوم چه ټیك ټیك ] ټول حال [ به اوښائی ﴿وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ﴾ او په خلقو به یوه ذره ظلم نه وی]

## معارف او مسائل

﴿وَالَّذِيْنَ يُؤْتُوْنَ مَآ اٰتَوْا وَّقُلُوْبُهُمْ وَجِلَةٌ﴾ د ﴿يُؤْتُوْنَ﴾ مصدر ، ، ايتاء .دې چه معنی ئې ورکول او لګول دی څکه نې تفسير په صدقات [خيراتونه ] سره شويدې . د حضرت عائشې رضي الله عنها نه د دې يو قرات ، ، ﴿يَاْتُوْنَ مَآ اَتَوْا﴾ هم منقول دې معنی ئې دا چه ..عمل کوئ څه چه کوئ. په دې کښې خيراتونه ،مونځونه ،روژې ،او ټول نيک کارونه شامليږی ،او د مشهور قرات په بنا اګر چه دلته ذکر د صدقاتو [خيراتونو] به وی خو مراد ترې په هر حال نيک عملونه دی لکه د يو حديث شريف نه چه ثابت دی ،چنانچه حضرت عائشې رضي الله عنها فرمائيلي دی چه ، ما ،د دې آيت مطلب د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوپښتلو چه د دې کار په کولو سره ويريدونکی خلق هغه دی چه شراب څکی يا غلا کوی ؟رسول الله صلى الله عليه وسلم او فرمائيل ، ، اې د صديق رضي الله عنه لور بی بی .داسې نه ده بلکه دا هغه خلق دی چه روژې نيسی ،مونځونه کوی او صدقې ورکوی او سره د هغې د دې نه ويريږی چه کيدې شی چې زمونږ دا عملونه د الله تعالی په نزد [ زمونږ د څه کوتاهئ په وجه ] قبول شوې نه وی ، هم داسې خلق په نيکو کارونو کښې تادی او وړاندې والې کوی [احمد ،ترمذی،ابن ماجه [په حواله د مظهری ]([1])

او حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائيلی دی چه مونږه داسې خلق ليدلی دی چه د نيک عمل کولو باوجود به هم دومره ويريدل چه تاسو په خرابو عملونو کولو سره هم نهٔ ويريږئ [قرطبی ]([2])

﴿اُولٰٓئِكَ يُسٰرِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ وَهُمْ لَهَا سٰبِقُوْنَ﴾ د دې مطلب دا دې چه سنګه د دنيا خلق په فائدو حاصلولو پسې منډې وهی او د يو بل نه د وړاندې کيدو کوشش کوی ،دا حضرات د دين د فائدو حاصلولو په غرض دغسې کوی څکه خو د دين په کارونو کښې د نورو نه وړاندې وی

| بَلْ قُلُوْبُهُمْ | فِيْ غَمْرَةٍ | مِّنْ هٰذَا | وَلَهُمْ | اَعْمَالٌ |
|---|---|---|---|---|
| بلکه زړونه ددوئ | په غفلت کښې دی | ددې [کتاب عملنامې ] نه | او دوئ لره | عملونه دی |
| بلکه ددې کافرانو زړونه د دين نه غافل دی |............او ددې نه علاوه څه | | | |

| مِّنْ دُوْنِ | ذٰلِكَ | هُمْ | لَهَا | عٰمِلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| [چی هغه هم] مختلف دی | ددغه طريقې نه | چی دوئ | هغه عملونو لره | کونکی دی |
| نور [خراب] کارونه هم دی چې داخلق ئې کوی [ترديې چې هرکله | | | | |

| حَتّٰى | اِذَآ | اَخَذْنَا | مُتْرَفِيْهِمْ | بِالْعَذَابِ | اِذَا |
|---|---|---|---|---|---|
| ترهغې پورې | کله چی | راونيول مونږه | مالداره عياشان خلق ددوئ | په عذاب سره | نو بيا به |
| مونږ ددوئ مالداره خلق په عذاب کښې راونيسو | نو دوئ دغه | | | | |

| هُمْ | يَجْـَٔرُوْنَ | لَا تَجْـَٔرُوا | الْيَوْمَ | اِنَّكُمْ | مِّنَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| هغوئ | رمباړې وهلی | شور زوږ مهٔ کوئ | نن ورځ | بيشکه چی تاسو ته | زمونږ دطرفنه |
| وخت چغې کړی | [ورته به اووئيلې شو] ............چې نن چغې مه وهئ | ولې چې زمونږ | | | |

[1]) جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب سورة المؤمنون [ج:۲ ص:۱۵۱] و مسند احمد، حديث السيدة عائشة رضي الله عنها رقم الحديث:[۲٦٤٥٣]

[2]) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۱۳۲]

لَا تُنْصَرُوْنَ ﴿۶۵﴾ قَدْ كَانَتْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ

هیڅ امداد نهٔ ملاميږی|په تحقيق سره وۀ | آيتونه زما | چې لوستلې کيدل به | په تاسو باندې

دطرفه به ستاسو مدد نشي کولې |زما آيتونه تاسو ته لوستلې شول

فَكُنْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ تَنْكِصُوْنَ ﴿۶۶﴾ مُسْتَكْبِرِيْنَ بِهٖ

نو وئ تاسو|په پوندو خپلو باند | چې واپس به تښتيدئ | تکبر کونکی به وئ | په هغه پورې

نو تاسو به ترې نه په شا روان وئ | تکبر به موکولو

سٰمِرًا تَهْجُرُوْنَ ﴿۶۷﴾ اَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ

دشپې قيصه کونکی وئ |اوبکواس به موکولو|آيا غوروفکراونهٔ کړودې خلقو| په دې کلام باند

قيصې به مو ترې جوړولې بيهوده | آيا دوئ په دې کلام کښې سوچ فکر نه کوی

اَمْ جَآءَهُمْ مَّا لَمْ يَاْتِ اٰبَآءَهُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۶۸﴾ اَمْ لَمْ

يا راغلې دې دوئ ته | هغه څيز | چې نهٔ وۀ راغلې | پلرونو ددوئ | اولنو ته | يا اونهٔ

يا دوئ ته څه داسې علم راغلې دې |چې ددوئ وړاندينو مشرانوته نه وو ورغلې | آيا

يَعْرِفُوْا رَسُوْلَهُمْ فَهُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿۶۹﴾ اَمْ يَقُوْلُوْنَ

پيژندو دوئ| رسول خپل | نوګنی دوئ | دهغه نه | دناآشنا والی په وجه ترېږی | يا وائی دوئ

دوئ خپل پيغمبر اونه پيژندو| او ددې په وجه دوئ د هغه منکران شول| اوکه دوئ دا وائی

بِهٖ جِنَّةٌ ۭ بَلْ جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ وَاَكْثَرُهُمْ

چې په دهٔ باندې اليونتوب دې|[نه ده داسې ] بلکه | هغه دوئ ته حق راوړې دې | او زيات خلق ددوئ

چې دې سودائی دې |نه ، بلکه هغه خو ورته ريښتونې خبره راوړې ده |اوپه دوئ په زياتو

لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ ﴿۷۰﴾ وَلَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ اَهْوَآءَهُمْ لَفَسَدَتِ

حق لره | ناخوښونکی دی |او که پيروی کولې | حق |دخواهشاتو ددوئ|نو خامخا به خراب شوی وۀ

باندې ريښتيا بد لګی |اوکه چرې حق د دوی د خواهشاتوتابعداری کړې وې |نو آسمانونه

السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ ۭ بَلْ اَتَيْنٰهُمْ

آسمانونه | او زمکه | او هغه څوک | چې په دې کښی دی | بلکه | راوړې دې مونږ دوئ ته

اوزمکه اوڅه چې په دې کښې دی ټول تباه به شوی وو | ..........بلکه مونږ خو دوئ

بِذِكْرِهِمْ فَهُمْ عَنْ ذِكْرِهِمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۷۱﴾ اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ خَرْجًا

ذکر ددوئ | نو دوئ | د ذکر خپل نه | مخ اړونکی دی | يا تهٔ غواړې ددوئ نه | څه اجرت

ته سودمنده خبره ورکړه |اخو دوئ دسودمندې خبرې نه هم مخ اړوی| آيا ته ددوئ نه څه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَخَرَاجُ رَبِّكَ | خَيْرٌ | وَّهُوَ | خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۷۲﴾ | وَاِنَّكَ | لَتَدْعُوْهُمْ |
| نو ثواب درب ستا | بهتر دي | اوهغه | بهتره رزق ورکونکي دي | او بيشکه ته | خامخا رابلې دوئ |
| معاوضه غواړې \| خو ستا درب عوض دټولو نه بنه دي \| اوهغه دټولو نه بنهٔ رزق ورکونکي دي اوبيشکه ته | | | | | |
| اِلٰى صِرَاطٍ | مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۷۳﴾ | وَاِنَّ الَّذِيْنَ | لَا يُؤْمِنُوْنَ | بِالْاٰخِرَةِ | |
| لارې | نيغې ته | او بيشکه هغه کسان | چې ايمان نهٔ راوړی | په آخرت باندې | |
| دوئ سمې لارې ته رابلې \| اوبيشکه هغه خلق چې په آخرت باندې يقين نه ساتی | | | | | |
| عَنِ الصِّرَاطِ | لَنٰكِبُوْنَ ﴿۷۴﴾ | وَلَوْ رَحِمْنٰهُمْ | وَكَشَفْنَا | | |
| ددغې نيغې لارې نه | خامخا ډېره کونکې دی | او که رحم اوکړو په دوئ باندې | او لرې کړو مونږ | | |
| هغوئ دسمې لارې نه بې لارې شوی دی \| اوکه مونږ په دوئ باندې رحم اوکړو \| اوددوئ | | | | | |
| مَا | بِهِمْ | مِّنْ ضُرٍّ | لَّلَجُّوْا | فِيْ طُغْيَانِهِمْ | |
| هغه | چې په دوئ باندې | دتکليف نه | نو بنه به ټينګ شي دوئ | په سرکشي خپله کښې | |
| تکليفونه لرې کړو \| نوبيا به هم دوئ په خپله ګمراهئ کښې سرګردانه وی | | | | | |
| يَعْمَهُوْنَ ﴿۷۵﴾ | وَلَقَدْ اَخَذْنٰهُمْ | بِالْعَذَابِ | فَمَا اسْتَكَانُوْا | | |
| چې سرګردانه به وی | او په تحقيق سره اونيول مونږ دوئ | په عذاب سره | پس ټيټ نهٔ شو دوئ | | |
| اومونږدوئ په عذاب کښې رانيولی وو \| خوبيا هم نه خو رب ته تسليم شول | | | | | |
| لِرَبِّهِمْ | وَمَا يَتَضَرَّعُوْنَ ﴿۷۶﴾ | حَتّٰى | اِذَا | فَتَحْنَا | عَلَيْهِمْ |
| رب خپل ته | اونهٔ دوئ عاجزی اختياروی | تر هغې پورې | چې کله | پرانستله مونږه | په هغوئ باندې |
| او نه ئې ورته عاجزی اوکړه \| .........تر دې چې کله مونږ په دوئ باندې د سخت عذاب | | | | | |
| بَابًا | ذَا عَذَابٍ شَدِيْدٍ | اِذَا هُمْ | فِيْهِ | مُبْلِسُوْنَ ﴿۷۷﴾ ع | |
| دروازه | دسخت عذاب | بيادوئ | په هغې کښې | ناامیده وی دهر خیرنه | |
| دروازه پرانستله \| نوبيا دوئ په دې کښې ناامیده شول | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

خو د هغوی زړونه د دې خبرې نه په غفلت کښې پراتهٔ دی او د دې نه علاوه د هغوی نور اعمال هم دی کوم چه هغوی کوی تردې چه کله مونږ د هغوی دولت منو خلق په عذاب کښې اونيسو نو ناڅاپه په هغوی چغې وهی. اوس چغې مه وهئ! زمونږ د طرف نه به تاسو ته هيڅ مدد نه ملاويږی. زما آيتونه په تاسو ته لوستلې شو، نو تاسو به په خپلو پوندو واپس کيدلئ. دير په غرور سره د دې (قرآن) په باره کښې د شپې مجلسونو کښې بکواس خبرې کولې. آيا دې خلقو په دې کلام باندې غور نه دې کړې، او يا که هغوی ته داسې څيز راغلې دې کوم چه د هغوی پلارانو نيکونو ته نه وو راغلې؟ يا دوی دا خپل پيغمبر

(د مخکښو نه) نه پیژندلو، په دې وجه ترې نه انکار کوي؟ یا د هغوی وینا ده چه دا (پیغمبر) لیونې شوې دې؟ نه! بلکه (اصل وجه دا ده چه) دې پیغمبر دوئ ته حق راوړې دې، او په دوئ کښې اکثر خلق حق نه خوښوي او که حق د دوئ د خواهشاتو تابع شوې وې نو آسمان او زمکه او په هغې کښې اوسیدونکي به ټول برباد شوي وي. نه، بلکه مونږ دوئ ته د دوئ د نصیحت سامان راوړې دې، او دوئ دې چه په خپله د خپل نصیحت نه مخ اړوي یا (ددوی د انکار وجه داده چه) ته ددوی نه څه معاوضه غواړې؟ نو (دا خبره هم غلطه ده، ځکه چه) ستا د پروردګار درکړې شوې معاوضه (ستا دپاره) ډیره بهتره ده. او هغه بهترین رزق ورکونکې دې. او حقیقت دادې چه ته خودوی نیغې لارې طرف ته رابلې او کوم خلق چه په آخرت باندې ایمان نه لري، هغوی د لارې نه بالکل اوړیدلی دی. او که مونږ په دوی باندې رحم اوکړو او ددوی تکلیف لرې کړو په کوم کښې چه دوی مبتلا دی بیا به هم دوی اوړی په خپله سر کشۍ باندې کلك (په ضد) وی. واقعه داسې ده چه مونږ دوی (یوځل) په عذاب کښې اونیول، نو هغه وخت هم دا خلق د خپل پروردګار په مخکښې ښکته نه شول او دوی خو دعاجزۍ طریقه کله هم نه اختیاروی. تر دې چه کله مونږ په دوی باندې د سخت عذاب والا دروازه پرانیزو نو دوی به یودم په هغې کښې ناامیده پاتې شي.

## خلاصه تفسیر

دا بره خو تاسو دمؤمنانو حال واوریدو مګر کفار داسې نه دی ﴿بَلْ﴾ [ بلکه ] ددوی نه برعکس ﴿قُلُوبُهُمْ فِي غَمْرَةٍ مِّنْ هَٰذَا﴾ ددغو کفارو زړونه ددې دین نه ] چه ذکرئ په [ بآيات ربهم ] کښې دې [ په جهالت ] او شك [کښې ] ډوب [ دی] چه حال ئې بره هم معلوم شو [ فذرهم في غمرتهم ] ﴿وَلَهُمْ أَعْمَالٌ مِّن دُونِ ذَٰلِكَ﴾ [او ددې ] انکار او جهالت [ نه علاوه ددې خلقو نور هم ] ډیرخبیث [ عملونه دی ﴿هُمْ لَهَا عَامِلُونَ﴾ کومو لره چه ] دوی پرله پسې [ کوی ] دا خلق دشرك او بدو عملونو سره برابر عادت شوی دی ﴿حَتَّىٰ إِذَا أَخَذْنَا مُتْرَفِيهِم بِالْعَذَابِ﴾ [ تر دې چه کله مونږ ددوی خوشحاله خلق] دکومو سره چه مال دولت نوکران هر څه دی د مرګ نه پس به ئې [ په عذاب کښې راګیرونیسو] نو غریبانان لا په کوم شمیر کښې دی چه دعذاب نه به څه بچاؤ کړې شی غرض دا چه کله په دې ټولو عذاب نازل شی ﴿إِذَا هُمْ يَجْأَرُونَ﴾ [ نو فورا به چغې کوکارې کړی ] او ټول انکار او تکبر دکوم چه اوس عادت دی ختم به شی دغه وخت به دوی ته وونیلې شی چه ﴿لَا تَجْأَرُوا الْيَوْمَ﴾ [اوس چغې مه وهئ ] اوس ئې هیڅ فائده نشته ځکه چه ﴿إِنَّكُم مِّنَّا لَا تُنصَرُونَ﴾ [ زمونږ دطرف نه ستاسو مطلق مدد نه شی کیدې ] ځکه چه دادارالجزاء دې دارالعمل نه دې په کوم کښې چه چغې وهل او عاجزی کول مفید وو چه دارالعمل وو په هغې کښې خو ستاسو دا حال وو چه ﴿قَدْ كَانَتْ آيَاتِي تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ [ زمونږ ایتونه به تاسوته ] درسول په ژبه [ لوستلې اوږولې شول ﴿فَكُنتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ تَنكِصُونَ﴾ نو تاسو به په شاتښتیدئ ﴿مُسْتَكْبِرِينَ بِهِ سَامِرًا﴾ تکبر کونکی د قرآن نه مشغله جوړونکی ] دقرآن په شان کښې ﴿تَهْجُرُونَ﴾ [ بې هوده بکواس کوونکی ] چه چابه درته سحر وئیلوچابه ورته شعر وئیلو او دمشغلې هم دا مطلب دې پس تاسو چه په دارالعمل کښې څه کړی دی دهغې نن په دارالاجزاء کښې مزه وڅکئ او دا خلق کوم چه دقرآن او صاحب قرآن تکذیب کوی نو ددې سبب څه دې ؟ أَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ ایا دې خلقو په دې کلام الهی [ کښې فکر ونه کړو] چه دده اعجاز ورته ظاهر شی او ایمان راوړی [یا] د

دروغژن کولو وجه داده چه ﴿أَمْ جَآءَهُم مَّا لَمْ يَأْتِ ءَابَآءَهُمُ ٱلْأَوَّلِينَ﴾ [ دوی ته څه داسې شی راغلی دې کوم چه ددوئ وړاندینو مشرانو ته نه وو راغلې ] مراد ددې نه د الله تعالی داحکام راتلل دی کومه چه څه نوې خبره نه ده دهمیشه نه دانبیاؑ په ذریعه ددوی امتونو ته دا احکام ورکولې کیږی لکه چه دا قول دالله تعالی دې [ماکنت بدعامن الرسل](۱) پس ددروغژن کولو داوجه هم باطله شوه او دا دوه وجهې خو دقرآن متعلق دی وړاند دصاحب قرآن متعلق فرمائی یعنی ﴿أَمْ لَمْ يَعْرِفُوا۟ رَسُولَهُمْ﴾ [ یا ] وجه ددروغژن کولو داده چه [داخلق دخپل رسول ددیانت،صدق او امانت دصفت [ نه خبر نه وو ﴿فَهُمْ لَهُۥ مُنكِرُونَ﴾ په دې وجه ددهٔ نه منکر دی ] یعنی داوجه هم باطله ده ځکه چه ددوی ﷺ په صدق او دیانت دټولو اتفاق وو ﴿أَمْ يَقُولُونَ بِهِۦ جِنَّةٌۢ﴾ [یا] دا وجه ده چه [داخلق ] نعوذبالله [ ستاپه نسبت دلیونتوب قائل دی ] پس ستاسو خو داعلی درجې عالم او صاحب الرایٔ کیدل ښکاره خبره ده پس په ظاهره کښې په دې کښې یوه وجه هم معقوله نه ده ﴿بَلْ﴾ [بلکه ] اصل وجه داده چه ﴿جَآءَهُم بِٱلْحَقِّ﴾ [ دې رسول دوی ته حقه خبره راوړې ده ﴿وَأَكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كَٰرِهُونَ﴾ او په دوی کښې اکثر د حق خبرې نه نفرت کوی. بس دا ټوله د تکذیب او عدم اتباع وجه ده او داخلق به دحق دین تابعداری څه وکړی دوی خو الټه دا غواړی چه دغه حق دین ددوی دخیالاتو تابع کړې شی او کوم مضامین چه په قرآن کښې ددوی نه خلاف دی هغه خارج کړې شی یا په کښې بدلون اوکړې شی لکه دالله تعالی دا قول چه په سوره یونس کښې دې [ قال الذین لایرجون ائت بقران غیرهذااوبدله ](۲) [او] به فرض محال ﴿وَلَوِ ٱتَّبَعَ ٱلْحَقُّ أَهْوَآءَهُمْ﴾ [ که چرې ] داسې کار واقع کیدې او[ دین حق ددوی دخیالاتو تابع ] او موافق [ کیدې نو ] په ټول عالم کښې به کفر اوشرك خور شوې وو او اثر به یٔ دا شوې وو چه دحق تعالی غضب به ټول دنیا ته متوجه شوې وو او اثر به یٔ دا شوې وو او مقتضاء به یٔ داوه چه ﴿لَفَسَدَتِ ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلْأَرْضُ وَمَن فِيهِنَّ﴾ [ ټول اسمانونه او زمکه او څه چه په دوی کښې ] اباد [ دی ټول به تباه شوی وو ] لکه چه په قیامت کښې به په ټولو انسانانو کښې دګمراهئ عام کیدو په سبب دالله تعالی غضب هم په ټولو عام وی او دالله تعالی دعام غضې په وجه به هلاکت هم عام وی اول خو دیو حق کار مقتضاداده چه هغه قبول کړې شی اګر چه نافع هم نه وی او دهغې نه قبلول په خپله عیب دې مګر په دې خلقو کښې صرف دا یو عیب نه دې چه حق بد ګڼړی [ بلکه ] ددې نه زیات دویم عیب په کښې هم دې چه دحق تابعداری کومه چه ددوی دنفع سامان دې دهغې نه لرې تښتی بس ﴿بَلْ أَتَيْنَٰهُم بِذِكْرِهِمْ﴾[مونږ دوی ته ددوی دنصیحت] او نفع [خبره ولیږله ﴿فَهُمْ عَن ذِكْرِهِم مُّعْرِضُونَ﴾ پس دا خلق دنصیحت نه هم منع ګرزوی یا] که علاوه دمذکوره وجهونه ددوی د دروغژن کولو دا وجه ده چه دوی ته دا شبهه شوې وی چه ﴿أَمْ تَسْـَٔلُهُمْ خَرْجًا﴾[ ته ددوی نه څه امدنی غواړې نو ] داهم غلطه ده ځکه چه کله ته پوهیږې چه ﴿فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ﴾ [ امدنی خو ستادرب دټولو نه غوره ده ﴿وَهُوَ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ﴾ او هغه دټولو ورکوونکو نه ښه دې ] نو ته دخلقو نه ولې غواړې [ او] نچوړ ددې حالاتو دادې

(۱) ترجمه:- زه څه عجیبه رسول خو نه یم.
(۲) ترجمه:-دا خلق چې دوئ دا ګمان نه کوی چې ګنې دوئ به مونږ ته راځی داسې وائی چې ددې نه سوا بل قرآن راوړه یا په دې کښې څه ترمیم اوکړه.

چه ﴿وَاِنَّكَ لَتَدْعُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾ [ ته خو دوی لره نيغې لارې طرف ته ] كومې ته چه بره حقه وئيلې شوې ده [رابلې ﴿وَاِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ﴾ او ددې خلقو كوم چه په اخرت ايمان نه لرى دا حالت دې ﴿عَنِ الصِّرَاطِ لَنٰكِبُوْنَ﴾ چه ددې ] نيغې [ لارې نه واپس كيږى ] مطلب دادې چه حقوالې نيغوالې او فائده مند كيدل دا ټول مقتضيات دايمان جمع دى او كومې وجهې چه منع كوونكى كيدې شوې هغه يوه موجودنه ده بيا ايمان نه راوړل سخته درجه دجهالت او ګمراهئ ده [ او] ددوى دسخت والى او عناد داحالت دې چه لكه څنګه دا خلق دشرعى ايتونو نه نه متاثره كيږى دغه شان دقهرى ايتونو مصيبتونو او افتونو نه هم نه متاثره كيږى اګر چه دمصيبت په وخت كښې په طبعى طور سره مونږ لره بلى هم ليكن دغه رابلل وختى وى چنانچه ﴿وَلَوْ رَحِمْنٰهُمْ﴾ [ كه مونږ په دوى مهربانى اوكړو ﴿وَكَشَفْنَا مَا بِهِمْ مِّنْ ضُرٍّ﴾ او په دوى چه كوم تكليف دې هغه مونږ لرې كړو ﴿لَّلَجُّوْا فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ﴾ نو دغه خلق ] بيا [ په خپله ګمراهئ كښې سركر دانه اصرار كوى ] او هغه قول اقرار كوم چه ئې په مصيبت كښې كړې وى ټول ختم شى لكه دا قول دالله تعالى [ اذ مس الانسان الضر دعانا الخ ](١) او داقول دالله تعالى [ فاذا ركبوا فى الفلك الخ ](٢) [ او] ګواه ددې دادې چه څنې وخت ﴿وَلَقَدْ اَخَذْنٰهُمْ بِالْعَذَابِ﴾ [ مونږ دوى لره په عذاب كښې ګرفتار كړى هم دى ﴿فَمَا اسْتَكَانُوْا لِرَبِّهِمْ﴾ پس دې خلقو نه ] په پوره طور سره [ خپل رب ته زارى وكړه ﴿وَمَا يَتَضَرَّعُوْنَ﴾ اونه ئې عاجزى اختياركړه] پس كله چه به عين مصيبت كښې بل مصيبت هم داسې سخت كوم ته چه عذاب وئيلې شى لكه قحط كوم چه په مكه كښې دنبى كريم ﷺ په خيرو سره شوې وو دوئ عاجزى اختيار نه كړه نو پس د مصيبت لرې كيدونه پس خو په درجه اولى ددوى نه ددې توقع نشته مګر ددوى داټوله بې پرواهى او بې باكى تر هغو مصيبتونو پورې ده دكومو چه دوى عادت شوى دى ﴿حَتّٰى اِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِيْدٍ﴾ [ تردې چه مونږ هر كله په دوى دسخت عذاب دروازې پرانيزى ] كوم چه دعادت نه زيات وى خواه په دنيا كښې په دوى څه غيبى قهر راپريوځى يا پس دمرګ نه چه ضرور به واقع كيږى ﴿اِذَا هُمْ فِيْهِ مُبْلِسُوْنَ﴾ [ نو دغه وخت به بلكل حيران پاتې شى ] چه داڅه وشو او ټوله نشه به ئې وځى

## معارف او مسائل

﴿غَمْرَةٍ﴾ داسې ژورو ابو ته وائيلې شى چه انسان پكښې ډوبيږى ، او څوك چه پرې وركډشى نو هغه په ځان كښې پټ كړى ، څكه د دې معنى پرده او هر پټوونكې څيز دې دلته د دوئ مشركانه جهالت ته ،،غمرة ،، وئيلې شوې ده ، چه زړونه ئې پكښې ډوب شوې او پټ شوى دى چه د اړخه دوئ ته د رڼړا پلوشې نهٔ رسيږى.

﴿وَلَهُمْ اَعْمَالٌ مِّنْ دُوْنِ ذٰلِكَ﴾ يعنى د دوى د ګمراهئ د پاره خو يواځې د شرک او كفر د غفلت پرده كافى وه خو دوى په دې نهٔ صبريږى او نور ناكاره عملونه كول ورسره په مخه جارى لرى .

﴿مُتْرَفِيْهِمْ﴾ ﴿مُتْرَفٌ﴾ د ،ترف ،، نه مشتق دې چه معنى ئې په مزو او خوشحالئ كښې پاتې كيدل دى ، دلته د دغې قوم په عذاب كښې د ښكيل كولو بيان دې ، چه امير ،غريب، خوشحاله او بد حاله به ټول پكښې داخل وى ، خو ، مترفين، او د خوشحاله خلقو ذكر ئې په

---

(١) ترجمه:- كله چې دا خلق په كشتئ كښې سواره شى.

(٢) ترجمه:- او كله چې انسان ته څه تكليف اورسى نو مونږ بلى.

خاص ډول څکه اوکړو چه هم داسې خلق د دنيا د مصيبتونو نه دځان ساتلو څه انتظام کوی ،خو د الله تعالى عذاب هر کله چه راشی نو د ټولو اول هم دغه خلق بې وسه پاتې شی ،په دې آيت کښې د حضرت ابن عباس ﷠ د فرمائيلو مطابق هغه عذاب مراد دې چه د بدر په غزا کښې د مسلمانانو د تورو په ذريعه د دوی په سردارانو راغلې وو څنو ترې نه د قاطع راتلو هغه عذاب مراد اخستې دې چه د رسول الله ﷺ د بد دعا په وجه په دوی راوستې شوې وو، تر دې چه دوئ د مردارو ځناورو، سپو او هډوکو خوړلو باندې مجبوره شوی وو اګر چه رسول الله ﷺ د نيست برابر ډيرې کمې بد دعا وې کړې دی خو هر کله چه دوئ [مشرکانو] په مسلمانانو باندې ډير سخت ظلمونه شروع کړل نو دوئ د مجبورئ نه دا ښيره کړې وه.

(۱)﴿اللهم اشدد وطأتك على مضر واجعلها عليهم سنين كسنى يوسف. [بخاري،مسلم.()قرطبي ومظهري﴾(۳)

﴿مُسْتَكْبِرِينَ ۖ بِهِ سَامِرًا تَهْجُرُونَ﴾ دلته په ،﴿بِهِ﴾، کښې ضمير اکثرو مفسرينو ﷯ حرم شريف ته راجع ګرځولې دې چه اګرچې د دې نه وړاندې چرته ذکر شوې نۀ دې مګر دې سره د قريشو ژور تعلق او په هغې باندې د هغوئ نازيدل دومره معروف او مشهور وو چه د هغې د ذکر کولو ضرورت نۀ وو، معنى ئې دا شوه چه [د مکې د قريشو د الله تعالى د آيتونو په آوريدو سره مخ پښا زغليدلو او نۀ منلو وجه ئې دا وه چه دوئ د مکې مکرمې حرم ته منسوب کيدلو او د دې په خدمت کولو ئې ناز او تکبر کولو ﴿سَامِرًا﴾ د سمر نه مشتق دې چه اصلی معنى ئې د سپوږمئ د رڼرا کولو شپه ده څنګه چه عربو به د خپل عادت مطابق په دغې شپه کښې يو ځائ کښيناستل او قيصې به ئې ونيلې څکه اوس ،سمر،د قيصو په معنى کښې استعماليږی او سامر قيصه ويونکی ته وئيلې شی دا لفظ اګر چه مفرد دې خو دلته معنى د جمع ورکوی - مشرکانو د مکې مکرمې چه د الله تعالى د آيتونو نه انکار کولو د هغې يو سبب دا وو چه د مکې مکرمې په خدمت کولو او دې ته په منسوب کيدلو به نازيدل ،بله وجه ئې دا اوفر مائيله چه دا خلق بې اصله او بې بنياده قيصو کښې مشغول اوسيږی د دې عادت لرلو له کبله د الله تعالى آيتونو آوريدوته ئې زړه نۀ کيږی ﴿تَهْجُرُونَ﴾ دا لفظ د هجر په ضمې د هاء نه مشتق دې معنى ئې هسې بکواس او کنځل کول دی دا ئې د مشرکانو دريم حال داسې بيان کړو چه دا خلق هسې د بکواس او کنځلو کولو عادت دی او د رسول الله ﷺ په شان کښې ځنې دغسې د بې ادبئ خبرې کوی.

**د ماسختن مونځ نه پس د قيصو وئيلو بنديز او خاص هدايتونه:** پخوا زمانې راسې دا دستور راروان دې چه عرب او عجم خلق قيصې افسانې بيانوی چه ډير وخت ور سره خرابيږی او نورې خرابئ ترې هم را ولاړيږی په دې وجه رسول الله ﷺ د دې رسم ختمولو د پاره د ماسختن د مونځ نه وړاندې د اودۀ کيدو او د ماسختن د مونځ نه پس د عبثو قيصو وئيلو نه بنديز کړې دې(۴) ، د دې حکمت دا دې چه د انسان د ورځې آخری وخت دې په مونځ ختم شی چه د ټولې ورځې د ګناهونو کفاره ئې شی

---

(۱) ترجمه:- اې الله ! په مضر قوم باندې خپل عذاب رانازل کړه او دا عذاب په دوئ باندې د قحط په صورت کښې نازل کړه، داسې قحط چې يوسف عليه السلام د قحط په شان وی.

(۲) صحيح البخاري كتاب الإستسقاء ،باب دعاء النبي صلى الله عليه وسلم [ج:۱ص:۱۳۶] و صحيح مسلم كتاب المساجد إلخ، باب استحباب القنوت إلخ [ج:۱ص:۲۳۷]

(۳) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۲ص:۱۳۵]و تفسير المظهري[ج:۶ص:۳۹۰]

(۴) صحيح البخاري كتاب المواقيت الصلاة ،باب ما يكره من النوم قبل العشاء [ج:۱ص:۸۰]

که د ماسخوتن مونځ نه پس دا وخت په عبثو قیصو ونیلو کښې تیرشي نو اول خو پخپله دغه کار عبث او مکروه دې بله دا چه د دې په ترس کښې غیبت ،دروغ او نور قسما قسم ګناهونه کیږي او خراب انجام ئې دادې چه د شپې ډیر وخت بیدار پاتې کیدوسره صبا وختې پاسیدې نشي ،هم دغه وجه ده چه کله به حضرت فاروق اعظم ﷺ د ماسختن د مونځ نه پس څوک په فضول قیصو ونیلو کښې مشغول لیدل نو رټل به ئې چه زر اوده کیږئ کیدې شي چه په آخر د شپې کښې الله تعالی د تهجدو کولو توفیق در کړي [قرطبي] [۱]

﴿اَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ﴾ نه تر ﴿اَمْ يَقُوْلُوْنَ بِهٖ جِنَّةٌ﴾، پورې د داسې پنځو څیزونو بیان دې چه مشرکانو په رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړلو ته په یو درجه کښې خنډان جوړیدې شو په دې کښې د هر یو د نیشتوالی وجه هم هغې سره بیان کړې شوې ده حاصل ئې دادې چه کوم څیزونه د دغې خلقو په ایمان راوړو کښې خنډان جوړیدې شو هغه بیخی نشته دې او د ایمان راوړو د پاره بلونکې اسباب او وجهې ټول موجود دی په دې وجه اوس د دوی انکار کول خاص ضد کیدې شي بل هیڅ نه ، چنانچه د هغې بیان دې پسې آیت کښې داسې راغلې دې .﴿بَلْ جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ وَاَكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ﴾ .یعنی د پیغمبرئ نه د دوئ د انکارکولو څه عقلي یا طبعي وجه خو موجود نه ده بیا د دوئ د انکار وجه صرف دا کیدې شي چه هر کله رسول الله ﷺ حقه خبره راوړې ده او د دې خلقو حقه خبره بدې شي د سره ئې آوریدل نه غواړي ولې چه دوئ باندې د خپلو خواهشاتو غلبه ده ، د جاهلانو هغه خپلې مشرئ ،امیرئ ،او حاکمئ سره مینه او د جاهلانو په پل باندې تلل دی ،دایمان راوړو او د پیغمبرئ په منلو کښې خنډ جوړیدونکو پنځو څیزونو کښې د یو بیان داسې هم شوې دې –

﴿اَمْ لَمْ يَعْرِفُوْا رَسُوْلَهُمْ﴾ یعنی د دوئ د انکار یوه وجه دا هم کیدې شوه چه رسول الله ﷺ د ناآشنا خائې نه راغلې وې ، ددوئ د خاندان ،نسب ،قام ،قبیله له مخه نه پیژنو نو څنګه ئې نبی او رسول اومنو او تابعداران ئې جوړشو دلته داخبره ښکاره ده چه دوی ﷺ د قریش اعلی خاندان ځنې دی هم دې ښار د مکه کښې پیداشویدی د پیدا کیدونه تر اوسه پورې ټوله زمانه هم د دې خلقو په وړاندې پاتې شوی دی د دوی هیڅ یو کردار ،عمل او عادت ددغې خلقو نه پټ نه دې پاتې شوې چنانچه د پیغمبرئ د دعوې کولو نه وړاندې خو د مکې مکرمې ټولو کافرانو دوئ لره په صادق او امین مشهور کړې وو ، د دوئ ﷺ په کردار او عمل باندې هیڅا هم څه شک شبه نه وه ښکاره کړې څکه دا خنډ هم جوړیدې نشي چه ګنې دغه خلق ئې پوره نه پیژني .

﴿وَلَقَدْ اَخَذْنٰهُمْ بِالْعَذَابِ فَمَا اسْتَكَانُوْا لِرَبِّهِمْ وَمَا يَتَضَرَّعُوْنَ﴾ د دې نه په وړاندې آیت کښې د مشرکانو په باره کښې ونیلې شوې وو چه په عذاب کښې د ښکیل په وخت که د دې خلقو فریاد الله تعالی یا رسول الله ﷺ واوري په دوی باندې رحم کولو سره ترې عذاب برته کړې شي نو کومه سرکشی او نافرمانی چه د دوی په خمبیر کښې اغرلې شویده هغې کښې به نور هم زیات والې راشی او دوباره به سرکشی او نافرمانی شروع کړي ، په دې آیت کښې د دغې واقعې بیان داشان راغلې دې چې دوئ لره په یو عذاب کښې راګیر کړی دی مګر د نبی کریم ﷺ په دعا سره د عذاب

[۱] ) تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۱۳۸]

څخه بچ شو خو بیا هم دوئ دالله ﷻ مخکښې نه ټیټیږي او پخپل او شرک باندې کلك ولاړ دي .

**د مکې مکرمې په خلقو د قاطئ عذاب او د رسول الله ﷺ په دعا سره د هغې ترې پورته کیدل:**

رومبې معلومه شویده چه رسول الله ﷺ د مکې مکرمې په خلقو باندې د قاطئ دعذاب راتلو ښیره کړې وه چه د سختې قاطئ راتلو په صورت کښې هغه قبوله شوه . تر دې پورې چه د مردارو په خوړو باندې مجبوره شو په دې موقع ابو سفیان رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته په مدینه کښې حاضر شو ،د الله تعالی او د خپلوئ په خاطر ئې ترې خواست اوکړو چه آیا تاسو ﷺ دا نۀ وو وئیلي چه څه د ټولې دنیا د خلقو د پاره د رحمت په حیثیت رالیږلي شوې یم . هغوئ اوفرمائیل ، واقعه داسې ده چه او ما وئیلي هم دغسې دی ،ابو سفیان رضی الله عنه اووئیل چه تاسو خو د خپل قوم مشران د بدر په غزا کښې په توره او وژل او پاتې نور په قاطئ باندې د لوږې نه وژنئ ؟ الله تعالی نه دعااوغواړئ چه داعذاب زمونږ نه لرې شي ،رسول الله ﷺ دعا اوکړه دغه عذاب ترې سمدستی پورته شو په دې موقعه ﴿وَلَقَدْ أَخَذْنٰهُمْ بِالْعَذَابِ الخ﴾ [۱] آیت نازل شو .

د دې آیت مضمون دا دې چه هرکله دوئ په عذاب کښې ښکیل شو او الله تعالی ترې دغه عذاب د رسول الله ﷺ په دعا پورته کړو بیاهم دا خلق د خپل رب په وړاندې ټیټ نۀ شو چنانچه د واقعې مطابق قاطئ چه ترې پورته شوه بیاهم د مکې مکرمې مشرکان په خپل شرک او کفر باندې هم هغسې ټینګ وو [مظهری وغیره] [۲]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَهُوَ الَّذِيْٓ | | | | |
| او هغه هغه ذات دې | | | | |
| او الله هغه ذات دې | | | | |
| أَنْشَأَ | لَكُمُ | السَّمْعَ | وَالْأَبْصَارَ | وَالْأَفْئِدَةَ |
| چې پیدا ئې کړو | ستاسو دپاره | طاقت داوریدو | او طاقت دلیدو | او زړونه [دپاره دسوچ] |
| چې تاسو ته ئې غوږونه سترګې او زړونه درکړل | | | | |
| قَلِيْلًا | مَّا | تَشْكُرُوْنَ ۞ | وَهُوَ الَّذِيْ | ذَرَاَكُمْ |
| ډیر لږ دې | هغه | چې تاسو شکر اوباسئ | او هغه هغه ذات دې | چې خواره ئې کړئ تاسو |
| خو تاسو ډیر کم شکر اوباسئ او الله ﷻ هغه ذات دې چې تاسو ئې د زمکې په مخ | | | | |
| فِي الْأَرْضِ | وَإِلَيْهِ | تُحْشَرُوْنَ ۞ | وَهُوَ الَّذِيْ | يُحْيِ |
| په زمکه کښې | او خاص هغه ته به تاسو | ورجمع کړې شئ | اوهغه هغه ذات دې | چې ژوندی کول کوي |
| خواره کړې ئې او هم دهغه طرفته به تاسو جمع کولې شئ او هم هغه هغه ذات دې چې ژوندی کول | | | | |

[۱] ) دلائل النبوة للبیهقي رقم الحدیث :[۶۱۴ ، ۱۴۲۱]
[۲] ) تفسیر المظهري [ج:۶ ص:۳۹۵ ، ۳۹۶]

وَيُمِيْتُ وَلَهُ اخْتِلَافُ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ۭ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝۸۰

اومړه کول کوي |او خاص دهغه کار دی| بدلول | دشپې | او دورځې | آیا نو تاسو عقل نه چلوئ

کوي او وژل کوي |اودشپې ورځې اړول دهغه په اختیار کښې دی |نوآیا تاسو دعقل نه کار نه اخلئ

بَلْ قَالُوْا مِثْلَ مَا قَالَ الْاَوَّلُوْنَ ۝۸۱ قَالُوْٓا ءَاِذَا

بلکه | وائی دوئ | په مثل دهغې | چې وئیلی دی | ړومبنو کافرانو | دوئ وائی | آیا هر کله چې

بلکه دا خلق هم هغه خبرې کوی | لکه چې پخوانو [کافرانو] کړې وې | دوئ وائی کله چې

مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ ۝۸۲

مړه شو مونږه | او شو مونږه | خاورې | او هډوکی | نوآیا مونږ به| کښې خامخا ژوندی راپاسولې کیږو

مونږ مړهٔ شو| اوښاورې اوهډوکی شو| نو آیا لابیا به راژوندی کولی شو

لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَاٰبَآؤُنَا هٰذَا مِنْ قَبْلُ اِنْ هٰذَآ

په تحقیق وعده شوې ده |زمونږ سره |اودپلارانوزمونږ سره| دا |مخکښې ددې نه|نهٔ دی دا خبرې

داسې وعدې خو مونږ سره او زمونږ مشرانو سره پخواراسې کیږې |داټول بل هیڅ نه دی

اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ۝۸۳ قُلْ لِّمَنِ الْاَرْضُ

مګر | هسې [قیصې] دی | دپخوانو خلقو | ورته اووایه | چالره ده | دا زمکه

بلکه تشې د پخوانو خلقو بې سنده خبرې دی [ائې پیغمبره] ته ورته اووایه چې ښه دا زمکه

وَمَنْ فِيْهَآ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝۸۴ سَيَقُوْلُوْنَ

او هغه مخلوقات چې په دې کښې دی | که چرې یئ تاسو | چې پوهیږئ | ضرور به اووائی دوی

اوددې دپاسه اوسیدنکی خلق ټول دچا مخلوق دې |که تاسو ترې نه خبر یئ |دوی به ضرور اووائی

لِلّٰهِ ۭ قُلْ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ۝۸۵ قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ

چې الله لره دی | ورته اووایه | آیا نو تاسو نصیحت نه قبلوئ | اووایه | څوک دې | رب دآسمانونو

چې داټول د الله ﷻ مخلوق دې| نو ورته اووایه چې نوبیا فکر پرې ولې نه کوئی |ورته اووایه چې د

السَّبْعِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ ۝۸۶ سَيَقُوْلُوْنَ لِلّٰهِ ۭ قُلْ

اووه | او درب | دعرش | لوئ | ضرور به اووائی دوئ | الله لره دی | ورته اووایه

اووهٔ آسمانونو رب څوک دې | اود لوئې عرش مالک څوک دې | دوئ به جواب اوکړی چې دا هرڅه

اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ۝۸۷ قُلْ مَنْ بِيَدِهٖ مَلَكُوْتُ

آیا نو تاسو یریږئ نه | ورته اووایه | څوک دې | چې په لاس دهغه کښې | بادشاهی |

دالله دی|نوورته اووایه چې تاسو ترې نه ولې نه ویریږئ|ورته اووایه چې هغه څوک دې چې په لاس کښې یې

كُلِّ شَيۡءٍ وَّهُوَ يُجِيۡرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيۡهِ اِنۡ كُنۡتُمۡ

دهر څيز ده | او هغه | پناه ورکوی | او نه شی ورکولې څوك پناه | په مقابله دهغه کښی | که يئ تاسو

دهر څيز اختيار دې | او هغه پناه ورکوی | او دهغه په مقابله کښې څوک چاته پناه نشی ورکولې

تَعۡلَمُوۡنَ ۞ سَيَقُوۡلُوۡنَ لِلّٰهِ ؕ قُلۡ فَاَنّٰى

چې پوهيږئ | ضرور به اووائی دوئ | چې دا اختيار الله لره دې | ورته اووايه | نو بيا څنګه

که چرې تاسو پوهيږئ | نو به وائې چې الله ﷻ ؛ | نو ورته اووايه چې بيا په تاسو د کوم طرفه

تُسۡحَرُوۡنَ ۞ بَلۡ اَتَيۡنٰهُمۡ بِالۡحَقِّ وَاِنَّهُمۡ لَكٰذِبُوۡنَ ۞

دوکه کيږئ | بلکه راوړې دې مونږ دوئ ته | حق | او بيشکه چې دوئ | دروغژن دی

جادو کولې شی ؟ | بلکه مونږ دوئ ته حقه خبره رسولې ده || او دوئ يقيناً دروغژن دی

مَا اتَّخَذَ اللّٰهُ مِنۡ وَّلَدٍ وَّمَا كَانَ مَعَهٗ مِنۡ اِلٰهٍ اِذًا

نهٔ دې نيولې الله | هيڅوك خوئې | او نشته | دهغه سره | بل څوك معبود | که داسې وې

الله ﷻ هيڅوک ځان له ځوئې کړې نه دې || او نه هغه سره بل څوک معبود شريک شته . | که

لَّذَهَبَ كُلُّ اِلٰهٍ بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا

نو بوتلې به وې | هر معبود | هغه مخلوق | چې پيدا کړې ئې وۀ | او خامخا به غلبه کولې

داسې وې نو هر يو معبود به خپل مخلوق ځان له بيل کړې وو || او بيا به ئې

بَعۡضُهُمۡ عَلٰى بَعۡضٍ ؕ سُبۡحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُوۡنَ ۞ عٰلِمِ

خينو دهغوئ | په خينو باندې | پاکی دالله ده | دهغه خبرونه | چې بيانوئ ئې دا خلق | عالم دې

په يو بل باندې حملې کولې ، | الله ﷻ دهغه خبرونه پاک دې | د کومو خبرو چه دوی هغه ته نسبت کوی

الۡغَيۡبِ وَالشَّهَادَةِ فَتَعٰلٰى عَمَّا يُشۡرِكُوۡنَ ۞

په پټو | او په ښکارو باندې | پس ډير اوچت دې | دهغه څيز نه | چې شريکوی ئې دا خلق [ورسره]

هغه په پټو او ښکاره ټولو خبرو باندې ډير ښه عالم دې || او د دوی د شرک د خبرونه پاک دې

## آسان ترجمه قرآن

هم هغه الله دې چا چه ستاسو غوږونه او سترګې او زړه پيدا کړل. (خو) تاسو ډير کم شکر کوئ او هم هغه دی چا چه تاسو په زمکه کښې خواره کړئ، او هم دهغه طرف ته به تاسو يوځائې بوتللې شئ. او هم هغه دې چه مرګ او ژوند ورکوی، او هم د هغه په قبضه کښې د شپې او د ورځې بدلون دې. آيا بيا هم تاسو د عقل نه کار نه اخلئ؟ د دې په ځائې دا خلق هم هغه شان خبرې کوی څنګه چه مخکښې خلقو کړې وې. وائې چه : آيا چه کله مونږه مړهٔ شو او په خاورو او هډوکو کښې بدل شو، نو آيا واقعي به مونږ دوباره ژوندی کولې شو؟ دا هغه وعده ده چه مونږ سره هم کړې شوې ده، او زمونږ پلار نيکه سره هم کړې شوې

وه د دې څه حقیقت د دې نه سوا نشته چه دا د مخکښ خلقو جوړې کړې قصې دی. (اې پیغمبره! دوی ته) اووایه چه دا ټوله زمکه او په دې باندې اوسیدونکی د چا ملکیت دې؟ اوښایئ که تاسو علم لرئ. هغوی به ضرور هم داسې وائی چه : دا ټول هر څه د الله پاک دی. اووایه چه : آیا بیا هم تاسو پند نه اخلئ؟ اووایه چه: د اُوو اسمانونو مالک او د اوچت عرش مالک څوک دې؟دوئ به ضرور داسې وائی چه: دا هر څه د الله پاک دی اووایه چه : آیا بیا هم تاسو د الله پاک نه نۀ ویرېږئ؟ اووایه چه: څوک دې چه د هغه په لاس کښې د هر څیز مکمل اختیار دې او کوم ذات چه پناه ورکوی.او د هغه په مقابله کښې څوک هم چاته پناه نه شې ورکولې؟ اوایئ که تاسو علم لرئ. دوئ به ضرورهم داسې وائی چه : ټول اختیارد الله پاک دې. اووایه چه : بیا د کوم ځائې نه په تاسو باندې جادو اوکړې شی؟ نه! (دا قصې نه دی) بلکه مونږ دوئ ته حقه خبره رسولې ده. او دا خلق یقیناً دروغژن دی. نه الله پاک څوک په ځوی ولې نیولې دی، او نه هغه سره څوک معبود شته، که داسې وې نو هر خدائې به خپل مخلوق اخستلو سره بیل شوې وې او بیا به ئې په یو بل باندې حمله کولې پاک دې الله پاک د هغه خبرو نه کوم چه دا خلق جوړَوی هغه الله پاک چه هغه ته ستاسو د پټو او ښکاره خبرو مکمل علم دې. لهٰذا هغه د هغوی د شرک نه ډیر اوچت دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَهُوَالَّذِیٓ﴾ [ او هغه ] الله [داسې] قادر اومنعم [ دې ﴿اَنْشَاَلَکُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَوَالْاَفْـِٕدَةَ﴾ کوم چه تاسو دپاره غوږونه او سترګې او زړونه جوړکړل ] چه ارام درته هم وی او ددین پوهه هم حاصله کړئ لیکن ﴿قَلِيْلًامَّاتَشْكُرُوْنَ﴾ [تاسو خلق ډیر کم شکر کوئ ] ځکه چه اصلی شکردا ووچه ددغه منعم غوره دین تاسو قبول کړې وې او دوباره په قیامت کښې دژوندی کیدو نه موانکار نه کولې ﴿وَهُوَالَّذِیْ ذَرَاَکُمْ فِی الْاَرْضِ﴾ [ او هغه داسې دې کوم چه تاسو په زمکه کښې خوارۀ کړی یئ ﴿وَاِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ﴾ او تاسو ټول به ] دقیامت په ورځ [ هغه ته رواستلې شئ ] دغه وخت به تاسو ته ددې نعمت د ناشکرئ حقیقت معلوم شی ﴿وَهُوَالَّذِیْ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ﴾ [ او هغه الله تعالی داسې دې چه ژوندی کول کوی او مړۀ کول کوی ﴿وَلَهُ اخْتِلَافُ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ﴾ اودهغه په اختیار کښې دی دشپې اود ورځې کمول او زیاتول ﴿اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ﴾ پس ایا تاسو] په دومره خبره [ نه پوهیږئ ] چه دقدرت دا دلیلونه په توحید او په قیامت کښې په دویم ژوندداړو باند دلالت کوی مګر ﴿بَلْ قَالُوْا مِثْلَ مَاقَالَ الْاَوَّلُوْنَ﴾ [ بیا هم منئ نه بلکه دوئ هم هغسې خبره کوی کومه چه وړاندې] کافرانو [ خلقو وئیله اوس ئې دوئ وائی] یعنی ﴿قَالُوْٓاءَاِذَامِتْنَا﴾ [ داسې وائی چه ایا کله مونږ مړۀ شو ﴿وَكُنَّا تُرَابًاوَّعِظَامًاءَاِنَّالَمَبْعُوْثُوْنَ﴾ او مونږ خاوړې اوهډوکی شو نو ایا مونږ به دوباره ژوندی کړې شو ﴿لَقَدْوُعِدْنَانَحْنُ وَاٰبَآؤُنَاهٰذَامِنْ قَبْلُ﴾ ددې خو زمونږ او] زمونږنه [د وړاند مشرانو سره وعده کیدل راروان دی ﴿اِنْ هٰذَآاِلَّآاَسَاطِيْرُالْاَوَّلِيْنَ﴾ داهیڅ هم نشته محض بې سنده خبرې دی کومې چه دوړاند خلقو نه نقل کیدونکې راروانې دی ] چونکه په دې خبره سره دقدرت نه انکار لازمیږی او په دې سره لکه دبیاپورته کیدو نه په انکار سره انکاردتوحیدنه هم کیږی په دې وجه ددې قول په جواب کښې دقدرت دثابتولو سره دتوحید ثابتول هم ارشاد کیږی ﴿قُلْ﴾ یعنی [ ته ] په جواب کښې[دا ووایه چه ] ښه یودا وښایئ چه

﴿لِمَنِ الْأَرْضُ وَمَنْ فِيهَا إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ [ دا زمکه او څه چه په دې اوسیږي دچا ملکیت دې تاسو ته څه خبر نشته ؟ ﴿سَيَقُولُونَ لِلَّهِ﴾ هغوی به خامخا دا ووائي چه د الله تعالی دی] نو ﴿قُلْ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ﴾ [دوی ته ووایه چه بیا ولې غوراو فکر نه کوئ] چه دبیا پورته کولو په قدرت او توحید د حکم ثبوت وشي او ﴿قُلْ﴾ [ته داهم ووایه چه ] ښه تاسو دا وښایئ چه ﴿مَنْ رَبُّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ﴾ [ ددې اوو اسمانونو مالك او دعالی شان عرش مالك څوك دې؟ ] ﴿سَيَقُولُونَ لِلَّهِ﴾ ددې به هم هغوی ضرور دا جواب درکړي چه داهم ] ټول ملکیت [دالله تعالی دی ته ] دغه وخت ﴿قُلْ﴾ دوئ ته [ووایه چه بیا تاسو] دهغه نه ﴿أَفَلَا تَتَّقُونَ﴾ [ولې نه ویریږئ ] چه دهغه دقدرت او دبیا پورته کیدو دایتونو نه انکارکوئ او [ ته ] دوئ ته ﴿قُلْ﴾ [ داهم ووایه چه ] ښه ﴿مَنْ بِيَدِهِ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ [هغه څوك دې دکوم په لاس کښې چه دټولو څیزونو اختیار دې ﴿وَهُوَ يُجِيرُ﴾ [ پناه ورکوی ﴿وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ﴾ او هغه ] چالره چه غواړی او دهغه په مقابله کښې څوك چالره پناه نه شي ورکولې ﴿إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ تاسو ته څه خبر شته؟ ] بیا به هم په جواب کښې ﴿سَيَقُولُونَ لِلَّهِ﴾ [هغوی ضرور داسې ووائي چه داټول صفتونه هم دالله تعالی دی ته] دغه وخت ﴿قُلْ فَأَنَّىٰ تُسْحَرُونَ﴾ دوئ ته [ووایه چه بیا په تاسو دکوم طرف نه لیونتوب شوې دې ] چه دا ټولې مقدمې منئ او نتیجه چه توحید او دقیامت عقیده ده نه منئ دا خو دلیل وو په مقصود باندې ددوی په جواب کښې وړاندې ددوی دمقدمې دلیل یعنی د [ ان هذا الا اساطیر الاولین الخ] باطلول دی یعنی داچه کومه دوی ته ښودلې شي چه قیامت به راځي او مړی به ژوندی کیږی دا اساطیر الاولین نه دی ﴿بَلْ أَتَيْنَاهُمْ بِالْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ﴾ [بلکه مونږه دوی ته رښتونې خبره رسولې ده او یقینا ] په خپله [ دوی دروغژن دی ] تردې ځائ پورې مکالمه ختمه شوه او توحید اوبیاپورته کیدل دواړه ثابت شول مګر په دې دواړو مسئلو کښې دتوحید مسئله چونکه زیاته اهمه او په حقیقت کښې داخرت او قیامت مسئله هم په دې پورې اړه لری او محل دخبرې هم زیات وو په دې وجه دتقریر په تمامیدو کښې دې لره مستقل ارشاد فرمائي چه ﴿مَا اتَّخَذَ اللَّهُ مِنْ وَلَدٍ﴾ [ الله تعالی چالره خپل اولاد نه دې مقرر کړې یا] لکه څنګه چه مشرکانو دملائکو په باره کښې وئيل ﴿وَمَا كَانَ مَعَهُ مِنْ إِلَٰهٍ﴾ [ اونه ددۀ سره څوك بل خدائ شته ﴿إِذًا لَذَهَبَ كُلُّ إِلَٰهٍ بِمَا خَلَقَ﴾ که داسې وې نو هر خدائ به خپل مخلوق لره ] تقسیم کړی [ جدا کړی وو او] بیا به ئ لکه ددنیا د باشاهانو په شان دیو بل په مخلوق دقبضې کولو دپاره ﴿وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ [ په یو بل حمله کوله] نو بیا خو به دمخلوق دتباهئ هیڅ انتها نه وه لیکن دددنیا نظام په خپل دستور سره قائم دې نو ددې نه ثابته شوه چه ﴿سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ﴾ [ الله تعالی ددې ] مکروهو [ خبرونه پاك دې کوم چه داخلق ] دهغه په نسبت [ بیانوی ﴿عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ پوهه دې په ټولو پټو اوښکاروُ باند ﴿فَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ غرض ددې خلقو دشرك نه هغه ډیر لوئ او پاك [دې]

## معارف او مسائل

﴿وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ﴾ یعنی الله تعالی چه غواړی نو چا ته د عذاب ،مصیبت،غم او تکلیف نه پناه

ورکوي او هيڅوک دا وس نهٔ لري چه د هغه په مقابله کښې چاته پناه ورکړي او د هغه د عذاب او تکليف نه ئې خلاص کړي ،دا خبره د دنيا په اعتبار سره هم صحيح ده چه د الله تعالى چا ته په نفع رسولو کښې هيڅوک څه خنډ نشي راوستې او د هغه د تکليف او عذاب نه څوک خلاصولې نشي او د آخرت په اعتبار سره خو دا مضمون د نمر په شان ښه په ډاګه دې چه د هغه عذاب به څوک لرې کولې يا ايساروليې نشي او د هغه چاته د جنت او راحت ورکولو کښې څوک خنډ ان نشي راوستې [قرطبى] (١)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | رَّبِّ | إِمَّا | تُرِيَنِّيْ | مَا | يُوْعَدُوْنَ ﴿٩٣﴾ |
| اووايه اے نبى | اے ربه زما | که چرې | ته ښائې ما ته | هغه عذاب | چې وعده ئې کيږي ددوئ سره |

ته ورته اووايه چې ائې زما ربه! که ته ماته هغه عذاب خودل غواړې اد کوم چې دوئ سره وعده کولې شی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَبِّ | فَلَا تَجْعَلْنِيْ | فِي الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٩٤﴾ | وَإِنَّا | عَلٰٓى |
| اے ربه زما | پس مهٔ شاملوه ما | په دې خلقو ظالمانو کښې | او بيشکه مونږه | په دې کار باندې |

نو ائې زما ربه ! ماپه دې ظالمانو کښې مه شاملوه ، اومونږ په دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَنْ نُّرِيَكَ | مَا | نَعِدُهُمْ | لَقٰدِرُوْنَ ﴿٩٥﴾ | اِدْفَعْ |
| چې اوښايو تاته | هغه عذاب | چې مونږه يروؤ دوئ دهغې نه | خامخا قدرت لرونکې يو | دفعه کوه |

خبره پوره قدرت لرو چې کومه وعده مونږ دوئ سره کوو هغه تاته اوښايو [ائې پيغمبره]

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِالَّتِيْ | هِيَ | أَحْسَنُ | السَّيِّئَةَ ط | نَحْنُ | أَعْلَمُ | بِمَا |
| په هغه طريقه | چې هغه | ډيره ښه وى | بدئ لره | مونږه | ښه پوهيږو | په هغه خبرو |

ته د بدې خبرې په جواب کښې هغه وايه کومه چې غوره ده او څه چې دوئ بيانوى

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَصِفُوْنَ ﴿٩٦﴾ | وَقُلْ | رَّبِّ | أَعُوْذُ بِكَ | مِنْ هَمَزٰتِ |
| چې دوئ ئې بيانوى | اووايه | اے ربه زما | زهٔ پناه غواړم په تا سره | دوسوسو [چيخولو] |

هغه مونږ ته ډير ښه معلوم دى ..............او دعا اوکړه چې ائې زما ربه زهٔ د شيطانانو دوسوسو نه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الشَّيٰطِيْنِ ﴿٩٧﴾ | وَأَعُوْذُ | بِكَ | رَبِّ | أَنْ يَّحْضُرُوْنِ ﴿٩٨﴾ | حَتّٰٓى |
| دشيطانانو نه | او زهٔ پناه غواړم | په تا سره | اے ربه زما | چه دوئ حاضر شى ماته | ترهغې پورې |

په تاسره پناه غواړم او ائې زما ربه ! زه ددې خبرې نه هم په ستا سره پناه غواړم چې هغوئ ماته راشى

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِذَا | جَآءَ | أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ | قَالَ | رَبِّ | ارْجِعُوْنِ ﴿٩٩﴾ |
| کله چې | راشى | يو ددوئ ته مرګ | نو وائى به | اے ربه زما | واپس اوليږه ما [دنياته] |

ترڎې چې کله په دوئ کښې چاته مرګ راشى نو وائى ائې زما ربه ! ما دوباره دنيا ته واپس کړه

(١) تفسير القرطبي [ ج:١٢ص: ١٤٥]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَعَلِّیْٓ | اَعْمَلُ صَالِحًا | فِيْمَا | تَرَكْتُ | كَلَّا | |
| امید دې چې زه | عمل اوکرم نیک | په هغه دنیا کښې | چې پرېښودې ده ما | هرګز نه | |
| ددې دپاره چې کومه دنیا مې پرېخودې ده په هغې کښې څه نیک کارونه اوکړم اهیڅ کله نه ! | | | | | |
| اِنَّهَا | كَلِمَةٌ | هُوَ | قَآئِلُهَا | وَمِنْ وَّرَآئِهِمْ | بَرْزَخٌ |
| بیشکه دا | هسې یوه خبره ده | چې دې اوېونکې دې دهغې | او روستو ددې مړو خلقو نه | پرده ده | |
| داخو هسې یوه خبره ده چې دغه کافر ئې کوی \| او ددوئ مخې ته به یوه پرده وی \| تر هغه | | | | | |
| اِلٰى يَوْمِ | يُبْعَثُوْنَ ۝ | | | | |
| دهغه ورځې پورې \| چې راپاسولې کیږی به دوئ \| | | | | | |
| وخته پورې چې کله دوئ دوباره راژوندی کړې شی \| | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره!) دعا اوکړه چه ! اې زما ربه! د کوم عذاب دهمکی چه دې (کافرانو) ته ورکولې شی، که ته هغه زما د سترګو وړاندې راولې نو اې زما ربه! ما د دې ظالمانو سره مه شاملوه. او یقین اوساته چه مونږ د کوم څيز دوئ ته دهمکی ورکوو، هغې لره ستا د سترګو مخې ته راوړلو باندې قادر یو. (خو تر څو چه هغه وخت نه وی راغلې) ته د بدئ دفعه کول په داسې طریقه باندې کوه چه ډیره غوره وی. کومې خبرې چه دا خلق جوړوی مونږ ته ښه معلومې دی. او دعا اوکړه چه: اې زما ربه! زه د شیطان د وَسوَسو نه ستا پناه غواړم. او اې زما ربه! زه د هغوی ځان ته د نزدې راتلو نه هم ستا پناه غواړم. تردې چه کله په هغوی کښې په چا باندې مرګ راشی نو هغه به وائی چه: اې زما ربه! ما واپس اولیږه دې دپاره چه کومه دنیا ما پرېخودلې ده، هغې ته تلو سره نیک عمل اوکړم. هرګز نه! دا خو هسې خبره ده چه هغه ئې په ژبه وائی او دهغوی (یعنی مړو) مخې ته د برزخ پرده ده کومه چه به تر هغه وخته پورې قائمه وی چه کله هغوئ دوباره ژوندی کولې شی.

## خلاصه تفسیر

[ ته ] دالله تعالى نه ﴿قُلْ رَّبِّ اِمَّا تُرِيَنِّيْ مَا يُوْعَدُوْنَ﴾ [ دعاکوه چه اے زماربه دکوم عذاب چه ته ددې کافرانو سره وعده کوې ] لکه چه بره په [ اذا فتحنا علیهم ][1] سره هم معلومه شوه [ که ته ئې ماته ښائې ] مثلا داچه دغه عذاب په دوی زما په ژوند کښې په دې طور سره راشی چه زه ئې هم ووینم ځکه چه ددغه وعده کړې شوی عذاب څه خاص وخت نه دې ښودلې شوې لکه چه په ذکر شوی ایت کښې هم وضاحت نشته چه دا ذکرشوې احتمال په کښې دې غرض که داسې وشوه ﴿رَبِّ فَلَا تَجْعَلْنِيْ فِي الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ﴾ [ نو اے زما ربه ما په دې ظالمانو خلقو کښې مه شاملوې ﴿وَاِنَّا عَلٰٓى اَنْ نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمْ لَقٰدِرُوْنَ﴾ او مونږ په دې خبره چه دکومې ددوی سره وعده کوو تاته هم په ښودلو باندې قادر یو] باقی تر څو پورې چه په دوی عذاب نه راځی [ ته ]

---

[1] ترجمه:- کله چې مونږ په دوئ باندې د سخت عذاب دروازه پرانیزو.

ددوی سره داسې معامله کوه چه ﴿اِدۡفَعۡ بِالَّتِیۡ ہِیَ اَحۡسَنُ السَّیِّئَۃَ﴾ [ ددوی دبدئ دفع په داسې سلوك سره کوه کوم چه ډیرښه او نرم [ وی ] او دخپل ځان دپاره بدله مه اخله بلکه مونږ ته ئې حواله کوه ﴿نَحۡنُ اَعۡلَمُ بِمَا یَصِفُوۡنَ﴾ [ ماته ښه معلوم دی څه چه داخلق ] ستا په باره کښې [ وائی او] که چرې تاته په مقتضا دبشریت غصه راشي نو ﴿وَقُلۡ رَّبِّ اَعُوۡذُ بِکَ﴾ [ ته داسې دعا کوه چه اے زما ربه زۀ ستا پناه غوارم ﴿مِنۡ ہَمَزٰتِ الشَّیٰطِیۡنِ﴾ دشیطانانو دوسوسو نه ] کوم چه په ما داسې کار وکړی چه خلاف مصلحت وی اګر چه خلاف شریعت نه وی ﴿وَاَعُوۡذُ بِکَ رَبِّ اَنۡ یَّحۡضُرُوۡنِ﴾ [ او اے زما ربه زۀ ستا پناه غوارم ددې نه چه شیطانان ماته هم راشی ] او وسوسه غورز ول خو لاپریږده پس په دې سره به دغه غصه لاړه شي دا کفار دخپل کفر او دخپل بیا ژوندی کیدو د انکار نه نه منع کیږی ﴿حَتّٰۤی اِذَا جَآءَ اَحَدَہُمُ الۡمَوۡتُ﴾ [ تردې چه کله په دوی کښې په چامرګ ] په سر دپاسه [ راشی ] او آخرت ووینی [ دغه وخت ] ئې ستر ګې وسپړدې شی او په خپل جهل او کفر ستومانه شی ﴿قَالَ رَبِّ ارۡجِعُوۡنِ﴾ [ وائی چه اے زما ربه ] زمانه مرګ لږ واپس کړه او [ مالره ] دنیاته [ بیا واپس ولیږه ﴿لَعَلِّیۡۤ اَعۡمَلُ صَالِحًا فِیۡمَا تَرَکۡتُ﴾ ددې دپاره چه کومې ] دنیا [ لره ماپاتې کړې ده هغې ته] بیا واپس لاړشم [ نیك کار اوکړم ] یعنی تصدیق او طاعت دالله تعالی وکړم دې درخواست لره رد فرمائی چه ﴿کَلَّا﴾ [ هرګز ] داسې [ نه ده ] نه شی کیدې [ د ] دوی ﴿اِنَّہَا کَلِمَۃٌ ہُوَ قَآئِلُہَا﴾ [ دایوه خبره ده چه وائی ئې ] اوپوره کیدونکې نه ده او ددې وجه داده چې ﴿وَمِنۡ وَّرَآئِہِمۡ بَرۡزَخٌ﴾ ددې خلقو مخې ته یو څیز آو جوړیدونکی راروان [ دې ] چه دهغې راتلل ضروری دی او هغه دنیا ته د واپس راتلونه مانع دې مراد ددې نه مرګ دې چه دهغې واقعې کیدل هم په مقرر وخت باند ضروری دی [ ولن یؤخر الله نفسا اذا جاء اجلها ](١) او دمرګ نه پس دنیاته راتلل هم ﴿اِلٰی یَوۡمِ یُبۡعَثُوۡنَ﴾ [ دقیامت دورځې پورې ] دالله تعالی دقانون نه خلاف دی

## معارف او مسائل

﴿قُلۡ رَّبِّ اِمَّا تُرِیَنِّیۡ مَا یُوۡعَدُوۡنَ ۙ رَبِّ فَلَا تَجۡعَلۡنِیۡ فِی الۡقَوۡمِ الظّٰلِمِیۡنَ﴾ د دې دواړو آیتونو مطلب دا دې چه د قرآن کریم په ډیرو آیتونو کښې مشرکانو او کافرانو باندې د عذاب وعید راغلې دې چه په قیامت کښې خو به یقینا پرې عذاب راځی او په دنیا کښې ئې هم د راتلو احتمال شته بیا په دنیا کښې عذاب راتلل داسې هم کیدې شی چه د رسول الله ﷺ د زمانې مبارکې نه پس وی او داسې هم کیدې شی چه د هغوی په زمانه کښې د هغوی په وړاندې پرې راشی خو په دنیا کښې د عذاب راتلو قاعده عام طور داسې وی چه اوچو سره لواندۀ هم سوځی یعنی بدانو سره په نیکانو هم عذاب راځی چه د هغوی اجر د آخرت به ورسره وی او په آخرت کښې به پرې عذاب نۀ وی لکه الله تعالی پخپله فرمائې ﴿وَاتَّقُوۡا فِتۡنَۃً لَّا تُصِیۡبَنَّ الَّذِیۡنَ ظَلَمُوۡا مِنۡکُمۡ خَآصَّۃً﴾ [ یعنی د داسې عذاب نه ویرېږئ چه یواځې ظالمان به پکښې نشی راګیر ولې ]نور خلق به هم پکښې راګیرېږی] په دې آیتونو کښې رسول الله ﷺ ته دا دعا ښودلې شویده چه [یا الله که په دې خلقو باندې ستاسو عذاب ځما په وړاندې راځی نو ما دغې ظالمانو سره مۀ لرې ] دا خبره یقینی ده چه رسول الله ﷺ دګناه نه پاک او د الله تعالی د عذاب راتلو نه خلاص وو بیا هم دا دعا ورته په دې غرض اوښودلې شوه چه هغوی ﷺ دې په هر حال کښې خپل رب یاد لری هغه ته دې فریاد کوی چه

(١) ترجمه:-او کله چې دیو سړی نیټه پوره شی نو الله یو کس ته مهلت نه ورکوی.

اجر ئې زيات ېږي [قرطبی] (۱)

﴿وَإِنَّا عَلَىٰٓ أَن نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمْ لَقَٰدِرُونَ﴾ يعنی مونږ په دې باندې قدرت لرو چه ستاسو په وړاندې په دوی باندې عذاب راولو ] ځنې مفسرينو ﷺ فرمائيلی دی چه د رسول الله ﷺ په موجود ګئ کښې الله تعالی په دې امت باندې د عذاب نۀ راوستو وعده داسې فرمائيلې ده ﴿وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ﴾ په دی وجه په دې آيت کښې په خاصو خلقو باندې د عذاب راتلو بيان دې خلاصه دا شوه چه الله تعالی د رسول الله ﷺ په موجود ګئ کښې په دې امت باندې عام عذاب راوستل بند کړی دی په خاصو باندې د عذاب نۀ راوستو وعده ئې نۀ ده فرمائيلې چنانچه په اهل مکه باندې د رسول کريم ﷺ په موجود ګئ کښې د قاطئ او لوږې عذاب راغلو دغه شان د بدر په غزا کښې د تورې عذاب ئې په خاصو خلقو [کفارو] باندې راوستې وو [قرطبی] (۲)

﴿ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ السَّيِّئَةَ﴾ يعنی تاسو دښيګړې په ذريعه بدی ،د انصاف په ذريعه ظلم ،او د رحم په ذريعه بې رحمی په شا تمبوئ ] دا د غوره اخلاقو تعليم رسول الله ﷺ ته د مسلمانانو تر منځه د جاری معاملاتو د حل کولو د پاره ورکړې شوې دې چه هميشه د پاره جاری دې البته د کافرانو او مشرکانو د ظلمونو په مقابله کښې د هغوئ د معاف کولو ،او په هغوی باندې د لاس نۀ پورته کولو حکم دجهاد په آيتونو سره منسوخ کړې شو خو بياهم د جهاد په موقعه هم د دغې ښو اخلا قو ډيرې ننداری داسې باقی اولرلې شوې چه ښځې او ماشومان دې نشی وژلې هغه مذهبی خلق دې هم نشی وژلې چه د مسلمانانو د مقابلې په جنګ کښې برخه نۀ اخلی ،او نۀ دې د وژلې شوی مثله کولې شی چه غوږ پوزه وغيره ئې پرې کړې شی ځکه په وروستی آيت کښې رسول الله ﷺ ته د شيطان او د هغه د وسوسو نه د پناه غوښتو ښودنه کړې شوې ده چه هسې نۀ خالص د جنګ په ميدان کښې شيطان غصه درولی او د لاسه دې څه داسې کار اوشی چه د اوچتو اخلاقو نه خلاف وی هغه دعا دا ده.

﴿وَقُل رَّبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ ۝ وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَن يَحْضُرُونِ﴾ د ،همز ،معنی ديکه ورکول زورل او د روستو نه آواز ورکول هم کيدې شی د عام مطلب په اعتبار سره د شيطان د شر او د چل نه بچ کيدو د پاره دا يو ټول اړخيزه دعا ده ځکه رسول الله ﷺ مسلمانانو ته د دې دعا ښودنه په دې غرض کړې ده چه د يو بې قابو قهر او غصې په حالت کښې کله چه د شيطان د همز دخل پکښې وی انسان د هغې نه محفوظ پاتې شی دې نه علاوه د شيطانانو او جناتو د نورو چپو او حملونه د بچ کيدو د پاره دا دعا مجربه ده حضرت خالد رضی الله عنه ته به د شپې خوب نۀ ورتلو رسول الله ﷺ هغه ته د دعا دا کلمات اوښودل چه د څملاستو په وخت دا وايه نو په دې دعا وئيلو سره ئې دا شکا يت ختم شو دعا دا ده (۳)﴿اعوذ بكلمات الله التامة من غضب الله وعقابه ومن شر عباده ومن همزات الشياطين وان يحضرون﴾ (۱)

﴿أَن يَحْضُرُونِ﴾ د صحيح مسلم په حواله د حضرت جابر رضی الله عنه په روايت رسول الله ﷺ فرمائيلی دی

---

۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۱۴۷]
۲) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۱۴۷]
۳) ترجمه:- زه دالله تعالی کلمات تامه سره پناه غواړم د هغه د غضب اوغصې نه ، اودهغه دعذاب نه ، او دهغه دبندګانو دشر نه ، اودشيطانانو د وسوسې نه ، او ددې خبرې نه چې هغوئ ماته راشی.
۱) موطا مالك كتاب الجامع باب ما يؤمر به من التعوذ رقم الحديث [۳۴۹۹]

چه شیطان په هر کار او هر حالت کښې تاسو ته راځي او د ګناهونو او غلطو کارونو وسوسې درته په زړونو کښې اچوي [قرطبی] (۱). چنانچه هم دې نه د پناه غوښتلو په غرض دا دعا ښودلې شوې ده ،رب ارجعون، کله چه د کافر ځنکدن شي او د آخرت عذاب ورته مخامخ کړې شي نو هغه آرزو کوي چه کاش زه بیا دنیا ته لاړلې او په نیک عمل کولو سره د دې عذاب نه خلاصې راته حاصل شي . ابن جریر رحمه الله د ابن جریج رحمه الله په روایت نقل کړې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ،د مرګ په وخت کله چه یو مؤمن د رحمت فرشتې او د رحمت سامان خپلې مخې ته وینی نو فرشتې ترې تپوس کوی چه آیا ته غواړې چه بیا دنیا ته واپس کړې شې ؟ هغه به وائی ،د غم دغې جالې ته په ورتلو به زه څه اوکړم ؟ اوس خو م الله تعالی ته بیایه او کافر نه چه تپوس اوکړی نو هغه به وائی چه ،﴿رَبِّ ارۡجِعُوۡنِ﴾ دنیا ته م بیرته اولیږه] .(۲)

﴿كَلَّا ؕ اِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَآئِلُهَا ؕ وَمِنۡ وَّرَآئِهِمۡ بَرۡزَخٌ اِلٰى يَوۡمِ يُبۡعَثُوۡنَ﴾ د برزخ لفظی معنی د دوؤ څیزونو تر منځه د بندیز او بیلتون معنی ورکوی په دې وجه د مرګ او د قیامت تر منځه زمانې ته برزخ وئیلې شی ولې چه دا د دنیااو آخرت د ژوند په منځ کښې د بیلتون راوستو یو حد دې او د آیت معنی دا ده چه کله مړ کیدونکې کافر بیرته تلو د پاره دا کلمه وائی نو وئیل خو به ئې راځی ځکه چې اوس عذاب مخې ته راغلې دې د دې هیڅ فائده ځکه نشته چه دې اوس برزخ ته رسیدلې دې د هغې قانون دا دې چه واپس راتلل ترې نشته [والله اعلم]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِى الصُّوۡرِ | | نُفِخَ | فَاِذَا | |
| انو بیا کله چی \| پوکې اووهلې شی \| په صور کښې | | | | |
| انو څه وخت چې شپیلئ پوک وهلې شی | | | | |
| وَلَا يَتَسَآءَلُوۡنَ ۝ | يَوۡمَئِذٍ | بَيۡنَهُمۡ | فَلَاۤ اَنۡسَابَ | |
| نو نۀ به خپلولی پاتې وی \| په منځ ددوئ کښی \| په دغه ورځ \| اونۀ به تپوس کوی دیوبل نه | | | | |
| نو نه بۀ ددوئ ترمینځه خپلولئ پاتې وی \|او نه به څوک دچاتپوس کوی | | | | |
| الۡمُفۡلِحُوۡنَ ۝ | هُمُ | فَاُولٰٓئِكَ | مَوَازِيۡنُهٗ | ثَقُلَتۡ | فَمَنۡ |
| نو هغه څوك \| چی درنې شوې \| تلې دهغه \| نو دغه کسان چی دی \| هم دوئ \| کامیاب دی | | | | |
| خو چې دچا [دعمل] تله درنه شی \|نو هغه کسان به کامیاب شی | | | | |
| خَسِرُوۡۤا | الَّذِيۡنَ | فَاُولٰٓئِكَ | مَوَازِيۡنُهٗ | خَفَّتۡ | وَمَنۡ |
| اوهغه څوك \|چی سپکې شوې \|تلې دهغه\| نودغه کسان\|هغه کسان دی \|چی په نقصان کښی واچوۀ هغوئ | | | | |
| اود چا [دعمل] تله چې سپکه شی \|نودا به هغه خلق وی چی خپل ځانونه ئې دخپله لاسه | | | | |

(۱) تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۱٤۹] و صحیح مسلم کتاب الأشربة ، باب استحباب لعق الأصابع إلخ [ج:۲ص:۱۷۵]
(۲) تفسیر الطبري تحت هذه الآیة [ج:۱۹ ص:٦۹]

أَنْفُسَهُمْ فِي جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ ۝ تَلْفَحُ وُجُوْهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ

خانونه خپل | په دوزخ کښې به | همیشه وسي | سوزي به | مخونه دهغوي | وور | او هغوئ به

په تاوان کښې اچولي وو |او همیشه به په دوزخ کښې وي | ددوزخ | اور به ددوئ مخونه سوزوي | او هلته به

فِيْهَا كٰلِحُوْنَ ۝ أَلَمْ تَكُنْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ

په هغې کښې | بدمخي وي | آیا نهٔ وو | آیتونو زما | چې لوستلې کیدل به | په تاسو باندې

ددوئ مخونه وران شي | آیا زمونږ آیاتونه بهٔ تاسو ته نشو لوستلې

فَكُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ۝ قَالُوْا رَبَّنَا غَلَبَتْ

نو وی تاسو | هغې لره | چې دروغ به مو ګڼړل | او به وائي کافران | اے ربه زمونږه | غالبه شوې وه

نو تاسو به هغه دروغژن ګڼړل . | هغوی بهٔ وائي چې ائې زمونږ ربه ! مونږ خپلې بدبختئ

عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَآلِّيْنَ ۝ رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا

په مونږ باندې | بدبختي زمونږه | او ووْ مونږه | یو قوم | بې لارې | اے ربه زمونږه | او باسه مونږه

راګیر کړې وو | او مونږ دلارې نه بې لارې شوی خلق وو . | ائې زمونږه ربه ! اوس مونږ ددې دوزخ نه

مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا ظٰلِمُوْنَ ۝

ددې دوزخ نه | نو که چرې | دوباره اوکړو مونږه [هغه قصور] | نو بیشکه مونږه | به ظالمان یو |

او باسه |..........که مونږ دوباره داسې کارونه اوکړو | نو بیشکه مونږ به ظالمان یو

قَالَ اخْسَئُوْا فِيْهَا وَلَا تُكَلِّمُوْنِ ۝ إِنَّهُ كَانَ فَرِيْقٌ

او به وائي الله | ذلیله اوسی | په دې کښې | او مهٔ کوئ خبرې زما سره | بیشکه | چې وه | یوه ډله |

الله ﷻ به اوفرمائي چې لرې شئ | هم په دې کښې پراته اوسئ | او ماسره خبرې مه کوئ | حقیقت دا دې

مِّنْ عِبَادِيْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا

دبندګانو زما نه | چې وئیل به هغوئ | اے ربه زمونږه | ایمان راوړو مونږه | نو ببښنه اوکړه مونږ ته

چې زما دبندګانو یوه ډله وه | چې دا دعا به ئې کوله | ائې زمونږ ربه ! مونږ ایمان راوړې دې | نو ته راته

وَارْحَمْنَا وَأَنْتَ خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ ۝ فَاتَّخَذْتُمُوْهُمْ سِخْرِيًّا

او رحم اوکړه په مونږه | او ته | بهتره | درحم کوونکونه ئې | نو اونیول تاسو هغوئ | په توقو سره

ببښنه اوکړه | او په مونږ رحم اوکړه | او ته دهر چا نه زیات رحم کوونکې ئې | نو تاسو به هغوئ پورې توقې

حَتّٰى أَنْسَوْكُمْ ذِكْرِيْ وَكُنْتُمْ مِّنْهُمْ

تر دې پورې | چې هیر کړو هغوئ ستاسو نه | یاد زما | او ووئ تاسو | چې په هغوئ پورې

کولې | تر دې چې [دغې مشغوله] درنه زه هم هیر کړې ووم | او تاسو لګیا وئې په هغوئ پورې مو

تَضۡحَكُونَ۝١١٠ إِنِّي جَزَيۡتُهُمُ ٱلۡيَوۡمَ بِمَا

به مو خندل | بیشکه زه چې یم | بدله ورکړه ما هغوئ ته | نن ورځ | په سبب دهغې |

خنداګانې کولې |نونن ما هغوئ ته دصبر بدله دا ورکړه |چې صرف هغوئ

صَبَرُوٓاْ أَنَّهُمۡ هُمُ ٱلۡفَآئِزُونَ۝١١١ قَٰلَ

چې صبر اوکړو هغوئ | بیشکه هغوئ | خاص هم هغوئ | کامیابی موندونکی دی | اوبه وائی الله

پوره پوره کامیاب شول| ته ورته اووایه چې [بنده]

كَمۡ لَبِثۡتُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ عَدَدَ سِنِينَ۝١١٢ قَالُواْ لَبِثۡنَا

څومره |وخت تیر کړو تاسو|په زمکه کښې| په شمار دکلونو | اوبه وائی هغوئ| وخت تیر کړو مونږه

تاسو دکلونو په حساب څومره موده په دنیا کښې تیره کړې ده ؟ |هغوئ به اووائی چې

يَوۡمًا أَوۡ بَعۡضَ يَوۡمٖ فَسۡـَٔلِ ٱلۡعَآدِّينَ۝١١٣ قَٰلَ إِن لَّبِثۡتُمۡ

یوه ورځ |یا څه حصه دورځې |پس تپوس اوکړه|دشمار کونکونه|اوبه وائی الله|چې وخت نۀ دې تیر کړې تاسو

یوه ورځ قدر به پاتې شوی وو یا د ورځې څه لږه حصه به وه | دشمیر کونکونه تپوس اوکړه| [الله ﷻ]

إِلَّا قَلِيلٗاۖ لَّوۡ أَنَّكُمۡ كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ۝١١٤ أَفَحَسِبۡتُمۡ

مګر | لږ | افسوس که چرې تاسواوئ تاسو| چې پوهیدلی وې په هغه وخت کښې| آیا نو ګمان کوئ تاسو

به اوفرمائی چې تاسو[په دنیا کښې ] ډیره نه بلکه لږه موده پاتې وې |که تاسوپوهیږئ آیا

أَنَّمَا خَلَقۡنَٰكُمۡ عَبَثٗا وَأَنَّكُمۡ إِلَيۡنَا لَا تُرۡجَعُونَ۝١١٥

چې بیشکه پیدا کړی یئ مونږ تاسو | فضول | او چې بیشکه تاسو | مونږ ته | نۀ به راوستلې کیږئ واپس

ستاسو داخیال دې |چې مونږ تاسو بې فائدې پیدا کړی یئ |اوداچې تاسو به مونږ ته نه واپس کیږئ

## آسان ترجمه قرآن

بیا چه کله شپیلئ اووهلې شی نو دهغوی ترمینځه به رشتې باقی پاتې نه شی. او نه به څوک دچا تپوس کوی هغه وخت چه د چا تلې درنې اوخیژی، نو هم هغه به وی چه کامیابی به بیا مومی. او دچا چابړی چه سپک شی نودا به هغه خلق وی چا چه د خپل ځان دپاره د نقصان سودا کړې ده. هغوی به دوزخ کښې د همیشه همیشه دپاره اوسیږی اور به د هغوی مخونه اوسیزی. او په هغې کښې به د هغوی شکلونه خراب شی. (هغوی ته به اووئیلې شی چه:) آیا زما آیتونه به تاسو ته لوستلې نه شو؟ او تاسو به دهغوی تکذیب کولو. هغوی به وائی: اې زمونږ ربه! په مونږ باندې زمونږ بدبختی غالبه شوې وه او مونږ ګمراه خلق وو. زمونږ ربه! مونږ د دې ځائې نه بهر اوباسه. بیا که مونږ دوباره دا کارونه اوکړل نو بیشکه مونږ به ظالمان یو الله پاک به اوفرمائی: هم په دې (دوزخ) کښې ذلیله پراته اوسئ. او ما سره خبرې هم مه کوئ. زما په بندګانو کښې یو جماعت دا دعا کوله چه: اې زمونږ ربه! مونږ ایمان راوړې دې. پس مونږ ته بخښنه اوکړه. او په مونږ باندې رحم اوکړه. او ته د ټولو نه لوئې رحم کونکې ئې. نو تاسو په هغه خلقو

پورې تو قې کولې. تردې چه هم هغوی (سره چیړ چاړ) تاسو زما د یاد نه غافل کړئ او تاسو به په هغوی پورې مسخرې کولې هغوی چه څنګه د صبرنه کار اخستلې وو،نن ما هغوی ته دهغې دا بدله ورکړې ده چه هغوی خپل مراد مولدلې دې. (بیا) الله پاک به (دې دوزخیانو ته) اوفرمائي: تاسو په زمکه کښې په شمار څومره کلونه پاتې شوی یئ؟هغوی به وائي چه: مونږ یو ورځ یا د یوې ورځې نه هم کم پاتې شوې یو، (مونږ ته پوره یاد نه دی) په دې وجه چا چه (د وخت) شمېر کړې وی،دهغوی نه تپوس اوکړه. الله پاک به فرمائي چه: تاسو د لږې مودې نه زیات نه وئ اوسیدلې څه ښه خبره به وه که په دې خبره باندې تاسو (هغه وخت) ځان پوهه کړې وې آیا تاسو دا ګمان کړې وو چه مونږ تاسو هم دغه شان بې مقصده پیدا کړی یئ . او تاسو به مونږ ته نه شئ واپس کیدلې؟

## خلاصه تفسیر

﴿فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ﴾ [ بیا چه کله ] دقیامت ورځ شي او [ شپیلئ ووهلې شي نو] په داسې ویره او هیبت کښې به ګرفتاروی چه ﴿فَلَا أَنسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ﴾ [ په دوئ کښې چه کومې خپلولئ وې په دغه ورځ به] هغه هم ګویا [ پاتې نه شي ] یعنی څوك به دچا همدردی نه کوی لکه دپردو په شان به شي ﴿وَلَا يَتَسَاءَلُونَ ۝﴾ [ او نه به څوك دچا نه تپوس کوی] چه ګوند وروره ستاځه حال دې غرض نه به رشته او خپلولی پکار راځي اونه دوستي اوپیژندګلو پس هلته به دکارشې یو ایمان وی چه دعام شاخت دپاره به په تولو ظاهر شي یوه تله به ودرولې شي او په هغې به عملونه او عقیدې تللې کیږی ﴿فَمَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ﴾ [پس دچاتول چه ] دایمان [ درونډ شي ] یعنی دې مؤمن وی ﴿فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝﴾ [ نوداسې خلق به کامیاب ] یعنی نجات موندونکی [ شي] او دغه ذکر شوې دویرې او دهیبت حال چه نه به په کښې رشته پکار راځي نه دوستي اونه به په کښې څوك دچانه تپوس کوی چه ستا څه حال دې دابه دې مؤمنانو ته نه راپیښیږی لکه چه الله تعالی فرمائي [ لایحزنهم الفزع الا کبرالخ ](۱) ﴿وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ﴾ [ او دکوم سړی تول ] دایمان [ چه سپك وی ] یعنی دې کافروی ﴿فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ﴾ [ پس دغه به هغه خلق وی کومو چه خپل نقصان وکړو ﴿فِي جَهَنَّمَ خَالِدُونَ ۝﴾ او په جهنم کښې به همیشه همیشه وسیږی ﴿تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ ۝﴾ ددوی مخونه به ] دجهنم [ اور وسیزی او په دغه ] جهنم [ کښې به ددوی مخونه وران شوی وی ] او دوئ ته به الله تعالی په واسطه یا بې واسطې ارشاد اوفرمائي چه ﴿أَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ [ ولې ایا زما ایتونه ] په دنیا کښې [ تاسو ته نه لوستلی کیدل﴿فَكُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ۝﴾ پس تاسو هغو لره دروغژن کړی وو] دادهغی سزا ملاویږی ﴿قَالُوا رَبَّنَا﴾ [ هغوی به ووائی اے زمونږ ربه ] واقعی ﴿غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا﴾ [ زمونږ بدبختی مونږ لره ] زمونږ دخپله لاسه [ ګیر کړی وو او] بیشکه ﴿وَكُنَّا قَوْمًا ضَالِّينَ ۝﴾ [ مونږ ګمراهان خلق وو ] یعنی مونږ دجرم اقرار او په دې ستومانی او عذر پیش کوو درخواست کووچه ﴿رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا﴾ [ اے زمونږه ربه مونږ ددې ] جهنم [ نه] اوس [ اوباسې] او دوباره مودنیا ته اولیږی لکه چه داقول د الله تعالی دې په [ آلم السجده] کښې [

---

(۱) ترجمه:- ددوئ غیته ویره به په غم کښې نه بدلوی.

فارجعنا نعمل صالحا](۱) ﴿فَإِنْ عُدْنَا﴾ [ بیا که مونږه دوباره ] داسې [ وکړل ﴿فَإِنَّا ظٰلِمُوْنَ﴾ نو مونږ به بیشکه پوره قصور وار یو] بیا هغه وخت مونږ له پوره سزا راکړه او اوس مونږ پریږده ﴿قَالَ اخْسَئُوْا فِیْهَا﴾ [ارشاد به اوشی چه په دې ] جهنم [ کښې شړلی شوی پراته اوسئ ﴿وَلَا تُكَلِّمُوْنِ﴾ او ماسره خبرې مه کوئ ] یعنی مونږ اوس ستاسو عذرونه نه منو ولې تاسو ته یاد نه دی چه ﴿اِنَّهٗ كَانَ فَرِیْقٌ مِّنْ عِبَادِیْ﴾ [ زما په بندګانو کښې یوه ډله ] دایماندارو [ وه کومو چارو [ چه به] مونږ ته ﴿یَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اٰمَنَّا﴾ [ عرض کولو چه اے زمونږه پروردګاره مونږ ایمان راوړوې دې ﴿فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا﴾ پس مونږ وبخښه او په مونږ رحمت اوکړه ﴿وَاَنْتَ خَیْرُ الرّٰحِمِیْنَ﴾ او ته دټولو رحم کوونکونه زیات رحم کوونکې یې پس تاسو ] صرف دې خبره باندې چه په هر شان دقدر قابله وه ﴿فَاتَّخَذْتُمُوْهُمْ سِخْرِیًّا﴾ [ ددوی مذاق مقرر کړې وو او دومره] په کښې مشغول شوئ ﴿حَتّٰۤى اَنْسَوْكُمْ ذِكْرِیْ﴾ [ چه دې شغل تاسونه زما یادولو لره هم هیر کړل ﴿وَكُنْتُمْ مِّنْهُمْ تَضْحَكُوْنَ﴾ او تاسو به په هغوی پورې خندا ګانې کولې ] پس په دې دهغو هیڅ وران نه شو دیو څو ورځو تکلیف وو چه صبرئ پرې وکړو او نتیجه ئې ورته دامولاؤ شوه چه ﴿اِنِّیْ جَزَیْتُهُمُ الْیَوْمَ بِمَا صَبَرُوْۤا﴾ [ مونږ هغوئ ته نن دهغوئ دصبر دا بدله ورکړه ﴿اَنَّهُمْ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ﴾ چه هغوی کامیاب شول] او تاسو په دې ناکامئ کښې اخته شوی مطلب د جواب داشو چه ستاسو قصور ددې قابل نه دې چه د سزا په وخت کښې په اقرار کولو سره معاف کړې شی ځکه چه تاسو داسې معامله کړې ده چه زمونږ حقوق پرې هم ضائع شوی دی او حقوق العباد هم او دبندګانو هم دداسې چه زمونږ مقبول او محبوب دې کومو چه مونږ سره خاص خصوصیت لرلو ځکه چه په دوی پورې مسخرې کول او دوی ته تکلیف رسول ددوی دحقوقو ضائع کول دی او دحق دروغژن کول کومه چه منشاء ددې مسخرو وه دالله تعالی حق ضائع کول دی دواړه لازم شول پس ددې د سزا دپاره همیشوالې او دوام او تمام مناسب دې او مؤمنانو لره ددوی په وړاندې دجنت په نعمتونو سره کامیابئ سره روحانی تکلیف رسیږی کافرانو ته دا څو جواب شو ددوی د درخواستونو وړاند خبرداری دې ددوی دعقیدې په باطلوالی او ددوی په طریقه ددې دپاره چه په ذلت دپاسه ذلت او په افسوس دپاسه افسوس زیات شی په عذاب کښې ئې سختی راشی په دې وجه ﴿قٰلَ﴾ [ ارشاد به وشی چه] ښه دا وښایئ ﴿كَمْ لَبِثْتُمْ فِی الْاَرْضِ عَدَدَ سِنِیْنَ﴾ [تاسو دکلونو په شمیر څومره موده په زمکه کښې پاتې شوی وئ؟ ] چونکه دهغه ځائ دویرې او هیبت په وجه به ددوی عقل هوش او حواس ورك شوی وی او ددغې ورځې اوږ دوالې په هم پیش نظر [مخ ته] وی ﴿قَالُوْا﴾ [ هغوی به جواب ورکړی چه] کلونه څه دی که ډیر پاتې شوی یو نو ﴿لَبِثْنَا یَوْمًا اَوْ بَعْضَ یَوْمٍ﴾ [ یوه ورځ یا دیوې ورځې نه هم کم پاتې شوی یو] او رښتیاخو داده چه مونږ ته یاد نه دی ﴿فَسْئَلِ الْعَآدِّیْنَ﴾ [ پس دشمیر کوونکو نه] یعنی فرښتو نه عملونه او عمرونه ئې ټول حسابول [ تپوس وکړئ ﴿قٰلَ﴾ ارشاد به وشی چه ] ورځ او څنې دورځې خو غلطه ده مګر دومره خو ستاسو په اقرار سره کومه چه صحیح هم ده ثابته شوه چه ﴿اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا قَلِیْلًا﴾ [ تاسو] په دنیا کښې [ لږه موده پاتې شوئ ] لیکن ﴿لَّوْ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ﴾ [ څه به ښه وې که تاسو] دا خبره هغه وخت [ معلومه کړې وې ] چه ددنیا بقاء د اعتبار قابله نه ده او ددې نه

---

۱) ترجمه:-پس مونږ به بیا اولیږه مونږ نیك کارونه کوؤ.

علاوه بل دارالقرار شته مګر هلته خو تاسو بقا صرف د دنیا ګڼرله او ددې عالم نه موانکار کولو [ وقالواان هي الاحياتنا الدنيا ومانحن بمبعوثين ][1] او اوس چه غلطي ظاهر شوه صحيح ئې ګڼرئ دابې کاره دي او دعقيدې دغلطئ په خبرداړولو نه پس وراند بيا په دې عقيده زورنه ده کومه چه دمضمون دنچوړ په طور دجرم ثابتيدو قرار دا ددې چه ﴿أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا﴾ [البته نو ايا تاسو دا خيال کړې وو چه مونږ تاسو لره هم دغسې عبث] دځه حکمت نه خالي [پيدا کړي يئ او ] دا خيال مو کړې وو ﴿وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ﴾ [ چه تاسو به مونږ ته رانه وستلې شئ ] مطلب دادې چه کله مونږ په ايتونو کښې چه ربښتونوالې ئې په صحيح دليلونو سره ثابت دې د قيامت او په دې کښې دعملونو دبدلې خبر درکړې وو نو معلومه شوې وه چه کوم خلق په عملونو کولو مکلف دي ددوي دپيدا کولو په حکمتونو کښې يو حکمت دا هم دې چه ددې نه منکر کيدل څومره لوئ ناکاره کار دې

## معارف او مسائل

﴿فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ فَلَا أَنسَابَ بَيْنَهُمْ﴾ د قيامت په ورځ به دوه ځل شپيلئ پوک وهلې شي، د اول ځل شپيلئ پوک وهلو اثر به دا وي چه ټول جهان آسمانونه او زمکې او د دې په منځ کښې ټول مخلوق به فنا شي او په دويم ځلې پوک وهلو سره به ټول مړي ژوندي شوي راپورته شي لکه قرآن کريم فرمائي ﴿ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَىٰ فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنظُرُونَ﴾[2] اوس په دې آيت کښې رومبې ځل پوک وهل مراد دي او که دويم ځلې ؟ دې کښې اختلاف دې د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه په روايت د ابن جبير رضی الله عنه منقول دي چه په دې آيت کښې رومبې ځل پوک وهل مراد دي او حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه فرمائي او په روايت دعطاء رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنه نه هم دا منقول دي چه دلته ترې مراد دويم ځلې پوک وهل دي ،تفسير مظهري دې ته صحيح وئيلې دي[3] د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قول داسې دې چه د قيامت په ورځ به يو يو بنده سړې او ښځه ميدان محشر ته راوستې شي او د ټولو اولينو او آخرينو په ګڼره کښې به اودرولې شي بيا د الله تعالی يو آواز کونکې به آواز اوکړي چه دا کس فلان ځوئې د فلان دې د چا چه په ده حق وي نو مخې ته دې راشي او دۀ نه دې خپل حق وصول کړي دا به داسې وخت وي چه ځوئې به په دې خوشحاله شي چه زماحق په پلار باندې ثابت شو او پلار به په دې خوشحاله شي چه حق ئې په خپل ځوئې ثابت شي ،دغه شان ښځه ،خاوند ،رور ،خور به په يو بل حق ثابتېدو باندې خوشحاله شي دا هغه وخت دې چه په دې آيت کښې ﴿فَلَا أَنسَابَ بَيْنَهُمْ﴾[4] سره ئې بيان راغلې دې ،دغه وخت به خپل منځ کښې نسبي خپلوئ او نور قسم هيڅ تعلقات [د دوستئ وغيره ] پکار نۀ راځي هيڅوک به په بل رحم نۀ کوي هر چا سره به خپل خپل غم وي دا هغه وخت دې چه قرآن کريم په دې باره کښې داسې فرمائي ﴿يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ ۝ وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ ۝ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ ۝﴾ يعنی په دغه ورځ به هر انسان د خپل ورور،مور ،پلار ، ښځې ،او ځامنو نه لرې تښتي ]

---

[1] ترجمه:او دوئ وائي ژوند بل چرته نشته دې صرف هم دلته في الحال ژوند دې او مونږ نشو ژوندی کولې.
[2] ترجمه:-بيا به دوباره شپيلئ اووهلې شي نو اچانك به ټول راپاسي اور ګوری به.
[3] تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٤٠٢]
[4] تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:١٢ص:١٥١]

**په محشر کښې د مؤمنانو او کافرانو په حالاتو کښې فرق:** دا بیان شوې حال د کافرانو دې د مؤمنانو حال به داسې نه وی بلکه قرآن کریم د هغوئ حال داسې بیانوی ، ﴿أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾ [یعنی مؤمنانو نیکانو سره به د هغوئ مؤمنان اولاد هم یو ځائ کولې شی ] په حدیث شریف کښې راغلې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ،،د قیامت په ورځ به ټول خلق تږی وی نو د مسلمانانو نابالغه مړۀ شوی اولاد به د جنت اوبه راوړی هر څوک به تږې دغه اوبه غواړی خو هغوی به وائی چه مونږ خو به دا اوبه یواځې خپل مور او پلار ته ورکوؤ- ابن ابی الدنیا ،د عبدالله بن عمر ﷺ او د ابی ذر ﷺ نه روایت کړې دی [مظهری] ([1])

یو بل حدیث کښې ابن عساکر ﷺ په صحیح سند سره د حضرت ابن عمر ﷺ نه نقل کړی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل د قیامت په ورځ به ټول نسبی تعلق د ښځې خاوند او د دوستانو ترمنځه چې کوم تعلق او رشتې وی دهغه تار به اوشلیږی [یو به د بل هیڅ پکار نشی راتلې] سوا زما د نسبت او د نکاح د تعلق نه .([2]) علماؤ فرمائیلی دی چه ټول مسلمانان د رسول الله ﷺ په نسبی رشته کښې هم ځکه راځی چه الله تعالی د هغوی بیبیانو ته د امت میندې فرمائیلې دی نو نبی کریم ﷺ پخپله پلار شو - غرض دا چه په محشر کښې نسبی ،د نکاح ،دوستئ وغیره رشتې به د کافرانو ترمنځه شلیږی خو مؤمنان به د یو بل شفاعت او امداد کوی او خپل مینځ کښې تعلقات به ئې هم پکار راځی -

﴿وَلَا يَتَسَآءَلُونَ﴾ یعنی څوک به خپل مینځ کښې د چا د خبرې تپوس نشی کولې ] یو بل آیت کښې یو بل نه د تپوس کولو کوم بیان چه داسې راغلې دې چه [﴿وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَآءَلُونَ﴾ نو د دې په باره کښې حضرت ابن عباس ﷺ فرمائیلی دی چه په محشر کښې به د مخامخ مختلف او بیل بیل ځایونه وی چه حال به ئې د یو بل نه مختلف وی یو وخت به داسې هم راځی چه څوک به د چا نه تپوس نشی کولې بیا کله چه د پیشئ په یو ځائې کښې هیبت او ویره څه قدرې کمه شی نو خپل مینځ کښې به د یو بل حال معلوموی [مظهری] ([3]) ، ﴿فَمَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ فِي جَهَنَّمَ خَالِدُونَ﴾ [یعنی د عمل په میزان [تله] کښې د چا د نیکو چاړې یعنی تله چه به درون شی هغوی به فلاح [کامیابی ] موندونکی وی او د چا چاړې چه به سپک پاتې شی نو دا به هغه خلق وی چه د خپله لاسه ئې خپل نقصان کړې وی او اوس به همیشه په جهنم کښې اوسیدونکی وی ]

په دې آیت کښې صرف د کاملو مؤمنانو او د کفارو تر مینځه د مقابلې جاج اخستې شوې دې او د هر یو د انجام بیان داسې شوې دې چه د کاملو مؤمنانو د نیک عمل چاړې به درون وی چه کامیاب به وی او د کفارو د اعمالو چاړې به سپک وی چه همیشه به په جهنم کښې پاتې کیږی او د قرآن کریم د نورو ډاگیزو خبرو نه ثابته ده چه دلته د مؤمنانو د چاړی درنیدو مطلب دا دې چه د هغوئ د گناهونو او بدو عملونو چاړې به تش تور وی چه هیڅ وزن به نه لری او د کفارو د چاړی د سپکیدو مطلب به دا وی چه د هغوی د نیکئ چاړې به تش تور وی هیڅ وزن به نه لری

[1]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:۴۰۲،۴۰۳]
[2]) المعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث :[۴۲۸۲]
[3]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص: ۴۰۳]

،لکه قرآن کریم بل ځای کښې فرمائي. ﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾. [د قیامت په ورځ به مونږ د کفارو د عملونو هیڅ وزن تېکاؤ نهٔ کړو] دا حال خو د کاملو مؤمنانو شو او د چا نه چه بیخی ګناه نهٔ وی شوې یا په توبې وغیره سره معاف کړې شوې وی نو د عملونو د تللو په موقعه به د ګناهونو په چابړی کښې د هغوی په نوم هیڅ نهٔ وی بل اړخ ته د کفارو نیک عملونه به هم د عدل په میزان کښې هیڅ وزن څکه نهٔ لری چه دوی د ایمان نه خالی دی د ګناهګارو مسلمانانو شان به دا وی چه د هغوی د نیکئ په چابړی کښې به ئې نیک او د بدئ په چابړی کښې به ئې بد عملونه وی د هغوی بیان په دې آیت کښې په ډاګه نهٔ دې کړې شوې بلکه عموما په قرآن کریم کښې د ګناهګارو مسلمانانو د جزا او سزا نه خاموشی اختیار کړې شویده د هغې وجه دا کیدې شی چه د قرآن کریم د نازلیدو په زمانه کښې چې څومره مؤمنان صحابه کرام وو هغه ټول په ټوله عدول [د لویو ګناهونو نه پاک] وو که چا نه به لویه ګناه اوشوه نو توبه به ئې کړه چه د هغې سره به معاف شوه [مظهری][1]

د قرآن کریم په یو بل آیت کښې د داسې خلقو بیان دې چه نیک او بد عملونه ئې ګډوډ دی لکه فرمائي ، ﴿خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا﴾[2] د دې خلقو په باره کښې ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائیل چه د قیامت په ورځ به د دې خلقو د عملونو حساب په داشان وی چه د چا یوه نیکی هم د ګناهونو په مقابله کښې زیاته شوه هغه به جنت ته ځی او که د چا یوه ګناه هم د هغه د نیکو په مقابله کښې زیاته شوه نو هغه به دوزخ ته ځی خو دا ورتلل د دغه ګنهګار مؤمن د پاکولو د پاره داسې دی لکه چه سرهٔ ،سپین زر وغیره چه په اور سره پاکولې شی په دې شان د ګناهونو زنګ ئې چه څه وخت لرې شی نو په جنت کښې د داخلیدو به جوګه شی او هلته به اولیږلې شی. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فر مائیلی دی چه د عمل تله به دومره صحیح تول کوی چه د اوری د یوې دانې برابر د نیکئ یا بدئ په زیاتیدو کمیدو به پورته کیږی او ښکته کیږی او د چا نیکئ او بدئ چه بیخی سر په سر او خیژی نو هغه به اعراف کښې دا خلولې شی تر څه مودې پورې به د دویم حکم په انتظار کښې د دوزخ او جنت تر منځه په اعراف کښې پاتې شی چه آخر به دې هم جنت ته لاړ شی [ابن ابی حاتم په حواله د مظهری][3] د ابن عباس رضی الله عنهما په دې قول کښې صرف د ګنهګارو مؤمنانو بیان دې د کفارو بیان پکښې نشته-

**د عملونو تللو طریقه:** د حدیث شریف د څنی روایتونو نه معلو میږی چه مؤمن او کافر به بذات خود په میزان عدل کښې تللې شی د کافر به هیڅ وزن نهٔ وی اګر چه د هغه بدن به ډیر غټ او څورب وی [بخاری و مسلم په روایت د ابی هریره][4] او د حدیث د څنی روایتونو نه معلومیږی چه د خلقو عمل نامې به تللې شی چنانچه ترمذی ، ابن ماجه ،ابن حبان او حاکم دا مضمون د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روا یت کړې دې[5] او د څنی روایتونو نه معلومیږی چه د انسان هر عمل له به شکل او جسم ورکړې شی هله به تللې شی دا روایت طبرانی وغیره په روایت د ابن

---

[1]) تفسیر المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ ص: ٤٠٦]

[2]) ترجمه:- چا چې یو شان نیك اوبد عملونه کړی وی.

[3]) تفسیر المظهري[ج:٦ ص:٤٠٥، ٤٠٦]

[4]) صحیح البخاري كتاب التفسير تفسير سورة الكهف ،باب اولئك الذين كفروا بايت ربهم الآية [ج:٢ص:٦٩١] و صحیح مسلم كتاب ، باب صفة القيامة [ج:٢ص:٣٧٠]

[5]) جامع الترمذي ، ابواب الإيمان باب ماجاء فيمن يموت وهو يشهد ان لا اله الا الله [ج:٢ ص:٩٢]

عباس رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه نقل کړې دې[1] د حدیث د دې ټولو روایتونو الفاظ او متن ، په تفسیر مظهری کښې مکمل موجود دې که څوک غواړی نو هلته ئې کتلې شی. د دې آخری قول په تائید کښې یو حدیث عبدالرزاق په فضل العلم کښې د ابراهیم نخعی نه نقل کړې دې چه د قیامت په ورځ به د یو کس عملونه د تللو د پاره راوړې شی او د تلې په چابړی کښې به کیښودې شی خو دغه به بیا هم سپک پاتې شی بیا د وریځې په شان یو څیز به راوړې شی چه د دغه نیکو په چابړی کښې به کیښودې شی نو هغه به دروند شی دغه وخت به دغې کس ته اوویلې شی چه تاسو پوهیږئ چه دا څه څیز دې ؟ هغه به او وائی چه ماته معلوم نهٔ دې ورته به اوښودلې شی چه دا ستا هم هغه علم دې چه خلقو ته به دې ښودلو ، دا شان امام ذهبی رحمه الله د علم د فضیلت په باره کښې د حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه نه روایت کړې دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ، د قیامت په ورځ به د شهیدانو وینه او د عالمانو سیاهی [په کومو سره ئې چه دینی کتابونه لیکلی وو ] چه د یو بل په مقابله کښې او تللې شی نو د عالمانو د سیاهی وزن به د شهیدانو د وینې نه زیات او خیژی [مظهری] ۔[2]

د عملونو د تللو د طریقې په باره کښې درې قسمه روایتونو نقل کولو نه پس تفسیر مظهری کښې فرمائیلی دی چه دا څه هیڅ لرې خبره نهٔ ده چه پخپله انسان او د هغه عملونه په جسمانی شکل کښې او تللې شی یا عملنامه ئې ورسره کیښوې شی او وتللې شی په دې وجه په دې درې واړو روایتونو کښې څه

بې سمونی او اختلاف نشته - ﴿وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ﴾ د لغت له مخې ، کالح ، هغه انسان ته وائی چه په دواړو شونډو ئې غاښونه نهٔ پټیږی ، ښتو کښې ورته داړې چینګې وئیلې شی چه ډیر بد شکله وی په جهنم کښې به د جهنمی پاسنۍ شونډه پورته او خیژی او لاندې ینۍ شونډه به ئې لاندې زوړنده شی چه غاښونه به ئې ترې ښکاری.

﴿وَلَا تُكَلِّمُونِ﴾ حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائیلې دی چه د جهنمیانو به دا آخری خبره وی ، په جواب کښې به ورته حکم اوشی چه مونږ سره خبرې مهٔ کوئ --- دې نه پس به هغوئ هیڅ سره خبره نشی کولې او د خناورو غوندې به یو بل ته غاپی . او بیهقی وغیره د محمد بن کعب نه نقل کړی دی چه په قرآن کښې د جهنمیانو پنځه خواستونه نقل کړې شوی دی په دې کښې د څلورو جواب ور کړې شو او د پنځم په جواب کښې ورته دا حکم او شو : ﴿لَا تُكَلِّمُونِ﴾ نو دا به د هغوئ آخری خبره وی دې نه پس به هیڅ نشی وئیلې [مظهری] [3]

| فَتَعٰلَى | اللّٰهُ | الْمَلِكُ | الْحَقُّ ۚ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ ۚ | رَبُّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پس ډیر اوچت دې | الله | چې بادشاه | حقیقی دې | نشته بل خدائې | مګر | هم هغه دې | چې مالك دې |

هغه الله جل جلاله چې بادشاه حقیقی دې | دهغه شان اوچت دې | د هغه نه سوا بل معبود نشته

[1] ) المعجم الکبر للطبرانی رقم الحدیث :[۱۳۰۲۴] (بألفاظ مختلفة)
[2] ) تفسیر المظهري تحت هذه الآیة [ج:۶ص:۴۰۴ ، ۴۰۵] و کنز العمال رقم الحدیث:[۲۸۸۹۹] کتاب العلم الباب الأول فی الترغیب فیه.
[3] ) تفسیر المظهري[ج:۶ص: ۴۰۸]

الْعَرْشِ الْكَرِيْمِ ﴿۱۱۶﴾ وَمَنْ يَّدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ لَا بُرْهَانَ

دعرش | عزتمند | او څوك چې رابلي | دالله سره | خدائي بل | چې نشته دليل

هغه دعزت والا دعرش مالک دې | اوڅوک چې دالله ﷻ سره بل معبود رابلي | د دې باوجود

لَهٗ بِهٖ فَاِنَّمَا حِسَابُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ اِنَّهٗ

هغه لره | په عبادت دبل چا | نو بيشکه | حساب دهغه | دهغه درب سره دې | بيشکه شان دادې

چې هيڅ دليل ورسره نه وی | نو دهغه حساب به خامخا دخپل رب سره کيږي

لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۱۱۷﴾ وَقُلْ رَّبِّ اغْفِرْ

چې خلاصي نه شي موندې | دا کافران | اواووايه اے نبی | اے ربه زما | معافي اوکړه |

دايقيني ده چې کافران کاميابيدې نشي | او ته ورته اووايه چې ائي زماربه !

وَارْحَمْ وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۱۱۸﴾

او رحم اوکړه | اوته | بهتره دټولو رحم کونکو نه ئې |

ما اوبخښه | او په ما رحم اوکړه | او ته دټولو نه ښه رحم کونکې ئې

## آسان ترجمه قرآن

غرض دا چه ډير اوچت شان دې د الله پاک کوم چه په صحيح معنوکښ بادشاه دې! دهغه نه سوا هيڅوک معبود نشته. هغه د عزت والاعرش مالک دې. او کوم سړې چه د الله پاک نه سوا بل خدائي رابلي، چه په هغې باندې هغه سره هيڅ قسم دليل نشته. نو دهغې حساب د هغه د رب سره دې. يقين اولرئ چه کافران خلق به کاميابي نه مومي. او ته (اې پيغمبره!) داسې اووايه چه: اې زما ربه! زمونږ ګناهونه معاف کړه، او په مونږ رحم اوکړه، اوته دټولو رحم کونکو نه زيات رحم کونکې ئې.

## خلاصه تفسير

او دا ټول مضامين چه هرکله معلوم شول [پس] ددې نه داپه کامل طور سره ثابته شوه چه ﴿فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ﴾ [الله تعالى ډير د اوچت شان والا دې کوم چه بادشاه] دې او بادشاه هم [حقيقي دې] ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ دده نه سوا څوك هم لائق دعبادت نشته ] او دئ ﴿رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْمِ﴾ [د عرش عظيم مالك دې ﴿وَمَنْ يَّدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ﴾ اوكوم سړې چه ] په دې کار ددليلونو قائميدو نه پس [ دالله تعالى سره دچابل معبود هم عبادت کوی په کوم چه ] دمعبود کيدو ﴿لَا بُرْهَانَ لَهٗ بِهٖ﴾ [ دوی سره هيڅ هم دليل نشته ﴿فَاِنَّمَا حِسَابُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ﴾ پس دده حساب به دده درب سره وی ] چه لازمی نتيجه ئې داده چه ﴿اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ﴾ [ يقينا کافران فلاح نه شي موندې ] بلکه دهميشه دپاره به په عذاب کښې وی [ او] هرکله چه دالله تعالى دا شان دې نو ﴿وَقُلْ رَّبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ﴾ [ ته ] او نور خلق په درجه اولی [داسې وايئ چه اے زما ربه ] زما خطا ګانې [ معاف کړه او] په هر حالت کښې په ما [ رحم وکړه ] په معاش کښې هم او دعبادت په توفيق کښې هم په نجات داخرت کښې هم په راکولو دجنت کښې هم ﴿وَاَنْتَ خَيْرُ الرّٰحِمِيْنَ﴾ [ او ته دټولو رحم کوونکو نه زيات رحم کوونکې يئ ]

## معارف او مسائل

د سورهٔ مؤمن دا آخري آيتونه د ﴿أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ﴾ نه تر آخر د سورته پورې خاص فضيلت او غوره والې لرى بغوى ،او ثعلبى ﷫ د حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ نه روايت کړې دې چه هغوى په داسې يو رنځور باندې ور پيښ شو چه په سختو رنځونو کښې اخته وو ،حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ د هغه په غوږ کښې دا آيتونه د ،افحسبتم ،نه تر آخر د سورت پورې اولوستل هغه رنځور سمدستي ښه شو ،رسول الله ﷺ ترې تپوس اوکړو چه تا د هغه په غوږ کښې څه اولوستل ؟ عبدالله بن مسعود ﷛ او وئيل چه دا آيتونه م اولوستل - رسول الله ﷺ اوفرمائيل په هغه ذات م دې قسم وى چه د چا په قبضه کښې زما ځان دې چه په يقين سره دا آيتونه څوک په غر باندې اولولى نو هغه د خپل ځاى نه خو ځيدې او لرې کيدې شى [قرطبى و مظهرى ][1]

﴿رَّبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ﴾ دلته د ،اغفر، او ،ارحم ، دواړو مفعول ذکر شوې نهٔ دې چه څه معاف کړې او په چا رحم اوکړې دې کښې اشاره عموم ته داسې ده چه مغفرت [ښښنه] شامل دې هر مضر او تکليف ورکونکې څيز لرې کولو لره او رحمت شامل دې هر مراد او محبوب څيز حاصلولو لره [مطلب دا چه د ضرر او تکليف هر څيز رانه لرې کړې او هر مراد او محبوب [د خوښې څيز] راته حاصل کړې [مترجم ]

ولې چه ضررى څيزونه دفع کول او د نفع څيزونه حاصلول دواړه په دې کښې شامل شو کوم چه د انسانى ژوند او د هغه د مقصدونو خلاصه دى [مظهرى ][2] هرکله چه رسول الله ﷺ د ګناه نه پاک او رحمت پرې کړې شوې دې نو د هغوى ﷺ د ښښنې او د رحمت غوښتو دعا په اصل کښې د امت د ښودلو د پاره ده چه دوئ دې د داسې دعا کولوڅومره زيات خيال ساتى [قرطبى][3]

[انه لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ] ،د سوره مؤمن شروع د ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ﴾ ،نه شوې وه او ختميدل ئې په ﴿لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ﴾ باندې اوشو دې نه معلومه شوه چه فلاح ،يعنى مکمله کاميابى هم د مؤمنانو برخه ده کافران دې نه بې برخې دى

تمت سورة المؤمنون فى ثمانية ايام من المحرم ۱۳۰۱ هجرى
وذلك فى يوم عاشوراء يوم الاثنين ولله الحمد اوله واخره
واياه اسأل التوفيق لاتمام الباقى كما يحب ويرضاه
وان يتقبل منى ويجعله ذخرا الاخرتى وهو المستعان

.................................

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۱۵۷] و مجمع الزوائد رقم الحديث :[۸۴۶۹]
[2] ) تفسير المظهري[ج:۶ص:۴۱۲]
[3] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۱۵۷]

آیاتونه ۶۴ — سورة النور مدنية وهي اربع وستون اٰية وتسع ركوعات — ركوع گانې ۹

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې ①

سُوۡرَةٌ اَنۡزَلۡنٰهَا وَفَرَضۡنٰهَا وَاَنۡزَلۡنَا

دایو سورت دې | چې نازل کړې دې مونږه دا | او فرض کړې دې مونږه دا | او نازل کړې دی مونږه |

دایو سورة دې چې مونږ نازل کړو | او ددې [حکمونه مو په تاسو] فرض کړل | او

فِيۡهَاۤ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ لَّعَلَّكُمۡ تَذَكَّرُوۡنَ ① اَلزَّانِيَةُ

په دې کښې آیتونه | واضحه | دپاره ددې چې تاسو | نصیحت قبول کړئ | زناکاره ښځه |

په دې کښې مو واضحه حکمونه نازل کړل | چې تاسو ترې نصیحت حاصل کړئ | زناکاره

وَالزَّانِيۡ فَاجۡلِدُوۡا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنۡهُمَا مِائَةَ جَلۡدَةٍ

او زناکار سړې | پس اووهئ تاسو | هر یو | دهغوئ دواړو نه | سل | درې |

اوزنارکار سړې په دواړو کښې هریو سل سل کوړې اووهئ

وَّلَا تَاۡخُذۡكُمۡ بِهِمَا رَاۡفَةٌ فِيۡ دِيۡنِ اللّٰهِ اِنۡ كُنۡتُمۡ

اونه دې نیسی تاسو لره | په دغو دواړو باند | زړه سواندی | په معامله ددین دالله کښې | که یئ تاسو

اوتاسو ته دې په دې دواړو دالله ﷻ د حکم په نافذ کولو کښې هیڅ ترس رانشی | که چرې

تُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ وَالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَلۡيَشۡهَدۡ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ

چې ایمان لرئ | په الله باند | اوپه ورځ دآخرت | اوحاضر دشی | عذاب ددې دواړو ته | یوه ډله

تاسو په الله ﷻ او دقیامت په ورځ باور کوئ | اوپکاردی چې د دې دواړو کسانو سزا ته دې د

مِّنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ②

دمومنانونه |

مسلمانانو یوه ډله حاضره [ولاړه] اوی

**آسان ترجمه قرآن**

دا یو سورة دې چه مونږ نازل کړې دې،او دکومو (احکام چه) مونږ فرض کړی دی،او په دې کښې مو ښکاره ښکاره آیتونه نازل کړی دی چه تاسو نصیحت حاصل کړئ. زنا کونکې زنانه او زنا کونکې سړې دواړو ته سل سل کوړې ورکړئ او که تاسو په الله پاک او په آخرت باندې ایمان لرئ، نو د الله پاک د دین په معامله کښې دې په هغوی باندې د رحم کولو څه جذبه په تاسو غالبه رانشی، او دا هم پکار دی چه د مومنانو یو مجمع د هغوی سزا ښکاره اووینی.

**دسورة نور خصوصيات:** دې سورة كښې اكثر احكام د خپلې پاك دامنۍ د حفاظت كولو او د ستر ، پردې باره كښې دي ، چې د هغې د تكميل دپاره په كښې د زنا د حد بيان راغلو ، دې نه مخكښې تير شوى سورة مؤمنون كښې د مسلمانانو د دنيا او آخرت كاميابى په كومو صفاتو باندې چې انحصار لرلو په هغې كښې يو صفت د شرمگاه د حفاظت بيان راغلې وو چې د پاك دامنۍ خلاصه ده . دې سورت كښې ددغې پاك دامنۍ د بندوبست كولو احكام بيان شوي دي . هم دغه وجه ده چې ښځو ته ددې سورت د تعليم وركولو خصوصي هدايتونه راغلي دي . عمر فاروق رضي الله عنه دكوفيانو په نوم خپل فرمان كښې داسې ليكلي ووچې [علموا نساءكم سورة النور] يعني خپلو ښځو ته د سورۂ نور تعليم وركړئى .(۱) بل دا چې ددې سورت په شروع كښې د [سُوْرَةٌ اَنْزَلْنٰهَا وَفَرَضْنٰهَا] راغلى الفاظ هم ددې سورت اهميت ته اشاره كوى.

## خلاصه تفسير

﴿سُوْرَةٌ﴾ [ دايوسورت دې چه ددې ] الفاظو [ لره ] هم خاص ﴿اَنْزَلْنٰهَا﴾ [ مونږ نازل كړى دى ﴿وَفَرَضْنٰهَا﴾ او ددې ] معانيو يعني احكامو [ لره ] هم خاص [مونږ مقرر كړى دى] كه هغه فرض وى او كه واجب اوكه مستحب او مندوب ﴿وَاَنْزَلْنَا فِيْهَآ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ﴾ [ اومونږ] په دې احكامو ددلالت كولو دپاره [ په دې] سورت [ كښې صفاصفا ايتونه نازل كړى دى ﴿لَّعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ﴾ ددې دپاره چه تاسو پوهه شئ ] او عمل وكړئ ﴿اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ﴾ [زنا كوونكې ښځه اوزنا كوونكې سړې] ددواړو حكم دادې چه ﴿فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ﴾ [ په دوى كښې هريوه لره سل سل درې ووهئ ﴿وَّلَا تَاْخُذْكُمْ بِهِمَا رَاْفَةٌ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ﴾ او تاسو خلقو لره د الله تعالى په معامله كښې په دې دواړو يو ذره رحم راتلل نه دى پكار] چه گوند رحم پرې وكړئ او پريږدئ ئ او ياى په سزا كښې كمى وكړئ ﴿اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾[ كه تاسو په الله تعالى او دقيامت په ورځ ايمان لرئ ﴿وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ او د دواړو دسزا په وخت كښې دى د مسلمانانو يوه ډله حاضره شى ] چه ددوئ رسوائى وشى او ليدونكو او اوريدونكو ته عبرت حاصل شى

## معارف او مسائل

د دې سورت په ړومبى آيت كښې د يوې سريزې په حيثيت د دې د حكمونو خاص اهميت بيانول مقصود دى هركله چه په احكامو كښې د ټولو نه وړاندې د زنا د سزا بيان دې چه د دې سورت مقصود دې دې پسې د راتلونكو حكمونو شان دا وو چه د هغې نه په ورتيريدو او د هغې د حدونو نه په وتلو سره زناكولو ته نوبت رسيدلو كومه چه د الله تعالى د حكمونو نه سر غړونه ده دغه راتلونكى حكمونه د نظر حفاظت كول بې اجازته د چا كورته ورتلل او كتل كول دى ځكه د دې نه د راولاړيدونكې زنا سزا د نورو هغې سزا گانو [حدونو] په نسبت زياته او سخته ده كومې چه قرآن ټاكلې دى ،زنا پخپله هم يو سخت جرم دى او نور په سوؤنو جرمونه هم ځان سره راوړى چه نتيجې ئې د پوره انسانيت تباهى راخيژى كه تحقيق اوكړې شى نو په دنيا كښې د كيدونكو غټو غټو جرمونو مثلا دچا د وژلو لوټ مار وغيره كولو اصلى وجه به اكثر دا څر گنده شى چه د دې باعث دچا ښځې سره حرام تعلق لرل وو ځكه د دې سورت په اول سر كښې د زنا شرعى حد [سزا] اوښودلې شوه.

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۱۵۸] وشعب الإيمان رقم الحديث :[۲۴۲۸]

**زنا یو لوئ جرم دي او نور ډیر جرمونه پکښې راجمع دي څکه په اسلام کښې د دې سزا هم د ټولو نه لویه مقرره شوې ده** : قرآن کریم او احادیث متواتره دڅلورو جرمونو سزا او د هغې طریقه پخپله ټاکلې ده د قاضي یا د امیر رای ته ئې نه ده سپارلې دغې ټاکلو شوؤ سزاګانو ته د شریعت په اصطلاح کښې ،حد، وئیلې شي دې نه علاوه د نورو جرمونو سزا ګانې ئې داسې نه دي ټاکلې بلکه د امیر یا د قاضي رائې ته ئې پرېښودی دي چه هغه د مجرم حالت د جرم شان او چاپیریال وغیره [ټولو]ته دې اوګوري چه په څومره سزا ورکولو سره د دغې جرم مخ نیوې کولې شي هغه اومره سزا به ور کوي داسې سزا ګانو ته په شریعت کښې ،تعزیرات ، وئیلې شي شرعي حدونه څلور دي ،د غلا ،یوې پاک لمنې بي بي باندې د تورپورې کولوحد ،د شرابو څکلو، او د زناکولو حدونه ،(۱) دا څلور جرمونه په خپل خپل ځائ باندې هر یو ډیر سخت لوئي د دنیا امن و امان بربادونکې او د ډیرو خرابیانو مجموعه دی بیا په دې څلورو وارو کښې د ټولو نه زیات سنګین جرم زنا کول دی ولې چه د دې خرابې نتیجې او انجام انسانیت تباه کول او بربادول دی چې په نورو جرمونو کښې کم دی،دچا لور،خور اوښځې ته لاس اچول ګویا دهغه تباه کول دی ولې چه یو شریف انسان خپل ټول مال جائیداد او هر څه په داؤ کول زغملې شي خو خپلې مور خور لور بي بي ته د چا لاس اچول نشي زغملې ،چرته چه مونږ ګورو نو د دې تاؤ وهلې خلق دلاس اچونکي [زناکار] په وژلو.اوفنا کولوپسې اړم وی اودبدل اخستلودغه جوش نسلونه او خاندانونه تباه کوی

⑥ کوم قوم کښې چه زنا کول پاک نهٔ لري هلته د چا نسب محفوظ نهٔ پاتې کیږي چرته چه داخرابي پیدا شي نو خپله لور خور نشي پیژندلې کیدې اوپه نتیجه کښې د چا نکاح د خپلې لور، خور سره هم کیدې شي چه د زنا نه هم سخت جرم دې

⑦ چه په ژور نظر اوکتلې شي نو په دنیا کښې د بدامنۍ ،فتنو ،فسادونو غټ سبب ښځه کیدې شي او د دې نه په ډیره کمه مرتبه کښې مال کیدې شي کوم قانون چه د ښځې او دولت حفاظت په صحیح انداز کښې کولې شي او د ټاکلو شوؤ حدونو نه بهر وتلوته ئې پرې نږدی نو دغسې قانون د دنیا د امن ضامن جوړیدې شي دلته د زنا ټولې خرابۍ او ناکار والي په تفصیل سره بیانیدل نشي کیدې ،دلته دومره هم کافي دي چه په سرسري ډول په انساني معاشره کښې د دې تباه کاري بیان شوه ،په دې وجه د ټولو جرمونو په نسبت د زنا د جرم سزا اسلام ډیره سخته مقرره کړې ده چنانچه په دې آیت کښې ئې دا شان بیان راغلې دې .

﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ﴾ په دې آیت مبارک کښې ئې ښځه [زناکاره] اول ذکر کړه او سړې [زناکار] ئې روستو ذکر کړو اګر چه د دواړو [سړې او ښځه] زناکارو سزا یو شان ده عام قیاس داحکامو بیانولو دادې چې اکثر خو صرف نارینه مخاطب کولې شي او حکم ورته کولې شي ښځې هم په دې کښې ضمني طور باندې راځي ، ددوئ د مستقل ذکر کولو څه ضرورت هم نه راځي . ټول قرآن پاك کښې چې کومه د [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا] صیغه استعمال شوې ده او په هغې کښې چې کوم احکام بیان شوي دي په هغې کښې ښځې هم شاملې دي اګر چې ددوئ ذکر په کښې نشته دې.شاید چې ددې حکمت دادې چې څنګه الله ﷻ ښځوته په پړده کښې د اوسیدو حکم ورکړې دې څکه عمو ما د نارینو په ترڅ کښې زنانه هم په پړده کښې بیان شوې بیا

---

(۱) د ارتداد سزا چې ورسره یو ځائې کړې شي نو اکثرو فقهاؤ دحدودو تعداد شپږ بیان کړې دې. محمد تقی عثماني ۳ رجب ۱۴۲۷ هجري.

هم دا شک راپیدا کیدې شو چه ګنی دا ټول حکمونه هم د نارینؤ د پاره دی د ښځو د پاره نهٔ دی په دې وجه په خاص خاص آیتونو کښې د ښځوبیان هم ځان له په مستقل ډول داسې راغلې دې ﴿وَاَقِمْنَ الصَّلٰوةَ وَاٰتِيْنَ الزَّكٰوةَ﴾(۱)الاية ،بله خبره داده چه کله نارینه او زنانه په یو ځایٔ ذکر کولې شی نو د طبعی ترتیب په ډول اول نارینه ذکرکولې شی او ښځې روستو لکه فرمائی ﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْٓا اَيْدِيَهُمَا﴾(۲) د لته ئې نر غل اول بیان کړو او ښځه غله وریسې. خو دلته د زنانه په سزا کښې یو خو د نارینه او زنانه زناکارو ذکر ځان ځان له اوکړې شو زنانه د نارینؤ په ذکر کښې تابع اونهٔ ګر ځولې شوه بله دا چه زنا نه ئې اول ذکر کړه او نارینه ئې وریسې نو د دې ډیرحکمتونه کیدې شی یو دا چه عموما زنانه په طبعی ډول د رحم قابلې ګڼړلې شی که دلته ئې په ډاګه ذکر نهٔ وې راغلې نو دا شبه کیدې شوه چه ګنی دا به دسزا نه مستثنی وی ،بل دا چه زنانه ئې زکه وړاندې ذکر کړه چه زنا داسې یو بې حیائی ده چه ښځې نه ئې مخې ته راتلل د انتهائی بې پرواهئ او بې باکئ په وجه کیدې شی ولې چه الله تعالی د ښځې په مزاج کښې په فطری ډول دحیا او د خپلې پاک دامنئ د حفاظت کولو قوی جذبه ایښې ده او د دې د حفاظت د پاره ئې ډیر لویٔ اسباب راجمع کړې دی په داسې صورت کښې دسړی په نسبت د ښځې نه د زنا مخې ته راتلل زیات ناکاره شو خو د غلا معامله د دې نه اپوټه داسې ده چه الله تعالی نارینه ته د کار روزګار او د ګټې کولو طاقت ورکړې دې د لاسونو خپو په محنت او مشقت سره دخپلوضرورتونو حاصلولو د پاره ئې ورته موقعې ورکړې دی کله چه نارینه د دغې ټولو موقعونه پرې ور تیر شی او په غلا کولو لاس پورې کړی نو هغه د پاره دا ډیره د شرم خبره ده . په دې وجه په زنا کښې د زنا نه د سزا او په غلا کښې د نارینه د سزا بیان وړاندې اوکړې شو اوښځه چونکه په طبعی کمزورې ده نو که هغې غلا اوکړه نو د سړی په نسبت دا سپک او د کمې درجې ده.

﴿فَاجْلِدُوْا﴾ د ،جلد، معنی په درې وهل دی ولې چه دا لفظ د ،جلد ،نه مشتق دې چه څرمنې ته وئیلې شی او ،دره،هم عموما د څرمنې نه جوړولې شی ـــ ځنې مفسرینو رحمهم الله فرمائیلی دی چه درې ته جلد ځکه وئیلې شی چه د درې د ګزار اثر د انسان دڅرمنې پورې محدود وی غوښې ته ئې نهٔ رسی ،چنانچه رسول الله ﷺ د درې وهلو د دې شان بیان داسې فرمائیلې دې چه د دې وهل دې دومره سخت نهٔ وی چه د انسان غوښه دې ورسره رابرخیره شی او نهٔ دې دومره په مزه او رو اووهلې شی چه مجرم ته پرې هیڅ څه تکلیف نهٔ رسی -دلته اکثرو مفسرینو رحمهم الله د حدیث دا روایتونه سند او الفاظو سره لیکلی دی(۳)

**سل درې وهل ناوادهٔ کړی بنده[نارینه او زنانه]د پاره خاص دی د وادهٔ کړی بنده سزا سنګساری ده::** دا خبره یاده لرئ چه د زنا د سزا حکمونه پورئ په پورئ د سپکوالی نه سختوالی ته راغلی دی څنګه چه د شرابو حراموالې پورئ په پورئ پخپله قرآن کریم کښې راغلې دې او تفصیل ئې تیر شوې دې د ټولو نه اول د زنا د سزا حکم د سورۀ نسآء په آیت ،۱۵، ۱۶ ،کښې داسې تیر شوی دی ﴿وَالّٰتِيْ يَاْتِيْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآئِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَيْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ ۚ فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِي الْبُيُوْتِ حَتّٰى يَتَوَفّٰىهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ يَجْعَلَ

---

(۱) ترجمه:-او تاسو مونځ پابندی کوی او زکوة ورکوئ.
(۲) ترجمه:- او کوم سړې چې غلا اوکړی اویا ښځه غلا اوکړی نو ددې دواړو لاس پریکړئ.
(۳) تفصیل دپاره اوګورئ: موطا مالك، كتاب الحدود باب ماجاء فيمن اعترف علي نفسه بالزنا رقم الحديث [۳۰٤۸] والسنن الكبري للبيهقي رقم الحديث:[۱۸۰۲۹]

اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا ۝ وَالَّذٰنِ يَأْتِيٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا ۚ فَاِنْ تَابَا وَاَصْلَحَا فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمَا ۗ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا ۝﴾ [ يعنى څوک چه بدکاری اوکړی ستاسو په زنانوٴ کښې نو ګواه راولی پرې څلور نارينه د خپلو څنې ،بيا که هغوئ ګواهي اوکړی نو بندي لرئ دغه زنانه په کورونو کښې تر دې چه پورته کړی هغوی لره مرګ يا مقرره کړی الله تعالى هغوی د پاره څه لار ،او کوم دوه نارينه چه په تاسو کښې دغه بدکاری اوکړی نو هغوی ته تکليف ورکړئ بيا که هغوی توبه اوکړی او خپله اصلاح اوکړی نو د هغوئ خيال پريږدئ بيشکه الله تعالى توبه قبلوونکې مهروبان دې ]

د دې دواړو آيتونو تفسير او ضروری بيان په سورت نساء کښې بيان کړې شوې دې دلته ئې څکه دوباره ذکراوکړې شو چه د زنا د سزا ابتدائى دور مخې ته راشى په دې آيتونو کښې يو بيان دا راغلې دې چه د زنا ثبوت به د څلورو نارينو په ګواهۍ سره کيدې شى ،بله دا چه زنانه د پاره د زنا سزا په کور کښې ئې بند لرل دی او دواړو ته تکليف رسول بيان شوې دى دې سره دا بيان هم شوې دې چه د زنا د سزا دا حکم آخرى نه دې دې پسې ئې بل حکم هم راتلونکې دې لکه چه ﴿اَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا ۝﴾نه ثابتيږی ، د زنانوٴ د سزا بيان داسې اوشو چه په کور کښې ئې بنديوانی لرل کافى اوګرځولې شو او دواړو ته د تکليف ورکولو سزا کافى اوګرځولې شوه ،خو د دغې تکليف څه خاص صورت او خاص اندازه او حد بيان نهٔ کړې شو بلکه د قرآن د الفاظو نه معلو ميګى چه د زنا ابتدائى سزا صرف تعزيرى وه چه شريعت د هغې هيڅ حد بندی نهٔ وه کړې د قاضى يا امير په صوابديد او رائۍ باندې ئې اړه لرله په ،﴿اَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا ۝﴾ سره ديته اشاره اوکړې شوه چه په آئنده کښې د دې سزا بله طريقه هم جارى کيدې شى کله چه د سورت نور دا رومبې آيت نازل شو نوحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چه د سورة نساء ،﴿اَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا ۝﴾،وعده په دې سره پوره شوه چه نارينه او زنانه دواړو د پاره دا سزا سل درې وهل مقرر شو سره د دې حضرت ابن عباس رضي الله عنه د سلو درو سزا ورکول د ناواده کړی بنده د پاره مخصوص اوګرځول او وې فرمائيل ، ،يعنى الرجم للثيب والجلد للبكر،«(۱)[يعنى هغه بله طريقه د سزا ئې دا ده چه وادهٔ کړی به سنګسارولو سره ختمولې شى او ناواده کړی به سل درې وهلې شى ]

د سورت نور په دې آيت کښې د زنا سزا سل درې ښودلې شوې ده د وادهٔ کړی او نا وادهٔ کړی د سزا څه بيلتون پکښې نهٔ دې کړې شوې معلومه شوه چه دا بيلتون په حديث شريف سره ذکر کړې شوې دې لکه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلې دی ، ،﴿خذواعنى خذواعنى قدجعل الله لهن سبيلا البكر بالبكر جلد مائة وتغريب عام والثيب بالثيب جلد مائة والرجم﴾ يعنى مانه علم حاصل کړئ مانه علم حاصل کړئ چه الله تعالى په سورت نساء کښې د زنا د سزا کړې وعده اوس د سورهٔ نور په دې آيت کښې دا شان پوره کړه چه ناوادهٔ کړی د پاره سل درى وهل او د يو کال د پاره بې وطنه کول او وادهٔ کړی [نارينه او زنانه ] بنده د پاره سل درې او سنګسارى ده [حواله د ابن کثير ](۲)

په سورت نور کښې د ناوادهٔ کړی سزا صرف سل درې خودلې شوې ده او په دې حديث کښې زناکونکى نارينه ته ورسره يو کال د پاره د بې وطنه کولو سزا ورکول هم ښودلې شوې دی په دې باره کښې د فقهاؤ اختلاف داسې دې چه نارينه زنا کونکى د پاره څلورو درو سره د يو کليز بې

---

(۱) صحيح البخاري كتاب التفسير،باب سورة النساء [ج:۲ص:۶۵۷]

(۲) صحيح مسلم كتاب الحدود ، باب حد الزنا [ج:۲ص:۶۵] ،و سنن ابن ماجة، كتاب الحدود، باب حد الزنا . و مسند احمد ، حديث عبادة بن الصامت رضي الله عنه رقم الحديث [۲۳۳۳۴ ]

وطنۍ سزا ورکول لازمي دي یا د قاضي په صوابدید او رائې باندې اړه لري ؟ چنانچه د امام ابي حنیفه رحمه الله په نزد دا د قاضي په رائې او صوابدید باندې اړه لري بلکه خبره په دې حدیث کښې د آیت په نسبت دا زیاتي ده چه د سنګسارولو نه ړومبې به واده کړی بنده ته د سلو درو وهلو سزا هم ورکولې شي خو د حدیث د نورو روایتونو او د رسول الله ﷺ او د اکثرو خلفاؤ د عمل او معمول نه دا ثابتیږي چه دواړه سزا ګانې به نشي جمع کولې واده کړی بنده ته به صرف د سنګسارۍ سزا ورکولې شي په دې حدیث شریف کښې په خاص ډول دا خبره د نظر کولو جوګه ده چه رسول الله ﷺ په دې کښې د ، ﴿اَوۡ یَجۡعَلَ اللّٰہُ لَہُنَّ سَبِیۡلًا﴾، تفسیر فرمائیلې دې او د سورهٔ نور د آیت په تفسیر کښې د سلو درو سزا ورکول بیان شوې دی خو په دې باندې څه زیاتوالې داسې کړې شوې دې چه اول خو د سلو درو سزا ورکول ناوادهٔ کړی بنده د پاره خاص کړې شو دې باندې د یو کلیز د بې وطنه کولو سزا زیاتي کړې شوه او دریم زیاتوالې پکښې دا اوکړې شو چه واده کړی بنده د پاره د سنګسارۍ حکم او کړې شو ښکاره خبره ده چه د سورت نور په آیت کښې چه کوم زیاتوالې رسول الله ﷺ اوکړو هغه هم د الله تعالی په حکم او د هغه په وحی سره ئې اوکړو لکه قرآن کریم فرمائی ﴿وَمَا یَنۡطِقُ عَنِ الۡہَوٰی ؕ اِنۡ ہُوَ اِلَّا وَحۡیٌ یُّوۡحٰی ۙ﴾(¹) په دې بنا پیغمبر ﷺ او هغو د پاره چه د پیغمبر نه نیغ په نیغه وحی آورې هغه وحی چه په قرآن کریم کښې تلاوت کولې شي او هغه وحی چه تلاوت کولې نشي دواړه برابرې دي چنانچه پخپله رسول الله ﷺ د صحابه کرامو د عام جنعې په وړاندې په دې باندې عمل اوکړو ، په حضرت ماعز رضي الله عنه او غامدیه رضي الله عنها باندې ئې د رجم او سنګسارۍ حکم جاری کړو چه د حدیثو په ټولو کتابونو کښې په صحیح سندونو سره بیان کړې شوې دی دا شان د حضرت ابی هریره رضي الله عنه او حضرت زید بن خالد الجهني رضي الله عنه د هغې روایت مطابق چه په صحیحینو کښې راغلې دې چه یو ناوادهٔ کړې نارینه د یو وادهٔ کړې زنانه نوکر وو هغې سره ئې زنا اوکړه د هلک پلار دغه زنا کونکې هلک د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو د هغه په اقرار سره په هغه باندې زنا کول ثابت شو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ، لاقضین بینکما بکتاب الله ، [یعني زهٔ به ستاسو د دواړو تر مینځه فیصله د الله تعالی په کتاب کوم ] چنانچه په هلک باندې ئې د سلو درو سزا ورکولو حکم جاری کړو او زنانه د پاره ئې حضرت انیس رضي الله عنه ته د هغې د سنګسارولو حکم ورکړو حضرت انس رضي الله عنه چه زنانه له ورغلو هغې هم د خپلې زنا کولو اقرار اوکړو څکه پرې د سنګسارۍ حکم جاري کړې شو [ابن کثیر](²)

د دې حدیث مطابق هلک ته رسول الله ﷺ د سلو درو وهلو د سزا حکم واؤرولو او زنانه ته ئې د سنګسارۍ د سزا حکم واؤرولو دواړو سزاګانو ته ئې ، قضاء بکتاب الله ، [د الله تعالی په کتاب فیصله کول ] او فرمائیل سره د دې چه په سورت نور کښې یوازې د درو د سزا ورکولو بیان دې د سنګسارۍ د سزا بیان پکښې نشته لهذا د دې مطلب هم هغه دې چه رسول الله ﷺ ته د دې آیت مکمل تفسیر ، تشریح او تفصیلي حکم د وحی په ذریعه الله تعالی خودلې وو نو دا ټول د کتاب الله په حکم کښې شو ، اګر چه د دې څنې برخه په کتاب الله کښې ذکر شوې او تلاوت شوې نه وه -

---

(¹) ترجمه:- اودده ارشاد خالص وحی ده کومه چې په ده باندې لیږلې کیږي.

(²) صحیح البخاري کتاب المحاربین ، باب الإعتراف بالزنا [ج:۲ص:۱۰۰۸ ، ۱۰۰۹] و صحیح مسلم کتاب الحدود ، باب حد الزنا [ج:۲ص:٦٩]

د صحیح بخاري او مسلم وغیره کتابونو په حواله د حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه خطبه په روایت د ابن عباس رضي الله عنه منقول ده په دې باره کښې د صحیح مسلم الفاظ دا دي ﴿قال عمر بن الخطاب رضي الله عنه وهو جالس على منبر رسول الله صلى الله عليه وسلم ان الله بعث محمدا صلى الله عليه وسلم بالحق وانزل عليه الكتاب فكان مما انزل الله عليه اية الرجم قرانأها ووعيناها فرجم رسول الله صلى الله عليه وسلم ورجمنا بعده فاخشى ان طال بالناس زمان ان يقول قائل ما نجد الرجم في كتاب الله تعالى فيضلوا بترك فريضة انزلها الله وان الرجم في كتاب الله حق على من زنى اذا احصن من الرجال والنساء اذا قامت البينة اوكان الحبل اوالاعتراف [مسلم ص/۶۵ ج/۲]﴾[1]

[یعنی حضرت عمر رضي الله عنه په منبر د رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې ناست وو او وې فرمائیل چه الله تعالی محمد صلى الله عليه وسلم حق سره راولیږلو او په هغوی ئې کتاب نازل کړو په دغه نازل کړې شوی کتاب [قرآن ] کښې د رجم آیت هم دې چه مونږه اولوستلو او یاد مو کړو بیا رسول الله صلى الله عليه وسلم رجم اوکړو او مونږه هم د هغوی نه پس رجم اوکړو اوس زما دا ویره کیږی چه د زمانې په تیریدو څوک داسې اونه وائی چه مونږ خو د رجم حکم په کتاب الله کښې نۀ بیا موندو نو هغوی به د یوې فرضې حکم په پریښو گمراه شی کوم چه الله تعالی نازل کړې دې او پوهه شئ چه درجم حکم په کتاب الله کښې حق دې په هغو چه واده کړې نارینه یا واده شوې زنانه وی کله چه د دوی په زنا کولو باندې شرعی گواهی تیره شی یا د زنانه حمل شی یا پخپله [نارینه یا زنانه ] د دې اقرار اوکړی.

دا روایت په صحیح بخاری کښې هم په زیات تفصیل سره راغلې دې [بخاری ص،۱۰۰۹، ج ۲ ]، او په نسائی کښې د دې روایت څنې الفاظ دا دی ﴿: انا لا نجد من الرجم بدا فانه حد من حدود الله الا وان رسول الله صلى الله عليه وسلم قد رجم ورجمنا بعده ولولا ان يقول قائلون ان عمر زاد في كتاب الله ما ليس فيه لكتبت في ناحية المصحف وشهد عمر بن الخطاب وعبد الرحمن بن عوف وفلان وفلان ان رسول الله صلى الله عليه وسلم رجم ورجمنا بعده الحديث [ابن كثير]﴾[2]: [یعنی مونږه د رجم د حکم نه خلاصې څکه نۀ بیا مومو چه دا د الله تعالی د حدونو څنې یو حد دې رسول الله صلى الله عليه وسلم د رجم حکم به کولو مونږه هم د هغوی نه پس د رجم حکم کوو ،او که د خلقو نه م دا خطره نۀ کیدې چه په ما باندې به په کتاب الله کښې د زیاتی کولو تور پورې کړی نو ما به د قرآن په یو گوټ کښې دا لیکلی وو ،عمر بن الخطاب ،عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه او فلانې فلانې گواه دی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د رجم حکم کړې وو او د هغوی نه پس مونږه هم د رجم حکم کوؤ [ابن کثیر ]

د حضرت عمر رضي الله عنه د دې خطبې نه په ظاهره دا ثابتیږی چه د رجم د حکم په باره کښې څه مستقل آیت هم شته چه د سورت نور د دې آیت نه علاوه دې خو حضرت عمر رضي الله عنه نۀ د دغې آیت الفاظ اوښودل او نۀ ئې دا اوفرمائیل چه د سورة نور د آیت نه علاوه دا څان له یو بل آیت دې نو په قرآن کریم کښې ولې نشته او ولې د دې تلاوت نشی کولې صرف دومره ئې اوفرمائیل ،،چه خلق به را باندې په قرآن کریم کښې د زیات والی راوستو تور پورې کړی نو دغه وخت به م د قرآن کریم دا آیت یو طرف ته لیکلې وو،، [حواله د نسائی ][3] که ژور نظر واچولې شی نو د حضرت عمر رضي الله عنه د دې فرمائیلو نه مطلب دا څر گندیږی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم هم د سورة نور د دې آیت تشریح او تفسیر داسې فرمائیلې دی چه ناواده کړی بنده له د زنا سزا سل درې وهل او واده کړی له سنگسارول دی او د هغوی د عملی کولو نه هم دا ثابتیږی او څکه ئې ورته کتاب الله یا د

[1] ) صحیح مسلم کتاب الحدود ، باب حد الزنا [ج:۲ص:۶۵]
[2] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۶ ص:۶] و مسند احمد رقم الحدیث:[۱۵۸]
[3] ) مسند احمد ، مسند عمر بن الخطاب رضي الله عنه رقم الحدیث:[۱۵۶]و کنز العمال رقم الحدیث:[۱۳۵۱۳]

کتاب الله آیت اوفرمائیلو چه د رسول الله ﷺ دغه تشریح ،تفسیر او عملدر آمد د کتاب الله په حکم سره دی چه مستقل آیت نهٔدې د حضرت عمر رضی الله عنه د فرمائیلو مطلب هیچرې دا نهٔ را خیژی چه ګنی د رجم یو مستقل آیت شته دې ورنه د خلقو د ویرې به ئې په قرآن کریم کښې د دغې آیت لیکل هیچرې نهٔ وې پریښې او دا سې به یې نهٔ وو فرمائیلې چه ما به د قرآن کریم په ګوټ کښې دغه آیت لیکلې وې ولې چه هغوی د دین په باره کښې ډیر مظبوط انسان مشهور وو ـــ د څنې روایتونو له مخې په دې مقام چه د یو مستقل آیت کوم الفاظ منقول دی هغه د اسناد او ثبوت په لحاظ سره داشان نهٔ لری چه په قرآن کریم کښې دغه آیت اضافه اولیکلې شی فقهاؤ ﷺ چه دې ته منسوخ التلاوة او یا منسوخ الحکم آیت وئیلې دی نو هغه ئې د مثال پیش کولو په حیث وئیلې دی هغې نه دا نهٔ ثابتیږی چه ګنی دغه د قرآنی آیت الفاظ دی ـ

خلاصه د کلام دا شوه چه د رسول الله ﷺ په تشریح او تفسیر سره د سورهٔ نور د دې آیت له مخې ناواده کړی بنده لره د زنا سزا سل درې وهل دی او د وادهٔ کړی سزا رجم [سنګسار]دې چنانچه د رسول الله ﷺ خوځو واره په دې عمل کول هم په تواتر سره ثابت دی او مونږ ته په تواتر سره رارسیدلې دی . په دې وجه دا هم وئیلې شی چه د رجم حکم د کتاب الله حکم دې او دا هم وئیلې شی چه د دې ثبوت په سنت متواتره سره یقینی دې .څنګه چه حضرت علی رضی الله عنه هم فرمائیلی دی چه د رجم حکم د سنت نه ثابت دې[1] اوحاصل د دواړو هم یو دې.

**[یو ضروری خبرداری]**:: چرته چه مونږ واده کړی یا ناواده کړی لیکلی دی هغې د پاره اصلی الفاظ ،محصن ،او غیر محصن یا ثیب او بکر په حدیث کښې راغلی دی دمحصن شرعی تعریف دادې چه چا له نکاح صحیح له مخې خپلې بی بی سره کور والې کړې وی خوعاقل هم وی [لیونې نهٔ وی] مطلب دادې چې د احکامو په ذکر کښې بهٔ په هر ځائې هم داْ معنی لری .

**دزنا په سزا کښې پوړۍ په پوړۍ درجې**:: دحدیث شریف په تیرو شوؤ روایتونو او د قرآن کریم په آیتونو باندې غور کولو نه معلومیږی چه په شروع کښې د زنا سزا سپکه ایښودې شوې وه چه دقاضی په رائې او صوابدید باندې به ئې اره لرله هغه به نارینه او زنانه دواړوته په خپله خوښه او رائې څه تکلیف رسولې شو او زنانه به ئې په کور کښې بندیوانه ساتلې شوه لکه په سورت نساء کښې ئې حکم راغلې دې د دې دویم دور او دویمه پوړۍ هغه ده چه د سورت نور په دې آیت کښې داسې بیان شوې ده چه دواړه دې سل سل درې اووهلې شی دریم دور ئې هغه دې چه د دې آیت د نازلیدونه پس رسول الله ﷺ داسې ارشاد اوفرمائیلو چه سل سل درې به ناواده شوی وهلی شی او واده شوی به سنګسارولې شی.

**په اسلامی قانون کښې د کوم جرم سزا چه سخته وی د هغې د ثبوت د پاره شرطونه هم سخت ایښودې شوېدی**

::څنګه چه پورته بیان شوی دی چه د زنا سزا په اسلام کښې د ټولو جرمونو د سزا ګانو نه زیاته سخته ده د دې د ثبوت د پاره په اسلامی قانو ن کښې شرطونه هم زیات سخت ایښودې شوی دی په هغې کښې چه لګ څه کمې وی یا شک شبه په کښې راپیدا شی نو د زنا انتهائی سزا [حد]معاف شی صرف تعزیری سزا به دجرم په مناسب ورکولې شی په ټولو معاملو کښې د دوؤ نارینؤ یا د یو نارینه او دوؤ زنانؤ ګواهی د ثبوت د پاره کافی ګیدې شی خو د زنا حد جاری کولو

[1]) مسند احمد، مسند علی بن ابی طالب رضي الله عنه رقم الحديث:[٧٢٧] و مصنف عبدالرزاق رقم الحديث:[١٣٣٥٦]

د پاره د څلورو نارینو چشم دید گواهي ضروري شرط دې کومه کښې چه څه شک شبه نۀ وي ځکه چه د سورة نساء په آیت کښې تیر شوې دی په دې گواهۍ کښې یوه بله سختي او دشواري داده چه د څه شرط د نشتوالي په بنا باندې د کومو گواهانو د زنا گواهي چه رد کړې شوه نو هغوی به د دروغو تور پورې کولو مجرمان گرځولې شي او اتیا اتیا درې حد قذف به پرې جاري کولې شي ځکه خو به څوک په آسانه د زنا گواهۍ ته غاړه نۀ اږدي البته په کوم صورت کښې چه د ډاکیزې زنا ثبوت نۀ وي په گواهۍ سره صرف دا ثابت شي چه نارینه او زنانه په یو ناروا حالت کښې لیدلې شوې دي نو قاضي د جرم په مناسبت سره د درو وهلو وغیره تعزیری سزا پرې جاري کولې شي . دزنا د سزا او د دې د شرطونو تفصیلي احکام د فقه په کتابونو کښې بیان شوې دي هلته ئې کتلې شي.

**د یو نارینه یا څناور سره دبدکارئ کولو حکم:**: نر په نر یا څه څناور او څاروی سره دغسې بدکاري کول اگر چه په لغت او اصطلاح کښې زنا نشي بللې او نۀ د دې سزا ته حد ونیلې شي لیکن سزا ئې په سختوالي کښې د زنا د سزا نه څه کمه هم نۀ ده تفصیل ئې د سورت نساء په تفسیر کښې تیر شوې دې چنانچه صحابه کرامو رضي الله عنهم داسې یو نارینه ته د ژوندي سوځولو سزا ورکړې ده[1]

﴿وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ﴾ هر کله چه د زنا سزا ډیره سخته ده دا احتمال کیدې شي چه سزا جاري کوونکې پکښې د زړه سواندۍ نه کار واخلي د سره سزا ورنۀ کړي یا څه کمه ئې کړي ځکه داحکم ورکړې شو چه یو ډیر ضروري دیني فرض ادا کولو کښې دې په مجرمانو باندې د زړه سواندۍ او ترس کولو نه کار وانخلي ځکه چه د دې مطلب په ټولو خلقو باندې بې ترسي او بې رحمي کول دی چه ناروا دی .

﴿وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَائِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ [د زنا دجاري کولو په موقعه پکار دی چه د مسلمانانو یوه ډله دې موجوده وي ، په اسلام کښې د عامو خلقو په وړاندې د ټولو سزا گانو او خصوصا د حدونو جاري کولو طریقه رواج لري خو د یوې ډلې د موجود گۍ حکم ورکول د زنا د سزا سره خاص دی.

**په اسلام کښې اول حکم دادې چه د چا په جرم دې پرده واچولې شي لیکن کله چه معامله په گواهۍ سره ثابته شي نو بیا د مجرمانو پوره شرمول هم حکمت گڼر ګڼولې شوېدي**:: د فحاشي او بې حیایۍ د بندیز په غرض اسلامي شریعت تر لرې لرې پورې پیرې لگولې او کینولې دی چنانچه زنانۀ د پاره پرده کول لازم کړې شو نارینۀ ته دا حکم ورکړې شو چه خپل نظر دې ښکته لري د زنانه آواز او د هغې د کالي [زیوراتو] آواز منع او گرځولې شو ولې چه دا بې حیایۍ ته لار ورکوونکي دی خو بیا هم په دې کښې بې احتیاطي کوونکوله په تنها یۍ کښې دپوهولو حکم دې د شر مولو اجازت ئې نشته البته څوک چه دغه ټول بندیزونه مات کړي او داسې حد ته اورسي چه جرم ئې په شرعي گواهۍ سره ثابت شي نو په داسې حالت کښې په هغه باندې پرده اچول نور خلق دغې جرم ته را بلل دی هم دغه وجه ده چه تر دغې وخته پورې شریعت پرده اچول ضروري گرځولي وو اوس د مجرم شر منده کول ضروري گرځوي یعنې د زنا سزا یواځې په عام ځای کښې ورکول ئې ضروري او نۀ گرځول بلکه دا حکم ورکړې شو چه د مسلمانانو یوه ډله دې خامخا په دغه موقعه حاضره وي .

[1] ) تفصیل دپاره اوګورئ:-سنن البیهقي کتاب الحدود باب ماجاء في حد الوطي رقم الحدیث :[۱۷٤۸٤]

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلزَّانِيْ | لَا يَنْكِحُ | اِلَّا | زَانِيَةً | اَوْ مُشْرِكَةً |
| زناكار سړى د | نكاح نه كوى | مگر | دزناكارې ښځې سره | يادمشركې ښځې سره |
| ازناكار سړې زناكارې ښځې يا مشركې ښځې نه سوا بل چا سره | | | | |
| وَّالزَّانِيَةُ | لَا يَنْكِحُهَآ | اِلَّا | زَانٍ | اَوْ مُشْرِكٌ |
| او زناكاره ښځه چې ده | نكاح دنه كوى دهغې سره | مگر | زناكار سړې | يا مشرك سړې |
| نكاح نه كوى اوزناكارې ښځې سره هم بغير دزناكار سړې يا مشرک سړی نه بل څوک نكاح نه كوى | | | | |
| وَحُرِّمَ | ذٰلِكَ | عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ | | |
| او حرام كړې شوى دى | دغه | په مومنانو باندې | | |
| اودا عمل [ دزنا] په مومنانو حرام كړې شوې دې | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

زانى سړې چه نكاح كوى نو دزناكارې يا مشركې زنانه سره نكاح كوى، او زناكاره ښځه چه نكاح كوى نو د هم هغه سړى سره چه خپله زناكار وى، يا مشرک وى، او دا خبره د مومنانو دپاره حرام كړې شوې ده.

## خلاصه تفسير

زنا داسې گنده شې دې چه په دې سره دانسان طبعت او مزاج وران شى او بدو خيزونو طرف ته دده رغبت پيداشى دداسې سړى طرف ته رغبت هم دچا داسې خبيث النفس كيدې شى چه اخلاقى مزاج ئې وران شوې وى چنانچه ﴿اَلزَّانِيْ﴾ [ زناكار] دخپلې زنا كارئ او زنا طرف ته درغبت په وجه سره ﴿لَا يَنْكِحُ اِلَّا زَانِيَةً اَوْ مُشْرِكَةً﴾ [ نكاح هم دچاسره نه شى كولې بغير دزناكارې او مشركې ښځې نه او] دغه شان ﴿وَّالزَّانِيَةُ﴾ [ دزنا كارې سره هم ] ددې دزنا كارئ او زنا طرف ته درغبت په وجه سره ﴿لَا يَنْكِحُهَآ اِلَّا زَانٍ اَوْ مُشْرِكٌ﴾ [ بل څوك نكاح نه شى كولې بغير دزنا كار سړې اومشرك نه ﴿وَحُرِّمَ ذٰلِكَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ او دا] داسې نكاح كوم چه دزنا كارې دزنا كارئ په حيثيت سره وى چه نتيجه ئې اننده هم ددې په زنا كښې اخته كيدل دى يا دمشركې ښځې سره وى [ په مسلمانانو حرام] او موجب دگناه [گرځولې شوې دې ] اگر چه په صحت او عدم صحت په دواړو كښې فرق وى چه زناكاره په حيثيت دزنا كارئ سره څوك ورسره نكاح وكړى نو دگناه والى باوجود نكاح منعقد كيږى او صحيح كيږى او كه دمشركې سره ئې نكاح وكړه نو د ناجائز اوگناه والى نه علاوه دغه نكاح دسره كيږى نه اوباطله به وى

## معارف او مسائل

**د زنا په باره كښې دويم حكم** ::دلته د زنا اول حكم د دې د سزا وو چه په ړومبى آيت كښې تيرشو ،اوس دويم حكم زنا كار نارينه او زنانه سره د نكاح كولو دې چه ورسره د مشرك نارينه او مشركې زنانه سره د نكاح حكم تړل كړې شو ،د دې آيت په تفسير كښې د تفسير د امامانو مختلف قولونه منقول دى په دې تولو كښې زيات آسان او بې داغه تفسير هم هغه معلو ميږى كوم چه د تفسير په خلاصه كښې د بريكټونو تر منځه د وضاحتونو په ذريعه بيان كړې شوې دې خلاصه د هغې دا ده چه د دې آيت د شروع برخه څه شرعى حكم نه بلكه عام ليدل كتل او تجربه

بیان شوې ده چه په کښې د زنا د ناکار والی او د هغې ضررونو بیان دې چه خراب اثر ئې تر لرې پورې خواره دی د آیت مطلب دا دې چه زنا یو قسم اخلاقی زهر دی چه د دې زهرجن اثرونو سره د انسان اخلاقی مزاج وران ویجاړ شي ، د ښه او خراب تر مینځه فرق نشي کولې بلکه خرابی او پلیتی ورته زړه پورې شي ، دحلالو حرامو ترمینځه د فرق کولو تکل نهٔ کوی او کومه زنانه ئې چه خوښه شي د هغه اصلی مقصود د هغې سره زناکول او په زنا باندې د هغې راضي کول وی که د زنا په اراده کښې کامیاب نشي نو د مجبورئ نه په نکاح کولو راضي شي خو په زړه کښې ورته نکاح خوښ نهٔ وی ولې چه د نکاح مقصدونه هغه په خپل ځان باندې پیتې ګنړی ، چنانچه د نکاح مقصدونه دا دی چه انسان پدې پاک لمنه پاتې کیږی نیک اولاد ترې پیدا شي او د دې په خاطر د خپلې ښځې د حقونو [خرڅ خوراک وغیره ] پابند پاتې کیدل ضروري شي – هر کله چه د داسې انسان په اصل کښې نکاح سره هیڅ غرض نهٔ وی په دې وجه د هغه شوق یوازې مسلمانانو زنانو سره نهٔ بلکه مشرکانو زنانو سره هم وی که مشرکه زنانه د خپل مذهب په وجه او یا د قامی خاندانی رسم په وجه د نکاح کولو شرط او لګوی نو د مجبورئ نه ورسره دې کولو ته هم تیار شي هغه د دې د معلومولو هیڅ تکل نهٔ کوی چه د شریعت له مخې دغه نکاح به صحیح وی او که د سره به شوې هم نهٔ وی ځکه دا خبره هم دهٔ سره جوړیږی چه کومه زنانه ئې زړه پورې وی که هغه مسلمانه وی نو د اول نه به زناکاره وی یا دهٔ سره په زنا کولو به زناکاره بللې شي او که مشرکه زنانه ئې زړه پورې وی نو هغې سره نکاح کول به هم د زنا په حکم کښې وی دا ددې آیت د رومبئ جملې : ﴿ٱلزَّانِي لَا يَنكِحُ إِلَّا زَانِيَةً أَوْ مُشْرِكَةً﴾ معنی شوه .

دغه شان کومه زنانه چه د زناکارئ عادت وی توبه ترې نهٔ اوباسی نو داسې ریښتونې مسلمان ته به هیچرې زړه پورې نهٔ ګرځی د کوم اصلی مقصد چه نکاح کول او د نکاح کولو شرعی فائدې او مقصدونه وی ، ولې چه دغه زناکارې زنانه نه خو د دې امید نشي کیدې ، خصوصا چه دا هم معلومه وی چه د نکاح نه پس به هم دغه زنانه د خپل دغه ناکاره عادت [زنا] نه نهٔ آوړی ، البته دغسې زنانه به زناکار نارینه ته زړه پورې خوښه وی چه اصلی مقصد ئې خپل خواهش پوره کول وی ، نکاح کول ئې مقصود نهٔ وی په داسې صورت کښې که دغه زناکاره زنانه ورسره د نکاح کولو شرط په دې غرض او لګوی چه د دغه زناکار نارینه نه خپل دنیوی غرض پوره کړی یا ورسره چه یو ځائ شي او سره ملګری شي نو په ناخوابښئ سره نکاح ته هم غاړه کیږ دی یا داسې زنانه سره مشرک نارینه نکاح کولو ته غاړه اږدی چه ورسره د شریعت له مخې نکاح نهٔ کیږی په دې وجه یو خو مشرک سره نکاح کول شو اوبل زناکول شو ځکه چه دغه نکاح د سره کیدې نشي دا د دې آیت د دویمې جملې ﴿وَٱلزَّانِيَةُ لَا يَنكِحُهَآ إِلَّا زَانٍ أَوْ مُشْرِكٌ﴾ معنی شوه ،

دې بیان شوی تفسیر نه دا خبره واضحه شوه چه په دې آیت کښې د ، زاني ، او ، زانية ، نه مراد داسې زناکار دی چه د زنا نه توبه نهٔ اوباسی که داسې اوشی نو چه یو زناکار سړې د کور جوړولو یا د اولاد د نیک کیدو په خاطر یو پاک لمنې شریفې زنانه سره نکاح اوکړی یا دغسې [زناکاره] ښځه په ښه نیت یو نیک سړی سره نکاح اوکړی نو په دې آیت کښې د داسې نکاح د نهٔ کیدو هیڅ اشاره نشته بلکه د شریعت له مخې به دغه نکاح درست شي – د امت د جمهورو فقهاؤ رحمهم الله امام ابی حنیفه رحمه الله امام مالک رحمه الله امام شافعی رحمه الله وغیره هم دا مذهب دې او صحابه کرامو رضی الله عنهم نه د داسې نکاح کولو واقعات ثابت دی په تفسیر ابن کثیر کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنه

هم دافتوی منقول ده (۱)، د آیت آخری جمله کښې فرمائی ﴿وَحُرِّمَ ذٰلِكَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ۝﴾ دلته ځنې مفسرینو ﷭ د ،ذالک، اشاره زنا ته ګرځولې ده .په دغې بنا د جملې معنی دا شوه چه هر کله زنا یو داسې ناکاره کار دې نو ځکه مؤمنانو باندې حرام او ګرځولې شوه د دې تفسیر له مخې په معنی کښې خو هیڅ څه مشکل نهٔ را پېښیږی خو ،﴿ذٰلِكَ﴾،سره زنا ته اشاره کول مراد اخستل د آیت د روانۍ نه څه قدرې لرې ضرور دی په دې وجه نورو مفسرینو ﷭ د ،﴿ذٰلِكَ﴾ اشاره د زانی او زانیې ،مشرک او مشرکې نکاح اړخ ته ګرځولې ده چنانچه مشرک او مشرکې سره د مسلمانانو د نکاح حرام والې د قرآن کریم د نورو نصونو [ځرګندو حکمونو] نه هم ثابت دې چه د ټول امت په نزد اجماعی مسئله ده خو د یو زناکار بنده بل نیکو کار او پاک لمنه بنده سره نکاح کول به هغه صورت کښې حرام وی چه د نکاح کولو نه پس هم د خپلې ښځې یا خاوند په زنا کارۍ باندې راضی وی دې کښې زیات شرمیدلې صورت هغه دې چه د نکاح نه پس هم د خپلې ښځې په زناکارۍ باندې ئې خاوند راضی وی ولې چه دا یو بې غیرتی ده بهرحال دا ځکه حرام دی چه ګناه کبیره ده خو بیاهم د شریعت له مخې به دغه قسم نکاح صحیح وی . د حرام لفظ د شریعت په اصطلاح کښې دوه معنی ورکوی یوه معنی د ګناه ورکوی چه د هغې کونکې به په آخرت کښې د سزا حقدار وی لیکن په دنیا کښې به پرې څه فائدې مرتب کیږی او معامله به ئې صحیح وی مثلا یوه زنانه په تګئ سره راپټه کړې شی راولی او د شرعی قاعدې مطابق د دوؤ ګواهانو په وړاندې د هغې په خوښه ور سره نکاح اوکړی نو دغه تګی کول اګر چه ناجائزه او حرام وو خو نکاح ئې صحیح شو او لاده به ئې جائز وی د اولاد نسب به ئې ترې ثابت وی دغسې دنکاح د زناکار او پاک لمنې زنانه تر مینځه چه اوشی او اصل مقصود ئې ترې زنا وی یوازې د څه دنیوی غرض د پاره ئې نکاح کړې وی او د زنا نهٔ توبه نه کوی نو داسې نکاح کول اګر چه حرام دی خو په دنیوی احکامو کښې باطل او د نیشت په تو ګه نهٔ دی ، د نکاح شرعی نتیجې مثلا خرڅ خوراک ،مهر ، نسب، ثابتیدل او میراث وغیره ټولې پرې مرتب او جاری کیږی -

بله معنی دا ورکوی چه د دې کونکې په آخرت کښې د سزا هم حقدار دې او په دنیا کښې ئې هم دغه عمل بیخی بې اثره باطل او د نیشت برابر دې په دې باندې هیڅ شر عی فائده په دنیا کښې نه مرتب کیږی مثلا مشرکې زنانه یا هغې زنانه سره نکاح کول کومې چه همیشه د پاره حرامې دی نو داسې نکاح په شریعت کښې د نیشت برابر ده لویه ګناه هم ده په زنا او د دې کښې هیڅ فرق نشته - دا شان په دې آیت کښې د ،حرم ، روموبئ معنی د زانی او زانیې د نکاح په باره کښې واخستې شوه او دویمه معنی د مشرک او مشرکې د نکاح په باره کښې واخستې شوه ،په دې بنا د دې آیت د منسوخ ګڼړلو ضرورت پاتې نشو ځنګه چه ځنې مفسرینو ﷭ فرمائیلی دی [والله سبحانه و تعالی اعلم]

---

۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٦ ص:۱۳]

| |
|---|
| وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ |
| او هغه کسان \| چې د زنا الزام لګوی \| |
| او هغه خلق چې په پاک دامنو |
| الْمُحْصَنٰتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوْا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ فَاجْلِدُوْهُمْ |
| په پاك لمنو ښځو باندې \| بيا \| رانهٔ ولی هغوئ \| څلور \| ګواهان \| نو اووهئ هغوئ |
| ښځو باندې تهمتونه اولګوی \| بيا پرې څلور ګواهان پيش نکړې شی \| نو هغوئ |
| ثَمٰنِيْنَ جَلْدَةً وَّلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا وَاُولٰٓئِكَ هُمُ |
| اتيا \| درې \| او مهٔ قبلوئ تاسو \| دهغوئ \| ګواهئ \| هميشه \| او دغه کسان \| پخپله هغوئ |
| اتيا درې اووهئ \|............ او بيا دپاره هيڅ کله دهغوئ ګواهئ مه قبلوئ \| او هم دغه خلق |
| الْفٰسِقُوْنَ ۝ اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ وَاَصْلَحُوْا |
| فاسقان دی \| سوا دهغه کسانو نه \| چې توبه ئې اوويستله \| روستو \| ددې نه \| او نيك ئې کړو عمل خپل |
| بد کرداره دی \| مګر څوک چې ددې کار نه پس توبه اوباسی \| او دخپلو عملونو اصلاح اوکړی |
| فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ |
| پس بيشکه الله \| ښنونکې \| مهربانه دې \| |
| نو بيشکه الله ﷻ ډير بخښونکې مهربان دې \| |

## آسان ترجمه قرآن

او کوم خلق چه په پاکو زنانو باندې تهمت اولګوی، بيا څلور ګواهان رانه ولی، نو هغوی ته اتيا کوړې ورکړئ او د هغوی ګواهی مه قبلوئ ، او هغوی خپله فاسقان دی. خو چه کوم خلق خپله توبه اوکړی، او (خپله) اصلاح اوکړی، نو الله پاک ډير بخښنه کونکې، او ډير رحم کونکې دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَالَّذِيْنَ﴾ [ او کوم خلق چه] ﴿يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ﴾ دزنا [ تهمت ولګوی په پاکدامنو ښځو دکومې چه زناکاره کيدل په څه دليل يا شرعی نخښې سره ثابته نه وی ﴿ثُمَّ لَمْ يَأْتُوْا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ﴾ [ اوبيا څلور ګواهان] په خپله دعوی [ پيش نه کړې شی ﴿فَاجْلِدُوْهُمْ ثَمٰنِيْنَ جَلْدَةً﴾ نو داسې خلقو لره اتيا درې اووهئ ﴿وَّلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا﴾ او ددوی هيڅ ګواهی چرې مه قبلوئ] دا هم د تهمت لګولو دسزا بدله ده چه دوی دهميشه دپاره مردود الشهادت شول دا خو ددنيا دسزا ذکروو ﴿وَاُولٰٓئِكَ﴾ [او دا خلق ] په اخرت کښې هم دسزا مستحق دی ځکه چه ﴿هُمُ الْفٰسِقُوْنَ﴾ دوئ [فاسقان دی ﴿اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ﴾ ليکن کوم خلق چه ددې نه پس ] الله تعالی ته [ توبه وباسی] ځکه چه په تهمت لګولو کښې دوی دالله تعالی نافرمانی وکړه اودالله تعالی حق ئې ضائع کړو [او] په چاچه ئې تهمت لګولې وودهغې نه ئې معافی هم وغوښتله ﴿وَاَصْلَحُوْا﴾ [ او خپله اصلاح ئې وکړه] ځکه چه دهغې حق ئې ضائع کړې وو ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝﴾ [ نو الله تعالی

خامخا بخښنه کوونکې او رحمت کوونکې دی ] یعنې په رښتوني توبه کولو سره به يې د اخرت عذاب معاف شي اګر چه دشهادت نه قبلیدل کومه چه دنیوی سزا وه دغه به باقي وی ځکه چه دغه دشرعي حدجزء دې او دجرم دثبوت نه پس په توبه کولو سره شرعي حد نه ساقطیږي

## معارف او مسائل

**د زنا په باره کښې دریم حکم دا دې چه په دروغه تور پورې کول جرم دې او د هغې شرعي حد.**

وړاندې هم بیان شوی دی چه د زنا په جرم سره په معاشره او چاپیر یال کښې د نورو ټولو جرمونو نه زیات اړې ګړې پیدا کیږي ځکه اسلامي شریعت د دې سزا هم د نورو جرمونو په نسبت زیاته سخته ایښې ده چنانچه عدل او انصاف په دې شان کیدې شو چه ددې معاملې ثابتیدو له لونې شان ورکړې شي چه د شرعي ثبوت نه بغیر څوک په چا نارینه باندې د زنا د تور پورې کولو زرورتیا اونکړې شي په دې وجه کله چه څوک د شر عي ثبوت [څلوروګوهانو پیش کولو] نه بغیر په چا باندې ښه په ډاګه د زناکولو تور پورې کړی نو د هغه سزا ئې اتیا درې اوټاکله چه هیڅوک د زنا تور په چا باندې تر هغې او نۀ لګولې شي چه ده سره نور درې ګواهان [ټول څلور ګواهان] په دې شان ګواهي اونۀ کړی چه دغه زنا کول ئې په خپلو سترګو لیدلې دی که ګواهان د څلورونه کم وی یا د هغوئ دګواهئ په ورکولو کښې څه شک شبه اوکړې شي نو یواځې سړې د زنا په ګواهئ ورکولو سره پخپله د سزا [اتیا درو وهلو ] حقدار ګرځی ځکه به په یواځې ځان دې لوئ بامبیر پورته کولو د پاره نۀ را وړاندې کیږي .

**یوه شبه او د هغې جواب**: دلته دا شبه پیداکیده چه هر کله ئې د زنا د سزا ورکولو دومره سخت شرطونه کیښول چه د هغې په نۀ پوره کیدو سره ګواهي ورکونکی ته هم سخته خطره تر دې حده پیښیدې شی چه پخپله به د سزا حقدار اوګرځی نو بیا خو به هیڅوک د زنا ګواهئ ورکولو ته نۀ تیاریږي او په دې شان به زناکار خلق ښه په آزادئ سره زنا کولوته بلې او وهی د دې جواب دا دې چه دغه شرطونه د زنا د ګواهئ سره دی چه سزا ئې سل درې یا سنګسارول دی که د زنا د ګواهئ شرطونه نۀ برابریږی نو د زنانه او نارینه د بیحیایئ په حالت کښې د یو ځائ کیدو ګواهي دې کوی چه په ثابتیدو سره به ئې تعزیر وی یعنې قاضی ورته دخپلې خوښې مناسب سزا ورکولې شي ګنې نو ګواهي کوونکی ته خو به څه سزا نۀ شي ورکولې.

**محصنات څوک زنانه کیدې شي**: دا لفظ د احصان نه مشتق دې چه دوه قسمه لري یو قسم احصان هغه دې چه په حد د زناکښې داسې معتبر ګرځولې شوې دې چه هغه عاقل ،بالغ ،او آزاد مسلمان بنده وی او چا سره ئې صحیح نکاح کړې وی چه کور والې هم په کښې شوې وی مطلب دا چه د داسې محصن سړې او محصنې زنانه سزا او حد به رجم او سنګساری وی ،او بل قسم احصان هغه دې چه په حد قذف کښې معتبر ګنړلې شوې دې یعنې په دې آیت کښې د ،محصنت ، نه مراد هغه زنانه اخستې شوې دی چه هغه عاقلې بالغې او پاک لمنې وی او د دې نه وړاندې چرې هم پرې د زنا ثبوت نۀ وی شوې [جصاص ][1]

**[مسئله]** دلته د آیت د شان نزول یا د قرآن کریم د عام مشهور عادت مطابق د زنا د تور پورې کولو بیان داسې شوې دې چه نارینه په زنانه باندې د زنا تور پورې کړی خو هرکله چه علت او باعث شریک وی نو دا حکم د هغه وخت او موقعې د پاره هم دې چه تور پورې کونکې نارینه په نارینه

[1]) أحكام القرآن للجصاص تحت تفسير سورة النساء [ج: ٤ص:٢٧٦ ، ٢٧٧] وتفسير تحت هذه الآية [ج:٨ ص:٣٧]

وي زنانه په نارينه وي يا نارينه په زنانه وي او شرعي ثبوت موجود نه وي نو په هر صورت کښې په تور پورې کونکې د حد قذف حقدار وي [جصاص و هداية ] (1)

[مسئله] دلته په آيت کښې د زنا تور پورې کول مراد دي چه د شريعت له مخې د هغې د ثبوت د نيشتوالي په وجه به تور پورې کونکي ته د حد قذف سزا ورکولې شي اګر چه په آيت کښې دا حد د زنا د تور پورې کولوسره په ډاګه نه دې مخصوص کړې شوې خو د څلورو ګواهانو د ګواهۍ بيان کول ددغې خصوصيت دليل ګرځي ولې چه د څلوروګواهانوشرط د زنا د ثبوت د پاره خاص دې البته که د بل څه جرم تور پورې کول د شريعت له مخې غلط ثابت شي نو د هغې تور پورې کونکي بنده ته به قاضي تعزيري سزاپه خپلې راۍ او صوابديد سره ورکولې شي [جصاص و هدايه] (2)

[مسئله] هرکله چه په حد قذف کښې د هغې بنده حق هم شامل دې په کوم چه تور پورې کړې شوې دې څکه به دا هله جاري کولې شي چه دغه بنده ئې مطالبه اوکړي ورنه حد به نشي جاري کولې [هدايه] (3) خو هرکله چه د زنا حد خالص د الله تعالى حق دې څکه د چا په مطالبه او غوښتنه باندې اړه نه لري يعني که څوک بنده ئې غواړي او که نه غواړي نو د زنا د جزم په ثابتيدو به حد جاري کولې شي.

﴿وَلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا﴾ په چا باندې د زنا تور پورې کول چه غلط او دروغ ثابت شي نو د تور پورې کونکي يوه سزا سمدستي دا شوه چه اتيا درې به وهلې شي – تر مرګه پورې د ټول ژوند ئې بله سزا دا شوه چه په هيڅ باره کښې به د دغې بنده ګواهي نشي قبلولې تر څو چه د الله تعالى په وړاندې په پخيمان ئ سره نه وي توبه ګار شوې او په چاڼې چه تور پورې کړې دې هغه نه ئې معافي نه وي حاصله کړې نو تر دغې وخته پورې په اجماع د امت سره به ئې په هيڅ معامله کښې ګواهي نشي قبلولې او د توبې کولو نه پس به ئې هم د احنافو په نزد ګواهي ټول عمر د پاره نشي قبلولې څنګه چه د تفسير په خلاصه کښې تير شو ، ﴿اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ وَاَصْلَحُوْا ۚ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ [يعني په کومو خلقو چه د زنا د تهمت شرعي حد جاري کړې شوې دې که هغوئ توبه اوکړي او خپل حالت سم کړي چه په آئنده کښې د دغسې کار کولو خطره پاتې نشي او د هغه بنده نه هم معافي حاصله کړي نو الله تعالى ښښونکې او رحمت کونکې دې ]

د امام اعظم ابى حنيفه رحمه الله او د څنې نورو امامانو په نزد د [الا الذين تابوا] تعلق د تيرشوي آيت خالص آخرى جملې ،اولئك هم الفسقون، سره دې مطلب ئې دا شو چه په چا باندې حد قذف جاري شويدې هغه فاسق دې ليکن که هغه د زړه د اخلاصه توبه اوکړي او خپله اصلاح په دې شان سره اوکړي چه د هغه چانه معافي حاصله کړي په چاڼې چه تور پورې کړې دې نو فاسق پاتې نه شو او د آخرت سزا به ئې معاف شي د هغې نتيجه دا ده چه د دنيا دواړه سزاګانې به ئې په خپل ځائ پاتې شي کومې چه د دې آيت په شروع کښې ښودلې شوې دی چنانچه د اتيا درو وهلو سزا خو ورکړې شوې ده او د دې سزا دويم جز [دويمه برخه ] څکه نشي معاف کيدې چه دا د يو شرعي حد يوه برخه ده او د شرعي حد نه معاف کيدل د ټولو په نزد منلې شوې خبره ده البته امام

---

(1) أحكام القرآن للجصاص [ج: ۸ ص:۳۷] والهداية كتاب الحدود باب حد القذف.
(2) أحكام القرآن للجصاص [ج: ۸ ص:۳۷] والهداية كتاب الحدود باب حد القذف.
(3) والهداية كتاب الحدود باب حد القذف

ابو حنیفه رحمه الله او نورو امامانو رحمهم الله د ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا﴾ تعلق د تیر شوی آیت ټولو جملو ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾ سره بللی دې مطلب دا شوچه څنګه په توبې سره ئې فسق ختم کیدیشی دغه شان ورسره د ګواهئ نۀ قبلولو سزا ئې هم ختمیدې شی جصاص رحمه الله او مظهری کښې د دواړو طرفونو دلیلونه او جوابونه په تفصیل سره بیان شویدی د علم خاوندان ئې هلته کتلې شی[1] [والله اعلم]

وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ

| او هغه کسان | چې د زنا الزام لګوی | په خپلو ښځو باند

| اوکوم خلق چې پخپلو ښځو باندې د زنا الزام اولګوی

وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ

اونۀ وی هغوئ لره | ګواهان | ماسوا دځانونو خپلو نه | [نو] ګواهی | دیو دهغوئ | څلور

او هغوئ سره دخپل ځان نه سوا نور ګواهان نه وی| نو د داسې سړی د ګواهئ صورت دا دې چې هغه به

شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ ۙ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٦﴾ وَالْخَامِسَةُ

ګواهیانې دی | په الله باند | [په دې خبره] چې بیشکه دې | دربښتیاویونکونه دې | او پنځمه ګواهی داده

څلور ځله په الله ﷻ قسم خوری| چې بیشکه هغه پخپله دعوی کښې ریښتونی دې |او په پنځم ځل

أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿٧﴾ وَيَدْرَأُ

چې بیشکه | لعنت دالله دوی | په دۀ باند | که چرې | وی دې | ددروغ ویونکونه | او دفعه کوی

بۀ داسې وائی|چې که چرې هغه دروغژن وی نو په هغه دې دالله ﷻ لعنت وی|او دښځې نه سزا

عَنْهَا الْعَذَابَ أَن تَشْهَدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ

دهغه ښځې نه | عذاب لره | دا خبره چې | ګواهی اوکړی هغه ښځه | څلور ګواهیانې |

په دې صورت کښې لرې کیدیشی |چې هغه څلور ځله په الله ﷻ باندې قسم اوخوری| چې

بِاللَّهِ ۙ إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿٨﴾ وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ

په الله باند |چې بیشکه دا سړې |ددروغ ویونکونه دې |او پینځمه ګواهی داده|چې بیشکه غضب دالله ددوی

داسړې دروغژن دې |اوپه پنځم ځل دې داسې اووائی چې په ما دې دالله ﷻ غضب نازل شی

عَلَيْهَا إِن كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٩﴾ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ

په هغې باند | که چرې وی داسړې | دربښتیاویونکونه |او که چرې نۀ وې فضل دالله| په تاسو باند

که دا خاوند ریښتیا وائی |او که په تاسو دالله فضل اومهربانی نه وې | او دا خبره نه وې

وَرَحْمَتُهُ وَأَنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ حَكِيمٌ ﴿١٠﴾

او رحمت دهغه | او بیشکه الله | ډیر توبه قبلونکې دې | او دحکمت خاوند دې |

چې الله ﷻ توبه قبلونکې اودحکمتونو خاوند دې| نو ډیر څه بۀ شوی وو

[1] تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٤٤٨ تا ٤٥٠] و أحكام القرآن للجصاص [ج: ٨ ص:٥٤ تا ٧٠]

## آسان ترجمه قرآن

اوکوم خلق چه په خپلو بیبیانو باندې تهمت اولګوی او خپله د خپل ځان نه سوا هغوی سره بل څوک ګواه نه وی نو داسې یو سړې به چه څنګه ګواهی ورکوی هغه دا ده چه څلور کرته په الله پاک قسم کولو سره دا بیان ورکړی چه هغه (په ښځه باندې لګولې الزام کښې) یقینًا رشتینې دې. او په پنځم کرت دې دا اووائی چه: که زه (په خپل الزام کښې) دروغژن یم نو په ما باندې دې د الله پاک لعنت وی او د زنانه نه (د زنا) د سزا لرې کولو لاره دا ده چه هغه څلور کرته قسم خوړلو سره ګواهی ورکړی چه د هغې خاوند (په دې الزام کښې) دروغژن دې. او په پنځم کرت دې داسې اووائی چه: که دې رشتینې وی نو په ما دې د الله پاک غضب وی او که په تاسو باندې د الله پاک فضل او د هغه رحمت نه وې او دا خبره نه وې چه الله پاک په کثرت سره توبه قبلونکې حکمت والا دې. (نو تاسو خپله سوچ وکړئ چه تاسو به څه کول؟)

## خلاصه تفسير

﴿وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ اَزْوَاجَهُمْ﴾[ اوکوم خلق چه په خپلو بیبیانو] دزنا[ تهمت ولګوی﴿وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَآءُ اِلَّآ اَنْفُسُهُمْ﴾ او دده سره بغیر دخپلې ] دعوې نه [ بل څوك ګواه نه وی] کوم چه په شمیر کښې څلورتنه ضروری دی ﴿فَشَهَادَةُ اَحَدِهِمْ﴾[ نو دده ګواهی ] چه لرې کوونکې دحدقذف یا قیدکولو وی [ داده ﴿اَرْبَعُ شَهٰدٰتٍ بِاللّٰهِ﴾چه څلور ځله به په الله قسم وخوری﴿اِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ﴾دا به اووائی چه بیشکه زهٔ رښتونې یم ﴿وَالْخَامِسَةُ اَنَّ لَعْنَتَ اللّٰهِ عَلَيْهِ﴾ او په پنځم ځل دا ووائی چه په ما دې دالله تعالی لعنت وی ﴿اِنْ كَانَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ﴾که زهٔ دروغژن یم او] ددې نه پس﴿وَيَدْرَؤُا عَنْهَا الْعَذَابَ﴾ [ ددغې ښځې نه سزا ] یعنی قید کول یا حددزنا [ په دې شان سره منع کیدې شی﴿اَنْ تَشْهَدَ اَرْبَعَ شَهٰدٰتٍ بِاللّٰهِ﴾ چه دغه زنانه څلورځله قسم وخوری ﴿اِنَّهٗ لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ﴾ اووائی چه بیشکه دا سړې دروغژن دې﴿وَالْخَامِسَةَ اَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ عَلَيْهَآ﴾ او په پنځم خله دا ووائی چه په ماد دالله تعالی غضب وی﴿اِنْ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ﴾ که دا سړې رښتونې وی ] په دې سره دواړه ښځه خاونددنیوی سزانه بچ کیدې شی البته دغه ښځه په دې سړی حرامهٔ شوه ﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ﴾[ اوکه دا خبره نه وې چه په تاسو دالله تعالی فضل او کرم دې ] چه داسې داسې احکام ئې مقرر کړل چه په دې کښې دانسان دفطری جذباتو پوره رعایت شوې دې ﴿وَاَنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ حَكِيْمٌ﴾ [او داچه الله تعالی توبه قبلوونکې حکمت والا دې نو تاسو به په لویو تکلیفونو کښې پریوتی وې]چه بیان ئې وړاندې راځی

## معارف او مسائل

**زنا سره تړون لرونکو قیزونو کښې څلورم حکم د لعان دې:** د ،لعان، او ،ملاعنت،معنی دا ده چه یو بل ته د الله تعالی د رحمت نه د لرې کیدو او د الله تعالی د عذاب راتلو ښیره اوکړې شی د شریعت په اصطلاح کښې هغه خاص قسمونو ورکولو ته لعان وئیلې شی چه ښځې خاوند ته ورکولې شی په داسې صورت کښې چه یو خاوندن پخپلې ښځې باندې د زنا تور پورې کړی یا د خپل خوئ په باره کښې دا اووائی چه دې زما د ابونه نهٔ دې او ښځه ئې په دغې تور پورې کولو کښې دروغژن او بلی او هغه دا غوښتنه اوکړی چه هر کله م خاوندرا باندې په دروغه د زناتور پورې کړې دې نو څکه دې دحد قذف په ډول اتیا درې اووهلې شی دغه وخت به خاوند نه

غوښتنه اوکړې شي چه څلور ګواهان دې د زنا په تور پورې کولو باندې پیش کړه که هغه څلور ګواهان پیش کړل نو ښځه باندې به ئې د زنا حد جاري کولې شي که څلور ګواهان ئې پیش نکړې شو نو د دواړو ترمینځه به لعان کولې شي یعنی اول به خاوند ته اووئیلې شي چه د قرآني الفاظو مطابق دې څلور ځله دا ګواهي ورکړي چه زهٔ په دغې تور پورې کولو کښې رېښتونې یم او پنځم ځل دې دا ګواهي ورکړي چه که زهٔ دروغ وایم نو په ما باندې دې د الله تعالی لعنت وي.
که خاوند دا الفاظ نهٔ وئیل نو تر هغې به قید ساتلې شي چه د خپلې دروغژنئ اقرار اوکړي نو په دې صورت کښې به پرې حد قذف جاري کولې شي او که نهٔ هم په دغه بیان الفاظو سره ئې قسمي بیان اوکړو نو بیابه ئې ښځې ته او وئیلې شي چه د دغه قرآني الفاظو مطابق دې د خاوند د دروغژنئ پنځه قسمونه اوخوري که داسې ئې نهٔ کول نو تر هغه به قیده او بندیوانه لرلې شي چه یا خو د خاوند د رشتنئ اقرار اوکړي او د زنا حد به پرې جاري کړې شي یا به د بیان شوو الفاظو په جوړ پنځه کرته د خاوند د دروغژنئ قسمونه اوخوري چه لعان به ئې پوره شي نتیجه به ئې دا وي چه د دنیا د سزا نه خو به دواړه خلاص شي د آخرت معامله به ئې الله تعالی ته اوسپارلې شي چه څوک پکښې دروغژن او څوک پکښې رېښتونې وو چه د هغې مطابق معامله به ورسره الله تعالی پخپله کوي البته په دې صورت کښې به دنیا کښې ورسره داسې کولې شي چه دواړه خو په یو بل باندې حرام شو هیڅ کله هم بیا خپل مینځ کښې ښځه ،خاوند نشي جوړې دې ، یا به ورته خاوند پخپله طلاق ورکړي او خپل مینځ کښې به همیشه د پاره یو بل نه بیل شي ورنه حاکم به ئې د یو بل نه بیل کړي چه حکم به ئې د طلاق وي د لعان پوره مسئله د فقه په کتابونو کښې بیان شوې ده (١)
په اسلامي شریعت کښې د لعان قانون په دې وجه نافذ شوې دې چه د خاوند [میړه] د جذباتو او نفسیاتو خیال پکښې ساتلې شوې دې ځکه چې بې تعلقه او پردي خلق پخپل منځ کښې په یو بل باندې د زنا تور پورې کړي نو د هغې قانون په تیرو شوو آیتونو کښې بیان شوې دې هغې کښې د تور پورې کونکي د پاره څلور ګواهان برابرول ضروري وو ورنه اپوته هغه ته د حد قذف ورکولو حکم دې په دې وجه عام بنده که څلور ګواهان برابرولې شو نو تور پورې کول سرته رسولې شي ورنه خپل ځان د حد قذف د سزا نه د ساتلو په غرض غلې شي خو د خاوند [میړه]د پاره معامله سخته ځکه ده چه هغه خپله ښځه په بد کارئ کښې اخته په خپلو سترګو او ویني او په دې صورت کښې څلور ګواهان نشي برابرولې نو په دغې تور پورې کولو سره به دهٔ لره پخپله حد قذف سره مخامخ کیدل پریوځي اوکه پرې غلې پاتې شوې وې نو ټول عمر به ئې په زړه کښې غم کولواو وینه به ئې اوچیده ځکه د خاوند د پاره په عام قانون کښې دغه ښودلې شوې بدلون راوستې شو بلکه دې د پاره یوبل مستقل قانون جوړ کړې شو دې نه دا هم معلومه شوه چه د لعان معامله یوازې د ښځې او خاوند تر منځه کیدې شي دنورو خلقو حکم هم هغه دې چې مخکښې آیت مبارك کښې تیر شوې دې. د حدیثو په کتابونو کښې دلته دوه واقعې بیان شوې دی په هغې کښې د لعان د آیتونو شان نزول کومه واقعه ده په دې باره کښې د تفسیر د امامانو مختلف قولونه دی قرطبي فرمائیلي دی چه چونکه دا آیتونه دوه ځل نازل شوي دی ځکه هم دواړه واقعې د دې آیتونو شان نزول کیدې شي حافظ ابن حجر رحمه الله د بخاري رحمه الله په شرح او امام نووي د مسلم

١ ) المبسوط باب اللعان [ج: ٨ص:٣٦٤] و بدائع ا لصنائع کتاب اللعان [ج: ٨ ص:٥١]

په شرح کښې د دواړو تطبيق [جوړښت] داسې راوستې دې چه هم په يو ځل نازليدو کښې دا دواړه واقعې د دې آيتونو شان نزول دې د دوئ تو جيه زياته صفاده چه دې پسې را روانه ده ،يوه واقعه د هلال بن اميه او د هغه د بی بی ده چه په صحيح بخاری کښې په روايت د ابن عباس رضي الله عنهما سره مذکوره ده او په په مسند احمد رضي الله عنه کښې ددې واقعې ابتدائی حصه دا شان راغلې ده ،حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلی دی چه کله په قرآن کريم کښې د حد قذف د احکامو دا آيتونه نازل شو چې: ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنٰتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمٰنِينَ جَلْدَةً﴾.

چې دې کښې په نارينه باندې څلور ګواهان پيش کول لازم ګرځولې شوی دی کله چه هغه په يو ښځې باندې د زنا کولو تور پورې کړی چې په دغې څلورو ګواهانو کښې به دې پخپله هم شامل وی که څلور ګواهان پيش نکړې شی نو دروغژن به اوګرځولې شی او د اتيا درو وهلو سزا به پرې جاری کړې شی او هميشه د پاره به ئې ګواهی نشی قبلولې . د دې آيتونو په آوريدو سره د مدينې منورې د انصارو سردار حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې عرض او کړو چه يا رسول الله ﷺ ،آيا دا آيتونه په دې شان نازل شوی دی رسول الله ﷺ [د دې په آوريدو په تعجب کښې شو]او انصارو ته ئې داسې خطاب اوفرمائيلو :تاسو آورئ چه ستاسو سردار څه خبره کوی ؟ خلقو عرض اوکړو چه يا رسول الله ﷺ تاسو دوئ رضي الله عنه څکه مۀ ملامته کوئ چه دا خبره له زيات غيرت له کبله کوی – بيا حضرت سعدبن عباده رضي الله عنه پخپله عرض اوکړو چه ،يارسول الله مور او پلار م در باند قربان شه زۀ ښه پو هيږم چه دا آيتونه حق دی او د الله تعالٰی له ارخه نازل شوی دی خو حيران په دې سيم چه که څه خپله بې حيا بی بی په دې حال کښې اووينم چه يو پردې سړې پرې ختلې دې نوولې ما دپاره به هم په دغې موقعه د هغې رټل دکل او د سړی لرې کول جائز نۀ وی او دا به ماله ضروری وی چه د بهر نه نور څلور ګواهان راولم چه تر هغې به دواړو خپل کار خلاص کړې وی او تښتيدلې به وی ؟ [دلته د حضرت سعد رضي الله عنه مختلف قولونه منقول دی چه خلاصه د ټولو هم يوه ده [قرطبی](1)

د حد قذف د دې آيتونو د نازليدو او د حضرت سعد رضي الله عنه د دې کلام کولو نه لږ وخت پس هلال بن اميه رضي الله عنه ته دا قيصه را پيښه شوه چه د ماسخوتن په وخت د خپلې زمکې نه واپس راغې نو خپلې بی بی سره ئې يو سړې په خپلو سترګو اوليدو او د هغوئ خبرې ئې په خپلو غوږونو واورې دې بيائې لاس خپې او نۀ خوخولې او تر صبا پورې غلې پاتې شو د صبا په وخت ئې رسول الله ﷺ ته دا قصه عرض کړه هغوی ﷺ د دې په آوريدو باندې ډيرخفه شو .بل خوا انصار رضي الله عنهم را جمع شو او خپل مينځ کښې ئې دا خبرې شروع کړې چه زمونږ د سردار سعدبن عباده رضي الله عنه هغه کړې خبره کښې دا دې اوس مونږه را ګير شو چه د شرعی قانون په جوړ به اوس رسول الله ﷺ هلال بن اميه رضي الله عنه ته د اتيا درو حد [حد قذف] ورکوی او تل د پاره به د دوئ د ګواهئ نۀ قبلولو حکم او فرمائی .خو هلال بن اميه په قسم سره او وئيل چه اميد دې الله تعالٰی به مې د دې مصيبت نه خلاص کړی او د صحيح بخاری په روايت کښې دا هم شته چه دغه وخت هلال بن اميه رضي الله عنه ته د قرآنی حکم مطابق رسول الله ﷺ او فرمائيل چه يا خو د دې واقعې [څلور] ګواهان راوله ورنه په تا به حد قذف جاری کيږی نو هلال بن اميه ﷺ هم هغوی ته عرض اوکړو چه قسم م دې په هغه ذات وی چا چه په حق سره رالیږلې ئې زۀ په خپل کلام کښې رښتونې يم ،لهذا الله تعالٰی به

(1) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۱۸۳]

داسې يو حکم خامخا نازل کړي چه زما شا [ملا] به د حد قذف د سزا نه خلاصه کړي دا خبرې اترې جاري وې چه حضرت جبرائيل عليه السلام د لعان د قانون آيتونه ﴿ وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ الايه﴾ راؤړل. ابويعلى هم دا روايت دحضرت انس رضي الله عنه نه نقل کړې دې په هغې کښې دا هم دی چه کله د لعان آيتونه نازل شو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم هلال بن اميه ته زيرې ورکړو چه الله تعالى دې د مشکل حل نازل کړو حضرت هلال رضي الله عنه عرض اوکړو چه ما د الله تعالى نه هم دغه اميد لرلو بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم د هلال بن اميه رضي الله عنه بى بى هم راؤغوښتله تپوس ئې ترې اوکړو نو هغې او وئيل چه خاوند م په ما دروغ وائي ،رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه الله تعالى پوهيږي چه په تاسو کښې يو کس دروغژن دې په تاسو دواړو کښې يو کس داسې شته دې چه [د الله تعالى د عذاب نه او ويريږي] او توبه کړي او رشتيا خبره ښکاره کړي دغه وخت هلال بن اميه رضي الله عنه عرض اوکړو زما مور پلار دې په تاسو باندې قربان وي ما بيخي رشتيا خبره کړې ده او حق م وئيلی دی بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم حکم اوکړو چه د نازل شوو قرآنی آيتونو مطابق دې د دواړه ښځې او خاوند ترمينځه څلور کرته ګواهی ورکړې شي چه په قرآن کريم کښې داسې بيان شوې ده چې زۀ الله تعالى حاضر ناظر ګنړم او وايم چه په خپل تور پورې کولو کښې زۀ رينښتونې يم ، هلال رضي الله عنه په دې شان څلور ځله ګواهي ورکړه او کله چې پنځم ځلې ګواهئ ته چه تياريده دو نو دغه وخت رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل چه اې هلاله ،خدائ نه او ويريږه ولې چه د دنيا سزا د آخرت د عذاب نه سپکه ده او د الله تعالى عذاب د خلقو د ورکړې سزا نه څه ډير زيات سخت دې او دا پنځمه ګواهي آخرى ګواهي ده په دې باندې به فيصله کيږي .خو هلال بن اميه رضي الله عنه او وئيل چه څه په قسم سره وايم چه الله تعالى به راته په دې ګواهئ باندې [څکه] عذاب نۀ راکوی [چه رشتيا ګواهی کوم]څنګه به چه په دنيا کښې رسول الله صلى الله عليه وسلم هم د حدقذف سزا نۀ راکوی او بيا د پنځمې ګواهئ الفاظ ئې ادا کړل دې نه پس ئې د هلال رضي الله عنه بى بى نه هم دغسې څلور قسمی ګواهئ واخستلې چه خاوند به ئې پکښې دروغژن بللو پنځمې ګواهئ ته چه راؤ رسيده نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته د لږ غونډې ايساريدو حکم ورکړو او دغې ښځې ته ئې اوفرمائيل چه دا پنځمه ګواهي آخرى ګواهي ده او د الله تعالى عذاب د خلقو د عذاب نه څه ډير زيات سخت دې .د دې په آوريدو سره هغه لږه شان غلې شوه او بيائې او وئيل چه قسم په خدائ زۀ به خپل قوم رسوانۀ کړم او پنځمه ګواهي ئې داسې سرته اورسوله چه که زما خاوند رينښتونې وی نوپه ما دې د الله تعالى غضب وی . دا دلعان کار وائې مکمله شوه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې دواړو تر مينځه جدا والې اوکړو [يعنى د دوئ تر مينځه شوې نکاح ئې ماته کړه] او دا فيصله ئې اوکړه چه د دې اوسنئ ګيډې پيدا کيدونکې ماشوم به پواځې د ښځې اولاد بللې شی ،پلار ته به ئې نسبت نشی کولې خو ماشوم ته به پيغور هم نشی ورکولې - انتهی- [تفسير مظهری په حواله د مسند احمد د ابن عباس رضي الله عنه نه[1] ) .بله واقعه :هم په بخاری او مسلم کښې بيان شوې ده او د واقعې تفصيل امام بغوی رحمه الله په روايت د ابن عباس رضي الله عنه دا شان نقل کړې دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په منبر باندې اودريدو او دا :﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنٰتِ [الآية] ﴾.آيتونه ئې اولوستل خلقو ته ئې واؤرول په کومو کښې چه د زنا په تور پورې کونکی بنده باندې د حد قذف جاری کولو حکمونه نازل شوی دی په دغه مجلس او ډله کښې عاصم بن عدی انصاری رضي الله عنه هم

---

[1] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص: ٤٥٣ ، ٤٥٤] و مسند احمد ، مسند عبدالله بن عباس رضي الله عنه رقم الحديث:[٢١٦٦]

موجود وو اودريدو او عرض ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ زماخان دې په تاسو قربان وی چه که په مونږ کښې څوک بل څوک سړې د خپلې ښځې سره لګيا او وينی ،که هغه بيانوی نو سل درې وهلې شی او هميشه د پاره به ئې ګواهی نشی قبلولې مسلمانان به ورته فاسق وائی په داسې حالت کښې به مونږ د کوم ځائ نه ګواهان راولو که ګواهانو لټولو پسې بهر ته لاړ شو نو دغې دواړو به خپل کار ختم کړې وی او تښتيدلې به وی ،دا هم هغسې سوال دې چه په ړومبی واقعه کښې سعد بن عباده رضی الله عنه پورته کړې وو او ددې دويمې واقعې کښې عاصم بن عدی رضی الله عنه دا سوال د يوې جمعې په ورځ پورته کړې شوې وو چه وروسې دا واقعه داسې راپيښه شوه چه د عاصم بن عدی رضی الله عنه يو تر بور عويمر رضی الله عنه نکاح د دهٔ د بلې ترلې خوله سره شوې وو يوه ورځ عويمر رضی الله عنه خپلې ښځې سره شريک بن سحماء په زنا کښې لګيا او ليدو چه دا هم د دوی تربور وو عويمر رضی الله عنه دا حال عاصم بن عدی رضی الله عنه ته او وئيلو ،عاصم رضی الله عنه ﴿اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ﴾ اووئيل او په راتلونکې جمعه بيا د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو عرض ئې اوکړو چه په تيره شوې جمعه چه ما کوم سوال ستاسو ﷺ په وړاندې پورته کړې وو افسوس دې چه هغسې واقعه زمونږه خپله کورنئ کښې را پيښه شوې ده . بغوی رحمه الله د دغې دواړو د حاضرولو او بيا د دوی تر مينځه د لعان کولو واقعه په ډير تفصيل سره بيان کړې ده [مظهری] [1]

او د حضرت سهل بن سعد ساعدی په روايت سره په صحيحينو کښې د دې خلاصه داسې بيان شوې ده چه عويمر عجلانی رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په وړاندې دا عرض اوکړو چه يا رسول الله ﷺ که څوک سړې خپلې ښځې سره يو پردې سړې لګيا او وينی نو هغه دغه زانی اوژلې شی چې بيا خلق دې وژنی يا بيا څه اوکړی؟ . رسول الله ﷺ او فرمائيل چه الله تعالی ستاسو او ستاسو د بی بی په معامله کښې حکم نازل کړې دې ورشه بی بی دې راوله ، د دې حديث روايت کونکې حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه دې هغه فرمائې چه دواړه رسول الله ﷺ راؤ بلل او په جمات کښې ئې د دغې دواړو تر مينځه لعان اوکړو [طريقه ئې په ړومبئ واقعه کښې بيان شوې ده] کله چه دواړو طرفو نو نه پنځه ګواهئ پوره شوې او لعان ختم شو نو عويمر عجلانی رضی الله عنه عرض اوکړو چه يا رسول الله ﷺ که زهٔ اوس هم دې لره په مخه ښځه ساتم نو ګويا کښې زهٔ به خپل ځان دروغژن ثابتوم ځکه ورته درې طلاق ورکوم [مظهری ] په حواله د صحيحينو] [2] د دې دواړو واقعو ځنې په هره يوه کښې دا بيان شوی دی چه د لعان آيت هم د دې په باره کښې نازل شوې دې حافظ بن حجر رحمه الله او شيخ الا سلام نووی رحمه الله په دواړو کښې د جوړښت راوستو دا صورت بيانوی چه غالبا د هلال بن اميه رضی الله عنه واقعه ړومبې وه چه د لعان آيت هم په دغه موقعه نازل شوې وو چه عويمر رضی الله عنه ته دا واقعه راپيښه شوه او هغوی رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو کيديشی چه د هلال بن اميه رضی الله عنه واقعه دوی رضی الله عنه ته نهٔ وه معلومه ځکه ورته رسول الله ﷺ اوښودل چه ستا د معاملې فيصله دا ده .د دې خبرې نخښه دا ده چه د هلال بن اميه رضی الله عنه په واقعه کښې د حديث الفاظ دا دې ،فنزل جبرئيل ،او د عويمر رضی الله عنه په واقعه کښې د حديث الفاظ دا دی ،قد انزل الله فيك ، د دې مطلب دا کيدې شی چه الله تعالی هم ستا د دې واقعې په شان په بله واقعه کښې د دې حکم

---

[1]) تفسير البغوی تحت هذه الآية [ج:٦ ص:١٤ ، ١٥] و تفسير المظهري[ج:٦ص:٤٥٤ ، ٤٥٥]

[2]) تفسير المظهري[ج:٦ص:٤٥٢] و صحيح البخاري كتاب الطلاق ،باب اللعان [ج:٢ص: ٧٩٩] و صحيح مسلم كتاب اللعان [ج:١ص:٤٨٩]

نازل کړې دي والله اعلم [مظهری ] ([1])

**مسئله**: دکومې ښځې او خاوند ترمینځه چه د حاکم په وړاندې لعان اوشی نو دغه ښځه او خاوند خپل منځ کښې همیشه د پاره داسې حرام شی لکه چه په رضاعت سره همیشه د پاره چه حرامیږی چنانچه رسول الله ﷺ فرمائیلي دی ،المتلاعنان لا یجتمعان ابدا،([2]) حرمت [حراموالې ] خو په لعان کیدو سره سمد ستی ثابت شی لیکن د امام اعظم ابی حنیفه رحمه الله په نزد دغې ښځې سره به د دې د عدت تیریدونه پس د بل چا نکاح کول هله جائز کیږی چه دغه لعان کونکی خاوند ورته طلاق ورکړی یا هسې په ژبه او وائی چه ما دا ښځه پریښوده او که سړی دغه شان او نه کړل نو حاکم یا قاضی د دغې دواړو تر مینځه چه د جدا والی حکم اوکړې هغه هم په حکم د طلاقو کښې شو عدت د طلاقو درې حیضه تیریدو نه پس دغه ښځه به آزاده شی او بل چا سره به نکاح کولې شی [مظهری وغیره]([3])

**مسئله** :د لعان نه پس د دغې ښځې پیدا شوي اولاد به ئې مورته منسوب کیږی پلار ته به نهٔ منسوب کیږی څنګه چه رسول الله ﷺ د هلال بن امیه رضی الله عنه او د عویمر عجلانی رضی الله عنه په معاملو کښې فیصله کړې وه .

**مسئله** :د لعان نه پس اګر چه په دې دواړو کښې د دروغژن د آخرت سزا به نوره هم زیاته شی لیکن د دنیا سزا به نشی ورکړې کیدې دغه شان به ښځې ته زناکاره او اولاد ته به ئې حرامیان وئیل هم چا د پاره جائز نهٔ وی چنانچه رسول الله ﷺ د هلال بن امیه رضی الله عنه په معامله کښې چه فیصله اوکړه نو دا حکم ئې اوفرمائیلو ([4]):وقضی بأن لا ترمی ولا ولدها ([5]): [دغه ښځه به هم سنګساره ولې نشی او نهٔ به ئې دغه اولاد حرامیان بللې شی ]

| إِنَّ الَّذِينَ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه هغه کسان | | | | | |
| جَآءُو | بِالْإِفْكِ | عُصْبَةٌ | مِّنكُمْ | لَا تَحْسَبُوهُ | شَرًّا |
| چی راغلل | په دروغو سره | هغه یوه ډله ده | ستاسو نه | ګمان مهٔ کوئ په دې دروغو | چی شر دي |
| کومو خلقوچې [په حضرت عائشه] باندې تهمت لګولي وو هغه په تاسو کښې یوه ډله وه | | | | | |

[1] ) تفسیر المظهري[ج:٦ص:۴۵٦] و فتح الباري كتاب التفسير ، سورة النور ،باب قوله ويدرا عنها العذاب الاية [ج:۱۳ ص:۲۵٤] و شرح النووي علي صحيح مسلم كتاب اللعان [ج: ٥ ص:۲٦٠]

[2] ) سنن الدار قطني رقم الحديث :[۳۷٤۹]

[3] ) تفسیر المظهري[ج:٦ص:٤٦۳] و بدائع الصنائع كتاب اللعان فصل فى حكم اللعان [ج: ۸ص:۷۸]

[4] ) ترجمه:-حضرت نبي كريم فيصله اوفرمائيله چې نه به ښځه باندې د زنا تهمت لګولې كيږي او نه به دې ماشوم ته ولد الزنا وئيلې كيږي.

[5] ) سنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث[۱۵۰٦۹] و مصنف ابن ابي شيبة رقم ا لحديث:[۲۹۰٦۷]

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَّكُمْ ؕ | بَلْ | هُوَ | خَيْرٌ | لَّكُمْ ؕ | لِكُلِّ امْرِئٍ | مِّنْهُمْ |
| ستاسو دپاره | بلکه | دغه دروغ | خير دي | ستاسو دپاره | دپاره د هر سړي | په هغوئ کښې |

تاسو دځان دپاره دا [قصه] بده مه ګنړئی بلکه ستاسو دپاره دا بهتر ده په دې کښې چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَّا | اكْتَسَبَ | مِنَ الْاِثْمِ ۚ | وَالَّذِىْ | تَوَلّٰى | كِبْرَهٗ |
| هغه حصه ده | چې ده کړې ده | دګناه نه | او هغه څوك | چې ذمه واري ئې واغستله | دلوئې حصې دهغې |

هرچا څومره حصه اخستې ده هغه هومره ګناهګار دې او چاچې په کښې د ټولو نه زياته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْهُمْ | لَهٗ | عَذَابٌ | عَظِيْمٌ ۞ | لَوْلَآ | اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ |
| دهغوئ نه | هغه لره دې | عذاب | لوئ | ولې نۀ | کله چې واوريدو تاسو دا خبر |

حصه اخسته ده دهغه سزا هم [دنورو نه زياته] ده هر کله چې تاسو دا [دتهمت] خبره واوريده

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ظَنَّ | الْمُؤْمِنُوْنَ | وَالْمُؤْمِنٰتُ | بِاَنْفُسِهِمْ | خَيْرًا | وَّقَالُوْا |
| ګمان اوکړو | مومنانو سړو | او مومنانو ښځو | په ځانونو خپلو باند | دخير | او وئيلې ئې وې |

نو ولې داسې نه وه چې مسلمانانو سړو او ښځو دخپلو خپلوانو په حقله نيک ګمان کړې وې او

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هٰذَآ اِفْكٌ | مُّبِيْنٌ ۞ | لَوْلَا جَآءُوْ | عَلَيْهِ | بِاَرْبَعَةِ | شُهَدَآءَ ۚ |
| چې دا دروغ دی | ښکاره | ولې رانۀ وستل هغوئ | په دې خبره باندې | څلور | ګواهان |

دا ئې وئيلي وې چې دا ښکاره بهتان دې دوئ پخپله خبره باندې ولې څلور ګواهان پيدانه کړل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاِذْ لَمْ يَاْتُوْا | بِالشُّهَدَآءِ | فَاُولٰٓئِكَ | عِنْدَ اللّٰهِ | هُمُ |
| پس هر کله چې رانۀ وستل هغوئ | ګواهان | نو دغه کسان چې دی | په نز د الله | هم هغوئ |

نو هر کله چې دوئ ګواهان رانه وستې شول نو بس د الله ﷻ په نزد خو هم دوئ دروغژن شول

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْكٰذِبُوْنَ ۞ | وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ | عَلَيْكُمْ | وَرَحْمَتُهٗ | فِى الدُّنْيَا |
| دروغژن دی | اوکه چرې نۀ وې فضل د الله | په تاسو باندې | اورحمت دهغه | په دنيا |

اوکه په تاسو باندې په دنيا او اخرت کښې د الله ﷻ فضل او مهربانئی نه وې ..........

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالْاٰخِرَةِ | لَمَسَّكُمْ | فِيْمَآ | اَفَضْتُمْ |
| او په اخرت کښې | نو رسيدلې به وو تاسو ته | په هغه خبره کښې | چې اخته شوی وئ تاسو |

انو تاسو چې په کومه ګناه کښې اخته شوې وئ د هغې په وجه به

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيْهِ | عَذَابٌ | عَظِيْمٌ ۚ ۞ | اِذْ | تَلَقَّوْنَهٗ | بِاَلْسِنَتِكُمْ |
| په هغې کښې | عذاب | لوئ | کله چې | اغستل تاسو دا دروغ | په ژبو خپلو سره |

درباندې لوئې عذاب نازل شوې وو.... څه وخت چې تاسو دا خبره په خپلو خولو يو بل ته کوله

وَتَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِكُمْ مَّا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ

اووئیل تاسو | په خلو خپلو باند | هغه څه | چی نه وو تاسو لره | په هغې باند | څه علم

| او تاسو په خولو باندې هغه څه وئیل چې تاسو ترې نه خپله خبر نه وئ

وَّتَحْسَبُوْنَهٗ هَيِّنًا ۖ وَّهُوَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمٌ ۞ وَلَوْلَآ

او تاسو سرگنړله دا خبره | آسانه [معمولی] | حالانکه هغه | په نز دالله | لویه خبره وه | او ولې نه

اودا مومعمولی خبره گنړله | حال دا چې دالله ﷻ په نزد ډیرلوئې جرم وو || او څه

اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ مَّا يَكُوْنُ لَنَآ اَنْ نَّتَكَلَّمَ بِهٰذَا ۖ

کله چې واوریدوتاسو دا خبر || اووئیل تاسو | چې نه ښائی | مونږ لره | چې خله اوخوزوو | په دې دروغو

وخت چې تاسو آوریدلې وه | نوداسې مووليې نه وئیل چې مونږ له داسې خبره دخولې نه ایستل نه دی پکار

سُبْحٰنَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ ۞ يَعِظُكُمُ اللّٰهُ اَنْ تَعُوْدُوْا

پاکی ده تالره | دا بهتان دې | لوئ | نصیحت کوی تاسو ته | الله | چې بیا اونهٔ کړئ

سبحان الله ! دا خو ډیر لوئې بهتان [دروغ] دې | [واورئی] الله ﷻ تاسو ته نصیحت کوی

لِمِثْلِهٖٓ اَبَدًا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۞ وَيُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ

کارپشان ددې دروغو | هیڅکله | که یئ تاسو | مومنان | او بیانوی الله | تاسو ته |

که چرې تاسو مومنان یئ نو بیا هیچرې داسې کار اونه کړئی || او الله ﷻ تاسو ته په وضاحت سره

الْاٰيٰتِ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۞ اِنَّ الَّذِيْنَ يُحِبُّوْنَ

آیتونه | او الله | ښه پوهه دې | دحکمت خاوند دې | بیشکه هغه کسان | چې خوښوی

حکمونو بیانوی | او الله ﷻ په هرڅه پوهه او صاحب د حکمت دې | بیشکه کوم خلق چې دا غواړی

اَنْ تَشِيْعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَهُمْ

داخبره | چې خوره شی | بې حیائی | په هغه کسانو کښې | چې ایمان ئې راوړې دې | ادې دهغوئ دپاره

چې پهٔ مومنانو کښې بې حیائی خوره شی | هغوئ دپاره په دنیا او آخرت کښې دردناک

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۙ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۭ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ۞

عذاب | دردناک | په دنیا کښې | او په آخرت کښې | او الله | پوهیږی | او تاسو نهٔ پوهیږئ

عذاب مقرر دې || او الله ﷻ په هره خبره پوهیږی | او تاسو نه پوهیږئ

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ وَاَنَّ اللّٰهَ رَءُوْفٌ

او که چرې نهٔ وې فضل دالله | په تاسو باندې | او رحمت دهغه | او بیشکه الله | مهربانه دې

او که چرې تاسو باندې دالله ﷻ فضل او رحمت نه وې | نو [تاسو ته به سخته سزا در کړې شوې وه ] اودا

رَّحِيمٌ ﴿٢٠﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّبِعُوا۟ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيْطَٰنِ ۚ

رحیم دي | اے هغه کسانو | چي ایمان مو راوړي دي | پیروی مهٔ کوئ | دقدمونو دشیطان

چي الله ﷻ ډیر نرمی کونکي مهربان دي | ائي مومنانو تاسو د شیطان په لاره باندې مه ځئ

وَمَن يَتَّبِعْ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيْطَٰنِ فَإِنَّهُۥ يَأْمُرُ بِٱلْفَحْشَآءِ

او چاچي پیروی اوکړه | دقدمونو | دشیطان | نو بیشکه چي هغه | حکم کوی | دبې حیایئ

اوڅوک چي په شیطان پسې روان شی انو هغه خو همیشه د بې شرمئ او دبدو کارونو

وَٱلْمُنكَرِ ۚ وَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُۥ مَا زَكَىٰ

او دبدئ | او که چری نهٔ وې فضل دالله | په تاسو باندې | او رحمت دهغه | نهٔ شو پاکیدې |

حکم کوی |.... اوکه په تاسوباندې دالله ﷻ فضل او مهربانی نه وې انو په تاسو کښې به

مِنكُم مِّنْ أَحَدٍ أَبَدًا وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يُزَكِّى مَن يَشَآءُ ۗ

ستاسو نه | هیڅوک | هیڅکله | لیکن | الله | پاکوی | هغه څوک | چی غواړی نې هغه

هیڅوک پاک شوې نه وو | خو الله ﷻ چې څوک پاکول اوغواړی نو هغه پاک کړی

وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢١﴾ وَلَا يَأْتَلِ أُو۟لُوا۟ ٱلْفَضْلِ مِنكُمْ

او الله | ښهٔ اوریدونکې دې | ښه پوهه دې | اونهٔ دخوری قسم | خاوندان دفضل | ستاسو نه

اوالله ﷻ هر څه آوری | په هر څه پوهه دې | او تاسو کښې چې څوک د بزرګئ والا دې

وَٱلسَّعَةِ أَن يُؤْتُوٓا۟ أُو۟لِى ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْمَسَٰكِينَ

او خاوندان دفراخئ | دې خبری ته چی ورکړی هغوئ | خاوند درشتې ته | او مسکینانو ته

مالداران دی |..........نو هغوئ دې خپلوانو مسکینانو

وَٱلْمُهَٰجِرِينَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ۖ وَلْيَعْفُوا۟ وَلْيَصْفَحُوٓا۟ ۗ

او هجرت کونکوته | په لار دالله کښی | او پکار دی چی معافی اوکړی | او مخ واړوی

اودالله ﷻ په لار کښې هجرت کونکو ته د څه نه ورکولو قسمونه نه خوری | اوپکار دی چې معافی

أَلَا تُحِبُّونَ أَن يَغْفِرَ ٱللَّهُ لَكُمْ ۗ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٢﴾

آیا نهٔ خوښوئ تاسو | چی ښښنه اوکړی الله | تاسو ته | اوالله | بخښونکې | مهربانه دې |

ورته کوی او د عفو نه دې کار اخلی | آیا دامو خوښه نه ده چې الله ﷻ درته ښښنه اوکړی | اوالله ﷻ ډیر

إِنَّ ٱلَّذِينَ يَرْمُونَ ٱلْمُحْصَنَٰتِ ٱلْغَٰفِلَٰتِ ٱلْمُؤْمِنَٰتِ

بیشکه هغه کسان | چی ولی په الزام دزنا | پاکې | ناخبره | مومنانې ښځې

ښښونکې مهربان دې | هغه خلق چې په پاکدامنو بې خبره او ایماندارو ښځو باندې

لُعِنُوْا فِی الدُّنْیَا وَالْاٰخِرَةِ وَلَهُمْ عَذَابٌ

لعنت اوکړې شو په هغوئ باندې | په دنیا کښې | او په آخرت کښې | او دې دهغوئ دپاره | عذاب

تهمتونه لګوی انو په هغوئ باندې په دنیا او په آخرت دواړو کښې لعنتونه وريږي |او هغوئ دپاره

عَظِیْمٌ ۝ یَّوْمَ تَشْهَدُ عَلَیْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ وَاَیْدِیْهِمْ

لوئ | په هغه ورځ | چې ګواهي به کوی | په هغوئ باند | ژبې دهغوئ | او لاسونه دهغوئ

دردناک عذاب مقرر دې |په کومه ورځ چې به دوی په هغه عملونو کوم چې دوی کړی وی د دوی

وَاَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ۝ یَوْمَئِذٍ

او ښپې دهغوئ | په هغه کارونو | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | په دغه ورځ به

ژبې او لاسونه او ښپې ګواهي ورکوی | ........................ په دغه ورځ

یُّوَفِّیْهِمُ اللّٰهُ دِیْنَهُمُ الْحَقَّ وَیَعْلَمُوْنَ

پوره پوره ورکړی هغوئ له | الله | بدله دهغوئ | چې لائيقه وی | او معلوم به شی هغوئ ته

به الله ﷻ دوئ ته د دې پوره پوره سزا ورکړی |او دوئ ته به معلومه شی

اَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِیْنُ ۝ اَلْخَبِیْثٰتُ لِلْخَبِیْثِیْنَ

چې بيشكه الله|هم هغه حق دې|رښتياؤ لره رښتيا کونکې دې |ناپاکې ښځې |دپاره دناپاکو سړو دی

چې يقيني ده چې الله ريښتوني اوددهرې خبرې ښکاره کونکې دې| پيليتې ښځې د پليتو سړو لائقې دی

وَالْخَبِیْثُوْنَ لِلْخَبِیْثٰتِ وَالطَّیِّبٰتُ لِلطَّیِّبِیْنَ وَالطَّیِّبُوْنَ

او ناپاک سړی| دپاره دناپاکو ښځو دی | او پاکې ښځې | دپاره پاکو سړو دی | او پاک سړی

او پليت سړی د پليتو ښځو لائق دی| او پاکې ښځې د پاکو سړو او پاک سړی

لِلطَّیِّبٰتِ اُولٰٓئِكَ مُبَرَّءُوْنَ مِمَّا یَقُوْلُوْنَ لَهُمْ

دپاره دپاکو ښځو دی| دا کسان | پاک دی | دهغه خبرونه | چې دوئ ئې وائی | ده ددوئ دپاره

دپاکو ښځو لائق دی |دا خلق دهغه خبرونه بيخی پاک دی کومې چه هغوی کوی | او دوئ

مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِیْمٌ ۝

ښښانه | او رزق عزتمند |

دپاره ښښنه او دعزت روزی ده۔|

**آسان ترجمه قرآن**

**يقينا اولرئ چه کومو خلقو [په حضرت عائشې رضی الله عنها باندې] دا تهمت لګولې دې، هغه ستاسو نه يو ډله ده، تاسو دا د ځان دپاره بدنه مه ګنړئ، بلکه دا ستاسو دپاره ډير خير دې په هغه خلقو کښې چه د**

هریو په حصه کښې خپله کړې ګناه راغلې ده، او په هغوی کښې چه چا د دې (بهتان) لویه حصه په خپل سر اخستلې ده، د هغه دپاره خو زبردست عذاب دې کوم وخت چه تاسو دا خبره اوریدلې وه، نو داسې ولې اونشوه چه مومنانو سړو او مومنانو زنانو هم د خپل ځان په باره کښې نیک ګمان کړې وې او وئیلې ئې وې چه دا ښکاره دروغ دی؟ هغوی (بهتان لګونکو) په دې خبره باندې څلور ګواهان ولې رانه وستل؟ اوس چه هرکله هغوی ګواهان رانه وستل نود الله پاک په نزد هم دوی دروغژن دی. او که په تاسو باندې په دنیا او آخرت کښې د الله پاک فضل او د هغه رحمت نه وې نو په کومو خبرو کښې چه تاسو لګیدلی وئ، نو د هغې په وجه باندې به په تاسو باندې سخت عذاب راغلې وې. چه کله تاسو په خپلو ژبو باندې دا خبره یو بل ته نقل کوله او په خپلو خولو باندې مو هغه خبره کوله چه د هغې تاسو ته علم نه وو، او تاسو دا خبره معمولي ګنړله، حال دا چه هغه د الله پاک په نزد ډیره سخته خبره وه. او کوم وخت چه تاسو دا خبره اوریدلې وه، هم هغه وخت تاسو ولې اونه وئیلې چه: مونږ ته هیڅ حق نه دې حاصل چه مونږ دا خبره د خولې نه اوباسو، یا الله! ستا ذات د هر عیب نه پاک دې، دا خو ډیر لوئې بهتان دې. الله پاک تاسو ته نصیحت کوی چه بیا کله هم داسې مه کوئ، که تاسو واقعي مومنان یئ. او الله پاک ستاسو مخکښې د هدایت خبرې صفا صفا بیانوی، او الله پاک د علم هم مالک دې او د حکمت هم مالک دې یاد ساتئ چه کوم خلق دا غواړی چه په ایمان والو کښې بې حیائي راشي، د هغوی دپاره په دنیا او آخرت کښې دردناک عذاب دې او الله پاک پوهیږی، او تاسو نه پوهیږئ. او که دا خبره نه وې چه د الله پاک فضل او دهغه رحمت شامل حال دې، او الله پاک ډیر شفقت کونکې، او ډیر مهربانه دې (نو تاسو به هم نه وې بچ شوی) اې ایمان والو! تاسو په شیطان پسې مه ځئ، او کوم انسان چه په شیطان پسې لاړو، نو شیطان خو همیشه د بې حیائي او بدئ تلقین کوی. او که په تاسو باندې د الله پاک فضل او رحمت نه وې نو په تاسو کښې به څوک هم پاک صفا شوې نه وې، خو الله پاک چه څوک اوغواړی، پاک صاف کوی ئې، او الله پاک هره خبره اوری، هر څیز باندې پوهیږی. او په تاسو کښې چه کوم سړې اهل خیر دی او مالي فراخي لری هغوی دې داسې قسمونه نه خوری چه هغه به رشته دارو، مسکینانو او د الله پاک په لاره کښې هجرت کونکو ته هیڅ نه ورکوی او هغوی له پکار دی چه د معافئ او بخښنې کولو نه کار واخلی. آیا ستاسو دا نه ده خوښه چه الله پاک به ستاسو ګناهونه معاف کړی؟ او الله پاک ډیره بخښنه کونکې، ډیر مهربان دې. یاد ساتئ چه کوم خلق په پاکو او ساده مسلمانانو زنانو باندې تهمت لګوی، په هغوی باندې په دنیا او آخرت کښې لعنت شوې دې، او هغوی ته به په هغه ورځ باندې سخت عذاب وی، کله چه به خپله د هغوی ژبې، د هغوی لاسونه او د هغوی خپې د هغوی خلاف دهغوی د هغه اعمالو ګواهي ورکړی کوم ئې چه کول. هغه ورځ به الله پاک هغوی ته پوره پوره بدله ورکړی د کوم چه هغوی مستحق دی. او هغوی ته به پته اولګی چه الله پاک حق دې اوهم هغه ټوله خبره ښکاره کونکې دې. ناپاکې زنانه د ناپاکو سړو دپاره دی، او ناپاک سړی د ناپاکو زنانو لائق دی او پاکې زنانه د پاکو سړو دپاره دی، او پاک سړی د پاکو ښځو دپاره دی دا (پاک سړی او پاکې ښځې) د هغه خبرو نه بالکل پاک دی کومې چه دا خلق بیانوی. د دې (پاکو خلقو) په حصه کښې خو مغفرت دې او د عزت روزی ده.

**د آيتونو ربط**:ـ څنګه چې مخکښې بيان شويدی چې د سورۀ نور زياته حصه يو خوا د هغې احکامو په باره کښې دی چې دپاکوالی او پاك لمنئ د حفاظت دپاره جاري کړې شوی دی . او بل خوا په پاکوالی او پاك لمنئ باندې د لاس اچولو اودهغې د خلاف ورزئ دنيوی سزاګانې او په هغوئ باندې د آخرت دلوئې وبال بيان شوې دې . نو په دې کښې اول د زنا دحد ، بيا دحد قذف او بيا د لعان بيان راغلې دې . د حد قذف په بيان کښې دا هم راغلی دی چې تر څو پورې د څلورو کسانو ګواهی نه وی نو په پاك لمنو بيبيانو باندې د ګناه الزام لګول لويه ګناه ده چې شرعی سزايې اتيا درې وهل دی .

دا مسئله د عامو پاك لمنو مسلمانانو بيبيانو باره کښې وه ، او هر کله چې په شپږمه هجرئ کښې ځينې منافقانو په ام المؤمنين عائشه صديقه رضي الله عنها باندې داسې غلط تور پورې کړې وو چې ځينې مسلمانان هم دهغوئ خبرو پسې تلی وو. دا معامله د عامو مسلمانانو بيبيانو د معاملې څخه زياته سخته وه ، په دې وجه قرآن عظيم الشان کښې د عائشه صديقه رضي الله عنها د بې ګناهئ او پاکئ په بيان کښې دلته لس رومبی آيتونه مبارك نازل شو چې په کښې يو خوا د عائشې رضي الله عنها د پاکئ او بې ګناهئ بيان دې ، بل طرفته هغې خلقوته خبرداري او په دنيا او آخرت کښې د هغوئ د وبال بيان دې چا چې دغې د دروغ تور پورې کولو کښې په څه شان سره حصه اخستې وه. په دروغه د تور پورې کولو دا واقعه په قرآن عظيم الشان او حديث مبارکه کښې د افك په نوم سره مشهور ده ، ولې چې د افك معنی په دروغه ډير ناکاره تور پورې کول دی . ددې آيتونو په تفسير باندې پوهيدلو دپاره د افك قصه معلومول ډير دخل لری ، څکه اول په لنډو ټکو کښې ددې قيصې بيانول مناسب دی .

**د افك او بهتان قيصه**:ـ په صحيحينو[1] او دحديث په نورو کتابونو کښې دا واقعه په ډير اوږد تفصيل سره بيان کړې شوې ده . د هغې څه لنډ شان بيان داسې دې :

کله چې نبی کريم ﷺ په شپږمه هجرئ د بنی المصطلق غزا ته روان شو ، ددې غزا بل نوم مريسيع هم دې ، نو د مؤمنانو د مياندو ، بيبيانو نه يوه بی بی عائشه رضي الله عنها ورسره وه . په يو اوښ دپاسه په پرده داره کجاوه کښې کيناستله او چونکه دغه وخت زنانوٴ دپاره د پردې حکم نازل شوې وو. طريقه د سوريدو دا وه چې اول به عائشه رضي الله عنها په دغې پرده داره کجاوه کښې کيناستله او بيا به خلقو هغه اوچته کړه ، په اوښ به ئې کيخوده . ددغې غزا څخه په واپسئ کښې يوه شپه دغه قافلې د شپې يو ځائې کښې پړاؤ واچولو. د شپې په آخری حصه کښې اعلان اوشو چې قافله روانيدو والا ده هر سړې دې ځان تيار کړی . عائشه صديقه رضي الله عنها د قافلې څخه روستو څنګل ته اودس ماتې دپاره لاړه . هلته ئې اميل اوشليدو چې دهغې په راتولولو کښې زيات وخت تير شو چې کله واپس خپل ځائې ته راغله نو قافله ددغې ځائې څخه روانه شوې وه . ددې د اوښ قصه داسې شوې وه چې کله خلقو کوچ اوکړو نو د عادت مطابق يې د عائشه رضي الله عنها کجاوه په اوښ باندې بار کړه ، او د ادب او احترام بۀ وجه ئې او نه کتل چې عائشه صديقه رضي الله عنها دې کښې شته دې او که نه. او دا خيال ئې اوکړو چې عائشه

---

[1] ) صحيح البخاري كتاب المغازي ،باب يث الإفك [ج:۲ص:۵۹۳] و صحيح مسلم كتاب التوبة، باب في حديث الإفك ، و مسند احمد ، حديث السيدة عائشة رضي الله عنها رقم الحديث:[۲۶۳۷۱]

صديقه رضي الله عنها دي کښې موجوده ده. دکجاوې د سپکوالی او دروندوالی اندازه ئې هم څکه اونه کړې شوه چې د عائشه صديقه رضي الله عنها عمر مبارك دې وخت کښې ډير کم وو او وزن مبارك ئې هم دومره نه وو. عائشه صديقه رضي الله عنها چې دغلته راغله نو ډير د عقل مندئی څخه ئې کار واخستو چې د اخوادې خوا منډې وهلو په ځائې هلته ئې څادر د ځانه چاپيره کړو او کيناسته او خيال ئې اوکړو چې کله نبی کريم صلی الله علیه وسلم او ملګری ته يې دا معلومه شي چې زه په کجاوه کښې نه يم نو زما د لټولو دپاره به ما پسې په راشي. که اوس زه يو خوا بل خوا چرته لاړه شم نو زما لټول به نبی کريم صلی الله علیه وسلم ته ګران شي او ملګرو ته به ئې هم ګرانه شي. دغه شان په څادر کښې انغښتې ناسته وه، دشپې وخت وو، خوب ورغلو او هم هلته څملاسته او اوده شوه.

بل د قدرت کارونو ته ګوره چې صفوان بن معطل رضي الله عنه صحابی نبی کريم صلی الله علیه وسلم مقرر کړې وو چې ته به دا خدمت کوې چې د قافلې څخه روستو روستو په دې غرض رازې چې د قافلې څخه پاتې څه څيز قافلې ته راؤرسوی. دصبا په وخت صفوان بن معطل رضي الله عنه چې دغلته راؤرسيدو نو پوره رڼا شوې وه. وې ليدل چې څوك بنيادم اوده پروت دې چې نژدې ورغلو نو عائشه صديقه رضي الله عنها ئې اوپيژندله چې د پردې نازليدو وړاندې ئې ليدلې وه. د افسوس او خفګان په وجه ئې انا لله وانا اليه راجعون اووئيل. ددې په آوريدو عائشه صديقه رضي الله عنها رابيداره شوه، مخ ئې په پرونی پټ کړو. صفوان رضي الله عنه ورته نژدې اوښ چوك کړو او دائې پرې سوره کړه. صفوان رضي الله عنه د اوښ مهار نيولې روان وو تر دې چې قافلې ته اورسيدو.

عبدالله بن ابی ډير خبيث منافق د نبی کريم صلی الله علیه وسلم سخت دښمن وو، هغه ددې خبرې څخه خبر شو نو ګډوډې وئيل ئې شروع کړې. څينې ساده مسلمانانو لکه حسان بن ثابت رضي الله عنه، مسطح رضي الله عنه او حمنه رضي الله عنها هم دده په خبرو دهوکه شو څنګه چې په درمنثور کښې د ابن مردويه په روايت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چې: ([1])[اعانه اي عبدالله ابن ابی حسان ومسطح وحمنه]([2])

ددې غټ منافق په خبر خورولو باندې چې کله نبی کريم صلی الله علیه وسلم خبر شو ډير زيات خفه شو چې نور مسلمانان هم ورسره خفه شو. تر يو مياشتې پورې دا شوروښ جاری وو. آخر الله جل جلاله د عائشه صديقه رضي الله عنها په صفائی او په دروغه د تور پورې کوؤنکو يا په هغې پسې د تلونکو په بدئ بيانولو کښې دغه پورته آيتونه نازل کړل چې تفسير به ئې دې پسې کولې شي. د قرآنی ضابطې مطابق چې بيان ئې د حد قذف لاندې راغلې دې تور پورې کوؤنکو نه د ګواهئ غوښتنه اوکړې شوه. خو هر کله چې دا يو بې بنياده خبر وو نو ګواهان به دکومې راغلی وو؟ نتيجه ئې دا شوه چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم دشرعی ضابطې مطابق حد قذف جاری کړو او هر يو ته ئې د اتيا اتيا درو وهلو سزا ورکړه. بزار او ابن مردويه د ابی هريره رضي الله عنه څخه روايت کړې دې چې دغه وخت نبی کريم صلی الله علیه وسلم په درې مسلمانانو مسطح رضي الله عنه، حمنه رضي الله عنها، او حسان رضي الله عنه باندې حد قذف جاری کړو. او طبرانی د عمر فاروق رضي الله عنه څخه روايت کړې دې چې

---

[1] ) ترجمه:- حضرت حسان رضی الله عنه، حضرت مسطح رضی الله عنه او حضرت حمنه رضی الله عنه د عبدالله بن ابی ملګرتيا کړې وه.

[2] ) الدرالمنثور (بألفاظ مختلفة) تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۲۵۶]

نبي كريم ﷺ اصلي اوبنيادي تور پوري كوونكي عبدالله بن ابي منافق باندي غبرګ حد جاري كړو. بيامؤمنانو تربه اوكړه، اومنافقان پخپل حال باندې كلك پاتې شو. [بيان القرآن[1]]

## خلاصه تفسير

[اې مسلمانانو تاسو چه كوم دحضرت عائشې صديقې رضي الله عنها متعلق د دروغو په تهمت سره غمژن شوى يئ په دې غمژن كيدو كښې په خپله حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها هم داخله ده نو تاسو زيات غم مه كوئ ځكه چه ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ جَآءُوْ بِالْاِفْكِ﴾ [كوموخلقو داطوفان يعنى تهمت] دحضرت عائشه رضي الله عنها په نسبت [ پورته كړې دې﴿عُصْبَةٌ مِّنْكُمْ﴾ هغه تاسو نه يوه ] وړوكې شان [ډله ده] ځكه چه تهمت لګوونكى ټول څلور وو يو پخپله د دروغو تهمت جوړونكې يعنى عبدالله بن ابى منافق او درې په واسطه سره كوم چه ددۀ دخبرنه متاثره شوې وو يعنى حسان رضي الله عنه ،مسطح رضي الله عنه اوحمنه رضي الله عنها كوم چه مخلص مؤمنان وو داټول قرآن په منكم كښې داخل كړل يعنى مسلمانانو كښې حال دادې چه عبدالله بن ابى منافق وو دهغه وجه ددۀ ظاهري دعوى داسلام وه مطلب د ايت تسلي وركول دي چه زيات غم مه كوي اول خو خبر دروغژن بيانقل كوونكى هم څلور تنه دي او زيات خلق خو ددې مخالف دي پس عرفا هم په دې دومره زيات غم كول نه دي پكار وړاندې په يوه بله طريقه تسلي ده چه ﴿لَا تَحْسَبُوْهُ شَرًّا لَّكُمْ﴾[تاسودې] دروغوجوړولو [ لره په خپل حق كښې بد مه ګڼئ ] اګرچه په ظاهركښې دغم خبره ده مګر په حقيقت كښې په دې كښې ستاسو هيڅ ضررنشته ﴿بَلْ هُوَ﴾[ بلكه دا] په اعتباردانجام ﴿خَيْرٌ لَّكُمْ﴾[ستاسوپه حق كښې غوره ده] ځكه چه په دې غم سره تاسوته دصبر ثواب ملاوشو او درجې مو وچتې شوې او بيا خاص په چاچه تهمت لګيدلې وو دهغوئ حضراتو پاكدامنى په نص قطعى سره راغله او ائنده هم دمسلمانانو په حق كښې خيردې چه داسې مصيبت په چاراشى نو په دې واقعې سره به تسلي حاصلوى پس ستاسو هيڅ نقصان نه شو البته كومو خلقو چه ددې چرچه كوله دهغوى ضرر وشو چه ﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ مَّا اكْتَسَبَ مِنَ الْاِثْمِ﴾[په دوى كښې كوم سړى څومره څه كړي وو هومره ګناه يې وشوه] مثلا په ژبه سره دبيان كوونكو زياته ګناه وشوه اوچاچه واوريده او خاموش پاتې شول ياكومو چه په زړۀ كښې بدګمانى وكړه نو ددې موافق ګناه يې وشوه ﴿وَالَّذِيْ تَوَلّٰى كِبْرَهٗ مِنْهُمْ﴾[ او په دوى كښې چه چاپه دې ] بهتان [كښې لويه حصه اخستې ده] چه دادروغ يې جوړ كړي دي مراد ددې نه عبدالله بن ابى منافق دې ﴿لَهٗ عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾ [دۀ لره به ] دټولونه [ سخته سزاوى] مراد ددې نه جهنم دې چه ددې نه وړاندې هم دې په وجه دكفر اونفاق او دښمنۍ درسول الله ﷺ مستحق دعذاب وواوس دنورې زياتې سزامستحق شو داخود غم زيلو تسلي وه چه ستاسو هيڅ نقصان ونه شو اود بهتان جوړونكو ضرر ثابتول وو وړاندې چه په دوى كښې كوم مومنان ووهغوى ته په طور دنصيحت ملامتياده چه ﴿لَوْلَا اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ﴾[ كله تاسو داخبره واوريده ﴿ظَنَّ الْمُؤْمِنُوْنَ﴾نو مسلمانانو سړى]چه حسان او مسطح په كښې هم راغلل ﴿وَالْمُؤْمِنٰتُ بِاَنْفُسِهِمْ خَيْرًا﴾[او مسلمانانو ښځو] چه حمنه په كښې هم راغله [په خپل مينځ كښې په خپلو خلقو] يعنى حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها او دغه صحابى رضي الله عنه باند په زړۀ سره [نيك ګمان ولې نه كولو او] په ژبه سره ﴿وَّقَالُوْا هٰذَآ اِفْكٌ مُّبِيْنٌ﴾ [داسې مو

---

[1]) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:۸ ص:۸] والمعجم الكبير رقم الحديث :[۱۹۱۸۲]

ولې نه وئيل چه دا صريح دروغ دی] لکه چه په در منثور(۱) کښې دابوايوب رضي الله عنه او دده دبې بې داقول ذکر دې چه په دې کښې دبهتان جوړونکوسره هغه هم شامل دی کومو چه واوريدل اوخاموش پاتې شول يا په شك کښې پريوتل په دې ټولوملامتياده چه عام مؤمنان سړی او ښځې په کښې هم داخل شول وړاند ددې تهمت د رد کولو او دنيك ګمان کولو دوجوب وجه ارشاد ده چه [ دې] بهتان لګوونکو ﴿لَوْلَا جَآءُو عَلَيْهِ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ﴾ [ خلقو په دې] خپله وينا [څلور ګواهان ولې نه پيش کوی ] کوم چه شرط دی د زنا د ثابتولو دپاره ﴿فَإِذْ لَمْ يَأْتُوا بِالشُّهَدَآءِ﴾ [پس په کوم حالت کښې چه دې خلقو ګواهان ] دقاعدې موافق [ رانه ولی ﴿فَأُولَٰئِكَ عِندَ اللَّهِ هُمُ الْكَاذِبُونَ﴾ نو بس دالله تعالی په نزد] چه کوم قانون [دې په دې اعتبار سره دوی دروغژن دی ] وړاند په بهتان لګوونکوکښې چه کوم مؤمنان وو په هغوی هم درحمت ذکر دې ﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ﴾ [اوکه چرې] اې حسان مسطح او حمنې[په تاسو دالله تعالی فضل اوکرم نه وې﴿فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ په دنيا کښې ] هم چه دتوبې مهلت ئې درکړو [ او په اخرت کښې] هم چه دتوبې توفيق ئې درکړو اوستاسو دغه توبه ئې قبوله هم کړه که دانه وې ﴿لَمَسَّكُمْ فِي مَآ أَفَضْتُمْ فِيهِ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ [نو په کوم شغل کښې چه تاسو پريوتی وئ په دې کښې به په تاسو سخت عذاب واقع شوې وو] لکه چه عبدالله بن ابی دپاره چه به د توبې نه کولو په وجه وی اګر چه دا وخت مهلت په دنيا کښې هغه ته هم ورکړې شو مګر په مجموعه دارينوکښې رحمت نه دې او ددې نه معلومه شوه چه صحابه مقبول التوبه يعنی دعائې قبوله شوه او پاك شول په اخرت کښې مرحوم دی او په عليكم کښې خطاب مؤمنانو ته دکيدو نخښنه بره په ايت کښې دا ذکر ده [ظن المؤمنون] او دويمه [فی الاخرة فرمائيل چه منافقان خو په اخرت کښې دجهنم دلاند طبقې مستحق دی هغوی يقينا مرحوم فی الاخرة نه شی کيدې دريم وړاند په يعظكم لولا فضل الله عليكم] کښې طبرانی دابن عباس رضي الله عنه قول نقل کړې دې چه [ يريد مسطحا وحمنة وحسانا] لکه په درمنثور کښې دی يعنی د [لولا فضل الله عليكم] مخاطب صرف درې مؤمنان دې يعنی مسطح ،حمنه،حسان،وړاند ددې بيان دې چه په مؤمنانو که دالله تعالی خاص فضل نه وې چه دوی له ئې دتوبې توفيق ورکړو او توبه ئې هم وکړه نوکوم کارچه دوی کړې وو هغه په خپل ذات کښې دعظيم عذاب واجبوونکې وو فرمائی ﴿إِذْ تَلَقَّوْنَهُ بِأَلْسِنَتِكُمْ﴾ [ هرکله چه تاسودې ] دروغ خبرې [ لره په خپلوژبو سره يو بل ته نقل کوله ﴿وَتَقُولُونَ بِأَفْوَاهِكُم﴾ او په خپلوخلو مو داسې خبره کوله ﴿مَّا لَيْسَ لَكُم بِهِ عِلْمٌ﴾ دکومې چه تاسو ته] په څه دليل سره [مطلق خبر نه وو] او داسې خبره چه د نقل کوونکو دروغژن والئ په [ فاولئك عند الله هم الكذبون ]کښې بيان شوې دی ﴿وَتَحْسَبُونَهُ هَيِّنًا﴾ [ اوتاسودې لره سپکه خبره ګڼړله ﴿وَهُوَ عِندَ اللَّهِ عَظِيمٌ﴾ حال دادې چه دغه دالله تعالی په نزد ډيره درنه خبره] يعنی دلوئ عذاب موجبه [ وه] اول خو په يو پاکدامنه ښځه دزنا تهمت لګول په خپله يوه لويه ګناه ده اوبيا هغه هم هغه څوك کومه چې د پاکو بيبيانونه چه په هغې تهمت لګول جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دازار رسولو سبب [دې ] پس په دې کښې د ګناه ډيرې وجې راجمع دی ﴿وَلَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ﴾ او تاسو چې کله دې خبرې [ لره] اول [ واوريده ﴿قُلْتُم مَّا يَكُونُ لَنَا أَن نَّتَكَلَّمَ بِهَٰذَا﴾ نو داسې مو ولې ونه وئيل چه مونږ له نه دی لائق چه داسې

(۱) الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۲۶۵]

خبره دخلې نه وباسو ﴿سُبۡحٰنَكَ هٰذَا بُهۡتَانٌ عَظِيۡمٌ﴾ پناه غواړو په الله تعالى سره داخولوئ بهتان دې] لكه څنې اصحابو كرامو ﷺ داسې وئيلى وو لكه چه دسعدبن معاذ ﷺ زيدبن حارثه ﷺ او ابى ايوب ﷺ نه داسې خبره نقل ده او دزياتونفى هم نشته ممكنه ده چه نورو ډيرو وئيلى وى مطلب داچه تهمت لګوونكو او چپ پاتى كيدونكو ټولو لره داسې وئيل پكار وو تردې خو په تيره زمانه بانـدې ملامتيـا وه اوس دائنده دپاره نصيحت دې كوم چه اصل مقصود دې دملامتيانه پس ارشاد دې چه ﴿يَعِظُكُمُ اللّٰهُ﴾ [ الله تعالى تاسوته نصيحت كوى ﴿اَنۡ تَعُوۡدُوۡا لِمِثۡلِهٖۤ اَبَدًا﴾ چه بيا داسې حركت مه كوئ هيڅ كله هم ﴿اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ﴾ كه تاسو ايماندارييء ﴿وَيُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الۡاٰيٰتِ﴾ او الله تعالى تاسو ته صفاصفا احكام بيانوى] چه په دې كښې حد قذف او قبول دتوبې كوم چه بره ذكرشوى دى ټول داخل دى ﴿وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ﴾ [اوالله تعالى لوئ پوهيدونكې او حكمت والا دې ] ستاسو دزړهٔ نه دستومانه كيدو حال هم هغه ته معلوم دې په دې وجه يې ستاسو توبه قبوله كړه او دسياست احكام هم ښه پيژنى په دې وجه ئې سياستا تاسو ته په دنيا كښې سزا دركړه دا تقسيم ئ ابن عباس ﷺ بيان كړې دې لكه چه په درمنثور كښې دى تردې ځائ پورې دبراءت نازليدونه وړاندې دتهمت د ذكر كوونكوذكر وو وړاندې ددې ذكر دې چه څوك په قرآن كښې دبراءت نازليدونه پس هم نه منع كيږى اوظاهره ده چه داسې سړې بې ايمانه دې پس ارشاد دې ﴿اِنَّ الَّذِيۡنَ﴾ [كوم خلق چه] پس دنازليدو ددې ايتونونه هم ﴿يُحِبُّوۡنَ﴾ [ غواړى] يعنى عملى كوشش ئ كوى ﴿اَنۡ تَشِيۡعَ الۡفَاحِشَةُ فِى الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا﴾ [چه دبې حيايئ دخبرې په مسلمانانو كښې چرچه خوره شى] يعنى داخبره خوره شى چه په دې مسلمانانو كښې د بې حيايئ خبره ده لنډمطلب دادې چه كوم خلق دې پاكو حضراتوطرف ته دزنا نسبت كوى ﴿لَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ فِى الدُّنۡيَا وَالۡاٰخِرَةِ﴾ [ ددوى دپاره په دنيا او اخرت كښې دردناكه سزا ] مقرر[ ده او] په دې كارپه سزا تعجب مه كوئ څكه چه ﴿وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ﴾ [الله تعالى پوهيږى ] چه كومه ګناه دكومې درجې ده ﴿وَاَنۡتُمۡ﴾ [ اوتاسو] ددې په حقيقت پوره ﴿لَا تَعۡلَمُوۡنَ﴾ [ نه پوهيږئ ] دا روايت دابن عباس ﷺ نه دې په درمنصور كښې وړاندې هغو خلقو ته خطاب دې كومو چه توبه وكړه او په دې سره داخرت دعظيم عذاب نه محفوظ شو [ او] اے توبه كوونكو ﴿وَلَوۡلَا فَضۡلُ اللّٰهِ عَلَيۡكُمۡ وَرَحۡمَتُهٗ﴾ [كه داخبره نه وې چه په تاسو دالله تعالى فضل اوكرم دې ]كوم چه تاسوله ئ توفيق دتوبې دركړو ﴿وَاَنَّ اللّٰهَ رَءُوۡفٌ رَّحِيۡمٌ﴾ [ او داچه الله تعالى ډير نرمى كوؤنكې او لوئ رحيم دې ] كوم چه ستاسو توبه قبوله كړه [ نو تاسو به هم ] ددې عذاب دوعدې نه [ نه وئ بچ شوى وړاند مسلمانانو ته په خپل رحمت سره بې دتخصيص ددې ذكرشوې ګناه نه دټولو ګناهونو نه دځـان سـاتلوامر او پـه تـوبې سـره دپاكيـدو وضـاحت دې كـوم چـه د اهتمـام دپـاره پـه مختلفوعنوانـاتو سـره بيـا بيـا ذكـر شـوې دې ارشـاد فرمـائى چـه ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا﴾ [ اے ايماندارو ﴿لَا تَتَّبِعُوۡا خُطُوٰتِ الشَّيۡطٰنِ﴾ تاسو دشيطان په قدمونو پسې په قدمونو ايښـودو مه ځئ] يعنى ددهٔ په لمسه اوګمراه كولو عمل مه كوئ ﴿وَمَنۡ يَّتَّبِعۡ خُطُوٰتِ الشَّيۡطٰنِ﴾ [ اوكوم سړې چه د شيطان په قدمونوقـدم ږدى اوځى ﴿فَاِنَّهٗ﴾ نو دغه ] شيطان هميشه هرسړى ته ﴿يَاۡمُرُ بِالۡفَحۡشَآءِ وَالۡمُنۡكَرِ﴾ [د بې حيايئ او بې عقلئ دكاركولو وائى ] لكه چه په دې واقعه دافك كښې تاسو وليدل [ او] دشيطان په قدمونو دتللو او ګناه كټلو نه پس ددې دوبال او ضرر نه كوم چه ثابت

شوې وو نجات درکول داهم زمونږ فضل وو ورنه ﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ﴾ [ كه په تاسو دالله تعالى فضل او كرم نه وې ﴿مَا زَكٰى مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ اَبَدًا﴾ نو په تاسوكښې به هيڅوك چرې هم ] په توبو كولو[پاك شوې نه وو] يابه ورته دتوبې توفيق نه وو وركړې شوې لكه چه منافقانو ته ونه شو او يابه ئې توبه نه وه قبوله شوې څكه چه په مونږ څه شي واجب خو نه دي ﴿وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ﴾[ليكن الله تعالى چالره چه غواړي ] دتوبې توفيق وركړي [پاك صاف كوي ئې ] او پس دتوبې نه ئې په خپل فضل سره د توبې د قبليدو وعده هم فرمائيلې ده﴿وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ﴾ [او الله تعالى هر څه اوري په هرڅه پوهيږي ] پس ستاسوتوبه ئې واوريده او ستاسو په پښيمانتيا باندې پوهه شو په دې وجه ئې فضل وفرمائيلو وړاند ددې بيان دې چه پس د نزول دايتونو دبراءت نه څنې اصحابو كرامو رضي الله عنهم چه په دوى كښې ابوبكرصديق رضي الله عنه هم دې رواه البخارى اونوراصحاب هم دى كذافى الدامنثورعن ابن عباس رضي الله عنه د ډيرې غصې نه قسم وخوړو چه كوموكومودې خبرې مشهورتيا كړې ده چه په دوى كښې حاجتمندهم وو دوى ته به اوس هيڅ قسمه مالى امداد ورنه كړو. الله تعالى ددوى د معا فئ د نه كولواوامداد جارى كولو دپاره ارشاد فرمائى﴿وَلَا يَاْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ﴾[او كوم خلق چه په تاسو كښې ] دينى [ او] ﴿وَالسَّعَةِ﴾ دنيوى [فراخئ والادى ﴿اَنْ يُّؤْتُوْٓا اُولِى الْقُرْبٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَالْمُهٰجِرِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ دوى دخپلوانو ته اومسكينانوته او دالله تعالى په لاره كښې هجرت كوونكو ته د وركولونه قسم نه كوى ] يعنى په داسې قسم دې قائم نه پاتې كيږي بلكه مات دې ئې كړي او هم دغه ئې مطلب دې ورنه قسم خوشې وو يعنى ددې صفتونو غوښتنه ده امداد كول خاصكرچه په دې كښې څه سبب دامداد كولو وى لكه حضرت مسطح رضي الله عنه چه دې دحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه نزدې رشته دار هم دې او مسكين او مهاجر هم دې وړاندې دترغيب دپاره فرمائى چه ﴿وَلْيَعْفُوْا وَلْيَصْفَحُوْا﴾[او پكار دى چه دوى معافى وكړي او دركزر وكړي ﴿اَلَا تُحِبُّوْنَ اَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ﴾ اياتاسو داخبره نه غواړئ چه الله تعالى ستاسو قصورمعاف كړي] پس تاسوهم خپلو تصور كوؤنكو لره معاف كړئ﴿وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ [ بيشكه الله تعالى بخښونكى او رحم كوؤنكى دې ] پس تاسو لره هم پكاردى چه دالله تعالى خويونه په ځان كښې پيداكړئ وړاندمنافقانو دعذاب دوعدې تفصيل دې دكومې چه پورته په [ ان الذين يحبون الخ ] كښې اجمالا ذكر وو يعنى ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ﴾[ بيشكه كوم خلق چه] پس دنزول دايتونونه دبدكارئ ﴿يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ﴾ [ تهمت لګوى په هغو ښځوكومې چه پاكدامنې دى] اووداسې خبرو] دكولو او ارادو[ نه] هم بالكل ﴿الْغٰفِلٰتِ﴾[ بې خبره دى] او ﴿الْمُؤْمِنٰتِ﴾[ ايماندارى دى] او دكومو پاكوالې چه دقرآن په نص سره ثابت شوې دې او جمع ئې څكه راوړه چه تهولوپاكو بيبيانو لره شامل شى چه په الطيبات سره دټولو پاكى ثابتـه ده اوظاهره ده چه كوم خلق په داسې پاكوبيبيانو تهمت لګوى كافران اومنافقان كيدې شى ﴿لُعِنُوْا فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ﴾[ په دوى په دنيا اوپه اخرت كښې لعنت كولې شى ] يعنى دالله تعالى دخاص رحمت نه په دواړه جهانه كښې به لرې وى﴿وَلَهُمْ﴾ [ او دوى لره به] په اخرت كښې ﴿عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾[ لوئ عذاب وى ﴿يَّوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ﴾ په كومه ورځ چه ددوى خلاف ددوى ژبې ګواهي وركوى او ﴿وَاَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ﴾ددوى لاسونه او ددوى پښې هم ] ګواهي وركوى﴿بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾ [ دهغه كارونو كوم چه دغو خلقوكول] مثلا ژبه به ئې ووائى چه ده زما په ذريعه

فلانئ فلانئ دکفر خبره کړې ده اولاس پښبې به يې ووائي چه دا دکفرياتو درواج کولو دپاره داسې منډې ترړې وهلې دی ﴿يَوْمَئِذٍ يُوَفِّيهِمُ اللَّهُ دِينَهُمُ الْحَقَّ﴾ [ په دغه ورځ به الله تعالى دوی ته ددوی مقرر کړې شوې بدله پوره پوره ورکړی او] په دغه ورځ به ټيك ټيك ﴿وَيَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِينُ﴾ [ دوی ته معلومه شي چه الله تعالى ټيك فيصله کوونکې ]او د [خبرې] حقيقت [ لره ښکاره کوونکې دې] يعني اوس خودکفر په وجه ددې خبرې اعتقاد دوی ته کماحقه نشته مګر دقيامت په ورځ به هغوئ ته معلومه شي اوچه دا ورته معلومه شي نو دنجات نه به بالکل مايوسه شي ځکه چه ددغې مناسب فيصله د هميشه عذاب دې دا ايتونه دهغو په باره کښې دی چه توبه يې نه ده کړې او دبراءت دايتونو دنازليدونه پس هم دعقيدې دتهمت نه واپس نه شو او توبه کوونکولره يې په [فضل الله ورحمته] کښې مرحوم د دواړو جهانو وفرمائيل او غيرتوبه کوونکو لره يې په لعنوا] ددواړو جهانولعنتيان وفرمائيل او توبه کوونکو لره يې په [ لمسکم في ماافضتم فيه عذاب عظيم] کښې دعذاب نه محفوظ وښودل او تو نه ويستونکو لره يې په [لهم عذاب عظيم ] کښې او دارنګ ددې نه وړاند [ والذي تولى كبره] کښې ئې په عذاب کښې اخته دعذاب وښودل توبه کوونکوته يې په [ان الله غفوررحيم] کښې خوشخبری دعفو اوبخښنې او دګناه پټولو اوفرمائيله توبه نه ويستونکو ته يې په [ تشهدا ويوفيهم ] کښې وعده دعدم عفو او رسوا کولو وفرمائيله توبه کوونکو لره يې په [ مازکی منکم الخ] کښې پاك ښودلي وو غيرتوبه کوونکی يې راتلونکی ايت کښې خبيث اوفرمائيل چه په دې کښې يې په مضمون دبراءت باند استدلال وکړو او قصه يې ختم وفرمائيله يعنې دا قاعده کليه ده چه ﴿الْخَبِيثَاتُ لِلْخَبِيثِينَ﴾ [ ګنده ښځې دګنده سړو لائقې وی ﴿وَالْخَبِيثُونَ لِلْخَبِيثَاتِ﴾ اوګنده سړی دګنده ښځولايق وی ﴿وَالطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِينَ﴾ اوپاکې ښځې دپاکوسړو لائقې وی ﴿وَالطَّيِّبُونَ لِلطَّيِّبَاتِ﴾ اوپاك سړی دپاکوښځو لايق وی] يوه مقدمه خوداشوه او دويمه مقدمه دضرورياتونه ده چه جناب رسول کريم ﷺ ته هرڅيز ددوی ﷺ لائق او مناسب ورکړې شوې دې او هغه ستره څيزونه دی نو خامخا ددې ضروری مقدمې په اعتبار سره ددوی بی بی هم صفا ده او ددې په ستره کيدو سره ددې خالص تهمت نه دحضرت صفوان ؓ پاکوالې هم لازم شو په دې وجه وړاند فرمانی چه ﴿أُولَٰئِكَ مُبَرَّءُونَ﴾ [ دوی ددې خبرې نه پاك دی ﴿مِمَّا يَقُولُونَ﴾ کوم چه دغه] منافقان [بکواسونه کوی ﴿لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ﴾ ددوی ] حضراتو [دپاره] په اخرت کښې مغفرت او دعزت رزق ] يعني جنت [دې]

## معارف او مسائل

**د حضرت عائشې صديقې ؓ خصوصي غوره والی او کمالونه او د اِفک د قيصې څه پا تې برخه::** د رسول الله ﷺ دشمنانو د هغوی په خلاف ټول خپل چلونه او تدبيرونه پکار راوستل او هغه ټول صورتونه ئې اومائيل چه په ذهنونو کښې ئې راتلې شو چنانچه هغوی ته په ټولو ژبانونو کښې د ټولو نه زيات او آخری زيان دا ځکه وو چه دا روحانی زيان د هغې بی بی ؓ په باره کښې وو چه په ټولو بيبيانو د هغوئ کښې عالمه ، غوره او پاکيزه بی بی حضرت عائشه صديقه ؓ وه چه په هغې باندې عبدالله بن ابی منافق د هغې صحابی حضرت صفوان ؓ سره تور پورې کړو چه هغه هم پاکيزه وو منافقانو دې له زيات رنګ روغن ورکړو او خور ئې کړو په دې کښې غم زياتوونکې

خبره دا وه چه یو څو ساده مسلمانان په دې چال کښې راګیر شو او د دغې تورپورې کولو خبرې ئې یادولې ددې بې اصله او بې دلیله هوائی تهمت په څو ورځو کښې پخپله حقیقت ځرګندیدونکې وو خو ام المؤمنین او پخپله رسول الله ﷺ ته په دې سره چه کوم روحانی غم، درد رسیدلې وو الله تعالی د هغې د لرې کولو او د حضرت عائشې رضي الله عنها د صفایئ د پاره د وحی ئې څه اشاره کافی او نۀ ګڼړله بلکه د قرآن کریم تقریبا دوه رکوع ګانې ئې د هغې رضي الله عنها په صفایئ کښې نازلې کړې او کومو خلقو چه دا تور پورې کړې وو یا کومو خلقو چه دې ته په شوربش ورکولو کښې برخه واخسته په هغې ټولو باندې د دنیا او آخرت د عذاب داسې وعیدونه بیان کړل چه غالبا په بله هیڅ موقعه باندې دغسې زورنې نۀ دی راغلې حقیقت دا دې چه د .افک، دې واقعې د حضرت عائشې رضي الله عنها یواځې بې داغی او پاک لمنی روښانه نۀ کړه بلکه د هغې د اعلی عقل او پوهې کمالونه ئې هم روښانه کړل ځکه د دې آیتونو ځنې په ړومبی آیت کښې الله تعالی فرمائی چه دا پیښه د ځان د پاره شر مۀ ګڼړئ بلکه دا ستاسو د پاره خیر دې دې نه به لوئ خیر بل کوم وی چه الله تعالی په لسو آیتونو کښې د هغوئ د پاکئ او بیګناهئ ګواهی ورکړه چه تر قیامته پورې به تلاوت کولې شی پخپله حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی چه په خپل ځای خو م دا یقین وو چه الله تعالی به د وحی په ذریعه زما صفائی او بیګناهی ښکاره کوی خو خپل ځان م د دې جوګه نۀ ګڼړلو چه زما په باره کښې به د قرآن کریم آیتونه نازلیږی چه همیشه دپاره به لوستلې شی دلته د واقعې په زیات تفصیل باندې ځان پوهول هم په آیتونو باندې په پوهیدلو کښې مددګاروی ځکه ئې په لنډو کښې لیکل غواړم د دغې سفر نه په واپسئ کښې حضرت عائشه رضي الله عنها په خپلو کارونو کښې مصروفه شوه د دغې تور پورې کولونه هغوی هیڅ خبر نۀ وو چنانچه پخپله حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمائی چه د دغې سفرنه په واپسئ کښې م طبیعت څه خراب شو او د طبیعت خرابیدو د ټولونه غټه وجه م داوه چه د رسول الله ﷺ هغه ړومبئ مهربانی م ځان سره نۀ لیدله بلکه په دغې ورځو کښې به رسول الله ﷺ چه کورته تشریف راوړو سلام به ئې واچولو او تپوس به ئې اوکړو چه څه حال دې ؟ او بیابه ئې واپس تشریف یوړلو. هرکله چه په ما باندې د تور پورې کیدو نه زۀ بیخی ناخبره وُم ځکه د هغوی د دغې رویې په راز نۀ پوهیدم او په زړه زړه کښې د غم نه ویلې کیدم یوه ورځ م د مسطح رضي الله عنه مور بی بی ځان سره واخسته چه بهر اودس ماتی له لاړه شم ولې چه زۀ کمزورې وم او زمونږ په کورونو کښې د اودس ماتی د انتظام کولو څه رواج نۀ وو د بهر نه په واپسئ کښې د مسطح رضي الله عنه د مور بی بی رضي الله عنها خپه د هغې په لوئ څادر کښې اونښته او را پریوته دغه وخت ئې د خولې نه داسې ښیره اوواته ،(۱)تعس مسطح ، دا داسې کلمه ده چې په عربی کښې د خیرې دپاره استعمالیږی. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی څه حیرانه شوم چه خپله مور بی بی خپل ځوئ ته ولې ښیرې کوی ورته م او وئیل چه یو نیک بنده ته تۀ ولې خیرې کوې چه د بدر په غزا کښې هم شریک شوې دې او ځوئ دې هم دې دغې بی بی په حرانتیا سره او وئیل چه لورې ته خبرې نۀ ئې چه زما مسطح ځوئ نن صبا څه څه وائی لګیادې؟ ما تپوس اوکړو چه هغه څه وائې نو دغې بی بی زۀ په تور پورې کولو او په دې کښې د مسطح په برخې اخستو او د دې په خورولو باندې خبر ه کړم صدیقه رضي الله عنها فرمائی چه په دې سره زما مرض نور هم زیات شو څه وخت چه رسول الله ﷺ دننه تشریف راوړو سلام ئې

[۱]) ترجمه:- مسطح دې هلاك شي.

اوکړو او مزاج پرسی ئې اوکړه نو حضرت عائشې رضي الله عنها د دې اجازت ترې اوغوښتو چه د والدينو
کورته لاړه شي هغوی اجازت ورکړو د دې اجازت د غوښتو مطلب دا وو چه د والدينو نه به د دې
معاملې تحقيق اوکړم هلته په ورتلو م د خپلې مور بی بی رضي الله عنها نه تپوس اوکړو هغوی راته تسلی
راکړه چه ستا په شان د بيبيانو دشمنان شته دې او هم دغسې څيزونه مشهوروی ته هيڅ غم مهٔ
کوه معامله به بيخی صفاشي ـ حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه سبحان الله م اووئيل او دا م
اووئيل چه هر کله په خلقو کښې خبره مشهوره شوې ده نو څنګه پرې صبر کولې شم ؟ فرمائی چه
ټوله شپه م ژړل نه مې اوښکې بندې شوې او نه مې سترګې پټې شوې بل اړخ ته د دې خبرې په
خوريدو رسول الله ﷺ هم ډير زيات غمژن وو په دغې ورځو کښې پرې څه وحی هم نهٔ وه راغلې
لهذا د حضرت علی رضي الله عنه او د اسامه بن زيد رضي الله عنه نه ئې مشوره اوغوښتله ولې چه دواړه ئې د کور
سړی وو وې فرمائيل چه په دې حال کښې څه کول پکار دی حضرت اسامه رضي الله عنه خو ښه په ډاګه
عرض اوکړو چه د خپل علم او خبر مطابق م د حضرت عائشې رضي الله عنها په باره کښې هيڅ بدګمانی
نشته هغې کښې هيڅ خبره داسې نشته چه بد ګمانۍ ته ترې لار پيدا کيږی تاسو د دغې افواګانو
هيڅ پروا مهٔ کوئ [د غم او پريشانۍ کمولو د پاره ورته ] حضرت علی رضي الله عنه دا مشوره ورکړه چه
الله تعالی در باندې هيڅ تنګی نهٔ ده راوستې که د افواګانو په بنا مو څه قدرې طبيعت خړ شوې
وی نو ښځې نورې هم ډيرې دی او ستاسو دا طبيعت خړيدل په دې هم لرې کيدې شی چه د
حضرت عائشې رضي الله عنها د وينځې بريرې رضي الله عنها نه د هغوی [حضرت عائشې] ذحالاتو تحقيق اوکړئ
څه وخت چه رسول الله ﷺ د بريرې نه تپوس اوکړو نو هغې عرض اوکړو چه سوا د دې نه م په
حضرت عائشې رضي الله عنها کښې بل څه نقص نهٔ دې ليدلې چه د کشر عمر جينۍ ده کله کله اغږلی اوړه
چه کيږدی نو ترې اوده شی نو چيلۍ [بزه] راشی دغه اوړه اوخوری [دې نه پس په حديث کښې د
رسول الله ﷺ خطبه ورکول او په منبر باندې د دروغ تور پورې کونکو او د افواه خوراوونکو د
شکايت بيانولو او اوږده قيصه بيانول راغلی دی ورپسې لنډه قيصه داده چه] حضرت عائشه
رضي الله عنها فرمائی چه زما دغه ټوله ورځ ورپسې راتلونکې ټوله شپه دغسې په ژړا تيره شوه والدين
مې هم خوا ته راغلی وو هغوئ ويريدل چه هسې نه د غم نه م زړه پړق اوچوی په دې کښې رسول
الله ﷺ هم زما خوا ته تشريف راوړو راسره کيناستو د دې خبر خوريدو راسې تر اوسه پورې
هغوئ ﷺ زما خوا کښې نهٔ وو کيناستل هغوی د شهادت يوه لنډه شان خطبه اولوسته او وې
فرمائيل ،اې عائشه ، ستا په باره کښې ماته دا خبرې رارسيدلې دی که تهٔ پاکه ئې نو الله به دې
ضرور پاکی نازله کړی او که څه غلطی تانه شوی وی نو د الله تعالی په وړاندې توبه کړه او
بخښنه ترې اوغواړه خکه چه د توبه کونکی بنده ګناه الله تعالی ښښی، د رسول الله په دې خبره
زما اوښکې بيخی اوچې شوې خپل باباجی ابو بکر رضي الله عنه ته م او وئيل چه تاسو رضي الله عنه د رسول الله
ﷺ د خبرې جواب ور کړئ هغوی عذر اوکړو او وې فرمائيل چه زهٔ څه وئيلې شم ؟ بيا م خپلې
مور بی بی رضي الله عنها ته د جواب ورکولو د پاره اووئيل هغې هم دغسې عذر اوکړو او وې فرمائيل چه
څه څه وئيلې شم ؟چه مجبوره شوم نو پخپله خبره شروع کړه دغه وخت زهٔ يوه کشره جينۍ وم تر
اوسه م قرآن کريم هم زيات نهٔ وو لوستلې. د داسې سخت غم خفګان په حالت کښې لوئې لوئې د
عقل خاوندان هم په آسانۍ سره د عقل خبره نشی کولې خو حضرت عائشې رضي الله عنها په دغه موقعه يو
عجيب غريب د عقل اود علم نه ډک کوم کلام چه اوکړو هم د هغوئ رضي الله عنها په الفاظو کښې نقل
کولې شی فرمائی ـ ﴿والله لقد عرفت لقد سمعتم هذا الحديث حتى استقر في انفسكم وصدقتم به ولئن قلت

لکم انی بریئة والله یعلم انی بریئة لا تصدقونی ولان اعترفت لکم بأمر والله یعلم انی منه بریئة لتصدقونی والله لا اجد لی ولکم مثلا الا کما قال ابو یوسف فصبر جمیل والله المستعان علی ما تصفون﴾ [یعنی قسم په خدای ماته معلومه شوې ده چه تاسو دا خبره دومره واورېدله چه زړونو ته مو پرېوته او په عمل سره مو رشتیا او بلله اوس که زۀ دا وایم چه زۀ د دې نه پاکه یم څنګه چه الله هم پوهېږي چه په حقیقت کښې پاکه یم نو تاسو به م رشتنوالی او نکړئ او که زۀ د داسې کار اقرار اوکړم چه د هغې نه پاک پاتې کېدل م الله تعالی پېژني نو تاسو به زما خبره او منئ قسم په خدای اوس زۀ د خپلې او ستاسو د معاملې مثال سوا د دې نه نۀ مومم چه د یوسف علیه السلام پلار یعقوب علیه السلام اوفرمائیل کله چه د خپلو ځامنو غلطه خبره ئې واورېده چه زۀ صبر جمیل اختیاروم او د الله تعالی نه په دې معامله کښې مدد غواړم چه تاسو ئې بیانوئ. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي چه ددې نه پس زۀ خپلې بسترې له لاړم او څملاستم او دا ئې اوفرمائیل چه یقین م وو چه څنګه په واقع کښې زۀ بېګناه یم الله تعالی به م دغه بې ګناهي ضرور په وحی سره ښکاره کړي خو دا م په خیال کښې هم نۀ راتلل چه زما په باره کښې به د قرآن آیتونه نازلېږي چه همیشه به لوستې کېږي ولې چه خپله درجه م دې نه ډېره کمه کوځه ګنړله البته خیال م دا وو چه غالبا رسول الله صلی الله علیه وسلم ته به په خوب کښې زما دا بېګناهي ښکاره کړې شي حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي چه دغې مجلس نه زمونږ د کور هیڅوک هم نۀ وو پورته شوې او رسول الله صلی الله علیه وسلم هم د خپل ځائې نه نۀ وو پورته شوې چه پرې باندې د وحی نازلیدو حالت ښکاره شو څنګه به چه په یخ ژمی کښې ئې هم تندې مبارک په دغې حالت کښې د خولونه لوند شو چه د وحی راتلو دغه حالت ختم شو نو هغوی صلی الله علیه وسلم مسکا کونکې [په خندا] را پورته شو او د هر څه نه اول کلام مبارک ئې دا وو ، ابشری یا عائشة اما الله فقد ابرئك، [عائشې رضی الله عنها زیرې م در باندې الله تعالی تۀ بری کړې ] وائي چه خپلې مور بی بی رضی الله عنها راته او وئیل چه ، پاسه او رسول الله صلی الله علیه وسلم له ورشه، ما او وئیل چه د الله تعالی نه سوا زۀ د بل چا احسان نۀ منم او نۀ ورپاسم ،زۀ د خپل رب شکر ګزاره یم چه هغۀ بری کړم ([1])

**د حضرت عائشې رضی الله عنها خو خصوصیتونه** :امام بغوی رحمه الله هم د دې آیتونو په تفسیر کښې لیکلی دی چه د حضرت عائشې رضی الله عنها یو څو داسې خصوصیتونه دی چه بلې هیڅ یوې زنانه ته نۀ دی نصیب شوی حضرت عائشې رضی الله عنها به هم هغه څیزونه د شکرئې په انداز کښې په ډېر فخر سره بیانول :

① دا چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نکاح کښې د راتلونه وړاندې حضرت جبرائیل علیه السلام په یو ریښمینه کپړه کښې زما تصویر رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راوړو او وې فرمائیل چه دا دې بی بی ده [ترمذی د عائشې رضی الله عنها نه ]([2]) په څنې روایتونو کښې راغلې دی چه حضرت جبرائیل علیه السلام ورته دغه تصویر په خپل تلی [لاس] باندې جوړ کړې راوړو.([3])

② دا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې نه سوا بلې پېغلې جینئ سره نکاح نۀ ده کړې.

③ دا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هم د حضرت عائشې رضی الله عنها په غېږ کښې وفات شو

④ دا چه هم د حضرت عائشې رضی الله عنها په کمره کښې هغوی صلی الله علیه وسلم دفن شو.

⑤ دا چه په رسول الله صلی الله علیه وسلم به هم هغه وخت وحی نازلیده چه حضرت عائشې رضی الله عنها سره به په یوه

[1] ) صحیح البخاري کتاب المغازي ،باب حدیث إفك [ج:۲ص:۵۹٦]
[2] ) جامع الترمذي ، ابواب المناقب ، باب من فضل عائشة رضی الله عنها [ج:۲ ص:۲۲٦]
[3] ) مجمع الزوائد ، رقم الحدیث / ۱۵۳۰۷)

بستره کښې وو بلې بی بی [ام المؤمنین ] ته دا خصوصیت حاصل نه وو
⑥ دا چه آسمان نه د دې ﷺ برى کيدل نازل شو.
⑦ دا چه حضرت عائشه ﷺ د رسول الله ﷺ د خليفه ﷺ لور بی بی او صدیقه یعنی رښتونې بی بی ده ،او دا په هغې خلقو کښې شامله ده چه الله تعالى ورسره هم په دنيا کښې د مغفرت او ښائسته رزق وعده کړې ده [مظهری] د حضرت صدیقې ﷺ فقیهانه او عالمانه تحقیقونه او فاضلانه تقرير چه حضرت موسى ابن طلحه ﷺ او ليدو نو وې فرمائيل چه ما د حضرت عائشې ﷺ نه زيات فصيح او بليغ بل څوک نه دې ليدلې [ترمذی][1] تفسير قرطبى کښې نقل شوې دى چه کله يوسف عليه السلام باندې تور پورې کړې شو نو الله تعالى د غيرې يو ماشوم ګويا کړو او د هغوی عليه السلام بې ګناهي ئې ښکاره کړه چه په حضرت مريم عليها السلام باندې تور پورې کړې شو نو الله تعالى هم د هغې د فرزند حضرت عيسى عليه السلام په ګواهئ سره هغه برى کړه سره د دې چه هغه اوس اوس پيدا شوې د څلوېښتئ ماشوم وو خو چې په حضرت عائشه ﷺ چه تور پورې کړې شو نو الله تعالى د لس قرآني آيتونو په نازلولو سره د هغې د بې ګناهئ اعلان اوکړو چه د هغې غوره والې او عزت ورسره نور هم زيات شو د دې[2] اوسنو آيتونو اجمالي تفسير د تفسير په خلاصه کښې پورته بيان شوې دې اوس د آيتونو خاص خاص جملو سره متعلق څه بحثونه دلته او ګورئ.

﴿ إِنَّ الَّذِينَ جَاءُو بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِّنكُمْ ﴾ د افک اصلى معنى اړوته کول او بدلول دى ډير ناکاره قسم دروغ چه حق د باطل او باطل د حق په شکل کښې بدلوى او پاک لمنه متقى د فاسق او فاسق د متقى او پرهيز ګار په شکل کښې ښکاره کړى نو دغسې دروغو ته هم ،افک ، و ئيلې شى د ،عصبة ، معنى ډله ده چه د لسو نه تر څلوېښت کسانو پورې پکښې راځى دې نه کم او زياتو د پاره هم دا لفظ استعماليږى د ،منکم ، نه مراد مؤمنان دى اصلى تور پورې کونکې عبدالله بن ابئ اګر چه مسلمان نه بلکه منافق وو خو هرکله چه په ظاهره ئې د اسلام دعوه کوله څکه پرې په ښکاره د مؤمنانو احکام جارى کيدل او هم په دې وجه په ، منکم ، لفظ سره په مؤمنانو کښې شامل کړې شو په مسلمانانو کښې دوؤ نارينه او يوې زنانه هم په دغه تور خوړولو کښې کار کړې وو د صفايئ د آيتونو د نازليدو نه پس په هغوى حد قذف جارى شو څنګه چه وړاندې ئې بيان تيرشوې دې مګر مؤمنانو تولو توبه او ښکله چه الله تعالى قبوله کړه په دوئ کښې حضرت مسطح ﷺ او حضرت حسان ﷺ دواړه د بدر په غزا کښې شريک شوې وو چا د پاره چه الله تعالى په قرآن کريم کښې د مغفرت او ښښنې اعلان کړې دې هم په دې وجه به حضرت عائشې ﷺ د حضرت حسان ﷺ بد آوريدل د چا د خلې نه نه شو زغملې او فرمائيل به ئې چه د رسول الله ﷺ د اړخه حضرت حسان ﷺ د کفارو سره شاعرانه مقابله په ښه شان سره کړې ده څکه ورته بد وئيل نه دې پکار حالانکه په حسان ﷺ باندې هم رسول الله ﷺ دافک، په واقعه کښې حد قذف جارى کړې وو کله به چه حضرت حسان ﷺ د حضرت عائشې ﷺ په خدمت کښې حاضرشو نو په تعظيم سره به ئې هلته کينولو [مظهرى و غيره][3]

﴿ لَا تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَّكُم ﴾ دا خطاب رسول الله ﷺ عائشې صديقې ﷺ حضرت صفوان ﷺ او تولو

---

[1] ) جامع الترمذي ، ابواب المناقب ، باب من فضل عائشة رضى الله عنها [ج:۲ ص:۲۲۷]
[2] ) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۲۱۲]
[3] ) تفسير المظهري[ج:۶ ص:۴۷۵]

مؤمنانو ته دې چه د دغې افواه په خوريدو سره ورته ډير غم درد رسيدلې وو د دې معنی دا ده چه دا واقعه څکه بده مه ګڼړئ چه په قرآن کريم کښې په صفايئ نازليدو سره د هغوی عزت نور هم زيات شو او چا چه دغه خراب حرکتونه کړی وو د هغوی په باره کښې سخت وعيد نازل شو چه تر قيامته پورې به په محرابونو کښې مونځونو کښې بهر دننه په ياد او په قرآن کښې لوستلې شی ﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُم مَّا اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ﴾ [ کومو خلقو چه په دغه بهتان کښې برخه اخستې ده د هر يو ګناه د هغه د برخې په اندازه ليکلې شوې ده او هم په دغسې حساب به ورته عذاب ورکولې شی يعنی چا چه دا خبر د ځانه جوړ کړو او وې چلولو [چې بيان ئې راروان دې ] هغه د ټولو نه د زيات عذاب حقدار دې او چا چه د دې خبر په اوريدو سره ئې تائيد اوکړو هغه په ګناه او عذاب کښې د دوی نه کم دې ،اوڅوک چه په اوريدو ئې غلی شو هغه به د دې نه هم کم وی-

﴿وَالَّذِي تَوَلَّىٰ كِبْرَهُ مِنْهُمْ لَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ د کبر ،په زير د کاف سره معنی ،لوئې، ده مطلب دا دې چه چا په دغې تور پورې کولو کښې لوئ کار اوکړو يعنې د ځانه ئې جوړ کړو هغه لره لوئ عذاب دې ،مراد ترې عبدالله بن ابئ منافق دې [بغوی وغيره ][١]

﴿لَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بِأَنفُسِهِمْ خَيْرًا وَقَالُوا هَٰذَا إِفْكٌ مُّبِينٌ﴾ [يعنی داسې ولې او نه شو چه کله تاسو د دې تهمت خبره واوريده نو نارينه او زنانه مسلمانانو په خپله باره کښې يعنی د خپلو مسلمانانو رونړو خويندو په باره کښې مو نيک ګمان کړې وې او وئيلې مو وې چه دا په ښکاره دروغ دی ] په دې آيت کښې ګڼ څيزونه د غور کولو جوګه دی اول دا چه په ،﴿بِأَنفُسِهِمْ﴾، لفظ سره قرآن کريم دې ته اشاره اوکړه چه کوم يو مسلمان بل مسلمان رسوا کوی او بدناموی ئې هغه په حقيقت کښې خپل ځان رسوا کوی ولې چه د اسلام رشتې خپل مينځ کښې ټول مسلمانان يو جوړ کړې دی چنانچه قرآن کريم په داسې ټولو موقعو کښې دا اشاره استعمال کړې ده لکه يو ځائ کښې فرمائی ﴿وَلَا تَلْمِزُوا أَنفُسَكُمْ﴾ ، [په خپلو ځانونو عيب مه لګوې] مراد ترې دا دې چه په خپل مسلمان ورور خور باندې عيب مه لګوئ بل ځائ کښې فرمائی ﴿وَلَا تَقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ﴾ ، [اخپل ځانونه مه وژنئ] يعنی خپل مسلمان رور خور مه وژنئ په دريم ځائ کښې فرمائی ،﴿وَلَا تُخْرِجُونَ أَنفُسَكُم مِّن دِيَارِكُمْ﴾ [ خپل ځانونه د خپلو کورونو نه مه اوباسئ] په څلورم ځائ کښې فرمائی ،﴿فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ﴾ ،[ په خپلو ځانونو باندې سلام اچوئ] دې ټولو ځايونو کښې د ،﴿أَنفُسِكُمْ﴾ نه مطلب مسلمانان رونړه خويندې دی لهذا قرآن کريم دا ضمنی هدايت ورکوی چه په يو مسلمان باندې عيب لګول يا ورته زيان رسول څکه ناجائز دی چه په انجام کښې د ټول قوم بدنامی او رسوائی ورسره کيږی چنانچه سعدی شيرازی فرمائی

چو از قومي يكي بے دانشي كرد　　نهٔ كه را منزلت ما ندنه مه د را

[نو د دغې قوم د ادنی او اعلی خلقو [دواړو] پرې عزت خرابيږی ]

**په قوم کښې چه يو کس بې وقوفی اوکړی** :: دا د قرآن کريم د دې تعليم اثر وو چه کله مسلمانان اوچت شو نو ټول قوم ورسره اوچت شو د دوئ هر يو کس را پورته شو او د دې د پرېښودو نتيجه نن د سترګو په وړاندې ده چه ټول اوغور څيدل او هر کس اوغورځيدو دويمه خبره په دې آيت کښې دا د نظر کولو جوګه ده چه د مقام غوښتنه دا وه چه داسې فرمائيلې شوې وې.

[١] ) صحيح البخاري كتاب التفسير سورة النور ،باب ان الذين جاءو الآية [ج:٢ص:٦٩٦]

﴿لَوْلَآ إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَٰتُ ظننتم بِأَنفُسِكُمْ﴾ د خطاب په صيغې سره فرمائيلې شوې وې څنګه چه په سر کښې د ﴿سَمِعْتُمُوهُ﴾، صيغه د خطاب راغلې ده مګر قرآن کريم دا لنډه جمله پريښوه او دلته ئې طرز بدل کړو چه د ، ظننتم ،په ځای ، ﴿ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ﴾ اوفرمائيل په دې کښې څه معمولي غوندې اشاره دې ته کيدې شي چه دا کار د چا نه چه اوشو هغوی د دې کار لـه مخې د دې حقدار نۀ دی چه مؤمنان ورته اووئيلې شي ولې چه د ايمان غوښتنه دا وه چه يو مسلمان په بل مسلمان نيک ګمان کولې- دريمه خبره دا د نظر جوګه ده چه د دې آيت په آخری جمله ، ﴿وَقَالُوا هَٰذَا إِفْكٌ مُّبِينٌ﴾ کښې دا تعليم ورکړې شويدې چه د ايمان غوښتنه دا وه چه مسلمانانو د دې خبر په آوريدو دا وئيلې وې چه دا په ښکاره دروغ دی دې نه ثابته شوه چه د يو مسلمان په باره کښې د څه ګناه يا عيب علم په شرعی دليل سره حاصل نۀ شي تر هغې پورې په هغه باندې نيک ګمان کول او بې د څه دليل نه د عيب او ګناه خبرې ورته منسوب کول دروغ ګرځول بعينه د ايمان غوښتنه ده ـ

**مسئله** : ددې نه ثابته شوه چه په هر يو مسلمان باندې ښه ګمان لرل واجب دی تر څوپورې چه په يو دليل شرعی سره د دې خلاف ثابت نۀ شي او څوک چه د دليل شرعی نه بغير په يو مسلمان څه تور پورې کوی نو د هغه خبره رد کول او دروغژن ئې ګرځول واجب دی ځکه چه دا خالص غيبت او بې وجې يو مسلمان شرمول دی [مظهری] (۱)

﴿لَّوْلَا جَاءُوا عَلَيْهِ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ ۚ فَإِذْ لَمْ يَأْتُوا بِالشُّهَدَاءِ فَأُولَٰئِكَ عِندَ اللَّهِ هُمُ الْكَاذِبُونَ﴾ د دې آيت په رومبۍ جمله کښې خو د دې ښودنه ده چه د داسې خبر مشهور کوونکو په باره کښې مسلمانانو له پکار وو چه د هغوی خبرې له د مخې ورکولو په ځای باندې د هغوی نه ئې د دليل غوښتنه کړې وې هر کله چه د زنا د تور پورې کولو په باره کښې شرعی دليل سوا د څلورو ګواهانو پيش کولو نه نشي قائميدې ځکه ترې دا غوښتنه کول پکاروو چه تاسو څه وايئ په هغې څلور ګواهان پيش کړئ يا خوله بنده کړئ په دويمه جمله کښې فرمائی چه هر کله دوئ څلور ګواهان پيش نۀ کړې شو نو د الله تعالى په نزد هم دا خلق دروغژن دی دلته دا خبره د غور کولو جوګه ده چه هر کله څوک په خپلو سترګو يوه واقعه اووينی او په هغې باندې نور څوک ګواهان پيش کول ئې د وسه او نۀ شی نو د دغې واقعې بيانولو سره دروغژن ولې بللې شی خصوصا د الله تعالى په نزد ورته دروغژن وئيل خو ځکه په ذهن کښې نشی راتلې چه الله تعالى ته ټول واقعات معلوم دی او دا واقعه موجوديدل ورته هم معلوم دی بيا د الله تعالى په نزد ورته دروغژن څنګه اووئيلې شو ؟ د دې دوه جوابه دی اول دا چه د ،عندالله، [دالله په نزد ] نه مراد د الله تعالى حکم او قانون دې مطلب ئې دا شو چه د الله تعالى د حکم او قانون له مخې دغه کس دروغژن ګرځولې شی چه حد قذف به پرې جاری کولې شی ولې چه د الله تعالى حکم دا وو چه تر څوپورې څلور ګواهان نۀ وی نو د واقعې ليدلو باوجود ئې مۀ بيانوئ او څوک چه ئې بغير د څلورو ګواهانو بيانوی نو هغه به د الله تعالى د حکم او قانون له مخې دروغژن بللې شی او سزا به بيا مومی . دويم جواب دا دې چه د مسلمان شان سره عبث او فضول کار کول نۀ ښائی چه څه نتيجه ئې نۀ راخيژی خصوصا داسې کار چه په يو مسلمان باندې تور پورې کول وی نو يو مسلمان د بل مسلمان د عيب او ګناه

---

(۱) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٤٧٦]

ګواهي صرف په دې نيت ورکولې شي چه د جرم او ګناه بنديز کول ئې مطلب وي څوک شرمول يا ورته ضرر او زيان رسول ئې مقصد نۀ وي په دې بنا که څوک د څلورو ګواهانو نه بغير دغسې ګواهي ورکوي او په دې پوهيږي چه د شريعت له مخې د تور پورې شوي خلاف دې نه هيڅ نۀ جوړيږي بلکه الټه به دا ګواهي ورکونکې سزا [حد قذف] بيا مومي په دې لحاظ هغه به په دې نيت سره دغه دعوې کولو کښې دروغژن وي چه هغه ګني د خلقو د اصلاح او د جرمونو د بنديز په نيت ګواهي ورکوي ولې چه د شرعي ضابطې مطابق د [شرعي] ګواهئ د نيشتوالي په صورت کښې دغسې نيت د سره هډو کيدې نشي [مظهري] [1]

**يو اهمه او ضروري خبرداري:** په دې دوؤ آيتونو کښې دا واجب ګرځولې شوې دی چه هر مسلمان دې د بل مسلمان په باره کښې نيک ګمان لري او د هغه خلاف بې دليله خبرې دې رد کوي که څوک دا شک اوکړي چه بيا رسول الله ﷺ ولې يقين اونکړو چه دا خبر غلط دې او دا خبر ئې رد ولې نۀ کړو تر يوې مياشتې پورې په داسې تردد حالت کښې ولې پاتې شو چه حضرت عائشې رضي الله عنها ته ئې هم اوفرمائيل :که څه لغزش تا نه شوې وی نو د هغې نه توبه کړه [بخاري] [2]

جواب ئې دا دې چه د نيک ګمان کولو مطلب دا نۀ دې چه په طبيعت کښې دې بې يقينی او پريشانی نۀ وی چنانچه رسول الله ﷺ دې خبرته رشتيا نۀ وو وئيلې نۀ ئې د هغې په غو ښتنه باندې څه عمل کړې وو او نۀ ئې د هغې مشهور کول خوښ کړی وو بلکه د صحابه کرامو رضي الله عنهم د ولې په وړاندې ئې فرمائيلی وو ، ﴿ماعلمت على اهلي الاخيرا﴾ [بخاري] [3] [يعني سوا د خيرنه م د خپلې بی بی په باره کښې بل څه يقين نۀ راځي دا ټول داسې څيزونه دی چه د آيتونو په غوښتنه باندې د عمل کولو او د نيک ګمان کولو ګواهي ورکوي ، البته د صفايئ د آيتونو په نازليدو سره د رسول الله ﷺ هغه طبعي پريشاني او دوجالي هم لرې شوه او يقين ئې هم حاصل شو.

خلاصه دا شوه چه په زړه کښې شک شبه راتلل او احتياطي تدبيرونه استعمالول په مسلمانانو باندې د نيک ګمان کولو سره بې سمونه او بې جوړه نۀ دی کله چه د دې په غوښتنه باندې عمل هم اونکړې شي څنګه چه رسول الله ﷺ کړی وو هم دغه وجه ده چه په هغې مسلمانانو باندې حدقذف جاري کړې شو چه د دې خبر په غوښتنه باندې ئې عمل اوکړو او خور ئې کړو چه دا د صفايئ د آيتونو د نازليدو نه وړاندې هم ناجائز کار او د سزا ورکولو باعث وو -

﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ لَمَسَّكُمْ فِيْ مَآ اَفَضْتُمْ فِيْهِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾ دا آيت د هغې مؤمنانو په باره کښې نازل شو چه په غلطئ سره په دې تور پورې کولو کښې په څه شان سره شريک شوې وو او بيائې توبه کړې وه او په بعضو باندې سزا هم جاري شوې وه دغې ټولو ته دې آيت دا هم اوښودل چه کوم جرم ستاسو نه اوشو هغه لوئ جرم وو د هغې په وجه دنيا کښې هم عذاب درباندې راتلې شو څنګه چه د پخواني قومونو په مجرمانو باندې راغلې وو او په آخرت کښې به هم پرې سخت عذاب وی خو ستاسو مؤمنانو سره الله تعالى د خپل فضل او رحمت معامله په دنيا او آخرت کښې داسې اوکړه چه د دنيا عذاب ئې تاسو نه ايسار کړو يعنی په دنيا کښې ئې درته د

[1] تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٤٧٦]

[2] صحيح البخاري كتاب المغازي ،باب حديث إفك [ج:٢ص:٥٩٦]

[3] صحيح البخاري كتاب المغازي ،باب حديث إفك [ج:٢ص:٥٩٦]

ایمان او اسلام راوړلو توفیق درکړو بیا د رسول الله ﷺ د صحابی کیدو عزت ئې درکړو بیا د کړې ګناه نه د رشتیا توبې اوښکلو توفیق ئې درکړو او هغه ئې قبوله هم کړه . او تاسو سره چه الله تعالی د عفو ، درګزر او مغفرت وعده اوکړه نو په دې شان ئې درباندې په آخرت کښې فضل او رحمت کول څرګند کړل -

﴿اِذْ تَلَقَّوْنَهٗ بِاَلْسِنَتِكُمْ﴾ د ،تلقي ، مطلب دا دې چه د يو بل نه په پوښتنه سره نقل کولې شي دلته ئې مطلب دا دې چه صرف په آوریدو سره څه خبره بې دلیله او بې تحقیقه ګرځینده اوګرځولې شي .

﴿وَتَحْسَبُوْنَهٗ هَيِّنًا ۖ وَّهُوَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمٌ﴾ [یعنی تاسو په خیال کښې خو دا معمولی خبره راغله چه څنګه مو واوریده هغسې مو بل ته وراورسوله خو داسې کول د الله تعالی په نزد د لوئې ګناه کاروو] چه بې دلیله او بې تحقیقه دغسې خبر ته ګردش ورکړو چه نورو مسلمانانو ته د سخت زیان باعث وه چې هغوئ پرې شرمیدل او ژوند ئې تریخ شو ،

﴿وَلَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ مَّا يَكُوْنُ لَنَآ اَنْ نَّتَكَلَّمَ بِهٰذَا ۖ سُبْحٰنَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ﴾ [یعنی د دې افواه په آوریدو مو ولې داسې او نۀ وئیل چه مونږ د پاره داسې خبره په ژبه راوستل هم جائز نۀ دی الله تعالی ته پاک ئې دا خو غټ تور پورې کول دی ] په دې آیت کښې هغه هدایت دوباره کړې شوې دې کوم چه د دې نه په رومبی آیت کښې راغلې وو خو په دې کښې د دې زیات وضاحت شوې دې چه کله داسې خبر واورئ نو مسلمانانو له څه کول پکاردی؟ هغه داچې صفادې وائی چه داسې څه خبره بې دڅه دلیله دخولې نه اوښکل هم مونږ د پاره جائز نۀ دی ولې چه دا خو يو غټ تور پورې کول دی-

**یوه شبه او جواب** : که دا شک یا اعتراض راپورته شی چه څنګه د يو واقعې رشتیاوالې بې دلیله نشی معلومیدې او په داسې حالت کښې ئې د خلې نه ویستل او شوربش ورکول ناجائز دی دغه شان د يو کلام دروغژن کیدل خو هم بې د څه دلیل نه نشی ثابتیدې نو څنګه ورته ، ﴿بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ﴾ وئیلې شی ؟-- جواب ئې دا دې چه هر مسلمان لره دګناهونو نه پاک او صفاګڼل يو شرعی اصل دې چه په دلیل سره ثابت دې ځکه د دې نه خلاف څه خبره چه بې د دلیل نه اوکړې شی نو د هغې د دروغ بللو د پاره د بل څه دلیل ضرورت نشته صرف دومره کافی دی چه په يو مؤمن مسلمان باندې بې د څه شرعی دلیل نه تور پورې کړې شوې دې ځکه ورته بهتان اوفرمائیلې شو -

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يُحِبُّوْنَ اَنْ تَشِيْعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۙ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ﴾ په دې آیت کښې بیا د هغې خلقو بدی بیان شوې ده او په دنیا او آخرت کښې د عذاب دړکه ورکړې شویده کومو چه په دغې تور پورې کولو کښې څه برخه اخستې وه په دې آیت کښې دا خبره زیاتی ده چه کوم خلق داسې خبرونه مشهوره وی ګویا کښې هغوئ دا غواړی چه په مسلمانانو کښې بدکاریانې او بې حیائی زیاته شی .

**د بې حیا کارونو بندولو قرآنی نظام او يو زیات ضروری لارښود چه د هغې شاته د غورځولو نتیجه دا ده چه نن صبا بې حیایئ زیاتې شوې ::** قرآن کریم د فواحشو کارونو د بندولو دا خاص نظام جوړکړې دې چه اول خو داسې دا قسم خبر چرته خور نشی او که خوریدل ئې وی نوچې په شرعی ثبوت سره دې وی ځکه چه د دغې خوریدو مشهوریدو په بنیاد د عامې ګنړې په ورانډې په مجرم باندې د زنا حد جاری کړې شی او دغه مشهورتیا د دې د بندیز سبب جوړ شی. اوچرته چې شرعی ثبوت نه وی هلته د بیحیایئ خبرونه خورول او مشهور کول د دې سبب جوړشی او دې سره څه سزا نه وی نو

بیا د خلقو په زړونو کښې د بې حیایۍ او فواحشو نفرت ډیر کم شی او ددې سبب دا شی چې خلق جرمونو باندې زړور شی او ددې شهرت کوی. څنګه چه د دې مشاهده نن صبا د اخبارونو د خبرونو خوریدو نه کولې شی څکه چې داشان خبرونه هره ورځ په اخبار کښې شائع کیږی. خوانان، سړی او ښځې دا ګوری، روزانه چې دوی دا خبرونه ګوری او بیا دا هم ګوری چې په دې باندې څه سزا نشته دې نو بیا ددې طبعی اثر دا وی چې ددې په کتلو کتلو سره دهغوی په نظرونو دا خبیب کار ډیر ورو کې ښکاری. او بیا په نفس کښې دا ځانته یو ځایې جوړ کړی. لهذا قرآن کریم د داسې خبرونو خورولو اجازت صرف په هغې صورت کښې ورکړې دې کله چه د دې د پاره شرعی ثبوت وی. د دې په نتیجه کښې چې د دغې خبر سره سره د دغې بې حیایۍ هیبتناکه سزا د خلقو په لیدلو او آوریدلو کښې راشی. او چرته چه ثبوت او سزا نهٔ وی نو ددغسې خبرونو خورولو لره قرآن کریم په مسلمانانو کښې د بې حیایو خورولو ذریعه ګرځولې ده، کاش چه مسلمانان په دې غور اوکړی. په دې آیت کښې هغې خلقو د پاره د دنیا او آخرت د درد ناک عذاب بیان راغلې دې چه دغسې خبرونه بې ثبوته مشهوره وی، ښکاره خبره ده چه د آخرت عذاب خو به د قیامت نه پس وی چه دلته ئې لیدل نشی کیدې لیکن د دنیا عذاب خو په لیدلو کښې راتلل پکار دی. نو چه په کومو خلقو باندې حد قذف [دتور پورې کولو سزا] چه جاری کړې شی په هغوی باندې د دنیا عذاب خو راغلو او که په چا باندې حد قذف په دې وجه جاری نهٔ کړې شو چه د دې د پاره ئې شرطونه موجود نهٔ وو نو بیا هم په دنیا کښې یو قسم د عذاب حقدار خو اوګرځیدو چه د آیت د مصداق د پاره دا هم کافی دی ﴿وَلَا يَأْتَلِ أُولُوا الْفَضْلِ مِنكُمْ وَالسَّعَةِ أَن يُؤْتُوا أُولِي الْقُرْبَىٰ وَالْمَسَاكِينَ وَالْمُهَاجِرِينَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۖ وَلْيَعْفُوا وَلْيَصْفَحُوا ۗ أَلَا تُحِبُّونَ أَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾

## صحابه کرامو ته د اوچتو اخلاقو تعلیم ورکول

﴿وَلَا يَأْتَلِ﴾، د ائتلاء، معنی قسم خوړل دی په حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها باندې تور پورې کولو کښې حضرت مسطح رضي الله عنه او حضرت حسان رضي الله عنه دواړه ککړ شوی وو کله چه د صفایۍ آیتونه نازل شو نو په دې دواړو باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم حد قذف جاری کړو دا دواړه جلیل القدر صحابه کرام رضي الله عنهم د بدر په غزا کښې هم شریک شوې وو خو دغه غلطی چه تری اوشوه نو ریښتونې توبه ئې نصیب شوه او الله تعالی چه څنګه د حضرت عائشې رضي الله عنها بری کیدل نازل کړل دغسې د دغې مؤمنانو د توبې قبلولو او معاف کولو اعلان ئې هم اوکړو مسطح رضي الله عنه د حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه عزیز هم وو او غریب هم وو چه حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه به ئې مالی امداد کولو کله چه د افک په واقعه کښې د دوی رضي الله عنه یو قسم شریکیدل ثابت شو نو د حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه لور بی بی حضرت عائشې رضي الله عنها ته د سختې صدمې رسولو او پلار ولې محبت په وجه د حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه قسم اوخوړو چه بیا به دوی رضي الله عنه سره هیڅ قسم مالی امداد نهٔ کوم دا ښکاره خبره ده چه یو خاص فقیر سره یو خاص مسلمان لره علی الیقین امداد کول واجب نهٔ دی او په چا باندې خپل جاری امداد بندول څه ګناه نهٔ جوړیږی خو هر کله چه الله تعالی د صحابه کرامو رضي الله عنهم معاشره یو مثالی معاشره جوړول غوښتل نو څکه ئې د هغې حضراتو ریښتونی توبه او په آئنده کښې حالات سمول نصیب کړل چانه چه لغزش شوې وو، بل اړخ ته ئې هغه حضراتو ته د اعلی اخلاقو د تعلیم ورکولو په غرض دا هدایت ورکړو چه غریبانو حضراتو رضي الله عنهم نه دې خپل جاری امداد نهٔ بنده وی چه ورته ئې غم او خفګان رسولې دې او په دې باره کښې کړې قسم دې مات کړی او دهغې کفاره

دې ادا کړي. ولې چه د دوی د مالي امداد نه لاس اخستل د هغوی د لوړې درجې او لوړ مقام سره نه ښائي او ښکله چه الله تعالی دوی رضي الله عنه معاف کړل نو دوی؛ دپاره هم معافي او درګرز کول پکار دی . په شرعي لحاظ سره په حضرت ابی بکر رضي الله عنه باندې د دغه غريب صحابي مسطح رضي الله عنه مالي امداد کول واجب نه وو خکه قرآن کريم دا عنوان اختيار کړو چه د علم او فضل خاوندان کومو ته چه الله تعالی ديني کمالونه ورکړي دي او د الله تعالی په لار کښې د خرڅ وس لاس ئې هم رسي هغوی رضي الله عنهم لره داسې قسم خوړل نه دي پکار چنانچه په آيت کښې دوه لفظونه ،اولو الفضل ، او ، والسعة، هم د دې معنی د پاره راغلي دی . د دې آيت آخری جمله ، ﴿اَلَا تُحِبُّوْنَ اَنْ يَّغْفِرَ اللهُ لَكُمْ﴾ ،[ تاسو دا نه خوښوئ چه الله تعالی ستاسو ګناهونه معاف کړي ] نازله کړه نو صديق اکبر رضي الله عنه سمد ستي اووئيل ، والله اني احب ان يغفر الله لي [بخاري و مسلم ] (۱) يعنی [قسم په خدائ څه ضرور غواړم چه الله تعالی راته ببننه اوکړي ] او سمدستي ئې دحضرت مسطح رضي الله عنه امداد جاري کړو او دا ئې هم او فرمائيل چه اوس به دا امداد چرې هم نه بنديږي [بخاری و مسلم] (۲) دا هغه ښکلي خويونه دي په کومو سره چه د صحابه کرامو رضي الله عنهم تربيت شوې دې په صحيح بخاری کښې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دی ﴿ليس الواصل بالمكافي ولكن الواصل الذي اذا قطعت رحمه وصلها [مظهری] (۳)﴾ [يعنی خپلوی پالونکې هغه نه دې چه صرف د خپلوانو د احسان بدله پوره کړي بلکه اصلي خپلوی پالونکې هغه دې چه خپلوان ورسره تعلق ختم کړي او دې بياهم ورسره تعلق جاري ساتي ]

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ الْغٰفِلٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ لُعِنُوْا فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۠ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾ په ي آيت کښې په ظاهره هغه مضمون دوباره بيان شوې دې چه د دې نه رومبې د قذف په آيتونو کښې داسې راغلي دي:

﴿وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنٰتِ ثُمَّ لَمْ يَاْتُوْا بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ فَاجْلِدُوْهُمْ ثَمٰنِيْنَ جَلْدَةً وَّلَا تَقْبَلُوْا لَهُمْ شَهَادَةً اَبَدًا ۚ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۙ اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ وَاَصْلَحُوْا ۚ فَاِنَّ اللهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾ ليکن حقيقت دا دې چه د دې دواړو په مينځ کښې ډير فرق دې ولې چه د حدقذف د آيتونو په آخر کښې د توبه کونکو استثناء او د دوئ د پاره د بخښنې وعده ده په دې آيت کښې داسې نه ده بلکه د دنيا او آخرت لعنت او عذاب عظيم بې د استثناء نه راغلي دې، د دې نه معلوميږي چه د دې آيت تعلق د هغې خلقو سره دې چا چه په حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها باندې تهمت اولګولو او توبه ئې ترې اونکړه سره د دې چه په قرآن کريم د هغوئ صفايئ نازله شوې ده بلکه په مخه په دروغه تور پورې کولو کښې لګيا وو او په مخه ئې خورول ښکاره خبره ده چه دا د يو مسلمان کار نشي کيدې او کوم مسلمان هم چه د قرآن کريم د داسې ښکاره خبرو نه خلاف کوی هغه مسلمان نشي پاتې کيدې په دې وجه دا مضمون د هغې منافقانو په باره کښې راغلي دې چه د صفايئ د آيتونو د نازليدو نه پس ئې هم په صديقه رضي الله عنها باندې په مخه تور پورې کول پرې نښودل چه د دوی په کافر او منافق کيدو کښې هيڅ شک شبه نشته د توبه کونکو په باره کښې الله تعالی ،فضل الله و رحمته ، اوفرمائيل او دا

(۱) صحيح البخاري كتاب التفسير سورة النور ،باب ان الذين يحبون الآية [ج:۲ص:۷۰۰] و صحيح مسلم كتاب التوبة، باب في حديث الإفك[ج:۲ ص:۳۶۶]

(۲) صحيح مسلم كتاب التوبة، باب في حديث الإفك[ج:۲ ص:۳۶۶]

(۳) صحيح البخاري كتاب الأدب ،باب ليس الوصل بالمكافئ [ج:۲ص:۸۸۶]

شان ئې په دنيا او آخرت کښې د رحمت الهي حقدار ثابت کړل او چا چه توبه او نکړه نو هغوئ ئې په دې آيت کښې په دنيا او آخرت کښې لعنتيان اوښودل توبه کونکو ته ئې د عذاب نه د خلاصي زيرې ورکړو او نۀ توبه کونکو ته ئې د عذاب عظيم درکه ورکړه چنانچه د توبه کونکو په باره کښې ئې،ان الله غفور رحيم ، اوفرمائيل او د ښښنې زيرې ئې ورکړو او نا توبه ګارو ته ئې په راتلونکې آيت کښې ،يوم تشهد عليهم ،سره د نۀ معاف کيدو درکه ورکړه [بيان القرآن ][1] د دوئ په کافر کيدو کښې دهيڅ شك وشبهې ګنجائش نشته،دوئ به اجماع د امت سره کافر دی؟

**يو ډير ضروري خبرداري** :: په حضرت عائشه ﷺ باندې تور پورې کولو کښې چه څه مسلمانانو برخه اخستې وه دا دهغه وخت خبره ده چه په قرآن کريم کښې د هغوئ [حضرت عائشه ﷺ ]د صفايئ آيتونه نۀ وو نازل شوي خو دې نه پس چه څوک هم په دې کښې برخه اخلي نو هغه په اجماع د امت سره کافر دې چه په کفر کښې ئې هيڅ شك شبه نشته ولې چه دا د قرآن کريم نه هم انکار کول دی څنګه چه بعض شيعه کسان او بعض شيعه فرقې په دې کښې اخته دی-

﴿يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ أَلْسِنَتُهُمْ وَأَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ [ يعنې په کومه ورځ به چه د دوی خلاف په خپله د دوئ ژبې او لاسونه او خپې خبرې کوی او د دوئ د جرمونو ګواهی به ورکوی ] لکه د حديث په روايتونو کښې راغلی دی چه کوم ګنهګاران به د قيامت په ورځ د خپلو جرمونو اقرار اوکړی نو الله تعالى به ئې معاف کړی او د ميدان محشر د عام مخلوق نه به د هغوی ګناهونه پټ اوساتی او څوك چه د خپلو ګناهونو دکولو نه انکار اوکړی او اووائی چه ما خو دغه ګناه نۀ ده کړې څارونکو فرشتو زمونږ په عمل نامه کښې هسې په غلطه ليکلی دی نو هغه وخت به ئې خله بنده کړې شی او د خپو لاسونو نه به ئې ګواهی اخستې شی هغه به خبرې کوی او ګواهی به ورکوی لکه ،[2] ﴿الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰ أَفْوَاهِهِمْ﴾ ، کښې هم ددې بيان دې ، دې ايت مبارك کښې اوفرمائيل چې په خپلو به يې مهر اولکولې شی مګر مذکوره آيت کښې ئې دا اوفرمائيل چه ژبې به ئې ګواهی ورکوی خو په دې دواړو کښې بې سمونی څکه نشته چه دغه وخت به ئې خپله ژبه هم د خپل اختيار نه بهر شی او د دوئ د طبيعت خلاف خبرې به کول شروع کړی او دا هم کيدې شی چه يو وخت به ئې خله او ژبه بيخی بنده کړې شی بيا به ئې خلې ته د رشتنې خبرې کولو حکم اوشی [والله اعلم]

﴿الْخَبِيثَاتُ لِلْخَبِيثِينَ وَالْخَبِيثُونَ لِلْخَبِيثَاتِ ۖ وَالطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِينَ وَالطَّيِّبُونَ لِلطَّيِّبَاتِ ۚ أُولَٰئِكَ مُبَرَّءُونَ مِمَّا يَقُولُونَ ۖ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ﴾[يعنې ګنده زنانه د ګنده نارينۀ جوګه وی او ګنده نارينه د ګنده زنانۀ جوګه وی او پاکې صفا بيبيانې د پاکو صافو نارينۀ جوګه وی او پاك صفا نارينه د پاکو صفا بيبيانو جوګه وی ] په دې آخری آيت کښې خو يوه عامه ضابطه دا اوښودلې شوه چه الله تعالى په طبيعتونو کښې يو بل سره طبعي تړون او جوړښت داسې راوستې دې چه ګنده او بدکارې زنانه ، ګنده او بدکارو نارينۀ سره او ګنده اوبدکار نارينه ،په ګنده او بد کارو زناؤ پسې مخه وړی او مينه ورسره ساتی دغه شان پاك صفا نارينه او زنانه هم يو بل سره مينه او جوړ لری ، چه هر يو د دې مطابق خپل خان له جوړه لټوی او قدرت ته اوګورئ چه هر يو ته خپله مناسبه جوړه ملاوېږی . د دې عام عادت او عامې کليئ او ضابطې نه په ډاګه شوه چه هر کله په دنيا کښې د پيغمبرانو ﷺ

[1] ) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:۸ ص:۱۱]
[2] ) ترجمه:- نن به مونږ ددوئ په خلو باندې مهر اولګوؤ.

ظاهري او باطني پاکبازي مثالي وي ځکه ورته بيبيانې هم هغسې مناسب ملاويږي په دې بنا ځنګه چه رسول الله ﷺ د ټولو پيغمبرانو ﷺ سردار دی ځکه هغوئ ته د هغوئ بيبياني ﷺ هم د هغوئ جوګه ملاؤ شوې چه حضرت عائشه صديقه ﷺ په هغوئ ټولو کښې يوه ځانګړې بي بي وه د هغې ﷺ په باره کښې هم هغه څوک شک شبه کولې شي چه په خپله په رسول الله ﷺ ئې ايمان نهٔ وي او په چه قرآن کريم کښې چه د حضرت نوح ﷺ او حضرت لوط ﷺ بيبيانې کافرانې ذکر شوې دی نو د هغوئ متعلق هم دا ثابت دی چې د کافر کيدو باوجود فاسقانې فاجرانې او بدکارې نهٔ وې ، حضرت ابن عباس ﷺ فرمائيلې دی ،مابغت امرءة نبي قط ،[د هيڅ يو نبي بي بي زنا نهٔ ده کړې [درمنثور](١) دې نه معلومه شوه چه د يو نبي بي بي کافره کيدې شي ليکن بدکاره هيچرې نشي کيدې ځکه چه د بدکارئ نه د عوامو طبيعت هم کرکه کوي او د کفر نه ئې نهٔ کوي [بيان القرآن](٢)

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا

ﺍﮮ هغه کسانو | چې ايمان موراوړې دې | مهٔ ننوزئ

[ائې دايمان خاوندانو ! دخپلو کورونو نه سوا

بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّىٰ تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا

کورونو ته | غير دکورونو ستاسو نه | تر هغې پورې | چې تاسو رضا حاصله کړئ | او سلام اووايئ

د بل چا کورونو ته مه داخلېږئ |..........تر څو چې موا جازت نهٔ وی غوښتې |اوترڅوچې په هغې

عَلَىٰ أَهْلِهَا ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ

په اهل دهغه کور باند | دا طريقه | بهتره ده | ستاسو دپاره | دپاره ددې چې تاسو | نصيحت واخلئ

خلقوسلام وانچوئی کوم چه په کښې اوسيږی|داکارستاسو دپاره ډير غوره دې چې تاسو نصيحت قبول کړئ

فَإِن لَّمْ تَجِدُوا فِيهَا أَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوهَا حَتَّىٰ

پس که چرې | بيانهٔ موندل تاسو |په هغه کور کښې| هيڅوک | نو مهٔ ننوزئ هغې ته| تر هغې پورې

نوکه په هغه کور کښې درته څوک ښکاره نشی |نوتر هغې مه ورننوځئ چې تر

يُؤْذَنَ لَكُمْ ۖ وَإِن قِيلَ لَكُمُ ارْجِعُوا

چې اجازت اوکړې شي | تاسوته | او که اووئيلې شي | تاسو ته | چې واپس لاړشئ

څو درته اجازت ونشي |اوکه دا درته اووئيلې شي چې واپس لاړشئ

فَارْجِعُوا هُوَ أَزْكَىٰ لَكُمْ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ

نو واپس شئ |دا طريقه|ډيره پاکه ده|ستاسو دپاره | اوالله | په هغه کارونو باند | چې تاسو ئې کوئ

نو واپس لاړشئ |هم دا خبره ستاسو دپاره غوره ده .......|اوالله ﷻ ستاسو په عملونو ښه

(١) الدرالمنثور تفسير سورة هود رقم الآية :٤٥ [ج: ٥ ص:٣١١]

(٢) تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:٨ ص:١٢]

عَلِيمٌ ﴿٢٨﴾ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَدْخُلُوا بُيُوتًا

ښه عالم دي | نشته | په تاسو باندي | څه ګناه | چې تاسو ننوځئ | داسې کورونو ته

پوهه دې | په دې خبره کښې په تاسو څهٔ ګناه نشته | چې کومو کورونو کښې څوک

غَيْرَ مَسْكُونَةٍ فِيهَا مَتَاعٌ لَكُمْ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ

چې دهیچا داوسیدو ځائې نهٔ وی | او په هغے کښې | څه فائده وی | ستاسو دپاره | او الله | پوهیږي

نه اوسیږي | او ستاسو سامان په هغې کښې دننه پروت وی | چې هغې ته ورننوځئ او الله ستاسو

مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ ﴿٢٩﴾

په هغې | چې ښکاره کوئ ئې تاسو | او په هغې | چې پټوئ ئې تاسو |

په څرګنده او پټو کارونو باندې ښه پوهیږي |

## آسان ترجمه قرآن

اې ایمان والوا د خپلو کورونو نه سوا نورو کورونو ته تر هغه وخته پورې مه داخلیږئ تر څو چه مو اجازت نه وی اخستلې، او د هغه کور اوسیدونکو ته مو سلام نه وی کړې. هم دا طریقه ستاسو دپاره غوره ده، امید دې چه تاسو به خیال ساتئ. او که تاسو په هغه کورونو کښې څوک بیا نه مومئ نو بیا هم هغې ته تر هغه وخته پورې مه داخلیږئ تر څو چه تاسو ته اجازت درنکړې شي او که تاسو ته اووئیلې شي چه: واپس لاړ شئ نو واپس شئ. هم دا ستاسو دپاره ډیره پاکه طریقه ده او تاسو چه څه عمل هم کوئ. الله پاک ته د هغې پوره پوره علم دې. ستاسو دپاره په دې کښې هیڅ ګناه نشته چه تاسو داسې کورونو ته (د اجازت نه بغیر) داخل شئ چه په هغې کښې څوک نه اوسیږي، او د هغې نه تاسو ته د څه فائدې او چتولو حق وی او کوم کار چه تاسو ښکاره کوئ او کوم چه پټ کوئ، الله پاک ته هغه هر څه معلوم دی.

## خلاصه تفسیر

**پنځم حکم:: داجازت غوښتلو او یوبل سره دملاقات اداب دچاکورته دداخلیدو نه وړاندِاجازت حاصلول:**

دسورهٔ نور دشروع نه دفواحشو اودبې حیایوبندولو دپاره ددغوسره دمتعلقه جرمونو دسزاګانوذکر او بې دلیله په چاتهمت لګولو دبدوالی بیان وو وړاندې ددغو فحش او بې حیا کارونو دبندولو او د پاکئ او دپاکدامنئ دتحفظ دپاره داسې احکام ورکړې شوی دی په کوموسره چه داسې حالات د سره نه شي پیدا کیدې دکومونه چه دبې حیایئ لارملاؤشي په دې احکامو کښې داجازت اخستومسئلې او احکام دی چه دچا کور ته بغیر دهغه داجازت نه داخلیدل یا په دروازه وغیره کښې دننه کتل منع کړې شو په کومو کښې چه یو حکمت دا هم دې چه په غیر محرمو ښځو باندې نظرونه او نه لګی په ذکر شوو ایتونو کښې دمختلف قسم کورونو مختلف احکام بیان کړې شوی دی

کورونه په څلورقسمه دی یو خاص دخپل اوسیدو کور په کوم کښې چه دبل دراتلو هیڅ احتمال نه وی دویم هغه کور په کوم کښې چه بل هم اوسی خواه هغه خپل محرمان ولې نه وی یا دبل دراتلو احتمال په کښې وی دریم قسم هغه کور په کوم کښې چه دچادبالفعل اوسیدو یا نه اوسیدودواړو احتمال وی څلورم قسم هغه کور کوم چه دچا خاص سړی داوسیدودپاره

مخصوص نه وی لکه جماعت، مدرسه ، خانقاه وغیره دعامو خلقو دنفعې او دتلو راتلوځایونه وی په دې کښې داول قسم حکم خوظاهر وو چه دې ته دننوتو دپاره دچانه داجازت اخستوضرورت نشته په دې وجه ددغه ذکرئ په ایتوکښې په ډاګه نه دې کړې دباقی درې قسمه کورونو حکمونه په وړاندې ایتونو کښې بیانوی چه ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ [ اې ایماندارو تاسو ﴿لَا تَدْخُلُوا۟ بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ﴾ دخپلو] اوسیدو خاصو[ کورنو نه سوا په نورو کورونو کښې ] په کومو کښې چه نور خلق اوسیږی خواه هغه دهغو خپل وی اوکه په سوال یاکرایه ئې داوسیدو دپاره اخستی وی [ مه داخلیږئ ﴿حَتَّىٰ تَسْتَأْنِسُوا۟ وَتُسَلِّمُوا۟ عَلَىٰٓ أَهْلِهَا ۚ﴾ تر څو چه اجازت حاصل نه کړی ] یعنی اول دبهرنه سلام وکړئ بیا دهغوئ نه تپوس وکړئ چه ایامونږ ته دننه دراتلو اجازت شته اوبغیرداجازت نه دغسې مه ورننوځې اواګر چه ځنې خلق اجازت اخستل دخپل شان نه خلاف ګڼړی لیکن په حقیقت کښې ﴿ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ [ داستاسو دپاره غوره ده ] چه اجازت واخلئ او لاړ شئ او داخبره ئې تاسو ته ځکه وښودله ﴿لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾ [ چه تاسوخیال ساتئ ] او په دې عمل وکړئ چه په دې کښې لوئ حکمتونه دی داحکم شو دکورونو ددویم قسم ﴿فَإِن لَّمْ تَجِدُوا۟ فِيهَآ أَحَدًا﴾ [ بیا که په دې کورونوکښې تاسو ته څوك بنیادم معلوم نه شی ] خواه په حقیقت کښې هلته څوك وی اوکه نه وی [خو] هم ﴿فَلَا تَدْخُلُوهَا﴾ [دغو کورونو ته مه ورځئ ﴿حَتَّىٰ يُؤْذَنَ لَكُمْ ۖ﴾ ترڅو چه تاسو ته اجازت درنه کړې شی] ځکه چه اول خودا احتمال دې چه په هغې کښې به څوك سړې موجود وی اګر چه تاسوته معلوم نه وی اوکه په واقع کښې څوك موجود نه وی نو دبل چاخالی کورته بې اجازته ورننوتل دبل په ملك کښې دهغه داجازت نه بغیر تصرف کول دی کوم چه ناجائز دی دا حکم شو ددریم قسم ﴿وَإِن﴾ [اوکه چرې] داجازت طلب کولو په وخت کښې ﴿قِيلَ لَكُمُ﴾ [ تاسو ته دا اووئیلې شی ] ﴿ٱرْجِعُوا۟ فَٱرْجِعُوا۟ ۖ هُوَ أَزْكَىٰ لَكُمْ ۚ﴾ دا وخت [چه واپس شئ نو تاسو واپس شئ دا خبره ستاسو دپاره غوره ده] ددې خبرې نه چه هلته ورته اودریږئ چه چرته به راوځی ځکه چه په دې کښې خپل ذلت او بل ته بلا وجهې په دباؤ غورزلو تکلیف رسول دی اویومسلمان ته تکلیف ورکول حرام دی ﴿وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ﴾ [ او الله تعالی ستاسو دټولو عملونو نه خبر دې ] که دحکم نه خلاف وکړئ نو سزا به بیا مومئ او داحکم په هغه صورت کښې دې چه د کوروالواګر چه دواپس کیدو وئیلی نه وی مګر څه خبرې یاغږئ هم نه وی کړی په داسې حالت کښې درې ځله اجازت به په دې احتیاط سره غوښتې شی چه شایدچا اوریدلی نه وی تردرې ځله پورې چه کله څوك جواب ورنه کړی نو واپس کیدل پکار دی لکه چه په حدیث کښې ددې وضاحت موجود دې ﴿لَّيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَدْخُلُوا۟ بُيُوتًا﴾ [او تاسوله داسې کورونوته] بغیر دځه خاص اجازت نه [په تلوکښې ګناه نشته ﴿غَيْرَ مَسْكُونَةٍ﴾ په کوموکښې چه] دکور په طور[څوك نه وسیږی ] او ﴿فِيهَا مَتَٰعٌ لَّكُمْ ۚ﴾ [په دې کښې ستاسو دضرورت څه وی] یعنی ددغو کورونو داستعمالولو تاسوته حق وی داحکم دې دڅلورم قسم کورونو کوم چه دعامې فائدې کورونه مکانونه وی او په کومو پورې چه دعاموخلقو فائدې متعلق وی نو هلته دتلو عادتا عام اجازت وی ﴿وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ﴾ [ اوتاسوچه څه په ښکاره کوئ یا پټ کوئ الله تعالی ته هرڅه معلوم دی ] په دې وجه په هرحال دالله تعالی ویره اوتقوی لازم ده

## معارف او مسائل

**خپل مینځ کښې د ژیست روزګار کولو په باره کښې د قرآن کریم د ښودلو طریقو یو ضروری باب د چا ملاقات له چه ورځئ نو اول اجازت اخلئ بې اجازته د چا په کور کښې مه ور ننوځئ:** د افسوس خبره ده چه اسلامی شریعت څومره چه دې معاملې له اهمیت ورکړې دې او په قرآن کریم کښې دې د پاره په تفصیل سره احکام نازل کړې شوی دی دغه شان رسول الله ﷺ په خپل قول او عمل سره د دې ډیره زورنه کړې ده هومره ترې دنن زمانې مسلمانان غافله دی، لیک، لوست کونکی خلق هم دې لره څه ګناه نهٔ ګڼری، او نهٔ په دې باندې د عمل کولو فکر کوی د دنیا نورو مهذبو قومونو دغه طریقې اختیار کړې او خپل ژیست روزګار ئې درست کړو خو یواځې مسلمانان په دې کښې د تولو نه ورستو پاتې دی په اسلامی حکمونو کښې د تولو نه ړومبئ سستی هم په دې حکم کښې شروع شوه په هر حال اجازت غوښتل د قرآن کریم هغه حکم دې چه عمل کول پرې واجب دی او په دې کښې یو ذرهس بدلون راوستل او سستی پکښې کول هم د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په قول د قرآنی آیت نه انکار کول دی موجوده خلقو خو دا قرآنی حکمونه واقعی ده چه داسې شاته غورځولی دی لکه چه د سره دې لره قرآنی احکام نهٔ ګڼری ﴿إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾،

**د اجازت غوښتو حکمتونه او پکښې د لوئ شان ښیګړې:** هر انسان ته الله تعالی چه د استوګنې ځائ کوم ورکړې دې که هغه ئې خپل ملکیت وی او که په کرایه وغیره ئې د بل چا نه حاصل کړې وی خو دا د هغه، مسکن، بللې شی چه د دې نه اصل غرض سکون او آرام حاصلول دی چنانچه قرآن کریم د دې لوئ نعمت یاد ګیرنه او اشاره په دې شان سره کړې ده فرمائی: ﴿جَعَلَ لَكُم مِّن بُيُوتِكُمْ سَكَنًا﴾ [الله تعالی تاسو ته کورونه د سکون او آرام حاصلولو د پاره درکړل دا سکون او آرام هله راتلې شی چه انسان د خپل استوګنې په ځائ کښې په خپله خوښه د بل چا د دخل ورکولو نه بغیر د خپل ضرورت مطابق په آزادئ سره پکښې پاتې کیدې شی په دې شان کښې ئې بدلون راوستل د دې اصلی ښیګړه د مینځه وړل دی چه لوئ زیان او تکلیف دې- چاته په نا حقه تکلیف رسول اسلام حرام ګرځولی دی چنانچه د اجازت غوښتلو یو لویه ښیګړه دا ده چه د خلقو په آزادئ سکون او آرام کښې خلل وانهٔ چولې شی او زیان نهٔ وررسوی چه د هر شریف انسان عقلی ذمه واری هم ده . بله ښیګړه په کښې په خپله د دغه کس هم داسې ده چه څوک په بل چا باندې په سرېتوب، طریقې او شرافت سره ور ننوځی نو مخاطب به ئې خبره په ډیر قدر او عزت سره آوری ، که حاجت مند وی نو د دهٔ د حاجت پوره کولو جذبه به ئې په زړه کښې راولاړه شی او که بې سړی تو بئ، بې طریقې او بې اجازته پرې ورننوځی نو مخاطب به ئې یو ناڅاپی آفت اوګنړی هسې به ترې د ځان خلاصولو کوشش کوی دهٔ سره به ئې د همدردئ جذبه د زړه نه اوځی او په خپله به دغه ورتلونکې بنده مسلمان ته د ضرر رسولو په ګناه ککړ شی.

دریمه ښیګړه ئې دا ده چه په دې سره د ناکاره او د بیحیا یئ د کارونو مخ نیوې داسې کیدې شی چه که مثلاً څوک بې اجازته د چا په کور ور ننوځی هلته ئې په پرده درو پرادو زنانو نظر اولګی او په زړه کښې ئې ناکاره ارادې په تویونو شی او که په اجازت غوښتو سره ورننووځی نو دې نه به محفوظ شی هم دغه وجه ده چه د اجازت دا حکمونه په قرآن کریم کښې حدزنا او حد قذف وغیره سره متصل راوړلې شوې دی-

څلورمه ښیګړه ئې دا ده چه انسان په ځینې وخت کښې د خپل کور په تنهایئ کښې پداسې کارونو کښې لګیا وی چه د بل چا خبریدل په هغې باندې نهٔ خوښوی او کله ئې ډیر خطرناک هم ګنړی که سره د دې څوک پرې بې اجازته ورننوځی نو دا دهغه پټ راز په زبر دستئ سره معلومول دی چه ډیره سخته ګناه ده او نورو ته د زیان ورکولو ذریعه هم دی.

د اجازت غوښتلو څه مسئلې خو په خپله په دې آیتونو کښې راغلې دی اول دهغې تفصیل او تشریح اوګورئ ،پاتې نورې مختلفې مسئلې به دې نه پس لیکلې شی -

**مسئله** : دلته د ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ ، خطاب اګر چه نارینۀ ته دې خو په کښې زنانه هم داخلې دی څنګه چه د قرآن کریم عامه طریقه هم دا ده سوا د خاصو مسئلونه چه خصوصیت ئې نارینۀ سره بیانولې شی ، چنانچه صحابه کرامو رضي الله عنهم زنانۀ دا طریقه خپله کړې وه چه د چا کورته ورننوتو نه اول د دغې کور د خلقو نه به ئې اجازت غوښتلو حضرت ام ایاس رضي الله عنها فرمائی چه مونړه څلور زنانه به اکثر حضرت عائشې رضي الله عنها له ورتلو چه کورته د ورننوتو نه اول به مو د هغې نه اجازت غوښتلو صرف د هغې په اجازت ورکولو به دننه ورتلو[ابن کثیر په حواله د ابن ابی حاتم]([1])

**مسئله** : د دې آیت د عموم نه معلو میږی چه د بل کور ته هر ننوتونکې د دکور خلقونه اجازت غواړی اګر چه د دوی ترمنځه نزدې خپلوی هم وی ،نارینه نارینه له، زنانه زنانه له ، یا نارینه زنانه له یا زنانه نارینه له ، ورځی نو هر یو ورتلونکې به اجازت غواړی چه واجب دی دغه شان که څوک نارینه خپلې مور ،خور یا بلې هغې زنانه له ورځی چه نکاح کول ئې ورسره همیشه د پاره حرام وی نو بیاهم اجازت غوښتل پکار دی امام مالک رحمه الله په خپل مؤطا کښې یو مرسل حدیث د عطاء بن یسار رحمه الله نه روایت کړې دې چه یو سړی رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه آیا زۀ والدې ته د ورتلو په موقعه هم اجازت ترې غواړم ؟ هغوئ ﷺ ورته اوفر مائیل چه بیاهم بې اجازته مۀ ورننوځه هغه اووئیل چه زۀ خو هم مور سره اوسیږم رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه بیا هم د اجازت نه بغیر مۀ ورځه هغه بیا عرض اوکړو چه ،یارسول الله ﷺ زۀ خو هر وخت د هغې په خدمت کښې پاتې کیږم . هغوئ ﷺ او فرمائیل بیاهم بې اجازت اخستو کورته څکه مۀ ور ننوځه چه هسې نۀ هغه بربنډه وی نو آیا تۀ به ئې بربنډه لیدل خوښوې ؟ هغه عرض اوکړو چه نا وې فرمائیل چه څکه اجازت غوښتل پکاردی چه کیدې شی مور دې د څه ضرورت په وجه بربنډه وی [مظهری ]([2])

دې حدیث نه دا هم ثابته شوه چه په آیت کښې لفظ د ﴿بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ﴾ نه مراد هغه کورونه دی چه انسان په کښې یواځې ځان له او سیږی ،والدین رونړه ،خویندې وغیره ورسره پکښې نۀ اوسیږی.

**مسئله** : په کوم کور کښې چه صرف د چا خپله ښځه اوسیږی هغې ته د ورننوتو د پاره اګر چه اجازت غوښتل واجب نۀ دی خو مستحب او سنت طریقه دا ده چه هلته دې هم ناڅاپې بې اطلاع نۀ ورننوځی بلکه داخلیدو نه اول دې د خپو په کشار یا غاړې تازه کولوسره هغه په ښه شان خبره کړی . د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه خپله بی بی فرمائې چه کله به حضرت عبدالله رضي الله عنه د بهر نه کورته راتلو نو په غاړه تازه کولو سره به ئې څه اول خبرولم چه داسې حالت کښې م او نۀ ګوری کوم چه د هغه خوښ نۀ وی [ابن کثیر په حواله د ابن جریر او وې وئیل چه اسناد ئې صحیح

[1]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ٦ ص: ٣٩] وتفسیر ابن ابی حاتم رقم الحدیث :[١٥١٨٨]
[2]) تفسير المظهري[ج:٦ص:٤٨٨] والموطا کتاب الجامع باب الإستئذان رقم الحدیث:[١٢٥٣٨]

دي] [1] په دې صورت کښې د اجازت غوښتلو نۀ واجبوالې دې نه معلومیږي چه ابن جریج رحمه الله حضرت عطاء رحمه الله نه تپوس اوکړو چه آیا څوک سړې چه هغې کورته ورننوځي کوم کښې چه ئې خپله بی بی وی نو بیاهم اجازت غوښتل واجب دی ؟ هغوی اوفرمائیل چه نۀ - ابن کثیر رحمه الله د دې روایت نقل کولو نه پس فرمائیلی دی چه دې نه مراد دادې چه واجب نۀ دی لیکن مستحب او بهتر دغلته هم دی [2]

**د اجازت غوښتو مسنون طریقه**:: په آیت کښې ښودلې طریقه داسې ده ﴿حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَتُسَلِّمُوْا عَلٰٓى اَهْلِهَا﴾ [دچاپه کورکښې تر هغې مۀ ورننووځئ تر څو چه دوه کاره او نۀ کړئ: اول استیناس چه لفظی معنی ئې طلب د انس ده د جمهورو مفسرینو رحمهم الله په نزد دې نه مراد استیذان یعنی اجازت حاصلول دی استیذان لره په لفظ د استیناس ذکر کولو کښې دې ته اشاره ده چه د ورننوتو نه وړاندې په اجازت حاصلولو سره مخاطب مانوس کیږی وحشت او اوپر والې ئې ختم شی بل دا چه د کور خاوندانو ته سلام اوکړی بعضو مفسرینو رحمهم الله دې نه مراد دا اخستې دې چه رومبې اجازت حاصل کړئ او کله چه په کور ورننوځئ نو سلام پرې واچوئ چنانچه قرطبی رحمه الله دا خبره غوره کړیده ولې چه د دې مراد اخستو په اعتبار سره په آیت کښې څه وړاندې روستو والې نۀ راځی چه رومبې اجازت واخستې شی د اجازت بیا موندو نو په ورننوتو سره د کور په خلقو سلام واچوئ ، [3] او هم دې لره ئې د حضرت ابی ایوب انصاری رضي الله عنه د حدیث تقاضا او غوښتنه ګرځولې ده ، [4] او ماوردی ،په دې کښې دا تفصیل کړې دې چه که د اجازت اخستو نه وړاندې د کور په یو بنیادم باندې ئې نظرپریوځی نو اول دې ورته سلام کوی بیا دې اجازت غواړی ورنه اول دې اجازت غواړی او کور ته په ورننوتو دې سلام اچوی خو د عامو روایتونو د حدیث نه چه کومه مسنونه طریقه معلو میږی هغه داده چه اول دې د بهر نه سلام کوی ،السلام علیکم ، د وائی بیا دې خپل نوم واخلی چه فلانې درسره ملاویدل غواړی . امام بخاری رحمه الله ،الادب المفرد ، کښې د حضرت ابی هریره رضي الله عنه نه روایت کړې دې چه هغوی رضي الله عنه اوفرمائیل چه څوک د سلام اچولو نه وړاندې اجازت غواړی نو اجازت مۀ ورکوئ [ولې چه دۀ مسنون طریقه پرېښوه [روح المعانی] [5] او د ابی داؤد په یو حدیث کښې راغلې دی چه د بنی عامر یو سړی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه داسې اجازت اوغوښتو چه بهرنه ئې اووئیل ،االج ،[یعنی زۀ راننوځم؟] رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل خادم ته اوفرمائیل چه دا سړې د اجازت غوښتو په طریقه نۀ پوهیږی بهر ورشه او د اجازت غوښتو طریقه ورته اوښایه چه داسې دې وائی ، ﴿السلام علیکم اادخل﴾ [یعنی آیا زۀ راننوتې شم ] خادم لا بهر نۀ وو وروتې چه هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم خبره مبارکه پخپله واورېده او سمدستی ئې اووئیل ،السلام علیکم اادخل ، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته د دننه راتلو اجازت ورکړو [ابن کثیر] [6] او بیهقی په

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٦ ص:٣٩] و مسند احمد، مسند عبدالله بن مسعود رضي الله عنه رقم الحدیث:[٣٦٨٢]

[2] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٦ ص:٣٩]

[3] ) تفسیر القرطبي [ ج:١٢ص:٢١٤]

[4] ) تفصیل دپاره اوکورئ :- سنن ابن ماجة، ابواب الأدب ، باب الإستئذان [ ص:٢٦٣ ]

[5] ) روح المعاني تحت هذه الآیة [ج: ١٣ ص:٣٩٧] والأدب المفرد رقم الحدیث :[١١٠٦] کتاب الإستئذان باب الإستئذان غیر السلام

[6] ) سنن ابوداود، کتاب الأدب ، باب الإستئذان [ج:٢ص: ٣٥٦]

شعب الايمان كښې د حضرت جابر رضی الله عنه نه روايت كړې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿لاتاذنوا لمن لم يبدابالسلام﴾ [څوک چه ورانـدې سلام وانۀ چوی هغـه تـه د دننـه راتلو اجازت مۀ وركوئ [مظهری] (١).

په دې واقعه كښې رسول الله ﷺ دوه قسمه اصلاح اوكړه يو دا چه اول سلام كول پكار دی بله دا چه هغه ، اادخل ، په ځائ ،الج ،وئيلې وو چه نا مناسب او بې تهذيبه وو ولې چه ، ولـوج ، پـه يـوه سوړه او تنگ ځائ كښې د ننوتومعنی وركوی او ،ادخل ، په ارت ځائ مثلاً كمره اوكور كښې د راننوتو معنى وركوی په هر حال دې روايتونو نه معلوم شو چه په قرآن كښې دلتـه دسلام اچولو مطلب دا اجازت غوښتلودپاره سلام اچول دی چه دبهرنه اچولې شی چه د دننه خلقو ورته مخه شی او د اجازت غوښتو د پاره د دۀ وئيلې الفاظ واؤرى خو كورته په راننوتو به اصلی سلام بيا اچوی

**مسئله** : د بره بيان شوو احاديثو نه ثابت شو چه اول دې سلام اچوی او بيـا د اجـازت غـواړی پـه دې كښې زياته غوره طريقه دا ده چه اجازت غوښتونكې پخپله خپل نوم اوښائی او اجازت اوغـواړی څنگه چه حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه به كـول د رسول الله ﷺ دروازې تـه چه راغلو نو داسې ئې اووئيل (٢)﴿السلام على رسول الله السلام عليكم ايدخل عمر﴾ يعنى سلام نه پس ئې اووئيـل چه عمر رضی الله عنه راننوتې شی؟ [قاسم بن اصبغ او ابن عبد البر په تمهيد كښې د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت كړو چه ابن عمر رضی الله عنه نه ئې روايت كړې وو [ابن كثيـر] (٣) او پـه صحيح مسلم كـښې دی چه حضرت ابوموسى اشعرى رضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه له ورغلو نو اجازت ئې په داسې الفاظو سره اوغوښتو ﴿السلام عليكم هذا ابوموسى السلام عليكم هذا الاشعري﴾ ، [قرطبى] (٤) په دې كښې ئې هم اول خپـل نوم ابوموسى اوښودلو بيا د زيات وضاحت په خاطر ئې د ،اشعرى ، لفظ اووئيلو د دې غرض دا وو چه پـه ښـه شـان م اوپيژنـی او پـه بـصيرت او ډاډه زړه سـره راتـه اجـازت راكـړی دې تـشويش او پريشانئ نه هم مخاطب خلاصول پكار دی

**مسئله** : په دې باره كښې د ټولو نه خرابه طريقه دا ده چه اول خو بهر نه ورتلونكې بنده خپـل نـوم او نۀ ښائی بيا د دننه بنده په تپوس وائی چه ،زۀ يم ، ولې چه هركله په اول ځل خبرو ئې او نۀ پيژندو نو په ،زۀ يم ، سره به ئې څنگه او پيژنی ؟ - خطيب بغدادی رحمه الله په خپـل جـامع كـښې د علی بن عاصم واسطى نه نقل كړيدی چه هغه بصرې ته لاړو نو د حضرت مغيره بـن شعبه رضی الله عنه د ملاقـات د پاره ورغلو دروازه ئې چه ورته اوټكوله نو حضرت مغيره رضی الله عنه دننه نه تپوس او كړو چه څوک ئې ؟ جواب ئې وركړو ،انا ، [زۀ يم] نو حضرت مغيره رضی الله عنه اوفرمائيل چه په خپلو دوستـانو كـښې پـه ، انا ،نوم څوک بنده زۀ نۀ پيژنم ،بيا بهرته راؤوتو هغه تـه ئې حديث واؤرولو چه يو ځل حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه د رسول الله ﷺ پـه خدمت كـښې حاضر شو او د اجازت غوښتو د پاره ئې دروازه اوټكوله رسول الله ﷺ د دننه نه تپوس اوكړو چه څوک ئې .نو جابر رضی الله عنه ،انا ، اووئيـل [چه زۀ يم ] رسول الله ﷺ د زورنې په ډول اوفرمائيل ،انا انا ،يعنى د انا انا وئيلو څۀ مطلب دې په

---

١ ) شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[٨٥٤٦]
٢ ) ترجمه:-السلام عليكم ، دا ابو موسى دې ، السلام عليكم دا اشعرى دې.
٣ ) التمهيد لابن عبدالبر [ج: ٣ص:٣٠٢] و سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب فى الرجل يفارق الرجل إلخ
٤ ) صحيح البخاري كتاب الأدب ،باب الإستئذان [ج:٢ص:٢١١]

دې سره خو د چا پيژندل نشي کيدې(۱)

**مسئله** : د دې نه هم زياته خرابه طريقه داده چه ننني تعليم يافته خلق ئې هم استعمالوي چه دروازه اوټکوي دننه نه آواز راشي چه څوک ئې نو بهرنې صاحب خاموش شي هيڅ جواب نۀ ورکوي دې سره مخاطب پريشانه کيږي چه د زيان رسولو ډيره خرابه طريقه ده په دې سره د اجازت غوښتو فائده او مصلحت د سره ختميږي -

**مسئله** : د بيان شوو روايتونو نه دا طريقه هم جائزه معلوميږي چه دروازې ټکولو سره د بهر نه خپل نوم اوښائي .

**مسئله** : دروازه ټکول دې داسې په زوره نۀ وي چه دننه خلق په ويره شي بلکه په درميانه ډول کښې دې ټکوي چه دننه خلق ئې صرف واوري او څه پريشاني ترې محسوس نۀ کړي د رسول الله ﷺ دروازه به صحابه کرامو ﷺ په نوکونو ټکوله ، چه هغوئ ﷺ ته پرې څه تکليف او نۀ رسي [خطيب په خپل جامع کښې روايت کړو [قرطبي](۲)

په دې ټولو هدايتونو باندې هغه څوک عمل کولې شي چه د اجازت غوښتو په مقصد پوهيږي چه د دې اصلي مطلب د مخاطب مانوس کيدل دي چه په ښه شان ورته اجازت ورکړي مخاطب ته به د تکليف ورکولو نه ځان ساتي خپل نوم به ښائي دروازه به په درميانه انداز کښې ټکوي دا ټول څيزونه پکښې شامل دي -

**ضروري خبرداری** : نن صبا خو د اجازت غوښتو د سره رواج نشته چه په ښکاره د واجب پريښو ګناه لري کوم خلق چه اجازت اخستل غواړي هغوئ په مسنون طريقه د بهر نه سلام کوي بيا خپل نوم ښائې نو دوئ د پاره په دې زمانه کښې ځنې دشواريانې داسې هم راپېښيږي چه عموما مخاطب د دروازې نه لرې وي هغه پورې د سلام اچولو او اجازت غوښتو آواز نۀ رسي ځکه په دې باندې ځان پوهول پکاردي چه اصل واجب دا دي چه بې اجازته دې د چا کورته نه ورننوځي د اجازت غوښتو طريقې د هر ملک او هرې زمانې بيلې بيلې وي د دروازې ټکولو يوه طريقه ئې د حديث د روايتونو نه ثابته ده په دروازه باندې لګيدلې تلئ غړول هم د واجب اجازت غوښتو يوه طريقه ده خو پکار دا دي چه تلئ غړولو سره سره خپل نوم هم په داسې آواز سره او ښائي چه مخاطب ته ئې آواز اورسي دغه شان چرته چه د دې بله طريقه وي د هغې استعمالول هم جائز دي نن صبا د شناختي کارډ کوم رواج چه د يورپ نه راروان شوي دې د دې مقصد اجازت اخستل دي چه په ښه شان سره پوره کيږي دې ته نۀ دې کتل پکار چه طريقه د يورپ نه راروانه شوې ده ولې چه په دې سره د اجازت غوښتونکي نوم او پته په خپل کور کښې دننه مخاطب ته په ښه شان سره معلوميږي چه هيڅ تکليف پکښې نشته ځکه د دې په اختيارولو کښې هيڅ بديت نشته -

**مسئله** : که اجازت غوښتونکي ته اووئيلې شي چه دا وخت ملاقات نشي کيدې واپس شئ نو بده خکه نۀ دې ګڼړل پکار چه د هر چا حالات او غوښتنې مختلفې وي کله د څه مجبورئ له کبله بهرته نشي راتلې يا ملاقات ته جوړيدې نشي نو داسې حالت کښې ئې عذر قبلول پکار دي ځنګه چه په دې آيت کښې هم دغه هدايت دې چې، ﴿وَاِنْ قِيْلَ لَكُمُ ارْجِعُوْا فَارْجِعُوْا هُوَ اَزْكٰى لَكُمْ﴾ يعنى کله چه تاسو ته د واپس کيدو اووئيلې شي نو په ښه زړه سره تاسو راواپس کيږئ دا به تاسو د پاره ډير

۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱۲ص:۲۱۷] والجامع الاخلاق وآداب السامع للخطيب رقم الحديث:[۲۳۰]
۲) الجامع للخطيب رقم الحديث:[۲۲۵] و مجمع الزوائد رقم الحديث :[۱۲۸۰۲]

پاکیزه کاروی ] داسې خبره بده ګڼړل او هلته ورته رنړیدل دواړه څیزونه صحیح نهٔ دی د بعضې پخوانو بزګانو نه منقول دی چه دا ارمان ئې تول عمر پوره نهٔ شو چه د اجازت غوښتو په جواب کښې راته مخاطب دا اووائی چه واپس شه او زهٔ واپس شم چه د قرآن په حکم باندې د عمل کولو ثواب حاصل کړې شم او وائې چه ماته چرې هم دا نعمت نصیب نهٔ شو یعنی هیچا راته د واپس کیدو اونهٔ وئیل -

**مسئله** : اسلامی شریعت د ښه ژوند تیرولو دوه طرفه طریقه دلته هم داسې ښودلې ده چه د اجازت غوښتو په صورت کښې چه اجازت ورنکړې شی او د واپس کیدو ورته اووئیلې شی نو بده مهٔ ګنړئ واپس شه او مخاطب په دې کښې معذوره ګڼړه لیکن بل خواپه حدیث کښې داسې فرمائیلې شوې دی رسول الله ﷺ فرمائی ﴿ان لزورك عليك حقا﴾(١)، [ یعنی ستا د ملاقاتی حق هم درباندې شته ] هغه داسې چه ځان ته ئې راؤبله یا بهر راؤځه او ملاقات ورسره اوکړه په عزت او احترام ورسره خبره اوکړه خبره ئې واؤره د سختې مجبورئ او عذرنه بغیر د ملاقات نه انکار مهٔ کوه -

**مسئله** : د اجازت غوښتو په صورت کښې هر کله چه دننه نه هیڅ آواز رانشی نو سنت طریقه دا ده چه دویم ځل دې اجازت واخلی که بیا هم څه جواب رانشی نو دریم ځل دې اجازت اوغواړی که دویم ځل هم جواب رانشی نو د دې حکم هم هغه ارجعوا یعنی واپس کیدل دی ولې چه د دې دا مطلب راؤځی چه دننه بنده په داسې حالت کښې دې چه جواب نشی ورکولې مثلا مونځ کوی یا بیت الخلاء کښې دې یا غسل کوی یا په دې وخت کښې ملاقات کولو ته برابر نهٔ دې په دواړو حالتونو کښې هم هغلته رنړیدل او په مخه دروازه ټکول هغه ته ضرر رسول دی کوم نه چه ځان ساتل واجب دی چنانچه د اجازت غوښتو اصلی مطلب د زیان ورکولو نه ډډه کول دی - د حضرت ابی موسی اشعری رضی الله عنه په روایت یو ځل رسول الله ﷺ اوفرمائیل ، ﴿اذااستأذن احدكم ثلاثافلم يؤذن له فليرجع﴾ [یعنی چاته چه په درې ځل اجازت غوښتو باندې هم اجازت ورنکړې شو او څه جواب ورته رانغې نو هغه له واپس کیدل پکار دی [ابن کثیر په حواله د صحیح بخاری](٢) او مسند احمد رحمه الله کښې د حضرت انس رضی الله عنه په روایت منقول دی چه یو ځل رسول الله ﷺ د حضرت سعد بن عباده رضی الله عنه مکان ته تشریف یوړو او د سنت طریقې مطابق ئې بهر نه د اجازت غوښتو د پاره سلام واچولو ،وې فرمائیل السلام علیکم ،حضرت سعد بن عباده رضی الله عنه په دې غرض غلې سلام واخستو چه هغوئ ﷺ ئې واؤ نهٔ ری دغه شان هغوئ ﷺ دویم ،دریم ځل هم سلام واچولو مګر درې واړه ځل به ورته حضرت عباده رضی الله عنه د سلام جواب غلې ورکولو ،درې ځل سلام اچولو نه پس هغوئ ﷺ واپس روان شو سعد رضی الله عنه چه د هغوئ ﷺ آواز مبارک په څلورم ځل واؤنهٔ ریدو نو کورنه راؤوتو وریسې په منډه ورغلو او دا عذر ئې وړاندې کړو عرض ئې اوکړو چه یا رسول الله ﷺ درې واړه ځل م ستاسو د سلام جواب غلې ځکه درکړو چه ستاسو د خلې مبارکې نه ما ته بیا بیا د سلام الفاظ اوخیژی چه زهٔ ورسره برکت حاصل کړې شم [په دې شان رسول الله ﷺ سنت طریقه اوښودله چه درې ځله د سلام د جواب نهٔ راتلو په وجه واپس کیدل پکار دی ] دې نه پس حضرت سعد رضی الله عنه هغوی ﷺ لره خپل کور ته بوتلل ،د هغوی میلمستیا

---

(١) صحيح البخاري كتاب الأدب ،باب حق الضيف [ج:٢ص:٩٠٥]

(٢) صحيح البخاري كتاب لإستئذان ،باب التسليم ولإستئذان ثلاثا [ج:٢ص:٩٢٣]

ئي اوكړه چه هغوئ ﷺ قبوله كړه ([1])
دا د حضرت سعد رضي الله عنه د عشق او محبت اثر وو چې هغه وخت يې ذهن دې طرفته نشو چې د دوارو سردار په دروازه باندې ولاړ دی ما ته پكار دی چې سمدستی د نبی كريم ﷺ قدمبوسئ اوكړم. بلكه ذهن كښې دا خيال راغلو چې دنبی كريم ﷺ د ژبې مباركې څخه څومره څل د السلام عليكم الفاظ څو څل نو دا زما دپاره زيات مفيد دی. په هر حال دې نه دا سنت طريقه ثابته شوه چه درې څل اجازت غوښتو سره كه د ننه نه جواب را نشي نو واپس كيدل پكار دی داسې نه دی كول پكار چه هم هلته پوخ اودريږی چه دا د مخاطب كوربه ته تكليف وركول دی او بهر ته راوتو ئې مجبوره كول دی-

**مسئله**: دا حكم د هغه وخت دې چه درې څل د سلام يا دروازې ټكولو په ذريعه چا اجازت غوښتې وې او هيڅ جواب ورته را نشي نو هلته رنډيدل او ټيكاويدل خلاف سنت دی ليكن د يو بزرگ په انتظار كښې كه هر څومره وخت څوک ايسارشي چه هغه بزرگ راوځي او دې ورسره ملاقات اوكړی كله چه دۀ هيڅ قسم اجازت نۀ وی غوښتې نو دا اصلي ادب دې څنګه چه په خپله قرآن كريم هم خلقو ته هدايت كړې دې چه كله رسول الله ﷺ په كور كښې دننه وی نو په آواز كولو سره ئې بهر ته را بلل د ادب نه خلاف دی بلكه پكاردی چه انتظار ئې اوكړې شی چه د خپل ضرورت په جوړ پخپله بهرته راوځی نو ورسره به ملاقات اوكړئ هغه آيت دا دې ،([2]) ﴿وَلَوْ اَنَّهُمْ صَبَرُوْا حَتّٰى تَخْرُجَ اِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ؕ﴾ او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائيلې دی چه څه كله كله د يو انصاری صحابی د كور په دروازه دهغوئ رضي الله عنه د راوتو د پاره ټوله غرمه انتظار څكه كوم چه هغوئ رضي الله عنه زما د اجازت غوښتو نه بغير پخپله راوځی او زۀ ترې نه د څه حديث په باره كښې تحقيق اوكړم كه ما ترې اجازت غوښتلې يا م په بل څه طريقې خبرولې نو سمدستی به راله راوتې وو خو د بې ادبئ نه د ډډې كولو په وجه داسې نۀ كوم [صحيح بخاری] ([3])

﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ مَسْكُوْنَةٍ فِيْهَا مَتَاعٌ لَّكُمْ ؕ﴾ د متاع لغوی معنی د څه څيز استعمالول او فائده ترې اخستل دی هغه څيز ته هم متاع وئيلې شی چه فائده ترې اخستې شی په دې آيت كښې ترې لغوی معنې اخستل مراد دی چه ترجمه ئې د يو څيز استعمالول كړې شويده – دحضرت صديق اكبر رضي الله عنه په روايت منقول دی چه كله د اجازت غوښتو دغه آيتونه نازل شو او په هغې كښې بې اجازته د چا كور ته ورننوتل منع كړې شوې دی نو صديق اكبر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې عرض اوكړو چه يا رسول الله ﷺ چه د دې منع نازليدو نه پس به قريش سوداګر خلق څه كوی چه د مكې او مدينې نه تر شامه پورې سوداګرئ پسې سفرونه كوی ، په دغې لارو كښې خاې په خاې د دغې خلقو مسافر خانې وی چه هلته دمه كوی په هغې كښې څوک مستقل اوسيدونكی نۀ وی نو هلته به د اجازت غوښتو څه صورت وی ؟ په دې باندې دا آيت نازل شو [ ابن ابی حاتم په حواله د مظهری ] ([4]) – دشان نزول د دې واقعې نه معلومه شوه چه په

[1]) مسند احمد، مسند انس بن مالك رضي الله عنه رقم الحديث:[١٢٧٤١]
[2]) ترجمه:-اوكه دې خلقو صبر كړې وې تر دې چې تاسو پخپله دوئ لره بهر راوتلې وې نودابه بهتره خبره وه.
[3]) ترجمه:- دا روايت په صحيح بخارى كښې نه شوملاؤ، البته په مستدرك حاك كښې دا روايت مذكور دې، اوددې روايت نه پس امام حاكم فرمائي چې : هذا حديث صحيح على شرط البخارى ، المستدرك للحاكم رقم الحديث:[٦٣٥٥ و ٦٢٩٤]و سنن الدارمي رقم الحديث :[٥٨١].
[4]) تفسير المظهري[ج:٦ص:٤٩٠] و تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[١٥١٩٣]

آیت کښې د ،بیوت غیر مسکونة ، نه مراد هغه ځایونه او کورونه دي چه خاص بنده یا خاص قوم
او خلق پکښې په خصوصي ډول استوګنه نۀ کوي بلکه د قوم ټول خلق په عام اجازت سره هلته
ورتلې شي دمه پکښې کولې شي او پکښې تیکاویدې شي ،دا هغسې مسافر خانې دي چه په
ښارونو او ځنګلونو کښې په دې غرض جوړې کړې شوې وی دا شان د جوماتونو ،درګاهونو
،دیني مدرسو ،هسپتالونو ، ډاکخانو ،د اور ګاډي د سټیشنونو ،د هوائي جهازونو د اډو ،د
پارکونو ، باغونو ،چمنونو ،او مکانونو دې کوم چه د عامو خلقو دفائدې د پاره جوړ کړې شوې
وی او هرڅوک ورته بې اجازته ورتلې شي -

**مسئله** : د عامو خلقو د فائدې اخستو د پاره جوړ شوی ځایونو ته داخلیدو باندې چه د متولیانو او
منتظیمینو د اړخه شرطونه او پابندیانې لګولې شوې وی نو د شریعت لـه مخې د هغې پابندی
کول واجب دی مثلا د ریل ګاډي سټیشن ته د ورننوتو د پاره چه د پلیټ فارم ټکټ اخستل
ضروری ګرځولې شوې دی نو بغیر د پلیټ فارم د ټکټ نه هلته ورننوتل ناجائز دی دغه شان د
هوایي اډې کومې برخې ته ورتلل چه منع کړې شوې وی هلته بې اجازته ورتلل د شریعت لـه مخې
جائز نۀ دی -

**مسئله** : دغه شان په جوماتونو مدرسو درګاهونو او هسپتالونو وغیره کښې چه کوم ځایونه یا
کمرې دهغې دمنتظمینو یا د نورو خلقو د اوسیدو د پاره مخصوص وی لکه د جماتونو مدرسو
درګاهونو خاص حجرې [کوټګۍ] یا د ریل ګاډی ، هوائي اډې ، اوهسپتال دفترونه او
مخصوص کمرې چه د مریضانو یا نورو خلقو د استوګنې ځایونه دی هغه د ، بیوت غیر
مسکونة ،په حکم کښې نۀ دی بلکه د ،مسکونه ، په حکم کښې دی چه بې اجازته ورننوتل ورته
د شریعت لـه مخې منع دی او د ګناه کار دې -

**د اجازت غوښتو په باره کښې څو نورې مسئلې**:: کله چه دا معلومه شوه چه د اجازت غوښتو په باره
کښې د شرعي حکمونو اصل مقصد خلقو ته د زیان رسولو نه ډډه کول دی او د ښه زیست
روزګار کولو طریقې ښودل دی نو د علت د شریک والی په بنیاد د لاندې بیان شوو مسئلو حکم
هم معلوم شو -

**د ټیلیفون په باره کښې څنې مسئلې**:: داسې وخت کښې چاته ټلیفون کول منع دی چه د عادت لـه مخې
د خاطب د اوده کیدو ،دمونځ یا نورو ضروریاتو کښې د مشغولیدو وخت وی خو کـه زیات
ضرورت وی نو بیاروادی ، ولې چه دا هم هغسې شان لری څنګه چه دچا کورته دننه تلو د اجازت
شان وو یعنې څنګه چه بې اجازته د چا کور ته ورننوتل د هغه په آزادۍ کښې خلل اچول دی
هغسې حکم د دې هم دې -

**مسئله** : چا سره چه په ټیلیفون باندې اکثرو وختونو کښې خبرې کولې شی مناسب دی چه هغه نه
معلوم کړې شی چه ټیلیفون باندې خبرو کولو کښې هغه ته کوم کوم وخت کښې آسانۍ وی ؟نو د
آسانۍ په وخت دې ورته ټیلیفون کوی -

**مسئله** : په ټیلیفون که څوک اوږده خبره کول غواړی نو مناسب دی چه مخاطب نه دا تپوس اوشی که
فرصت درته وی چه څه اوږده خبره درته اوکړم کـه هغه د دې اجازت ورکړی نو هله دې داسې
اوکړی ولې چه په ټلۍ غږیدو سره په ټیلیفون پورته کولو باندې بنده مجبوره وی چه څوک راته څه

وانې؟ په دې بنا هغه خپل ضروري کار پرېږدي او ټيليفون پورته کړي که څوک بې رحمه بنده ورسره خبرې اوږدې کړي نو هغه ته سخت تکليف شي۔

**مسئله:** ښې خلق داسې وي چه د ټيليفون تلو کيدو باوجود هغه نه پورته کوي دا د اسلامي اخلاقو نه خلاف خبره ده او د خبرې کونکي حق تلفي ده لکه په حديث شريف کښې راغلي دي، ان لزورک عليک حقا[1]، [يعنې د ملاقاتي هم دربانديې حق شته] هغه سره خبرې اوکړه، بې ضرورته د ملاقات کولو نه ئې انکار مه کوه په دې شان څوک چه درسره په ټيليفون خبرې کول غواړي د هغه حق دې چه جواب ورکړې شي –

**مسئله:** د اجازت حاصلولو په انتظار کښې ولاړ ملاقاتي دې د کوربه په کور کښې په غلا کتل نه کوي، ولې چه دې سره د اجازت حاصلولو مقصد داسې فوت کيږي چه کور به کوم څيز تاته ښکاره کول نه غواړي ته په غلا سره په هغې خان خبر کړې چه دا هغه ته زيان ورسول دي او په حديث کښې د دې سخته منع راغلې ده [بخاري و مسلم په روايت د سهل بن سعد الساعدي] [2] چنانچه د رسول الله ﷺ عادت مبارک دا وو چه د چا کور ته به ئې يوړو، د اجازت غوښتو د پاره به هلته د هغوئ ﷺ د انتظار طريقه دا وه چه د هغې دروازې ته بيخي مخامخ به نه اودريدو بلکه د دروازې ښي يا ګس اړخ ته به په څنګ ځکه اودريدو چه دغه وخت به عموما د خلقو په دروازو باندې پردې آويزان نه وې که وې به هم نو د هوا په وجه دهغې د يو خوا بل خوا کيدو خطره به وه او د کور د راز ښکاره کيدو احتمال پکښې وو کوم چه د کوربه د پاره د زيان سبب جوړيدې شو [مظهري] [3]

**مسئله:** کورونو کښې بې اجازته ورننوتل په عامو حالاتو کښې منع شويدي که ناڅاپه څه راپيښه هلته اوشوه مثلا اور اولګيدو يا دغه مکان راپريوتو نو بې اجازته هلته تلل هم روا دي چه د دغې خلقو امداد اوکړې شي [ مظهري] [4]

**مسئله:** که څوک ملاقاتي د بلونکي قاصد سره يو ځائ د هغه ځائ ته راؤرسيدو نو ورننوتو د پاره د اجازت غوښتو ضرورت ورته نشته البته که د هغه د ريبار نه څه وخت پس د هغه ځائ ته راؤرسيدو نو ورتلو د پاره د اجازت غوښتو ضرورت شته، ولې چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: اذا دعی احدکم [يعنې بللې شوې چه د بلونکي قاصد [ريبار] سره يو ځائ د هغه کور يا دفتر ته راؤرسي نو هم دا ور د پاره د دننه تلو اجازت بللې شي. [ابوداؤد په حواله د مظهري] [5]

| |
|---|
| قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ |
| [اے نبی اووايه] مومنانوته |
| [..................... [اې پيغمبره] مومنانوته اووايه] |

---

[1] ) صحيح البخاري كتاب الأدب، باب حق الضيف [ج:٢ص:٩٠٥]

[2] ) صحيح البخاري كتاب لإستئذان، باب الإستئذان من أجل البصر [ج:٢ص:٩٢٢] و صحيح مسلم كتاب الأداب، باب تحريم النظر في بيت غيره [ج:٢ص:٢١٢]

[3] ) تفسير المظهري[ج:٦ص: ٤٩٠]

[4] ) تفسير المظهري[ج:٦ص:٤٨٨]

[5] ) سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب فى الرجل يدعى ايكون ذالك إذنه؟ [ج:٢ص: ٣٥٧]

يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ذٰلِكَ

چې ښکته دلري | سترگې خپلې | او حفاظت دکوی | دپردې دځایونو خپلو | دا طریقه

چې خپلې سترگې ټیټې ساتی |اودخپلو شرمگاهونو حفاظت کوی | دا خبره ددوئ

اَزْكٰى لَهُمْ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ۝

ډیره پاکه ده | دپاره دهغوئ | بیشکه الله | خبردار دی | په هغې کارونو | چې کوی ئې هغوئ

دپاره ډیره بهتره ده | الله ﷻ دخلقو په ټولو کارونو خبر دی

وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ

اووایه | مومنانو ښځو ته | چې ښکته دساتی | نظرونه خپل | او حفاظت دکوی

اومومنانو ښځوته اووایه |چې خپلې سترگې دې ټیټې ساتی |اودخپلو شرمگاهونو

فُرُوْجَهُنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ

دپردې دځایونو خپلو | اونۀ دښکاره کوی | ښائست خپل | مگر | هغه | چې ښکاره شی په خپله

حفاظت دې کوی |اوخپل ډول سنگار دې نه ښکاره کوی| البته چې کوم نه شی پټیدې

مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ

اوخپلې لوپټې دې په سینوباندې غوړیدلې لری|اوخپل ډول سنگاردې نه ښکاره کوی

دهغې نه| او واچوی | لوپټې خپلې | په گریوانو خپلو باندې|اونۀ دښکاره کوی |ښائست خپل

اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اٰبَآئِهِنَّ اَوْ اٰبَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اَبْنَآئِهِنَّ

مگر | خاوندانو خپلو ته | یا پلارانو خپلو ته | یا پلارانو دخاوندانو خپلو ته| یا ځامنو خپلو ته

خو خپلو خاوندانو ته |....یا خپلو پلارانو ته |یا د خاوندانو پلارنو [سخرانو] ته |یا خپلو ځامنو ته

اَوْ اَبْنَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْٓ اِخْوَانِهِنَّ

یا ځامنو دخاوندانو خپلو ته | یا رونړو خپلو ته | یا ځامنو درونړو خپلو ته |

یا د خاوندانو ځامنو [پرکتو] ته | یا خپلو رونړو ته | ..........یا دخپلورونړو ځامنو [وریرونو] ته

اَوْ بَنِيْٓ اَخَوٰتِهِنَّ اَوْ نِسَآئِهِنَّ اَوْ مَا مَلَكَتْ

یاځامنودخویندو خپلو ته| یادمیل ملاپ ښځو خپلوته | یاهغه چاته چې مالك شوی وی دهغې

یا دخپلو خویندو ځامنو[خوریونو] ته |یا[مسلمانانو] ښځو ته |یا خپلو وینځو ته

اَيْمَانُهُنَّ اَوِ التّٰبِعِيْنَ غَيْرِ اُولِي الْاِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ

ښی لاسونه دهغوئ | یا هغه ماتحتانوته | چې نۀ وی خاوندان دحاجت ښځو ته | دسړونه

یا په سړو کښې هغه خادمانو ته چې نفسانی خواهشات نه لری |

اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرٰتِ النِّسَآءِ

یا [ورو] هلکانوته | هغه هلکان | چې نۀ وی خبر هغوئ | په پټو خبرو دښځو باندې

یا هغه ماشومان ته چې لا دښځو دپردو دخبرو نه خبر نه وی

وَلَا يَضْرِبْنَ　بِأَرْجُلِهِنَّ　لِيُعْلَمَ　مَا　يُخْفِينَ

اونه دوهي ښځې ا پښې خپلې ا د پاره ددې چې پته اولګي خلقو ته ا دهغه څيزا چې پټوي ئې دوئ

او ښځې دې ا په تګ کښې ا خپلې خپې ا زمکې ته ا په زوره نه راپرېږدي ا چې په دې سره ددوئ

مِنْ زِينَتِهِنَّ ۚ　وَتُوبُوٓا　إِلَى اللَّهِ　جَمِيعًا　أَيُّهَ الْمُؤْمِنُونَ　لَعَلَّكُمْ

دزينت خپل نه　ا او توبه اوباسئ ا　الله ته　ا　ټول　ا　اے　مؤمنانو ا　دپاره ددې

دپټو کالو اواز واوريدې شي ا او تاسو ټول الله ﷻ ته توبې اوباسئ ا ائې مومنانو !

تُفْلِحُونَ ۝

چې تاسو خلاصې بيا مومئ ا

ددې دپاره چې کامياب شئ ا

## آسان ترجمه قرآن

مومنانو سړو ته اووايه چه هغوی خپلې سترګې ښکته اوساتی، او د خپلو شرمګاهونو حفاظت اوکړی. دا د هغوی دپاره ډیره پاکه طریقه ده. هغوی چه څه عمل کوی، الله پاک د هغې نه ښه خبر دې. او مومنانو زنانو ته اووايه چه هغوی دې خپلې سترګې ښکته ساتی، او د خپلو شرمګاهونو حفاظت دِ کوی، او خپل ډول دې په چا باندې نه ښکاره کوی، سوا د هغې نه کوم چه خپله ښکاره شی او د خپلو څادرونو پیلسکی دې په ګریوانونو باندې راواچوی، او خپل ډول دې په چا هم نه ښکاره کوی سوا د خپلو خاوندانو نه، یا د خپلو پلارانو نه، یا د خپلو خاوندانو د پلارانو نه، یا د خپلو ځامنو یا د خپل خاوند د ځامنو نه، یا د خپلو ورونړو یا د خپلو ورونړو د ځامنو نه، یا د خپلو خوئیندو د ځامنو نه، یا د خپلو زنانو نه یا د هغه چا نه کوم چه د دوی په ملکیت کښې دی یا د هغه خدمت ګارو نه چه د هغوی په زړه کښې څه (جنسی) تقاضه نه وی یا دهغه ماشومانو نه چه لا تر اوسه پورې د زنانو د پټو حصو نه خبر نه دی، او مسلمانانو زنانو له پکار دی چه هغوی خپلې پښې داسې زمکې ته نه راچوی چه هغوی کوم ډول پټ کړې وی، هغه معلوم شی او اې مومنانو! تاسو ټول د الله پاک په وړاندې توبه اوکړئ، چه تاسو کامیاب شئ.

## خلاصه تفسير

**شپږ حکم د ښځو ديردې احکام:** ﴿قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ﴾ [ته مسلمانو سړو ته اووايه چه خپل نظرونه دې لاندې ساتی] يعنی کوم اندام طرف ته چه مطلق کتل ناجائز دی هغې ته دې بالکل نه ګوری او کوم ته چه فی نفسه کتل جائز دې مګر په شهوت سره جائزنه دی هغه ته دې په شهوت سره نه ګوری ﴿وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ۭ﴾ [او دخپلو شرمګاهونو حفاظت دې کوی] يعنی په ناجائزځائ کښې دې شهوت نه پوره کوی چه زنا او لواطت په کښې ټول داخل دی ﴿ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ ۭ﴾ [دا ددوی دپاره زياته دصفايئ خبره ده] او ددې په خلاف کښې ګندګی ده يعنی په زنا يا په مقدمه دزنا کښې ﴿اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ۝﴾ [بيشکه الله تعالى خبردې دټولو هغه څه نه چه خلق يې کوی] پس خلاف کوونکی په دسزا مستحق وی [او] دغه شان ﴿وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ﴾ [مسلمانانو ښځوته اووايه چه] دوی هم ﴿يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ﴾ [خپل نظرونه لاندساتی] يعنی کوم اندام طرف ته چه مطلق کتل ناجائزدی هغې ته دبالکل نه ګوری او کوم ته چه فی نفسه

کتل جائز دی مگر په شهوت سره جائز نه دی هغې ته دپه شهوت سره نه گوری ﴿وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ﴾ [او دخپلو شرمگاهونو حفاظت دکوی] یعنی په ناجائز ځائ کښې دې شهوت نه پوره کوی چه زنا اوسحاق یعنی موټی وهل ټول په کښې داخل دی ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ﴾ [ اوخپل زینت ] ځایونو [لره دنه ښکاره کوی] دزینت نه مرادکالی دی لکه کنگر، بنگړی ،پازیبونه،بازوبند ، اود هغوئ د مواقعو نه مراد مرئ، څټ،سر،سینه ، پنډئ ،لیچې ، غوږونه ، یعنی داټول ځایونو دټولونه پټ ساتئ په لحاظ دهغو دوه استثناګانوسره کومې چه وړاند راځی او کله چه ددې ځایونو دپردونه پټ ساتل واجب دی دکومو چه محرمانو مخامخ ئ ښکاره کول جائزدی لکه چه وړاندې راځی نو نور ځایونه او اندامونه کوم چه پاتې شول لکه شا ګیډه وغیره چه ښکاره کول ئ دمحرمانو په وړاندهم جائز نه دی ددوی پټ ساتل په دلالت النص سره واجب شو حاصل داشو چه دسرنه تر پښوپورې ټول بدن پټ ساتئ دوه استثناء دکومو ذکر چه بره راغلې دې په دې کښې اوله استثناء دځایونو دضرورت په لحاظ سره ده چه روزانه په کار روزګار کښې چه دکوموانداموندښکاره کولو ضرورت وی هغه ئ ترې نه مستثناء ګرځولی دی دهغې تفصیل دادې﴿إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا﴾ [مگر کوم چه په دې] ځایونو دزینت [کښې ښکاره وی] چه په ټولوکښې ئ هروخت حرج وی مراد ددې زینت دځایونونه مخ دلاسو ورغوی او دصحیح قول مطابق دواړه قدمونه هم دی ځکه چه مخ خو په قدرتی طورسره دټول ښائست ځائ دې اوځنې زینتونه په مخ کښې قصدا هم کولې شی مثلا رنجوسرخی پوډرو وغیره ځائ دې او ورغوی او ګوتې دګوتو نکریزو وغیره ځایونه دی او قدمونه هم دپانزیبونو او دنکریزو ځایونه دی پس دا ځایونه ددې ضرورت په وجه مستثناء کړې شول چه ددې دښکاره کولونه بغیر کار روزګار نه شی کیدې او د [ ماظهر] تفسیر په مخ او ورغووسره په حدیث کښې راغلې دې اوقدمونه فقهاؤ په دې قیاس کړی او شامل کړی ئ دی [ او] خاص کردسر اوسینې دپټولو ډیر اهتمام دکوی او﴿وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ﴾[خپلې لوپټې د] کومې چه د سرپټولودپاره دی ﴿عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ﴾[په خپلوسینو راغور زوی ] اگر چه سینه خو په قمیص پټه وی لیکن په قمیص کښې اکثر ګریوان سپړدلې وی اود سینې هیئت دقمیص باوجود ښکاره کیږی په دې وجه داهتمام ضروت شو وړاند دویمه استثناء بیانولې شی چه په کومه کښې محرمانو سړو وغیره لره دپردې دذکر شوی حکم نه مستثناء کړی دی ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ﴾[او خپل دزینت ] ځایونو [ لره] دې دچا په وړاندې

[ نه ظاهروئ﴿إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ﴾ مګردخپلو خاوندانو] خپلومحرمانولره﴿أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاءِ بُعُولَتِهِنَّ﴾[یا خپل پلاریادخپل خاوندپلار یاخپلوځامنویادخپل خاونددځامنو ﴿أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ﴾ یا د خپلو] حقیقی یاپلار راوړی یامورراوړی [ ورونړو ته] نه چه تره ځامنویا ماما وغیره دځامنوپه وړاند [یا دخپلو] دې ذکرشوو [ ورونړو دځامنویادخپلو] حقیقی یاپلار راوړو یامور راوړو ﴿أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ﴾[ خویندودځامنوپه وړاندې] نه چه دترهٔ یاترور دلونړو دځامنوپه وړاند﴿أَوْ نِسَائِهِنَّ﴾[یادخپلو] یعنی دین شریکو[ښځوپه وړاند] مطلب دادې چه دمسلمانانو ښځو په وړاندځکه چه دکافرو ښځوحکم په مثل دپردی سړی دې [رواه فی الدرعن طاوس رحمه الله مجاهد رحمه الله عطاء رحمه الله سعیدبن المسیب رحمه الله، ابراهیم رحمه الله ] ﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾[ یادخپلووینځو په وړاند] مطلقا اګر چه کافرې وی ځکه چه دغلام سړی حکم په

شان دپردې سړي دي دامام ابوحنيفه په نزد او پرده کول ترې نه واجب دي دا روايت(۱) په درکښې دي دطاوس رحمه الله، مجاهد رحمه الله عطاء رحمه الله سعيدبن المسيب رحمه الله اوابراهيم رحمه الله نه ﴿أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ﴾ [يا هغوسړو په وړاندې کوم چه ] دخوراك څښاك دپاره په طورد [ تابعينووي اوددوي] په وجه دحواسودخرابيدو ښځو طرف ته [يوه ذره توجه نه وي] دتابعينوتخصيص ځکه دې چه په هغه وخت کښې داسې خلق موجود وو لکه چه په درکښې دابن عباس رضي الله عنه نه دي او په دې حکم کښې دې هريو هغه چه عقل ئې بې کاره وي پس مداردحکم دعقل په بې کاره کيدو دې نه داچه دتابع او طفيلي والي باند مگر دغه وخت دغه تابعان داسې وو په دې وجه دتابع ذکر ئې وکړو په وجه دقول دابن عباس رضي الله عنه نه په درکښې :
(۲)مغفل في عقله احمق لايکترث للنساء](۳) اوکوم چه عقل لري هغه په هرحال اجنبي سړې دې اگر چه بوډا ياخصي يا مجبوب [مقطوع الذكر] ولې نه وي ددۀ نه پرده واجب ده ﴿أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ﴾ [يا دداسې هلکانو په وړاند ﴿لَمْ يَظْهَرُوا عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ﴾ کوم چه دښځو دپردې په خبرو باند پوهه نه وي] مراد ترې نه هغه بچي دي چه لابلوغ ته نه وي نزدې شوي او دشهوت نه خبرنه وي پس ددې ټولو په وړاند دمخ ورغوو او قدمونو نه علاوه دښائست دغه ذکرشوي ځايونه ظاهرول هم جائز دي يعنى سر او سينه او دخاوندپه وړاند ديوځائ هم پټول واجب نه دي اگر چه دغه خاص اندم ته کتل خلاف اولى دي [(۴)قالت سيدتنا ام المؤمنين عائشة رضي الله عنها ماحصله لم ارمنه ولم يرمني ذلك الموضع، اورده في المشكوة(۵) وروي بقي ابن مخلد وابن عدي عن ابن عباس مرفوعا اذا جامع احدكم زوجته اوجاريته فلاينظر الى فرجها فان ذالك يورث العمى(۶) قال ابن صلاح جيد الاسناد كذا في الجامع الصغير](۷) [او] دپردې دې ترديږ پورې اهتمام کوي چه په تلو کښې ﴿وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ﴾ [خپلې پښې دې په زوره نه ږدي ﴿لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِنْ زِينَتِهِنَّ﴾ چه پټ کالي معلوم شي] يعنى دکالو اواز دغير محرمو غوږونو ته ونه رسيږي [اومسلمانانو] ستاسونه چه کومه کوتاهي په دې احکامو کښې شوې وي نو ﴿وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَ الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [تاسوټول دالله تعالى په وړاند توبه وکړئ چه تاسو فلاح بيا مومئ] ورنه نافرماني دکاملې فلاح دپاره مانعه کيږي

## معارف او مسائل

**بحيابو د مخې نيولو او د پاکيزګئ يو زيات مقصودي باب د زنانو پرده کول دي** :: د ښځو [زنانو] د پردې رومبې حکمونه هغه دي کوم چه په سورت احزاب کښې هغه وخت نازل شوې وو چه ام المؤمنين

---

(۱) تفصيل دپاره اوګورئ:- الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۲۸۷]
(۲) ځکه په الدر المنثور کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا فرمان موجود دې چې: تابع هغه ته وائی چې عقل مند نه وی احمق وی ، د ښځو پرواه نه کوی.
(۳) الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۲۸۸]
(۴) ترجمه:-ام المؤمنين سيده عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل چې ما نه ستا شرمګاه اوليده اونه نه تا زما شرمګاه اوليده ، حضرت ابن عباس رضي الله عنه د نبي کريم ارشاد نقل کړې دې چې کله يو سړې خپلې ښځې يا وينځې سره جماع کوی نو د هغې شرمګاه ته دې نه ګوری ځکه چې دې سره نظر متاثره کيږي.
(۵) تفسير روح البيان سورة الاعراف آيت: ۲۰ [ج: ٤ ص:۱۱۹]
(۶) سنن الکبری للبيهقي رقم الحديث[۱۳۳۱۸]
(۷) الجامع الصغير رقم الحديث:[۱٤٦۵]

حضرت زينب بنت جحش ﷞ د رسول الله ﷺ په نكاح كښې راغله د څنې حضراتو په نزد دا د [كال ۳ هـ] او د څنې په نزد [كال ۵ هـ] واقعه ده په تفسير ابن كثير او نيل الاوطار كښې [كال ۵ هـ] غوره ګڼړلې شوې دې[۱]، دغه شان په روح المعانى كښې د حضرت انس ﷜ نه نقل شوې دى چه دا نكاح په [كال ۵ هـ] كښې شوې ده[۲] خو په دې باندې د ټولو اتفاق دې چه د پر دې پړومبى آيتونه هم په دې موقعه نازل شوې دى او دسورت نور دا آيتونه د افک قيصې سره نازل شوې دى چه بنى المصطلق يا مريسيع غزا نه د واپسى؛ په موقعه راپيښه شويده كومه چه په [كال ۰۶ هـ] كښې شوې وه دې نه معلومه شوه چه په دغې اعتبار سره د سورت نور د پردې دا آيتونه د سورت احزاب د څلورو آيتونو د پردې نه پس نازل شوې دى چنانچه د شرعى پردې حكمونه د سورت احزاب د دغې آيتونو د نازليدو د وخت نه شروع شوې وو په دې بنا د پردې پوره بحث خو به انشاء الله تعالى په سورت احزاب كښې راځى ،دلته صرف د دې آيتونو د سورت نور تفسير ليكلې شى.

﴿قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ۚ ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ ۚ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا يَصْنَعُوْنَ﴾ ،يغضو ،د ،غض ، نه مشتق دې چه معنى ئې كمول او ښكته كول دى [راغب][۳] د نظر ښكته كولو مطلب دا دې چه هغې څيزونو ته نه ګورى چه د شريعت له مخه هغې ته كتل منع شوې دى [ابن كثير] ابن حبان ﷫ هم دا تفسير كړې دې[۴] په دې كښې پردئ زنانه ته په خراب نظر كتل حرام دى او هسې ورته كتل په مكروه كښې داخل دى دغه شان حكم د يو نارينه يا زنانه د پردې اندامونو ته د كتلو دې [د ضرورت لكه د علاج وغيره موقعې دې نه مستثنى دى] دغه شان د چا څه راز معلومولو د پاره ئې كور كښې غلې غلې[پټ پټ] كتل او هغسې نظر كول او كتل هم په دې كښې داخل دى چه شريعت منع كړې وى - ،﴿وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ﴾ د شرم ګاهونو د حفاظت كولو مراد دا دې چه داسې هرڅه نه ئې په حفاظت كښې ساتى چه دنفسانى خواهش كولو دپاره ناجائز ګرځولې شوې دى لكه زنا ،لواطت ،سحاق او موټک وهل و غيره ټول په دې كښې داخل دى د دې آيت نه مراد په ناجائزه او حرام طريقې سره د شهوت پوره كولو او د دې د سبب ګرځيدو ټول څيزونه منع ګرځول دى دلته ئې ابتدء او انتهاء په ډاګه بيان كړه چه د دې سبب جوړيدونكى منځوميانه څيزونه ټول پكښې داخل شو چنانچه د شهوت د فتنې د ټولو نه ړومبى سبب او مقدمه كتل دى او آخرى نتيجه ئې زنا و غيره دى دا دواړه په ډاګيز بيان سره حرام اوګرځول ،د دې په منځ منځ كښې ټول حرام مقدمات او سببونه لكه خبرې كول ،لاس وروړل و غيره ټول د دې په ترڅ كښې راغلل . ابن كثير د حضرت عبيده ﷜ نه نقل كړې دى چه ﴿كل ما عصى الله به فهو كبيرة وقد ذكر الطر فين([۵])﴾ [يعنى په كوم څيز سره چه د الله تعالى د حكم مخالفت كيږى هغه ټول لوئ ګناهونه دى خو په آيت كښې د دې اول او آخر بيان كړې شو ] د دې اول نظر كول او كتل دى او آخر ئې زنا و

[۱]) تفسير ابن كثير سورة الأحزاب ، آية: ۵۳ ونيل الأوطار [ج: ۹ص:۴۶۲ ] كتاب النكاح ، باب النهي عن الخلوة بالأجنبية إلخ.

[۲]) روح المعاني سورة الأحزاب ، آية:۴۰[ج:۱۶ ص:۱۳۷] و سورة الأحزاب ، آية:۵۳[ج:۱۶ ص:۱۹۲]

[۳]) مفردات القرآن للراغب [ج:۱ ص:۳۶۱]

[۴]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۶ ص:۴۱] و تفسير البحر المحيط تحت هذه الآية [ج: ۸ ص:۳۰۴]

[۵]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۶ ص:۴۲]

غیره کول دی چنانچه طبرانی د حضرت عبدالله بن مسعود ؓ په روایت د رسول الله ﷺ دا فرمان نقل کړې دې .

النظر سهم من سهام ابلیس مسموم من ترکها مخافتی ابدلته ایمانا یجد حلاوته فی قلبه [ابن کثیر]﴾([1]) [یعنی نظر کول او کتل د شیطان یو زهرجن غشې دې څوک چه سره د زړهٔ غوښتو باوجود هم خپل نظر واړوی نو زهٔ به ورته په بدل کښې داسې پوخ ایمان ورکوم چه خوند به ئې زړه کښې محسوس کړی ]- او په صحیح مسلم کښې د حضرت جریر بن عبدالله بجلی ؓ په روایت د رسول الله ﷺ دا فرمان مبارک منقول دې چه په پردئ زنانه باندې د ناڅاپی نظر پریوتو په وخت دې نارینه نظر اړوی [ابن کثیر ]([2]) چنانچه د حضرت علی ؓ په روایت دنقل شوی حدیث مطلب هم دا دې – کوم کښې چه فرمائیلې شوې دی چه اول نظر کول معاف دی([3]) خو په مخه ورته کتل ګناه ده دا هله چه اول نظر کول بې اختیاره او ناګاهانی وی که په اراده وی نو ړومبې خل کتل هم ګناه ده معاف نهٔ دی –

**بې ږیرې هلکانو ته په قصد سره نظر کول هم دا حکم لری::** ابن کثیر ؒ لیکلې دی چه د امت پخوانو ډیرو بزرګانو امرد [بې ږیرې هلک] ته دکتو نه سخته منع کوله او ډیرو عالمانو ؒ دې ته حرام وئیلې دی [ غالبا دا په هغه صورت کښې وی چه په بد نیت سره د نفس په خواهش ورته کتل وی– والله أعلم ]

**پردې نارینه ته زنانوٗ لره نظر کول هم حرام دی تفصیل ئې دا دې ::** ﴿وَقُل لِّلْمُؤْمِنَٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَٰرِهِنَّ﴾ د دې اوږد آیت په اول سر کښې نارینوٗ ته دا حکم ورکړې شوېدې چه پردئ زنانه ته دې نهٔ ګوری نظر دې په دغه موقعه ښکته لری او بل خوا دې اړوی په دغه حکم کښې زنانه هم راتلې خو بیل بیان ئې د تاکید د پاره کړې شوې دې دې نه معلومه شوه چه زنانوٗ لره د نزدې خپلوانو نارینوٗ او خپل خاوند نه بغیر پردی نارینه ته کتل بیخي حرام دی اګر که په شهوت او په بد نیتئ سره نهٔ وی چنانچه په دې باندې د حضرت ام سلمه ؓ حدیث دلیل ګرځولې شوې دې چې هغه کښې داسې ذکر دی چه حضرت ام سلمه ؓ او حضرت میمونه ؓ [دواړه بیبیانې ] رسول الله ﷺ سره موجودې وې ناڅاپه حضرت عبدالله بن ام مکتوم ؓ نابینا صحابی دغلته راغلو چه دې نه وړاندې د پردې احکام هم نازل شوی وو نو رسول الله ﷺ دغې دواړو بیبیانو ته حکم اوکړو چه د دوئ [نابینا صحابی ] ؓ نه پرده اوکړئ ،حضرت ام سلمه ؓ عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ دوئ ؓ خو نابینا دی ،نهٔ مونږ ته کتې شی او نهٔ مونږ پیژندې شی رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه تاسو خو نابینا نهٔ یئ کنه دوئ ته خو کتې شئ [ابوداؤد ،ترمذی ،ترمذی ورته حسن ،صحیح حدیث وئیلی دی] ځنی نورو فقهاؤ ؒ فرمائیلی دی چه بې شهوته نظر کول ور د پاره څه بدیت نهٔ لری ،دوئ د حضرت عائشه صدیقه ؓ هغه حدیث دلیل جوړوی په کوم کښې چه راغلی دی چه د مسجد نبوی ﷺ په احاطه کښې حبشی ځوانانو د خپل سپاهی توب د لوبې د اختر په ورځ ننداره ورکوله – دې ته رسول الله ﷺ هم کتل او حضرت عائشې ؓ ورته هم په داسې شان کتل چه د رسول الله ﷺ شاته ولاړه وه او دهغوئ ﷺ په اوږو مبارکو باندې ئې خپله څنه ایښې وه هغه پورې دغه تماشه کول چې پخپله ستړی شوه نو دغه ځائې نه روانه شوه .او هغوئ ﷺ په

[1] ) المعجم الکبیر للطبرانی رقم الحدیث:[۱۰۲۱۱]
[2] ) صحیح مسلم کتاب الأداب باب نظر الفجارة [ج:۲ص:۲۱۲]
[3] ) سنن ابوداود، کتاب النکاح، باب فیما یومیر به غض البصر إلخ [ج:۱ص:۲۹۹ ]

دغه ټول وخت هغه رضي الله عنها د کتونه منع نه کړه په شهوت سره کتل خو نې ټول په اتفاق سره حرام بولي خو بې شهوه ته کتل ئې هم د غوره والي نه خلاف دي او د دې آيت دالفاظو له مخې دا هم حرام دي چه يوه زنانه د بلې زنانه پټو اندامونو ته ګوری تر څو پورې چه خاص ضرورت نه وی ځکه لکه څنګه چې پورته بيان شوې دی چه پټ اندامونه د نارينه د نوم نه تر ګوډو پورې دی او د زنانو پټ اندامونه سوا د مخ ،څپرو او قدمونو نه ټول بدن ئې دې چه پټول(۱) ئې د هر چانه فرض دی يو نارينه د بل نارينه ستر ته نشی کتې ،او نه زنانه د بلې زنانه ستر ته کتې شی نو دا خو به نور هم زيات حرام وی چه زنانه د نارينه ستر ګوری يا نارينه د زنانه ستر ګوری ولې چه دا آيت د حکم ،غض بصر، [نظر اړولو ] نه خلاف ځکه دی چه په دې سره هغه ټولو څيزونو نه نظر ښکته او نظر ترې اړول حرام دی چه په شريعت کښې ورته کتل منع ګرځولې شوی وی په دې کښې د يوې زنانه د بلې زنانه ستر ته کتل هم داخل دی۔

﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ۖ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ﴾ د زينت لغوی معنی هغه څيز دې چه ورسره انسان خپل ځان د ښکلی او ښائسته ښکاره کيدو تنداره جوړ وی خواه هغه ښکلې جامې هم کيدې شی او کالی هم ،کله چه داسې څيزونه د زنانه په بدن باندې پراته نه وی نو په اتفاق د امت سره دې ته کتل نارينو د پاره څه بديت نه لری په دې بنا جمهورو مفسرينو رحمهم الله په دې آيت کښې د زينت نه مراد د زينت ځايونه اخستې دی په کومو خپلو اندامونو چه زنانه دغه څيزونه استعمالوی ځکه به د آيت مطلب دا شی چه زنانه دې د زينت ځايونه نه ښکاره کوی چه واجب دی [کذافي الروح](۲) ور پسې دی نه دوه استثنا ګانې داسې بيان شوې دی چه يو هغه چا سره تعلق لری چه نظر ورته کولې شی او بله کتونکی سره تعلق لری۔

**د پردې د حکمونو استثنا**: رومبئ استثناء د ﴿مَا ظَهَرَ﴾،ده مطلب دا چه زنانه له دا جائز نه دی چه د خپل زينت او ښائست ځايونه چا نارينه ته ښکاره کړی سوا د هغې ځايونو نه چه په خپله ښکاره کيږی چه پټول ئې ډير ګران وی نو د دې په ښکاره کيدو کښې څه ګناه نشته [ابن کثير](۳) حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په ،﴿مَا ظَهَرَ﴾ ، سره مستثنی شوی څيز پورتنئ جامې [لکه برقع يا لوئ پړونې ] مراد اخلی کومې چه د زينت د جامې پټولو د پاره استعمالولې شی نو د دوئ رضي الله عنهم په نزد به د آيت مراد داوی چه د زينت هيڅ څيز هم ښکاره کول سوا د هغه څيز نه روا نه دی چه د ستر او پردې کولو په غرض د بورقې يا د پړونی په ډول استعماليږی ولې چه د هغې پټول د بهر وتو په وخت د ضرورت له کبله نشی کيدې او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا مستثنی شوی څيزونه مخ بولی ځکه چه زنانه د څه ضرورت په وجه بهرته اوځی نو په ګرځيدو لين دين کښې مخ او تلی پټول ګران شی په دې لحاظ د دی تفسيری اختلاف نتيجه دا راځيږی چه د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د تفسير مطابق د پردو نارينو په وړاندې زنانه لره مخ او څپره ښکاره کول هم جائز نه دی صرف د برنئ جامې [ لکه بورقې او پړونی ] ښکاره کول د ضرورت له کبله مستثنی دی او دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما د تفسير مطابق مخ او څپره هم د پردو نارينو په وړاندې ښکاره کول جائز دی ـــ په دې بنا د امت فقها رحمهم الله هم په دې کښې اختلاف لری چه مخ او څپرې د پردې نه

(۱) يعنی د ټولو نامحرمانو نه د محرم حکم ځکښې راروان دې. (تقی عثماني ۱۴۱۹ هجری)
(۲) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۴۰۴]
(۳) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية [ج: ۶ ص:۴۵]

مستثنی دی او د پردو نارینؤ په وړاندې ئې ښکاره کول روا دی او که نهٔ ؟ البته په دې دټولو اتفاق دې چه که مخ او خپرو ته په کتلو کښې د فتنې څه اندیښنه وی نو هغې ته هم کتل ناجائز دی او زنانه لره د هغې ښکاره کول هم نهٔ روا کیږی دا شان په دې هم د ټولو اتفاق دې چه د اجماع د مخې په مونځ کښې او د زیات صحیح روایتونو له مخې بهر د مونځ نه کوم پټول د عورت چه فرض دی هغې کښې مخ او خپرې پټول داخل نهٔ دی د دې ښکاره کیدو سره کړې مونځ به صحیح او درست وی -

قاضی بیضاوی رحمه الله او خازن د دې آیت په تفیسر کښې فرمائیلی دی چه د آیت غوښتنه دا معلومیږی چه زنانه د پاره اصل حکم دا دې چه د زینت هیڅ یو څیز ئې ښکاره نشی سوا د هغې نه چه د ګرځیدو حرکت کولو او دکار روزګار کولو په وخت د عادت له مخې ښکاره کیږی په دې کښې بورقه او څادری [پړونې ] هم داخل دی دا شان مخ او خپرې هم کله چه زنانه د څه مجبورئ او ضرورت په وجه بهر ته اوځی نو د بورقې او څادری [پړونی ] ښکاره کیدل خو هرو مرو کیږی لیکن د دینی ضرورت له مخې په خنې وختونو کښې مخ او خپرې هم ښکاره کیږی هم هغه معاف دی چه ګناه ئې نشته خو دې آیت نه چرې هم دا نهٔ ثابتیږی چه نارینؤ لره د زنانه مخ او خپرو ته بې ضرورته کنی کتل روا دی بلکه نارینؤ ته د نظر ښکته لرلو هم هغه حکم دې که د ضرورت له کبله د زنانه مخ یا خپره چرته ښکاره شی نو نارینه دې ورته د شرعی عذر او ضرورت نه بغیر نهٔ ګوری په دې[۱] توجیه کښې دواړه روایتونه او تفسیرونه راجمع کیږی د امام مالک رحمه الله مشهور مذهب هم دا دې چه د پردئ زنانه مخ او خپرو ته هم بې د مباح کونکی ضرورت نه کتل جائز نهٔ دی او په زواجر کښې ابن حجر مکی رحمه الله شافعی رحمه الله د امام شافعی رحمه الله هم دا مذهب نقل کړې دې چه اګر که د زنانه مخ او خپرې د عورت په فرض پټولو کښې نهٔ راځی چه د دې په ښکاره کیدو سره هم مونځ کیږی خو پردو نارینؤ لره جائز نهٔ دی چه بې دشرعی ضرورت نه ورته ګوری دا پورته معلوم شو چه کومو فقهاؤ رحمهم الله مخ او خپرې د زنانه کتل روا بللې دی خو هغوئ رحمه الله هم په دې اتفاق لری چه د فتنې راپورته کولو اندیښنه چه وی نو هلته ورته کتل هم ناروا دی او دا خبره څرګنده ده چه د حسن او زینت اصلی مرکز د انسان مخ دې اوس د فتنې فساد زمانه ده شهوت او غفلت غلبه ده لهذا د مخصوص ضرورتونو نه بغیر د پردو نارینؤ په وړاندې زنانه لره مخ ښکاره کول هم منع دی بیا بې دشرعی ضرورت نه نارینؤلره هم هغې ته کتل جائز نهٔ دی - په آیت کښې د ظاهری زینت د استثنا کولو نه پس ارشاد دې ، ﴿وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ﴾ [یعنی خپل څپوټې یعنی پړونې دې پخپلو ګریوانونو ښه ټینګ اچوی ] ،خمر ،د خمار جمع ده دا هغې جامې ته وئیلې شی چه زنانه ئې په سرونو باندې اچوی چه مرئ او سینه ئې هم ورسره پټیږی جیوب د جیب جمع ده د دې معنی ،ګریوان ،ده هر کله چه پخوانه دا رواج جاری دې چه ګریوان په سینې د پاسه وی ځکه د ، جیوب ،د پټولو نه مراد دسینې پټول دی د آیت په شروع کښې د زینت د ښکاره کولونه منع شوې وه او په دې جمله کښې د زینت پټولو تاکید او د دې د یو صورت بیان دې د کوم اصلی وجه چه د جاهلیت یو رسم د منځه ایستل دی د جاهلیت په زمانه کښې دا رواج وو چه زنانؤ به لوپټه [څپوټې وغیره] په سرباندې واچوله او د هغې دواړه پلوونه به ئې شا ارخ ته زوړنده پریښول ، دا شان به ئې ګریوان ،مرئ ،سینه او غوږونه ښکاره

---

[۱] ) تفسیر البیضاوي تحت هذه الآیة [ج:٤ ص:٣٧٧] و تفسیر الخازن تحت هذه الآیة [ج: ٤ ص:٤٩٩]

پاتې کیدل ځکه مسلمانانو بیبیانو ته حکم ورکړې شو چه دوی دې دغسې نهٔ کوی بلکه د لوپټې [څپوټې و غیره] پلو دې په بل باندې واچوی چه دغه ټول اندامونه ئې ورسره پټ شی [روایت کړو ابن ابی حاتم د ابن جبیر نه [روح] وروستې دویمه استثنا دهغې نارینهٔ بیان کړې شوې ده چه د شریعت له مخې ترې پرده کول نشته د دې دوه سببه دی اول دا چه دغه نارینهٔ نه د څه فتنې اندیښنه نشته ولې چه هغه نزدې خپلوان دی چه په پیدائشی ډول د هغوی طبیعتونه الله تعالیٰ داسې جوړ کړی دی چه هغوی د دغه زنانهٔ د ننګ ناموس حفاظت کونکی وی او پخپله ترې د څه فتنې احتمال نهٔ وی بله دا چه دوی خپل منځ کښې هروخت یو ځای ناسته پاسته لری چه تر منځه ئې آسانی پیدا کیدل پکار دی دا هم یاد لرئ چه د خاوند نه سوا د نورو نزدې خپلوانو نارینهٔ مستثنی کول دا مطلب لری چه هغوی نه پرده کول نشته ،د دې دا مطلب هم نهٔ دې چه ګنی دوی ته په دې سره د خپلوانو زنانو هغه اندامونو ته هم کتل روا شو چه په مونځ کښې ئې پټول ګران دی( [1] )

په دې آیت کښې د اتو قسمو خپلوانو نارینهٔ او نور د څلور قسمه نارینهٔ نه د پردې کولو استثنا شوې ده او د دې نه په وړاندی نازل شوی سورت احزاب کښې صرف د اوو قسمونو بیان دې د سورت نور په آیت کښې پنځه پکښې اضافه شوې دی کوم چه دې نه پس نازل شوې دې –

**خبرداری**: یاد لرئ چه دلته ،محرم ،لفظ په عامه معنی کښې استعمال شوې دې چه خاوند د ښځې پکښې هم شامل دې د فقهاؤ په اصطلاح کښې د دې هغه خاص تفسیر نهٔ دې شوې چه ورسره په هیڅ صورت کښې د زنانه نکاح نشی روا کیدې د سورت نور په آیت کښې دولس مستثنی شوی کسان دا دی

اول خاوند بیان شوې دې چه د خپلې بی بی د هیڅ اندام پرده ترې نشته اګر چه د دې هغه مخصوص اندامونو ته بې ضرورته کتل څه ښه کار نهٔ دې چنانچه حضرت عائشې رضی الله عنها فرمائیلی دی ،مارأی منی ولارایت منه ، [نهٔ هغوی زما خاص اندام لیدلې دې او نهٔ ما دهغوی خاص اندم لیدلې دې ]( [2] ) وروستې پلار بیان شوې دې چه نیکه او غر نیکه ټول پکښې داخل دی –دریم د خاوند پلار دې په دې کښې هم د هغه نیکه او غر نیکه داخل دی- څلورم خپل ځامن چه ټول نمسی او کړوسی پکښې هم داخل دی–

پنځم د خاوند هغه ځامن چه د بلې ښځې نه ئې وی - شپږم خپل رونړه چه ځکه وی که پلار ګنی وی یا مورنی وی خو د ماما ځامن تربوران او د دواړه قسمه ترور یانو ځامن په دې کښې داخل نهٔ دی هغه نزدې خپلوان نهٔ دی-

اووم وریرونه دی کوم چه د ځکه یاد پلار ګنئ یا د مورنئ رونړو ځامن وی د نورو تر بورانو ، د تروړئ پکښې نهٔ راځی اګر چه په عرف او رواج کښې دې ته هم رونړه وئیلې شی –اتم خوریونه

---

[1] ) دلته په مسئله لړ شان تفصیل دې چې دهغې بیان پاتې شوې دې. هغه تفصیل دادې چې د ښځې د ستر هغه حصه د نامه او خنګونو تر مینځه ده ، داشان خیټه او ملا د محرم دپاره هم کتل جائز نه دی. البته ددې نه علاوه نورې حصې لکه سر ، مرندونه، پنډئ وغیره دمحرم په وړاندې پرانیستلې شی. البته چونکه د فتنې دور دې ددې وجې بغیرد ضرورت نه د پرانیستلو عادت جوړول مناسب نه دی ، شاید هم په دې وجه حضرت منصف رحمة الله علیه دمونځ ستر لره د محرم ستر ګرځولې دې، والله اعلم.(محمد تقی عثمانی ۱۴۱۹ هجری)

[2] ) تفسیر روح المعاني سورة الأعراف آیت :۲۰ [ج:٤ ص:۱۱۹]

دی چه د ځکه یا د پلار ګنئ یا د مورنئ خویندو خامن وی ترلي او د ترورياڼو لونړه پکښې نه راځي اګر چه دې ته په رواج اوعرف کښې خويندې وئيلې شي - دا اتۀ قسمه د خپلوانو دي -
نهم قسم ، ﴿أَوْنِسَآئِهِنَّ﴾ خپلي [مسلماني] زنانه دی چه د هغوی په وړاندې هم ټول هغه اندامونه ښکاره کول جائز دی کوم چه د پلار او خامنو و غيره په وړاندې ښکاره کولې شی چنانچه پورته ليکلې شوې دی چه دا استثناء د پردې د حکمونو ده . د ستر د حکمونو نه نۀ ده لهذا کوم اندامونه چه د نژدې خپلوانو په وړاندې يوه زنانه نشی ښکاره کولې هغه د يوې مسلمانې زنانه په وړاندې هم نشی ښکاره کولې د علاج وغيره ضرورتونه دې نه مستثنی دی ، ﴿نِسَآئِهِنَّ﴾،د مسلمانانو زنانو د قيد لګولو نه معلومه شوه چه د کافرو مشرکانو زنانو نه هم پرده کول واجب دی ولې چه هغه د پردو زنانو په حکم کښې دی ابن کثير د دې آيت په تفسير کښې نقل کړې دی چه دې نه معلومه شوه چه مسلمانې زنانه د پاره جائز نۀ دی چه د کافرې زنانه په وړاندې خپل اندامونه ښکاره کوی(۱) بياهم په احاديثو کښې داسې روايتونه مو جود دی چه د مؤمنانو ميندو بيبيانو له کافرې زنانه کورته دتنه ورغلې دی ځکه په دې مسئله کښې د مجتهدينو امامانو اختلاف دې ځنو امامانو کافرې زنانه د پردو نارينۀ په شان بللې دی او ځنو امامانو په دې باره کښې مسلمانانې او کافرې زنانه يو شان بللې دی چه پرده کول د دواړو نه نشته امام رازی رحمه الله فرمائيلې دی چه په ، ﴿نِسَآئِهِنَّ﴾ ، کښې ټولې [مسلمانانې او کافرې] زنانه راځي - پخوانو بزرګانو چه د کافرو زنانو ته د ستر پردې کولو فرمائيلې دی هغه استحبابی [مستحب] کار دې چنانچه په روح المعانی کښې د بغداد مفتی علامه آلوسی هم دا قول غوره کړې دې فرمائي ،
هذا القول اوفق بالناس اليوم فانه لايكاديمكن احتجاب المسلمات عن الذميات [روح المعانی]﴾(۲)- [يعنی دا قول د نننی خلقو د حالاتو سره ځکه جوړيګی چه په دې زمانه کښې د کافرو زنانو نه د مسلمانانو زنانو پرده کول تقريبا ناممکنه خبره ګرځيدلې ده ] -
لسم قسم ﴿أَوْمَامَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾ دې [يعنی هغه چه دغه زنانه ئې مالکانې وی ] دلته د الفاظو عموم نه خو دا معلوميږی چه دې کښې و ينځې غلامان دواړه داخل دی ليکن د اکثرو فقهاؤ رحمهم الله په نزد دې نه مراد صرف وينځې دی غلامان [نارينه ] پکښې داخل نه دی چنانچه دوئ نه دعامو نژدې خپلوانو په شان پرده کول واجب دې حضرت سعيد بن المسيب رضي الله عنه په خپل آخری قول کښې فرمائيلې دی ﴿اية النورفانه فی الاناث دون الذکور﴾ يعنی تاسو د سورت نور د دې آيت نه په دې غلطئ کښې مۀ پريوځئ چه ګنې د ،ماملکت ايمانهن ، الفاظ عام دی او غلامان هم پکښې داخل دی خو داسې نۀ ده بلکه دا آيت صرف د زنانو [وينځو] په باره کښې دې غلامان [نارينه ] پکښې داخل نۀ دی حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه ،حسن بصری رحمه الله او ابن سيرين رحمه الله فرمائيلې دی چه غلام [ نارينه ] لره د خپلې مالکې [زنانه] ويښتو ته کتل هم جائز نۀ دی [روح المعانی](۳) دلته يو سوال دا را پورته کيږی چه هر کله دې نه وړاندې په ،نساءهن ، کښې وينځې هم داخلې وې نو دوباره د ،ماملکت ايمانهن،راوړلو بيا څه ضرورت پاتې کيدو ؟ - د دې جواب امام جصاص رحمه الله دا ورکړې دې چه هر کله د ظاهر په اعتبار سره لفظ د ،نسآءهن، صرف

(۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص: ٤٧]
(۲) تفسيرروح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٣ ص:٤٠٩]
(۳) تفسير روح المعاني سورة بحواله بالا-

مسلمانانو زنانؤ د پاره کیدي شو او په وینځو [زنانؤ] کښې کافرانې او مسلمانانې دواړه وې نو د کافرانو وینځو [زنانؤ] شاملولو د پاره دا لفظ مستقل راوړې شو( )

یوو لسم قسم :: ﴿أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ﴾ دې ، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائیلې دی چه دې نه مراد هغه بولګان او ګډوډ دماغي نارینه مراد دی چه نهٔ ئې زنانؤ ته څه شوق راپورته کیږی او نهٔ ئې ورسره زړه لګي [ابن کثیر]( ۲) او هم دا مضمون ابن جریر رحمه الله د ابی عبدالله رحمه الله ،ابن جبیر رحمه الله ،ابن عطیه رحمه الله وغیره نه نقل کړې دې( ۳) څکه ترې نه مراد هغه نارینه دی چه زنانؤ سره څه شوق او شهوت نهٔ لری او نهٔ د زنانؤ ښکلا او حالاتو سره څه دلچسپی لری چه نورو خلقو ته ئې بیانوی البته د هجړاګانو [نرښځیانو] نه پرده کول څکه واجب دی چه دوئ د زنانؤ خاصو صفتونو سره تعلق لری ،چنانچه د حضرت عائشې صدیقې رضی الله عنها په حدیث کښې راغلی دی چه یو هجړا به د ازواجو مطهراتو رضی الله عنهن خواته راتلو چه ،امهات المؤمنین ،به په ﴿غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ﴾ ، کښې په شامل ګڼړلو سره د کورنه نهٔ منع کولو کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه [هیجړا] اولیدو او خبرې ئې د هغه واؤریدې نو په کورونو کښې ننوتونه ئې منع کړو [روح المعانی]( ۴)

په دې وجه ابن حجر مکی رحمه الله د منهاج په شرح کښې فرمائیلی دی چه یو نارینه اګر که ،عنین، [نامرده] مجبوب [ذکر پریکړې] یا ډیر بوډا وی خو بیاهم د ،﴿غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ﴾، په لفظ کښې داخل نهٔ دی او د دې ټولو نه پرده کول واجب دی( ۵) دلته ، ﴿غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ﴾ ، لفظ سره چه د ﴿التَّابِعِينَ﴾، لفظ راغلې دې دې نه مراد هغه بولګان او ګډوډ دماغی خلق مراد دی چه نا بللی د خلقو په کورونو کښې خالص د خوراک څکاک د پاره ورننوځی ،نو دا هم مستثنی دی ،د دې بیان څکه اوکړې شو چه دغه وخت به دغې بولګان او ګډوډ دماغی څنې خلق د خلقو کورونو ته دننه صرف د خوراک څکاک د پاره ورننوتل په دې بنا د دې حکم اصلی اډانړه د هغوی په بولتوب او په دماغی ګډوډئ ده په تابع کیدو او نا بللی کیدو باندې نهٔ ده – والله اعلم -

دولسم قسم:: ﴿أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ﴾ دې .دې نه مراد هغه نابالغ ماشومان دی چه بالیغیدو ته هم نزدې شوې نهٔ وی او دزنانؤ د خاصو حالاتو صفتونو او کړو وړو نه بیخی ناخبره وی او کوم هلک چه په دغې خبرو کښې کار لری نو هغه مراهق [بالیغیدو ته نزدې] دې چه پرده کول ترې واجب دی– [ابن کثیر]( ۶) امام جصاص رحمه الله فرمائیلی دی چه دلته د ،طفل ، نه مراد هغه ماشو مان دی چه د مخصوصو معاملو په بنیاد د زنانؤ او نارینؤ تر منځه فرق نشی کولې [ د مجاهد نهٔ ئې بیان کړل]( ۷) د پردې نه د مستثنی شوو بیان ختم شو۔

---

۱ ) أحكام القرآن للجصاص سورة النور باب ما يجب من غض البصر عن المحرمات[ج:٨ ص: ١٧٠ ، ١٧١]

۲ ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص: ٤٨]

۳ ) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج: ١٩ص:١٦٢ ، ١٦٣]

۴ ) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ١٣ ص:٤١٠] د حديث تفصيل دپاره اوګورئ:- صحيح مسلم كتاب السلام ، باب منع المخنث من الدخودل على النساء الأجانب [ج:٢ص:٢١٨]

۵ ) نهاية المحتاج شرح ا لمنهاج كتاب النكاح [ج: ٢٠ ص:١٩٦]

۶ ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٤٩]

۷ ) أحكام القرآن للجصاص [ج:٨ ص: ١٧٢]

﴿وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ﴾ [ يعني زنانو د پاره ضروري دي چه خپلې خپې دومره په زوره په زمکه باندې نه اړدي چه د کالي آواز تری راوخي او د هغې په زينت نارينو ته ښکاره شي]

**د کالي آواز پردو نارينو ته اورول جائز نه دي**:: د آيت په شروع کښې خپل زينت پردو نارينو ته د ښکاره کولو نه زنانه منع کړې شوې وې په آخر کښې ئې د دې زيات تاکيد داسې دې چه د زينت د ځايونو ،يعنى د سر او سينې وغيره پټول خو واجب وو ، خپل پټ زينت ښکاره کول [ په هر شان سره چه وي ] روا نه دي په کالي کښې د آواز کولو څه څيز اينبول يا يوپرخه د بلې برخې جنګيدو سره آواز ترې راختل يا داسې په زوره په زمکه باندې قدم اينبول چه آواز ترې راخيژي او پردي نارينه ئې آوري دا ټول څيزونه د دې آيت له مخې ناجائز دي او هم په دې وجه ډيرو فقهاؤ فرمائيلي دي چه هر کله د دې آيت له مخې د کالي وغيره آواز پردو نارينو ته اورول ناروا اوګرځولې شو نو د زنانو خپل آواز پردو نارينو ته اورول د دې نه هم زيات خامخابه ناروا وي ځکه د زنانو آواز هم دغې حضراتو په ستر کښې داخل ګرځولې دی او په دې بنا باندې په ،نوازل ، کښې راغلي دي چه تر خپله وسه پورې زنانو لره د قرآن تعليم هم زنانو نه اخستل پکار دي نارينو نه ئې تعليم اخستل د مجبورۍ په وجه جائز دي – د صحيح بخاري او مسلم په نقل کړې حديث کښې راغلي دي چه د نارينه مونځ ګذار په وړاندې دې تيريدونکي لره مونځ ګذار په ،سبحان الله ، وئيلو سره خبر داره کوي خو زنانه مونځ ګذاره دې په آواز سره نه بلکه د ښي لاس په څپره دې ګس لاس د څپړې په شا وهلو سره خبرداره کوي[1]

**د زنانو د آواز مسئله**::په دې کښې د امامانو اختلاف دې چه د زنانه آواز ستر دې اوپردي نارينه ته ئې آواز اوړول روا دي او که نه ؟- د شافعي مذهبو علماؤ رحمهم الله په څه کتاب کښې د زنانه آواز ته ستر نه دې وئيلې شوې د احنافو په نزد هم په دې باره کښې مختلف قولونه راغلي دي چنانچه ابن همام رحمه الله د ،نوازل ، د روايت په بنا په ستر کښې داخل کړې دې په دې وجه د حنفيانو رحمهم الله په نزد د زنانه آذان کول مکروه دي ليکن د حديث نه ثابت دی چه أزواج مطهرات رضوان الله عنهن به د حجاب د نازليدو نه پس هم د پردې نه روستو پردو نارينو سره خبرې کولې د دې ټولو په رايوځاې کولو سره غوره او صحيح خبره دا معلو ميږي چه په کومه موقعه او په کوم ځاې کښې د زنانو د آوازنه د فتنې پيدا کيدو خطره وي نو هلته به منع وي ګنې نه به وي [جصاص][2] احتياط په دې کښې دې چه زنانه دې دپردې شاته هم پردو نارينوسره بې ضرورته خبرې نه کوي [والله اعلم]

**د بهر وتو په موقعه خوشبوئي په ځان پورې کول**::دا حکم د هغې صورت هم دې چه زنانه د بهر وتو په وخت په ځان باندې خوشبوئ پورې کوي دا ځکه ناروا دي چه پردو نارينو ته د دغې خوشبويئ وګمه رسيدل هم زينت ښکاره کول دي .چنانچه په ترمذی کښې د حضرت ابي موسى رضي الله عنه د روايت کړې حديث له مخې د هغې زنانه بدی بيان شوې ده چه د بهر وتو په موقعه په ځان باندې خوشبوئ مږي[3]

---

[1] ) صحيح البخاري كتاب الجنائز قبيل ،باب الإشارة في الصلاة [ج:١ص:١٦٥] و صحيح مسلم كتاب الصلاة ، باب تقديم الجماعة إلخ [ج:١ص:١٧٩]

[2] ) أحكام القرآن للجصاص سورة النور باب ما يجب من غض البصر عن المحرمات[ج:٨ ص: ١٧٣]

[3] ) جامع الترمذي ، ابواب الإستئذان والأدب باب ماجاء في كراهية خروج امراة المتعطرة [ج:٢ ص:١٠٦]

**ووليئ برقعه په سر کړي د زنانه بهرته وتل هم ناروا دي** ::امام جصاص رحمه الله فرمائيلي دي چه هر کله قرآن کريم د کالي آواز هم د زينت ښکاره کول گرځولی دی نو د ښکلی رنگونو ډولئ برقعه په سر کړې بهرته وتل ئې د دې نه زيات منع شو او دا هم ترې معلومه شوه چه د زنانه مخ اگرچه په ستر کښې داخل نۀ دې خو د ټولونه لوئ د زينت مرکز دې .ځکه ئې د پردو نارينو نه پټ لرل هم واجب شو سوا د ضرورت د وخت نه [جصاص](1)

﴿وَتُوبُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَ ٱلْمُؤْمِنُونَ﴾[يعني الله ته تاسوټول مؤمنان توبه کړئ] په دې آيت کښې اول نارينو ته دنظر ښکته لرلو حکم دې بيا زنانو ته هم دغه شان حکم دې بيا زنانو ته د پردې بيل بيل حکم ورکړې شو او دهغې نه پس په دې جمله کښې ټول نارينه زنانه شامل کړې شو او هدايت اوکړې شو چه د نفساني شهوت معامله نازکه ده چه نور څوک پرې خبرول ډير گران دی خو الله تعالى ته هر يو پټ او څر گنده څيز يو شان ښکاره وی په دې وجه که چا نه په دې بيان شوو حکمونو کښې څه وخت کوتاهي شوې وی نوتوبه ترې کول ور د پاره ضروری دی په شوې کوتاهئ دې سره د خپيمانئ دالله تعالى نه دې ببښنه اوغواړی اوآئنده دپاره دې هغې ته د نۀ ورتلوپخه اراده اوکړی .

| |
|---|
| وَأَنكِحُوا۟ ٱلْأَيَٰمَىٰ مِنكُمْ وَٱلصَّٰلِحِينَ |
| او نکاح اوکړئ \| دبې نکاحو \| ستاسو نه \| او دصالحانو نه |
| او په تاسو کښې چې کومې ښځې کونډې دی دهغوئ |
| مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَآئِكُمْ ۚ إِن يَكُونُوا۟ فُقَرَآءَ يُغْنِهِمُ ٱللَّهُ |
| دغلامانوستاسونه\| او دوينځو ستاسو نه \|که چرې وی هغوئ \| فقيران \|غنيان به کړی هغوئ لره الله |
| نکاح کوئی \| اودخپلو نيکانو غلامانو هم \|اود وينځو هم [نکاح کوئ] \| که دوئ غريبانان وی |
| مِن فَضْلِهِۦ ۗ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٣٢﴾ وَلْيَسْتَعْفِفِ |
| دفضل خپل نه \| او الله \| دفراخئ مالك دې \| او ښه پوهه دې \| او پکار دی چی ځان دې پاك ساتی |
| نو الله ﷻ به ئې په خپل فضل سره غنيان کړی \|اوالله ﷻ د ډيرې فراخئ خاوند دې \| په هرڅه پوهه دې |
| ٱلَّذِينَ لَا يَجِدُونَ نِكَاحًا حَتَّىٰ يُغْنِيَهُمُ ٱللَّهُ |
| هغه کسان \| چی نۀ مومی هغوئ \| اسباب دنکاح \| تر هغې پورې \| چی غنيان کړی هغوئ لره الله |
| اوکوم خلق چې د نکاح طاقت نه لری \| پکار دی چې هغوئ ځان پاکدامن ساتی \| تردې چې الله ﷻ |
| مِن فَضْلِهِۦ ۗ |
| دفضل خپل نه \| |
| ئې په خپل فضل سره غنيان کړی \| |

(1) أحكام القرآن للجصاص تفسير سورة النور باب ما يجب من غض البصر عن المحرمات[ج:۸ ص: ۱۶۵ تا ۱۶۷]

## آسان ترجمه قرآن

او په تاسو کښې چه د کومو (سړو یا ښځو) دې وخت کښې نکاح نه وی شوې د هغوی هم نکاح اوکړئ، او ستاسو په غلامانو او وینځو کښې چه کوم د نکاح قابل وی، د هغوی هم. که هغوی غریبانان وی نو الله پاک به هغوی په خپل فضل باندې مالداره کړی . او الله پاک ډیر وسعت والا دې، په هر څه باندې پوهیږی او کومو خلقو ته چه د نکاح موقعې حاصلې نه وی، هغوی دې ځان پاک ساتی، تر دې چه الله پاک هغوی په خپل فضل سره مالدار کړی،

## خلاصه تفسیر

﴿وَأَنكِحُوا الْأَيَامَىٰ مِنكُمْ﴾ [په ازادو کښې [ چه کوم بې نکاح وی] خواه سړی وی او که ښځې او بې نکاح والې هم عام دې خواه تراوسه پورې ئې نکاح دسره نه وی شوې او یاشوې وی خو ښځه ئې مړه وی یاد طلاق په وجه بې نکاح شوې وی تاسو دهغوی نکاح کوئ او] دغه شان ﴿وَالصَّالِحِينَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَائِكُمْ﴾ [ ستاسوپه غلامانو او وینځوکښې چه کوم ددې ] نکاح [ لائق وی] یعنی دنکاح حقونه ادا کولې شی [ دهغوی هم ] نکاح کوئ محض په خپل مصلحت سره دهغوی دنکاح دخواهش مصلحت مه فوت کوئ او د ازادو دنکاح دپیغام ورکوونکو په فقیرئ او غریبئ باند نظر مه کوئ چه په دې وجه ورته انکار وکړئ هرکله چه په دوی کښې دکسب کولو دمعاش صلاحیت موجود وی ځکه چه ﴿إِن يَكُونُوا فُقَرَاءَ﴾ [ که دغه خلق مفلسان وی ﴿يُغْنِهِمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ﴾ نو الله تعالی به] که وغواړی [ هغوی لره په خپل فضل سره غنیان کړی] لنډه داچه نه خودنه مالدارئ په وجه سره دنکاح نه انکار کوئ او مه دا خیال کوئ چه که اوشوه نو خرچ به زیات شی کوم چه په موجوده حالت کښې غنی اومالداره دې دې به هم په نکاح کولو غریب اومحتاج شی ځکه چه مدار درزق په اصل کښې دالله تعالی په رضا سره دې هغه څوك مالدار بغیردنکاح کولونه هم غریب او محتاج کولې شی او څوك غریب نکاح والا سره دنکاح نه هم دغریبئ او حاجتمندئ نه ویستلې شی ﴿وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ﴾ [اوالله تعالی فراخئ والادې ] چالره چه غواړی مالدار کوی ئې او دټولو په حال [ ښه پوهیدونکې دې] چالره چه غنی کول دحکمت اومصلحت تقاضاوی هغه لره غنی کوی اودچاچه په فقیر اومحتاج اوسیدو کښې مصلحت وی هغه لره فقیر ساتی [ او] که چاته دخپلې غریبئ اوفقیرئ په وجه دنکاح سامان حاصل نه وی نو ﴿وَلْيَسْتَعْفِفِ الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ نِكَاحًا﴾ [ داسې خلقو لره چه دنکاح طاقت ئې نه وی هغوی له پکاردی چه] خپل نفس لره [په قابو کښې ساتی ﴿حَتَّىٰ يُغْنِيَهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ﴾ تردې چه الله تعالی] که وغواړی نو [ ده لره به په خپل فضل سره غنی کړی] هغه وخت دنکاح وکړی

## معارف او مسائل

**د نکاح څینې حکمونه** : ړومبې بیان شوې دی چه په سورت نور کښې زیات هغه حکمونه دی چه پاک لمنئ او ځان ساتلو سره تړون لری او خنې د بیحیایو او ناکاره کارونو د لاړ بندولو په باره کښې دی په دې باره کښې د زنا او دې سره د تړون لرونکو څیزونو د سختو سزاګانو بیان راغلو بیا د اجازت غوښتو بیان راغلو بیا د زنانو د پردې بیان راغلو هر کله چه اسلامی شریعت یو درمیانه شریعت دې ځکه ئې احکام هم درمیانه ، د انسان فطری جذبو او خواهشاتو لحاظ لرونکی او د حد نه د تیریدو د بندیز په اصولو باندې بنا دی نوکله چه انسان په ناجائزه طریقه د

شهوت پوره کولو نه په سختئ سره ایسار کړې شو ځکه ضروري شو چه د دهٔ د فطری جذبو او خواهشونو په جوړ د دې څه جائز او صحیح طریقه ورته هم اوښودلې شي دې نه علاوه د انساني نسل د باقی لرلو د پاره عقلي او شرعي تقاضا هم دا ده چه د څه حدودو په دائره کښې پاتې کیدو سره د ښځې او سړی تر منځه د ګډون څه صورت تجویز کړې شي چنانچه د قرآن او سنت په اصطلاح کښې دې ته نکاح وئیلې شي په دې آیت کښې د اصیلو زنانو اختیار منو خلقو او د وینځو غلامانو مالکانو ته حکم ورکړې شویدې چه د دوی د نکاح کولو انتظام د کوی فرمائي.

﴿وَأَنكِحُوا الْأَيَامَىٰ مِنكُمْ﴾ الاية، ،ایامی ، د ،ایم، جمع ده چه معنی ئې بې نکاح نارینه او زنانه ده چې د سره ئې نکاح نهٔ وی شوې یا د خپلې جوړې د وفات او طلاق وغیره په وجه بې نکاح شوې وی - د دې آیت د خطاب کولو د طرزنه دا خبره په اتفاق د امامانو سره ثابتیږی چه په مسنون او غوره طریقه نکاح کول دا دی چه نارینه او زنانه دواړه دې دا کار د خپلو اختیارمنو په ذریعه سرته اورسوی ولې چه په دې کښې د دین دنیا ډیرې ښیګړې او فائدې دی خصوصا جنګئ چه هر کله د خپل نکاح انتظام پخپله ئیغ په نیغه اوکړی نو یو قسم بې حیایی هم ده او د بې حیایو او ناکاره کارونو د لارې پرانیستیدو خطره هم ده په دې وجه د حدیث په څنې روایتونو کښې زنانه د خپل نکاح انتظام پخپله دکولو نه منع کړې شوې هم ده[1] او دا حکم د امام اعظم رحمه الله او د څنې نورو امامانو په نزد دسنت او شریعت د یو خاص هدایت حیثیت لری مطلب دا چه څوک بالغه زنانه که پخپله ،خپل نکاح د اجازت د ولی [اختیارمن] نه بغیر خپل یو سیال نارینه سره اوکړی نو نکاح به ئې صحیح شي اګر چه د سنت خلاف کیدو په وجه به هغه موجب د ملامتیا وی کله چه هغې د څه مجبورئ نه نهٔ ، بلکه د آزاد طبیعتئ د وجې نه دغسې کړی وی -

د امام شافعی رحمه الله او څنې نورو امامانو رحمهم الله په نزد دغسې نکاح باطله ده د سره نهٔ دهٔ شوې تر څو چه د ولی [ اختیار من] په ذریعه نهٔ وی شوې دلته د اختلافی مسئلو مکمل تحقیق او د دواړو فقهاؤ رحمهم الله دلیلونه بیانیدل نشی کیدې خو دومره خبره ښکاره ده چه د دې آیت نه زیات نه زیات هم دا ثابتیدې شي چه په نکاح کښې اولیاء [اختیارمن] ذریعه جوړیدل پکار دی خو قرآن د دې نه خاموش دې چه د اختیار من نه بغیر شوې یا کړې نکاح او شوه او که نهٔ ؟ خصوصا کله چه په لفظ د ،ایامی کښې بالغان نارینه او زنانه دواړه داخل دی او د بالغو هلکانو نکاح د ولی [اختیارمن] په ذریعه چه اونشی هغه د ټولو په نزد صحیح کیږی هیڅ څوک هم ورته باطله نهٔ وائي . داشان ښکاره خبره داده چه د بالغې جینئ نیغ په نیغه کړې نکاح دې هم صحیح شي.

البته د دواړو [نارینو او زنانو] ملامته کول به ځکه کولې شي چه نیغ په نیغه نکاح ئې د سنت نه په خلاف طریقه کړې دې -

**نکاح کول واجب دی او که سنت او که مختلفو حالتونو کښې ئې حکم مختلف کیږی**:: په دې خبره باندې تقریبا ټول مجتهدین امامان متفق دی چه د نکاح نهٔ کولو په صورت کښې په خپل ځان باندې د چا غالب ګمان دا وی چه هغه به د شریعت پابند پاتې نشي او په ګناه کښې به راګیر شي .حالانکه د نکاح کولو وس هم لری چه وسیلې او ذریعې لری نو په داسې خلقو باندې نکاح کول فرض یا واجب دی په نکاح نهٔ کولوسره به ګنهګار پاتې کیږی .البته چه د نکاح کولو وس ئې نهٔ رسی ذریعې وسیلې ئې نهٔ لری مناسبه نتیجه بیانشی موندې یا د سمدستی مهر وغیره ترحده پورې

[1] ) جامع الترمذي ، ابواب النكاح باب ماجاء في لانكاح الا بولي [ج:١ ص:٢٠٨]

ضروري خرڅې نۀ لري نو په ورپسې آيت کښې د هغې حکم دا دې چه پکار دی چې د وسيلو راجمع کولو کوشش دې کوی ترڅو چه په دې باندې ئې وس نۀ وی بر شوې نو خپل ځان دې په قابو کښې لری او د صبر کولو کوشش دې کوی چنانچه رسول الله ﷺ د داسې کس په باره کښې فرمائيلې دی چه په مخه دې روژې نيسی(1) چه ورسره ئې دشهوت غلبه په آرام شی په مسند احمد کښې روايت دې چه حضرت عکاف رضي الله عنه نه رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه ښځه دې شته؟ هغوی رضي الله عنه عرض اوکړو چه نشته - بيائې ترې تپوس اوکړو چه شرعی وينځه لرې؟ وې وئيل نۀ ،بيائې تپوس ترې اوکړو چه وس دې شته او که نۀ ؟ عرض ئې اوکړو چه وس مې شته يعنی د نکاح کولو ټول خرچونه کولې شم – بيا هغوی ﷺ اوفرمائيل چه ته خو د شيطان رور يې؛ اووې فرمائيل چه زمونږ سنت نکاح کول دی په تاسو کښې زيات ناکاره بنده بې نکاح بنده دې او په تاسو کښې د ټولو نه زيات رذيل مړې هغه دې چه بې نکاح مړشی [مظهری](2) – دا روايت هم جمهورو فقهاؤ رحمهم الله هلته چسپان کړی چه د نکاح نۀ کولو په صورت کښې ترې د ګناه کيدو غالبه خطره وی . د حضرت عکاف رضي الله عنه حال به رسول الله ته معلوم وو چه هغه صبر نشی کولې .دغه شان په مسند احمد کښې د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د نکاح کولو حکم اوفرمائيلو او ،تبتل ،[نکاح نۀ کولو] نه ئې په سختئ سره منع فرمائيلې ده [مظهری ](3) دغه شان د حديث نور روايتونه هم شته . دا ټول روايتونه د هغې صورتونو په باره کښې دی چه د نکاح نۀ کولو په صورت کښې د بې قابو کيدو او په ګناه کښې د اخته کيدو غالبه خطره وی – دغه شان په دې باندې هم د ټولو فقهاؤ رحمهم الله تقريبا اتفاق دې چه څوک د خپل غالب ګمان له مخې دا ګڼړی چه په نکاح کولو سره به هغه په ګناه کښې اخته شی مثلا د خپلې ښځې د ښځولۍ حقونه نۀ شی ادا کولې او په ښځه باندې په ظلم کولو کښې به اخته شی يا د ګناه څه بل صورت ترې صادر يږی نو په داسې يقينی صورتونو کښې سړی لره نکاح کول حرام يا مکروه دی – د داسې بنده په باره کښې فقهاؤ رحمهم الله اختلاف کړې دې چه د نکاح کولو او نۀ کولو په [دواړو]صورتونو کښې ترې د ګناه کيدو څه يقينی او غالبه خطره نۀ وی چه دۀ د پاره نکاح کول زيات غوره دی يا د نکاح نۀ کول او په نفلی عبادت کښې مشغوليدل ور دپاره غوره دی ؟ د امام ابی حنيفه رحمه الله په نزد په نفلی عبادت کښې د مشغوليدو نه ور دپاره زيات غوره نکاح کول دی او دامام شافعی رحمه الله په نزد په عبادت کښې مشغول پاتې کيدل ور د پاره زيات غوره دی .(4) د دې اختلاف اصلی وجه دا ده چه نکاح کول خو پخپله د خوراک ،څکاک او اوده کيدو وغيره پشان يو مباح کار دې دې کښې د عبادت اړخ بالواسطه داسې پيداکيږی چه د دې په ذريعه خپل ځان د ګناه نه ساتل غواړی ، دا غواړی چه نيک اولاد م پيداشی . دا شان په ښه نيت دا عبادت جوړيږی او په عبادت کښې مشغوليدل پخپله [ نيغ په نيغه] عبادت دی په دې وجه امام شافعی رحمه الله په عبادت کښې مشغوليدل دنکاح کولونه زيات غوره بولی او د امام اعظم رحمه الله په نزد په نکاح کښې د عبادت اړخ په نسبت د نورو مباحو کارونو نه غالب دې چنانچه په صحيح احاديثو کښې دې ته رسول الله ﷺ خپل او دنورو رسولانو سنت فرمائيلې دی .او ګڼړ تاکيدونه ئې د دې

1) تفصيل دپاره اوګورئ:- جامع الترمذي ، ابواب النكاح [ج:١ ص:٢٠٦]
2) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٥٠٧ ، ٥٠٨]و مسند احمد رقم الحديث:[٢٢٠٦٦]
3) تفسير المظهري[ج:٦ص:٥٠٩] و مسند احمد رقم الحديث:[١٢٩٤٨]و مسند انس بن مالك رضي الله عنه.
4) نو تفصيل دپاره اوګورئ:- الشامية كتاب النكاح ، بدائع الصنائع كتاب النكاح.

کړې دي د حدیث د روایتونو د دغې مجموعې نه دومره خو ښه په ډاګه ثابتیږي چه نکاح د عامو مباحو په شان مباح نهٔ دې بلکه د پیغمبرانو ﷺ یو سنت عمل دې چه په حدیث کښې ئې تاکیدونه هم راغلي دي صرف د نیت په وجه دې ته د عبادت شان نهٔ ورکړې کیږي بلکه د دې د عبادت شان په دې وجه هم دې چه دا د پیغمبرانو ﷺ یو سنت هم دی دلته دا سوال راپورته کیږي چه هر کله خوراک څکاک او اودهٔ کیدل هم انبیاؤ او پیغمبرانو ﷺ کړې دي نو دې ته هم سنت د پیغمبرانو ﷺ وئیل پکاردي جواب ئې دا دې چه واقعي پیغمبرانو ﷺ هم خوراک څکاک وغیره کول خو بیاهم په هیڅ یو حدیث کښې دې ته د انبیاؤ ﷺ سنت نهٔ دی وئیلي شوې اګر چه د انسانانو د یو عمل په حیثیت پیغمبرانو ﷺ هم دا کار کړې دې په خلاف د نکاح نه چه دې ته رسول الله ﷺ خپل او د رسولانو ﷺ سنت فرمائیلي دي په تفسیر مظهري کښې یو منځومیانه خبره په دې موقعه باندې داسې کړې شوې ده چه میانه حال بنده د پاره په هغه وخت کښې نکاح کول غوره دي چه هغه دا محسوسوي چه په نکاح کولو سره به هم را دپاره دنکاح او دبال بچ ذمه دارئ د الله تعالی په ډیر ډیر ذکر کولو او الله تعالی ته په ماتې کولو کښې خنډ نهٔ جوړیږي چنانچه دا د پیغمبرانو ﷺ او د امت د صالحانو عام حال وو که یو بنده دا ګڼړي چه په نکاح کولو سره به د نکاح او د بال بچ ذمه داریانې به م په دیني ترقئ او ډیر ډیر ذکر کولو وغیره عبادت کښې خنډ جوړ شي نو په منځو میانه حال کښې ور دپاره خلوت اختیارول او نکاح پریښول زیات غوره دي د قرآن کریم ګڼړ آیتونه د دې په تطبیق ورکولو باندې ګواه دي چه د هغې څخه یو دا دي:-

(۱) ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تُلۡهِكُمۡ اَمۡوَالُكُمۡ وَلَاۤ اَوۡلَادُكُمۡ عَنۡ ذِكۡرِ اللّٰهِ﴾[يعني مالونه او اولاد ستاسو دې تاسو ته د الله تعالی په یاد او ذکر کولو کښې خنډ جوړ نشي ](۲) [والله سبحانه وتعالی اعلم] -

﴿وَالصّٰلِحِيۡنَ مِنۡ عِبَادِكُمۡ وَاِمَآٮِٕكُمۡ﴾[یعني د خپلو نیکانو غلامانو او وینځو د نکاح کولو انتظام کوئ] دا خطاب د دوئ مالکانو او نیکانو ته دې دلته د ،صلحین، لفظ په خپله لغوي معنی راغلې دې یعني په دوئ کښې چه څوک د نکاح کولو جوګه وي او د دې وس هم لرلې شي نو د هغوئ د انتظام کولو حکم ئې مالکانو ته ورکړې شوې دې مراد دا دې چه د خپلې ښځې د ښځولئ حقونه ادا کولې شي د خپلې ښځې خرچ او اخراجات پوره کولې شي او نغد مهر هم ادا کولې شي که د ،صلحین، مشهوره معنی نیکان خلق واخستې شي نو د دې خالص لفظ راوړلو اصلي مقصد دا دې چه حرامو نه پرې ځان اوساتلې شي کوم چه هم په ،صلحین، کښې کیدې شي په هر حال په خپلو غلامانو او وینځو کښې چه څوک د نکاح کولو جوګه وي نو د هغوي مالکانو ته دا حکم ورکړې شویدې دې نه مراد دادې چه که دوئ د نکاح کولو ضرورت ښکاره کړي او د نکاح کولو خواهش اوکړي نو د ځنې فقهاؤ ﷬ په نزد ئې په مالکانو باندې د دوئ نکاح کول واجبیږي او د جمهورو فقهاؤ ﷬ په نزد په دوئ لازم دي چه د دوئ په نکاح کښې څه خنډ نهٔ راولي بلکه اجازت دې ورکړي ولې چه د مملوک غلامانو او وینځو نکاح بغیر د مالکانو د اجازت نه نشي کیدې نو داحکم به هم داسې وي لکه چې د قرآن کریم په دې آیت مبارک کښې چې ،(۳)

---

(۱) ترجمه:- اې ایمان والو! تاسو دې ستاسو اولاد او ستاسو مال دالله تعالی د یاد نه غافله نه کړي.

(۲) تفسیر المظهري تحت هذه الآیة [ج:۶ص:۵۰۶ ، ۵۰۷]

(۳) ترجمه:- نو ته دوئ ددې امر نه مه منع کوه چې دوئ خپلو خاوندانو سره نکاح ا وکړي.

﴿فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اَنْ يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ﴾ يعنى د زنانو وليانو [اختيارمنو] د پاره ضروري دى چه د دوئ د اختيار لاندې زنانه دې د نكاح نه نه منع كوى ] يو شان شو او رسول الله ﷺ هم فرمائيلى دى چه څوک داسې کس درته د لور ،خور ،په نكاح سره د غوښتو پيغام دركړي چه اخلاق ئې ستاسو خوښ وى نو ضرور ئې قبول كړئ كه داسې مو اونۀ كړل نو په زمكه كښې به فتنه او په لويه پيمانه فساد پيداشي [ترمذی] [1] خلاصه دا شوه چه د وينځو غلامانو مالكان دې دوئ ته د نكاح په اجازت وركولو كښې كوتاهى نۀ كوى خو د مالكانو په ذمه د دوئ نكاح واجب كيدل ضرورى نۀ دى – [والله اعلم]

﴿اِنْ يَّكُوْنُوْا فُقَرَآءَ يُغْنِهِمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ﴾ په دې كښې هغه نيستمنو غريبانانو مسلمانانو ته زيرې وركړې شويدې كوم چه د خپل دين د حفاظت په خاطر نكاح كول غواړي او مالى وسيلې نۀ لرى فرمائې چه كه دوئ د خپل دين د حفاظت او د رسول الله ﷺ په سنتو باندې عمل كولو په نيک نيت سره نكاح كوى نو الله تعالى به ئې په مال هم شتمن كړى او په دې كښې هغه خلقو ته هم هدايت دې چه داسې غريبانان خلق ورته د لور ،خور غوښتو د پاره پيغام وركوى نو هغوى دې صرف د دوئ د غريبۍ په وجه د رشتې وركولو نه انكار نۀ كوى مال تلونكې راتلونكې څيز دې اصل څيز نيک عملى ده هر كله چه دا په دوئ كښې شته نو د نكاح كولو نه ئې انكار مۀ كوئ حضرت ابن عباس رضی الله عنه او فرمائيل چه په دې آيت كښې الله تعالى ټولو مسلمانانو ته د نكاح كولو شوق وركړې دې چه آزاد او غلامان ټول پكښې داخل دى په نكاح كولو سره ئې د دوئ د غنى كولو وعده فرمائيلې ده [ابن كثير] [2]

او ابن ابى حاتم رحمه الله د حضرت صديق اكبر رضی الله عنه نه نقل كړى دى چه هغوئ مسلمانانو ته په خطاب كولو سره اوفرمائيل چه تاسو په نكاح كولو كښې د الله تعالى په حكم باندې عمل اوكړئ نو ستاسو د غنى كولو د هغه كړې وعدې به پوره كړى بيائې دا آيت اولوستو ، ﴿اِنْ يَّكُوْنُوْا فُقَرَآءَ يُغْنِهِمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ﴾ [3] او حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه اوفرمائيل چه كه تاسو غنى كيدل غواړئ نو نكاح اوكړئ ولې چه الله تعالى وعده فرمائيلې ده ، ﴿اِنْ يَّكُوْنُوْا فُقَرَآءَ [الاية]﴾ ، [ابن جرير رحمه الله روايت اوكړو او بغوى رحمه الله د حضرت عمر رضی الله عنه نه هم دغسې روايت كړيدې [ابن كثير] [4]

**خبرداري:** په تفسير مظهرى كښې راغلې دى چه ياد لرئ چه نكاح كوونكو سره د هغوى دغنى كولو او د مال وركولو وعده الله تعالى په داسې حال كښې كړې ده چه د دوئ نيت د خپلې پاكئ حفاظت او په سنت باندې د عمل كولو وى او بيا ئې په الله تعالى باندې توكل او تكيه وى د دې دليل د وريسې آيت دا الفاظ دى ﴿وَلْيَسْتَعْفِفِ الَّذِيْنَ لَا يَجِدُوْنَ نِكَاحًا حَتّٰى يُغْنِيَهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ﴾ [5] [ يعنى څوک چه د مال او سامان له مخې د نكاح كولو طاقت نۀ لرى او په نكاح كولو كښې ئې دا ويره وى چه د ښځې د حقونو نۀ ادا كولو له كبله به ګنهګار شى هغوئ له پكار دى چه په پاكيزګئ كښې او صبر سره د دې انتظار كوى چه الله تعالى ئې په خپل فضل سره غنى كړى او د دې صبر د

---

[1] ) جامع الترمذي ، ابواب النكاح باب ماجاء إذا جاء كم من ترضون دينه فزوجوه [ج:١ ص:٢٠٧]
[2] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٥١]
[3] ) تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث :[١٥٢٧٧]
[4] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٥١] و تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج: ١٩ص:١٦٦]
[5] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٥١١]

پاره جدیث شریف یو تـد بیر دا هم ښودلې دې چه ډیرې ډیرې روژې نیـول دې شروع کړی په دغسې کولو سره به ورته الله تعالی په خپل فضل مالی وسیلې ورکړی چه دهغې په وجه به ئ دنکاح کولو وس اوشی -

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | يَبْتَغُوْنَ | الْكِتٰبَ | مِمَّا |

| او هغه [مریان] | چې طلب کوی هغوئ | دمکاتب والی | دهغه وینځو مریونه |

| اوکوم غلامان چې تاسوسره مکاتبت[د آزادئ معاهده کول] |

| مَلَكَتْ | اَيْمَانُكُمْ | فَكَاتِبُوْهُمْ | اِنْ عَلِمْتُمْ |
|---|---|---|---|

| چې مالکان وی دهغوئ | ښی لاسونه ستاسو | نومکاتبان کړی هغوئ | که معلوم وی تاسو ته |

| غواړی اکه چرې تاسوته په هغوئ کښې نیکی او صلاحیت معلوم وی| نو هغوئ سره مکاتبت |

| فِيْهِمْ | خَيْرًا | وَّاٰتُوْهُمْ | مِّنْ مَّالِ اللّٰهِ | الَّذِيْٓ | اٰتٰىكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|

| په هغوئ کښې | څه خیر | او ورکړئ هغوئ ته | دمال دالله نه | هغه مال | چې الله درکړې دې تاسو ته |

| اوکړئی | اوکوم مال چې تاسوته الله ﷻ درکړې دې هغې نه دوئ ته هم لږ ورکړئی |

| وَلَا تُكْرِهُوْا | فَتَيٰتِكُمْ | عَلَى الْبِغَآءِ | اِنْ اَرَدْنَ | تَحَصُّنًا |
|---|---|---|---|---|

| اومۀ مجبوروئ | وینځې خپلې | په زنا باندې | که غواړی هغوئ | پاك ساتنه دځان خپل |

| اوخپلې وینځې ددنیا دژوند دفائدې حاصلولو دپاره په زناکارئی مه مجبوره کوئ |

| لِّتَبْتَغُوْا | عَرَضَ | الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَمَنْ يُّكْرِهْهُّنَّ |
|---|---|---|---|

| دپاره ددې چې طلب کوئ تاسو | مال [فائده] | دژوند ددنیا | او هغه څوك چې مجبوره کوئ هغوئ |

| کله چې هغوئ پاکدامنې اوسیدل غواړی | اوڅوک چې هغوئ په زناکولو مجبوره کړی |

| فَاِنَّ اللّٰهَ | مِنْ بَعْدِ اِكْرَاهِهِنَّ | غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۳۳﴾ |
|---|---|---|

| نو بیشکه چې الله | روستو دمجبورتیا دهغوئ نه | ښښونکې مهربانه دې |

| نو الله ﷻ دهغوئ دمجبورتیا نه پس ښښونکې او مهربان دې |

## آسان ترجمه قرآن

او ستاسو په غلامانو وینځو کښې چه څوک د مکاتبت لوظ کول غواړی، که په هغوی کښې نیکی وینئ نو هغوی سره د مکاتبت لوظ اوکړئ او (اې مسلمانانو!) الله پاک چه تاسو ته کوم مال درکړې دې، په هغې کښې داسې غلامانو او وینځو ته هم ورکوئ. او خپلې وینځې د دنیا د فائدو دپاره په زنا باندې مه مجبوره کوئ چه هغوی پاکدامنی غواړی او څوک چه هغه مجبوره کړی نو د هغوی د مجبوره کیدلو نه پس الله پاک (هغه وینځو لره) بخښونکې مهربانه دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَالَّذِیْنَ یَبْتَغُوْنَ الْکِتٰبَ مِمَّا مَلَکَتْ اَیْمَانُکُمْ﴾ [ اوستاسو په مملوکانو کښې] چه غلامان یاوینځې وی [کوم چه مکاتب کیدل غواړی نو] غوره ده چه ﴿فَکَاتِبُوْهُمْ اِنْ عَلِمْتُمْ فِیْهِمْ خَیْرًا﴾ [ دوی لره مکاتب کړئ که په دوی کښې] نښې د [غوره والی بیامومئ ﴿وَاٰتُوْهُمْ مِّنْ مَّالِ اللّٰهِ﴾ او دالله تعالی] د درکړی [دهغې مال نه دوی له هم ورکړئ] ﴿الَّذِیْۤ اٰتٰىکُمْ﴾ کوم چه الله تعالی تاسوله درکړې دې] چه ژر ازادی حاصله کړی ﴿وَلَا تُکْرِهُوْا فَتَیٰتِکُمْ عَلَی الْبِغَآءِ﴾ [ اوخپلو] مملوکه [وینځولره په زنا کولو مه مجبوره کوئ ] خاص کړ ﴿اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا﴾ [ هرکله چه هغوی پاکدامنې وسیدل غواړی ] اوستاسو دا ذلیل حرکت ﴿لِّتَبْتَغُوْا عَرَضَ الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا﴾ [محض ددې دپاره چه ددنیاد ژوند څه فائده] یعنی مال [ تاسوته حاصل شي ﴿وَمَنْ یُّکْرِهْهُّنَّ﴾ اوکوم سړې چه دوی لره مجبورې کړی ] او دوی ځان ساتل غواړی ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ مِنْۢ بَعْدِ اِکْرَاهِهِنَّ﴾ [ نو الله تعالی ددوی دمجبوره کیدو نه پس] ددوی دپاره ﴿غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ﴾ [ بخښنې والا مهروبان دې ]

## معارف او مسائل

په تیر شوی آیت کښې دا بیان وو چه که مملوکو وینځو او غلامانو ته د نکاح ضرورت وی نو مالکانو ته ئې هدایت ورکړې شوې وو چه د نکاح اجازت ورکول پکار دی د خپلې ښیګړې د پاره د هغوئ طبیعت غو ښتې مۀ زنړه وئ دا د دوئ د پاره زیات غوره دی د دې هدایت خلاصه دا ده چه خپلو مملوکو غلامانو او وینځو سره دې په ښه شان ژوند تیرولې شی او هغوئ ته دې زیان نۀ ورکوی په دغسې مناسبت سره د هغوی مالکانو ته دا هدایت ورکړې شوې دې چه که دوئ خپل مملوک غلامان او وینځې مکاتب کول غواړی نو د هغوئ د خواهش پوره کول هم مالکانو د پاره ئې زیات غوره مستحب او د ثواب باعث دی چنانچه صاحب د هدائې او عام فقهاؤ ﷭ دا حکم استحبابی بللې دې[1] چه مکاتب کول ئې واجب نۀ بلکه مستحب دی د مکاتب کولو صورت دا دی چه د مملوک مطالبه دا وی چه هغه دې د یو ټاکلی مال په بدل کښې آزاد کړې شی یا مالک ورته او وائی چه څه ټاکلې مال راکړه او آزاد شه په دې صورت کښې مملوک د خپلې خوارئ مزدورئ مال خپل مالک ته چه ورپوره کړی نو آزاد به شی خو شرط دا دې چه ایجاب او قبول د دواړو اړخو نه وی کله چه دغسې اوشی نو هغه د شریعت له مخې لازم شی مالک ئې د دې د ورانولو او واپس کولو هیڅ اختیار نۀ لری کله هم چه مملوک هغه ټاکلې مال ورکول ورته پوره کړی نو پخپله به آزاد شی - دغه ټاکلی مال ته د کتابت بدل وئیلې شی شریعت د دې هیڅ حد نۀ دې ټاکلې او نۀ د دغې مملوک په قیمت څه اړه لری بلکه د دواړو اړخو تر منځه چه په څه باندې خبره غوڅه شوه یعنی فیصله اوشوه هغه به د کتابت بدل وی اسلامی شریعت چه د غلام یا وینځې د مکاتب کولو هدایت ورکړې دې او دې ته ئې مستحب او زیات غوره وئیلی دی د هغې نه معلومیږی چه شریعت غواړی چه شرعی وینځې ،غلامان دې په کنړ شمیر کښې آزاد شی چنانچه په تولو کفارو کښې د وینځو غلامانو د آزادولو حکم ورکړې شوې دې داسې هم دغلا مانو . وینځو د آزادولو ډیر ثواب په اسلامی شریعت کښې ښودلې شوې دې او د مکاتب کولو صورت هم د دې یوه لاره ده څکه د دې شوق ورکړې شو البته دې سره یو شرط ، ﴿اِنْ عَلِمْتُمْ فِیْهِمْ

[1] ) بدائع الصنائع کتاب المکاتب، بیان جواز المکاتبة [ج:۹ ص:۱۱۱] والهدایة کتاب المکاتب

خَيْرًا﴾ او لګولې شو. مطلب ئې دا دې چه کله تاسو په دوئ [وينځو غلامانو ] کښې د غوره والي څه نښې نښانې بيامو مئ په دې بنا حضرت عبدالله بن عمر او اکثرو امامانو حضراتو د دې غوره والي مطلب په ښه شان کار روزګار کول بيان کړې دی يعنی که دوئ د ګټې وټې کولو او د مکاتب کيدو د بدل پوره کولو وس لري نو هله نې مکاتب کوئ ورنه د غلام و غيره خواری به هم عبث شي او د مالک نقصان به هم اوشي او صاحب د هدائې د دې مطلب دا بيان کړې دې چه د دوئ په مکاتب کولو کښې د دې خيال هم ساتئ چه په آزاديدو کښې خو به ئې مسلمانانو ته د نقصان رسولو څه خطره نۀ وي مثلاً که کافر وي نو د خپلو کافرانو خلقو به امداد نۀ کوی(١) او صحيح خبره دا ده چه د لفظ د ،خير، نه دلته مطلب دا دې چه غلام د کار کسب کولو جوګه وي او د دۀ په آزاديدو ترې مسلمانانو ته څه خطره هم نۀ وي [مظهری](٢)

﴿وَآتُوهُمْ مِّن مَّالِ اللَّهِ الَّذِي آتَاكُمْ﴾ [ دوئ ته د هغې مال څنې ور بخښئ چه الله تعالى تاسو ته دربښلې دې ] دا خطاب مسلمانانو ته عموما او غلامانو وغيره مالکانو ته خصوصا داسې کړې شوې دې چه د خپلو خانونو په آزادولو کښې وينځو غلامانو سره مالی امداد کوئ. زکوة هم ورکولې شئ او نور هر قسم خير خيرات هم ورکولې شئ. او داسې هم چه مالکان ورسره په ټاکلی مال کښې څه کمې اوکړې چنانچه صحابه کرامو عموما هم دغسې کړيدی چه مالکانو به په بدل د کتابت کښې خپلو وينځو غلامانو سره داسې مدد کولو چه په هغوی باندې د مقرر کړی مال دريمه څلورمه برخه به ئې مثلاً ورته پريښوله څومره به ئې چه توفيق کيدې شو[مظهری](٣)

**د معاشياتو دفن يوه اهمه مسئله او د هغې په باره کښې قرآنی فيصله**: نن صبا په دنيا کښې د مادہ پرستئ دور دوره ده ټولې دنيا آخرت هير کړې دې صرف د فانی دنيا د روز ګار په جال کښې انښتې ده د دوئ ټول عقل فکرصرف دفانی دنيا زيست روزګار کښې لګولې شی ټول زور ئې هم په دې راوړې دې چه بحث او تحقيق يواځې هم د دې دنيا په زيست روز ګار کښې کوی د دې يوه معمولی مسئله ئې يو مستقل فن ګرځولې دې په فنونو کښې د ټولونه لوئ فن د معاشياتو دې - په دې باره کښې نن صبا د دنيا دعقلمنو دوه نظريئ زياتې مشهورې دی چه خپل منځ کښې ئې هيڅ سمون نشی راتلې او دواړه ډلې په هر قسم جنګ جګړو کښې سره بوښتې دی چه په دې وجه د ټولې دنيا خلق د امن او اطمينان نه بې نصيبه شوې دی – په دغه دوؤ نظامونو کښې يو دپنګه ورئ نظام دې چه په ،کيپيټل ازم، باندې مشهور دې بل د اشتراکيت نظام دې چه ورته ، کميونزم، يا ،سوشلزم ،وئيلې شي -

دا خو ښکاره او د ليدلو کتلو څيز دې چه د دواړو نظامونو خلق ترې انکار نشی کولې هغه دا چه انسان په خپل محنت او مشقت سره چه څه ګټې يا پيدا کوی ئې د هغې ټولو اصل بنياد د پيداوار قدرتی وسيلې .زمکه اوبه او په کانونو وغيره کښې پيدا کيدونکی قدرتی څيزونه دی انسان د خپل غور فکر محنت او مشقت په ذريعه د پيداوار په دغې وسيلو کښې د رايوځائ کولو پيوند کولو او سمون ورکولو په ذريعه د خپلو ضرورتونو لکونه څيزونه پيداکوی او جوړدی د عقل تقاضا خو دا وه چه دې دواړو نظامونو اول دې ته کتلې وې چه دغه قدرتی وسيلې خو

---

(١) الهداية كتاب المكاتب

(٢) تفسير المظهري[ج:٦ص:٥١٦]

(٣) تفسير المظهري[ج:٦ص:٥١٧ ، ٥١٨]

پخپله نه دی پیدا شوي د دي څوک پیدا کونکي شته دي او دا هم ښکاره خبره ده چه د دي پیدکونکي هم د دي اصل مالک دي مونږه په دغې وسیلو باندي قبضې کولو. دهغې مالک جوړیدو یا استعمالولو کښې آزاد نه یو بلکه اصل مالک او خالق چه کوم هدایتونه ورکړي دی هم د هغې تابع چلیدل زمونږ فرض دی مګر ماده پرستي لیونتوب دا ټول د اصل خالق او مالک د تصور کولونه بې پرواه کړل .د هغوی په نزد اوس صرف دا بحث کول دی چه د پیداوار په وسیلو قبضې کولو سره چه څوک د ژوند ضرورتونه پیدا کوی هغه به د دغې ټولو څیزونو پخپله یو آزاد مالک او اختیار من وی یا دا ټول څیزونه عام وقف شوی او د ټولو انسانانو ترمنځه شریک دی هر څوک دا حق لري چه دې نه فائده حاصله کړې شی – اوله نظریه د سرمایه دارئی د نظام ده چه یو انسان ته د دغې څیزونو د آزاد مالک کیدو حق ورکوی چه څنګه او غواړی نو هغسې ئې حاصلولې شی چرته ئې چه غواړی لګوی او استعمالوی به ئې دې به هیڅ خند راپورته کول نشی زغملې دا نظریه د پخوانې زمانې د مشرکانو او کافرانو وه چاچه په حضرت شعیب علیه السلام باندې دا اعتراض کړې وو چه دا مالونه زمونږه دی په دې باندې د پابندئ لګولو ستاسو هیڅ حق نشته . چه په فلانې کار کښې ئې لګول جائز او په فلانې کار کښې ئې لګول ګنی حرام دی لکه قرآن فرمائی ،[1] ﴿أَوْ أَنْ نَفْعَلَ فِي أَمْوَالِنَا مَا نَشَاءُ﴾، او بله نظریه د اشتراکیت ده چه هیڅ څوک د څه څیز مالک جوړولونه نه پریږدی بلکه ټول څیزونه د ټولو انسانانو تر منځه شریک بولی چه هرڅوک تري خان خان له فائده پورته کولې شی چنانچه د اشتراکیت د نظریې اصلی بنیاد هم دا دې خو هر کله چه اشتراکیانو اوکتل چه دا صرف یو تصور دې او عمل پرې کول ناممکن دی هیڅ یو نظام پرې نشی چلیدې څکه ئې په خنې څیزونو باندې د انسان ملکیت [مالک کیدل ] اومنل – قرآن کریم دا دواړه بیکاره نظریې رد کړې او دا اصول ئې جوړ کړل چه د دنیا د هریو څیز اصل مالک الله تعالی دې چه خالق او پیداکونکې هم دې .بیا هغهٔ په خپل فضل و کرم سره د خپل یو خاص قانون له مخې څوک انسان د دې مالک جوړ کړې دې چه هیڅ څوک پکښې د دخل ورکولو حق نه لری که دغه مالک تصرف کوونکې انسان اجازت ورنکړی نو د بل چا دخل ورکول به پکښې حرام وی خو دغه کس به داسې آزاد مالک هم نه وی چه خالص پخپله خوښه به ئې ګټی او په خپله خوښه به ئې لګوی بلکه په دواړو اړخونو باندې د یو عادلانه او حکیمانه قانون قطعن لګولې شوې دې چه د ګټلو فلانئ طریقه حلاله او بله حرامه ده .داشان د لګولو هم دوه طریقې [حلال او حرام ] ئې مقرر کړیدی بیا په دغه څیز الله تعالی د خنې نورو خلقو حقونه هم مقرر کړې دې چه ادا کول ئې د هغوئ ذمه داری ده -

دا آیت اګر چه د یو مضمون دپاره راغلې دې خو د دې په ضمن کښې د دې مهمې معاشی مسئلې څو اصول هم راغلې دی د آیت په الفاظو باندې نظر واچوئ فرمائی ، ﴿وَآتُوهُمْ مِنْ مَالِ اللَّهِ الَّذِي آتَاكُمْ﴾ [یعنی دغې حاجتمنو ته ورکوئ د الله تعالی د هغې مال خنې چه تاسو ته ئې درکړې دې ] د دې نه درې خبرې ثابتې شوې اوله دا چه د هر څیز اصلی مالک الله تعالی دې دویمه دا چه هم هغه په خپل فضل سره د دې د څه برخې تاسو مالکان جوړ کړی یئ دریمه دا چه د کومو څیزونو ئې تاسو مالکان جوړ کړی یئ نو په هغې باندې الله تعالی څه پابندیانې هم لګولې دی څه څیزونو کښې لګول ئې منع کړیدی . څه څیزونو کښې ئې لګول لازم او واجب ګرخولی دی او څه

[1] ) ترجمه:- یا دا خبره پریږدئ چې مونږ په خپل مال کښې څه خرج کول غواړو نو هغه به خرج کوو.

ځیزونو کښې ئې لګول مستحب او زیات غوره ګرځولی دی . [والله اعلم] -
په دې آیت کښې دویم حکم د جاهلیت د یو رسم د بیخ ویستو او د زنا او د بیحیایو لارې بندولو په غرض دا ورکړې شوې دې چه ، ﴿وَلَا تُكْرِهُوا فَتَيٰتِكُمْ عَلَى الْبِغَآءِ﴾ [یعنی خپلې وینځې په دې غرض په زنا باندې مهٔ مجبوره کوئ چه هغوئ د خپلې زنا کارئ ګټه تاسو له درکوی] د جاهلیت ډیرو خلقو به خپلې وینځې هم دې غرض د پاره استعمالولې .کله چه اسلام په زنا باندې سختې سزا ګانې جارې کړې . آزاد او غلامان خلق ټول د دې پابند اوګرځولې شو ځکه د جاهلیت د دې رسم ورانولو د پاره خاص احکام ورکول ضروری شو ﴿إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا﴾ [ یعنی کله چه دغه وینځې د زنا نه د بچ کیدو او پاک لمنې اراده لری نو په زنا باندې د دوئ مجبوره کول ډیره د بې حیایئ او بې عزتئ خبره ده] دا الفاظ اګرچه د یو شرط شکل ورکوی خو په اجماع د امت سره په حقیقت کښې دې نه شرط مراد نهٔ دې چه ګنې هغه وینځې دې په زنا مجبوره کول روا وی کومې چه پخپله زنا کول غواړی حالانکه په هیڅ صورت کښې زنا د پاره وینځې استعمالول د سره جائز نهٔ دی په اصل کښې دلته دا ښودل دی چه د جاهلیت په زمانه کښې پاک لمنې او حیاناکې وینځې عموما ډیرې کمې د نیشت برابر وې . د اسلامی احکامو په راتلو سره هغوئ توبه کړه بیا هم چه د دغې وینځو مالکانو هغوئ لره په زنا باندې مجبوره کول اوغوښتل نو دا حکمونه دغه وخت راغلل چه کله هغوئ د زنا نه ځان ساتل غواړی نو تاسو ئې په دې مهٔ مجبوره وئ .په دې سره د دوئ مالکانو ته زورنه ورکول رټنه او دکنه ئې کول او بدی ئې بیانول دی چه دا څومره د بې غیرتئ خبره ده چه وینځې خو دې ځان پاک ساتل غواړی او تاسو دې هغوئ په زنا کولو مجبوره کوئ ، ﴿فَإِنَّ اللَّهَ مِنْ بَعْدِ إِكْرَاهِهِنَّ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ د دې جملې حاصل دا دې چه وینځې په زنا باندې مجبورول حرام دی که چا داسې اوکړل او هغوئ [وینځې] د دغې کبله په زور زیاتئ کولو سره زنا کښې اخته شوې ، نو الله تعالی به د هغوئ ګناه معاف کړی چه ټوله ګناه به ئې په مجبورونکی مالک باندې وی . [ والله اعلم] [مظهری][1]

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ أَنْزَلْنَآ | | | | | |
| [ او نازل کړی دی مونږه | | | | | |
| [اومونږ ستا طرفته | | | | | |
| إِلَيْكُمْ | اٰيٰتٍ | مُّبَيِّنٰتٍ | وَّمَثَلًا | مِّنَ الَّذِيْنَ | خَلَوْا |
| تاسو ته | آیتونه | واضحه | او مثالونه | دهغې کسانو نه | چې تیر شوی دی |
| ښکاره حکمونه نازل کړی دی [اودهغه خلقو مثالونه [بیان کړی دی] چې ستاسو نه | | | | | |
| مِنْ قَبْلِكُمْ | وَمَوْعِظَةً | لِّلْمُتَّقِيْنَ | اَللّٰهُ | نُوْرُ السَّمٰوٰتِ | |
| مخکښې ستاسو نه | او نصیحت | دپاره دپرهیزګارانو | الله | نور دآسمانونو | |
| وړاندې تیر شوی دی [اود ویریدونکو دپاره دنصیحت [ذریعه] ده [الله ﷻ دآسمانونو | | | | | |

[1] ) تفسیر المظهري[ج:٦ص:٥١٩]

وَالْاَرْضِ ؕ مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ ؕ

او دزمکې دی | مثال | دنور دهغه | پشان دتاخ دی | چی په کښی | ډیوه وی

اود زمکې رنړا ده |ددهٔ د رنړا مثال داسې دی لکه چې یو تاخ وی| په هغې کښې یوه ډیوه وی

اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ ؕ اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ

دغه ډیوه | دشیشې په فانوس کښې وی | دغه فانوس | داسې وی لکه چې هغه | یو ستورې وی

اوهغه ډیوه په یوه شیشه کښې وی | [اوهغه] شیشه لکه یو خلنده ستورې وی

دُرِّيٌّ يُّوْقَدُ مِنْ شَجَرَةٍ مُّبٰرَكَةٍ زَيْتُوْنَةٍ

دملغلرې پشان ځلیدونکې | چی بلولې شی | دونې | برکتناکې | دزیتون نه |

دغه ډیوه دیوې فائده منډې برکتې ونې نه بلیږی | [یعنی] دزیتون نه چې نه

لَّا شَرْقِيَّةٍ وَّلَا غَرْبِيَّةٍ ۙ يَّكَادُ زَيْتُهَا يُضِيْٓءُ

چی نهٔ مشرق طرفته وی | او نهٔ مغرب طرفته وی | قریبه وی | چی تیل دهغې | رنړا اوکړی |

دنمر خاته طرف ته ولاړه وی| اونه دقبلې طرف ته.......... |د هغې تیل داسې ښکاری

وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ ؕ نُوْرٌ عَلٰى نُوْرٍ ؕ يَهْدِي اللّٰهُ

او اګر که | نهٔ وی رسیدلې هغې ته | وور | دغه شان نور وی | دپاسه دنور | لار ښائی الله

لکه چې په خپله بهٔ اوس بله شی |اګر که اور ورته نزدې هم نشی |هغه ټوله رنړا رنړا ده | الله ﷻ

لِنُوْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَيَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لِلنَّاسِ ؕ

طرف دنور خپل ته | هغه چاته | چی خوښه ئې شی | او بیانوی الله | مثالونه | دپاره دخلقو

چې د چا په حقله اوغواړی نو دخپل نور هدایت ورته اوکړی |او الله ﷻ خلقوته مثالونه بیانوی

وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۙ فِيْ بُيُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ

او الله | په هر څیز باندې| ښهٔ خبر دې | په هغه کورونو کښې وی | چی حکم کړې دې | الله

او الله ﷻ په هر څیز ښه پوهه دې |په داسې کورونو[یعنی جماتونو]کښې چې الله ﷻ دهغې باره کښې

اَنْ تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ ۙ يُسَبِّحُ لَهٗ

چی پورته دکړې شی | او یاد د کړې شی | په هغې کښې | نوم دهغه | تسبیح وائی | هغه لره |

حکم کړې دې |چې دهغې د ادب لحاظ دې ساتلې شی |او دهغه نوم دې په کښې اخستلې شی|په هغې

فِيْهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ۙ رِجَالٌ ۙ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ

په هغې کښې | صبا | او بیګاه | [داسې] سړی | چې نهٔ غافله کوی هغوئ لره | تجارت |

کښې سحر مانښام خلق د الله ﷻ پاکی بیانوی |داسې خلق چې نه يئ تجارت غافله کولې

وَّلَا بَيْعٌ　عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ　وَاِقَامِ الصَّلٰوةِ　وَاِيْتَآءِ الزَّكٰوةِ　يَخَافُوْنَ

اونهٔ خرڅول | دذكر دالله نه | او دقائمولو دمانځه نه | او دوركولو دزكات نه | هريږي هغوئ |

شي|اونه اخستل خرڅول د الله دذكر نه او نه مونځ قائمولونه او نه زكوة وركولونه |........هغوئ

يَوْمًا　تَتَقَلَّبُ　فِيْهِ　الْقُلُوْبُ　وَالْاَبْصَارُ

دهغه ورځې نه | چې اوړي راوړي به | په هغې كښې | زړونه | او سترګې

دهغه ورځې نه ويريږي |چې زړونه او سترګې به په كښې [په بل مخ] واوړي ..................

لِيَجْزِيَهُمُ　اللّٰهُ　اَحْسَنَ　مَا　عَمِلُوْا

دپاره ددې چې بدله وركړي هغوئ لره | الله | دنيكو كارونو | هغو | چې كړي وي هغوئ |

انجام بهٔ ئې داوي چې الله ﷻ به ورته دخپلو نيكو عملونو ډيره ښه بدله وركړي

وَيَزِيْدَهُمْ　مِّنْ فَضْلِهٖ　وَاللّٰهُ　يَرْزُقُ　مَنْ　يَّشَآءُ

او زيات وركړي هغوئ ته | دفضل خپل نه | او الله | رزق وركوي | هغه چاته | چې خوښه ئې شي

اودخپل فضل نه بهٔ زيات هم وركړي |او الله چې دچا په حق كښې اوغواړي انو بې حسابه

بِغَيْرِ حِسَابٍ　وَالَّذِيْنَ　كَفَرُوْٓا　اَعْمَالُهُمْ　كَسَرَابٍ

بې　حسابه | او هغه كسان | چې كفر ئې اوكړو | عملونه دهغوئ | پشان دسراب دي |

رزق وركوي |اوخوک چې كافران دي دهغوئ عملونه د سراب په شان دي

بِقِيْعَةٍ　يَّحْسَبُهُ　الظَّمْاٰنُ　مَآءً　حَتّٰٓى　اِذَا جَآءَهٗ

په بيابان كښې |چې ګمان كوي په هغې |تږي [سړې] | داوبو |ترهغې پورې|كله چې راغې هغه خائې ته

چې په يو هموار ميدان كښې پرې تږې داوبو ګمان كوي| خو هر كله چې ورته نزدې ورشي |نو

لَمْ يَجِدْهُ　شَيْئًا　وَّوَجَدَ اللّٰهَ　عِنْدَهٗ　فَوَفّٰىهُ

نوي نهٔ موندو هغه|هيڅ څيز | او وې موندو الله |په نز دخان خپل [هلته] |پس پوره پوره ئې وركړو هغه ته

هيڅ بيا نه مومي |او هلته دالله ﷻ [تقدير] بيامومي | نوهغه ورسره خپل حساب

حِسَابَهٗ　وَاللّٰهُ　سَرِيْعُ الْحِسَابِ　اَوْ كَظُلُمٰتٍ

حساب دهغه | او الله | زر اخستونكې دې دحساب | يا مثال دهغې پشان دتيارو دې

پوره كړې [اودې مركړې] | او الله ﷻ ډير زر حساب خلاصوي |يا [دهغه عملونه] داسې دي|لكه چې

فِيْ بَحْرٍ لُّجِّيٍّ　يَّغْشٰىهُ　مَوْجٌ　مِّنْ فَوْقِهٖ　مَوْجٌ

په درياب چپو وهونكي كښې | چې پټ كړې وي هغه | يوې چپې | دپاسه دهغې | بله چپه وي

دلوئې ژور سمندر دلاندې نه تورې تيارې وي|چې لوئې لوئې چپې پرې راځي |ديوې چپې

مِّنْ فَوْقِهٖ　سَحَابٌ　ظُلُمٰتٌ　بَعْضُهَا　فَوْقَ بَعْضٍ　اِذَآ　اَخْرَجَ

دپاسه دهغې | وريځ وي | تيارې وي | خينې دهغې|دپاسه دخينو وي | كله چې | راوباسئ سړې

دپاسه بله چپه وي|اوبيادهغې چپو دپاسه وريځ وي|غرض داچې لاندې باندې تيارې وي |كله چه

| يَدَهٗ | لَمْ يَكَدْ يَرٰىهَا | وَمَنْ | لَّمْ يَجْعَلِ اللّٰهُ | لَهٗ | نُوْرًا |
|---|---|---|---|---|---|
| لاس خپل | قریبه نۀ ده چی اووینی هغه | او هغه څوك | چی ورنۀ کړی الله | هغه له | نور |

څوک خپل لاس راوباسی | نو داسې [تیاره] وی [الکه قریبه وی چې هغه هم اونشی لیدې [اوچاته چې الله

| فَمَا | لَهٗ | مِنْ نُّوْرٍ ۝ |
|---|---|---|
| پس نشته | هغه لره | هيڅ نور |

[دهدایت] نور ورنکړی [نو هغه دپاره چرته هم رنړا نشته

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ هغه آیتونه هم نازلولو سره تاسو ته رارسولې دی کوم چه هرې خبرې لره واضح کونکې دی، او د هغه خلقو مثالونه هم چه ستاسو نه مخکښ تیر شوې دی، او هغه نصیحت هم کوم چه د متقیانو دپاره مفید دې. الله پاک د ټولو اسمانونو او زمکې نور دې. د هغه د نور مثال څه داسې دې لکه چه یو طاخ وی چه په هغې کښ ډیوه کیخودلې شوې وی ډیوه په یو شیشه کښ وی، شیشه داسې وی لکه یو ستورې، د ملغلرې په شان پرقیدونکې! هغه ډیوه د یو داسې برکت والا اونې یعنی زیتون نه روښانه کولې شی چه نه (صرف) مشرق وی او نه (صرف) مغربې داسې معلومیږی چه د هغې تیل به په خپله رنړا ورکړی، اګر که په هغې اور هم او نه لګی نور دپاسه نورا الله پاک چه څوک اوغواړی خپل نور ته ئې رسوی، او الله پاک د خلقو د فائدې دپاره مثالونه بیانوی، او الله پاک په هر څیز باندې پوهه دې. د کومو کورونو په باره کښ چه الله پاک دا حکم ورکړې دې چه هغې ته دې اوچت مقام ورکړې شی، او په هغې کښ دې د هغه د نوم ذکر وکړې شی، په هغې کښ سحر او ماښام هغه خلق تسبیح کوی څوک چه هیڅ تجارت او اخستل او خرخول نه د الله پاک د یاد نه غافله کوی نه د مونځ کولو او زکوٰة ورکولو نه اوهغوی د هغه ورځې نه ویریږی چه په هغې کښ به سترګې او زړونه اړولې [پریشانه] پاتې شی. نتیجه دا ده چه الله پاک به دې خلقو ته د هغوی د اعمالو بهترینه بدله ورکوی او د خپل فضل نه به ورسره زیاتې هم ورکوی، او الله پاک چه چاته غواړی، بې حسابه رِزق ورکوی. او (بل طرف ته) کومو خلقو چه کفر کړې دې، د هغوی د اعمالو مثال داسې دې لکه په یو صفا صحرا کښ چه د شګو یو ډیر کړ وی چه تږې انسان پرې د اوبو ګمان کوی، تردې چه کله د هغې خواله ورشی نو معلومه شی چه هغه هیڅ هم نه وو او هغې سره الله پاک بیا مومی، پس الله پاک هغه ته پوره پوره حساب ورکړی او الله پاک ډیر زر حساب اخستونکې دې او یا د هغې (اعمالو) مثال داسې دې لکه په یو ژور سمندر کښ خورې شوې تیارې، چه سمندر یو چپې پټ کړې وی، چه د هغې دپاسه بله چپه وی، او د هغې دپاسه وریځ وی، غرض د یو بل دپاسه ټولې تیارې تیارې وی! که څوک خپل لاس بهر راوباسی نو هغه ورته هم په نظر نه راځی. او کوم انسان ته چه الله پاک نور ورنکړی د هغه په نصیب کښ هیڅ نور نشته.

## خلاصه تفسیر

[ اومونږ] ستاسوخلقو دهدایت دپاره په دې سورت کښې یا په قرآن کښې دنبی کریم ﷺ په ذریعه سره ﴿وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَیْكُمْ اٰیٰتٍ مُّبَیِّنٰتٍ﴾ [ تاسوته ښکاره ښکاره احکام] عملی اوعلمی [درلیږلی

دی ﴿وَمَثَلًا مِّنَ الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلِكُمْ﴾ اوکوم خلق چه تاسونه وړاند تیر شوی دی دهغوی [یادهغوی په شان دخلقو څنې قصې او] دالله تعالی نه ﴿وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ﴾ [دویریدونکو دپاره دنصیحت خبرې] درلیږلی دی ﴿اللَّهُ نُورُ﴾ [الله تعالی نور] دهدایت [ورکوونکې دې] ﴿السَّمَاوَاتِ﴾ په [اسمانونو] کښې اوسیدونکو [ته ﴿وَالْأَرْضِ﴾ او] په [زمکه] کښې اوسیدونکو [ته] یعنی داسمانونو اومزکې اوسیدونکو ته چه کوم هدایت شوې دې دې ټولو ته الله تعالی هدایت ورکړې دې اومراد داسمانونو اومزکې نه ټول عالم دې پس کوم مخلوقات چه داسمانونو اومزکې نه بهر دی هغه په کښې هم داخل دی لکه حاملان دعرش ﴿مَثَلُ نُورِهِ كَمِشْكَاةٍ﴾ [دهغه دنور] دهدایت [عجیبه حالت داسې دې لکه] فرض کړه [یوتاخ دې] او ﴿فِيهَا مِصْبَاحٌ﴾ [په هغې کښې یوه ډیوه] ایښودې [ده] او ﴿الْمِصْبَاحُ﴾ [هغه ډیوه] په خپله په یوتاخ کښې نه ده بلکه ﴿فِي زُجَاجَةٍ﴾ [په یوقندیل کښې ده] او قندیل په تاخ کښې ایښودې شوې دې او ﴿الزُّجَاجَةُ﴾ [هغه قندیل داسې] صاف شفاف [دې ﴿كَأَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ﴾ لکه چه یو ځلیدونکې ستورې وی] او ﴿يُوقَدُ مِن شَجَرَةٍ مُّبَارَكَةٍ﴾ [هغه ډیوه دیوې ډیرې مفیدې ونې] دتیلو [نه بله کړې شوې وی ﴿زَيْتُونَةٍ﴾ کومه چه دزیتون] اونه [ده کومه چه] په څه اړ کښې ﴿لَّا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ﴾ [نه مشرق ته ده او نه] په څه اړ کښې مغرب ته ده] یعنی نه ددې نه مشرق طرف ته دڅه اونې یاغرپناهی شته چه دورځې په شروع کښې ترې نه نمر پناه کوی اونه مغرب طرف ته ترې نه څه پناهی یا غر شته چه دورځې په اخر کښې ترې نه نمر پناه کړی بلکه په یو ډاګه میدان کښې ده چه ټوله ورځ پرې نمر لګی دداسې اونې تیل ډیر صفا شفاف او روښانه وی او ﴿يَكَادُ زَيْتُهَا﴾ [دهغې تیل] دومره صاف او رڼړه دی چه ﴿يُضِيءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ﴾ [که دې ته اورهم نه رسی خوبیا هم داسې معلومیږی چه د ځانه به بل شی] اوکله چه اورورته هم رسی بیا خو ﴿نُّورٌ عَلَىٰ نُورٍ﴾ [نورعلی نورده] یعنی یو خو په کښې په خپله قابلیت دنورپه اعلی درجه باند وو بیا دپاسه پرې بل کارکوونکې اور هم ورسره جمع شو او بیا دا جمع کیدل ئې هم په داسې کیفیاتوسره چه ډیوه په قندیل کښې ایښودې شوې وی چه په هغې سره هسې هم رڼرا زیاتیږی اوبیا هغه په داسې تاخ کښې ایښودې شوی وی چه دیوطرف نه بندوی په داسې موقع شغلې یو طرف ته جمع شی اورڼرا ډیره تیزه شی او بیاتیل هم دزیتون چه په صفارڼرا او دلوګی په کموالی کښې مشهوردی نو دومره تیزه رڼراوی لکه چه ډیرې رڼرا ګانې جمع شوې وی دې ته ئې [نورعلی نور] وفرمائیل داخای مثال ختم شو پس دغه شان دمؤمن په زړه کښې چه الله تعالی کله نور دهدایت غورزوی نو ورځ په ورځ ددهٔ زړهٔ دحق دقبلولو دپاره سپږدلې کیږی اوهروخت دعمل کولو دپاره تیاریږی اګر چه بالفعل دخنواحکامو علم ورته حاصل شوې هم نه وی څکه چه علم لږ لږ په وار وار حاصلیږی لکه دغه دزیتون تیل چه وړاند درڼرا کولو دپاره تیار وو مؤمن هم په احکامو دعلم راتلونه وړاند په دوی دعمل کولودپاره تیاروی اوکله چه ددهٔ ته علم حاصلیږی نو رڼرا دعمل یعنی دعمل دپخې ارادې سره نور دعلم ورته هم حاصلیږی چه په دې سره ئې فورا قبلوی پس عمل اوعلم جمع شی نورعلی نور پرې صادق شی او داسې نه کیږی چه په احکامو دعلم راتلونه پس ورته څه تردد وی چه ګنی دنفس موافق ئې مومی نو قبلوی ئې اوکه داسې نه وی نو رد کوی ئې دسینې دې پرانستو اونور ئې په بل ایت کښې داسې بیان فرمائیلې دې [افمن شرح الله صدره للاسلام فهو علی نور من ربه] یعنی دکوم سړی سینه چه الله تعالی داسلام دپاره وسپړ ده

نو دي دخپل رب دطرف نه په نوربانـد وی اویو بل ځای فرمانی [ فمن يردالله ان يهديه يشرح صدره للاسلام (۱) ] غرض دالله تعالی دهدایت دنور دامثال دي او ﴿يَهۡدِي ٱللَّهُ لِنُورِهِۦ﴾ [ الله تعالی خپل ] دي [نور] دهدایت [ته ﴿مَن يَشَآءُ﴾ چالره چه غواړی لار ورکوی] او ورته يې رسوی [ او د هدايت چه کوم دامثال بيان شو دغه شان په قرآن کښې ډيرمثالونه بيان شوی دی نو په دې سره هم خلقو تـه هدايت مقصود دې په دې وجـه ﴿وَيَضۡرِبُ ٱللَّهُ ٱلۡأَمۡثَٰلَ لِلنَّاسِ﴾ [ الله تعالی دخلقو] دهدایت [دپاره] دا [مثالونه بيانوی] چه عقلی مضامين دمحسوسو څيزونو په شان پوره کيدوته نزدې شی ﴿وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٌ﴾ [او الله تعالی هر شی لره ښه پيژندونکې دې] په دې وجه کوم مثال چه دمقصود دفانده کولو دپاره کافی وی اوپه کوموکښې چه دغرضونو دمثال پوره رعايت وی هغوی لره اختيار وی مطلب دادې چه الله تعالی مثالونه بيانوی او هغه مثال نهايت مناسب وی چه هدايت پرې ښه وشی وړاندې داهل هدايت حال بيانوی چه ﴿فِي بُيُوتٍ﴾ [هغوئ په داسې کورونوکښې] ورتلو سره عبادت په کښې کوی ﴿أَذِنَ ٱللَّهُ أَن تُرۡفَعَ وَيُذۡكَرَ فِيهَا ٱسۡمُهُۥ﴾ [د کومو په نسبت چه الله تعالی حکم کړې دې چه دهغو ادب د اوشی او په هغوکښې د دالله تعالی نوم اخستې شی] مراد دهغوکورونو نه جماتونه دی او دهغوادب دا چه جنب او حائضه د ورته نه داخليږی او پليت شې دورته دننه کولې نه شی او شور زوږ دهلته نه شی کولې ددنيا دکارونو او خبرو کولو دپاره دهلته نه کښينی چه بدبويه شې وخوری هلته د نه خی او داسې نور غرض ﴿يُسَبِّحُ لَهُۥ فِيهَا بِٱلۡغُدُوِّ وَٱلۡأٓصَالِ رِجَالٌ﴾ [په هغو] جماتونو [کښې داسې خلق سحر ماښام دالله تعالی پاکی] په مونځونو کښې [ بيانوی ﴿لَّا تُلۡهِيهِمۡ تِجَٰرَةٌ وَلَا بَيۡعٌ عَن ذِكۡرِ ٱللَّهِ وَإِقَامِ ٱلصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءِ ٱلزَّكَوٰةِ﴾ کوموته چه دالله تعالی په يادو] يعنی دحکمونو په ځای کولو[سره] دکوم وخت متعلق چه کوم حکم وی [ او] خاصکر[ په مونځ کولو سره او په زکات ورکولوسره] چه داپه فرعی احکاموکښې دټولونه اهم دی [ نه يې اخستل په غفلت کښې غورزوی اونه خرڅول] اوسره دعبادت او اطاعت نه ددوی دويرې داحال دې چه ﴿يَخَافُونَ يَوۡمًا﴾ [هغوی دداسې ورځې ] دعذاب [نه ويريږی ﴿تَتَقَلَّبُ فِيهِ ٱلۡقُلُوبُ وَٱلۡأَبۡصَٰرُ﴾ په کومه کښې چه ډير زړونه او سترګې الټه کيږی ] لکه چه په بل ايت کښې دی [يؤتون ما اتوا وقلوبهم وجلة انهم الى ربهم راجعون (۲)] يعنی داخلق د الله تعالی په لاره کښې خرچ کوی او ددې باوجود ددوی زړهٔ دقيامت دبازپرس نه ويريږی اومقصود ددې نه داهل نور دهدايت صفتونه او دعملونو بيان فرمائيل دی او وړاند ددوی دانجام ذکر دې چه [ انجام ] ددې خلقو [ به داوی ﴿لِيَجۡزِيَهُمُ ٱللَّهُ أَحۡسَنَ مَا عَمِلُواْ﴾ چه الله تعالی به دوی ته ددوی دعلمونو ډيره ښه بدله ورکړی] يعنی جنت [ او] علاوه دجزانه ﴿وَيَزِيدَهُم مِّن فَضۡلِهِۦ﴾ [دوی ته به دخپل فضل نه نوره هم زياته بدله ورکړی] جزابه هغه وی چه وعده يې په تفصيل سره ذکرده او زياتی هغه چه مفصله وعده يې نشته اګر چه په مجملوعنوانونو سره شوې ده ﴿وَٱللَّهُ يَرۡزُقُ مَن يَشَآءُ بِغَيۡرِ حِسَابٍ﴾ [او الله تعالی چالره چه غواړی بې شميره] يعنی ډير په کثرت سره [ورکوی] پس هغوخلقو ته به دغه شان په جنت کښې بې شميره نعمتونه ورکړی

---

(۱) ترجمه: پس کوم کس لره چې الله تعالی په لار کول غواړی نودهغه سينه اسلام دپاره فراخه کړی يا پرانيزی.
(۲) ترجمه:- څه چې غواړی نو هغه ورکوی او ددوئ زړونه په دې وجه ويره کښې دی چې دوبه دالله تعالی په وړاندې پيش کيږی.

تردې خاځ پورې خو دهدايت او اهل هدايت بيان وو وړاندګمراهۍ او دګمرهانو ذکردې يعنى
﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا﴾ [اوکوم خلق چه کافران] اوګمراهان او نور دهدايت نه لرې [دى ﴿اَعْمَالُهُمْ﴾
ددوى عملونه] په وجه دکافرانو د دوه قسمه کيدو د دوه مثالونو مشابه دى څکه چه يوقسم
خو هغه کفار دى کوم چه داخرت اوقيامت قائل دى او په خپلوخنوعملونو يعنى کوم چه ددوى
دګمان مطابق کاردثواب اونيکيودې داخرت اوقيامت نه منکر دى داول قسم کفارو عملونه
خو[داسې دى ﴿كَسَرَابٍۢ بِقِيْعَةٍ﴾ لکه په يو خالى ميدان کښې پرقيدونکې شګه ﴿يَّحْسَبُهُ الظَّمْاٰنُ
مَآءً﴾ چه تږى] سړې [په هغې] دلږې نه [داوبوګمان کوى] ﴿حَتّٰٓى اِذَا جَآءَهٗ﴾ اوهغې ته منډې وهى
[تردې چه کله هغې ته راشى نو هغې لره ] چه ئ کوم ګمان وو﴿لَمْ يَجِدْهُ شَيْـًٔا﴾[ هيڅ ونه مومى]
او دډيرې تندې نه بيا په نهايت نااميدئ کښې کومه چه بدنى او روحانى صدمه ورته رسيدلې
وى او دهغې نه وترقيږى مړشى نو داسې وئيل پکاردى چه په ځائ داوبو﴿وَّوَجَدَ اللّٰهَ عِنْدَهٗ﴾[ دالله
تعالى حکم يعنى مرګ لره بياموندو﴿فَوَفّٰىهُ حِسَابَهٗ﴾ پس الله تعالى دده] دعمر[حساب ده ته
برابر وځکولو] اوبې باقه ئ کړو يعنى دعمرخاتمه ئ ورله وکړه ﴿وَاللّٰهُ﴾[ اوالله تعالى] دکوم
شى ميعاد چه راشى دهغې﴿سَرِيْعُ الْحِسَابِ﴾ [ په يو دم کښې حساب ] ختم [کړى] هغه ته څه
ډيل کول په دې کښې نه وى چه وخت په کښې واخلى يادميعادنه څه توقف وشى پس
دامضمون داسې دې لکه بل ځائ چه ارشاد دې [ان اجل الله اذاجآء لايوخر](۱) اودقول [لن يو
خرالله نفسا اذجآء اجلها](۲) مطلب ددې مثال داشو چه څنګه تږې په شګه دظاهرى چمك په وجه
داوبوګمان کوى دغه شان داکافران دخپلوعملونوپه ظاهرى صورت سره داخرت دپاره دمقبول
او فائده مندګمان کوى او لکه څنګه چه هغه اوبه نه دى دغه شان دا عملونه دشرط دقبول
يعنى دايمان دنشتوالى په سبب مقبول اوفائده مندنه دى اولکه چه هلته لاړشى نو دغه تږى ته
حقيقت معلوم شى دغه شان به ده ته اخرت ته په رسيدو حقيقت معلوم شى اولکه څنګه چه
داتږې دخپل ګمان دغلطيدو په حسرت اوافسوس کښې ناکامه او مړشى دغه شان به دا
کافرهم دخپل ګمان په غلطيدو دغه وخت په حسرت او هلاکت ابدى يعنى په عذاب دجهنم
کښې اخته شى ديوقسم کافرانو مثال خو داشو وړاند ددويم قسم کافرانو دعملونو بيان دې
يعنى[ياهغه] عملونه په اعتبار دخصوصيت دمنکرانو دقيامت﴿اَوْ كَظُلُمٰتٍ فِىْ بَحْرٍ لُّجِّيٍّ﴾ [داسې دى
لکه په ژور سمندر کښې دننه تيارې] چه يو سبب ئ ددرياب ژور والې دې او بيادا﴿يَّغْشٰىهُ مَوْجٌ﴾
[ چه هغې] دسمندراصلى سطح [الره يوې لوئ چپې پټه کړې وى] بيادغه چپه هم يوازې نه وى
بلکه﴿مِّنْ فَوْقِهٖ مَوْجٌ﴾ [دهغې ] چپې [ دپاسه بله چپه] وى بيا﴿مِّنْ فَوْقِهٖ سَحَابٌ﴾[ دهغې دپاسه
وريخ ] وى چه دهغې په وجه دستورو وغيره رڼا ورته هم نه رسيږى غرض ﴿ظُلُمٰتٌۢ بَعْضُهَا فَوْقَ
بَعْضٍ﴾ [ په يوبل دپاسه ډيرې تيارې ] په تيارو[ وى چه ﴿اِذَآ اَخْرَجَ يَدَهٗ﴾ که چرې] په داسې
حالت کښې څوك سړې ددرياب په وريخ کښې [خپل لاس راوباسى] اوليدل ئ وغواړى [ نو]
ليدل خوپريږده ﴿لَمْ يَكَدْ يَرٰىهَا﴾[دليدو احتمال هم نشته] ددې مثال مطلب دادې چه داسې
کافرکوم چه داخرت اوقيامت نه منکروى اوجزا اوسزا هم نه منى ددوى سره وهمى نورهم نشته

(۱) ترجمه:-کله چې دالله تعالى مقرر شوې وخت راشى نو هغه به نه روستو کيږى.
(۲) کله چې ديو کس وخت پوره شي نو الله تعالى هغه ته مهلت نه ورکوى.

لکه داول قسم کافرانو سره چه یووهمی او خیالی نور وو مګر دشرط دنشتوالی په سبب حقیقی نور نه وو یو وهمی نور وو داخلق کوم چه د اخرت نه منکردی دوی دخپلې عقیدې اوخیال مطابق هم څه کار داخرت دپاره کړې نه دې دکوم دنور چه ددوی وهم او خیال وی غرض دوی سره تیاره په تیاره ده دنور وهم اوخیال هم نه شی کیدې لکه چه ددریاب په ویخ کښې د مثال چه دې اودنظر په نه راتلو کښې دلاس تخصیص شایدپه دې وجه دې چه دانسان په اندامونو کښې لاس زیات نزدې دې اوبیا چه دې څومره نزدې کول غواړی نو نزدې کیږی او هرکله چه لاس په نظررانغې نو نور اندامونه خو ظاهره خبره ده چه نه شی لیدې [ او] وړاند ددې کفارو په تیارې کښې دکیدو وجه دابیان فرمائی چه ﴿وَمَنْ لَّمْ يَجْعَلِ اللّٰهُ لَهٗ نُوْرًا فَمَا لَهٗ مِنْ نُّوْرٍ﴾ [چالره چه الله تعالی نور] دهدایت [ورنه کړی هغه ته] دچرې نه هم [نورنه وی] نه شی حاصلیدې.

## معارف او مسائل

د علم خاوندان دې آیت ته ،آیت نور ،څکه وائی چه پکښې د ایمان د نور او د کفر د تیاره مثال په ډیر تفصیل سره بیان شوې دې.

**د نور تعریف**: امام غزالی رحمه الله د نور تشریح داسې کوی ﴿الظاهر بنفسه والمظهر لغيره﴾ [یعنی پخپله ښکاره او بل ښکاره کونکې څیز ] او په ،تفسیر مظهری کښې ، لیکی چه نور په اصل کښې داسې یو شان ته وائې چه اول ئې د انسان د لیدلو طاقت درک لګوی بیا د هغې په ذریعه د هغې تولو څیزونو درک لګوی کوم چه په سترګو لیدلې شی لکه د نمر او سپوږمۍ پلوشې چه اول دې ته مخامخ سخت څیزونو باندې پریووځی نو دغه څیز روښانه کړی بیا دهغې پلوشې راؤتمبیږی او نور څیزونه روښانه کوی دې نه معلومه شوه چه د لغوی او عرفی معنی په لحاظ سره د نور اطلاق د الله تعالی په ذات باندې نشی کیدې ولې چه نهٔ خو پخپله جسم دې او نهٔ جسم سره تعلق لرونکې دې بلکه د هغه اصلی شان په تصور کښې هم نشی راتلې څکه خو په دې آیت کښې د راغلی ،نور ،معنی د تفسیر امامانو رحمهم الله ،منور ،[روښانه کونکې ] کړیده یا د مبالغې په ډول د نور خاوند ته نور وئیلې شوی دې څنګه چه سخاوت کونکی ته سخاوت او انصاف کونکی ته انصاف وئیلې شی[1] د ټول آیت معنی د تفسیر په خلاصه کښې داسې بیان شوې ده چه الله تعالی نور ښښونکې دې آسمانونو او زمکو او په دې کښې آباد ټول مخلوق ته دې نور نه مراد د ، هدایت نور ،دې چنانچه ابن کثیر رحمه الله دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه د دې په تفسیر کښې داسې نقل کړې دی [2]«الله هادي اهل السموات والارض»[3]

**د مؤمن نور**: ،﴿مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ﴾ ، د الله تعالی د هدایت نور چه د مؤمن په زړه کښې راځی دا د هغې یو عجیبه مثال دې چنانچه ابن جریر رحمه الله د حضرت ابیٔ ابن کعب رضي الله عنه نه د دې په تفسیر کښې ذکر کړې دی. هوالمؤمن الذي جعل الله الايمان والقران في صدره فضرب الله مثله فقال: ﴿اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ فبدا بنور نفسه ثم ذكر نور المؤمن فقال مثل نور من امن به فكان ابى بن كعب يقراها مثل نور من امن به [ابن كثير][4] [ یعنی دا دهغه مؤمن مثال دې چه په زړه کښې ئې الله تعالی د ایمان او د قرآن د هدایت

---

[1]) تفسیر المظهري[ج:٦ص:٥٢١]
[2]) ترجمه:- الله تعالی آسمان والو ته او زمکې والو ته هدایت ورکوؤنکې دې.
[3]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٥٧]
[4]) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٥٧] و تفسیر الطبري تحت هذه الآية [ج:١٩ ص:١٧٩]

نور ،چولي دي په دې آيت کښې حو الله تعالى ږومبې د خپل نور بيان داسې اوکړو ، ﴿اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ ، بيا د مؤمن د زړه نور ئې داسې بيان کړو ،مثل نوره ، حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه چه به دا آيت لوستو نو د ،مثل نوره ، په ځاى به ئې ،مثل نورمن آمن به،لوستلو او سعيدبن جبير هم دغسې قرات او د آيت هم دغسې مطلب د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه هم روايت کړې دې ابن کثير(١) د دې روايتونو نقل کولو نه پس ليکلى دى چه د ،مثل نوره ، د ضمير په باره کښې د تفسير د امامانو رحمهم الله دوه قوله دى يو قول دا دې چه ضمير الله تعالى ته راجع دې په دې بنا به معنى د آيت داسې شى [چه د الله تعالى د هدايت د هغې نور مثال داسې دې کوم چه الله تعالى د مؤمن په زړه کښې په فطرى ډول ايښى دې] ، ﴿كَمِشْكٰوةٍ﴾ الخ ، دا قول د ابن عباس رضي الله عنهما دې دويم قول دا دې چه دا ضمير هم مؤمن ته راجع وى چه د کلام چلن روانى پرې دلالت کوى ځکه د دې مثال حاصل دا شو چه د مؤمن د سينې مثال د يو تاخ دې چې په دې ئې زړه لکه د فانوس دې په دې کښې ډير زيات رنړۀ د زيتون تيل دى [دا د هدايت د فطرى نور مثال دې د مؤمن په خمبير کښې اغږلې شوې دې] د دې خصوصيت دا دې چه په خپله هم حق قبله وى او ځنګه چه د زيتون تيل په اور اخستو سره روښانه شى او نور څيزونه هم روښانه کوى دغه شان د هدايت فطرى نور چه د مؤمن په زړه کښې ايښودې شوې دې کله چه وحى الهى او علم الهى سره يو ځاى شى نو روښانه شى او ټول جهان روښانه کړى صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله چه دا مثال د مؤمن زړه سره مخصوص کړې دې د هغې وجه غالبا دا ده چه د دې نور نه صرف مؤمن فائده پورته کوى ورنه د هر انسان په زړه کښې د هدايت نور د هغه د پيدائش په وخت ايښوې شى چنانچه د دې اثر د دنيا په هر قوم په هرې برخه هر مذهب او مسلک کښې داسې ليدلې شى چه هر انسان د الله تعالى شته والې او د هغۀ لوئ قدرت په فطرى ډول منى هغه ته ماتې کوى د دې په تصور او تعبير کولو کښې که هر څومره غلطيانې کوى مګر د الله تعالى موجودګى هر انسان په فطرى ډول منى . سوا د يو څو هغه ماده پرستو چه فطرت ئې وران شوې وى دغسې خلق د الله تعالى د موجودګۍ نه منکر دى - چنانچه د يو صحيح حديث نه د دې عموما تائيد کيږى په هغې کښې ارشاد دې ، كل مولود يولد على الفطرة ،(٢) [يعنى هر پيدا کيدونکې ماشوم په فطرت باندې پيدا کيږى بيائې مور پلار د فطرت د لارې نه واړوى په غلطو لارو ئې روان کړى] دغې فطرت نه مراد د ايمان هدايت دې ، د ايمان دا هدايت او د دې نور په هر انسان کښې د پيدا کيدو په وخت ايښوې شى چه د دغې نور د هدايت په وجه په هغه کښې د حق د قبلولو قابليت وى . کله چه د پيغمبرانو عليهم السلام او د هغوئ د نائبانو په ذريعه ورته د وحى الهى علم رسى نو هغه ئې په آسانۍ سره قبلوى سوا د هغې خلقو نه چه فطرت ئې مسخ [وران] شوې وى او دغه فطرى نور ئې په خپلو حرکتونو سره د منځه اوړې وى شائد هم د دې وجې د آيت په شروع کښې د نور ورکول عام بيان شوى دى چه د آسمانونو او زمکې ټول مخلوق لره شامل دى او دمؤمن او کافر هم پکښې څه تخصيص نشته او په آخر د آيت کښې ئې دا اوفرمائيل ، ﴿يَهْدِى اللّٰهُ لِنُوْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ﴾ [الله تعالى هغه چاته خپل نور اړخ ته هدايت کوى چه غواړى ئې] دلته د الله تعالى د قرآن نور سره تړون ځکه لرى چه دفطرت نور ئې په هر انسان کښې په پيدائشى ډول ايښى دې مطلب دا چه الله تعالى د مشيت

---

(١) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٥٨]

(٢) صحيح البخاري كتاب الجنائز ،باب ما قيل في اولاد المشركين [ج:١ص:١٨٥]

قيد ددې فطري نور دپاره ندې چې په هر انسان كښې يې ايښې دي بلكه دقرآن پاك دنور دپاره قيد دې چې هر كس ته نشي حاصليدې سوا دهغه چا څخه دالله تعالى دطرفته ورته توفيق نصيب وى ورنه د انسان كوشش كول هم د الله تعالى د توفيق وركولو نه بغير بيكاره بلكه بعضې وخت ضررى ثابتيږى -

اذا لم يكن عون من الله للفتى :: فـاول مـا يجنى عليه اجتهـاده

[يعنى كه د الله تعالى امداد چاسره نهٔ وى .. نو دهغه كوشش هم ورته زيان رسوى ]

**د رسول الله صلى الله عليه وسلم نور:**: او امام بغوى رحمه الله يو روايت نقل كړى دې چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه كعب احبار نه تپوس اوكړو چه د دې آيت د تفسير په باره كښې تاسو څه وايئ؟ يعنى د ﴿مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ﴾ ،الاية - په باره كښې كعب احبار د تورات او انجيل يو مسلمان لوئ عالم وو هغهٔ اوفرمائيل چه دا درسول الله ﷺ د زړه مبارك مثال بيان كړې شوې دې ،مشكوة ،نه مراد د هغوئ سينه مباركه ،زجاجه ،نه مراد [فانوس ] د هغوئ زړهٔ مبارك او ،مصباح، ډيوې نه مراد پيغمبرى ده د پيغمبرئ د دې نور خاصه دا ده چه د پيغمبرئ ښكاره كولو او اعلان كولو نه وړاندې هم په دې كښې د خلقو د پاره د رڼا سامان دې بيا چه ورسره د الله تعالى وحى او د دې اعلان يو ځائ شى نو دا نور داسې شان اختيار كړى چه ټول جهان روښانه كړى(١) - د رسول الله ﷺ د پيغمبرئ ښكاره كولو بلكه د دوئ ﷺ د پيدا كيدو نه هم رومبې چه ډير عجيبه داسې واقعات په دنيا كښې راپيښې شوې چه د دوئ ﷺ د پيغمبرئ زيرې ئې وركولو او د محدثينو په اصطلاح كښې ورته ،ارهاصات ،وئيلې شى ولې چه معجزې خو خاص هغې واقعاتو ته وئيلې شى چه د پيغمبرئ د دعوې رشتينولى پرې كولې شى او د الله تعالى د اړخه د يو پيغمبر په لاس جارى كولې شى -

غرض دا چه ډير ، ارهاصات، د عجيبه په واقعاتو په صورت كښې د صحيح روايتونو نه ثابت دى چه شيخ جلال الدين سيوطى رحمه الله په خصائص كبرىٰ كښې او ابو نعيم په دلائل النبوة كښې او نورو علماء كرامو هم پخپلو كتابونو كښې جمع كړى دى . ددې يوه كافى حصه په دې مقام كښې په تفسير مظهرى كښې هم نقل كړې شوې ده .

**د زيتونو د تيلو بركتونه**:: [شَجَرَةٍ مُّبٰرَكَةٍ زَيْتُوْنَةٍ] ددې څخه د زيتونو او ددې د ونې د تبرك او د نافع او مفيد كيدو كيدل ثابت دې . علماء كرامو فرمائيلى دى چې الله ﷻ په دې كښې بې شميره فائدې اينبودى دى. دا رڼا دپاره په ډيوۀ كښې هم استعماليږى . او ددې رڼا د نورو تيلو د رڼا څخه زياته صفا او واضحه وى. دا روټئ سره د سالن په طور هم استعماليږى . ددې ميوه د ميوۀ په ځائې هم خوړلې كيږى ، اوددا داسې تيل دى چې ددې دپاره د مشين يا چرخئ وغيره ضرورت نه وى بلكه پخپله ددې دميوې څخه راوزى ، نبى كريم ﷺ فرمائى چې د زيتونو تيل خورئى هم او په دې بدن هم مالش كوئى ځكه چې دا مباركه ونه ده ، [رواه البغوى والترمذى عن عمر رضي الله عنه مرفوعا ، مظهرى](٢)

---

(١) تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٤٨]

(٢) جامع الترمذي ، ابواب الأطعمة باب ماجاء في اكل الزيت [ج:٢ ص:٦]و تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٤٧]

[فِيْ بُيُوْتٍ اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ يُسَبِّحُ لَهٗ فِيْهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ۙالاية] ددې ځخه مخکښې آيتونو کښې الله ﷻ د مؤمن په زړهٔ کښې د خپل هدايت نور اچولو يو خاص مثال بيان فرمائيلې وو او په آخر کښې يې دا فرمائيلي وو چې ددې نور ځخه هغه خلق فائده حاصلوی کومو ته چې الله ﷻ دا ورکول غواړی او هغوئ ته ددې توفيق و رکوی. دې آيت مبارک کښې دداسې مؤمنانو مستقر او محل بيان کړې شوې دې چې دداسې مؤمنانو اصل مقام او مستقر هغه دې کوم ځائې کښې چې دوئ اکثر پنځه وخته مونځ ادا کوی هغه بيوت يعنی مکانات دی چې دهغې باره کښې دالله ﷻ حکم دادې چې دا دې اوچت اولرلې شی او په دې کښې دالله ﷻ دنوم ذکر اوکړې شی ، او ددې بيوت او مکاناتو شان دادې چې په دې کښې دالله ﷻ د نوم تسبيح او تقديس سحر ماښام په تولو وختونو کښې داسې خلق کوی چې دهغوئ د خاص خاص صفاتو بيان راروان دې.

ددې تقرير بناء په دې باندې ده چې په نحوی ترکيب کښې د [فِيْ بُيُوْتٍ] تعلق د آيت ددې جملې [يَهْدِي اللّٰهُ لِنُوْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ] سره وی ، [کما يستفا من ابن کثير وغيره من المفسرين] بعضې حضراتو ددې تعلق د لفظ [يسبح] محذوف سره کړې دې چې په دې باندې وړاندې راتلونکې لفظ [يسبح] دلالت کوی ، خو اول احتمال د نسق کلام په اعتبار سره بهتر معلوميږی ، اود آيت مبارک مطلب به داشی چې په دې مخکښې مثال کښې چې دالله ﷻ د نور هدايت ذکر شوې دې دهغې د ملاويد ځائې هغه بيوت او کورونه دی چې چرته سحر ماښام دالله ﷻ نوم اخستلې کيږی. د جمهورو مفسرينو په نزد ددې بيوت ځخه مراد مساجد يعنی جماتونه دی.

**مساجد يعنی جماتونه دالله ﷻ کورونه دی ، ددې تعظيم واجب دې:** قرطبی دې ته ترجيح ورکړې ده ، او په دليل کښې يې د انس رضی الله عنه حديث پيش کړې دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل :

من احب لله عزوجل فليحبنی ومن احبنی فليحب اصحابی ومن احب اصحابی فليحب القران ومن احب القران فليحب المساجد فانها افنية الله اذن الله فی رفعها وبارك فيها ميمونة ميمون اهلها محفوظة محفوظ اهلها هم فی صلاتهم والله عزوجل فی حوائجهم هم فی المساجد والله من ورائهم [قرطبی][1]

کوم کس چې الله ﷻ سره محبت کول غواړی هغه ته پکار دی چې ما سره محبت اوکړی ، او څوك چې ماسره محبت کول غواړی هغه ته پکار دی چې زما صحابه کرامو سره محبت اوکړی ، او څوك چې زما صحابه کرامو سره کول غواړی هغه ته پکار دی چې قرآن پاك سره محبت اوکړی ، او څوك چې قرآن پاك سره محبت کول غواړی هغه ته پکار دی چې جماتونو سره محبت اوکړی ځکه چې دا دالله ﷻ کورونه دی ، الله ﷻ ددې تعظيم کولو حکم کړې دې ، او په دې کښې يې برکت اينښودې دې ، داهم برکت والا دی او دې کښې چې څوك اوسيږی هغوئ هم برکت والا دی ، دا هم د الله ﷻ په حفاظت کښې دی او څوك کښې په دې کښې اوسيږی نو هغوئ هم د الله ﷻ په حفاظت کښې دی ، دا خلق دالله ﷻ په عبادت کښې مصروف وی او الله ﷻ ددوئ کارونه او حاجتونه پوره کوی ، دوئ په جماتونو کښې نو الله ﷻ [ددوئ په عدم موجودګئ کښې ] ددوئ د ځيزونو حفاظت کوی ،

**د رفع مساجد معنی:** [اَذِنَ اللّٰهُ اَنْ تُرْفَعَ] ، اَذِنَ د اِذْنٌ ځخه مشتق دې او ددې معنی ده اجازت ، او ترفع د رفع ځخه مشتق دې او ددې معنی ده اوچت او تعظيم ده. د آيت مبارك معنی داشوه چې

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۲ص: ۲۶۶]

الله ﷻ د جماتونو داوچتولو اجازت ورکړي دي. ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چې د اوچتولو په حکم کښې الله ﷻ په جوماتونو کښې د عبثو کارونو او عبثو خبرو کولو نه منع فرمائيلې ده [ابن کثير] (۱) عکرمه رحمه الله او د تفسير امام مجاهد رحمه الله فرمائيلي دي چه، رفع، نه مراد جمات جوړول دي ځنګه چه الله تعالى د کعبې د جوړولو په باره کښې فرمائي ﴿وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَٰهِيمُ ٱلْقَوَاعِدَ مِنَ ٱلْبَيْتِ وَإِسْمَٰعِيلُ﴾ (۲) او حضرت حسن بصري رحمه الله فرمائيلي دي چه د جماتونو د، رفع، نه مراد د دې تعظيم او قدر کول دي او د پليتو او ګندګۍ نه ئې پاک ساتل دي لکه په حديث شريف کښې راغي چه کله جمات ته پليتي راوړلې شي نو جومات ورسره داسې راغونډيږي ځنګه چه د انسان د بدن څرمن په اور سره راغونډيږي (۳) - حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمائيلي دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چا چه د جومات نه ناپاک او ګنده څيز لرې کړو الله تعالى به ورد پاره په جنت کښې کور جوړ کړي [ابن ماجه] (۴) حضرت عائشې صديقې رضي الله عنها اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ مونږ ته حکم راکړو چه په خپلو کورونو کښې هم جماتونه [د مونځونو د پاره خاص ځايونه] جوړوو او د هغې د صفا ساتلو پوره انتظام کوو [قرطبي] (۵)

خو اصل خبره دا ده چه، ترفع، نه مطلب جوماتونه جوړول هم دی. د دې تعظيم او ادب کول صفا او پاک ساتل ئې هم دی چنانچه پاک ساتل ئې دا دی چه پليتو او ګنده څيزونو نه پاک اوساتلې شي او د بد بويه څيزونو نه هم محفوظ اوساتلې شي چنانچه رسول الله ﷺ جوماتونو ته تلو نه هغه خلق منع کړيدی چه پياز. اوږه. وغيره خوړلو نه پس ئې خله نۀ وی صفا کړې ځنګه چه د حديثو په عامو کتابونو کښې مشهوره خبره ده (۶). سګرټ. چيلم. او پان کښې د تماکو استعمالول هم په دې حکم کښې دی دغه شان جومات کښې د خاوړو تيل استعمالول هم دا حکم لری ولې چه د هغې هم بد بوئی وی -

په صحيح مسلم کښې د حضرت فارق اعظم رضي الله عنه په روايت منقول دی هغوئ رضي الله عنه فرمائيلی دی چه ما پخلپه ليدلې دی چه کله به د چا د خلې نه رسول الله ﷺ د پياز يا اوږې بد بوئی محسوسه کړه نو جومات نه بهر بقيع ته به ئې ليږلو او فرمائيل به ئې چه څوک اوږه پياز وغيره خوړل غواړی نو ښه دې ئې پاخه کړی چه بد بوئ ئې ورکه شی هله دې ئې خوری (۷) فقهاؤ رحمهم الله دا حديث د ليل جوړ کړې دې او فرمائيلې ئې دی چه څوک داسې ناجوړه وی چه ورسره اودريدونکی خلق تنګيږی نو هغه هم د جومات نه ويستې شی ښه دا ده چه داسې مونځ ګزار دې جومات ته تر هغې پورې مونځ کولو له نۀ راځی څوپورې چه دغې ناجوړتيانه جوړ شوې نۀ وی مونځونه دې هم په کور کښې کوی.

(۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٦ ص: ٦٢]

(۲) ترجمه:- او کله چې ابراهيم د خانه کعبې ديوالونه پورته کول.

(۳) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:١٢ص:٢٦٦] و تنزيل الشريعة المرفوعة لابن العراق رقم الحديث:[١٠١]

(۴) سنن ابن ماجة، ابواب المساجد والجماعات، باب تطهير المساجد و تطييبها [ ص:٥٥ ]

(۵) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:١٢ص:٢٦٦] و سنن ابوداود، كتاب الصلاة، باب إتخاذ المساجد في الدور [ج:١ص:٧٢ ]

(۶) صحيح مسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة، باب نهى من أكل الثوم إلخ [ج:١ص:٢٠٩]

(۷) صحيح مسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة، باب نهى من أكل الثوم إلخ [ج:١ص:٢١٠]

د رفع مساجد مفهوم د جمهورو صحابه کرامو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله په نزد د، رفع مساجد، مطلب ددې جوړول او هرخراب څيزنه ئې پاک اوصفا لرل وی خنو ترې نه د جوماتونو ظاهري شان شوکت او لوړوالې مراد اخستې دې او دليل ئې دا نيولې دی چه حضرت عثمان غني رضي الله عنه مسجد نبوی کښې د آبنوس لرګې لګولې وو او ډيرښکلې ئې جوړکړې وو دغه شان حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله په مسجد نبوی کښې د نقش و نګار کولو او د تعمير ښکلا ښه بندو بست کړې وو دغه زمانه کښې لوئ لوئ صحابه کرام رضي الله عنهم هم موجود وو خو هيچ چا هم دا څه بد نۀ وو ګڼړلې وروسته نورو بادشاهانو هم د جوماتونو په جوړولو او ښائسته کولو باندې غټې مالونه لګولې دی وليدبن عبدالملک دخپل خلافت په زمانه کښې د دمشق دجامع مسجد په آبادولو اوښائسته کولو باندې دټول شام ملک د يو کليزې د آمدنئ په درې چنده زيات مال لګولې وو چه تراوسه پورې دغه جمات موجوددې دامام اعظم ابی حنيفه رحمه الله په نزد د جماتونو بلند شاندار او ښکلی جوړول څه منع نۀ دی بلکه د ثواب اميدئې کيدې شی خو هله چه نمائش اومشهورتياکول ئې مطلب نۀ وی.

**د جماتونو ځنې فضيلتونه**: د ابی داؤد په حواله د ابی امامه رضي الله عنه په روايت رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلې دی. څوک چه د خپل کورنه په اودس کښې جمات ته د مونځ کولو د پاره اوځی د هغه ثواب د هغې مسلمان هومره دې چه احرام تړلې حج د پاره د کورنه اوځی او څوک چه د اشراق مونځ د پاره په اودس کښې روان شی نو هغه ته د عمرې ثواب ملاويږی دغسې يو مونځ پسې د بل مونځ په انتظار په جومات کښې په پاتې کيدلو ثواب عليين کښې ليکلې شی([1]) خو هله چه د دغې دواړو مونځونو تر منځه ئې څه کار يا دنيوی خبرې نۀ وی کړې او حضرت بريده رضي الله عنه په روايت رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل کوم خلق چه تيرو کښې جماتونو ته ځی هغوئ ته د قيامت په ورځ د مکمل نور زيرې واؤروه [مسلم]

سيوطی رحمه الله په ،خصائص کبری ،او ، ابو نعيم رحمه الله په ،دلائل النبوة ،کښې او نورو علماوهم په خپلو مستقلو کتابونو کښې جمع کړی دی د دې يوه کافی برخه دلته په تفسير مظهری کښې هم نقل کړې شوې ده([2])

او د صحيح مسلم په حواله د حضرت ابی هريره رضي الله عنه په روايت رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه د نارينه مونځ په جمع سره ادا کول په کور يا دکان کښې د مونځ کولو په نسبت د شلو درجونه زيات غوره والې لری او دا ځکه چه څوک اودس کوی او په ښه شان [دسنت په مطابق] ئې کوی بيا جمات ته صرف د مونځ په نيت ځی بل هيڅ غرض ئې نۀ وی نو په هر قدم باندې د هغه مرتبه يوه درجه پورته کيږی او يو ګناه ئې ښښلې شی کله چه جومات ته اورسی او د جمع د مونځ په انتظار کښې وی نو د مونځ ثواب به ورکولې شی او فرشتې به ورته په مخه دا دعا کوی چه يا الله ته پرې رحمت نازل کړې او وې بخښې تر هغې چه چاته زيان اونۀ رسوی يا او دس ئې مات نشی([3]) او د حضرت حکيم بن عمير رضي الله عنه په روايت رسول الله صلى الله عليه وسلم او فرمائيل ، په دنيا کښې د ميلمنو په شان اوسيږئ او جماتونه خپل کورنه جوړ کړئ او خپل زړونو کښې د نرمئ عادت واچوئ [يعنی د نرمو زړونو خاوندان جوړ شئ] او [دالله تعالی په نعمتونو کښې] ډيرډير فکر او غور کوئ او

---

[1]) سنن ابوداود، كتاب الصلاة، باب ما جاء في فضل المشي إلي الصلاة [ج:١ص:٨٩ ]
[2]) جامع الترمذي ، ابواب الصلاة ، باب ما جاء في فضل العشاء والفجر في الجماعة[ج:١ص:٥٣]
[3]) صحيح مسلم كتاب المساجد و مواضع الصلاة ، باب فضل صلاة الجماعة وإنتظار الصلاة [ج:١ص:٢٣١]

[د الله تعالى د ويرې نه ] زيات ژاړي هسې نه چه د دنيا خواهشات تاسو لره د دې حال نه مختلف نه کړي چه تاسو د کورونو په عبثو آباديانو کولو کښې لګيا نشئ چه مو پکښې استوګنه هم نه وي او د ضرورت نه زيات د مال جمع کولو په فکر کښې لګيا شئ او آئنده د پاره په داسې عبثو ارزوګانو کښې اخته شئ چه نه به شي موندلې[1] - او حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه خپل خوئ ته نصيحت اوکړو چه، ستا کور دې جمات يعنې مسجد وي ،ولې چه ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چه جوماتونه د پرهيز ګارو خلقو کورونه دي چا چه جوماتونه [د ډير ذکر کولو په ذريعه ] خپل کورونه جوړ کړو الله تعالى د هغه شو[2] - او ابو صادق ازدي شعيب بن الجحاب ته خط اوليکو چه جوماتونه خپل تينګ خايونه جوړ کړئ ولې چه ماته دا روايت رسيدلې دې چه هم جماتونه د پيغمبرانو عليهم السلام د ناستې خايونه وو[3]

په يو بل حديث کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په آخره زمانه کښې به داسې خلق وي چه جوماتونو ته به راخي هلته به خاى په خاى کړدي يعنې حلقې جوړوي چه پکښې به هم د دنيا او دې سره د مينې کولو خبرې کوي تاسو داسې خلقو سره مه کينئ خکه چه الله تعالى ته د دغسې خلقو جوماتونو ته د راتلو ضرورت نشته - او حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله او فرمائيل چه څوک په جمات کښې کيناستو ګويا چه هغه د الله تعالى په مجلس کښې ناست دې زکه د هغه ذمه داري دا ده چه په خله باندې به سوا د خير د خبرې نه بل څه نه راولي [قرطبي][4]

**د جماتونو پنځلس آداب:** علمائې کرامو رحمهم الله د جوماتونو پنځلس ادبونه بيان کړي دي اول دا چه جمات ته ور اورسئ ، نور خلق چه وي نو سلام دې پرې واچوي ورنه ،السلام علينا وعلى عبادالله الصلحين[5]، دې او وائي [دا هله چه څوک په نفل مونځ د قرآن کريم په تلاوت او په ذکر .تسبيح کښې مصروف نه وي ګنې نو سلام اچول پرې درست نه دي - ش]

**دويم:** دا چه جومات ته په ورننوتو د کيناستو نه رومبې دوه رکعته مونځ د تحية المسجد او ګذاري [اوکړي] [ خو هله چه دغې وختونو کښې مونځ کول مکروه نه وي مثلاً خالص د نمر راختو . پريوتو يا په منځ آسمان د کيدو وخت نه وي - ش] -

**دريم:** دا چه په جومات کښې خريد و فروخت نه کوي -

**څلورم:** دا چه هلته توري . غشي او نورې وسلې نه راؤ باسي -

**پنځم:** دا چه په جومات کښې د خپل ورک شوى څيز لټون نه کوي -

**شپږم:** دا چه په جومات کښې آواز نه اوچتوي -

**اووم -** دا چه هلته دنيوي خبرې نه کوي -

**اتم:** دا چه په جومات کښې د کيناستو په خاى چا سره جګړه نه کوي -

**نهم:** داچه چرته په صف کښې ديوکس پوره خاى خالي نه وي هلته دې په ورننوتو خلق نه تنګوي.

---

[1]) جامع الأحاديث للسيوطى رقم الحديث :[١٥٨٤٣]

[2]) كنز العمال رقم الحديث:[٢٠٧٨٥]

[3]) جامع الأحاديث للسيوطى رقم الحديث :[٣٤٨٧٠]و كنز العمال رقم الحديث:[٢٣٠٩٧]

[4]) تفسير القرطبي [ ج:١٢ص:٢٧٧]

[5]) ترجمه:- سلامتيا دې وى په مونږ باندې اودالله تعالى په نيکو بندګانو باندې.

**لسم** : دا چه د مونځ ګذار مخې ته دې نه تیریږي -
**یوولسم** : دا چه په جمات کښې دې د توکلو او پوزې سونړ کولو نه پرهیز کوی -
**دولسم** : دا چه د ګوتو نه دې ټقونه نه او باسي -
**دیارلسم** : داچه د خپل بدن څه برخې سره دې لوبې نه کوی -
**څوارلسم** : دا چه د پلیتونه دې خپل ځان پاک او صفا لري. څوک ماشوم یا لیوني دې جمات ته ځان سره نه بوځی.
**پنځلسم** : دا چه هلته دې د الله تعالی ذکر ډیر ډیر کوی -
قرطبی رحمه الله چه دا پنځلس آداب او لیکل نو وې فرمائیل چه چا دا کارونه اوکړل نو هغه د جمات حق ادا کړو او جومات ور د پاره د حفاظت او امان ځای جوړ شو – ماحقر . د آداب المساجد ، په نوم د جوماتونو د آدابو او احکامو یوه مستقله رساله جوړه کړې ده د چا چه ضرورت وی هغه دې مطالعه کړی -

**کوم ځایونه او مکانونه چه د الله تعالی د ذکر . د قرآن او د دین تعلیم د پاره مخصوص وی هغه هم د جوماتونو په حکم کښې دی** :: په تفسیر بحر محیط کښې ابو حیان فرمائیلی دی چه ، فی بیوت ، لفظ په قرآن کښې عام دې څنګه چه جماتونه په دې کښې داخل دی دغسې هغه مکانونه چه خاص د قرآن او د دین د تعلیم د پاره یا وعظ و نصیحت او ذکر شغل د پاره جوړ شوې دی لکه مدرسې او خانقا وی شوی هغه هم په دې حکم کښې داخل دی د هغې ادب او عزت کول هم ضروری دی[1]

**په ، اذن الله ان ترفع ، کښې د اذن د لفظ خاص حکمت** ::د تفسیر د عالمانو په دې اتفاق دې چه دلته، اذن ، په معنی د امر او حکم دې خو سوال دا دې چه دلته ،اذن ،د لفظ د راوړلو څه مصلحت دې روح المعانی کښې باریک مصلحت ددې دا بیان کړې شوې دې چه په دې کښې نیکانو مؤمنانو ته د دې ادب تعلم او شوق ورکول دی چه دوئ دې د الله تعالی د رضا حاصلولو هر کار د پاره داسې تیار او چابک اوسیږی چه کله به ورته اجازت ورکولې شي چه دا سعادت حاصل کړی[2]
﴿وَيُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ﴾ دلته د الله تعالی دنوم په ذکر کولو کښې هر قسم ذکر شامل دې خواه هغه تسبیح حمد وغیره وئیل وی نفلی مونځونه د قرآن کریم تلاوت وعظ و نصیحت . دینی علم زده کول او تعلیم ئې ورکول او دغسې د دینی علمونو ټولې مشغلې کول پکښې دا خل دی ﴿رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ اللَّهِ﴾ په دې کښې د هغې مؤمنانو خاص صفتونه بیان کړې شویدی چه د الله تعالی د هدایت د نور د اوریدلو خاص ځایونه او د جوماتونو آباد لرونکی دی دلته د ،﴿رِجَالٌ﴾ ، په راوړلو کښې دې ته اشاره ده چه جوماتونو ته حاضریدل په اصل کښې نارینو د پاره دی د زنانو مونځ کول په کورونو کښې زیات غوره دی - په مسند احمد رحمه الله او بیهقی کښې د حضرت ام سلمه رضی الله عنها په روایت رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی :﴿خير مساجد النساء قعر بيوتهن﴾[3]
[دزنانو زیات غوره جوماتونه د هغوئ د کورونو تنګ او تیارۀ ګوټونه دی ] په دې آیت کښې د

[1]) تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآیة [ج: ۸ ص:۳۱۷]
[2]) روح المعاني تحت هذه الآیة [ج: ۱۳ ص:۴۴۷]
[3]) مسند احمد ، حدیث ام سلمة زوج النبي صلی الله علیه وسلم رقم الحدیث:[۲۷۳۰۱]

نیکانو مؤمنانو دا صفت بیان کړې شوې دې چه په تجارت او اخستل خرڅولو کښې مشغول لیدل ئ د الله تعالی د یاد نه نۀ غافله کوي خو هر کله چه په لفظ تجارت کښې بیع هم داخله ده خو په مقابله کښې ئې چه بیع راوړې شوه څکه ځنې مفسرینو رحمهم الله د تجارت لفظ عامه معنی [لین دین او خرید و فروخت و غیره] مراد اخستې ده بیا د بیع بیل بیانولو حکمت دا ښودلې دې چه د تجارت معاملې یو ډیر لوئ مفهوم لري چه فائدې او نفعې ئې په مودو کښې لاس ته راځي او د یو څیز د خرڅولو په وخت د هغې قیمت سره د نفع د نغد وصولولو فائده سمدستی او نغده وی د دې ذکر ئې په خصوصیت سره څکه اوکړو چه د الله تعالی د ذکر او مونځ په مقابله کښې هغه د یوې ډیرې لوئې فائدې هم پروا نۀ کوی -

حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه او فرمائیل چه دا آیت د بازار د خلقو په باره کښې نازل شوې دې او د دوئ رضی الله عنهم څوئ حضرت سالم رضی الله عنه فرمائیلی دی چه یوه ورځ حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه په بازار تیریدو د مونځ وخت وو خلق ئې اولیدل چه دکانونه ئې بندول او جوماتونو ته روانیدل نو دغه وخت ئې اوفرمائیل چه هم د دې خلقو په باره کښې د قرآن کریم دا ارشاد دې ﴿رِجَالٌ لَّا تُلۡهِيهِمۡ تِجَٰرَةٞ وَلَا بَيۡعٌ عَن ذِكۡرِ ٱللَّهِ﴾ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې دوه صحابه کرام رضی الله عنهم وو چه یو به تجارت کولو او بل به د کاریګرئ یعنی لوهارئ کار کولو او توري به ئې د خرڅولو د پاره جوړولې. د تاجر [سوداګر] صحابی دا حال وو چه د سودا تللو په وخت به ئې د آذان آواز تر غوږه شو نو سمدستی به ئې تله په زمکه کیښوده او مونځ د پاره به پاسیدو او د بزګ دا حال وو چه په ګرمه اوسپنه به ئې پلک د ګذار د پاره پورته کړې وو د آذان آواز به ئې چه واوریدو نو د پلک دغه ګزار راخلاصول به ئې په ځای پریښول او مونځ د پاره به روان شو دا آیت د دوئ په صفت کښې نازل شو. [قرطبي] (۱)

**اکثر صحابه کرام تجارت پیشه وو:** دې آیت نه دا هم معلو شو چه اکثر صحابه کرام رضی الله عنهم سوداګر یا کاریګر وو چه د دواړو تعلق هم بازار سره وی ولې چه سودا ګری او خرڅول د الله تعالی په یاد کښې د هغې خلقو د پاره ځنې نۀ جوړیدل صفت کیدې شي چه کار ئې سوداګری او خرڅول اخستل وی ورنه دا وئیل به بیکاره وی [ طبرانی د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړو [روح] (۲)

﴿يَخَافُونَ يَوۡمٗا تَتَقَلَّبُ فِيهِ ٱلۡقُلُوبُ وَٱلۡأَبۡصَٰرُ﴾ دا دهغې مؤمنانو آخری صفت دې چه بیان ئې په تیر شوی آیت کښې راغلې دې دې کښې دا ښودلې شوې دی چه دا حضرات هر وخت د الله تعالی په ذکر او عبادتونو کښې مشغول هم وی خو سره د هغې بې فکره او بې ویرې کیږی نۀ بلکه د قیامت د حساب ویره پرې سوره وی دا د هدایت د هغې نور کمال دې چه دالله تعالی د اړخه دوئ ته ورکړې شوې دې او په تیر شوی آیت کښې ئې بیان په دې الفاظو سره راغلې دې.

﴿يَهۡدِي ٱللَّهُ لِنُورِهِۦ مَن يَشَآءُ﴾ په آخر کښې د داسې صاحبانو د جزا بیان دې چا ته چه به الله تعالی د هغوئ د عمل زیاته غوره جزا ورکوی او بیا فرمائی: ﴿وَيَزِيدَهُم مِّن فَضۡلِهِۦ﴾ یعنی یوځې د دوئ د عمل جزا به نۀ ورکوی بلکه د الله تعالی د اړخه به ورته زیاتی انعامونه ورکولې شی ﴿وَٱللَّهُ يَرۡزُقُ مَن يَشَآءُ بِغَيۡرِ حِسَابٖ﴾ یعنی الله تعالی د څه قانون پابند نۀ دې نۀ ئې په خزانه کښې څه کمې راځی.

---

(۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۲ص:۲۷۹]

(۲) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:٤٥٣]

هغه چه چا ته اوغواړی بې حسابه روزی ورکوی تر دې پورې د هغې نیکانو مؤمنانو بیان وو د چا سینې چه د هدایت د نور د پاره تاخونه وی او په خاص ډول د هدایت نور قبلوی وروسته د هغې کفارو بیان دې د چا په فطرت کښې چه الله تعالی خو د هدایت د نور ماده ایښې وه مګر د دغې مادې روښانه کوونکی وحی الهی چه ور اورسیده نو مخ ئې ترې واړولو او د نور نه بې برخې شو چه هم داسې په تیرو کښې پاتې شو هرکله چه په دوئ کښې کافران او منکران دوه قسمه وو څکه د دوئ دوه مثالونه بیان کړې شو ، تفصیل ئې د تفسیر په خلاصه کښې بیان کړې شوې دې د دوارو مثالونو بیانولو نه پس فرمائی ﴿وَمَن لَّمْ يَجْعَلِ اللَّهُ لَهُ نُورًا فَمَا لَهُ مِن نُّورٍ﴾ دا جمله د کفارو په باره کښې هغسې ده لکه د مؤمنانو په باره کښې چه فرمائیلې شی.

﴿يَهْدِي اللَّهُ لِنُورِهِ مَن يَشَاءُ﴾ په دې جمله کښې د هدایت د نور نه د کفارو بې نصیبی بیان شوې ده چه دوئ د الله تعالی د حکمونو نه مخ واړولو او خپل نور ئې هم فنا کړو اوس کله چه د الله تعالی د هدایت د نور نه بې نصیبه شو نو نوربه د کومې راشی ؟ -

دې آیت نه دا هم معلومه شوه چه هیڅوک یوازې په دې وجه د بصیرت خاوند عالم نشی جوړیدې چا سره چه د علم او بصیرت اسباب راجمع وی بلکه دا خالص د الله تعالی په فضل کیږی چنانچه ډیر خلق په دنیوی کارونو کښې بیخی نا خبره ګنړلې او بللې شی خو د آخرت په باره کښې هغوئ ډیر عقلمند او د بصیرت خاوندان ثابت شی بل خوا د دنیا په کارونو باندې ډیر زیات پوه خلق ماهران د بصیرت او د تحقیق خاوندان منلې شی لیکن د آخرت په باره کښې ډیر بې وقوفه او جاهلان ثابتیږی - [مظهری ][1]

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُسَبِّحُ | أَنَّ اللَّهَ | أَلَمْ تَرَ | |
| تسبيح وائی | چې بیشکه الله | آیا نۀ وینی تۀ | |
| آیا تاسو ته معلومه نه ده چې ټول[مخلوقات] د | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| صَافَّاتٍ | وَالطَّيْرُ | وَالْأَرْضِ | فِي السَّمَاوَاتِ | مَن | لَهُ |
| هغه لره\|هغه ټول \|چې په آسمانونو\| او زمکه کښې دی \|او مارغان هم \|چې خورونکی وی وزرو خپلو لره | | | | | |
| الله تسبیح وائی \|که په آسمانونو کښې دی او که په زمکه کښې دی \|او الوتونکی مارغان هم چې وزرې | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِمَا | عَلِيمٌ | وَاللَّهُ | وَتَسْبِيحَهُ | صَلَاتَهُ | قَدْ عَلِمَ | كُلٌّ |
| هر یو ته \|معلومه ده \| طریقه دمونځ خپل \| او دتسبیح خپل \| او الله \|ښه خبر دې\|په هغه عملونو | | | | | | |
| ئې غوړولې وی \|هر یو ته خپله خپله دعا او خپل خپل تسبح معلوم ده\| او الله ﷻ ته ددوئ ټول عملونه | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِلَى اللَّهِ | وَالْأَرْضِ | السَّمَاوَاتِ | مُلْكُ | وَلِلَّهِ | يَفْعَلُونَ |
| او خاص الله ته | او دزمکې | دآسمانونو | بادشاهی | او الله لره ده | چې کوی ئې دوئ |
| معلوم دی \|او دآسمانونو او دزمکې بادشاهی دالله ﷻ دې \|اوهم الله ﷻ ته | | | | | |

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:٦ص: ٥٣٨](باختصار)

الْمَصِيرُ ۝ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يُزْجِي سَحَابًا ثُمَّ يُؤَلِّفُ

ورتلل دی [دټولو] | آیا نه گورې ته | چې بیشکه الله | بوزي | وریځې | بیا | یو ځائې کوی

واپس تگ دې | آیا تا نه دی لیدلی چې الله وریځې روانوی | بیا ئې په خپل مینځ کښې

بَيْنَهُ ثُمَّ يَجْعَلُهُ رُكَامًا فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلَالِهِ ۚ

توتې دهغې | بیا جوړوی هغه | لاندې باندې | پس ته وینې باران | چې را اوځي | دمنځ دهغې نه |

لاندې باندې کوی | انو ته ئې وینې چې دهغې د مینځ نه باران راوځي

وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ جِبَالٍ فِيهَا مِنْ بَرَدٍ فَيُصِيبُ

او نازلوی | دآسمان نه | دغرونو نه | چې په هغې کښې وی | گلئ | پس رسوی [الله]

او د وریځو لویو لویو گټانو نه ږلئ را وروی | انو په چاچې ئې

بِهِ مَنْ يَشَاءُ وَيَصْرِفُهُ عَنْ مَنْ يَشَاءُ ۖ يَكَادُ

دا گلئ | هغه چاته چې غواړي | او بچ کوی دا گلئ | دهغه چانه چې غواړی | نژدې وی |

اوغواړي نو په هغې ئې وروی | او دچانه چې ئې اوغواړي د هغه نه ئې لرې ساتی | دهغې

سَنَا بَرْقِهِ يَذْهَبُ بِالْأَبْصَارِ ۝ يُقَلِّبُ اللَّهُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۚ إِنَّ

بریښنا دبجلئ دهغې | چې بوزي | نظرونه دسترگو | گرځوی | الله | شپه | او ورځ | بیشکه

دبجلئ پړق داسې ښکاري | لکه چې اوس به دسترگو نظر اوسوزوي | هم الله شپې اوورځې اړوی راړوی

فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِأُولِي الْأَبْصَارِ ۝ وَاللَّهُ خَلَقَ كُلَّ دَابَّةٍ

په دې کښې | خامخا عبرت دې | دپاره دخاوندانو | دسترگو | او الله | پیدا کړو | هر جاندار ځیز |

بیشکه په دې کښې دسترگو دخاوندانو دپاره لوئې عبرت دې | او الله ﷻ هر یو ساه لرونکې

مِنْ مَاءٍ ۖ فَمِنْهُمْ مَنْ يَمْشِي عَلَىٰ بَطْنِهِ ۖ وَمِنْهُمْ

داوبو نه | نو ځینې دهغوئ نه | هغه دی | چې گرزي | په خیټه خپله باند | او ځینې دهغوئ نه |

داوبو نه پیدا کړې دې | انو بعضې په کښې داسې دی چې په خیټه باندې خوئیږي | اوځه په کښې

مَنْ يَمْشِي عَلَىٰ رِجْلَيْنِ ۚ وَمِنْهُمْ مَنْ يَمْشِي

هغه دی | چې گرزی | په دوو خپو باندې | او ځینې دهغوئ نه | هغه دی | چې گرزی |

داسې دی چې په دوو پښو گرځي | اوځه په کښې داسې دی چې په څلورو پښو

عَلَىٰ أَرْبَعٍ ۚ يَخْلُقُ اللَّهُ مَا يَشَاءُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝

په څلورو خپو باندې | پیدا کوی الله | هغه چې غواړی هغه | بیشکه الله | په هر ځیز باند | قادر دې

گرځي | الله ﷻ چې څه غواړي هغه پیدا کوی | بیشکه الله ﷻ په هر ځیز باندې قدرت لرې

## آسان ترجمه قرآن

آیا تاسو نه ګورئ چه په آسمان او زمکه کښې چه څه هم دی، د الله پاک تسبیح کوی. او هغه مارغان هم کوم چه وزرې پرانستلې الوځی. هر یو ته دخپل مونځ او تسبیح طریقه معلومه ده او الله پاک د هغوی د ټولو کارونو نه پوره خبردې. او د آسمانونو او زمکو بادشاهی د الله پاک دپاره ده. او د الله پاک طرف ته به ټول واپس کولې شی. آیا تاسو نه ګورئ چه الله پاک وریځې راولی، بیا هغه د یو بل سره یو ځائې کړی، بیا هغه د یو بل دپاسه کولو سره په درنه وریځ کښې بدله کړی. بیا تاسو ګورئ چه باران د هغې ترمینځه راوریږی. او په آسمان کښې (د وریځو په شکل کښې) چه کوم غرونه دی. الله پاک د هغې نه ګلۍ راوروی، بیا د چا دپاره چه غواړی، هغه مصیبت جوړوی، او د چا نه چه غواړی د هغې مخ واړوی. داسې معلومیږی چه د هغې چمک به د سترګو نظر یوسی. هم هغه الله پاک ورځ او شپه بدلوی. یقیناً په ټولو خبرو کښې د هغه خلقو دپاره د نصیحت سامان دې چا سره چه لیدونکې سترګې دی. او الله پاک په زمکه باندې تلونکې هر ساه لرونکې د اوبو نه پیدا کړې دې. بیا په هغې کښې څه هغه دی کوم چه په خپله خیټه باندې ګرځی څه هغه دی کوم چه په دوه خپو باندې روان وی، او څه هغه دی چه په څلورو (خپو) باندې ځی الله پاک چه څه غواړی پیدا کوی. یقیناً الله پاک په هره خبره باندې قادر دې.

## خلاصه تفسیر

اے مخاطبه ﴿اَلَمْ تَرَ﴾ [آیا تاته ] په دلیلونو اومشاهدو سره [معلومه نه شوه ﴿اَنَّ اللّٰهَ یُسَبِّحُ لَهٗ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ چه د الله تعالی پاکی بیانوی ټول هغه څه چه په اسمانونو او په زمکه کښې] مخلوقات [دی] خواه په قال سره لکه چه په ځنې مخلوقاتو کښې لیدې شی خواه په حال سره لکه چه په ټول مخلوقاتو کښې په دلالت دعقل سره معلومه ده [او] په خصوصیت سره ﴿وَالطَّیْرُ﴾ [ الوتونکی ] هم ﴿صٰٓفّٰتٍ﴾ [کوم چه ځانګونه ئې خواره کړی دی ] په هوا کښې الوزی چه ددوی دلالت په وجود دصانع باند نور هم عجیبه دې چه سره ددې دومره درنوجسمونو په هوا کښې تینګ شوی دی او ﴿کُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهٗ﴾ [ټولو] الوتونکو [ ته ] دخپلې خپلې دعا] او دالله تعالی نه التجاء ﴿وَتَسْبِیْحَهٗ﴾ [ اوخپلې تسبیح ] اوپاکئ طریقه په الهام سره [معلومه ده او] سره ددې دلیلونو بیا هم ځنې توحیدنه منی ﴿وَاللّٰهُ عَلِیْمٌۢ بِمَا یَفْعَلُوْنَ﴾ [ نو الله تعالی ته ددې ټولو خلقو دټولو کارونوپوره علم دې] په دې انکار اومخ اړولو به دوی لره سزا ورکړی ﴿وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [ او الله تعالی حکومت دې په اسمانونواو په زمکه کښې] اوس هم [او] په اخر کښې به ﴿وَاِلَی اللّٰهِ الْمَصِیْرُ﴾ [الله تعالی طرف ته ] دټولو [واپس کیدل وی] هغه وخت به هم حاکمانه تصرف دده وی چنانچه دحکومت یو اثربیانولې شی هغه داچه اے مخاطبه ﴿اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ﴾ [ آیا تاته دا خبره نه ده معلومه چه الله تعالی] ﴿یُزْجِیْ سَحَابًا﴾ یوې [وریځې لره] دبلې وریځې طرف ته [روانوی ] او ﴿ثُمَّ یُؤَلِّفُ بَیْنَهٗ ثُمَّ یَجْعَلُهٗ رُکَامًا﴾ [بیا دغې وریځو] ټولو [لره دیوبل سره ملاوئی بیادې لره قط په قط کوی ﴿فَتَرَی الْوَدْقَ یَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ﴾ بیا ته باران لره وینې چه ددغې ] وریځې [ دمینځ نه راوځی راوریږی ﴿وَیُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ جِبَالٍ فِیْهَا﴾ او ددې وریځې یعنی ددې دلویلویوحصونه ﴿مِنْۢ بَرَدٍ فَیُصِیْبُ بِهٖ مَنْ یَّشَآءُ﴾ دلئ وروی بیا دغې لره چه په چا] یعنی په خان ئې یا په مال ئې غواړی راغورزوی] چه دهغه نقصان پرې وشی ﴿وَیَصْرِفُهٗ عَنْ مَّنْ یَّشَآءُ﴾ [ او

دچانه چه غواړي دغه بچ کوی] او دهغه ځان او مال لره بچ کوی او ﴿يَكَادُ سَنَا بَرْقِهٖ﴾[ ددغې وریځې ] نه بجلۍ هم پیدا کیږي او داسې پرقیدونکې وی چه ددغې وریځې [دبجلۍ دبرق داسې معلومیږي ﴿يَذْهَبُ بِالْأَبْصَارِ﴾ چه ګویا اوس یۍ نظر لره وتښتولو] دا هم دالله تعالی دکارونونه دی او ﴿يُقَلِّبُ اللّٰهُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ﴾[ الله تعالی شپې او ورځې لره بدلوی رابدلوی] داهم منجمله دالله تعالی دکارونونه دی ﴿إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّأُولِي الْأَبْصَارِ﴾[ په دې] مجموعه ټولو[ کښې دعقل د خاوندانو دپاره] موقع د[دلیل نیولوده] چه په دې سره په مضمون دتوحید او په مضمون د[له ملك السموات والارض] باند دلیل نیولې شی ﴿وَاللّٰهُ﴾ [او الله تعالی] دا تصرف یۍ هم دې چه هغه ﴿خَلَقَ كُلَّ دَآبَّةٍ﴾[ هرتلونکې ځناور] داوچې وی اوکه ددریاب ﴿مِّنْ مَّآءٍ﴾[ داوبونه پیدا کړې دې ﴿فَمِنْهُمْ مَّنْ﴾ بیا په دغو] ځناورو[ کښې ځنې هغه] ځناور[ دی ﴿يَمْشِي عَلٰى بَطْنِهٖ﴾ کوم چه په خپله خیټه باند روان وی] لکه مار مهی ﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِي عَلٰى رِجْلَيْنِ﴾[ اوځنې په دغو کښې هغه دی کوم چه په دوه پښو روان وی] لکه انسان او مارغان الوتونکی چه په هوانه وی په زمکه ځی ﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِي عَلٰى أَرْبَعٍ﴾[اوځنې په دغو کښې هغه وی چه په څلورو] پښو [روان وی] لکه څاروی اوځنې په زیاتو پښو هم ځی اصل خبره داده چه ﴿يَخْلُقُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ﴾[ الله تعالی څه چه غواړي جوړوی ﴿إِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ بې شکه الله تعالی په هرڅه پوره قادر دې] هغه ته هیڅ ګرانه نه ده

## معارف او مسائل

﴿كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهٗ وَتَسْبِيْحَهٗ﴾ د آیت په شروع کښې ئې دا فرمائیلي دی چه د آسمانونو او زمکې تر منځه ټول مخلوق د الله تعالی په تسبیح او تقدیس کښې لګیادی حضرت سفیان رحمه الله د دې تسبیح مفهوم دا بیان کړې دې چه الله تعالی د دنیا هر څیز آسمانونه زمکه . نمر . سپوږمۍ . او ټول ګرځنده او نا ګرځینده ستوری او د زمکې عنصرونه . اور . اوبه ، خاوره ، او هوا ټول د خاص خاص کارونو د پاره پیدا کړې دی او کوم یو ئې چه د کوم کار د پاره پیدا کړې دې هغه په مخه په هغې کښې لګیا دې یوه ذره خلاف ترې نۀ کوی دغې تابعدارۍ او غاړې ایښولو ته د دې څیزونو تسبیح ونیلې شوې دې حاصل ئې دا شو چه د دې څیزونو تسبیح حالی دې د وینا نۀ دې دا څیزونه په ژبان حال سره وائی چه الله تعالی پاک او د ټولونه پورته دې او د هغۀ په تابعدارۍ کښې لګیا دی زمخشری او نورو مفسرینو رحمهم الله فرمائیلي دی چه دا هم څه لرې خبره نۀ ده چه الله تعالی په هر څیز کښې دومره پوهه او شعور ایښې دې چه په هغې سره خپل خالق او مالک پیژندې شی او دا هم څه لرې خبره نۀ ده چه الله تعالی دې څیزونو ته خاص قسم ګویائې ورکړې وی او خاص قسم تسبیح او عبادت ئې ور ازده کړی وی چه په کښې هغه لګیا او سیږي(۱) چنانچه په آخری جمله ، ﴿كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهٗ وَتَسْبِيْحَهٗ﴾ ، کښې هم دې مضمون ته اشاره موندې شی چه دالله تعالی په تسبیح او مونځ کښې د هغه ټول مخلوق لګیا دې خو د هر یو د مونځ او تسبیح طریقه او صورت مختلف دې د فرښتو طریقه جدا ده د انسان بیله ده د ټوکیدونکو څیزونو بل شان ده او د کانړو بوټو بل شان ده د قرآن کریم د یو بل آیت نه هم د دې مضمون تائید کیږي لکه فرمائی ﴿أَعْطٰى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى﴾[الله تعالی هر څیز پیدا کړو بیا ئې ورته هدایت اوکړو ] د

---

۱) تفسیر کشاف تحت هذه الآیة [ج: ۱ ص:۸۴۴]

دې هدایت مطلب دا دې چه هر یو شیز خپل خپل سپارلې کار سر ته رسولو کښې لګیا دې دغسې د دې ښیزونو د ژوند د ضرورتونو په باره کښې ئې هم ورته هدایت په دې شان کړې دې چه لوئ لوئ د عقل خاوندان ورته حیران شي د خپلو اوسیدو او تیکاویدو د پاره قسما قسم سورې او جالې جوړوي او د خپل خوراک څکاک د پاره عجیبه عجیبه انتظامونه کوي -

﴿مِنَ السَّمَآءِ مِنۡ جِبَالٍ فِيۡهَا﴾ دلته د ،سماء، نه مراد وریځ ده او ، جبال ، نه مراد غټې غټې وریځې دي، برد ، ږلۍ ته ونیلې شي.

لَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ | اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ | وَاللّٰهُ | يَهۡدِىۡ | مَنۡ يَّشَآءُ

نازل کړې دي مونږه | آیتونه حقیقت ښودونکي | او الله | هدایت کوي | هغه چاته چې غواړي |

بیشکه مونږ ښکاره حکمونه نازل کړي دي | ........ او الله ﷻ چې دچا باره کښې غواړي

اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ۝ | وَيَقُوۡلُوۡنَ | اٰمَنَّا | بِاللّٰهِ | وَبِالرَّسُوۡلِ

لارې نیغې ته | او وائي دا خلق | چې ایمان راوړو مونږه | په الله | او په رسول باندې |

نو په سمه لار ئې روان کړي | اوداخلق وائي چې مونږ په الله ﷻ او ددهٔ په رسول باندې ایمان راوړې دې

وَاَطَعۡنَا | ثُمَّ | يَتَوَلّٰى | فَرِيۡقٌ | مِّنۡهُمۡ | مِّنۡۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ

او اطاعت قبول کړو مونږه | بیا | اړوي مخ | یو ډله | دهغوئ نه | روستو ددې [اقرار] نه |

اودهغه حکمونه مومنلي دي | اخو ددې نه پس هم ددوئ یو ډله مخ اړوي

وَمَاۤ اُولٰٓئِكَ | بِالۡمُؤۡمِنِيۡنَ ۝ | وَاِذَا | دُعُوۡۤا | اِلَى اللّٰهِ | وَرَسُوۡلِهٖ

اونه دي دا خلق | مومنان | او هر کله چې | راوبللې شي هغوئ | الله ته | او رسول دهغه ته

اوداخلق ایمان نه راوړي | اوکله چې دوئ الله ﷻ او ددهٔ رسول طرفته راوبللې شي

لِيَحۡكُمَ | بَيۡنَهُمۡ | اِذَا | فَرِيۡقٌ | مِّنۡهُمۡ

دپاره ددې چې فیصله اوکړي رسول | په منځ دهغوئ کښې | نو هغه ساعت | یو ډله | دهغوئ نه

چې ددوئ ترمینځه فیصله اوکړي | نو په دغه وخت کښې دوئ کښې یو ډله مخ اړوي

مُّعۡرِضُوۡنَ ۝ | وَاِنۡ يَّكُنۡ | لَّهُمُ | الۡحَقُّ | يَاۡتُوۡۤا | اِلَيۡهِ | مُذۡعِنِيۡنَ ۝

مخ اړونکي وي | او که چرې وي | دپاره دهغوئ | حق | نو راځي هغوئ | رسول ته | فرمان منونکي

اوکه چرې ددوئ په چاڅه حق وي | انو بیا | ارسول ﷺ ته | فرمان منونکي راروان وي

اَفِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ | مَّرَضٌ | اَمِ ارۡتَابُوۡۤا | اَمۡ يَخَافُوۡنَ

ایا په زړونو دهغوئ کښې | مرض دې منافقت | یا په شك کښې پریوتي دي | یا یریږي هغوئ |

ایا ددوئ په زړونو کښې مرض دې | ایا په شک کښې اخته دي | ایا دا ویره ورسره

اَنۡ يَّحِيۡفَ اللّٰهُ | عَلَيۡهِمۡ | وَرَسُوۡلُهٗ | بَلۡ اُولٰٓئِكَ | هُمُ

چې ظلم به اوکړي الله | په هغوئ باندې | او رسول دهغه | بلکه دا خلق | په اصل کښې هم دوئ |

ده چې الله ﷻ اورسول بهٔ پرې زیاتې اوکړي | .....داسې نه ده بلکه دوئ

الظّٰلِمُوْنَ۝ اِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذَا دُعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ

ظالمان دي | بيشكه | ده خبره | دمومنانو | كله چې | راوبللې شي | الله ته

پخپله ظالمان دي |هركله چې مومنان الله ﷻ اودهغه رسول ته اوبللې شي | چې ددوئ

وَرَسُوْلِهٖ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ اَنْ يَّقُوْلُوْا سَمِعْنَا

اورسول دهغه ته |چې فيصله اوكړي رسول|په منځ دهغوئ كښې | دا چې اووائي | چې واوريده مونږه

ترمينځه فيصله اوكړي | نو ددوئ وينا بس صرف دا وي چې مونږ واوريدل او حكم

وَاَطَعْنَا ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ۝ وَمَنْ يُّطِعِ

اوومنو مونږه حكم | او دا خلق چې دي | هم دوئ | خلاصي موندونكي دي | او څوك چې حكم مني

موا ومنلو |او هم دا خلق كامياب دي |اوڅوك چې دالله ﷻ

اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَخْشَ اللّٰهَ وَيَتَّقْهِ فَاُولٰٓئِكَ

دالله |او درسول دهغه | او يريږي دالله نه | او ځان ساتي دنافرماني دهغه نه |نو دا خلق چې دي|

اودهغه درسول ﷺ تابعداري كوي| اودالله ﷻ نه ويريږي| اودهغه[دنافرمانئ] نه ځان بچ ساتي| نو هم

هُمُ الْفَآئِزُوْنَ۝ وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ

هم دوئ كامياب دي | او قسمونه خوري [منافقان] | په الله باندې| په سختو قسمونو خپلو سره |

دغه خلق بۀ كامياب وي |اوداخلق په الله ﷻ باندې سخت قسمونه خوري| [اوتاته وائي] كه ته دوئ ته څه

لَئِنْ اَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ ؕ قُلْ لَّا تُقْسِمُوْا ۚ

كه تۀ حكم اوكړې دوئ ته | نو خامخا به اوزي دوي [جهادته] | ورته اووايه | چې مۀ خورئ قسمونه

حكم اوكړې| نودوئ بۀ ضرور[جهاد دپاره دكورونونه] اووځي [دوئ ته اووايه چې قسمونه مه خورئ

طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ۝

فرمانبرداري معلومه [مطلوب ده] | بيشكه الله | خبر دې | په هغه كارونو | چې تاسو ئې كوئ |

ستاسو تابعداري معلومه ده |الله ﷻ ستاسو په ټولو كارونو ښه پوهيږي

قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا

ورته اووايه | اطاعت كوئ دالله | او اطاعت كوئ درسول | نو كه تاسو مخ اوګرځوئ |

[اې پيغمبره] ورته اووايه چې تاسودالله ﷻ اود رسول تابعداري كوئ | نوكه تاسو

فَاِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُمْ مَّا

نو بيشكه دې په رسول باندې| هغه بار | چې پركېښودې شوې دې | او دې په تاسو باندې| هغه بار

ترې بيا هم مخ واړولو |نو[پوهه شئ]چې درسول ذمه صرف خپلې ذمه داري

| تُهْتَدُوْا | وَاِنْ تُطِيْعُوْهُ | حُمِّلْتُمْ |
|---|---|---|
| چې په تاسو کیښودې شوې دې \| او که اطاعت اوکړو تاسو دهغه \| نو پخپله به سمه لار بیا مومئ \| | | |
| دی \| او ستاسو په ذمه ستاسو ذمه داری دی \| او که تاسو دهغه تابعداری اوکړه \| نو سمه لار بهٔ بیا مومئ | | |

| وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ۝ |
|---|
| او نشته په رسول ﷺ باندې \| مگر \| رسونه \| ښکاره \| |
| او د رسول په ذمه خو صرف په وضاحت سره [حکمونه] رسول دی \| |

## آسان ترجمه قرآن

بیشکه مونږ هغه آیتونه نازل کړی دی کوم چه حقیقت لره ښکاره بیانونکی دی، او الله پاک چه چا لره اوغواړی په نیغه لاره روان کړی. او دا (منافق) خلق وائی چه مونږ په الله پاک او رسول (ص) باندې ایمان راوړې دې، بیا په هغوی کښې یو ډله د دې نه پس اوړی. او دا خلق (په حقیقت کښې) مومنان نه دی او کله چه هغوی د الله پاک او دهغه د رسول (ص) طرف ته راوبللې شی چه رسول الله (ص) د هغوی ترمینځه فیصله اوکړی نو په هغوی کښې څه خلق ناڅاپه مخ واړوی. او که خپله د هغوی حق وصول کول وی نو هغوی ډیر فرمانبردار جوړیدو سره رسول الله (ص) ته راځی. آیا د دوئ په زړونو کښې څه بیماری ده، یا که دوی په شک کښې پړاتهٔ دی، یا د دوئ دا ویره ده چه الله پاک او د هغه رسول (ص) به په دوئ باندې څه ظلم اوکړی؟ نه، بلکه ظلم کونکی خو دوی خپله دی. د مومنانو خبره خو دا ده چه کله هغوی د الله پاک او رسول الله (ص) طرف ته راوبللې شی دپاره ددې چه رسول الله (ص) د هغوی ترمینځه فیصله اوکړی نو هغوی وائی چه : مونږ (حکم) واوریدلو، او او مو منلو، او هم داسې خلق دی چه کامیابیدونکی دی. او کوم خلق چه د الله پاک او د هغه د رسول (ص) فرمانبرداری اوکړی، او د الله پاک نه اویریږی، او د هغه د نافرمانئ نه ځان بچ کړی، نو هم دا خلق کامیاب دی. او دوی (یعنی منافقان خلق) په الله پاک کلک کلک قسمونه خوری چه (اې پیغمبره) که ته دوی ته حکم اوکړې نو دوی به اوځی (جهاد دپاره) (هغوی ته) اووایه چه : قسمونه مه خورئ. (ستاسو) د فرمانبردارئ ټولو ته پته ده یقین ساتئ چه تاسو څه کوئ الله پاک دهغې نه خبردې. (هغوی ته) اووایه چه : د الله پاک حکم اومنئ، او د هغه د رسول فرمانبردار شئ بیا هم که تاسو مخ واړولو نو په رسول الله (ص) باندې دومره بوج دې څومره ذمه داری چه په هغه باندې اچولې شوې ده او کوم بوج چه په تاسو باندې اچولې شوې دې د هغې ذمه دار تاسو خپله یئ. او که تاسو د هغوی (ص) فرمانبرداری اوکړئ نو هدایت به بیا مومئ، او د رسول الله (ص) فرض د دې نه زیات نه دې چه هغوی ښکاره ښکاره خبره اورسوی.

## خلاصه تفسیر

﴿لَقَدْ اَنْزَلْنَآ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ﴾ [مونږ] په حق [پوه ورکوونکی دلیلونه] دعام هدایت دپاره [نازل فرمائیلی دی او] ددې عامونه ﴿وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝﴾ [چاله چه الله تعالی غواړی دنیغې لارې طرف ته] خاص [هدایت ورته فرمائی] چه بیا هغوی علمی حقونه د

الوهيت يعنى صحيح عقيدې اوعملي حقونه يعني فرمانبرداري په خاۍ راوړي ورنه ډير محرمه پاتې كيږي ﴿وَيَقُولُونَ﴾ [او دامنافقان خلق] په ژبه سره [دعوې خوكوي﴿اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالرَّسُوْلِ وَاَطَعْنَا﴾ چه مونږ په الله تعالى ايمان راوړې دې او] دالله تعالى او درسول [حكم] په زړه سره [ منلي دي ﴿ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ﴾ بيا ددې نه پس ] هركله چه دعمل كولو او خپلې دعوې ثابتولو وخت راغې نو [ددوى نه يوه ډله ] كومه چه زياته شرارتي ده دالله تعالى او درسول دحكم نه [ مخ اړوى ] ددې وخت نه هغه صورت مراد دې چه كله ددوى په ذمه دچا حق غوښتونكې وى او دحق مالك دې منافق ته درخواست وكړى چه راځه مقدمه دنبي كريم ﷺ مخې ته وړو په دې موقع دې مخ اړوى ځكه چه دې پوه وى چه ددوى ﷺ په وړاندې هركله حق ثابت شى نو بيا به دهغې موافق دوى ﷺ فيصله كوى لكه چه ډير زر په ايت [ واذا دعوا] كښې ددې موقع دابيان راروان دې اوتخصيص ديوې فرقې سره ددې چه ټول منافقان داسې وو ځكه دې چه دغريبانوغريبان سره ددې چه په زړۀ سره به ئې بده ګڼړله خو دصفا انكار كولو همت به ئې نه شو كولې دا كار هغه خلق كوى كومو ته چه مرتبه او قوت حاصل وى ﴿وَمَآ اُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [ او داخلق بالكل ايمان نه لرى] يعنى په زړه كښې خو ديومنافق هم ايمان نشته مگر ددوى خو دغه ظاهرى بناسته شوې ايمان هم پاتې نه شو لكه چه په دې ايت كښې دى (۱)[ولقد قالوا كلمة الكفر وكفروا بعد اسلامهم] او په دې ايت كښې دى [قد كفرتم بعد ايمانكم](۲) او بيان ددې نافرمانۍ كولو دادې چه ﴿وَاِذَا دُعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ﴾ [ داخلق هركله چه دالله تعالى او دهغه درسول طرف ته په دې غرض سره راوبللې شى ﴿لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ﴾ [ په مينځ كښې فيصله وكړى ﴿اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ﴾ چه رسول] ﷺ [ ددوى ] او ددوى دمقابل خصم نو په دوى كښې يوه ډله ] هلته دحاضريدونه ﴿مُّعْرِضُوْنَ﴾ [ ډډه كوى] او خبره شاته غورزوى او دابلنه اگر چه درسول طرف ته ده مگر چونكه ددوى ﷺ فيصله دالله تعالى دحكم په بنا باندوى په دې وجه دالله تعالى طرف ته ئې هم نسبت وشو غرض كله چه ددوى په ذمه دچاحق غوښتونكې وى نو بيا دده داحالت وى ﴿وَاِنْ يَّكُنْ لَّهُمُ الْحَقُّ﴾ [ اوكه چرې] اتفاقا [ ددوى حق ] دبل چا په ذمه وى [نو سردتسليم ئې ښكته كړې وى] بې تكلفه ستاپه بلنه باندې ﴿يَاْتُوْٓا اِلَيْهِ مُذْعِنِيْنَ﴾ [ستاخواته راځى ] ځكه چه مطمئن وى چه هلته فيصله په حقه وى په دې كښې زمافائده ده وړاند ددې خلقو دمخ اړولو اونه حاضريدو وجه او اسباب په طوردځواحتمالاتوسره بيانوى او دنورو ټولو احتمالاتو نفى او ديو احتمال اثبات دې ﴿اَفِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ﴾[آيا] ددې مخ اړولو سبب دادې چه [ ددوى په زړونو كښې] ديقينى كفر[مرض دې ] يعنى ددوى دايقين دې چه ته دالله رسول نه ئې ﴿اَمِ ارْتَابُوْٓا﴾[ يادوى ] دنبوت دطرف نه [ په شك كښې پراته دى] چه درسول نه كيدو يقين خو ئې نشته مگر درسول كيدو يقين ئې هم نشته ﴿اَمْ يَخَافُوْنَ اَنْ يَّحِيْفَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُوْلُهٗ﴾ [يا ددوى سره داويره ده چه الله تعالى او دهغه رسول] ﷺ [ به په دوى ظلم وكړى ] او ددوى په ذمه چه كوم حق دې دهغې نه به ترې زيات واخلى پس واقعه دا ده چه په دې اسبابو كښې يو سبب هم [ نه ] دې ﴿بَلْ﴾ [بلكه ] اصل سبب دادې چه ﴿اُولٰٓئِكَ﴾ [ داخلق ] په دې مقدمه كښې ﴿هُمُ

(۱) ترجمه:- حالانكه هغوئ د كفر خبره كړې وه او دخپل اسلام نه پس كافر شو.
(۲) ترجمه:- تاسو خپل ځان ته مؤمنان وايئ اور كفر مو كولو.

الظّٰلِمُوْنَ﴾ [په زياتی باند دی] په دې وجه دنبی کريم ﷺ حضور ته مقدمه راوړل نه خوښوی چه مونږ به بيلاد وکړو اوباقي تير تول اسباب نه دی﴿اِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [ دمسلمانانو] شان او ددوی [ خبره﴿اِذَا دُعُوْۤا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ﴾ خوکله چه دوی لره ] په څه مقدمه وغيره کښې[دالله تعالی او دهغه رسول طرف ته راوبللې شي داده چه هغه يئ ] په خوشحالۍ خوشحالئ ﴿اَنْ يَّقُوْلُوْا﴾ [ وائی چه﴿سَمِعْنَا﴾ مونږه] ستاخبره [واوريده او] دې لره مو﴿وَاَطَعْنَا﴾[ ومنله ] او بيا فورا راضي داده نبنه ددې چه دداسې خلقو امنا واطعنا ونيل په دنيا کښې هم ربنتونی دی﴿وَاُولٰٓئِكَ﴾ [ او داسې خلق به] په اخرت کښې ﴿هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾[فلاح بيامومی او] زمونږ په نزد خوقاعده کليه داده چه ﴿وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾[ کوم سړې دالله تعالی او دهغه درسول خبره ومنی ﴿وَيَخْشَ اللّٰهَ﴾ او دالله تعالی نه ويره وکړی﴿وَيَتَّقْهِ﴾ او دهغه دمخالفت نه ځان وساتی ﴿فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ﴾ پس داسې خلق به مرادمونـدونکی وی او] دا رنګ ددې منافقانو داحال دې چه ﴿وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ﴾[هغه خلق ډير زور دار قسمونه خوری چه په الله تعالی قسم ] مونږ داسې فرمانبردار يوچه ﴿لَئِنْ اَمَرْتَهُمْ﴾ [ که ته دوی ته ] يعنی مونږته [ حکم وکړې ] چه کور وغيره هرڅه پريږدئ ﴿لَيَخْرُجُنَّ﴾[نو هغه ] يعنی مونږ [ به اوس ] هرڅه پريږدو ﴿قُلْ لَّا تُقْسِمُوْا﴾[ اوخوته ] دوی ته [ ووايه چه بس قسمونه مه خوری ] ستاسو د ﴿طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ﴾[فرمانبرداریٔ حقيقت معلوم دې] ځکه چه﴿اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ﴾ [ الله تعالی ستاسودعملونو پوره خبرلری ] اوهغه ماته ښودلې دی لکه بل ځایٔ ارشاددې [قل لاتعتذروا لن نؤمن لكم قد نبأنا الله من اخباركم][1] او[ ته] دوی ته ﴿قُلْ﴾ [ ووايه چه] په خبرو جوړولو کار نه کيږی کار وکړئ يعنی ﴿اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ﴾ [ دالله تعالی فرمانبرداری وکړئ او درسول] ﷺ [ فرمانبرداری وکړئ] وړاند الله تعالی دمضمون دشان په اهتمام سره په خپله دې خلقو ته خطاب فرمائی چه درسول الله ﷺ ددې وينا او تبليغ نه پس ﴿فَاِنْ تَوَلَّوْا﴾[ بياکه تاسو خلق] دفرمانبرداریٔ نه [ مخ اړویٔ نو پوه شئ چه ] درسول هيڅ ضرر نشته ځکه چه ﴿فَاِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ﴾[ درسول په ذمه خو دغه] کارد [تبليغ دې دکوم چه په ده بار اينبودې شوې دې ] کوم چه هغه وکړو اوغاړه ئ ازاده شوه﴿وَعَلَيْكُمْ مَّا حُمِّلْتُمْ﴾[ ستاسوپه ذمه دغه ] دفرمانبرداریٔ [کاردې دکوم چه په تاسوباراينبودې شوې دې] کوم چه تاسوپوره نه کړو پس ستاسو به ضرر وی ﴿وَاِنْ﴾[ اوکه چرې ] روګردانی ونه کړئ بلکه﴿تُطِيْعُوْهُ﴾ [تاسودده فرمانبرداری وکړه ] کوم چه عين فرمانبرداری دالله تعالی ده ﴿تَهْتَدُوْا﴾[ نو لار به بيا مومئ او] په هرحال﴿وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ﴾ درسول په ذمه صرف په صاف طور سره رسول دی وړاند تپوس به تاسو نه کيږی چه قبول موکړو اوکه نه

## معارف او مسائل

دا آيتونه په يو خاص واقعه کښې نازل شوې دی چه طبری و غيره په دې شان بيان کړې ده چه د منافقانو څخه يو سړې وو چه بشر نوم ئې وو يو يهودی سره ئې په زمکه باندې جګړه وه يهودی او

---

[1] ) ترجمه:-تاسو اووائې چې دا عذر مه پيش کوئ مونږ به تاسو هيڅکله هم ربنتونی اونه ګنړو ، الله تعالی مونږ ته ستاسو خبر راکړې دې.

وئيل چه څئ په رسول الله ﷺ باند فيصله اوکړو خو هر کله چه بشر په ناحقه وو څکه ويريدو چه هغوئ ﷺ به په حقه باندې فيصله کوی چه زما خلاف به وی څکه ئې انکار اوکړو او د دې په ځائ کعب بن اشرف يهودی ته د مقدمې وړاندې کولو د پاره او وئيل په دې باندې دا آيتونه نازل شو(۱) او په ﴿اَفِیۡ قُلُوۡبِہِمۡ مَّرَضٌ﴾ الآيه کښې د دوئ په زړونو کښې د يقينی کفر مرض يا په پيغمبرئ کښې د شک نيشتوالي چه بيان شوې دې د هغې مراد دا دې چه دغه يقينی کفر يا په پيغمبرئ کښې شک کول د رسول الله ﷺ په دربار کښې د مقدمې نه راوړلو سبب نۀ دې بلکه د دې سبب دا دې چه هغوئ ﷺ به خامخا حق فيصله کوی چه مونږ به ئې اوبائيلو اګر چه د منافقانو کفر او شک دواړه ثابت او واضح دی -

**د کاميابۍ او مراد موندو څلور شرطونه** :: ﴿وَمَنۡ یُّطِعِ اللّٰہَ وَرَسُوۡلَہٗ وَیَخۡشَ اللّٰہَ وَیَتَّقۡہِ فَاُولٰٓئِکَ ہُمُ الۡفَآئِزُوۡنَ﴾ ، په دې آيت مبارك کښې يې څلور څيزونه اوښودل او وې فرمائيل چې د دې څلورو څيزونو په پابندئ کولوسره مراد موندلې شی او په دين دنيا کښې کاميابيدې شي-

**يوه عجيبه واقعه** :: دلته په تفسير قرطبی کښې د حضرت فاروق اعظم ؓ نه يو واقعه نقل کړې شوې ده چه هغې نه د دې څلورو واړو څيزونو د مفهوم فرق او وضاحت کيدې شی واقعه داسې وه چه يوه ورځ حضرت عمر فاروق ؓ په مسجد نبوی کښې ولاړ وو ناڅاپه يو رومی دهقان د هغوئ ؓ خوا کښې ورسره نزدې او دريدو او وې وئيل ، ﴿انا اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمد رسول الله﴾ حضرت عمر فاروق ؓ تر ې تپوس اوکړو چه څه خبره ده ؟ هغه او وئيل چه څه الله د پاره مسلمان شوې يم حضرت عمر فارو ق ؓ ترې د دې وجه اوپوښتله هغه ورته او وئيل چه ما پخوانی آسمانی کتابونه ډير لوستی دی چه هغه تورات ،انجيل ، زبور، او نورې آسمانی صحيفې دې خو چه اوس م د مسلمان د خلې نه يو آيت واورېدو نو راته معلومه شوه چه دې ورکوټی آيت کښې ټول آسمانی کتابونه ځائ کړې شوې دی څکه م يقين راغې چه دا خاص د الله تعالی د اړخه دې فاروق اعظم ؓ ترې د دغې آيت په باره کښې تپوس اوکړو چه هغه کوم آيت دې نو هغه ورته هم دا آيت تلاوت کړو او ورسره ئې د دې تفسير په يو عجيبه انداز کښې داسې بيان کړو چه ، ﴿وَمَنۡ یُّطِعِ اللّٰہَ﴾ ، د الله تعالی فرائضو سره تعلق لرئ ﴿وَرَسُوۡلَہٗ﴾ ، سنت نبوی سره تعلق لرئ ، ﴿وَیَخۡشَ اللّٰہَ﴾ د تير شوی عمر په باره کښې دې او ﴿وَیَتَّقۡہِ﴾ دراتلونکی عمر په باره کښې دې کله چه انسان د دې څلورو څيزونو عمل کونکی جوړ شی نو هغۀ ته د ﴿فَاُولٰٓئِکَ ہُمُ الۡفَآئِزُوۡنَ﴾ ،زيرې ورکړې شی او فائز هغه څوک دې چه جهنم نه خلاص شی او په جنت کښې ځائ بيا مومی فاروق اعظم ؓ د دې په آوريدو او فرمائيل چه رسول الله ﷺ [د دې تصديق داسې کړې دې ] فرمائلی ئې دی ، أُوتِيتُ جوامع الكلم ،(۲)[الله تعالی راته ټول اړخيز کلمات راکړې دی ] چه په لږ الفاظو کښې بې شميره معنې او حکمتونه موجود دی [قرطبی](۳)

---

(۱) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱۳ ص:۴۷۹] وتفسير كشاف [ج: ۱ص:۸٤٦]
(۲) مشكوة المصابيح باب فضائل سيد المرسلين صلي الله عليه وسلم ، الفصل الأول :ص:۵۱۲
(۳) تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص: ۲۷۰]

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ

| وعده کړې ده الله | دهغه خلقو سره |

| او په تاسو کښې

اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ

چې ایمان راوړی | ستاسو نه | او عملونه اوکړې | نیك | چې خامخا به خلیفګان جوړوی هغوئ لره

چې چا ایمان راوړې دې | او دنیکئ کارونه کوی | نو الله تعالی ورسره وعده کړې ده | چې د

فِي الْاَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

په زمکه کښې | لکه څنګه چې ئې | خلیفګان جوړ کړی وو | هغه خلق | چې مخکښې دهغوئ نه وو

زمکې سلطنت به ورته ورکړی | لکه چې ددوئ نه وړاندې خلقو ته ئې ورکړې وو

وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِيْنَهُمُ الَّذِي ارْتَضٰى

او خامخا به مضبوط کړی | دپاره دهغوئ | دین دهغوئ | هغه دین | چې خوښ کړې دې الله |

اود دوی دپاره به هغه دین مضبوط کړی | کوم چې ئې دوئ ته خوښ کړې دې

لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ اَمْنًا

دپاره دهغوئ | او خامخا به بدل کړی حالت دهغوئ | روستو دیرې دحالت دهغوئ نه | په امن سره |

اود یرې په بدل کښې به ورته امن ورکړی | [ په دې شرط ] چې

يَعْبُدُوْنَنِيْ لَا يُشْرِكُوْنَ بِيْ شَيْـًٔا وَمَنْ كَفَرَ

پس هغوئ دبندګی کوی زما | نۀ دجوړوی شریك | زما سره | هیڅ څیز | او چاچې | کفر اوکړو |

زما عبادت کوی | هیڅوک رارسره نه شریکوی | او چا چې

بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۵۵﴾ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ

روستو ددې نه | نو دا خلق چې دی | هم دوئ فاسقان دی | او قائموی مونځ

ددې نه پس هم کفر او کړو | نو هم دغه خلق نافرمان دی | او [ای مسلمانانو] دمونځ پابندی کوئ

وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۵۶﴾

او ورکوی زکات | او حکم منئ درسول | دپاره ددې | چې په تاسو رحم اوکړې شی |

اوزکوة ورکوئ | اودرسول ﷺ حکم منئ | چې مهربانی دربانديې اوکړې شی

لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ

مۀ کوه ته ګمان | په هغه خلقو | چې هغوئ کفر کوی | چې هغوئ ګنی عاجزه کونکی دی الله لره | په زمکه کښې

دا خیال مه کوئ چې کافران به مونږ په زمکه کښې عاجزه کړی | او

| وَمَأْوٰىهُمُ | النَّارُ | وَلَبِئْسَ | الْمَصِيْرُ |
|---|---|---|---|
| او ځائې داستوګنې دهغوئ | وور دې | او خامخا بد ځائې دې | دروتلو [دغه دوزخ] |
| ددوئ د استوګنې ځائې دوزخ دې او دا ډير خراب ځائې دې | | | |

## آسان ترجمه قرآن

په تاسو کښې چه کومو خلقو ایمان راوړې دې، او چا چه نیک عملونه کړې دي، هغوی سره الله پاک وعده کړې ده چه هغوی لره به ضرور په زمکه کښې خپل خلیفه ګان جوړ کړي. څنګه چه ئې د هغه خلقو نه خلیفه ګان جوړ کړې وو چه ددوی نه مخکښې وو او د هغوی دپاره به هغه دین ته ضرور اقتدار ورکوی کوم ئې چه د هغوی دپاره غوره کړې دې اوهغوی ته چه کومه ویره پیښیږی، دهغې په بدله کښې به هغوی ته ضرور امن ورکوی. (بس) هغوی دې زما عبادت اوکړی ما سره دې یو څیز هم نه شریکوی. او کوم خلق چه د دې نه پس هم ناشکری اوکړی، نو داسې خلق به نافرمان وی او مونځ قائم کړئ، او زکوة ورکوئ، او د رسول الله (ص) فرمانبرداری کوئ، چه تاسو سره د رحمت معامله اوکړې شی. دا هرګز مه ګنړه چه کومو خلقو د کفر لاره خپله کړه، هغوی به په زمکه کښې (تیخته کولو سره مونږ) عاجز کړی. د هغوی د واپسئ ځائې دوزخ دې، او یقیناً هغه ډیره بده استوګنه ده.

## خلاصه تفسير

اے مجموعی امته ﴿وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾[په تاسو کښې چه کوم خلق ایمان راوړی اونیك عمل وکړی ] یعنی دالله تعالی دراليږلي شوی نور دهدايت کامله تابعداری وکړی [ دهغوی سره الله تعالی وعده فرمائی﴿لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ﴾ چه هغوی ته به] ددې تابعدارئ په برکت سره [په زمکه کښې حکومت ورکړی ﴿كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ لکه چه دهغوی نه وړاند] اهل هدايت [خلقو ته ئې حکومت ورکړې وو] لکه چه بنی اسرائيلو لره ئې په فرعون اووددهٔ قوم قبطیانو باند غالب کړل بیائې په شام کښې دعمالقه په شان په بهادر قوم باند دوی لره غلبه ورکړه او دمصر اودشام دحکومت ئې دوی وارثان جوړ کړل [ او] مقصود ددې حکومت ورکولو نه به داوی چه ﴿وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِيْنَهُمُ الَّذِي ارْتَضٰى لَهُمْ﴾[ کوم دین لره ] الله تعالی [ ددوی دپاره غوره کړې دې ] یعنی اسلام لکه چه په بل ايت کښې دی [رضيت لكم الاسلام دينا](۱) [هغې لره به دهغوی د] نفع داخرت د[پاره قوت ورکړی او] دوی ته به کومه چه ددښمنانونه طبعی ویره ده ﴿وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِّنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ اَمْنًا﴾[د هغوی ددې ویرې نه پس به هغوی ته هغه په امن سره بدله کړی ﴿يَعْبُدُوْنَنِيْ﴾ په دې شرط چه زما عبادت کوی ] او﴿لَا يُشْرِكُوْنَ بِيْ شَيْئًا﴾[ ماسره دهيڅ قسمه شرك ونه کړی] نه ښکاره نه پټ کوم ته چه ریاء وئیلې شی یعنی دا وعده دالله تعالی مشروطه ده په دین باند پوره ثابت قدم اوسیدو پورې او داوعده په دنیاکښې ده او په اخرت کښې په ایمان اونیك عمل چه کومه دعظیمې جزا اوهمیشه راحت وعده ده هغه ددې نه علاوه ده﴿وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ﴾ [ اوکوم سرې چه پس] دظهور[ ددې وعدې ] ناشکری وکړی] یعنی ددین نه خلاف لار اختيار کړی [نو] دداسې سرې دپاره داوعده نه ده

(۱) ترجمه:-او ما اسلام لره ستاسو دپاره دین خوښ کړو.

بلکه ﴿فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾ [ داخلق نافرمانه دی] او وعده وه فرمانبردارو دپاره په دې وجه په دنیاکښې هم ددوی سره وعده دحکومت ورکولونشته او داخرت عذاب ددې نه علاوه دي[او] اے مسلمانانو هرکله چه دایمان اونیك عمل دنیوی اودینی فائدې تاسو واوړیدې نو تاسولره پکار دی چه ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ [ دمانځه] بنه [پابندی ساتئی ﴿وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾ اوزکوات ورکوئ او] په باقی حکمونوکښې هم ﴿وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾[درسول] ﷺ فرمانبرداری کوئ ﴿لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ ددې دپاره چه په تاسو] کامل [رحم وکړې شی ] وړاندې دکفر اونافرمانئ انجام ذکر شوې دې چه اے مخاطبه ﴿لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾[ دکافرانو په نسبت داخیال مه کوه ﴿مُعْجِزِينَ فِي الْأَرْضِ﴾ چه په] څه حصه د [زمکه کښې] به وتښتی اومونږ لره [عاجزه کړی] اوزمونږ دقهر نه به بچ شی داسې نه ده بلکه دوی به په خپله عاجزه شي اومقهور اومغلوب به شي دا خو نتیجه په دنیا کښې ده [ او] په اخرت کښې ﴿وَمَأْوَاهُمُ النَّارُ ۖ وَلَبِئْسَ الْمَصِيرُ﴾[دهغوی ځائ دوزخ دي اوډیرناکاره ځائ دي

## معارف او مسائل

**شان نزول** :: قرطبی رحمه الله د ابی العالیه رحمه الله نه نقل کړې دی چه رسول الله ﷺ د وحی د نازلیدو او د پیغمبرئ اعلان کولو نه پس لس کاله په مکه مکرمه کښې پاتې شوی وو - دغلته به هر وخت د کافرانو او مشرکانو نه په ویره کښې وو د مدینې منورې د هجرت حکم چه ورته اوشو نو دغلته به هم هر وخت د مشرکانو د حملې نه په خطره کښې وو یو سړی ترې تپوس اکړو چه یا رسول الله ﷺ چرې داسې وخت به هم په مونږ راشی چه وسله به کیږدو او په امن او آرام سره به ژوند تیرولی شو ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ډیر زر داسې وخت راتلونکې دې په دغه موقعه دا آیتونه نازل شو [قرطبی و بحر ](۱) حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمائیلی دی چه په دې آیتونو کښې هغسې وعده بیان شوې ده څنګه چه د دې امت د موجو دیدو نه وړاندې الله تعالی په تورات او انجیل کښې کړې وه [بحر محیط](۲) الله تعالی رسول الله ﷺ سره د درې څیزونو وعده کړې ده ① ستاسو امت به د زمکې خلیفه ګان او حکمرانان جوړولې شی ، ② د الله تعالی د خوښې دین به غالب کړې شی او مسلمانانو ته به دومره طاقت او غلبه ورکړې شی چه دشمنانو نه به ئې ویره کول ورک شی دا وعده الله تعالی په دې شان پوره کړه چه په خپله هم د هغوئ په زمانه مبارکه کښې مکه مکرمه خیبر بحرین د عربو ټوله جزیره او د یمن ټول ملك هم د هغوئ په ذریعه فتح شو د هجر د مجوسیانو او د شام ملك د څه برخو نه هغوئ ﷺ په خپله جزیه وصول کړه د روم بادشاه ،هرقل ، د مصر او سکندرئې بادشاه مقوقس او د عمان بادشاهانو او د حبشې بادشاه نجاشی وغیره هغوئ ﷺ ته ډالئ راؤلیږلې ، د هغوئ عزت او احترام ئې اوکړو . د رسول الله ﷺ د وفات نه پس حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه چه خلیفه شو نو دغه وخت ورته راپورته شوې فتنې ئې ختمې کړې د فارس او شام ښارونو او مصر ته ئې اسلامی لښکرونه اولیږل بصری او دمشق هم د دوئ په زمانه کښې فتح شو او د نورو ملکونو هم څه برخې فتح شوې د حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه د وفات وخت چه رانژدې شو نو الله تعالی ورته په زړه کښې دا الهام اوکړو چه حضرت عمر رضی الله عنه په خپل ځائ باندې خپل خلیفه جوړ کړی چه حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه خلیفه شو نو

(۱) تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۲۷۲] و تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآیة [ج: ۸ص:۳۳۰]
(۲) تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآیة [ج: ۸ص:۳۳۰]

هغوی رضي الله عنه د خلافت انتظام داسې برابر کړو چه د پیغمبرانو ﷺ نه پس آسمان د غسې انتظام نۀ وو لیدلې هم د دوی رضي الله عنه په زمانه کښې د شام ملک ټول فتح شو د مصر پوره ملک او د فارس ملک اکثره برخه فتح شوه هم د دوی په زمانه خلافت کښې د کسری او قیصر کسرائیت او قیصریت ختم شو - د دوی رضي الله عنه نه پس چه حضرت عثمان رضي الله عنه خلیفه شو نو د مشرق نه تر مغربه پورې د اسلامی فتوحاتو دائره ډیره لویه شوه مغربی ملکونه اندلس او قبرص پورې او په مشرق بعید کښې چین پورې دا شان عراق خراسان اهواز ټول هم د دوی رضي الله عنه په زمانه کښې فتح شو په صحیح حدیث کښې د رسول الله ﷺ هغه فرمان په خلافت عثمانیه کښې پوره شو چه فرمائیلې ئې وو چه ماته د ټولې زمکې مشرقونه او مغربونه راغونډ کړې شوې او ښودلې شو چه زما د حکومت لاندې به راځی(۱) ، چنانچه د الله تعالی دغه وعده هم د دوی په خلافت کښې مکمله کړې شوه [ داټول مضمون د تفسیر ابن کثیر نه راخستې شوې دې ](۲)

په یو حدیث کښې چې راغلې دی چې زمانه پس به خلافت تر دیرشو کالو پورې چلیږی(۳) د هغې نه خلافت راشده مراد دې چې خالص د رسول الله ﷺ په نقش قدم باندې قائم وو حضرت علی المرتضی پورې او چلیدو ولې چه دا دیرش کاله د حضرت علی رضي الله عنه ترزمانې پورې پوره شو -

د حضرت جابربن سمره رضي الله عنه په روایت ابن کثیر رحمه الله دلته د صحیح مسلم دا حدیث هم نقل کړې دې چه راوی د رسول الله ﷺ نه پخپله واوریدو وې فرمائیل ، چه زما د امت کار به روان وی د دولسو خلیفه ګانو تر پاتې کیدو پورې(۴) ابن کثیر رحمه الله دې حدیث نقل کولو سره اووئیل چه د حدیث شریف په مطابق دولس خلیفه ګان به ضرور په دې امت کښې راځی خو پرله پسې راتلل ئې ضروری نۀ دی چنانچه څلور خلیفه ګان خو پرلپسې راغلې دی چه په خلفاء راشدینو مشهور دی څه وقفې نه پس حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله راغلو بیا په مختلفو وختونو کښې به خلیفه ګان دغسې تر قیامته پورې راځی آخری خلیفه د دې دولسو به امام مهدی رحمه الله وی شیعۀ چه کوم دولس خلیفه ګان په ګته کړې دی د هغې هیڅ دلیل په حدیث شریف کښې نشته بلکه دې کښې خو څنې داسې دی چه خلافت سره ئې هیڅ تعلق نۀ دې پاتې شوې(۵) دا هم ضروری نۀ ده چه د ټولو درجې دې خپل منځ کښې برابر وی او د ټولو په زمانه کښې دې امن او آرام په دنیا کښې یو شان [ برابر ] وی بلکه دا وعده په ایمان ،نیک عمل ،استقامت او مکملې تابعدارۍ باندې اوډانره وه درجې چه مختلفې وی نو د حکومتونو نوعیت او طاقت کښې به هم خامخا فرق وی چنانچه د اسلام څوارلس سوه تاریخ په دې ګواه دې چه په مختلفو زمانو او په مختلفو ملکونو کښې چرته چه مسلمانان انصاف داره او نیکان بادشاهان تیر شوې دی هر یو ته په هغوئ کښې د خپل عمل او نیکۍ په پیمانه د الله تعالی د دې وعدې برخه په ګتو ورغلې ده لکه قرآن کریم یو بل آیت کښې فرمائی - ﴿فَإِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْغَالِبُونَ﴾ ، [ هم د الله تعالی ټولې به غالب پاتې کیږی ] -

(۱) صحیح مسلم کتاب الفتن ، فصل إذا التقی المسلمان إلخ [ج:۲ص:۳۹۰]
(۲) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٦ ص:۷۷ ، ۸۷]
(۳) صحیح ابن حبان رقم الحدیث :[٦٩٤٣]
(۴) صحیح مسلم کتاب الإمارة ، باب الناس تبع لقریش [ج:۲ص:۱۱۹]
(۵) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ٦ ص: ۷۸]

**دې آيت نه د خلفائې راشدينو د خلافت او د دې نبوت چه دوئ رضي الله عنهم د الله تعالى په نزد مقبول دي**

دا آيت د رسول الله ﷺ د نبوت او پيغمبرئ دليل هم دې ولې چه په دې آيت كښې كړې شوې پيشن ګوئي هو به هو هم هغسې پوره شوه دا شان دا آيت د دې خبرې دليل هم دې چه د خلفاء راشدينو رضي الله عنهم خلافت حق او صحيح وو او دوئ رضي الله عنهم د الله تعالى په نزد مقبول وو وجه ئې دا ده چه په دې آيت كښې دالله تعالى كړې وعده هم د دوئ رضي الله عنهم په زمانه كښې په پوره شان څرګنده شوه كه د دوئ خلافت حق او صحيح اونۀ منلې شي څنګه چه د شيعۀ خيال دې نو بيا د قرآن كريم دا وعده چرته هم نۀ ده پوره شوې شيعه دا وائي چه دا وعده به د امام مهدي رحمه الله په زمانه كښې پوره كيږي نو دا د خندا خبره ځكه ده چه ګنى دې نه وړاندې زرګونه كلونه خو دې امت په ذلت او خوارئ كښې تير كړل قيامت ته نزدې صرف يو څو ورځې د امام مهدي رحمه الله حكومت به د الله تعالى د دې وعدې مطابق وي [معاذالله] -

حقيقت دادې چه د الله تعالى دا وعده په كومو شرطونو چې ايمان ،نيک عمل ، باندې اداړه كړې شوې وه دغه شرطونه هم په دغې حضراتو رضي الله عنهم كښې د ټولو نه زيات كامل او مكمل وو او د الله تعالى دغه وعده پوره پوره هم د دوئ رضي الله عنهم په زمانه كښې سر ته اورسيده دوئ رضي الله عنهم نه پس نۀ خو د ايمان او عمل هغه درجه قائمه پاتې شوه او نۀ د خلافت او حكومت هغسې قدر و عزت چرته قائم شو -

﴿وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ۝﴾ په لغت كښې د كفر معنى ناشكرى ده او په اصطلاح كښې ئې معنى د ايمان اپوټه [بې ايمانى] ده دلته دا دواړه معنې مراد اخستې كيدې شي په دې بنا د آيت معنى به داشي چه كله الله تعالى مسلمانانو سره خپله دا وعده پوره كړي ، مسلمانانو ته حكومت په ګټو ورشي د طاقت خاوندان شي ، امن او سكون بيا مومى او دين ئې مضبوط شي دې نه پس هم كه څوک كفر كوى يعنى د اسلام نه واوړي يا نا شكرى كوى چه د دې اسلامى حكومت د حكم منلونه ډډه كوى نو داسې خلق د حد نه وتونكى دى په ړومبى صورت كښې د ايمان نه او وتل او په بل صورت كښې د حكم منلو نه او وتل. كفر او ناشكرى كول هر وخت په هر حال كښې لويه ګناه ده خو كله چه اسلام او مسلمانان طاقت ، غلبه او حكومت حاصل كړي نو هغې نه پس دا څيزونه غبرګ جرم شي ،ځكه په ﴿بَعْدَ ذٰلِكَ﴾ ،سره مؤكد كړې شو . امام بغوى رحمه الله فرمائيلى دى چه د تفسير علماء وائي چه د قرآن دا جمله د ټولو نه اول په هغه چا حاوى كيږي چه خليفه حضرت عثمان رضي الله عنه ئې شهيد كړو كله چه هغوئ دا لوئ جرم اوكړو نو د الله تعالى دغه بيان شوو انعامونو كښې هم كمې راغلو په خپل منځ كښې مرګ جوبلې سره د ويرې ترهې ښكار شو چنانچه اول په خپل مينځ كښې رونړه رونړه وو خو دې نه پس ئې يو بل وژل شروع كړل[1] بغوى رحمه الله په خپل سند سره د حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه هغه خطبه نقل كړې ده چه هغوئ رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه په خلاف هله كله كښې وركړې وه د خطبې الفاظ دا دى : -

د الله تعالى فرشتې ستاسو د ښار نه چاپيره د هغې وخت راسې په حفاظت كښې مشغوله وې كله نه چه رسول الله ﷺ مدينې منورې ته تشريف راوړو او تنه پورې دغه سلسله جارى وه قسم م دې په خداى وى كه تاسو حضرت عثمان رضي الله عنه شهيد كړو نو دغه فريشتې به بيرته لاړې شى چه بيا

[1]) تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج: ٦ ص:٥٩

چرې هم رانشي قسم په خدای چا چه دوئ لره شهيد کړو هغه به د الله تعالی په وړاندې لاس پريکړې حاضريږي لاسونه به ئې بيخي نه وي او اوګنړئ چه د الله تعالی توره تر اوسه پورې په کاڼي کښې وه قسم په خدای که دغه توره د کاڼئ نه راؤوته نو هيچرې به بيا په کاڼئ کښې دننه نه کړې شي ولې چه کله يو پيغمبر شهيد شي نو د هغه په بدل کښې اويا زره کسان وژلې شي او کله چه يو خليفه شهيد ګرځې شي نو پنځه ديرش زره کسان وژلې شي . [مظهری][1] د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهيد ګئ نه چه خپل منځ کښې د وينو تويولو کومه سلسله شروع شوې وه هغه په امت کښې په مخه جاري پاتې شويده ځنګه چه د حضرت عثمان رضي الله عنه قاتلانو د خليفه جوړولو او د دين د مضبوط والی د نعمت مخالفت او ناشکری کړې وه دغسې د خارجيانو او رافضيانو ډلو دې نه پس د خلفاء راشدينو په مخالفت کښې تولې جوړ کړل هم دغې سلسلې کښې د حضرت حسين بن علی رضي الله عنه د شهيد ګئ لويه غمناکه واقعه راپيښه شوه [ الله تعالی نه د هدايت او د هغه د نعمت د شکرئي د ادا کولو سوال کوؤ .

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لِيَسْتَـْٔذِنكُمُ ٱلَّذِينَ

اے هغه کسانو | چې ايمان موراوړی دې | خامخا داجازت غواړی ستاسو نه | هغه کسان |

ائي مسلمانانو ستاسو [خادمان] مريانوله اوهغې ماشومانو له چې د عقل حد ته رسيدلی نه دی

مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُمْ وَٱلَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا۟ ٱلْحُلُمَ

چې مالکان شوی دی دهغوئ| ښی لاسونه ستاسو |او هغه کسان| چې نۀ دی رسيدلی | حد دعقل ته

پکار دی | چې په دې درې وختونو کښې ستاسونه [کورونوته د درتلو] اجازت اوغواړی [يو]

مِنكُمْ ثَلَٰثَ مَرَّٰتٍ ۚ مِّن قَبْلِ صَلَوٰةِ ٱلْفَجْرِ وَحِينَ

ستاسو نه | درې ځله | مخکښې دمانځه | دصبانه | او په هغه وخت کښی |

دسحر دمونځ نه وړاندې [او [بل] څه وخت چې تاسو دغرمې خپلې جامې اوباسئ

تَضَعُونَ ثِيَابَكُم مِّنَ ٱلظَّهِيرَةِ وَمِنۢ بَعْدِ صَلَوٰةِ ٱلْعِشَآءِ ۚ

چې ږدئ تاسو | جامې خپلې | دغرمې | او روستو | دمانځه دماسختن نه |

او [بل] د ماسخوتن د مونځ نه روستو [دا د درې وختونه ستاسو دپردې وختونه دی

ثَلَٰثُ عَوْرَٰتٍ لَّكُمْ ۚ لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌۢ

درې دپردې وختونه دی |ستاسو دپاره | نشته په تاسو باندې |اونۀ په هغوئ باندې| څه ګناه |

ددې درې يو وختونو نه سوا [ددوئ داجازت نه بغير تګ راتګ کښې ] نه په تاسو څه ګناه شته

---

[1] ) تفسير البغوی بحواله بالا، وتفسير المظهری ج:٦ ص:٥٥٣ ، ومصنف عبدالرزاق رقم الحديث [٢٠٩٦٣]

| | | | |
|---|---|---|---|
| بَعْدَهُنَّ ؕ | طَوّٰفُوْنَ | عَلَيْكُمْ | بَعْضُكُمْ |

روستو ددې وختونو نه | بار بار تلونکی راتلونکی دی | په تاسو باندې | ځینی له تاسو نه |
اونه په دوئ چې [کار دپاره تاسو] یوبل له ځئ راځئ ..........................

عَلٰى بَعْضٍ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ

په ځینو باندې| دارنګې | بیانوی الله | دپاره ستاسو | آیتونه [داحکامو] | او الله | ښه عالم دې |
دغه شان الله ﷻ تاسو ته خپل حکمونه ښکاره آوروی | او الله ﷻ ډیر ښهٔ پوهه

حَكِيْمٌ ۝ وَاِذَا بَلَغَ الْاَطْفَالُ مِنْكُمُ الْحُلُمَ

او دحکمت خاوند دې | او کله چې | اورسی هلکان | ستاسونه | حد دعقل ته |
اود صاحب دحکمت دې |او هر کله چې ستاسو هلکان بالغان شی |نو پکار دی چې هغوئ هم

فَلْيَسْتَاْذِنُوْا كَمَا اسْتَاْذَنَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ

نو په کاردی اجازت غواړی دراتلو |لکه څنګه چې |اجازت غواړی |هغه بالغان|چې مخکښې ددوئ نه وو
اجازت اوغواړی |لکه چې وړاندې [ذکر شوو] خلقو ته داجازت غوښتلو حکم شوې دې

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝

درانګې | بیانوی الله | تاسو ته آیتونه خپل | او الله | ښه پوهه دې | دحکمت خاوند دې |
دغه شان الله تاسو دپاره خپل حکمونه په وضاحت سره بیانوی |او الله په هرڅه پوهه صاحب د حکمت

وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ الّٰتِيْ لَا يَرْجُوْنَ نِكَاحًا فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ

او ناستې | دښځو نه | هغه | چې امید نهٔ لری | دنکاح کولو | پس نشته | په هغوئ باندې
دې |او زړې بوډئ ګانې ښځې چې د نکاح امید ئې پاتې نه وی په هغوئ هیڅ ګناه نشته که

جُنَاحٌ اَنْ يَّضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجٰتٍۭ

څه ګناه | چې کیږدی | جامې خپلې [یعنی څادرې لوپټې] |په دې حال کښې چې ښکاره کونکې نهٔ وی
خپلې ښایستې جامې [لکه پړونې او لوپټهٔ] کوزه کړی |خو داسې نه چې خپل ډول سنګار ښائی

بِزِيْنَةٍ ؕ وَاَنْ يَّسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَّهُنَّ ؕ وَاللّٰهُ

دښائیست خپل | او چې ځان اوساتی [دڅادر کیښودلو نه هم] | دا بهتره ده | دپاره دهغوئ | او الله |
اوکه [ددې نه هم] احتیاط اوکړی |نو دا د هغوی دپاره غوره ده| او الله هر څه آوری په هرڅه

سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝

اوریدونکې | او ښه پوهه دې |
باندې پوهه دې |

## آسان ترجمه قرآن

اې ایمان والو! کوم غلامان او وینځې چه ستاسو په ملکیت کښې دی، او په تاسو کښې چه کوم ماشومان لا بلوغ ته نه وی رسیدلی، هغوی له پکار دی چه هغوی په درې وختونو کښې (تاسو ته د راتلو دپاره) ستاسو نه اجازت غواړی: د سحر دمونځ نه مخکښې اوکله چه تاسو د ماسپخین په وخت خپلې کپړې اوباسئ او ایږدئ، اود ماسخوتن د مونځ نه پس. دا درې وختونه ستاسو د پردې وختونه دی. د دې وختونو نه علاوه په تاسو باندې هیڅ تنګی نشته، نه په هغوی باندې. هغوی هم تاسو ته ځی راځی، تاسو هم یو بل ته. الله پاک هم دغه شان آیتونه ستاسو مخې ته ښکاره ښکاره بیانوی، او الله پاک د علم هم مالک دې، او د حکمت هم. او چه کله ستاسو اولاد بلوغ ته اورسیږی، نو هغوی دې هم دغه شان اجازت اخلی څنګه چه د هغوی نه مخکښې بالغ کیدونکو اجازت اخستلو. الله پاک دغه شان خپل آیتونه ښکاره ښکاره ستاسو مخکښې بیانوی، او الله پاک د علم هم مالک دې، د حکمت هم مالک دې. او کومو مشرانو بوډئ زنانو ته چه د نکاح هیڅ توقع نه وی پاتې شوې دهغوی دپاره په دې کښې هیڅ ګناه نشته چه هغوی خپلې (زیاتې) جامې (مثلاً پړونی د نامحرمو مخکښې) لرې کولو سره کیږدی په دې شرط چه ډول نه ښکاره کوی اوکه هغوی احتیاط اوکړی نو د هغوی دپاره نوره هم زیاته غوره ده. او الله پاک هر څه اوری په هره خبره باندې پوهیږی.

## خلاصه تفسیر

﴿يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ [ اے ایماندارو] تاسو دراتلودپاره ﴿لِيَسْتَاْذِنْكُمُ الَّذِيْنَ مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ وَالَّذِيْنَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلٰثَ مَرّٰتٍ﴾ [ستاسو مملوك غلامان اوكوم چه تاسوکښې حد دبلوغ ته نه وی رسیدلی دوی لره په درې وختونو کښې اجازت اخستل پکاردی ] یوخو ﴿مِنْ قَبْلِ صَلٰوةِ الْفَجْرِ﴾ [دسحردمونځ نه وړانداو] بل ﴿وَحِيْنَ تَضَعُوْنَ ثِيَابَكُمْ مِّنَ الظَّهِيْرَةِ﴾ [کله چه غرمې ] دخوب اوخملاستودپار[خپلې] زیاتی[کپړې وباسئ او] دریم ﴿وَمِنْ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ﴾ [دماسختن دمونځ نه پس﴿ثَلٰثُ عَوْرٰتٍ لَّكُمْ﴾ دادرې وختونه ستاسو دپردې دی ] یعنی دا وختونه چونکه دعام عادت مطابق دیوازې کیدو او دارام دی په کومو کښې چه بنده په بې تکلیفئ سره پاتې کیدل غواړی او په یوازې کیدو کښې ځنې وخت پټ اندامونه هم ښکاره کیږی یا په څه ضرورت سره ښکاره کولې شی په دې وجه خپلو مملوکو غلامانووینځو لره اوخپلونابالغو بچولره پوهوئ چه بې دخبر او اجازت نه په دې وختونو کښې ستاسو خواله نه راځی او﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌ بَعْدَهُنَّ﴾ [ ددې وختونو نه علاوه نه] خوبې اجازته په راتلو اومنع نه کولو کښې [په تاسوڅه الزام شته او نه ] په بې اجازته راتلوکښې [په هغوڅه الزام شته] ځکه چه﴿طَوّٰفُوْنَ عَلَيْكُمْ بَعْضُكُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾ [دغه ډیر ستاسوخواته ځی راځی ځوك دچاخواته اوځوك دچا] پس هروخت په اجازت اخستوکښې تکلیف دې اوچونکه دا وخت دپردې نه دې په دې وجه په دې کښې خیل دستر اندامونه پټ ساتل څه ګران نه دی﴿كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ﴾ [ دغه شان الله تعالی تاسوته خپل حکمونه صفاصفابیانوی﴿وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ﴾ او الله تعالی پوه اوحکمت والا دې ﴿وَاِذَا بَلَغَ الْاَطْفَالُ مِنْكُمُ الْحُلُمَ﴾ اوڅه وخت چه په تاسو کښې ] یعنی په ازادو کښې [ هغه هلکان] دکومو چه بره حکم راغلې دې [حددبلوغ ته ورسیږی ] یعنی بالغ شی یا بالغیدو ته نزدې

شي ﴿فَلْيَسْتَأْذِنُوا﴾ [ نوهغو له هم دغه شان اجازت اخستل پکار دي ﴿كَمَا اسْتَأْذَنَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ لکه چه ددوی نه وړاندینو] یعنی ددوی نه دلوئ عمر[خلقو اجازت اخستلو ﴿كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ﴾ دغه شان الله تعالی تاسوته خپل احکام صفاصفا بیانوی ﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ او الله تعالی پوه حکمت والادې او] یو په دې خبره ځان پوهول پکاردی چه دپردې په احکاموکښې سختوالې دفتنې په ویره باند مبنی دې کوم ځائ چه دفتنې عادتا احتمال نه وی مثلا ﴿وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ اللَّاتِي﴾[کومې زړې بوډئ ګانې ښځې دکومو چه] ﴿لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا﴾ دچا[په نکاح] کښې دراتلو[ امیدنه وی] یعنی رغبت ورته نه کیږی داتفسیردې د زړیدو بوډئ کیدو ﴿فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ﴾ [دوی ته په دې خبره کښې څه ګناه نشته ﴿أَنْ يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ﴾ چه دوی خپلې ] زیاتی [کپړې ] په کوموسره چه مخ وغیره پټ وی دغیر محرم په وړاندهم [ اوباسی ﴿غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ﴾ په دې شرط چه دزینت دځایونو[ اظهانه کوی] دکوموظاهرول چه دغیرمحرم په وړاندې بالکل ناجائز دی پس مراد ددې نه مخ دواړه ورغوی او دځنوپه قول دواړه قدمونه هم په خلاف دځوانې ښځې نه چه په وجه داحتمال دفتنې ددې دمخ وغیره هم پرده ضروری ده [ او] اګر چه زړوبوډئ ګانوښځو ته دغیرمحرمو په وړاندمخ ښکاره کولو اجازت دې لیکن ﴿وَأَنْ يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَهُنَّ﴾[ ددې نه هم که احتیاط وکړی نوددوی دپاره زیاته غوره ده ] ځکه چه اول خوبې احتیاطی ده دویم بالکل دبې پردګئ بندول مقصود دی ﴿وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾[ او الله تعالی هر څه اوری په هرڅه پوهیږی

## معارف او مسائل

د سورت په شروع کښې دا بیان شوې دې چه د سورت نور زیات احکام د بې حیایئ او ناکار والې د بندیز د پاره راغلی دی او هم په دې مناسبت سره څه حکمونه خپل منځ کښې دژوند تیرولو او ملا قات کولو هم بیان شوې دې بیا د زنانو د پردې احکام بیان کړې شو۔

**د ډیر نږدې خپلوانو د پاره په خاص وختونو کښې د اجازت غوښتو حکم ::** د زیست روزګار او خپل منځ کښې د ملا قات کولو طریقې دې نه وړاندې هم د دې سورت په ۲۷، ۲۸، ۲۹، آیت کښې د اجازت غوښتو د حکمونو په عنوان سره بیان شوې دی چه د چا د ملا قات په غرض د هغهٔ په کور کښې بې اجازته مهٔ ورننوځ ځئ که د زنانه کور وی او که د نارینه وی ملا قات له راتلونکې نارینه وی او که زنانه ټولو د پاره دا واجب دی چه د چا په کور ورننوتو نه رومبې د هغهٔ نه اجازت واخلی خو د اجازت غوښتو دا حکمونه د پردو د پاره وو کوم چه بهرنه ملا قات د پاره راغلې وی . اوس په دې آیت کښې د هغې نږدې خپلوانو د اجازت غوښتو حکمونه بیان شوې دی چه عموما په یو کور کښې په یو ځائ او سیږی او هروخت هلته ځی راځی او د زنانو شرعی پرده ترې هم نهٔ وی داسې خلقو د پاره هم اګر چه دغې کورونو ته د ورننوتو په وخت دا حکم دې چه خبر دې ورکوی یا کم نا کم د قدم آواز دې لګ شان په زوره کوی یا دې غاړه تازه کوی دا اجازت اخستل دغسې نږدې خپلوانو د پاره واجب نهٔ بلکه مستحب دی چه پرینبول ئې مکروه تنزیهی دی په تفسیر مظهری کښې لیکلی دی [1]، فمن اراد الدخول فی بیت نفسه وفیه محرمات یکره له الدخول فیه من غیر استیذان

---

[1] ) ترجمه:-څوك چې خپل كور ته داخليدل غواړي او په كور كښې محرمه ښځې وی نو هغه دپاره داجازت نه بغير كور ته داخليدل ښه نه دی ځكه كيدې شی چې په كور كښې يو محرمه ښځه بربنده وی ، دا يو ضعيف احتمال دې او ددې تقاضا داده چې داسې كول ښه نه دی.

تنزیہا لاحتمال رؤیة واحدة منہن عریانة وہو احتمال ضعیف ومقتضاه التنزه [مظهری] ([1]) دا حکم خو د هغه وخت دي چه کورته نهٔ وی ورننوتی او ورننوتل غواړی بیا دا ټول سره یوځای پاتې کیږی او یو بل له ورځی دوی د پاره په دري خاص وختونو کښې چه په خلوت کښې د پاتې کیدو وختونه دی – د اجازت غوښتو یو بل حکم په دې آیتونو کښې بیان شوې دې دغه دري وختونه د صبا د مونځ نه رومبې ،د غرمې د آرام کولو په وخت او د ماسختن د مونځ نه پس وختونه دی په دې کښې نزدې خپلوان خو لاڅه کوې چه پوه نابالغ ماشومان او خپلې وینځې هم د دې اجازت غوښتو پابند ګرځولې شوې دی چه د خلوت په دغې دري وختونو کښې د دوی ځنې هم څوک دې د چا د خلوت ځای ته بې اجازته نهٔ ورځی ولې چه په دغې وختونو کښې هر انسان آزاد او بې تکلفه اوسیدل غواړی زیاتی جامې هم اوباسی او کله خپلې بی بی سره آزادی کول غواړی په داسې وختونو کښې چه یو هوښیار ماشوم یا د خپل کور څوک زنانه یا پخپله اولاد کښې څوک پری بې اجازته دغلته ورشی نو ډیر کرته به نی په داسې حالت کښې بیامومی چه د هغې په ښکاره کیدو باندې انسان شرمیږی سخت تکلیف ورته رسی او کم نا کم د دهٔ په بې تکلفۍ کښې رخنه او خنډ راپیدا کیږی څکه په دې آیتونو کښې دوی د پاره د خصوصی اجازت غوښتو حکمونه راغلې دی چه په دغې دري واړو وختونو کښې یو کس بل باندې بې اجازته نهٔ ورځی ،د دې حکمونو نه پس دا هم فرمائی چه :

﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌۢ بَعْدَهُنَّ ۚ﴾ یعنی د دغې وختونونه علاوه څه بدیت نشته چه د یو بل خواته بې اجازته ورځی ولې چه دغه وختونه عموما د هر چا د پاره په کار روزګار کښې د مشغولیدو او د پردې د اندامونو د پټولو وختونه دی چه د عادت له مخې پکښې انسان خپلې بی بی سره خاص ګډون هم نهٔ کوی.

دلته یو سوال داراپیدا کیږی چه په دې آیت کښې بالغ بنده [نارینه او زنانه] ته د اجازت غوښتو حکم ورکول خو ښکاره خبره ده مګر نابالغه ماشومان د دې حکم پابند ګرځول په ښکاره د اصولونه خلاف څکه دی چه دوی د شریعت له مخې مکلف نهٔ دی جواب ئې دا دې چه د دې مخاطب په اصل کښې بالغان [نارینه او زنانه] دی چه هغوی دې دغسې ماشومان هم پوهه کړی چه په دغسې وختونو کښې دې بې اجازته دننه نهٔ ورځی بلکه په حدیث شریف کښې راغلې دی چه ،ماشومانو ته مونځ ور ازده کوئ کله چه د اوو کالو شی او د مونځ کولو حکم ورکوئ او کله چه عمر ئې لس کاله شی نو په سختئ سره ئې د مونځ پابند کوئ که نهٔ منی نو په وهلو پرې مونځ کوئ([2]) دغسې د اجازت غوښتو اصل حکم بالغانو [نارینهٔ ،زنانهٔ] ته دې او په دغې جمله کښې داسې فرمائیل چه د دې وختونو نه علاوه په نورو وختونو کښې په تاسو باندې د دې څه ،جناح، نشته ،نودلته د ،جناح، عامه معنی [ګناه] نشی کولې بلکه کله مطلقا د بدیت په معنی راځی څکه به ئې معنی داسې کولې شی چه څه بدیت تاسو د پاره نشته ، په دې سره دا شبه ختمه شوه چه ګنې په آیت کښې ماشومان مکلف او ګناهګار ګرځولې شوې دی [بیان القرآن] ([3])

[1]) تفسیر المظهري [ج:٦ ص:۵۵۸]
[2]) سنن ابوداود، کتاب الصلاة ، باب متی یؤمر الغلام بالصلاة [ج:۱ ص:۷۷ ]
[3]) بیان القرآن تحت [ج:۸ ص: ۳۲]

**مسئله** : په دې کښې ﴿مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ﴾ راغلې دي ، معنى يې مملوك يعنى غلام او وينځه دواړه ده. مملوك غلام چې بالغ وى دشريعت تر مخه هغه د پردې نارينه په حکم کښې داخل دې ، چې مالکې لره يې هم ترې ستر کول واجب دى څنګه چې ددې بيان تير شوې دې څکه به دلته د مملوك نه مراد نابالغه غلامان يا وينځې وى چې د عادت تر مخه هر وخت کور ته دننه ځى راځى.

**مسئله** : د علماؤ او فقهاؤ اختلاف دې چه دا خاص اجازت غوښتل نزدې خپلوانو د پاره واجب حکم دې که مستحب؟بل داچه داحکم اوس هم باقى اوجارى دې اوکه منسوخ شوې دې؟ د جمهورو فقهاؤ په نزد داحکم محکم نامنسوخ دې او نارينو ،زنانو دواړو د پاره واجب دې – [قرطبى] [1]

ليکن دا ښکاره خبره ده چه د دې د واجبيدو علت او وجه هغه ده چه وړاندې بيان شوه چه په دې درې وختونو کښې عام انسان خلوت غواړى او اکثر په دې کښې خپلې بى بى سره هم څه شغل لرى کله ئې چه د پردې اندامونه هم ښکاره وى که څوک داسې احتياط اوکړى چه په دغې وختونو کښې د پردې د اندامونو پټول هم خپل عادت اوګرځوى او خپل ښځې سره مشغولتيا هم په داسې وخت کښې نۀ کوى چه د چا د راتلو احتمال پکښې وى څنګه چه عموما دا عادت جوړشويدې نو په داسې صورت کښې پرې دا هم واجب نۀ پاتې کيږى چه نزدې خپلوان او ماشومان د اجازت غوښتو پابند اوګرځوى او نۀ په نزدې خپلوانو باندې اجازت غوښتل واجب پاتې کيږى البته په هر حال کښې دا مستحب او ښه دى مګر د ډيرې زمانې راسې په دې باندې عمل کول پريښودې شوې شان دى په دې وجه حضرت ابن عباس ﷺ خو په يو روايت کښې په دې باندې د ډيرې سختې الفاظ استعمال کړې دى او په بل روايت کښې ئې په دې باندې د عمل نۀ کونکو خلقو څه عذر بيان کړې دې رومبې روايت ابن کثير ﷫ په سند د ابن ابى حاتم [2] دا نقل کړيدې چه حضرت عبد الله بن عباس ﷺ او فرمائيل درې آيتونه داسې دى چه خلقو پرې عمل کول بيخى پريخى دى ،يو دا آيت د اجازت غوښتو :﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِيَسْتَاْذِنْكُمُ الَّذِيْنَ مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ﴾ دې ،چه په کښې نزدې خپلوانو او نابالغو ماشومانو ته هم د اجازت غوښتو تعليم ورکړې شوې دې دويم آيت – واذا حضر القسمة اولو القربى ، دې چه په کښې د ميراث د ويش په وخت وارثانو ته د دې هدايت کړې شوې دې چه د ميراث د ويش په وخت که ستاسو داسې څوک خپلوان دغې موقعې ته حاضر شى چه په دغې ميراث کښې د څه برخې حقدار نۀ وى خو هغوئ ته هم څه ورکوئ چه زړه ئې مات نشى دريم آيت ﴿اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰىكُمْ﴾ ، دې چه په کښې د عزت خاوند هغه څوک په ګوته کړې شوې دې چه د ټولو نه زيات متقى او پرهيز ګار وى نن صبا خلق د دولت خاوند زيات عزت من ګنړى چه موټر ،بنګله ، نوکران ، چاکران ، ئې وى – په ځنې روايتونو کښې د دې الفاظ د حضرت ابن عباس ﷺ نه داسې هم منقول دى د درې آيتونو په معامله کښې په خلقو باندې شيطان غالب شوې دې بيا ئې اوفرمائيل چه ما خو خپلې وينځې باندې هم دا پابندى اينبې ده چه په دغې درې وختونو کښې دې بې اجازته ماته نۀ راځى. [3]

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ ج:۱۲ص:۳۰۴]
[2] ) تفسير ابن ابي حاتم رقم الحد يث :[۱۵۵۸۵]
[3] ) تفسير ابن كثير [ج: ٦ ص:۸۲]

هم د ابن ابی حاتم په حواله دویم روایت د حضرت عکرمه رضی الله عنه نه دا منقول دي چه دؤو کسانو حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه د نزدې خپلوانو د دې اجازت غوښتو په باره کښې سوال اوکړو چه په دې باندې خلق عمل نۀ کوی ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل ، ﴿ان الله ستیر یحب الستر﴾ [الله تعالی ډیر پرده لرونکې دې او د ستر پابندی کول خوښوی ] خبره داده چه د دې آیتونو د نزول په وخت زیست روزګار کول په ډیرې ساده طریقې وو نۀ د خلقو په دروازو پردې آویزان وې او نۀ په پرده لرونکی چپرکټونه وو دغې زمانه کښې به کله داسې اوشو چه د چا خپل خوئ لور یا نوکر به پرې ناڅاپه راننوتو او دغه سړې به خپلې بی بی سره مشغول وو ځکه الله تعالی د دې آیتونو په ذریعه پابندی د اجازت غوښتو او لګوله او اوس هر کله چه د کور په دروازو باندې پردې آویزان شوې پرده لرونکی چپرکټونه موجود شو ځکه خلقو دا اوګنړله چه بس دومره قدرې پرده کافی ده ، د اجازت غوښتو ضرورت پاتې نشو [ابن کثیر د دې روایت نقل کولو سره او فرمائیل دا اسناد حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه صحیح دې ](۱) په هر حال د ابن عباس رضی الله عنه د دې دویم روایت نه دومره خبره راؤخی چه کله د دغسې واقعاتو اندیښنه نۀ وی چه سړې خپلې بی بی سره مشغول وی یا به ئې د ستر اندامونه بربنډ وی او د چا د راتلو احتمال وی نو په داسې حالاتو کښې څه نرمی او سهولت شته – لیکن –

**قرآن کریم د پاکیزه زیست روزګار کولو تعلیم ورکړې دې:**: هغه داسې چه څوک دې د بل په آزادئ کښې خلل نۀ اچوی چه ټول په آرام او په تسلئ اوسیږی څوک چه د خپل کور خلق د دغسې اجازت غوښتو نۀ پابندی کوی هغوئ پخپله په تکلیف کښې پاتې کیږی خپل ضرورت او خواهش پوره کولو کښې ورته تکلیف راپیښیږی.

**د زنانؤ د ستر پردې د حکمونو تاکید او د هغې څنې یو استثناء:**: دې نه وړاندې د زنانؤ د ستر پردې احکام په دؤو آیتونو کښې په تفصیل سره راغلې دی . د هغې څنې دوه استثناګانې هم بیان کړې شوې د کټونکو په اعتبار سره زیات نزدې خپلوان خپلې وینځې او نابالغ هلکان مستثنی کړې شو او د کومو څیزونو پټول چه مقصود دی د هغې په اعتبار سره ، ښکاره زینت، مستثنی کړې شو چه پکښې پورتنې جامې ،برقعه ،پړونې په اتفاق سره مراد دی او د څنو په نزد مخ او تلی [ورغوی ]هم په دې مستثنی کښې داخل دی - دلته په وړپسې آیت کښې یوه دریمه استثناء د زنانه د شخصی حال په اعتبار سره دا اوکړې شوه چه که یو زنانه دومره بوډئ وی چه د چا نارینه خواهش ورته نۀ کیږی او نۀ هغه د نکاح کولو جوګه وی نو هغې ته د پردې په حکمونو کښې دا آسانی ورکړې شوې ده چه پردی خلق ئې هم د خپلوانو په شان شی خپل هغه اندامونه ئې ترې پټول ضروری نۀ وی کوم چه د نزدې خپلوانو نه پټول ضروری نۀ وی لکه فرمائی ﴿وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ الّٰتِیْ﴾ ، الایه ، [ مختصر تفسیر ئې پورته بیان شوې دې ] خوداسې بوډئ ګانو زنانؤ د پاره هم یو قید دا دې چه دغسې هله کولې شی چه ډول او سنګار ئې نۀ وی کړې بله خبره ئې په آخر کښې دا اوفرمائیله ﴿وَاَنْ یَّسْتَعْفِفْنَ خَیْرٌ لَّهُنَّ﴾ [ چه که د پردو نارینو مخې ته د راتلونه بیخی ځان اوساتی نو دا به ور دپاره زیات غوره وی

(۱) تفسیر ابن کثیر [ج: ۶ ص:۸۳] و رواه ابوداود في سننه (بألفاظ مختلفة)، كتاب الأدب ، باب الإستئذان في العورات الثلاث [ج:۲ص:۳۵۹ ]

لَيْسَ عَلَى الْاَعْمٰى حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْاَعْرَجِ

| نشته په ړوند باندي | څه ګناه | اونه په ګوډ باند |

| نه په ړوند سړي څه ملامتیا شته | اونه په ګډ سړي څه ملامته شته

حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْمَرِيْضِ حَرَجٌ وَّلَا عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ

څه ګناه | اونه په مريض باندي | څه ګناه | اونه په خانونو ستاسو باند |

او نه په ناروغه څه ګناه شته | اونه پخپله په تاسو څه ګناه شته

اَنْ تَاْكُلُوْا مِنْۢ بُيُوْتِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اٰبَآئِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اُمَّهٰتِكُمْ

چې اوخورئ تاسو | دکورونو ستاسو نه | يا د کورونو دپلارانو ستاسو نه | يا دکورونو دميندو ستاسو نه

که تاسو دخپلو کورونو نه خوراک خورئ | يا دپلارانو دکورونو نه | يا د ميندو دکورونو نه

اَوْ بُيُوْتِ اِخْوَانِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اَخَوٰتِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اَعْمَامِكُمْ

يا د کورونو رونړو ستاسو نه | يا دکورونو دخويندو ستاسو نه | يا دکورونو دترونو ستاسو نه |

يا د رونړو دکورونو | ياد خويندو دکورونو نه | يا د ترونو دکورونو نه | يا دپلار د خويندو [ترورګانو]

اَوْ بُيُوْتِ عَمّٰتِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ اَخْوَالِكُمْ اَوْ بُيُوْتِ خٰلٰتِكُمْ

يا دکورونو دپلار دخويندو ستاسو نه | يا دکورونو دماماګانو ستاسو نه | يادکورونو دمور دخويندو ستاسو نه

دکورونو نه |.............. يادماماګانو دکورونو نه | يا دمور د خويندو [ترورګاني] د کورونو نه

اَوْ مَا مَلَكْتُمْ مَّفَاتِحَهٗٓ اَوْ صَدِيْقِكُمْ ۭ لَيْسَ

يا دهغه کورونو نه | چې مالکان يئ تاسو | دکنجيانو دهغې | يا ددوستانو ستاسو نه | نشته

يا [دهغه کورونو نه ] چې دهغې کنجياني ستاسو په اختيار کښې وي | يا دخپلو دوستانو دکورونو نه

عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَاْكُلُوْا جَمِيْعًا اَوْ اَشْتَاتًا ۭ فَاِذَا

په تاسو باندي | ګناه | چې خوراك کوئ تاسو | يو ځاني شريك | يا جدا جدا | نو هر کله

په دې کښې هيڅ ګناه نشته | که په شريکه خوراک کوئ | او که جدا جدا کوئ

دَخَلْتُمْ بُيُوْتًا فَسَلِّمُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً

چې ننوزئ تاسو | کورونو ته | نو سلام اچوئ | په خلقو خپلو باندي | يعنى دخير دعا پرې وايئ

خو چې کله دغې کورونو ته داخلېږئ |..............نو اول خپلو خلقو ته سلام کوئ

مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُبٰرَكَةً طَيِّبَةً ۭ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ

د طرفه د الله نه | برکتناکه | پاکه | دارنګې | بيانوى الله | تاسو ته | آيتونه |

چې د دعا په شان د الله ﷻ د طرفه مقرر دې | برکتې او پاکيزه | د غه شان الله ﷻ تاسو ته خپل حکمونه

| لَعَلَّكُمْ | تَعْقِلُونَ ﴿٦١﴾ |
| --- | --- |
| دپاره ددې | چې تاسو دعقل نه کار واخلئ |
| ښکاره آوروی | چې تاسو پرې ښه پوهه شئ |

## آسان ترجمه قرآن

نه د يو نابينا دپاره په دې کښې څه گناه شته، نه په گوډ باندې څه گناه شته، نه د يو بيمار سړی دپاره څه گناه شته، او نه خپله ستاسو دپاره چه تاسو د خپلو کورونو نه څه اوخورئ يا د خپل پلار نيکهٔ د کور نه، يا د خپلو ميانو د کورونو نه، يا د خپلو ورونړو د کورونو نه، يا د خپلو خوئيندو د کورونو نه، يا د خپلو ترونو د کورونو نه، يا د خپلو ترورياٰنو د کورونو نه، يا دخپلو ماماگانو د کورونو نه، يا د خپلو خاله گانو د کورونو نه، يا دهغه کورونو نه چه دهغې چابياٰنې ستاسو په اختيار کښې وی يا د خپلو دوستانو د کورونو نه، په دې کښې هم ستاسو دپاره هيڅ گناه نشته چه ټول يو ځائې خوراک کوئ، يا بيل بيل پس کله چه تاسو کورونو ته داخل شئ نو خپلو خلقو ته سلام کوئ، چه دا د ملاقات هغه بابرکت پاکه دعا ده کومه چه د الله پاک د طرف نه راغلې ده. الله پاک هم دغه شان آيتونه ستاسو مخکښې ښکاره بيانوی، چه تاسو پوهه شئ.

## خلاصه تفسير

هر کله چه تاسو ړوند گډ بيمار غريب لره دچا خپلوان يا ملاقاتی کورته بوتلو اوڅه موړې وخوروَل وڅښول يا په خپله څه وخوری وڅښئ نو کله چه په يقينی طور دامعلومه وی چه دغه خپلوان يا ملاقاتی به زمونږ په دې خورولو خوړلو راضی وی ده نه به څه تکليف نه وی نو په دې صورتونو کښې ﴿لَيْسَ عَلَى الْأَعْمٰى حَرَجٌ﴾ [ نه په ړوند سړی باند څه تکليف شته ﴿وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ﴾ اونه دگوډ دپاره ﴿وَلَا عَلَى الْمَرِيْضِ حَرَجٌ﴾ اونه دبيمار دپاره څه تکليف شته ﴿وَلَا عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ﴾ اونه په خپله ستاسو دپاره ﴿اَنْ﴾ په دې خبره کښې ] څه تکليف شته ﴿تَاْكُلُوْا مِنْۢ بُيُوْتِكُمْ﴾ [ چه تاسو خواه په خپله ياتاسو سره ددغو معذورانو ټول [ په خپلو کورونو کښې] چه په هغو کښې دخپلې بی بی او خپل اولاد، کورونه هم راغلل [خوراك خورئ] يا په هغو کورونو کښې دکومو ذکر چه وړاند راځی خوراك خورئ يعنی نه ستاسو په خپله په خوړلو کښې څه گناه شته اونه په دغو معذورانو په خورولو کښې دغه شان چه تاسو پرې خوروئ نو دغو معذورانو لره هم په خوړلو کښې څه گناه نشته اوهغه کورونه دادی مثلاً ﴿اَوْ بُيُوْتِ اٰبَآئِكُمْ﴾ [دخپلو پلارانو په کورونو کښې] په خپله خورئ او په هغو خوروئ ﴿اَوْ بُيُوْتِ اُمَّهٰتِكُمْ﴾ [يادخپلو ميندو په کورونو کښې ﴿اَوْ بُيُوْتِ اِخْوَانِكُمْ﴾ يادخپلو ورونړو په کورونو کښې ﴿اَوْ بُيُوْتِ اَخَوٰتِكُمْ﴾ يا دخپلو خوينډو په کورونو کښې ﴿اَوْ بُيُوْتِ اَعْمَامِكُمْ﴾ يادخپلو ترونو په کورونو کښې ﴿اَوْ بُيُوْتِ عَمّٰتِكُمْ﴾ يادخپلو تروريانو په کورونو کښې ﴿اَوْ بُيُوْتِ اَخْوَالِكُمْ﴾ يادپلار دخويندو په کورونو کښې يادخپلو ماماگانو په کورونو کښې ﴿اَوْ بُيُوْتِ خٰلٰتِكُمْ﴾ يادخپلو تروريانو] دمورد خويندو [په کورونو کښې ﴿اَوْ مَا مَلَكْتُمْ مَّفَاتِحَهٗٓ﴾ ياپه هغو کورونو کښې دکومو کنجياني چه ستاسو په اختيار کښې دی ﴿اَوْ صَدِيْقِكُمْ﴾ يادخپلو دوستانو په کورونو کښې] بياپه دې کښې هم ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَاْكُلُوْا جَمِيْعًا اَوْ اَشْتَاتًا﴾ [ په تاسو څه گناه نشته چې ټول په يوځای خورئ يا جداجدا بيا ] په دې هم پوه شئ

چه ﴿فَإِذَا دَخَلْتُمْ بُيُوتًا﴾ [هر کله چه تاسو کورونو ته ننوځئ] ﴿فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنْفُسِكُمْ﴾ نو خپلو خلقو ته [ يعنې هلته چه کوم مسلمانان وي هغوی ته [سلام کوئ] کوم چه [په طور ددعا] دي او ﴿تَحِيَّةً مِنْ عِنْدِ اللَّهِ﴾ [دالله تعالی دطرف نه چه کوم مقرر دي او] په دې وجه چه ثواب پې ملاويږي ﴿مُبَارَكَةً طَيِّبَةً﴾ [ برکت والا ] اوپه وجه دمخاطب دزړه خوشحالولو [ښه شي دي ﴿كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ﴾ دغه شان الله تعالی تاسوته ] خپل [ احکام بيانوی ﴿لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ چه تاسوپوه شئ او عمل وکړئ -

## معارف او مسائل

**کورونو ته ورننوتو نه پس ځنې حکمونه او د ژوند روزګار کولو طريقې** :: په تيرو شوو آيتونو کښې د چا کورته د ورننوتو نه وړاندې د اجازت غوښتو حکم راغلي دې اوس په دې آيت کښې هغه حکمونه او طريقې بيانيږي چه په اجازت ملاويدو سره کورته د ننوتونه پس مستحب يا واجب دی د دې آيت د مفهوم او په دې کښې بيان شوو حکمونو باندې پوهيدو د پاره رومبې هغه حالتونه معلومول مناسب دي په کومو کښې چه دا آيتونه نازل شوې دی – هيڅ يو مسلمان د دې نه بې خبره نه دې چه په قرآن کريم او د رسول الله ﷺ په تعليماتو کښې د بنديګانو د حقونو د حفاظت کولو او د هغې د لحاظ ساتلو د پاره ډير تاکيدونه راغلي دی په دې بنا سخت وعيدونه او درکې راغلي دی چه د بل په مال کښې څوک بې اجازته دخل اوکړي بل اړخ ته الله تعالی د خپل آخری رسول ﷺ داسې خوش قسمته خلق ملګری کړی وو چه د الله تعالی او رسول حکم منلو ته به هروخت غوږ لرلی تيار اوسيدل د دوئ په هر حکم باندې عمل کولو د پاره به ئې خپل ټول طاقتونه لګول په قرآنی تعليماتو باندې د عمل کولو او د رسول الله ﷺ د ملګر تيا په برکت الله تعالی دا يو داسې ډله تياره کړې وه چه فرشتې پرې هم فخر کوی . صحابه کرامو ﷺ ټولو دا ښکلې او سپيځلې عادت لرلو چه د چا دمرضئ او اجازت نه بغير به ئې د هغه په مال کښې هيڅ قسم دخل نه ورکولو پوټې قدرې تکليف به ئې چا ته ورکول نه خوښول او د تقوی او پرهيز ګارئ په اعلی پيمانه باندې پورته ختل په دې باره کښې داسې څه واقعات د رسول الله ﷺ په زمانه کښې راغلل چه د هغې په وجه د آيت دا بيان شوی حکمونه نازل شو مفسرينو ﷺ دغه ټول واقعات ليکلی دی چايوه واقعه د دې شان نزول ګرځولې ده او چا بله خو صحيح خبره دا ده چه د دې ټولو کښې هيڅ بې سمونی نشته دغه ټول د څيرمې واقعات د دې شان نزول کيدې شي -

يوه واقعه هغه ده چه امام بغوی ﷫ د حضرت سعيد بن جبير ﷛ او ضحاک ﷫ [ د تفسير د امامانو ﷫ ] نه داسې نقل کړې ده چه د دنيا د خلقو عام رواج او طبيعت داسې جوړ دې چه شل ، ګډ ،او رنځور بنده سره په يو تالی خوراک کولو نه کرکه کوی صحابه کرامو ﷛ کښې چه کوم دغسې معذوران وو د هغوئ داخيال راتلو چه روغو خلقو سره به په يو تالی باندې زمونږ خوراک کول د هغوئ د تکليف باعث جوړ شي څکه به ئې دې نه ډډه کوله دغه شان د نابينا صحابه کرامو ﷛ دا جذبه وه چه په يو درستر خوان باندې شريک خوراکيان دې د بل حق نه خوری زهٔ نابينا يم د دې اندازه نهٔ شم کولې هسې نهٔ د بل حق په خپلې خيټې ته ور واچوم نو د بل حق به خراب کړم څکه به ئې په شريکه د خوراک کولو نه ځان ساتلو ، د ګډ صحابه کرامو ﷛ دا جذبه وه چه زمونږ د ګډ والی په وجه په يواځې ځان د دوؤ درېؤ کسانو ځای نيول د نورو شريکانو د تکليف باعث جوړيدل دی څکه به ئې په شريکه خوراک کولوته غاړه نهٔ ايښوه – څکه دا آيت نازل شو چه

پکښې د يو ځاى [په شريکه ] د خوراک کولو اجازت ورکړې شو او د باريک احتياط پرېښنو بسودنه ورته اوشوه چه خپل ځان دې هم نهٔ تنګوى (١) او بغوى رحمه الله په روايت د ابن جرير رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه يوه بله واقعه نقل کړې ده چه د دغې بيان شوې واقعې بل مخ دې هغه دا چه کله د قرآن کريم دا آيت نازل شو چه ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ﴾ [په ناحقه د بل مال مهٔ خورئ] نو روغو خلقو نابيناو ، رنځورو ، ګډو ، خلقو و غيره [معذورانو] سره د شريک خوراک کولو نه ځکه ډډه کول شروع کړل چه نابينا خو څه نهٔ وينى هسې نهٔ د نهٔ ليدو په وجه د هغهٔ حق ماته رانشى ناروغه خلق په دمه دمه او کم خوراک کوى هسې نهٔ د هغهٔ حق ماته را واؤ نهٔ ړى ګډ خلق په ناسته ځاى ډير نسى هسې نهٔ په شريکه ورسره زما په کيناستو هغه ته تکليف نهٔ شى چه د هغهٔ د حق تلفئ باعث جوړ شى ځکه دا آيت نازل شو چه روغ خلق دې دا باريکيانې لتهول پرېږدى په شريکه دې خوراک څکاک کوى د معمولى کمى زياتى دې دومره فکر نهٔ کوى (٢) او سعيد بن المسيب رحمه الله فرمائيلى دى چه کله به مسلمانان جهاد او غزا له تلل نو د خپل کور کنجيانې به ئې معذورانو ته حواله کولې او ورته به ئې وئيل چه زما د کور څيزونو نه تهٔ خوراک څکاک کولې شې خو سره د دې به دغې معذورانو د دغې کورونو نه خوراک نهٔ کولو چه هسې نهٔ د کور مالک د طبيعت نه خلاف ثابت نشى ځکه دا آيت نازل شو (٣) په مسند بزار کښې په صحيح سند سره د حضرت عائشې رضي الله عنها نه هم دا مضمون منقول دې چه کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم يو غزا ته تشريف اوړلو نو دعامو صحابوٌ رضي الله عنهم د زړه خواهش به دا وو چه ټول ئې په ملګر تيا کښې جهاد ته لاړ شى او د خپلو کورونو کنجيانې به ئې غريبو معذورانو ته حواله کولې دا اجازت به ئې هم ورکړو چه زمونږ د کور د څيزونو نه خوراک څکاک کولې شئ خو هرکله چه دغه معذوران هم زيات متقيان او پرهيز ګاره وو د دې فکر له وجې به ئې د کورونو نه څه خوړل څکل نهٔ کول چه هسې نهٔ د مالکانو د طبيعت نه خلاف څه څيز ئې اوخرو اوڅکو (٤)

بغوى رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دا هم نقل کړې دى چه په دې آيت کښې د لفظ ﴿صَدِيقِكُمْ﴾ [ د دوست د کور نه هم خورک څکاک کولې شئ څه باک ئې نشته ] دا د حارث بن عمرو رضي الله عنه په واقعه کښې نازل شويدې هغوئ رضي الله عنه يو ځل د رسول الله صلى الله عليه وسلم په ملګر تيا کښې جهاد له تلې وو هغوئ رضي الله عنه خپل دوست مالک بن زيد رضي الله عنه يې ته د خپل کور او د کور د خلقو خيال ساتل حواله کړل کله چه حضرت حارث رضي الله عنه واپس راغلو نو مالک بن زيد رضي الله عنه ډير کمزورې اوليدو نو تپوس ئې ترې اوکړو هغوئ رضي الله عنه جواب ورکړو چه ستاسو د کور نه م خوراک کول مناسب نهٔ ګنړل ځکه ډير کمزورې شوې يم [ دا ټول روايتونه په تفسير مظهرى کښې منقول دى ] (٥) او صفا خبره هم دا ده چه دا ټول قسمه واقعات د دې آيت شان نزول کيدې شى -

**مسئله** : څنګه چه پورته بيان شوې دى چه بې د خاص اجازته د کومو کورونو نه د خوراک څکاک اجازت ورکړې شوې دې دا د هغې وخت د عربو د عام عادت او رواج په بنياد ورکړې شوې دى

---

١) تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٦٣]
٢) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج: ١٩ ص:٢١٩] والبغوي [ج:٦ ص:٦٢ ، ٦٣]
٣) تفسير البغوى تحت هذه الآية [ج:٦ ص:٦٣، ٦٤]
٤) مجمع الزوائد (وقال روه البزار) رقم الحديث :[١١٢٣٨]
٥) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٦ص:٥٦١] والبغوي [ج:٦ ص:٦٥] والدر المثور[ج:٧ ص:٣٢٤]

چه دغې کورونو کښې به خپل خلق بې تکلفه ورتلل او خوراک څکاک به ئې پخپله هم کولو او خپل ملګرې معذوره و غیره ته به ئې د دغې کورونو نه هم خوراک څکاک ورکولو . کور به په دې هیچرې هم څه خفګان نۀ کولو بلکه خوشحالیدو به ولې چه د دوئ خپل مینځ کښې بې تکلفی او آزادي وه . لهذا اوس هم چرته چه داسې رواج او عام عادت وی نو دغسې کورونو نه به بې اجازته خوراک څکاک کول او په بل باندې خورول څکول جائز وی ، چرته چه داسې عام رواج نۀ وی او د مالک [کوربه] اجازت شکی وی نو د ښکاره اجازت ورکولو نه بغیر پخپله د خوراک څکاک کولو او بل ته د ورکولو اجازت نشته بلکه دغسې کول حرام دی ځکه چه نن صبا دغسې عادت او رواج نشته ځکه د آیت په دغه اجازت باندې عمل کول پاتې نۀ شو البته که چاته د کوربه اجازت یقینا معلوم وی نو بیا به میلمه له هم په دې اجازت عمل کول جائز وی.

**مسئله** : د ې بیان نه دا ثابته شوه چه دا حکم منسوخ شوې نۀ دې او دا خبره صحیح نۀ ده چه دا اجازت د اسلام په ابتدا کښې ورکړې شوې وو روستو منسوخ شو بلکه اجازت اوس هم جاری دې چرته چه عام رواج او عادت د خلقو دې سره سمې خوری او که سمې نې نۀ خوارۀ نو اجازت نشته او جائز نۀ دی ځکه چه بیان ئې پورته اوشو.([1])

**مسئله** : یواځې د خپلوانو کورونو سره دامعامله مخصوصه نۀ ده بلکه په هغې کورونو کښې هم عامه ده چه خپل منځ کښې ئې آزادي وی او یقینا ورته معلومه وی چه د میلمه په دغسې حرکت کولو به کوربه بده نۀ ګڼړی بلکه خوشحاله به شی [مظهری]([2]) د بیان شوو حکمونو تعلق هغې کارونو سره دې چه د چا په کور کښې په اجازت ورننوتو نه پس جائز یا مستحب وی په دغې کارونو کښې لویه مسئله د خوراک څکاک وه ځکه ئې وړاندې بیان کړه .

**مسئله** : په کور کښې د داخلیدو یو ادب دا دې چه کله په اجازت یو میلمه د چا په کور ورننوځی نو د دغې کور په مسلمانانو دې سلام اچوی ځکه چه په آیت ﴿فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ﴾ کښې فرمائی - ولې چه مسلمانان په خپلو کښې د یو کورنۍ مثال لری په ډیرو صحیح احادیثو کښې د دې تاکید او فضیلت راغلې دې چه مسلمانان دې خپل منځ کښې په یو بل سلام اچوی .([3])

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الَّذِينَ | | إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ | | |
| په اصل کښې هغه کسان دی | | بیشکه مومنان | | |
| مومنان خو بس هغه خلق دی چې الله ﷻ او ددۀ په رسول | | | | |

| عَلَىٰ أَمْرٍ جَامِعٍ | مَعَهُ | كَانُوا | وَإِذَا | وَرَسُولِهِ | بِاللَّهِ | آمَنُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په یو کار راجمع کونکی باندې | دهغه سره | وی هغوئ | اوکله چې | اوپه رسول دهغه | په الله | چې ایمان راوړی |
| باندې ایمان راوړی او کله چې درسول ملګرتیا ته په یوداسې کار پسې راټول شوی وی | | | | | | |

[1]) تفسیر المظهري[ج:٦ص:٥٦٢]
[2]) تفسیر المظهري[ج:٦ص:٥٦٢]
[3]) ددې احادیثو تفصیل دپاره اوګورئ:- سنن ابوداود، کتاب الأدب ، ابواب السلام .

لَمْ يَذْهَبُوْا حَتّٰى يَسْتَاْذِنُوْهُ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَاْذِنُوْنَكَ

نونهٔ خی هغوئ | ترهغې پورې | چی اجازت اوغواړی دهغه نه | بیشکه هغه کسان | چی اجازت غواړی ستا نه

چې دهغې دپاره تولنه شوی وی | نوترڅو چې اجازت وانخلی ترهغې واپس نه خی | [ای پیغمبره] څوک

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ۚ فَاِذَا اسْتَاْذَنُوْكَ

هم دغه کسان | هغه کسان دی | چی ایمان راوړی | په الله او په رسول دهغه | نوکله چې اجازت اوغواړی ستانه

چې ستانه اجازت اخلی نوهم دا هغه خلق چې په الله ﷻ او دهغه په رسول ایمان ساتی | پس هرکله چې دوئ

لِبَعْضِ شَاْنِهِمْ فَاْذَنْ لِّمَنْ شِئْتَ مِنْهُمْ

دپاره دځینو کارونو خپلو | نو اجازت ورکړه | هغه چاته | چی غواړې تهٔ | دهغوئ نه |

دخپل څه کار دپاره ستانه اجازت غواړی | نو په دوئ کښې چې ته چاته غواړی اجازت ورکړه

وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ لَا تَجْعَلُوْا

او بخښنه اوغواړه دپاره دهغوئ | دالله نه | بیشکه الله | ښښونکې | مهربانه دې | مهٔ ګنړئ |

اودوئ دپاره دالله ﷻ نه ښښنه غواړه | بیشکه الله ﷻ ښښونکې مهربان دې | [مومنانو] امه ګرځوئ

دُعَآءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ كَدُعَآءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا ؕ

بلنه درسول | په منځ ستاسو کښی | پشان دبلنې | دځینی ستاسو | ځینو لره |

تاسو درسول بلنه داسې معمولی مه ګنړئ | څنګه چې تاسو خپل مینځ کښې یوبل رابلئ | یقینی ده چه

قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ يَتَسَلَّلُوْنَ مِنْكُمْ لِوَاذًا ۚ فَلْيَحْذَرِ

ښهٔ پیژنی الله | هغه خلق | چی غلی غلی اوځئ | ستاسو نه | دیوبل نه پناه پناه | پس اودې یریږی |

الله ﷻ هغه خلق ښه پیژنی | چې کوم یو اړخ ته شی | نو [غلی غوندې] اوکښیږی | نو څوک چې دالله ﷻ

الَّذِيْنَ يُخَالِفُوْنَ عَنْ اَمْرِهٖٓ اَنْ تُصِيْبَهُمْ فِتْنَةٌ

هغه کسان | چی مخالفت کوی | دحکم دهغه | چی اورسیږی هغوئ ته | فتنه په دنیا کښی |

دحکم نه مخالفت کوی | هغوی دې د دې نه اویریږی چې | [دنیا کښې] پرې څه آفت راشی | یا دردناک

اَوْ يُصِيْبَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَا

یا اورسیږی هغوئ ته | عذاب دردناک | خبردار شه | چی الله لره دی | هغه ټول |

عذاب ئې [په آخرت] کښې راونیسی | یادساتئ چې په آسمانونو او په زمکه کښې

فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ قَدْ يَعْلَمُ مَآ اَنْتُمْ

چې په آسمانونو کښی دی | او په زمکه کښی دی | معلوم دې الله ته | هغه حالت | چی تاسو

چې هرڅه دی | هغه ټول دالله ﷻ دی | هغه ته ستاسو دا موجوده حالت

<table>
<tr><td>عَلَيْهِ ط</td><td>وَيَوْمَ</td><td>يُرْجَعُوْنَ</td><td>إِلَيْهِ</td><td>فَيُنَبِّئُهُمْ</td></tr>
<tr><td>په هغې باند يئ</td><td>او په کومه ورځ</td><td>چې واپس روان شي خلق</td><td>هغه ته</td><td>نو خبر به ورکړي هغوئ ته</td></tr>
<tr><td colspan="5">هم ښه معلوم دي | او په کومه ورځ چې خلق هغه ته واپس کړې شي | نو هغه بهٔ ورته هغه ټول</td></tr>
<tr><td>بِمَا</td><td>عَمِلُوْا ط</td><td>وَاللهُ</td><td>بِكُلِّ شَيْءٍ</td><td>عَلِيْمٌ ع</td></tr>
<tr><td>دهغه هر څه</td><td>چې کړي دي هغوئ</td><td>او الله</td><td>په هر څه باند</td><td>ښهٔ علم لرونکي دي</td></tr>
<tr><td colspan="5">عملونه په ګوته کړي کوم چه هغوی کړي وي | او الله ﷻ په هر څه پوهه دي</td></tr>
</table>

## آسان ترجمه قرآن

مومنان خو هغه خلق دي کوم چه الله پاک او رسول د زړه نه مني. او کله چه د رسول الله (ص) سره په څه اجتماعي کار کښې شريکيږي نو د هغوی (ص) د اجازت نه بغير نه ځي (اې پيغمبره!) کوم خلق چه ستا نه اجازت غواړي، هم دا هغه خلق دي چه الله پاک او رسول د زړه نه نۀ مني. پس چه کله هغوی د خپل څه کار دپاره اجازت اوغواړي نو په هغوی کښې چه دې چاته خوښه وي، اجازت ورکوه، او د هغوی دپاره د الله پاک نه بخښنه غواړه، يقيناً الله پاک ډير بخښنه کونکې، ډير مهربانه دې. (اې خلقو!) خپل مينځ کښې د رسول الله (ص) بللنه داسې (معمولي) مه ګنړئ څنګه چه خپل مينځ کښې يو بل رابللې الله پاک ته په تاسو کښې هغه خلق هم معلوم دي کوم چه د يو بل پناه اخستلو سره په پټه باندې لاړ شي. لهٰذا څوک چه د رسول الله (ص) د حکم خلاف ورزي کوی، هغوی له د دې خبرې نه ويره کول پکار دي چه په هغوی باندې څه آفت رانشي. يا هغوی ته څه دردونکې عذاب او نه رسيږي ياد ساتئ چه په زمکه او آسمان کښې چه څه دی، هغه د الله پاک دی. تاسو چه په کوم حالت باندې يئ. الله پاک ته هغه ښه معلوم دې، او په کومه ورځ باندې چه ټول هغه ته واپس کولې شي، هغه ورځ به هغه دوی ته اوښائي چه هغوی څه عمل کړې وو. او الله پاک ته د هرې خبرې پوره پوره علم دې.

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللهِ وَرَسُوْلِهٖ﴾ [بس مسلمانان خو هغه دی کوم چه په الله تعالی اود هغه په رسول ﷺ ايمان لری ﴿وَإِذَا كَانُوْا مَعَهٗ عَلٰى أَمْرٍ جَامِعٍ﴾ اوکله چه درسول سره په څه داسې کار جمع کيږی دکوم دپاره چه راټول کړې شوی وی ] او اتفاقا ورته که چرې دهغه ځائ نه دتلو ضرورت پيښ شي ﴿لَّمْ يَذْهَبُوْا حَتّٰى يَسْتَأْذِنُوْهُ ط﴾ [ نو ترڅو پورې چه يئ ددوی ﷺ نه اجازت نه وی اخستې ] او دوی ﷺ ورتـه اجـازت ورکـړې نـه وی دمجلس نـه [ نـه ځـی ] اے پيغمبـره ﴿إِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَأْذِنُوْنَكَ﴾ [ کوم خلق چه تانه ] په داسې موقعو باند [اجازت غواړی ﴿أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِاللهِ وَرَسُوْلِهٖ﴾ بس هغوی په الله تعالی او دهغه په رسول ايمان لری ] وړاند داسې خلقو ته داجازت ورکولو بيـان ﴿فَإِذَا اسْتَأْذَنُوْكَ لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ﴾ [نو هر کله چه دا] ايمانـدار [خلق] پـه داسې موقعوباند [دخپل څه کاردپاره تانه ] دتلو [اجازت طلب کړی ﴿فَأْذَنْ لِّمَنْ شِئْتَ مِنْهُمْ﴾ نو په دوی کښې ته دچادپاره چه ] مناسب ګنړې اواجازت ورکول [غواړې اجازت ورکوه] او چالره چه مناسب کنړې اجازت مه ورکوه ځکه چه داکيدې شی چه اجازت طلب کوونکې هغه کارلره

ضروري گڼړي دکوم دپاره چه اجازت غواړي او هغه په واقع کښې ضروري نه وي یاضروري هم وي خو دهغه په تلو سره دهغې نه دڅه لوئ ضرر پیدا کیدو خطره وي په دې وجه داجازت اونه اجازت فیصله دنبی کریم ﷺ په صوابدید باندې پرېښودې شی [او] چه اجازت ورکړې هم﴿وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللَّهَ﴾ [ته ددوی دپاره دالله تعالی نه دمغفرت دعا کوه ] خکه چه ددوی دا اجازت غوښتل اګر چه دقوی عذر په وجه سره وي مګر په دې کښې دنیاپه دین د وړاندې کولو صورت خولازمیږی چه دیوې کوتاهئ شائبه په کښې ده په دې وجه ستادعا دمغفرت پکار ده دویمه داهم ممکنه ده چه اجازت غوښتونکی دکوم عذر ضرورت چه قوی ګڼړلې وي اجازت ئې اخستې وي په هغې کښې ددهٔ نه اجتهادی خطاء شوې وي چه غیرضروری ئې ضروری ګڼړلې وي او دا اجتهادی خطاء داسې وي چه په لږ غور اوفکر سره رفع کیدې شوه نو په داسې صورت کښې دغور اوفکر کمی هم یوه کوتاهی ده په دې وجه استغفار ته ضرورت شو ﴿إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ [بیشکه الله تعالی بخښنې والا مهربان دې ] چونکه دهغه نیت نیك وو په دې وجه په داسې باریکاتو مؤاخذه نه فرمائی﴿لَا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ﴾[تاسو خلق درسول] ﷺ [بلنې لره ] هرکله چه هغه د اسلامی ضرورت دپاره تاسولره جمع کړی [داسې] معمولی بلنه [ مه ګڼړئ ﴿كَدُعَاءِ بَعْضِكُم بَعْضًا﴾ لکه چه تاسوپه خپل مینځ کښې یو بل لره رابلئ] چه که غواړی راشی ورنه رانه شی بیا چه راشی نو هم چه ترڅو پورې غواړی ناست وی کله چه غواړی نو پاڅی او بې اجازته خی درسول الله ﷺ بلنه داسې نه ده بلکه ددهٔ داحکم منل واجب دی او بې اجازته واپس تلل حرام دی اوکه څوك بې اجازته لاړو نو داخو ممکنه ده چه دنبی کریم ﷺ نه ددهٔ تلل پټ پاتی شی لیکن دا یاد ساتئ چه ﴿قَدْ يَعْلَمُ اللَّهُ الَّذِينَ يَتَسَلَّلُونَ مِنكُمْ لِوَاذًا﴾[ الله تعالی هغه خلقو لره] ښه [پیژنی کوم چه ] دبل نه [ په پناه کښې شی اوتاسونه ] دمجلس نبوی نه [ پټ لاړشی﴿فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ﴾ نو کوم خلق چه دالله تعالی دحکم ] کوم چه په واسطه دنبی کریم ﷺ ورته ورسیږی [ مخالفت کوی ﴿أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ﴾دوی له ددې نه ویره پکار ده چه په دوی ] په دنیاکښې [څه آفت راپریوځی﴿أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ یا په دوی ] په اخرت کښې [ څه دردناك عذاب نازل شی ] او داهم ممکنه ده چه په دنیا اواخرت دواړو کښې عذاب وي او داهم [یادساتئ ﴿أَلَا إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ چه څه په اسمانونو کښې اوپه زمکه کښې دی ټول دالله تعالی دی ﴿قَدْ يَعْلَمُ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ﴾ الله تعالی هغه حالت لره هم پیژنی په کوم چه تاسو ] اوس [ یئ ﴿وَيَوْمَ يُرْجَعُونَ إِلَيْهِ﴾ او هغې ورځې لره هم په کومه کښې چه به ټول هغه ته ] دوباره ژوندی کړې شئ [ راوستې شئ ﴿فَيُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا﴾ نو هغه به ټول هغه کارونه دوی ته وښائی کوم چه دوی کړی وو ] اوستاسو دموجوده حالت او قیامت دورځې څه تخصیص نشته ﴿وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ [الله تعالی]خو [هرڅه پیژنی ]

## معارف او مسائل

**خاص د رسول الله [ص] د مجلس او د عام ژبت روز ګار کولو څنې طریقې او حکمونه** :: په دې آیتونو کښې دوه حکمونه ورکړې شوې دی رومبې حکم دا دې چه کله رسول الله ﷺ څه دینی کار [جهاد و غیره ] د پاره مو راجمع کوی نو د ایمان تقاضا دا ده چه ټول راجمع شئ او بیا د دغې مجلس مبارك نه دې څوك بې اجازته نهٔ اوځی چا ته چه څه ضرورت راپیښ شی نو رسول الله

ﷺ نه دي اجازت غواړي په دې موقع هغوی ﷺ ته هدایت ورکړې شوې دې چه څه خاص خنډ او ضرورت نهٔ وی نو اجازت دې ورکوی په دې ترڅ کښې د هغې منافقانو بدی بیان شوې ده چه د ایمانی تقاضا په خلاف بدنامی نه د ځان ساتلو په غرض حاضر خو شی بیا د چا اړ کښې په غلا باندې دغه مجلس مبارک نه اووځی -

دا آیت د غزوهٔ احزاب په موقع باندې نازل شوې دې کله چه د عربو مشرکانو او نورو ډلو په شریکه یو موټی شو او په مدینه منوره باندې ئې حمله اوکړه د صحابه کرامو رضي الله عنهم په مشوره باندې رسول الله ﷺ د دغې حملې د ایسارولو د پاره خندق کنستې وو ځکه دغې جهاد ته غزوهٔ غندق هم ونیلې شی چه په شوال ،پنځمه هجری، کښې راپېښه شوې وه[1] - د بیهقی او ابن اسحاق د روایت مطابق دغه وخت رسول الله ﷺ پخپله او ټول صحابه کرام رضي الله عنهم په خندق کنیستو کښې لګیا وو خو منافقانو اول دغلته په راتلو کښې سستی او چل ول کولو که را به غلل نو معمولی کار به ئې اوکړو او بیا به په پټه دغې ځاې نه اووتلو بل خوا به مؤمنانو ښه په مړانې سره د خندق په کنستو کښې لګیا وو که څه مجبوری او ضرورت به ئې پیښ شو نو د رسول الله ﷺ په اجازت به دغې ځاې نه تلل په دې موقعه دا آیت نازل شو [مظهری ][2]

**یو سوال او جواب** :: دې آیت نه معلومیږی چه د رسول الله ﷺ د مجلس مبارک نه دهغوی د اجازت نه بغیر تلل حرام دی حالانکه داسې ډیرو مجلسونو مبارکو نه ډیر صحابه کرام بې اجازته تلی دی ؟ - جواب ئې دا دې چه دغه د عامو مجلسونو حال وو خو دلته د خاص مجلس په باره کښې د آیت حکم داسې دې چه ضرورت د پاره د رسول الله ﷺ په بلنه راجمع کړې شوی وو چه هغه د خندق کنستو ضرورت وو لکه په ﴿عَلَىٰ أَمْرٍ جَامِعٍ﴾ کښې چه ورته اشاره شویده لهذا داسې خاص مجلسونو مبارکو نه په اجازت د تللو حکم دې بې اجازته تلل ترې ناجائز دی د عامو مجلسونو مبارکو بې اجازته وتل هم جائز دی

**(أَمْرٍ جَامِعٍ) نه څه مراد دې ؟** ::په دې باره کښې مختلف قولونه دی خو ډاګیزه خبره دا ده چه ، ﴿أَمْرٍ جَامِعٍ﴾ نه مراد هغه کار دې کوم د پاره چه رسول الله ﷺ خلق راجمع کول ضروری ګنړی او څه خاص کار د پاره ئې راجمع کړی لکه په غزوهٔ احزاب کښې چه دخندق کنستو کار وو [قرطبی،مظهری][3]

**داحکم د رسول الله ﷺ مجلس مبارك سره خصوصیت لري او که عام دې ؟** په اتفاق د فقهاؤ رحمهم الله سره هر کله چه دا حکم د یو دینی او اسلامی ضرورت دپاره جاری کړې شوې دې چه په هره زمانه کښې را پیښیدې شی ځکه د رسول الله ﷺ مجلس مبارک سره خصوصیت نهٔ لری بلکه د مسلمانانو هر یو امیر چه د داسې دینی کار د پاره د راجمع کیدو بلنه مسلمانانو ته ورکړی کوم چه د

---

[1] ) تفسير القرطبي تحت هذه الاية [ ج:۱۲ص:۳۲۱]

[2] ) تفسير المظهري[ج:٦ص: ۵٦۵ ، ۵٦٦] و دلائل النبوة للبيقهي باب تخريب الأحزاب ، إلخ ، رقم الحديث [۱۲۹۳]

[3] ) تفسير المظهري[ج:٦ص: ۵٦٦] و تفسير القرطبي [ ج:۱۲ص:۳۲۰]

حکومت چلولو انتظام په لاس کښې لرې نو د هغهٔ په حکم باندې عمل کول واجب دی او بغیر اجازته ترې تلل ناجائز دی [ قرطبی ، مظهری او بیان القرآن ](۱) د رسول الله ﷺ د مجلس مبارک د پاره خو دا حکم زیات مضبوط او د دې مخالفت کول ډاګیزه بد بختی ده څنګه چه منافقانو نه صادره شوه د اسلامی زیست روز ګار د طریقو له مخې خو دا حکم د ټولو او عامو مسلمانانو د پاره هم کم نا کم مستحب او ښه ضرور دې چه په یو اجتماعی معامله باندې د غور کولو یا پرې د عمل کولو د پاره مسلمانان راجمع شوې وی هغې نه د مجلس د امیر په اجازت سره تلل پکار نه دی - دویم حکم په آخری آیت کښې دا ورکړې شوې دې چه ﴿لَا تَجْعَلُوْا دُعَآءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ﴾ د دې یو تفسیر خو د تفسیر په خلاصه کښې بیان کړې شو چه ، ﴿دُعَآءَ الرَّسُوْلِ﴾ نه مراد د رسول الله ﷺ رابلل دی(۲) [ چه د نحوی قاعدې مطابق فاعل ته اضافت شوې دې ] د آیت معنی دا شوه چه د رسول الله ﷺ رابلل د عامو خلقو د رابللو په شان مهٔ ګنړئ چه تاسو به ګنی په کښې د راتلو او نهٔ راتلو اختیار لرئ بلکه ستاسو راتلل به فرض شی چه بغیر اجازت نه به ترې تلل حرام وی د آیت د روانئ او وړاندې وروستو سره دا تفسیر زیات مناسب لګی څکه تفسیر مظهری او بیان القرآن هم دا تفسیر اختیار کړې دې د دې یو بل تفسیر حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه ابن کثیر او قرطبی و غیره نقل کړې دې چه ﴿دُعَآءَ الرَّسُوْلِ﴾ نه مراد دا دې چه بل څوک رسول الله ﷺ لره بلی [ په دې بنا به د نحوی ترکیب په لحاظ د اضافت مفعول ته وی] د دې تفسیر په بناء به مطلب دا وی چه کله تاسو رسول الله ﷺ لره د ضرورت په غرض بلئ یا ورته خطاب کوئ نو د عامو خلقو په شان ئې په نوم مبارک [ محمد ] مهٔ بلئ څکه چه دا بې ادبی ده بلکه د ادب او تعظیم په الفاظو [ یارسول الله ﷺ ، یا نبی الله ﷺ ] سره ئې بلئ د دې مطلب د رسول الله ﷺ ادب او تعظیم کول دی چه بې ادبی ترې او نشی او هغوئ ﷺ ته پرې څه خفګان او نهٔ رسی د دې مثال به د سورت حجرات د دې حکم پشان وی مثلاً ﴿وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ(۳)﴾ یعنی هغوئ ﷺ سره خبره هم په ادب سره کوئ د ضرورت نه زیات په اوچت آواز سره خبرې مهٔ کوئ څنګه چه عام خلق خپل منځ کښې خبرې کوی ، او مثلاً دا چه کله دوئ ﷺ په خپل کور مبارک کښې تشریف لرې نو د بهر نه په آواز کولو سره ئې مهٔ رابلئ بلکه د دې انتظار کوئ چه پخپله بهر ته تشریف راوړی هله ورته خپل عرض معروض وړاندې کړئ چنانچه په ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يُنَادُوْنَكَ مِنْ وَّرَآءِ الْحُجُرٰتِ(۴)﴾ کښې هم د دې بیان دې -

**خبرداری** : د دې دویم تفسیر نه د مشرانو او بزرګانو یو عام ادب کول هم داسې معلو میږی چه هغوئ په نوم سره بلل او آواز کول بې ادبی ده د ادب په الفاظو سره ئې مخاطب کول پکار دی -

---

۱) تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۳۲۰] و تفسیر المظهري[ج:٦ص: ۵٦۷] وبیان القرآن [ج: ۸ ص: ۳۸]

۲) تفسیر ابن کثیر [ج: ٦ ص:۸۹] و تفسیر القرطبي [ ج:۱۲ص:۳۲۲]

۳) ترجمه:- اومه هغه سره په زوره خبره کوئ لکه څنګه چې تاسو دیوبل سره په زوره خبرې کوئ.

۴) ترجمه:-بیشکه کوم خلق چې تاسوته د حجرو نه دبهر آوازونه کوی.

## سورة فرقان

| آياتونه | سورة الفرقان مكية وهي سبع وسبعون اٰية وست ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۷۷ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | ۲ |

تَبٰرَكَ الَّذِيۡ نَزَّلَ الۡفُرۡقَانَ عَلٰى عَبۡدِهٖ لِيَكُوۡنَ

ډير بركت والا دې | هغه ذات | چي نازل ئي كړو | دا فرقان | په بنده خپل باندا | دپاره ددې چې شي

هغه الله ﷻ ډير د بركت خاوند دې | چاچې خپل بنده [محمد ﷺ] باندې قرآن نازل كړې دې | چې دټولو

لِلۡعٰلَمِيۡنَ نَذِيۡرَا ۙ۝۱ الَّذِيۡ لَهٗ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ

دپاره دټول جهان والو | يرونكې | هغه ذات | چي هغه لره ده | بادشاهي دآسمانونو | او دزمكې

جهانونو دپاره [دعذاب] نه ويرونكې دې | صرف هغه ذات دې چې په آسمانونو او په زمكه كښې

وَلَمۡ يَتَّخِذۡ وَلَدًا وَّلَمۡ يَكُنۡ لَّهٗ شَرِيۡكٌ فِي الۡمُلۡكِ وَخَلَقَ

اونه ئې دې نيولې | خوئې | او نشته هغه لره | شريك | په بادشاهئ كښې | او پيدا ئي كړو |

دهغه بادشاهي ده | او هغه هيڅوك په ځويتوب سره نيولې نه دې | نه ورسره په بادشاهئ كښې څوك شريك شته دې

كُلَّ شَيۡءٍ فَقَدَّرَهٗ تَقۡدِيۡرًا ۝۲ وَاتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اٰلِهَةً

هر څيز | پس په اندازه ئي كړو هغه | په اندازه كولو سره | او اونيول خلقو | بې دهغه نه | نور خدايان

او هغه هر څيز پيدا كړې دى | بيائې دهر څيز دپاره جدا جدا اندازه مقرر كړې ده | او دې مشركانو د الله ﷻ

لَّا يَخۡلُقُوۡنَ شَيۡـًٔا وَّهُمۡ يُخۡلَقُوۡنَ وَلَا يَمۡلِكُوۡنَ

چې نه پيدا كوي | هيڅ څيز | بلكه هغوئ | پيدا كړې كيږي | اونۀ لرې اختيار هغوئ |

نه علاوه نور داسې خدايان جوړ كړې دى | چې هيڅ څيز پيدا كولې نشي | بلكه دوئ په خپله جوړ كړې

لِاَنۡفُسِهِمۡ ضَرًّا وَّلَا نَفۡعًا وَّلَا يَمۡلِكُوۡنَ مَوۡتًا وَّلَا حَيٰوةً

دپاره دځانونو خپلو | دنقصان | اونۀ دنفعې | اونۀ لرې اختيار | دمرګ | اونۀ دژوند |

شوى دى | او دوئ دخپل ځان دپاره د نفعې او د نقصان څه اختيار نه لرې | او نه د چا دمرګ او نه

وَّلَا نُشُوۡرًا ۝۳

اونۀ دپورته كولو دقبرنه |

دژوندې او نه د چا درا پورته كولو اختيار لرې |

### آسان ترجمه قرآن

ډيرلوئې شان دې د هغه ذات چا چه په خپل بنده باندې د حقّ او باطل فيصله كونكې كتاب نازل كړو. چه هغه د دنيا جهان خلقوته خبرداري وركړى. هغه ذات كوم چه د آسمانونو او زمكې د بادشاهت يواځې

مالک دي او هغه نه خو څوک ځوئي نیولي دي او نه د هغه په بادشاهت کښې څوک شریک دي، او چا چه هرڅیز پیدا کړي دي بیائي هغه اندازه کړي دي په اندازه کولو سره او خلقو هغه پریښودلو سره داسې معبودان جوړ کړي دي چه هیڅ هم نه شي پیدا کولې، بلکه خپله پیدا کړې شوي دي او دچا چه خپله په نقصان یا فائدې باندې هم وس نه رسیږي، او نه دچا مرګ کیدل یا ژوندی کیدل د هغوی په اختیار کښې دي نه دچا دوباره ژوندی کول.

## خلاصه تفسير

﴿تَبٰرَكَ الَّذِیْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ﴾ [لوئ عالي شان ذات دې چا چه داد فيصلي كتاب] يعنى قران ﴿عَلٰى عَبْدِهٖ﴾ [په خپل خاص بنده] محمد ﷺ [باند نازل كړو ﴿لِيَكُوْنَ لِلْعٰلَمِيْنَ﴾ چه هغه دټولې دنياجهان والو دپاره] دايمان نه راوړو په صورت كښې دعذاب الهى نه ﴿نَذِيْرًا﴾ [ويرونكې وى ﴿الَّذِیْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ داسې ذات دچادپاره چه داسمانونو او مزكې حكومت دې ﴿وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا﴾ او هغه چالره] خپل [اولاد نه دې مقرر كړې ﴿وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِی الْمُلْكِ﴾ اونه څوك دهغه شريك شته په حكومت كښې ﴿وَخَلَقَ كُلَّ شَیْءٍ فَقَدَّرَهٗ تَقْدِيْرًا﴾ او هغه هرشى لره پيداكړو بيائې دهرشى جداجدا انداز جوړ كړو] چه دځنې څيزونو خواص او اندازې او اثرونه يوشان دى دځنوبل شان ﴿وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖۤ اٰلِهَةً﴾ [او دې مشركانو دالله تعالى نه سوا نورداسې معبودان مقرر كړى دى ﴿لَّا يَخْلُقُوْنَ شَيْئًا﴾ كوم چه په هيڅ شان دمعبود كيدو قابل نه دى ځكه چه هغه دڅه شي پيداكوونكى نه دى ﴿وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ﴾ او بلكه هغه په خپل مخلوقات دى ﴿وَلَا يَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا﴾ او دخپل ځان دپاره نه دڅه نقصان] دفع كولو [اختيار لرى اونه دڅه دنفع] حاصلولو ﴿وَلَا يَمْلِكُوْنَ مَوْتًا﴾ [اونه دچا دمرګ څه اختيار لرى] چه ديو جاندار روح واخلى ﴿وَّلَا حَيٰوةً﴾ [اونه دچاد ژوند] اختيارلرى چه په بې روحه كښې روح واچوى ﴿وَّلَا نُشُوْرًا﴾ [اونه چالره] په قيامت كښې [دوباره ژوندى كولو] اختيار لرى او څوك چه په دې كارونو قدرت نه لرى هغه معبود كيدې نه شى

## معارف او مسائل

**د سورت خصوصيتونه:** د جمهورو مفسيرينو ﷺ په نزد دا سورت ټول مكى دې حضرت ابن عباس رضي الله عنه او قتاده رضي الله عنه د درې آيتونو په باره كښې فرمائيلې دى چه دا مكې نه بلكه مدنى دى ځنى حضراتو داهم فرمائيلې دى چه دا سورت مدنى دې صرف يو څو آيتونه پكښې مكى دى [قرطبى] (۱)

د دې سورت د مضمونونو خلاصه د قرآن كريم لوئې والې او د رسول الله ﷺ د پيغمبرئ حق والې بيانول دى او د هغې اعتراضونو جواب دې كوم چه د دشمنانو د اړخه په دوئ شوې وو –

﴿تَبٰرَكَ﴾ بركت ، نه مشتق دې د بركت معنى د خير او بهترئ ډير والې دې حضرت ابن عباس رضي الله عنه د آيت معنى دا بيانوى چه هر خير او بركت د الله تعالى د طرفه دې فرقان د قرآن كريم لقب دې لغوى معنى ئې فرق او بيلتون راوستل دى هر كله چه قرآن كريم د خپلو ډاګيزو ارشاداتو په

---

۱) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:۱۳ص:۱]

ذریعه د حق او باطل تر منځه بیلتون او فرق بیانوي او د معجزې په ذریعه د حق او د باطل د خاوندانو تر منځه بیلتون ښکاره کوي ځکه دې ته ، فرقان ، وئیلې شي .

﴿لِلْعٰلَمِيْنَ﴾ دې نه ثابتیږي چه رسول الله ﷺ د ټولې دنیا د پاره پیغمبر دې تیر شوي نور ټول پیغمبران ﷺ د یو خاص قوم او خاص علاقې او ملک د پاره پیغمبران وو چنانچه د صحیح مسلم د روایت کړي حدیث له مخې رسول الله ﷺ چه خپل کوم شپږ خصوصیتونه چه بیان کړي دي د هغې ځنې یو خصوصیت ئې دا هم بیان کړې دې چه د هغوئ ﷺ پیغمبري د ټول جهان د پاره عامه ده .(١)

﴿فَقَدَّرَهٗ تَقْدِيْرًا﴾ د ، تخلیق ،نه پس ،تقدیر ، بیان کوي د تخلیق معنی بې څه نمونې د اول سره د نیشت نه د یو څیز شته کول دي -

**د مخلوقاتو ځنې په هر یو څیز کښې خاص خاص حکمتونه:** د تقدیر مطلب د هر یو پیدا کړي څیز د برخو شکل و صورت اثر او خاصیتونو په ډیر حکمت سره د هغې کار په مناسب پیدا کول دی کوم د پاره چه دا څیز پیدا کړې شوې دې چنانچه د آسمان ساخت [جوړ] د دې هغه برخې کوم نه چه جوړ دې او د دې شکل او رغونړه د هغې کار مناسب ده کوم د پاره چه الله تعالی آسمان جوړ کړې دې د ګرځینده او په ځائ ولاړو ستورو په پیدا کولو کښې هغه څیزونه ایښوې شوې دی چه د دې د پیدا کولو د غرض مناسب دی زمکې او دې کښې هر څیز ته چه اوګورئ د هر یو رغونړه د دې شکل صورت نرمی او سختی د هغې کار مناسب جوړ کړې شوې دې کوم کار د پاره قدرت چه دا پیدا کړې دی زمکه ئې لکه د اوبو په شان دومره نرمه نۀ ده جوړه کړې چه هر وزندار څیز پکښې ډوبیږی نۀ ئې د کاڼږي او اوسپنې په شان دومره سخته جوړه کړې ده چه کنستې به نۀ شوه ولې چه د دې د کنستو ضرورت وو چه په کنستو سره به اوبه راؤښکلې شي په دغه کنیستې ځایونو کښې د لوړو لوړو مضبوطو عمارتونو بنیادونه کیښوې شي اوبه ئې نرمې جوړې کړې چه زرګونه حکمتونه پکښې دی هوا هم نرمه ده خو د اوبو نه په مختلف شان اوبه هر چرته پخپله نشي ورسیدې په دغې غرض انسان ته پکښې خواری کول راپیښیږي خو هوا لره الله تعالی په یو داسې شان یو انعام جوړ کړو چه هغه د انسان د خواری نه بغیر هر چرته پخپله رسی بلکه دې نه د ځان ساتلو د پاره د ډیرې خوارئ کولو ضرورت پیښیږي د الله تعالی د مخلوقاتو د حکمتونو بیانیدل دلته نشي کیدې خو هر یو مخلوق ته چه اوګورې نو هر یو د حکمت او قدرت یو اعلی نمونه ده . امام غزالی رحمه الله په دې موضوع باندې خپل یو مستقل کتاب لیکلې دې چه ، الحکمة فی مخلوقات الله تعالی نومیږی په دې آیتونو کښې اول د سره د قرآن کریم د لوئیوالی او هغه عزت منډ شخصیت په چا چې دا قرآن پاك نازل شوې دې د عزت او لوئیوالی عجیبه بیان دې چه الله تعالی ورته د ، عبد ،خطاب ورکړو ولې چه د یو مخلوق د دې نه نور زیات بل عزت او شرافت نشي کیدې چه خالق ئې ،خپل ، اوبولي -

بند حسن بصد زبان گفت که بندۀ توام — تو بزبان خود بگو بنده نواز کیستی؟

[ حسن بنده خو بې شمیره واره او وئیل چه ستا بنده یم .. خوتۀ پخپله اوفرمایه چه بنده پالل شوی د چائې ؟] -

---

(١) صحیح مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة [ج:١ص:١٩٩]

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّآ

| اووائی | هغه کسان | چې انکار ئې کړې دې | چې نه دې دا فرقان | مګر

| او کافران وائی چې دا [قرآن] خو بس تش

اِفْكُ اِفْتَرٰىهُ وَاَعَانَهٗ عَلَيْهِ قَوْمٌ اٰخَرُوْنَ ۚ

دروغ دی | چې دخانه ئې جوړ کړې دې | او امداد کړې دې ددهٔ سره | په دې کار باند | خلقو نورو

دروغ دی | چې دې سړی دخان نه راجوړ کړی دی | او نورو خلقو ورسره ددې جوړولو کښې مدد کړې دې

فَقَدْ جَآءُوْ ظُلْمًا وَّزُوْرًا ۚ وَقَالُوْٓا اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ

پس راتلل کړی دی دې خلقو | په ظلم | او په دروغ سره | اووائی دوئ | چې دا قیصې دی دپخوانو خلقو

خلقو ډیر زیاتې اوکړو | او غټ دورغ ئې اووئیل | او دوئ وائی چې دا دپخوانو خلقو

اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلٰى عَلَيْهِ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ۞

چې لیکلی ئې دې په بل چا | او هم دغه لیکل | اورولې کیږی | په دهٔ باند | صبا | او بیګاه

قیصئ دی | چې دې سړی په چا لیکلی دی | نو هم دغه لیک ورته صبا بیګاه آورولې شی

قُلْ اَنْزَلَهُ الَّذِيْ يَعْلَمُ السِّرَّ فِي السَّمٰوٰتِ

ورته اووایه | چې نازل کړې دې دا فرقان | هغه چا | چې پوهیږی | په هر پټ راز | چې په آسمانونو

ته ورته اووایه چې دا [قرآن] هغه ذات نازل کړې دې | چې هغه ته دزمکې او آسمانونو

وَالْاَرْضِ ۭ اِنَّهٗ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۞ وَقَالُوْا

او زمکه کښې دې | بیشکه چې الله | دې | بښونکې | مهربانه | او وائی دوئ |

هریو راز معلوم دې | بیشکه هغه بښونکې مهربان دې | او دوئ وائی

مَالِ هٰذَا الرَّسُوْلِ يَاْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِيْ فِي الْاَسْوَاقِ ۭ لَوْلَآ اُنْزِلَ

څه دی دې رسول لره | چې خوری | طعام | او ګرزی | په بازارونو کښې | اولې را او نهٔ لیږلې شوه

دا لا څنګه رسول دې چې خوراکونه کوی | او په بازارونو کښې ګرځی | دهٔ ته څوک فرښته

اِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُوْنَ مَعَهٗ نَذِيْرًا ۙ اَوْ يُلْقٰٓى اِلَيْهِ

دهٔ ته | یوه فرښته | چې وې | دهغه سره | یرونکی | یا چې راغورزولې شوې وې | دهٔ ته |

ولې راونه لیږلې شوه | چې هغه ورسره دویرولو دپاره ملګرې وې | یا ورته دغیبو

كَنْزٌ اَوْ تَكُوْنُ لَهٗ جَنَّةٌ يَّاْكُلُ مِنْهَا ۭ وَقَالَ الظّٰلِمُوْنَ

یوه خزانه | یا چې وې | دهٔ لره | یو باغ | چې خوراك ئې کولې | دهغې نه | اووائی ظالمان

خزانه ورکړې شوې وې | یا ورسره باغ وې | چې دهغې نه ئې خوړلې | او دا ظالمان وائی

| إِنْ تَتَّبِعُونَ | إِلَّا | رَجُلًا | مَّسْحُورًا ⑧ | أُنْظُرْ | كَيْفَ ضَرَبُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| نه یئ روان تاسو | مګر | په یو سړي پسې | چې جادو پرشوېدې | او ګوره اې نبي | څرنګې بیانوي دوئ |

چې تاسو خلق خو په داسې سړي پسې روان یئ چې جادو پرې شوې دې (انې نبي ﷺ ! او ګوره کنه

| لَكَ | الْأَمْثَالَ | فَضَلُّوا | فَلَا يَسْتَطِيعُونَ | سَبِيلًا ⑨ |
|---|---|---|---|---|
| تالره | مثالونه | پس دوئ بې لارې شوي دي | پس دوئ طاقت نه لري | دلارې موندلو |

دوئ ستا په حقله څنګه عجیبه عجیبه خبرې کوي (دوئ ګمراه شول نوځکه دوئ سمه لار موندلې نشي

## آسان ترجمه قرآن

او کومو خلقو چه کفر خپل کړې دې، هغوی وائی چه: دا (قرآن) خو هیڅ نه دې، بلکه یو دروغژن څیز دې کوم چه دې سړي دځان نه جوړ کړې دې، او په دې کار کښې نور خلق هم دهٔ مدد کوی دغه شان (په دې خبره وئیلو سره) دا خلق ډیر د ظلم او ښکاره دروغو خبره کوی. او وائي چه: دا خو د مخکښې خلقو قصې دی کومې چه دې سړي لیکلې دی، او صبا او بیګاه هم هغه د هغه مخکښې لوستلې شی او وایه چه: دا کلام خو هغه (الله پاک) نازل کړې دې کوم چه د هر راز نه پوره خبر دې، په آسمانونو کښې هم، زمکه کښې هم بیشکه هغه ډیر بخښنه کونکې، او ډیر مهربانه دې. او دوی وائي چه: دا څنګه رسول دې چه خوراک هم کوی، او په بازارونو کښې هم ګرځي راګرځي؟ دهٔ ته یو فرشته ولې نه ده رالیږلې شوې چه دهٔ سره په اوسیدلو باندې ئې خلق ویرولې یا به دهٔ ته یو خزانه ورکړې شوې وې، یا به دهٔ سره یو باغ وې چه د هغې نه به ئې خوراک کولې، او دا ظالمان (مسلمانانو ته) وائي چه: تاسو چه د چا تابعداری کوئ هغه نور هیڅ نه دې، بس یو سړې دې چه جادو پرې کړې شوې دې. (اې پیغمبره!) او ګوره دې خلقو ستا په باره کښې څنګه خبرې جوړې کړې دی پس داسې ګمراه شوې دی چه په لاره باندې راتلل د دوی د وس نه بهر دی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [ او کافران خلق ] د قرآن په باره کښې [داسې وائي ﴿إِنْ هَٰذَا إِلَّا إِفْكٌ افْتَرَاهُ﴾ چه دا] قرآن [ نورهیڅ نه دی صفا دروغ دی کوم لره چه دې سړی ] یعنی پیغمبر [جوړ کړی دی ﴿وَأَعَانَهُ عَلَيْهِ قَوْمٌ آخَرُونَ﴾ او نورو خلقو په دې ] جوړولو [کښې دهٔ مدد کړې دې ] مراد هغه اهل کتاب دی کوم چه مسلمانان شوی وو یا به هسې ددوی په خدمت کښې حاضریدل [ پس ] په داسې خبره وئیلو سره ﴿فَقَدْ جَاءُوا ظُلْمًا وَزُورًا﴾ [دا خلق دلوئ ظلم او دروغو مرتکب شول] ددوی ظلم او دروغوالې به وړاند بیان شی ﴿وَقَالُوا﴾ [او دا] کافران [ خلق] دخپل دې اعتراض په تائید کښې [داسې وائي چه دا] قرآن ﴿أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ﴾ [بې سنده خبرې دی کومې چه د وړاندې خلقو نه نقل راروانې دی ﴿اكْتَتَبَهَا﴾ کومو لره چه دې سړی ] یعنی پیغمبر په بناسته عبارت کښې په سوچ سوچ سره دخپلو اصحابو په لاسونو [ لیکلی دی ] ددې د پاره چه محفوظ پاتې شی ﴿فَهِيَ﴾ [ بیا هغه ] مضامین [ده ته ﴿تُمْلَىٰ عَلَيْهِ بُكْرَةً وَأَصِيلًا﴾ سحر او ماښام لوستلې شی ] چه یاد پاتې شی بیا هغه مضامین یاد کړې شوی په مجمع کښې بیانوی او د الله تعالی طرف ته ئې نسبت کوی [ ته ] ددې په جواب کښې ﴿قُلْ أَنْزَلَهُ الَّذِي﴾ [ ووایه چه دې ] قرآن [ الره خو هغې

] پاک [ذات نازل کړې دې ﴿يَعْلَمُ السِّرَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ کوم ته چه د ټولو پټوخبرو خواه هغه په اسمانونو کښې وی یا په زمکه کښې وی خبردې ] دجواب نچوړ دادې چه ددې کلام اعجاز دده ښکاره دلیل دې چه دکفارو دا اعتراض غلط دروغ او ظلم دې ځکه چه که قرآن دتیرو خلقو قصې وې یا دبل په مدد سره جوړشوې وې نو ټوله دنیا به ددې دمثل راوړونه ولې عاجزه وه﴿إِنَّهُ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ [ واقعي الله تعالى بخښنې والا مهربان دې ] په دې وجه په داسې دروغو فورا سزانه ورکوی ﴿وَقَالُوا﴾[او داکافران خلق ] دنبی کریم ﷺ په نسبت [ داسې وائی ﴿مَالِ هٰذَا الرَّسُولِ﴾ چه په دې رسول څه شوی دی﴿يَأْكُلُ الطَّعَامَ﴾ چه هغه ] زمونږ په شان [ خوراك ] هم [خوری] او دژوندد انتظام دپاره زمونږ په شان﴿وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ﴾ [ په بازارونو کښې ګرځی] مطلب دادې چه رسول اوپیغمبر دانسان په ځائې فرښته پکارده کوم چه دخوړلو څښلونه اونورو ضرورتونونه بې حاجته وی اوکم نه کم دومره خو خامخا پکار دی چه رسول که په خپله فرښته نه ده نو دده ملګری اومشران خو فرښتې پکاردی ځکه وائی چه ﴿لَوْلَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ﴾[ دده] رسول [ سره څوك فرښته ولې راونه لیږلې شوه﴿فَيَكُونَ مَعَهُ نَذِيرًا﴾ چه هغه دده سره وسیږی] خلق دالله تعالى دعذاب نه[ویروی] اوکه داهم نه وی نو چه کم نه کم رسول دخپل خوراك څښاك دضرورتونونه خو چه بې فکره وې داسې چه ﴿أَوْ يُلْقَىٰ إِلَيْهِ كَنزٌ﴾ [دده سره ] دغیبونه [څه خزانه راپریوتې ﴿أَوْ تَكُونُ لَهُ جَنَّةٌ يَأْكُلُ مِنْهَا﴾ یاددده سره څه باغ وې چه دده ترې نه خوراك ] څښاك [کولې او] مسلمانانوته ﴿وَقَالَ الظَّالِمُونَ﴾ [ داظالمان داسې ] هم [وائی چه ] هرکله دده سره نه څوك فرښته شته نه خزانه نه باغ او بیاهم دې دنبوت دعوی کوی نو معلومیږی چه دده په عقل کښې نقصان دې په دې وجه ﴿إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَّسْحُورًا﴾ [تاسو خلق دیو مسلوب عقل ] یعنی لیونی [سړی په لاره روان شوی یئ ] اے محمد ﷺ ﴿انظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ الْأَمْثَالَ﴾[ وګوره چه داخلق ستاپه نسبت څنګه عجیبه عجیبه خبرې بیانوی پس ] په دې خرافاتو سره ﴿فَضَلُّوا﴾[هغوی] بالکل [ ګمراه شول﴿فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا﴾ پس دوی لارنه شی موندې]

## معارف او مسائل

په قرآن کریم او د رسول الله ﷺ په پیغمبرئ باندې د کفارو او مشرکانو اعتراضات کول د دې ځائ نه شروع کیږی بیا د دې د جوابونو سلسله ئې تر لرې پورې تلې ده – رومبې اعتراض دا وو چه قرآن کریم د الله تعالى د اړخه څه نازل کړې شوې کلام نه دې بلکه رسول الله ﷺ د خپله ځانه څه دروغ جوړ کړیدی یا د پخوانو یهودو او نصاراؤ و غیره نه ئې قیصې اؤریدلی په خپلو صحابه کرامو ﷺ باندې ئې لیکی هر کله چه په خپله امی دې په لیک لوست باندې نه پوهیږی ځکه هم دغه قیصې صحابیګا آوری چه ورته یاد شی او بیائې د خلقو په وړاندې د الله تعالى د کلام په نوم باندې بیانوی.

د دې اعتراض جواب قرآن کریم دا ورکړو ﴿قُلْ أَنزَلَهُ الَّذِي يَعْلَمُ السِّرَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ د دې جواب حاصل دا دې چه دا کلام په خپله د دې ګواه دې چه د دې نازلوونکې هغه ذات پاک د الله تعالى دې چه د آسمانونو او زمکې ټولو پټو رازونو نه خبر دې ځکه ئې قرآن کریم یو معجز کلام جوړ کړو او ټولې دنیا ته ئې بلنه ورکړه چه که دا د الله تعالى کلام نه ګنړئ نو تاسو خو هم انسانان یئ د دې پشان کلام که زیات نۀ وی نو یو سورت بلکه یو آیت جوړ کړې راته اوښایئ د دې چیلنج او

بلنې جواب ورکول خو د عربو فصیحانو بلیغانو ته څه ګران نهٔ وو بیا هم هغوئ د دې نه په تیښته شو په دوئ کښې هیڅ هم دومره زړه او نهٔ شو کړې چه د قران کریم په مقابله کښې ئې د دې پشان یو آیت خو ئې لیکلې راوړې وې سره د دې چه د رسول الله ﷺ په مخالفت کښې خپل ټول مال متاع بلکه خپل اولاد او خپل ځانونه داؤ کولو ته تیار وو او دا لنده شان خبره ئې او نهٔ کړې شوه چه د قرآن کریم په شان یو سورت ئې لیکلې راوړې وې دا د دې خبرې ډاګیز دلیل دې چه دا کلام د چا انسان نهٔ دې ورنه نورو انسانانو به هم داسې کلام لیکلې شو بلکه خالص د الله تعالی علیم او خبیر کلام دې د دې د فصاحت او بلاغت نه علاوه ټول معنې او مضمونونه ئې داسې علوم لرې چه خالص د هغې ذات له ارخه کیدې شی کوم چه په ظاهر او باطن خبردار دې [د دې مضمون پوره تفصیل په سورت بقرة کښې په اعجاز قرآن باندې د مکمل بحث په صورت کښې بیان شوې دې د معارف القرآن په اول جلد کښې ئې اوګورئ] .

دویم اعتراض ئې دا وو چه که دوئ ﷺ رسول وې نو د عامو انسانانو غوندې به ئې خوراک څکاک نهٔ کولو بلکه د فرشتې په شان به ئې د دې ضرورت نهٔ لرلو که داسې هم نهٔ وې نو کم نا کم دوئ ﷺ سره به د الله تعالی د ارخه دومره خزانه یا باغونه وې چه د خپل ژوند تیرولو انتظام نه به بې فکره وې بازارونو کښې د ګرځیدو راګرځیدو ضرورت به ورته نهٔ وو دې نه علاوه مونږه دوئ ﷺ لره د الله تعالی د طرفه رسول څنګه اومنو چه اول خو دوئ ﷺ فرشته نهٔ دی دویم دا چه دوئ ﷺ سره څوک فرشته هم مل نهٔ ده چه د دوئ ﷺ د کلام رشتنوالی خو کوی څکه داسې معلومیږی چه په دوئ ﷺ باندې چا جادو کړې دې چه هغې سره ئې دماغ خراب شوې دی او هسې ګډوډې وډې خبرې کوی - د دې اجمالی جواب خو په دې کښې دا ورکړې شو ﴿اُنْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوْا لَكَ الْاَمْثَالَ فَضَلُّوْا فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا﴾ یعنی اوګورئ کنه ، - دا خلق ستاسو ﷺ په شان کښې څنګه څنګه عجیبه خبرې کوی نتیجه ئې دا ده چه دا ټول ګمراه شوی دی چه اوس ورته د لارې روخ ګودر نهٔ معلومیږی د دې تفصیلی جواب په وریسې آیتونو کښې داسې راغلې دې.

| تَبٰرَكَ | الَّذِيْٓ | اِنْ شَآءَ | جَعَلَ | لَكَ | خَيْرًا |
|---|---|---|---|---|---|
| ډیر برکت والا دي | هغه ذات | که اوغواړي | نو اوبه ګرځوي [دربه کړي] | تالره | بهتره |

هغه ذات ډیرد برکت خاوند دي [که اوغواړي نو تاته بهٔ ددې نه هم بهتر خیز درکړي

| مِّنْ ذٰلِكَ | جَنّٰتٍ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ |
|---|---|---|---|---|
| ددې خیزونو نه | ډیر باغونه [به وي] | چې بهیږي به | لاند [دونو] دهغې نه | نهرونه |

[یعنې] باغونه چې دهغې [دونو] لاندې به ولې بهیږي [اوستا دپاره به

| وَيَجْعَلْ لَّكَ | قُصُوْرًا | بَلْ كَذَّبُوْا | بِالسَّاعَةِ | وَاَعْتَدْنَا |
|---|---|---|---|---|
| او جوړ به کړي تالره | محلونه | بلکه دروغ ګڼړلی دوئ | قیامت | او تیار کړي دي مونږه |

محلونه جوړ کړي| خبره داده چې دا خلق د قیامت نه منکر دي ||وڅوک چې د قیامت نه

| لِمَنْ | كَذَّبَ | بِالسَّاعَةِ | سَعِيْرًا | اِذَا | رَاَتْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دهغه چا | چې دروغ ګڼړي | قیامت | دلمبو وور | کله چې | اووینی دوئ هغه وور |

منکر وی [نو مونږ هغوئ دپاره دوزخ تیار کړي دي [څه وخت چې هغه [خلق]

مِّنْ مَّكَانٍۢ بَعِيْدٍ سَمِعُوْا لَهَا تَغَيُّظًا وَّزَفِيْرًا ﴿۱۲﴾ وَإِذَآ

دخائي لري نه | وابه وري دوئ | دغه اور لره | غصه | او آوازونه | او كله چي

دوزخ د لري نه اووينى |..........نو دوئ به دهغه غصه او آوازونه واوري |او هركله چي

أُلْقُوْا مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُّقَرَّنِيْنَ دَعَوْا هُنَالِكَ

اوغورزولي شي دوئ | ددوزخ نه | خائي | تنگ ته | ترلي شوي | آوازونه به اوكړي | هلته

دوئ ددزخ په يو تنگ ځائي زنځيرونو كښې ترلي شوي اوغورزولي شي انو هلته به دمرگ دعاگاني

ثُبُوْرًا ﴿۱۳﴾ لَا تَدْعُوا الْيَوْمَ ثُبُوْرًا وَّاحِدًا وَّادْعُوْا ثُبُوْرًا

هلاكت ته | مه رابلئ تاسو | نن ورځ | مرگ [هلاكت] | يو | اوراوبلئ | مرگ

اوغواړي | [ورته به اووئيلي شي] چې نن مرگ مه غواړئ ابلكه ډير ډير مرگونه غواړئ

كَثِيْرًا ﴿۱۴﴾ قُلْ أَذٰلِكَ خَيْرٌ أَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ الَّتِيْ وُعِدَ

ډيرا | ورته اووايه | آيا دا انجام | بهتر دي | يا جنت دهميشوالي | هغه | چي وعده شوى ده [دهغې]

......تپوس ترې نه اوكړه چې دا [دوزخ] غوره دې ايا هميشه جنت كوم چې د نيكانو خلقو

الْمُتَّقُوْنَ ط كَانَتْ لَهُمْ جَزَآءً وَّمَصِيْرًا ﴿۱۵﴾ لَهُمْ

دپرهيزگارانو سره | وى به [دا] | دپاره دهغوئ | بدله | او ځائي دورتلو | وى به دپاره دهغوئ |

سره وعده شوې ده | هغه ددوئ دپاره بدله او د واپس راتلو ځائي دې | هلته چه دوئ څه

فِيْهَا مَا يَشَآءُوْنَ خٰلِدِيْنَ ط كَانَ عَلٰى رَبِّكَ

په هغې كښې | هغه څه | چې غواړي هغوئ | هميشه به وى په هغې كښې | داده | په رب ستا باند |

غواړي هغه به موجود وى |هميشه به په كښې اوسيږى | دايوه وعده ده | ستاسو درب

وَعْدًا مَّسْئُوْلًا ﴿۱۶﴾ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ

وعده | غوښتلي شوي [خامخا پوره كونكى] | او هغه ورځ | چې راجمع كړي الله دوئ لره |

په ذمه دغوښتلو قابله |او په كومه ورځ چې الله ﷻ دوئ راجمع كړي | او ورسره

وَمَا يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَيَقُوْلُ ءَاَنْتُمْ

او هغه معبودان | چې عبادت ني كوى دوئ | بې دالله نه | نو اوبه وائى الله دوئ ته | آيا تاسو |

هغه معبودان هم چې دوئ به ئې دالله ﷻ نه بغير عبادت كولو انو بيا به ورته اووائى چې

أَضْلَلْتُمْ عِبَادِيْ هٰٓؤُلَآءِ أَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِيْلَ ﴿۱۷﴾ قَالُوْا

بې لارې كړي وو | بندگان زما | دا كسان | يابې لارې شوي وو پخپله | دنيغي لارې نه | اوبه وائي هغوئ

آيا تاسو زما دا بندگان گمراه كړي وو؟ ايا دوئ پخپله دلارې نه بې لارې شوي وو؟

سُبْحٰنَكَ　مَا كَانَ يَنْۢبَغِيْ لَنَآ　اَنْ نَّتَّخِذَ　مِنْ دُوْنِكَ　مِنْ اَوْلِيَآءَ

پاکي ده تالره | نهٔ ښائي موږ لره | چي اونيسو موږ | بې ستا نه | څوك دوستان |

هغوئ بهٔ اووائي ستا دپاره پاکي ده | موږ دپاره دا خبره مناسب نه وه | چي ستا نه بغير مو بل مددګار نيولي

وَلٰكِنْ مَّتَّعْتَهُمْ　وَاٰبَآءَهُمْ　حَتّٰى　نَسُوا الذِّكْرَ ۚ

وليکن نفع ورکړه تادوئ ته | او پلارانو ددوئ ته | تر دې پورې | چي هير کړو دوئ نصيحت |

ليکن [حقيقت دادې] چې هم تا هغوئ او دهغوئ پلارانوته خوشحالي ورکړې ده | تردې چې ستايادول

وَكَانُوْا　قَوْمًا　بُوْرًا ۝١٨　فَقَدْ　كَذَّبُوْكُمْ

او وو دوئ | يو قوم | هلاك شوي | پس دغه شان به دروغژن کړي هغه معبودان تاسو لره |

ئي هير کړل | اوهلاک شول | نو [دغه فرضي معبودانو] ستاسو خبرې پخپله دروغژني کړې | انو اوس نه

بِمَا　تَقُوْلُوْنَ ۙ　فَمَا تَسْتَطِيْعُوْنَ　صَرْفًا

په هغه خبره کښې | چي وايئ تاسو | نونهٔ به لرئ طاقت تاسو | داړولو دعذاب [دځان نه] |

خو تاسو په خپله د [عذاب] بندولې شئ | او نه دچا نه مدد

وَّلَا نَصْرًا ۚ　وَمَنْ　يَّظْلِمْ　مِّنْكُمْ　نُذِقْهُ

اونهٔ دمدد کولو ديو بل سره | او هغه څوك | چي ظلم ئي اوکړو | ستاسو نه | اوبه څکوؤ هغه ته |

اخستلې شئ | اوچاچې په تاسو کښې [په ځان ظلم] اوکړو | نوموږ بهٔ پرې دغټ عذاب

عَذَابًا كَبِيْرًا ۝١٩　وَمَآ　اَرْسَلْنَا　قَبْلَكَ　مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ　اِلَّآ اِنَّهُمْ

عذاب لوئ | او اے نبي | نهٔ وو ليږلي موږ | مخکښې ستانه | درسولانونه | مګر وو هغوئ

مزه څکوو | اوموږ چې ستانه وړاندې هر څومره پيغبران ليږلي دی | انوتولو به

لَيَاْكُلُوْنَ الطَّعَامَ　وَيَمْشُوْنَ　فِي الْاَسْوَاقِ ۭ　وَجَعَلْنَا　بَعْضَكُمْ

چي خوړلو بهٔ ئي طعام | او ګرزيدل به | په بازارونو کښي | او ګرزولي دي موږ | ځيني دتاسو |

خوراکونه هم کول | اوپه بازارونو کښې به هم ګرځيدل | اوموږ تاسو ديوبل دپاره د

لِبَعْضٍ　فِتْنَةً ۭ　اَتَصْبِرُوْنَ ۚ　وَكَانَ رَبُّكَ　بَصِيْرًا ۝٢٠

دپاره دځينو نورو | آزميښت | آيا تاسو صبر کوئ | او دې رب ستا | ښهٔ ليدونکې |

د امتحان ذريعه هم ګرځولي يئ | انو اوس هم صبر کوئې [که نه] اوستارب ډير ښه ويني ګوري

## آسان ترجمه قرآن

ډير لوئې شان دې د هغه (الله پاک) چه که هغه اوغواړي نو تاته به د دې ټولو نه ډير غوره، (ديو باغ په ځائې) ډير باغونه درکړي چه د هغې د لاندې به نهرونه روان وي. او تا به د ډيرو محلونو مالک کړي.

اصل حقیقت دا دې چه دې خلقو دقیامت ورځ دروغژنه ګنړلې ده او څوک چه د قیامت د ورځې تکذیب اوکړي، د هغه دپاره مونږ تیز اور تیار کړې دې. کله چه هغه دوئ لره د لرې نه وینی نو دا خلق به د هغهٔ غرمبیدل او چغې اوري. او کله چه هغوی به تړلو سره په یو تنګ ځائې کښې اوغورځولې شي نو دوی به هلته مرګ ته چغې وهي. (هغه وخت به دوی ته اووئیلې شي چه :) نن تاسو یو کرت مرګ ته آواز مه کوئ، بلکه بار بار مرګ ته چغې وهئ اووایه دا انجام غوره دې که د همیشه اوسیدو جنت. د کوم وعده چه د متقیانو سره کړې شوې ده؟ هغه به د هغوی دپاره انعام وی، او د هغوی آخری انجام. هلته به هغوی ته همیشه اوسیدو سره سره هر څیز ملاویږی کوم چه هغوی غواړی. دا هغه د ذمه داریٔ وعده ده کوم چه ستا رب په خپل ځان باندې لازِمه کړې ده. او هغه ورځ (دوی ته یاده کړه) چه کله الله پاک دوی (یعنی کفار) هم په حشر کښې راجمع کړی او وائی به (د هغوی معبودانو ته:) آیا تاسو زما دا بندګان ګمراه کړی وو یا دوی خپله د لارې نه اوړیدلې وو. هغوی به وائی چه : ستا ذات د هر عیب نه پاک دې. زمونږ مجال نشته چه مونږ ستا نه سوا د نورو معبودانو قائل شو ، خو اوشوه داسې چه تا دوی ته او د دوی پلارانو ته د دنیا فائدې ورکړې، تر دې چه کومه خبره یاد ساتل پکار وو، دوی هغه هیره کړه، او دغه شان (دوی خپله) برباد پاتې شو. پس (اې کافرانو!) هغوی خو ستاسو هغه ټولې خبرې دروغژنې کړې کومې چه به تاسو کولې. اوس نه (د عذاب) لرې کول ستاسو په وس کښې دی، نه څه مدد حاصلول. او په تاسو کښې چه څوک ظلم اوکړی، مونږ به هغه ته ډیر لوئې عذاب اوڅکوو او (اې پیغمبره!) مونږ چه ستا نه مخکښې څومره پیغمبران لیږلې دی، هغوی ټول هم داسې وو چه خوراک به ئې هم کولو او په بازارونو کښې به هم ګرځیدل. او مونږ تاسو د یو بل دپاره د ازمیښت ذریعه جوړه کړې ده. اووایه! آیا تاسو به صبر کوئ!او ستا رب هره خبره وینی.

## خلاصه تفسیر

﴿تَبٰرَكَ الَّذِیْۤ اِنْ شَآءَ جَعَلَ لَكَ خَیْرًا مِّنْ ذٰلِكَ﴾ [هغه ذات ډیر لویٔ عالیشان دې چه که هغه وغواړی نو تالره به د] کفارود [دې ] فرمائش [نه ] هم [ښه شې درکړی یعنی ډیر] غیبی ﴿جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ﴾ [باغونه چه لاندې به ترې نه نهرونه بهیږی ] غوره ئې ورته څکه ووئیل چه هغوی خومطلق دباغ فرمائش کولو اګر چه یو هم وی او دډیرو باغونو خو دیونه غوره والې ظاهر دې [ او] بلکه ددې باغونو سره به نورهم مناسب څیزونه درکړی کومو چه دوی فرمائش هم نه دې کړې یعنی ﴿وَیَجْعَلْ لَّكَ قُصُوْرًا﴾ [ تاله به ډیر محلونه درکړی] کوم چه به په دې باغونو کښې جوړوی یابه بهر وی چه په دې سره به ددوی فرمائش نور هم زیاتونعمتونو سره پوره شی مطلب داچه څه په جنت کښې ملاویږی که الله تعالی وغواړی نو تاله به ئې په دنیا کښې درکړې لیکن په خنې مصلحتونو سره نه غواړی اوفی نفسه ضروری هم نه وه پس شبهه محض بې هوده ده ددې کفارو ددې دذکرشوو شبهو سبب دانه دې چه دوی ته دحق طلب کول او فکرکول پیداشوی دی بلکه داعتراضونو وجه محض شرارت اودحق دطلب نه بې فکری ده او ددې بې فکریٔ اوشرارت سبب دادې چه ﴿بَلْ كَذَّبُوْا بِالسَّاعَةِ﴾ [داخلق قیامت لره دورغ ګنړی ] په دې وجه ورسره دانجام فکرنشته او څه چه ئې په زړهٔ کښې راځی کوی او بکواس کوی [او] انجام به ددوی داوی چه ﴿وَاَعْتَدْنَا لِمَنْ كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِیْرًا﴾ [ مونږ دداسې سړی د] سزاد [پاره کوم چه

قیامت دروغ ګڼرې دوزخ تیار کړې دي ] ځکه چه دقیامت په دروغژن کولو سره دالله تعالی او رسول ﷺ دروغژن ګڼرل لازمیږي کوم چه اصل سبب دي دوزخ تـه دتلو او ددې دوزخ بـه داکیفیت وي چه ﴿اِذَا رَاَتۡهُمۡ مِّنۡ مَّكَانٍۭ بَعِيۡدٍ﴾ کله هغه ] دوزخ [دوی لره دلرې نه ووینی نو] دلیدو سره به غضبناك شي دومره جوش به اووهي چه ﴿سَمِعُوۡا لَهَا تَغَيُّظًا وَّزَفِيۡرًا﴾ [هغه خلق به ] دلرې نه [دهغه جوش خروش واورې او] بیا ﴿وَاِذَاۤ اُلۡقُوۡا مِنۡهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُّقَرَّنِيۡنَ﴾ [هر کله چه هغوئ ددې ] دوزخ [ په یو تنګ ځائ کښې دلاسو پښونه تړلی وغورزولې شي ﴿دَعَوۡا هُنَالِكَ ثُبُوۡرًا﴾ نوهلته به مرګ ته چغې وهي] لکه چه په مصیبت کښې داعادت دې چه مرګ رابللې شی او ارزوئ کوی دغه وخت به دوی ته ووئیلې شي چه ﴿لَا تَدۡعُوا الۡيَوۡمَ ثُبُوۡرًا وَّاحِدًا﴾ [ یومرګ مه راغواړئ ﴿وَّادۡعُوۡا ثُبُوۡرًا كَثِيۡرًا﴾ بلکه ډیرمرګونه راوغواړئ ] ځکه چه دمرګ غوښتل علت دمصلحت دې اوستاسو مصیبتونه بې انتهادی او دهر مصیبت مقتضا دمرګ غوښتل دی نو غوښتل هم ډیر شول اودې ډیروالی تـه ئ دمرګ ډیروالې ووئیـل [ تـه] دوی تـه داهم مصبت واوروه ﴿قُلۡ﴾ [ووایه چه] داوښایئ چه ﴿اَذٰلِكَ خَيۡرٌ﴾ [آیادا] دمصیبت [حالت ښه دې ] کوم چه ستاسو دکفر اوانکار په مقتضی سره دې ﴿اَمۡ جَنَّةُ الۡخُلۡدِ﴾ [ یاهغه دهمیشه اوسیدو جنت] ښه دې ﴿الَّتِيۡ وُعِدَ الۡمُتَّقُوۡنَ﴾ [دکوم چه الله تعالی د طرفنه دویریدونکوسره]یعنی اهل ایمانوسره [ وعده شوې ده ﴿كَانَتۡ لَهُمۡ جَزَآءً وَّمَصِيۡرًا﴾ چه هغه ددوی دپاره ] ددوی داطاعت [بدلـه ده اوددوی ] اخری [ داوسیدو ځائ دې ] او ﴿لَهُمۡ فِيۡهَا مَا يَشَآءُوۡنَ﴾ [ دوی ته به هلته هغه ټول څیزونه ملاویږي کوم چه دوی غواړي] او ﴿خٰلِدِيۡنَ﴾ [هغوی به ] په دې کښې [همیشه وسیږی ] اے پیغمبره ﴿كَانَ عَلٰى رَبِّكَ وَعۡدًا مَّسۡـُٔوۡلًا﴾ [دایووعده ده کومه چه ] په طوردفضل اومهربانئ [ ستادرب په ذمه ده اوقابلـه ددرخواست ده] اوظاهره ده چه دهمیشه جنت غوره دې پس په دې کښې دترهیب نه پس ترغیب دایمان وشو [ او] هغه ورځ دوی ته یاده کړه چه ﴿وَيَوۡمَ يَحۡشُرُهُمۡ﴾ [په کومه ورځ الله تعالی دې ] کافرانو [ خلقو لره ﴿وَمَا يَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ﴾ اودکومو چه هغو خلقو دالله تعالی نـه سوا عبادت کولو] چه هغوی په خپل اختیارسره چالره نـه دی ګمراه کړی خواه صرف بتان مراد وي یا ملائکې وغیره هم [ دې ] ټول [لره جمع کړی بیـا] ددوئ معبودانو تـه ددغـو عابدانو درسوا کولو دپاره ﴿فَيَقُوۡلُ ءَاَنۡتُمۡ اَضۡلَلۡتُمۡ عِبَادِيۡ هٰۤؤُلَاۤءِ﴾ [ اوفرمائی چه آیا تاسو زما دې بندګانو لره ] دحقې لارې نه [ګمراه کړی وو؟ ﴿اَمۡ هُمۡ ضَلُّوا السَّبِيۡلَ﴾ یادوی] په خپله [ دحقې لارې نـه ګمراه شوی وو؟] مطلب داچه دوی ستاسو عبادت کوم چه په واقع کښې ګمراهی ده ستاسو په حکم اورضا سره کړې وولکه چه ددې خلقو ګمان وو چه دامعبودان زمونږ په دې عبادت سره خوشحالیږی او چه خوشحاله شی نو الله تعالی تـه بـه زمونږ شفاعت وکړی یا ئ په خپـل فاسد خیال سره دخانه جوړه کړې وه ﴿قَالُوۡا سُبۡحٰنَكَ﴾ [ هغه] معبودان [ به عرض وکړی چه په الله تعالی پناه ﴿مَا كَانَ يَنۡۢبَغِيۡ لَنَاۤ اَنۡ نَّتَّخِذَ مِنۡ دُوۡنِكَ مِنۡ اَوۡلِيَآءَ﴾ زمونږ څه مجال وو چه مونږ ستانه سوا نوروکارسازانو لره ] په خپله عقیده کښې [تجویز کړو] عامه خبره ده چه دغـه کارسازان مونږ یو اوکه زمونږ نه سوا نوروی مطلب دادې چه هرکله مونږ خدائی تـالره ثابتـه ګڼرلـه نو مونږ بـه دوی ته دشرك کولو حکم یا پرې رضامندی څنګه ظاهرولـه ﴿وَلٰكِنۡ﴾ [ اولیکن ] هغوی په خپله ګمراه شوی وو اوګمراه هم پـه داسې نـامعقول طورسره شـول چـه اسباب دشکرئ اسباب

دکفرجوړ کړل چنانچه [تا] خو ﴿مَتَّعْتَهُمْ وَآبَاءَهُمْ﴾ [ هغوته او دهغوی مشرانو ته ] ښه [ اسودگی ورکړه ] چه ددې مقتضي داوه چه نعمت ورکوونکی لره ئې پیژندلي وې او دهغه شکر او فرمانبرداری ئې کړې وې مگر دا خلق ﴿حَتّٰى﴾ [تردې پورې ] شهوتونو او لذتونو کښې اخته شول [ چه ] ستا ﴿نَسُوا الذِّكْرَ﴾ [یادول ئې هیر کړل ﴿وَكَانُوا قَوْمًا بُورًا﴾ او دا خلق په خپله برباد شول ] مطلب دجواب ظاهردې چه په دواړو شقونو کښې ئې هغه شق اختیار کړو چه دوی په خپله گمراه شول مونږ نه دی گمراه کړی او ددوی گمراهي ئې دالله تعالی دلویو نعمتونو په دوی باندی دمېذول کیدو په ذکر سره نوره واضحه کړه هغه وخت به الله تعالی هغو عابدانو لره دلاجوابه کولو دپاره کوم چه اصل مقصود وو په ذکر شوی سوال سره دا وفرمائی ﴿فَقَدْ كَذَّبُوكُم بِمَا تَقُولُونَ﴾ [ نو ښه ده ستاسو دې معبودانو خو تاسو لره ستاسو په] ټولو خبرو کښې دروغژن کړئ ] او هغوی خو هم ستاسو ملگرتیاونه کړه او جرم پوره په پوره ثابت شو [ پس ] اوس ﴿فَمَا تَسْتَطِيعُونَ صَرْفًا﴾ [تاسو نه په خپله ] عذاب دځان نه [لرې کولې شئ ﴿وَلَا نَصْرًا﴾ اونه ] دبل چادطرف نه [ تاسو ته څه مدد درکیدې شی ] تردې چه په چاستاسو پوره تکیه وه هغه هم صفا جواب درکوی او ستاسو واضح مخالفت کوی ﴿وَمَن يَظْلِم مِّنكُمْ نُذِقْهُ عَذَابًا كَبِيرًا﴾ [ اوکوم کوم چه په تاسو کښې ظالمان] یعنی مشرکان وی مونږ به هغه ته لوئی عذاب ورکوؤ اگر چې هغه وخت به مخاطبین ټول هم مشرکان وی مگر دداسې فرمائیلوجه داده چه مقتضی دظلم دعذاب کیدل بیان فرمائیل مقصود دی ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ [ اومونږ ستانه وړاند چه څومره پیغمبران لیږلی دی ﴿إِلَّا إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ الطَّعَامَ وَيَمْشُونَ فِي الْأَسْوَاقِ﴾ ټولو به طعام هم خوړلو او په بازارونو کښې به هم گرځیدل ] مطلب دادې چه نبوت او خوړل دطعام وغیره دیوبل سره منافی نه دی چنانچه دچانبوت په دلیلونو سره ثابت دې اگر چه معترضین ئې اعتراف نه کوی هغوی ټولو هم دا کارونه کړی دی پس په تاهم دا اعتراض غلط دې [او] اے پیغمبره او اے دپیغمبرتابعدارو ددې کفارو په دې عبثوخبرو مه غمژن کیږئ ځکه چه ﴿وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً﴾ [ مونږه تاسو ] ټولومجموعه مکلفینو [کښې یوله دبل دپاره ازمائش جوړ کړې دې ] پس ددې جاری عادت مطابق انبیاؤ لره یې په داسې حالاتو باند جوړ کړل چه دامت ازمائش پرې وشی چه څوك ددوی په بشری حالاتوباند نظر کوی دروغژن کوی ئې او څوك ددوی په نبوی کمالاتو باند نظر کوی او تصدیق ئې کوی پس هرکله چه داخبره معلومه شوه نو ﴿أَتَصْبِرُونَ﴾ [آیاتاسو] اوس هم [ صبر کوئ ] یعنی صبر درله کول پکاردی [او ] داخبره یقیني ده چه ﴿وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا﴾ [ ستاسورب ښه وینی ] نو په وعده شوی وخت به دوی ته سزا ورکړی بیا تاسو ولې فکر اوغم کوئ؟

## معارف او مسائل

په تیرو شوؤ آیتونو کښې د کافرانو او مشرکانو د طرفه چه د رسول الله ﷺ په پیغمبرئ باندې کومې شبهې پیش کړې شوې وې او هلته د هغې اجمالي جواب ورکړې شوې وو په دې آیتونو کښې د هغې څه تفصیلی بیان شوې دې حاصل ئې دا دې چه تاسو هر کله حقیقت نۀ پیژنئ او په جهالت کښې اخته یئ او په دې بنیاد مو یو خبره دا هم کړې ده چه که دوئ ﷺ د الله تعالی رسول وې نوورسره به د دولت لوئې خزانې وې د لوئ جائداد او باغونو خاوندبه وو چه د ژوند د خپلوضرورتونو پوره کولو د جنجال به نه خلاص وې -د دې جواب دا ورکړې شو چه مونږ د پاره

داسې کول څه ګران نهٔ دی چه مونږ خپل رسول د دولت او خزانو مالک اوګرځوو بلکه لوئ حکومت او بادشاهی ورکړو څنګه چه مو حضرت داؤد علیه السلام او حضرت سلیمان علیه السلام به د دنیا یو بې مثاله حکومت ورکړې وو او خپل کامل قدرت مو په دې شان څرګند کړې وو خو د عامو خلقو د ښیګړو او د بیشمیره حکمتونو په خاطر مو داسې اوکړل چه د پیغمبرانو علیهم السلام ټولې د مادی او دنیوی مال ، دولت بهٔ بیل اولرلې شی خصوصا سید الانبیاء صلی الله علیه وسلم د پاره الله تعالی دا خوښ کړل چه دعامو غریبو مسلمانانو په منځ کښې هم د هغوئ پشان حالاتو کښې ژوند تیروی او پخپله هم هغوئ صلی الله علیه وسلم خپل ځان د پاره دغسې شان خوښ کړې وو چنانچه په مسند احمد رحمه الله او ترمذی کښې د حضرت ابی امامه رضی الله عنه په روایت رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ، زما رب راته اوفرمائیل چه زهٔ ستاسو صلی الله علیه وسلم د پاره د مکې مکرمې ټوله کاړ جنه زمکه او د دې غرونو سرهٔ زر کول غواړم - نو ما ورته عرض اوکړو چه داسې نهٔ غواړم اې زما پروردګاره زما خو دا خوښه ده چه یوه ورځ په مړه خیټې خوراک راکړې شی [ چه شکر ئې ادا کړم ] او بله ورځ اوږې اوسم [ چه صبر پرې اوکړم ] ([1]) حضرت عائشې رضی الله عنها فرمائیلې دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل که ما غوښتې نو د سرو غرونه به ماسره ګرځیدل [مظهری]([2]) خلاصه ددې داشوه چه د انبیاؤ علیهم السلام د لوږې تندې او غریبئ او نیستئ ژوند تیرول دالله تعالی په زرګونو حکمتونو اودعامو انسانانو په ښیګړو پاندې بنا وو خو دا د دوئ د مجبورئ وجه نهٔ وه بلکه په خوشحالئ سره ئې دا غوښتل که دوئ مالداری او مزې چرچې کول غوښتلې نو الله تعالی به دا هم ورکړې وو څکه چه هغهٔ سره خو د هیڅ کمې نشتې -

د کفارو بله خبره دا وه چه که دې پیغمبر وی نو د دې عامو انسانانو پشان خوراک څکاک به یې نهٔ کولې او د ژوند د ضروریاتو د پوره کولو په خاطر بازارونو کښې دې نهٔ ګرځیدو د دې اعتراض اصلی بنیاد داوو چه پیغمبردې فرشته وې ، انسان دې نهٔ وې قرآن کریم ځائ په ځائ د دې جواب ورکړې دې چه کوم پیغمبران علیهم السلام تاسو منئ هغوئ هم انسانان وو د انسانانو په شان خوراک څکاک به ئې کولو په بازارونو کښې به ګرځیدل څکه داسې کول پیغمبر سره بې سمونه نهٔ دی چنانچه په دې آیتونو کښې ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّآ اِنَّهُمْ لَيَاْكُلُوْنَ الطَّعَامَ﴾ هم دامضمون بیانوی.

**په مخلوق کښې د معاشی او رنګئ نشتوالې په لوئ حکمت باندې بنا دې::** ﴿وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً﴾ په دې کښې دې اړخ ته اشاره ده چه الله تعالی خو هرقسم قدرت لری که هغه ټول انسانان یو شان مالداره یو شان روغ جوړ د یو شان مرتبې خاوندان لرلې نو د دنیا په نظام کښې به ډیر روکاوټونه پیدا شوې وې څکه الله تعالی د انسانانو ترمنځه په دې ټولو څیزونو کښې فرق کیښو چه د انسانانو ازمیښت پرې اوکړې شی چه مالدار روغ جوړ د لویو مرتبو خلق شکر ادا کوی نیستمن رنځور او بې مرتبې او بې وسه خلق صبر کوی او که نهٔ ؟ هم په دې بنیاد رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلې دی چه کله د خپل ځان زیات مالداره د روغتیا او مرتبې خاوند او وینئ نو سمدستی هغې خلقو ته پام را اوګرځوئ چه په دې څیزونو کښې تاسو نه کم وی [ چه د حسد د ګناه نه خلاص شئ او د الله تعالی شکر ادا کړې شئ [بخاری و مسلم په حواله د مظهری]([3])

[ جلد ٦ ختم شو -]

---

[1] ) جامع الترمذي ابواب الزهد باب ماجاء فى الكفاف والصبر عليه [ج:۲ ص:٦٠] و مسند احمد حديث ابي امامة رضي الله عنه رقم الحديث:[۲۲۸٤۷]

[2] ) مجمع الزوائد رقم الحديث :[١٤٢١٠] و تفسير المظهري[ج:٧ ص:١٣]

[3] ) صحيح البخاري كتاب الرقاق ،باب لينظر إلي من اسفل منه إلخ [ج:٢ص:٩٦٠] و صحيح مسلم كتاب الزهد ، باب ولينظر في الدنيا إلي من هو أسفل منه إلخ [ج:٢ص:٤٠٧]